## صلوة الحاجة

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَبْدُ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ |
| عبدالله ابن ابی اوفی رضی الله عنه راوي دی وايي چې نبي عليه الصلاة والسلام وفرمايل چې د کوم سړي چې حاجت |
| إِلَى اللهِ أَوْ إِلَى أَحَدٍ مِنْ بَنِيْ آدَمَ فَلْيَتَوَضَّأْ فَلْيُحْسِنِ الْوُضُوْءَ |
| وي الله ته يا کوم سړي ته نو هغه ته په کار دي چې (اول) اودس وکړي او ښه اودس (يعني پوره ادب او رعايت |
| ثُمَّ لِيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ لِيُثْنِ عَلَى اللهِ تَعَالٰى وَلْيُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| سره) بيا دوه رکعته مونځ وکړي بيا د الله تعالى لويي بيان کړي او په نبي عليه الصلاة والسلام باندې درود ووايي |
| ثُمَّ لِيَقُلْ : لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللهِ |
| او دا دعا وکړي: نشته بل لائق د عبادت بغير د الله تعالى نه. د عيبونو پټونکی او بخښونکي نه. پاک دی الله |
| رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ |
| چې مالک دی د عرش عظيم او ټول تعريفونه خاص الله د پاره دي چې د ټول جهان پروردګار دی ای الله! |
| أَسْأَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَ عَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ |
| زه ستانه هغه شيان غواړم چې په هغې باندې رحمت کېږي او ستا د بخشش سبب وي او غواړم خپل برخه د |
| وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ إِثْمٍ لَا تَدَعْ لِي ذَنْبًا إِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَا هَمًّا إِلَّا فَرَّجْتَهُ |
| هري نيکی نه او بچ کيدل غواړم د هرې ګناه نه ای الله! زما هيڅ يو ګناه د بخښلو نه او هيڅ غم بغير د لري کولو |
| وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًى إِلَّا قَضَيْتَهَا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ". (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ). (۱) |
| نه او هيڅ حاجت چې ستا په نزد خوښ وي بغير د پوره کولو نه پرې نږدې ای ډير رحم کونکي د رحم کونکو نه. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. |

**توضيح**: چې کله د يو سړي حاجت شي، که هغه حاجت بغير د واسطې نه الله سره وي او که د يو بنده متعلق وي مثلاً چيرته د يوې وظيفې (نوکرۍ) مشکل وي. د داخلي مشکل وي. د مقدمې صورت وي نو هغه سړي ته په کار ده چې په ښه طريقې اودس وکړي. بيا دوه رکعته د حاجت مونځ وکړي. يعنې د

(۱) أخرجه سنن الترمذي ۲ ۳٤٤. رقم الحديث ٤٧٩. سنن ابن ماجه ۱ ٤٤۱. رقم الحديث ۱۳۸٤

حاجت د پاره نيت وکړي او بيا د سلام نه وروسته ذکر شوي دعاء وکړي او بيا د خپل حاجت د پاره دعاء وغواړي نو الله تعالی به د هغه ضرورت پوره کړي.

**صلوة الحاجة**:د دې امت په خواصو او عوامو کښې مشهوره ده او دا ډير مجرب دی.ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي چې علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې **صلوة الحاجة** ته **یوم السبت** يعنې د شنبي (خالي) په ورځ لوستل په کار دي. ځکه په يو حديث کښې ذکر دې چې کوم سړی د شنبي په ورځ سحر د الله تعالی نه خپل حلال او جائز حاجت طلب وکړي نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايی چې د **هغې حاجت** پوره کولو زه ذمه وار يم.(المرقات ۳/۴۱۳).

بهرحال د يو مسلمان د پاره د فتنونه په دې ډک دور کښې دا دعاګاني او دا مونځونه يو لوي نعمت او لوی دولت دی. مسلمانانو ته په کار دی چې په ماديا‌تو پسي په منډو منډو د خوار کيدلو په ځای دې د دې روحانياتو نه فايده واخلي.

په دې باب کښې خو يو د استخاري مونځ ذکر راغلی دی دا يو دولت دی.

بل د توبي مونځ بيان دی دا بل دولت دی.

دريم د مصيبت د مونځ بيان دی دا دريم دولت دی.

څلورم د حاجت د مونځ بيان راغلی دی دا څلورم دولت دی.

هر مسلمان ته په کار دي چې هر وخت د دولت پسي اخته وي او ګټه ترې نه واخلي:

**تمتع من شميم عرار نجد ۞ فما بعد العشية من عرار**



# باب صلٰوة التسبيح

## د تسبيح د مونځ بيان

صلوة تسبيح مستحب دی مګر د دې ثواب بې حده ډير دی.
د دې څلور رکعتونه دي او شپه او ورځ په هر جائز وخت کې کيدلی شي.
دې ته صلوة تسبيح ځکه وايي چې د دې هر رکعت کې ۷۵ ځله "**سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر**" ويل کېږي.
د صلوة تسبيح طريقه په حديث کې ذکر ده. بهرحال د ثناء نه وروسته فاتحه ده. بيا يو سورت لوستل دي. قرآت د فارغيدلو نه وروسته په ولاړه ولاړه ۱۵ ځله پاس ذکر شوي تسبيح ويل دي. بيا په رکوع کې **سبحان الله ربي العظيم** درې ځل ويلو سره پاس ذکر شوي تسبيح لس ځل لوستل دي.
بيا په سجده کې **سبحان ربي الاعلىٰ** نه وروسته لس ځله تسبيح ده. بيا په جلسه کې لس ځله ده. بيا دوباره هم په سجده کې لس ځله ده. بيا دويم رکعت ته د پاسيدلو نه مخکې په ناسته ناسته لس ځل تسبيح ده. دويم رکعت هم دغه طريقه باندې دی. په يو رکعت کې ۷۵ تسبيح جوړيږي. اوله قعده او آخره قعده کې د تشهد لوستلو نه مخکې هم لس ځله تسبيح ده. دلته په حديث کې هم دغه طريقه ذکر ده.
د تسبيح د مونځ يوه بل طريقه هم په ځينو رواياتو کې ذکر ده. په هغې کې ۱۵ ځله د تسبيحاتو ذکر د ثناء نه وروسته او د فاتحې نه مخکې دی. دواړه طريقې جائز دي. چاته چې کومه طريقه آسانه وي هغه دې خپله کړي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّل

## دصلوة تسبيح فضيلت او طريقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : لِلْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ : |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم عباس ابن عبد المطلب رضي الله عنه ته وفرمايل :اې |
| "يَا عَبَّاسُ يَا عَمَّاهُ أَلَا أُعْطِيكَ ؟ أَلَا أَمْنَحُكَ ؟ أَلَا أُخْبِرُكَ ؟ أَلَا أَفْعَلُ بِكَ عَشْرَ خِصَالٍ |
| عباس! اې زما تره! زه تاته څه درنکړمه؟ څه درنکړمه زه تاته؟ څه ونه وايم زه تاته؟ آيا تا دلس خصلتونو |
| إِذَا أَنْتَ فَعَلْتَ ذَلِكَ غَفَرَ اللهُ لَكَ ذَنْبَكَ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ قَدِيمَهُ وَحَدِيثَهُ خَطَأَهُ وَعَمْدَهُ |
| مالک نه کړم؟ که ته هغه اختيار کړي نو الله به ستا مخکني او وروستني، زاړه او نوي، قصداً او سهواً، |

صَغِيرَهُ وَ كَبِيرَهُ سِرَّهُ وَ عَلَانِيَتَهُ : أَنْ تُصَلِّيَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ تَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ

واړه او غټ، ښکاره او پټ ګناهونه وبخښي (نو واوره) ته څلور رکعاته مونځ (داسې) وکړه چې هر رکعت

فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَ سُورَةً . فَإِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي أَوَّلِ رَكْعَةٍ وَ أَنْتَ قَائِمٌ

کې سورت فاتحه او بل سورت ووايې. چې ته په اول رکعت کې د قرآت نه فارغ شې نو په ولاړه پنځلس

قُلْتَ سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ اللهُ أَكْبَرُ خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً ثُمَّ تَرْكَعُ

(۱۵) ځله (دا تسبيح) ووايه: سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر بيا رکوع ته لاړ شه او په

فَتَقُولُهَا وَ أَنْتَ رَاكِعٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ الرُّكُوعِ

(رکوع کې د سبحان ربي العظيم ويلو نه وروسته) رکوع کې دا تسبيح لس ځله ووايه بيا د رکوع نه سر را اوچت

فَتَقُولُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَهْوِي سَاجِدًا

کړه او (د سمع الله لمن حمده ويلو نه وروسته) دا تسبيح لس ځله ووايه بيا سجدې ته لاړ شه. او (سبحان

فَتَقُولُهَا وَ أَنْتَ سَاجِدٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ السُّجُودِ فَتَقُولُهَا عَشْرًا

ربي الاعلى ويلو نه وروسته) دا تسبيح لس ځله ووايه بيا د سجدې نه سر اوچت کړه او دا تسبيح لس ځله ووايه

ثُمَّ تَسْجُدُ فَتَقُولُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ

بيا (دويمه) سجدې ته لاړ شه او (د سجدې د تسبيح نه وروسته) دا تسبيح لس ځله ووايه بيا سر د سجدې

فَتَقُولُهَا عَشْرًا فَذَلِكَ خَمْسٌ وَ سَبْعُونَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ

نه را اوچت کړه او دا تسبيح لس ځله ووايه دا ټول پنځه اويا (۷۵) تسبيحات شول په هر رکعت کې همدغه

تَفْعَلُ ذَلِكَ فِي أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ

شان په څلور واړو رکعتونو کې وکړه (يعنې په ذکر شوې طريقې سره دا تسبيح (۷۵) ځله په هر رکعت کې

إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تُصَلِّيَهَا فِي كُلِّ يَوْمٍ فَافْعَلْ فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً

ولوله) که دا مونځ هره ورځ کولې شې نو هره ورځ يې کوه که هره ورځ يې نشې کولې نو په مياشت کې يو ځل

فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً فَإِنْ لَمْ

کوه که په اونۍ کې نشې کولې نو په مياشت کې يې يو ځل کوه او که په مياشت کې نشې کولې نو په کال کې

تَفْعَلْ فَفِي عُمْرِكَ مَرَّةً ". (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَابْنُ مَاجَه. وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعْوَاتِ الْكَبِيرِ)

یې یو ځل کوه او که هر کال یې نه شي کولی نو (کم از کم) په ټول عمر کې یې یو خل (خو ضرور) وکړه.

(وروى التِّرْمِذِيّ عَنْ أَبِي رَافِع نَحوه).[1]

## په قیامت کې به د ټولو نه اول د مونځ پوښتنه کیږي

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا اوریدلي چې د قیامت په ورځ به د بندګانو په عملونو کې

إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ عَمَلِهِ صَلَاتُهُ فَإِنْ صَلَحَتْ

د ټولو نه مخکې چې د کوم عمل باره کې حساب اخستلی کېږي هغه به مونځ وي لهذا که مونځ صحیح وي

فَقَدْ أَفْلَحَ وَ

(یعنې مونځ یې په صحیح طریقې سره کړی وي یا دا چې د هغې مونځ قبول شوی وي) نو هغه به کامیابي او

أَنْجَحَ وَإِنْ فَسَدَتْ

نجات بیا مومي او که مونځ یې فاسد وي (یعنې مونځ یې نه وي کړی یا یې کړی وي مګر غیر صحیح او

فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ

غیر مقبول وي) نو هغه به د ثواب نه نا امیده وي او (په عذاب کې داخته کیدو د وجې نه به) په تاوان کې وي

فَإِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيضَتِهِ شَيْءٌ

خو که (دیو) فرض مونځ کې کمې وي (یعنې د مونځ فرض واجب او سنت مؤکده ارکانو کې یو رکن پاتې شوي

قَالَ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: أُنْظُرُوا هَلْ لِعَبْدِي

وي او مونځ پوره شوي وي) نو الله تعالی به (فرښتو) ته وفرمايي چې: وګورئ زما بنده سره (یعنې د دې په

مِنْ تَطَوُّعٍ ؟

اعمال نامه کې) څه نفل، یا سنت مونځ هم شته دی؟ لهذا (که دده په عمل نامه کې سنت او نفل مونځ وي نو)

---

(۱) أخرجه ابوداؤد في السنن ۲ ٦٧. رقم الحديث ۱۲۹۷. ابن ماجه ۱/ ٤٤٢. رقم الحديث ۱۳۸٦. سنن الترمذي ۲/ ۳۵۰. رقم الحديث ٤٨٢.

فَيُكَمَّلُ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الْفَرِيضَةِ ثُمَّ يَكُونُ سَائِرُ عَمَلِهِ عَلَى ذٰلِكَ".

دهغې په ذريعې سره به دهغې فرض مونځ پوره کړی شي بيا به همدغه شان دبنده دنورو عملونو حساب کېږي.

وَفِي رِوَايَةٍ: ثُمَّ الزَّكَاةُ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ تُؤْخَذُ الأَعْمَالُ حسب ذٰلِكَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَرَوَاهُ أَحمد عَن رَجُلٍ. (۱)

يو روايت کې الفاظ داسې دي: بيا به داسې د زکوة حساب وي او بيا به نورو اعمال حساب وکړی شي.

**توضيح**: **اول ما يحاسب**: د قيامت په ورځ به د ټولو نه اوله پوښتنه او حساب د مونځ وي. همدغه شان په عوامو کې هم مشهوره ده. (المرقات ۳/۴۲۰).

او څه موده مخکې د جوماتونو په ديوالونو او محرابونو باندې به د فارسۍ دا شعر لکيلی کيدلو:

روز محشر که جان گداز بود ❁ اولين پرسش نماز بود

**سوال**: دلته دا سوال پيدا کېږي چې په دې حديث کې ذکر دې چې د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخکې حساب د مونځ وي خو په يو روايت کې ذکر دې چې په قيامت کې به د ټولو نه اول حساب دويني (قتل) وي. دا تعارض دی.

**جواب**: د دې سوال جواب علماؤ داسې ورکړی دی چې په حقوق الله کې به اول حساب د مونځ وي. او په حقوق العباد کې به اول حساب د نا حقه قتل وي. د دې نور تفصيلات په توضيحات جلد ۴ صفحه ۳۸۲ کې ليکلی شوی دی. (المرقات ۳/۴۲۰).

**فيكمل**: يعنې که مونځ، حج، روژه او د زکوة په فرائضو کې څه کم شوی وي نو د قيامت په ورځ به د نوافلو نه د هغې کمی پورا کړی شي. دا حديث زمونږ د عرب ورونړو د پاره يو تازه عبرت دی چې سنت او نوافل د نظر نه غورځوي. فقط مکروه وخت کې د نوافلو پاپندې کوي. سنن مؤکده پريخودلو څومره د محرومۍ خبره ده. علماؤ ليکلي دي چې پورا فريضه که چا پريخودله نو د نوافلو سره د هغې تکميل نه شي کيدی. دا قاعده فقط ادا شوؤ نواقصو فريضه د تکميل د پاره دی. (المرقات ۳/۴۲۱).

## د مونځ او د قرآن فضيلت

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَذِنَ اللهُ لِعَبْدٍ فِي شَيْءٍ

ابو امامه رضي الله عنه راوي دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالی د بنده په هيڅ عمل باندې د خپل رحمت

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۶۸، رقم الحديث ۱۲۹۸

| |
|---|
| أَفْضَلَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ يُصَلِّيهِمَا |
| سره دومره ډیرنه متوجې کیږي لکه څومره چې دهغې لوستلې شوي دوه رکعته مونځ باندې (داچې په ټول |
| عملونو کې مونځ دټولو نه افضل دی نوځکه په بنده باندې دهغې اودعملونو په نسبت دمونځ کولو په وجه |
| وَ إِنَّ الْبِرَّ لَيُذَرُّ عَلَى رَأْسِ الْعَبْدِ مَا دَامَ فِي صَلَاتِهِ |
| باندې دالله عنایت ډیروي) او کله چې بنده په مونځ کې مشغول وي نو د هغه په سر نیکۍ اوخیر راوریږي |
| وَمَا تَقَرَّبَ الْعِبَادُ |
| (یعنې په هغه باندې چې د رحمت او دثواب چې دنیکۍ چې نتیجه ده نازلیږي) او بنده چې څومره نزدې |
| إِلَى اللّٰهِ بِمِثْلِ مَا خَرَجَ مِنْهُ يَعْنِي الْقُرْآنَ . (رَوَاهُ أَحْمد، وَالتِّرْمِذِيُّ). (۱) |
| کیږي الله تعالی ته نو د هدایت سرچینه یعنې د قرآن کریم نه فایده اخلي چې هغومره د بل شي نه وي. |
| (دالله نزدیکت چې څومره په قرآن کریم ویلو سره حاصلیږي دومره بل په هیڅ یو شي سره نه حاصلیږي) |

**توضیح** : **ماأذن**: دلته اذان د **استمع** په معنی دی. یعنې الله تعالی هغه قبلوي. د هغه نه راضي کیږي. د هغه طرف ته متوجې شي. (المرقات ۳/۴۲۲).

**یذر**: **نصر ینصر** نه د مجهول صیغه ده ، د شیندلو په معنی دی. (المرقات ۳/۴۲۲).

**ماخرج منه**: د مجرور دا ضمیر د الله تعالی اړخ ته هم راجع کیږي نو مطلب به دا وي چې د الله تعالی د علم نه څه راوځي یا د الله تعالی د لوح محفوظ نه څه راوتي دي د دې نه مراد قرآن دی.

د مجرور دا ضمیر د **عبد** طرف ته هم راجع کیږي مطلب به دا وي چې څه شی د دې بنده په ژبه او په خوله باندې راوځي د دې نه هم قرآن عظیم مراد دی. خلاصه دا شوه چې د قرآن عظیم په تلاوت او په هغې باندې عمل کولو سره انسان ته چې کوم قرب الهي حاصلیږي دغه شان په بل کوم یو عبادت کې نه حاصلیږي. (المرقات ۳/۴۲۳).



(۱) أخرجه الترمذي ۱۷۶/۵ رقم الحدیث : ۲۹۱۱، مسند أحمد ۲۶۸/۵.

۱۹ جمادی الاول ۱٤۱۰ھ

# باب صلوٰة السفر

## د سفر د مونځ بیان

**قال الله تعالیٰ:** ﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ﴾ (النساء:۱۰۱)

**وقال الله تعالیٰ:** ﴿فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ﴾ (البقرة: ۱۱۵)

د **سفر یسفر** نه **سفراً** و**سفوراً** د سفر دپاره روانیدو ته وایي. دلفظ **سفر** په ماده کښې د انکشاف معنی پرته ده نو **اسفر اسفاراً** د **تفسر تفسیراً** او **مسفرة** په ټولو الفاظ کښې د کشف، انکشاف او د وضاحت معنی پرته ده. (المرقات ۳/۴۲۳).

**مسفرة:** نن سبا هغه آلي ته وایي چې ډاکټر صاحبان یې د خلکو په خیټه او شا باندې کیدي او د مریض د اندروني کیفیت اندازه لګوي. په دې آلي سره ډاکټر ته خو څه نه ښکاري خو د دننه نه د غُر غُر او غرو غرو او ازونو اندازه لګوي. او په غاړه کښې یې د رعب اچولو او د مزي اخستلو د پاره فایده اخلي.

بهرحال هغه سفر چې په هغې سره ځینې شرعي احکام متاثره کیږي. مثلاً د رمضان روژې متاثره کیږي. او په مونځونو باندې هم دغه شان اثر کوي. چې څلور رکعتیز مونځونه په دوه رکعتیز مونځونو کښې بدل شي. او سنن مؤکده تاکد ختم شي او د **جمع بین الصلوتین** مسئله پیدا کیږي. چې آیا د سفر د وجې نه جمعه بین الصلوتین ګنجائش شته دی یا نا؟

بهرحال د دې شرعی سفر د یو څو ځایونو په تفصیل او تحقیق کښې د فقهاؤ اختلاف دی. همدغه د یو څو مباحثو عنوان بیانیږي.

**اول بحث د سفر مسافت:** په څومره سفر کولو سره سړی شرعي مسافر کیږي. او د دې شرعي اسانتیاوې مثلاً قصر صلوة او افطار صوم حاصلیږي. په دې مسافت کښې د فقهاؤ کرامو اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف:** د ځینو اهل ظواهرو او د غیر مقلدینو حضراتو په نز د قصر صلوة د سفر د پاره د هیڅ حد تعین نشته. بلکې مطلق سفر د قصر د پاره کافي دی. مودودي صیب هم تقریباً همدغه مسلک خپل کړی دی. مګر د عام اهل ظواهرو په نزد صلوة د پاره درې میله مسافي په مقدار سفر ضروري دی. او همدغه مقدار موجب قصر دی. خو جمهور فقهاء وایي چې په دومره کم مسافت سره قصر صلوة جائز نه بلکې د قرآن آیت ﴿أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ﴾ یو دهغه سفر تقاضا کوي چې د هغې قصد شوی وي. خکه **علی** د استعلاء د پاره دی. ګویا کښې دا سړی د سفر په څټ مسلسل سپور شوی دی. بیا د جمهورو فقهاؤ په خپل مینځ کښې

لږ شان اختلاف دی. امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ، امام شافعی رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي چې د انبیۀ مصر د وتلو نه وروسته د اته څلویښت (۴۸) میله مسافت سفر موجب قصر دی. د دې نه کم نه او فقط د سفر اراده هم بس نه دی بلکې د ښار د چاپیریال وتل هم ضروري دي. د دې حضراتو په نزد اصل کې شرعي سفر څلور برید یا شپاړس فرسخه مسافت دی. یو برید دولس میله وي او یو فرسخ درې میله وي. (المرقات ۳/۴۲۴).

نو د دواړو اطلاقاتو نتیجه اته څلویښت میله راوځي لهذا د شرعي سفر مسافت اته څلویښت میله دی. د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ مسلک اصل کې درې مراحله دی. یو اطلاق درې منزله دی او یو اطلاق دا دی چې د متوسط سفر سره د درې ورځو سفر موجب قصر دی. د متوسط سفر مطلب دا چې د پیدل سړي مزل یا د اوښ مزل سره کال د ټولو نه وړوکي ورځ کې فقط سړی د سحر نه فقط د غرمي پورې سفر وکړي. دا مطلب نه دی چې د سحر نه تر ماښامه پورې سفر وکړي. نو بهرحال یو ورځ یا یو منزل یا د یو مرحلي سفر مسافت تقریباً شپاړس میله وي. نو د نتیجي اعتبار سره د امام صیب قول هم د ټولو اړخ ته راجع کېږي. فقط لفظي اختلاف دی. او که فرق هم وي نو د احنافو علماؤ د عوامو د سهولت په نظر د جمهورو د قول مطابق ۴۸ میله باندې فتوی ورکړې ده. علماؤ ۴۸ میله مسافت د ۷۸ کلو میټره برابر ګڼلي ده. خلاصه دا چې نن سبا کوم سړی د خپل کور نه ۴۸ میله یعنې ۷۸ کلو متره مسافت سفر باندې ووتلو. نو چې څنګه هغه د خپل کلي یا د د ښار د آبادی نه ووتلو نو په هغې باندې د قصر حکم نافذ شي. (المرقات ۳/۴۲۳).

**دلائل**: اهل ظواهر داؤد ظاهری او غیر مقلدینو د دې باب د اولني حدیث د ظاهري الفاظو نه استدلال کړی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "**صلی القصر بذی الحلیفة رکعتین**" په ذوالحلیفه کې دوه رکعته د قصر مونځ وکړو او ذوالحلیفه د مدنیې منورې نه تقریباً درې میله فاصله باندې ده. (المرقات ۳/۴۲۴).

اهل ظواهرو د عیر ثابت شوي روایت نه هم استدلال کړی دی چې په هغې د درې میله تصریح موجود ده.

جمهورو فقهاؤ د دې باب د فصل ثالث د حدیث نمبر ۱۹ نه استدلال کړی دی. الفاظ دا سې دی: "**وعن مالك بلغه ان ابن عباس كان يقصر الصلوٰة في مثل ما يكون بين مكة والطائف وفي مثل ما بين مكة و عسفان وفي مثل ما بين مكة وجدة وقال وذلك اربعة برد.** (رواه مالك في المؤطا)

د جمهورو دویم دلیل د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث دی چې په مسلم شریف کې دی. چې د هغې الفاظ دا دي: **جعل النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثلاثة ايام ولياليهن للمسافر**. د دې روایت نه استدلال په دې طرز باندې دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مسافر حیثیت او د شرعي احکامو بدلولو د پاره درې ورځې مقرري کړي دې کچرې د درې ورځو سفر وي نو مسح علی الخفین تر درې ورځو پورې دی ګیني سفر نه

دی او که د درې ورځو نه کم سفر وي نو مسح د درې ورځو په ځای يوه ورځ او يوې شپې پورې به وي کوم چې د مقيم د پاره وي. د دې روايت نه احناف د جمهور فقهاؤ په مقابله کې په دې باندې هم استدلال کوي چې د سفر مسافت او د سفر د مقدار اعتبار په درې شپو باندې دی، نه دا چې په څلور بريد باندې. دلته دا چې د جمهورو اختلاف لفظي ؤو چې ختم شو نو ځکه د دې د چيړلو ضرورت نشته دی. د اهل ظواهرو په مقابله کې جمهور فقهاؤ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت سويد بن غفله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د يو اثر نه هم استدلال کړی دی. الفاظ يې دا دي "**اذا سافرت ثلاثا فاقصر**". (**كتاب الاثار لمحمد**)

د دې رواياتو نه په واضحه توګه معلوميږي. چې موجب قصر صلوة مسافت يو معين او محدود او معدود مسافت دی. نه دا چې هر سفر وي، هغه به موجب قصر وي که هغه قصير او که کثير وي.

**جواب**: داؤد ظاهري او غير مقلدينو چې د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کوم روايت نه استدلال کړی دی هغه استدلال غلط دی. ځکه چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مديني نه فقط د ذوالحليفه ته نه تللو بلکې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مديني نه مکي ته تللو. چې د پنځه سوه (۵۰۰) ميله نه ډيره مسافت ده.

**دويم بحث: قصر رخصت دی او که عزيمت**: په دې باندې د ټولو اتفاق دی چې په سفر کې د دوؤ او درې رکعاتونو والامونځ کې قصر نه کېږي. او په دې باندې هم د ټولو اتفاق دی چې په سفر کې په څلور رکعاتيز مونځ کې قصر کېږي. څلور رکعتيز مونځ دوه رکعته کولو ته قصر وايي. په شرعي سفر کې قصر کول په هر حالت کې بالاتفاق مشروع او جائز دي. که د امنيت حالت وي او که د ويرې حالت وي. (المرقات ۳/۴۲۶).

اوس په دې کې اختلاف شوی دی چې د دې قصر حيثيت څه دی. آيا قصر کول رخصت دی يا عزيمت دی. په نورو الفاظو کې دا رخصت اسقاط دی يا رخصت ترفيه دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د جمهورو فقهاؤ په نزد قصر کول رخصت دی. او اتمام (پوره کول) يې عزيمت دی. يعنې قصر کول رخصت ترفيه دی. قصر او اتمام دواړه جائز دي. مګر ټول افضل دي. رحمة الامة فی اختلاف الائمه کې په ص ۵۳ باندې د جمهورو فقهاؤ مسلک داسي ليکلی دی. اګر که په نورو کتابونو کې د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ نور اقوال هم شته دی.

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد شرعي سفر کې قصر کول عزيمت دی. دا رخصت ترفيه واختياريه نه دې بلکې رخصت اسقاط دی چې قصر کول لازم دی اتمام ناجائز دی. د دې اختلاف ثمره به هغه صورت کې ښکاره کېږي چې چا په سفر کې څلور رکعته مونځ وکړو خو اوله قعده يې ورباندې ونه کړه نو د جمهورو فقهاؤ په نزد مونځ نه باطل کېږي. خو د احنافو په نزد مونځ باطل کېږي نو ځکه چې په دوه رکعته باندې کيناستل آخري قعده وه چې فرض وه د دې په پريخودلو سره مونځ باطل شو. (المرقات ۳/۴۲۶).

**دلائل**: جمهورو فقهاؤ د قرآن عظيم دا آيت ﴿**وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا**

**مِنَ الصَّلٰوةِ﴾** (النساء آيت : ۱۰۱) دسورت نساء د ۱۰۱ نمبر آيت نه استدلال کړی دی. د استدلال طرز داسي دی چې الله تعالى د قصر په صورت کې د جناح او د ګناه نفي کړې ده چې په قصر کې ګناه نشته بلکې مباح دی او د اباحت او د وجوب منافي دی. لهذا اتمام عزيمت نه بلکې رخصت دی. د جمهورو دويم دليل د دې باب د فصل ثانی په اولني حديث نمبر ۹ چې په هغې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د سفر په حالت کې په مونځ کې قصر هم کړې دی او اِتمام يې هم کړې دی.

همدغه شان په دارقطنی کې د عائشې رضي الله عنها د روايت الفاظ داسي راغلي: **"ان النبي صلى الله عليه وسلم كانه يقصر فى السفر ويتم"** د دې نه هم جمهور فقهاء استدلال کوي. (المرقات ۳/۴۲۶).

د جمهورو فقهاؤ دريم دليل د حضرت عثمان رضي الله عنه او د حضرت عائشه رضي الله عنها فعل دی چې دواړو حضراتو به په سفر کې اِتمام کولو. لکه څنګه چې د فصل ثالث په حديث نمبر ۱۵ او حديث نمبر ۱۶ کې په واضحه توګه ذکر دي.

د احنافو ائمؤ د ډيرو احاديثو نه استدلال کړی دی چې قصر عزيمت دی او دا رخصت اسقاط دی او اِتمام ناجائز دی. يو څو حديثونه د نموني په توګه په خدمت دي.

اَحنافو د دې باب د اول فصل د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د حديث نمبر ۳ نه استدلال کړی دی چې د هغې تخريج امام مسلم رحمه الله کړې دی. چې په هغې کې دا الفاظ دي : **"فقال صدقة تصدق الله بها عليكم فاقبلوا صدقته"** (المرقات ۳/٤٢٦) يعنې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په سفر کې قصر کول د الله تعالى د اړخه يو احسان دی. لهذا د الله تعالى دا احسان قبول کړه. نو په دې کې يو اړخ ته قصر صدقه وګڼلي شوه او صدقه چې د چا په لاس کې راشي نو هغه د هغې مالک شي او ورکونکي هغه بيرته نه اخلي. دا انداز هم د قصر اړخ ته بنه اشاره کوي.

دويم په دې حديث کې **فاقبلوا** د امر صيغه ده چې د وجوب د پاره راځي. لهذا قصر واجب او عزيمت دی. او رخص اسقاط دی اِتمام ساقط شو. په مشکوة کې دا حديث ص ۱۱۸ باندې ذکر دی.

د احنافو د ائمؤ دويم دليل د دې باب د فصل ثالث حديث نمبر ۲۱ دی. چې د هغې روايت استدلال د حضرت عائشه رضي الله عنها نه دی او چې د هغې تخريج بخاری او مسلم کړی دی چې په هغې کې په واضحه توګه ذکر دي چې په ابتداء د اسلام کې دوه رکعته فرض شوي ؤو. بيا چې کله نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مکي نه مديني ته هجرت وکړو نو څلور رکعته فرض شول خو د سفر مونځ همغه شان دوه رکعته پاتې شول. دا حديث د مشکوة په ص ۱۱۹ باندې ذکر دی. (المرقات ۳/۴۲۵).

د احنافو دریم دلیل د مشکوة په همدغه صفحه باندې حدیث نمبر ۱۷ دی چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دی چې د هغې تخریج امام مسلم کړی دی. د هغې مضمون هم دغه شان دی څنګه چې د حضرت عائشه رضي الله عنها د تیر شوي روایت مضمون د چې الله تعالی په حالت قیام کې څلور رکعته مونځ فرض کړی دی او په سفر کې یې دوه رکعته فرض کړی دی. (المرقات ۳/۴۳۶).

د احنافو د ائمؤ څلورم دلیل د حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه حدیث دی چې د هغې تخریج امام بخاري رحمه الله په بخاری شریف کې کړی دی چې د هغې الفاظ دا دي: "**عن ابن عمر قال صحبتُ رسول الله صلى الله عليه وسلم في السفر فلم يزد على الركعتين حتى قبضه الله**" (رواه البخاري)

ګویا کې نبي کریم صلى الله عليه وسلم مدة العمر کې په سفر کې قصر کړې دی. او په یو عمل باندې دغه شان همیشوالی د وجوب دلیل دی. لهذا قصر عزیمت دی او اِتمام ناجائز دی.

**جواب**: جمهورو فقهاؤ چې د قرآن د آیت نه کوم استدلال کړی دی چې هغې جواب دا دی چې قصر صلوة في السفر کې د صحابؤ طرف نه د حرج محسوسولو امکان ؤ چې په اتمام کې ثواب ډیر دی په قصر کې به ثواب لږ ملاویږي همدغه حرج د لرې کولو د پاره **لا جناح** وفرمایلی شو. دا لفظ د اباحت د پاره متعین نه دی بلکې د وجوب په موقع باندې هم استعمالیدلی شي. لکه د صفا او مروه په منیځ کې د سعي (منډې) د پاره ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا﴾ الفاظ راغلي دې حال دا چې سعي واجب ده. ځینو علماؤ دا جواب هم ورکړی دی چې د آیت تعلق فقط د صلوة خوف سره دیږ د دې تعلق د قصر فی السفر سره نه دی. لکه مجاهد او ابن جریر او ابن کثیر د تفسیرونو نه معلومیږي.

د جمهورو فقهاؤ دویم دلیل د حضرت عائشه رضي الله عنها د روایت جواب دا دی چې **یقصر او یتم** مواقع بیل بیل دي د **یقصر** تعلق د سفر سره دی چې د درې ورځو په مسافت کې به نبي کریم صلى الله عليه وسلم قصر کولو او د درې ورځو نه کم سفر کې به یې قصر نه کولو ځکه هغه شرعي سفر نه ؤ بلکې لغوي سفر ؤ.

د دار قطني د روایت هم یو جواب دغه دی. دویم جواب دا دی چې د **یقصر** الفاظ او د **قصر تعلق** رباعیه مونځونو سره دی چې په هغې کې قصر وي. او د **یتم** لفظ تعلق د هغه مونځونو سره دی چې ثنائی یا ثلاثي دی. چې په هغې کې قصر نه بلکې تهول لوستلی کېږي. دریم جواب دا دی چې دا د ابتدائی دور حکم ؤ و وروسته د قصر د وجوب حکم راغلو. (المرقات ۳/۴۲۴).

د جمهورو د دریم دلیل جواب دی چې حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت عائشه رضي الله عنها د فعل نه استدلال کول صحیح نه دی ځکه هغه حضرات خپله د یو دلیل په وجه اِتمام السفر نه کولو بلکې تاویل او د اجتهاد نه به یې کار اخستلو. نو په حدیث نمبر ۱۶ کې چې کله زهری رحمه الله د حضرت عروه رضي الله عنه

نه پوښتنه وکړه چې عائشې رضي الله عنها به په سفر کې اِتمام ولې کولو؟ نو حضرت عروه رضي الله عنه جواب ورکړو چې هغې دغه شان تاويل کولو چې څنګه تاويل او اجتهاد به حضرت عثمان رضي الله عنه کولو د حضرت عثمان رضي الله عنه تاويل او اجتهاد به دا ؤ چې هغه اميرالمؤمنين دی چې چرته خې ګوياکې په خپل کور کې دې سفر کې نه دی يو اجتهاد د هغې له طرفه دا هم ؤ چې هغې به فرمايل چې د حج په موسم کې دير خلک راجمعه کېږي که په منی او يا په نورو ځاينو کې قصر کوم نو د بانډو خلک به داسې وګڼي چې مونځ دوه رکعته دی په دې سره به هغوی خطا شي. (المرقات ۳/۴۲۴).

د حضرت عثمان رضي الله عنه د اتمام يوه وجه دا هم وه چې هغې په مکه مکرمه کې نکاح کړې وه او هلته به د خپل اهل وعيال سره اوسيدلو. نو ځکه به هغې خپل ځان مقيم ګڼلو. (المرقات ۴۲۴، ۳، اشعة اللمعات ۵۹۸).

همدارنګې به عائشې رضي الله عنها دا تاويل او اجتهاد کولو چې زه ام المؤمنين يم چې چرته زه م ګوياکې هغه زما خپل اقامتي کور دی. لهذا سفر نه دی. نو ځکه به هغې په مونځ کې اِتمام کولو.

خو د دې حضراتو دا تاويل او اجتهاد صحابؤ قبول نه کړو او د هغوی نه يې قسما قسم پوښتنې وکړلې او دې حضراتو به د دليل ورکولو په ځای فقط خپل تاويل او اجتهاد بيانولو. د دې نه معلومه شوه چې په سفر کې قصر دی او قصر عزيمت دی. رخصت نه دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ بِالْمَدِيْنَةِ أَرْبَعًا وَ |
|---|
| انس رضي الله عنه راوي دې وايي چې: نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مدينه کې د غرمې څلور رکعته وکړل او د |
| صَلَّى الْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ (مُتَّفق عَلَيْهِ) (۱) |
| مازيګر مونځ دوه رکعته يې په ذی الحليفه کې وکړل. |

**توضيح**: مخکې ويلی شوي دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په دې سفر کې فقط د ذوالحليفه پورې نه ؤ بلکې د مکې په سفر باندې تللو. لهذا غير مقلدين د دې نه استدلال نه شي کولی چې په درې ميله فاصله کې قصر کېږي.

ذوالحليفه د مديني منورې نه باهر ده. لهذا د جمهور فقهاؤ همدغه مسلک دی چې کله د ښار يا د کلي نه سړی ووځي. او ۴۸ ميله يعنې ۷۸ کلوميټره باندې ځي. نو هغه شرعي مسافر دی. تر څو چې د کلي

(۱) أخرجه البخاري ۵۶۹/۲، رقم الحديث ۱۰۸۹، مسلم ۴۸۰/۱، رقم الحديث ۱۱-۶۹۰، أبوداؤد في السنن ۸/۲، رقم الحديث: ۱۲۰۲، ترمذي ۴۳۱/۲، رقم الحديث: ۵۴۶، نسائي ۲۳۵/۱، رقم الحديث ۴۶۹، دارمي ۴۲۴/۱، رقم الحديث ۱۵۰۷.

د حدودو نه نوي وتلی فقط د سفر په اراده او نیت سره سړی نه مسافر کېږي او نه په هغې باندې د مسافر احکامات عملي کېږي.

## په منی او عرفات کې قصر سفر دی یا قصر حج دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ الْخُزَاعِيِّ قَالَ : صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ |
| او حارث ابن وهب خزاعي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې مونځ وکړو مونږ ته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او په |
| نَحْنُ أَكْثَرُ مَا كُنَّا قَطُّ وَ آمَنُهُ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱) |
| دې موقع مونږ په دومره اندازه کې وو چې د دې نه مخکې کله نه وو او د امن په حالت کې وو دوه رکعته. |

**توضیح** : **ونحن اکثر ما کنا**:ای نحن اکثرا کوانناعددًا واکثرا کواننا امنًا دا جمله حالیه او ما مصدریه دی.شیخ عبد الحق د دې جملې په ترتیب کې ډیر څه لیکلي دي او پاس چې کوم تقدیري عبارت رایستل شوی دی، دا د ټولو نه آسان دی. مطلب دا چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په منی کې قصر مونځ پداسي حالت کې ولوستلو چې مونږ په دغه زمانه کې د ټولو نه ډیر په امن کې وُو. او د ټولو نه په ډیر شمیر کې وُو. په دې حدیث صحابي دا بیانول غواړي چې د قصر د پاره د کفارو ویره یا حمله څه شرط نه دی بلکي په حالت امن کې هم شرعي سفر کې قصر کیدلی شي. اوس دلته دا مسئله مخې ته راځي چې آیا دا دوه رکعته چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په منی کې لوستلي ؤ، د سفر د وجې نه یې قصر کړی ؤو. یا یې د حج د وجې نه داسي کړی ؤو. په دې کې د فقهاؤ لږ شان اختلاف دی :

**د فقهاؤ اختلاف** :امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې دا قصرا لحج یعني د حج په ورځو کې په عرفات مزدلفه او منی کې دا چې ډیر بیروبار وي. نو ځکه د سهولت په خاطر په دغه مقاماتو کې به په رباعي مونځونو کې قصر کېږي. خو د جمعې مونځ په دغه مقاماتو کې نشته او د عید الاضحی مونځ هم نه دی. بلکي عرفات او مزدلفه کې **جمع بین الصلوتین** باندې به عمل کېږي. دا ټول د اسانۍ په خاطر دي. جمهور علماء وايي چې دا قصرالحج نه دی بلکي قصر صلوة د سفر په وجه دی لهذا چې کوم سړی مسافر وي نو هغه به دغه مقاماتو کې د قصر په سفر باندې عمل کوي. خو چې کوم سړی مقیم وي نو هغه به قصر نه کوي.د احنافو د فقهي په کتابونو کې مثلاً شامي کې احنافو ته مشوره ورکړلی شوي ده چې که چیرې څوک مسافر نه وي نو هغه خپل مونځ مه خرابه وي، او د قصر کوشش مه کوي، بلکي بیل پوره پوره مونځ وکړي. بحرالرئق د هامش په حاشیه شامي ابن عابدین دی. په هغې کې همدغه شان لکیلی شوي دي.

---

(۱) اخرجه البخاري ۵۶۳/۲، رقم الحدیث : ۱۰۸۳، مسلم ۴۸۳/۱، رقم الحدیث ۲۰-۶۹۶.

(بحر ج۲ ص ۳۲۷) په عرفات کې هم **جمع بين الصلوتين** د هم دغه اصولو د نظر لاندې سړی شريک کېدلی نه شي. ځکه مقيم د پاره قصر جائز نه دی او د **جمع بين الصلوتين** شرط دا دی چې سړی په هغه امام پسې اجتماعي مونځ کې شريک شي او **جمع بين الصلوتين** وکړي. لهذا که يو حنفي په ليله توکه باندې **جمع بين الصلوتين** هم نه شي کولی. دا د امام صيب مسلک دی. د صاحبينو په نزد جماعت او اجتماع شرط نه دی. ځان له هم **جمع بين الصلوتين** جائز دی. اګر که اولنی قول راجح دی. نن سبا په عرفات او منی کې د سعودي علماء قصر کوي چې د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ نه بغير د ټولو علماؤ په نزد د پريشانۍ سبب دی. کله کله د سعودي حکومت د مونځ د پاره داسي امام راولي چې خپل مسافر وي د دې د پاره چې د قصر مونځ صحيح شي. عموماً نن سبا په دې باندې ډير عمل کېږي چې امام مسافر وي.د احنافو ځينې علماؤ دا هم ليکلي دي چې په دې مسئله کې دې د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په مسلک باندې عمل وکړی شي نو دا عمل هم جائز دی ځکه بيل بيل مونځ کولو کې ډيره تنګسيا ده. او "**الحرج مدفوع في الشرع**" يوه قاعده ده.او يا دا وکړی شي چې په دې مسئله کې د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ مسلک خپل کړی شي او په همدغه باندې فتوی ورکړلی شي او وويل شي چې دلته د قصر سفر نه بلکي قصر الحج دی. بهرحال په دې حديث کې صحابی دا ويل غواړي چې د قصر الصلوة د پاره دا شرط نه دی چې کفازو ويره وي. بغير د امن د حالت نه هم چې کله سفر وي نو قصر جائز دی. په آيت کې ان **خفتم** قيد اتفاقي دی. په راتلونکي روايت کې د دې تصريح موجود ده.

## په آيت قصر کې دويرې اتفاقي قيد

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ : قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ : إِنَّمَا قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى |
| اويعلی بن اميه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې ما عمربن الخطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته عرض وکړو چې د الله تعالی ارشاد دی |
| ﴿ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ |
| چې لږ مونځ وکړی (يعنې قصر وکړی) که چرې تاسو ته دا ويره وي چې کفار به تاسو تنګ کړي (نو) |
| فَقَدْ أَمِنَ النَّاسُ. |
| او س(دا چې) خلک په امنيت کې دي (او د کافرانو د تنګولو ويره روانه ده نو د قصر څه ضرورت دی؟) |
| قَالَ عُمَرُ : عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ |
| حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل : چې په څه باندې تا ته تعجب دی په هغې ما ته هم تعجب دی خو ما |

| |
|---|
| فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . فَقَالَ : |
| د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه (د دې باره کې) پوښتنه وکړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې (مونځ کې قصر) د الله تعالى |
| صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ اللهُ بِهَا عَلَيْكُمْ فَاقْبَلُوْا صَدَقَتَهُ . (۱) |
| احسان دی چې په تاسو کړی شوی دی. لهذا تاسو د هغې صدقه (احسان) قبول کړئ ". |

**توضيح** : يعنې د قصر حكم د كفارو او د هغوى د ويرې او د هغوى د حملو يا د فتنو سره تړلي نه ده. بلكي دا يوه اساني ده چې الله تعالى د سفر په حالت كې په مسلمانانو باندې احسان او انعام كړى دى. د دې حديث نه يوه دا خبره معلومه شوه چې قصر صلوة د كفارو په ويرې باندې موقوف نه ده بلكي دا يو سهولت دى چې د الله تعالى د اړخ نه مسلمانانو مسافرو ته وركړى شوى دى. دويمه خبره د دې حديث نه دا معلومه شوه چې **قصر في السفر** د الله تعالى انعام او احسان دى او په ب نه دى ګانو باندې د دې قبلول واجب دي. لهذا قصر عزيمت او رخصت اسقاط دى. رخصت ترفيه و اختياريه نه دى او همدغه د احنافو مسلک دى. (المرقات ۳/۴۲۵).

## د اقامت موده څومره ده؟

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سره يو ځاى د حجة الوداع په موقع باندې مونږ د مدينې نه مكې |
| فَكَانَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ حَتَّى رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ |
| ته لاړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (د څلور ركعت والامونځ) دوه دوه ركعته وكړل تردې چې مونږ بيرته مدينې ته راغلو |
| قِيلَ لَهُ : أَقَمْتُمْ بِمَكَّةَ شَيْئًا |
| د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وشوه چې : آيا تاسو په مدينه كې څو ورځې ايسار شوي وئ ؟ انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| قَالَ : أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (۲) |
| وفرمايل چې (آؤ) مونږ په مكه كې لس ورځې ايسار شوي ؤ. |

---

(۱) أخرجه مسلم ۴۷۸/۱، رقم الحديث ۴-۶۸۶، أبوداؤد في السنن ۷/۲، رقم الحديث ۱۱۹۹، ترمذي ۲۲۷/۵، رقم الحديث ۳۰۳۴، ابن ماجه ۳۳۹/۱، رقم الحديث : ۱۰۶۵، دارمي ۴۲۳/۱، رقم الحديث ۱۵۰۵، مسند احمد ۲۵/۱

(۲) أخرجه البخاري ۵۶۱/۲، رقم الحديث ۱۰۸۱، مسلم ۴۸۰/۱، رقم ۱۵-۶۹۳، ابوداؤد في السنن ۲۶/۲، رقم الحديث: ۱۲۲۳، ترمذي ۴۳۱/۲، رقم الحديث: ۵۴۸، نسائي ۱۲۱/۳، رقم الحديث ۱۴۵۲

**توضيح** :**اقمنا بها عشراً**: د شرعي سفر د باطل کيدلو يو صورت دا دی چې سړی د سفر نه فارغ شي او خپل منزل مقصود اصلي وطن ته ورسي. او دويم صورت دا دی چې سړي په يو ځای کې د اقامت نيت وکړي. اوس د څومره ورځو د اقامت کولو په نيت سره شرعي سفر او قصر باطل کېږي. په دې کې د فقهاؤ ډير اقوال دي. مګر مشهور اقوال څلور دي.( المرقات ۳/۴۲۶).

**د فقهاؤ اختلاف** :۱-د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د داؤد ظاهری په نزد د څلور ورځو نه ډير د اقامت نيت کولو سره قصر باطل کېږي. يعني ۲۱ مونځو په مقدار اقامت نيت سره قصر باطل کېږي.

۲- د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام شافعی رَحِمَهُ اللهُ په نزد د څلور ورځو اقامت نيت کولو سره شرعي سفر باطل کېږي. خو د تلو او راتلو ورځې ددې نه مستثنی دي.

۳- د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نزد د (۱۹) ورځو يا د دې نه ډيري ورځو نيت سره قصر باطل کېږي. (المرقات ۳/۴۲۸).

۴- د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد پنځلس (۱۵) يا ددې نه ډيرو ورځو د اقامت نيت کولو سره شرعي سفر او قصر باطل کېږي.

**دلائل** :د دې ټولو حضراتو سره هيڅ مرفوع منصوص حکم نشته دی. خو اثار د صحابؤ نه ټولو استدلال کړی دی چې د هغې په ضمن کې اجتهاد هم شامل دی. امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او داؤد ظاهری ددې نه استدلال کوی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حجة الوداع په موقع باندې مکه مکرمه کې څلور ورځې قيام کړی ؤو. معلومه شوه چې ددې نه په ډيره سره قصر باطل کېږي.امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او شوافع حضرات فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مکه مکرمه کې درې ورځې پاتې شوی ؤو. او قصر به يې کولو. لهذا ددې نه ډير ايساريدلو سره قصر باطل کېږي. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يو سفر کې چرته تشريف وړی ؤو او تر ۱۹ ورځو پورې يې قيام وړکړو مګر نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به قصر کولو لکه په راروان حديث نمبر ۵ کې به راشي. لهذا د ۱۹ ورځو نه ډير نيت کولو سره قصر باطل کېږي.

د احنافو دليل د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ متعلق يو اثر دی چې د هغې الفاظ دا دي: **وعن مجاهد ان ابن عمر کان اذااجمعه علی اقامة خمسة عشر يوماً اتم الصلوة. (رواه ابن شيبه بسند صحيح)**

د احنافو دويم دليل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اثر دی چې په طحاوی کې ذکر دی: **اذا قدمت بلدة وانت مسافر و في نفسك ان تقيم خمسة عشر يوماً فاكمل الصلوة بها وان كنت لا تدري متى تظعن فاقصرها. (طحاوي)**

ترجمه: کله چې ته یو کلي ته د مسافر په توګه راشي او هلته د پنځلس ورځو د قیام اراده لري نو هلته ته پوره مونځ وکړه او که تاته معلومه نه وي چې کله په سفر روانیږم نو بیا قصر کوه.

**جواب**: د بحث د لاندې حدیث د حضرت انس رضي الله عنه د روایت نه د شوافعو او حنابلؤ دلیل بالکل ختم شي. ځکه د دې حدیث مطابق د لسو (۱۰) ورځو په قیام کې به صحابؤ قصر کولو. نو څلورو ورځو یا درې ورځو څه حیثیت پاتې کیدلی شي؟ د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د دلیل جواب دا دی چې سړی نن سبا نن سبا کوی او د تللو اراده لري نو هلته ۱۹ ورځي خو لا څه چې تر ۱۹ میاشتو پورې هم مسافر پاتې کیدلی شي. حضرت انس رضي الله عنه وایي چې صحابه کرامو رضي الله عنهم په رامهر مز کې ۹ میاشتې پورې قصر کولو. ابن عمر رضي الله عنه تر شپږو میاشتو پورې په آذربائیجان کې مقیم ؤ و خو قصر به یې کولو ځکه په نن سبا نن سبا کولو سره ډیره موده تیره شوه همدغه شان نبي کریم صلی الله علیه وسلم هم په یو سفر کې همدغه نیت وکړو چې سبا به زو خو د جهادي معاملاتو کې په بیا راګیر شو او دغه شان ۱۹ ورځي تیرې شوې. دا فعل د اقامت د مودې د پاره دلیل نه شي جوړیدی.

## د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دلیل

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: سَافَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَفَرًا فَأَقَامَ تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا |
| ابن عباس رضي الله عنه وایي چې (یو ځل) نبي کریم صلی الله علیه وسلم (چرته) لاړو او هلته یې نورلس ورځي قیام |
| يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : |
| وکړو (د قیام په دوران کې) نبي کریم صلی الله علیه وسلم دوه دوه رکعته کول ابن عباس رضي الله عنه وایي چې |
| فَنَحْنُ نُصَلِّي فِيمَا بَيْنَنَا وَ بَيْنَ مَكَّةَ تِسْعَةَ عَشَرَ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ |
| مونږ خلکو به هم کله چې مکه او خپل (یعني مدینه) په مینځ (چرته) نولس ورځي قیام کولو نو دوه دوه رکعته |
| فَإِذَا أَقَمْنَا أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ صَلَّيْنَا أَرْبَعًا. (۱) |
| مونځ به مو کولو او چې ددې نه به ډیر ایساریدلو نو څلور رکعته به مو کول. |

**توضیح**: دا حدیث د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دلیل دی خو علماء وایي چې په دې روایت کې څه د اقامت او د هغې د نیت ذکر نشته دی. بلکې "**علی عزم الترحیل**" بغیر د قصد او د ارادې نه دومره ورځي تیرې شوې همدغه شان که یو کال هم تیر شي نو سړی نه شي مقیم کیدی. (المرقات ۳/۴۲۷).

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۵٦۱، رقم الحديث ۱۰۸۰

## د مسافرۍ په حالت کې سنت وکړی شي او که نه ؟

﴿٦﴾ وَ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ قَالَ : صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ فِيْ طَرِيْقِ مَكَّةَ

حفص بن عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يو ځل د مکې او مدينې) په (مينځ) لاره کې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملګرتيا

فَصَلَّى لَنَا الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ

شرف ترلاسه شو (چې کله وخت شو نو) هغه مونږ ته د غرمې دوه رکعته مونځ وکړو او (د دې نه وروسته)

جَاءَ رَحْلَهُ وَ جَلَسَ فَرَأَى نَاسًا قِيَامًا فَقَالَ : مَا يَصْنَعُ هٰؤُلَاءِ ؟

چې کله هغه خپلې خيمې ته راغلو نو وې کتل چې خلک ولاړ دې هغې پوښتنه وکړه چې دا خلک څه کوي؟

قُلْتُ : يُسَبِّحُوْنَ . قَالَ : لَوْ كُنْتُ مُسَبِّحًا أَتْمَمْتُ صَلَاتِيْ.

ما عرض وکړو چې نفلونه کوي هغه ووېل چې که چېرې ما نفل کولی . نو ما به خپل فرض پوره نه کولی

(يعنې که چېرې دا موقع د نفل د کولو وې نو د فرض د مونځونو به ډېر اهم وی مګر د آسانۍ دپاره فرض مونځ لره په قصر لوستلو سره حکم ورکړې شوي دی نو د نفل مونځ ترک کول به اولی وي ځکه فرض ادا

صَحِبْتُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

کول د نفل کولو نه اولی دی) ما ته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملګرتيا شرف ترلاسه شوې چې نبي کريم

فَكَانَ لَا يَزِيْدُ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ وَ أَبَا بَكْرٍ وَ عُمَرَ

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د سفر په حالت کې د دوؤ رکعتونو نه ډېر نه کول. همدغه شان ما ته د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عمر

وَ عُثْمَانَ كَذٰلِكَ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (١)

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ملګرتيا شرف حاصل شوی د دې حضراتو همدغه معمول ؤو

(چې په سفر کې به يې د دوؤ رکعتونو نه ډېر نه کول)

**توضيح** : که په سفر ډېر مشکل وي يا تنګسيا وي او يو سړی د سنتو او د نوافلو ډېره پابندي کوي نو دا جائزه نه ده ځکه کله چې الله تعالی په فرائضو کې نرمي وکړه نو په سنتو او نوافلو کې خو په طريق اولی نرمي راغله. نو ځکه ويلی شوي دي **"من السنة ترك السنة في السفر"**.

---

(١) أخرجه البخاري ٥٧٧/٢، رقم الحديث ١١٠١، أبوداود ٢ /٢٠ رقم الحديث ١٢٢٣، نسائي ٣ /١٢٣، رقم الحديث: ١٤٥٨، ابن ماجه ٣٤٠/١، رقم الحديث : ١٠٧١

خو که يو سړی په سفر کې د سهولت سره دی او سفر هم جاري نه دی بلکې څه وقفه ده نو په هغه وقفه کې که سړی سنت کولی شي. نو دا منع نه ده. بلکي په دې باندې به نور هم ډير ثواب ملاويږي.

**مسبحاً**: دا د تسبيح نه دی. نفل مونځ کولو په معنې دی، يعنې کچرې ما نفل کولی نو د دې په ځای به ما فرض پوره کولی او دا به مي کړي وي، په فرضو کې به مي قصر نه کولی. په سفر کې سنت کولو او په نه کولو کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۳/۴۲۸).

**د فقهاؤ اختلاف**: ځينې فقهاؤ په سفر کې د سنت کول مطلقاً ممنوع ګڼلي دې او ځينې مطلقاً جائز ګڼلي دي. او ځينو په سنت مؤکده راتبه او نوافلو کې فرق کړې دی. په ائمه اربعؤ کې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حبنل رَحِمَهُ اللهُ په نزد په سفر کې هم سنن قبليه و بعديه لوستل په کار دي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د دې باره کې څه صريح قول نشته دی خو د احنافو د علماؤ اقوال مختلف دي خو بهتر قول همدغه دی چې که حالت اطميناني وي نو کول په کار دي ګينې په کار نه دې.

خو دا خبره شوي ده چې د سحر د سنتو نه بغير د ټولو سنتونو تأکد په سفر کې ختم شي. د عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايات هم د دې باره مختلف دی. د هغې نه دا هم منقول دې چې هغې خپله سنت نه کول او وي فرمايل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هم نه کول. بلکه څنګه چې د بحث لاندې حديث نمبر ۶ کې ذکر دي.

خو ددې نه وروسته په حديث نمبر ۱۱ کې ذکر دې چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به سنت کول او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم په سفر کې کړيدي.

**تطبيق**: په دې روايتونو کې تطبيق دا دی چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د سنتو کولو کومه نفي کړيده ددې نه د عام سنتو نفي مراد نه ده بلکې ددې نه د تأکد نفي مراد ده.

يا يې دا مطلب دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غالب حالاتو کې نه دې کړي. کله کله به يې کول. يا يې دا مطلب دی لکه چې څنګه چې مخکې ليکل شوي دې چې ګه چرې حالت اطميناني وي نو په کولو کې ثواب دی. خو د نفلو ثواب دی. د سنن مؤکده ثواب نه دی او که چيرې حالت اطميناني نه وي او د سفر کولو جلتي او تندي وي يا د وخت کمی وي او سترپا او مشکل وي او زحمت وي نو بيا د نه کولو حکم دی.

## د جمع بين الصلوتين حکم

| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ إِذَا |
| --- |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به يو ځای کولو د ماسپښين او د مازيګر مونځ چې کله |

كَانَ عَلَى ظَهْرِ سَيْرٍ وَ يَجْمَعُ بَيْنَ الْمغْرِبِ وَ الْعِشَاءِ .(۱)

به په سفر کې ؤ او (همدغه شان) د ماښام او د ماسخوتن مونځ (هم) به يې په يو ځاې کولو.

**توضيح :يجمع بين صلٰوة الظهر** :د **جمع بين الصلوتين** دوه قسمه دي: يو **جمع بين الصلوتين** حقيقي او بله **جمع بين الصلوتين** صوري او فعلي دی.

جمع حقيقي او جمع صوري بيا په دوه قسمه دی: يو جمع تقديم او دويم جمع تاخير دی، جمع حقيقي داسې دی چې مثلاً د غرمې او د مازيگر دواړه د غرمې وخت کې وکړی شي او د ماښام او ماسخوتن د ماښام په وخت کې وکړی شي دا جمع حقيقي ده او دی ته جمع تقديم هم وايي ځکه په دې کې آخري مونځ مقدم (مخکې) کړلی شي او د اولني مونځ سره ادا کړی شي. امام بخاری د جمع تقديم نه انکار کړی دی. او امام ابوداؤد هم وايي چې دا ثابت نه دې. يا د غرمې او د مازيگر دواړه د مازيگر په وخت کې وکړی شي او د ماښام او ماسخوتن دواړه د ماسخوتن په وخت کې ادا کړلی شي. دا جمع حقيقي ده او دی ته جمع تاخير هم وايي چې اولني مونځ د مخکيني سره يو ځاې ادا کړلی شي.(المرقات۳/۴۲۹)

د جمع صوری او فعلی صورت دا دی چې مثلاً د غرمې او مازيگر مونځ په خپل وخت کې وکړی شي خو د غرمې مونځ به د خپل وخت په بالکل آخري کې وکړی شي او د مازيگر مونځ د خپل وخت په بالکل اول وخت کې وکړلی شي. همدغه شان د ماښام هغه د خپل وخت په آخر کې ادا کړلی شي او د ماښام هغه د هغې وخت په بالکل په ابتداء کې وکړی شي. همدغه شان د ظاهري صورت او عمل کې داسې ښکاري چې دواړه مونځونه په يو ځاې وکړی شو. مگر في الواقع هر مونځ په خپل وخت کې وکړی شو او وخت هم بچت شو. (المرقات۳/۴۲۹).

جمع حقيقي ته جمع وقتي هم ويلې شي او جمع صوري ته فعلي او عملي هم ويلې شي جمع صوري کې خو د چا اختلاف نشته دی البته د جمع حقيقي وقتي په جواز او عدم جواز کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** :د ائمه ثلاثۀ په نزد د غرمې او مازيگر په مينځ او د ماښام او د ماسخوتن په مينځ کې د عذر په بناء باندې جمعه حقيقي جائزه ده. په اجمالي توگه باندې د هغوی په مينځ کې اتفاق دی. خو په تفصيلاتو کې د دوي په مينځ کې څه فرق دی.

نوسفر ټولو عذر گڼلی دی ځينو سفر او مطر عذر گڼلی دی ځينو د سفر سره جدة ايسر يعنې د اضطراري سفر قيد لگولی دی. ځينو په حضر کې مرض عذر منلی دی. ځينو نه دی منلی. دا معمولي اختلاف

---

(۱) أخرجه البخاري۲/۵۷۹،رقم الحديث :۱۱۰۷، مسلم ۱/۴۹۰، رقم الحديث ۵۲-۷۰۶، أبوداؤد ۲/۱۰، رقم الحديث: ۱۲۰۶، ترمذي ۲/۴۳۸، رقم الحديث . ۵۵۳، نسائي ۱/۸۵، رقم الحديث: ۵۸۷، دارمي ۱/۴۲۶، رقم الحديث.۱۵۱۵

دی. مګر په اجمالي توګه باندې د جمهورو فقهاؤ په نزد جمع بين الصلوتين حقيقي او تقديمي او تأخيري ټول جائز دي. خو د سحر او د غرمي او ماسخوتن او په سحر کې يو ځائ کول د فاصلې په وجه جائز نه دي. د احنافو ائمو کثّر الله سوادهم په نزد د جمع حقيقي هيڅ صورت جائز نه دی نه تقديم جائز دی نه تأخير جائز دی نه په سفر کې جائز دی نه په حضر کې جائز دی.

د عرفې په ورځ په عرفه کې د عرفات په ميدان کې په غرمه او ماز يګر کې جمعه حقيقي جائز ده او د مزدلفې په شپه کې په ماښام او په ماسخوتن کې جمعه حقيقي جائز ده. اول الذکر کې جمعه تقديم دی او مؤخرالذکر کې جمعه تأخير دی.

**دلائل**: ائمه ثلاثو د بحث د لاندې حديث نه استدلال کړی دی چې په هغې په واضحه توګه باندې استمرار سره **جمع بين الصلوتين** ذکر دی. د جمهورو فقهاؤ دويم دليل د مشکوة ص۱۱۸ باندې د معاذ رضي الله عنه حديث نمبر ۱۲ دی چې د هغې الفاظ دا دي: **عن معاذبن جبل کان النبي صلى الله عليه وسلم في غزوة تبوك اذا زاغت الشمس قبل ان يرتحل جمعه بين الظهر والعصر الخ**. (المرقات۳/٤۳۳).

د جمهور فقهاؤ دريم دليل د مسلم شريف روايت دی: **کان اذا جدبه السير جمعه بين المغرب والعشاء بعد ان تغيب الشفق**. ښکاره خبره ده چې کله د غائب کيدو د شفق نه وروسته د ماښام مونځ وکړی شي نو د ماسخوتن وخت کې جمعه حقيقي وشوه.

نو د هغوی اولني دليل د قرآن آيت دی: ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا﴾ (النساء:۱۰۳) يعنې د هر مونځ خپل مقرر او متعين وخت دی د دې نه مخکې او د دې نه وروسته جائز نه دی.

دويم آيت ﴿حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَىٰ﴾ (البقرة:۲۳۸) دی. په دې کې هم د مونځ د محافظت حکم دی او د حفاظت وخت ته هم شامل دی. چې په خپل خپل وخت کې د ننه د مونځ حفاظت وکړی. لهذا نه جمعه تقديم جائز دی. نه جمعه تاخير جائز دی.

د احنافو ائمو د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حديث نه هم استدلال کړی دی چې هغه امام بخاري رحمه الله ذکر کړې دی. الفاظ دا دي: **مارأيت النبي صلى الله عليه وسلم صلى صلوة بغير ميقاتها الا الصلوتين الخ**. يعنې د عرفات او مزدلفې نه بغير ما کله هم نبي کريم صلى الله عليه وسلم داسې نه دی ليدلی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم کوم يو مونځ د هغې د وخت نه بغير په بل وخت کې کړی وي.

د احنافو د ائمو مضبوط دليل هغه ټول احاديث دې چې په هغې کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هر مونځ د پاره يو متعين وخت ټاکلی وي. او د هغې د پابندۍ يې په سختۍ سره حکم کړی وي.

**جواب**:جمهور فقهاؤ چې څو مره احاديثو نه استدلال کړی دی. احناف د هغې دا جواب ورکوي چې د دې احاديثو محل پلټنه پکار ده چې د هغې د آيت سره تعارض رانشي. ځکه د قرآن کريم د آيت معارضه د احاديثو او خاص کر د اخبار احاد سره نه شي کيدې. نو ځکه احنافو د هغه ټولو احاديثو محل دا بيان کړې دی. چې دا جمعه بين صلوتين نه جمعه حقيقي نه بلکي جمعه صوري مراد ده. لهذا احاديث د جمهورو فقهاؤ نه بلکي د احنافو دلائل دي. او په دې باندې قرائن هم دي.

**قرائن**:د جمعه صوري مراد اخستلو باندې يو څو قرائن دي:

۱-په بخاری شريف کې حديث دی چې ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د ماښام مونځ نه ورسته څه انتظار کولو او بيا به يې د ماسخوتن مونځ وکړو. دغه شان حديث په ابو داؤد شريف کې هم دی. چې څه الفاظ يې دا دي:

**ان مؤذن ابن عمر قال الصلوٰة قال سر سر حتى اذا كان قبل غيوب الشفق فصلى المغرب ثم انتظر حتى اذا غاب الشفق فصلى العشاء**.(أبو داؤد)

ددې نه صاف معلومه شوه چې دا د جمع صوري صورت دی جمع حقيقي نه ده.

۲-همدغه شان جمع بين الصلوتين په احاديثو کې ځای په ځای **اخر الظهر وعجل العصر واخر المغرب وعجل العشاء** الفاظ راغلي دي. چې د هغې نه معلوميږي چې دا تاخير او تعجيل د جمع صوري په صورت کې کېږي. د جمع حقيقي د پاره دا الفاظ نه راځي. نو د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شاګرد ابو شعثاء د دې الفاظو د نظر په اړه د دې احاديثو نه جمعه صوري مراد اخلي.

۳:په جمع صوري باندې يوه خوندوره قرينه د ترمذی شريف يو حديث دی الفاظ دا دي: **جمع رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بين الظهر والعصر و بين المغرب والعشاء من غير خوف ولا مطر**.

په دې حديث کې د جمع بين الصلوتين ذکر دی خو نه سفر دی نه مرض دی نه ويره ده په مدينه منوره کې دغه شان جمع بين الصلوتين بغير د څه عذر نه د هيچا په نزد جائز نه ده جمهورو فقهاؤ هم مجبوراً دا حديث په جمع صوري باندې حمل کړی دی. لهذا نور احاديث هم دغه شان په جمع صوری باندې حمل کول په کار دي. ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ په فتح الباری کې اعتراف کړی دی چې دلته جمعه صوري مراد اخستل په کار دي.

**سوال**:خو د احنافو د پاره په يو حديث کې مشکل دی هغه د مسلم شريف حديث دی: **جمع بين المغرب والعشاء بعد ان يغيب الشفق** ظاهر دی چې غيبوبت د شفق نه ورسته د ماسخوتن وخت وي. لهذا دا جمع حقيقي ده، صوري نه ده.

**جواب**:د دې جواب دا دی چې دلته غيبو بت شفق نه مراد رانزدې کيدل دی غائب کيدل نه دې او په دې

باندې د دار قطني حديث دلالت کوي. هلته د نزدې لفظ موجود دی. الفاظ دا دي: "حتی اذا کاد یغیب الشفق".

بهرحال د دلائلو دنیا همدغه ده خو جمهور د دنیا نه ختمیدلی نه شي او په ښهنو مواقعو کې د جمع حقيقي ډیر سخت ضرورت راځي که د امت د سهولت د پاره ځینې ځل دغه احاديثو باندې عمل وشي نو مجبوري بهرحال مجبوري دا دلته باربار دا پوښتنه او جواب هم راغلی دی چې د نبي کريم ﷺ جمع بين الصلوتين نه مقصد څه ؤو. نو جواب همدغه راغلو چې جمع بين الصلوتين نه مقصد دا ؤو چې د نبي کريم ﷺ امت په تنگسيا کې راګیر نه شي. ددې نه د جمع حقيقي طرف ته واضحه اشاره ملاويږي (ځکه الحرج مدفوع في الشرع).

## په سورلۍ باندې مونځ کول

| |
|---|
| ﴿٨﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي السَّفَرِ عَلَى رَاحِلَتِهِ حَيْثُ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ به په سفر کې په خپلې سورلۍ باندې چې کوم طرف ته |
| تَوَجَّهَتْ بِهِ يُومِئُ إِيمَاءً صَلَاةَ اللَّيْلِ إِلَّا الْفَرَائِضَ |
| به يې مخ شو په اشارې کولو سره د شپې مونځ نه بغير فرض مونځ کول او همدارنګې وتر به يې هم کول |
| وَيُوتِرُ عَلَى رَاحِلَتِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(١) |
| نبي کريم ﷺ په سورلۍ باندې. |

**توضیح: على راحلته:** يعنې د سورلۍ مخ به چې کوم اړخ ته ؤو د نبي کريم ﷺ مخ مبارک به هم هغه اړخ ته ؤو. امام شافعي رحمه الله فرمايي چې د تکبير تحريمه په وخت کې د قبلې اړخ ته مخ کول بهر صورت ضروري او واجب دی لکه په راروان حديث نمبر ۱۳ کې د حضرت انس رضي الله عنه د روايت په ابتداء کې د استقبال قبله بيان راروان دی. خو جمهور ائمه وايي چې په ابتداء کې د قبلې اړخ ته مخ کول او تکبير تحريمه ويل مستحب دي واجب يا فرض نه دي. ځکه د مونځ حکم يو شان دی. هغه که په ابتداء کې وي او که په انتهاء کې وي. (المرقات ۴۲۹، ۳/۴۳۳).

**يومي ايماء:** يعنې په سورلۍ باندې په ناسته رکوع او د سجدې د پاره به نبي کريم ﷺ اشاره فرمايله. مګر د سجدې اشاره به د رکوع د اشارې نه ډيره ټيټه وه. (المرقات ۳/۴۲۹).

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۴۸۹، رقم الحديث: ۱۰۰۰. مسلم ۱/۴۸۷، رقم الحديث ۳۹-۷۰۰. ابوداؤد ۲/۲۱. رقم الحديث: ۱۲۲۴.

**في صلوٰة الليل**: دا قيد اتفاقي دی احترازي نه دی. ځکه په سورلۍ باندې چې څنګه د شپې نفلونه کول ضروري دې د ورځو د نفلونو کول هم دغه حکم دی ځکه په نورو رواياتو کې د عام نوافلو ذکر دی د شپې قيد نشته دی لهذا دا حکم د سنت مؤکده او د دې نه بغير نور سنت او نوافل هم شامل دي اګر که امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ يو قول دی چې د سحر د سنتو د پاره که ګنجائش وي نو د سورلۍ نه بغير کول مستحب دی. بلکې په يو روايت کې د واجب قول هم دی. ځکه د سحر په سنتو کې ډير تأکد او کلک والی دی. (المرقات ۳/۴۲۹).

**الا الفرائض**: د دې حديث نه دوه مسئلې مستنبط کيږي. يوه مسئله دا چې د نفلونو او د سنتو د سورلۍ د پاسه کول جائز دي. او د فرائضو په سورلۍ باندې کول جائز نه دي. دلت د نفلونو نه د فرائضو استثناء د همدغه مقصد د پاره ده چې فرائض په سورلۍ باندې بالکل جائز نه دي. (المرقات ۳/۴۲۹).
علماؤ ليکلي دي چې د سخت ضرورت او د سختې مجبورۍ او که لاندې ذکر شوي عذرونه موجود وي نو بيا فرائض هم په سورلۍ باندې کولی شي. عذرونه دا دي:
۱- چې کوم سړی په ځنګل کې او په کوزيدلو سره په صحراء کې مونځ کولو کې هر قسمه خطر وي يا د نن سبا سورلۍ ريل ګاړی او يا داسې نورې سورلۍ چې د هغې نه کوزيدل امکان نه لري نو په داسې صورتونو کې په سورلۍ کې فرائض کول جائز دي.
۲- د سورلۍ نه د کوزيدلو نه وروسته سورلۍ ته بيرته ختل ناممکن وي.
۳- داسې بوډا وي چې نه د سورلۍ نه کوزيدې شي او نه واپس سورلۍ ته ختلې شي.
۴- په زمکه باندې ختې يا نور څه دومره وي چې هلته مونځ کول ممکن نه وي.
۵- يا د واورې او باران عذر وي.
بهرحال په دغه صورتونو کې فرض مونځ په سورلۍ باندې د مجبورۍ د وجې نه جائز دی او سورلۍ هم عامه وي. که هغه آس وي، اوښ وي يا ريل ګاړی وي يا کشتۍ وي په ټولو کې مونځ کولی شي. خو په طياره کې علماؤ اختلاف دی. ځينې علماء وايي چې جائز نه دی ځکه د سجدې د پاره زمکه په کار ده. او طياره په هوا کې معلقه ده. نو کول صحيح نه شوه. مګر ځينې علماء وايي چې په طيارو کې د مونځ د پاره خپل ځايونه جوړ کړلی شوي وي او د طيارې د زمکې سره د جذبونې اړيکه او تعلق وي. ګويا کې په زمکه باندې ده. د سعودي حکومت په طيارو کې د مونځ د پاره بيل ځايونه جوړ کړي دي او خلک پکې مونځونه کوي. د پی آئی ای طيارې والا په زمکه مونځ نه کوي. نو په فضا کې د دې انتظام ولی و کړي؟
د دې حديث نه دويمه دا مسئله مستنبط کيږي چې په سورلۍ باندې مونځ کول د سفر سره مشروط دي. که سړی مسافر وي نو په سورلۍ باندې په تګ تګ کې مونځ کولی شي او که مسافر نه وي نه په سورلۍ باندې مونځ نه شي کولی. همدغه مسلک د جمهورو فقهاؤ دی. خو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ

فرمايي چې په سورلۍ باندې د مونځ کولو د جواز د پاره د ښار نه باهر وتل شرط دی. که سړی مسافر وي یا نه وي. د صاحبینو مسلک هم نزدې نزدې د جمهورو پشان دی چې دا جواز د سفر سره مشروط دی. د ښار سره مشروط نه دی.

**ویوتر علی راحلته:** په دې حدیث دریمه مسئله د وترو بیان شوي ده چې نبي کریم ﷺ وتر هم په سورلۍ باندې کړي ؤو. د جمهور فقهاؤ مسلک هم دغه دی. چې وتر په سورلۍ باندې کولی شي. (المرقات ۳/۴۲۹).

خو امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې لکه څنګه فرائض په غیر د سخت عذر نه، نه کېږي هم دغه شان وتر هم په سورلۍ باندې کول جائز نه دي.

ائمه ثلاثو د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی. چې په هغې کې وتر په سورلۍ باندې صراحت سره ذکر دي. امام ابو حنیفه رحمه الله د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حدیث نه استدلال کړی دی چې هغه امام طحاوی ذکر کړی دی چې د هغې الفاظ دا دي: **عن ابن عمر رضي الله عنه انه کان علی راحلته ویوتر علی الارض وزعم ان رسو ل الله ﷺ کان یفعل ذلك (طحاوي)**

همدغه شان امام محمد رحمه الله په مؤطا محمد کې د صحابؤ رضي الله عنهم او تابعینو ډېر آثار رانقل کړیدي. چې د هغې نه ثابتیږي چې هغه حضرات به د وتر د پاره د سورلۍ نه راکوځیدل.

د امام ابو حنیفه رحمه الله له اړخ نه د بحث د لاندې حدیث یو جواب دا دی چې امکان لري چې دا د هغه زماني خبره وه چې په وتر کې تأکد نه ؤو راغلی خو کله چې په وتر کې تاکید راغلو نو بیا د حضرت ابن عمر رضي الله عنه خبره راغله چې وتر د پاره به د سورلۍ نه کوزیدل او کول دي.

**دویم جواب:** شاه انور شاه کشمیری رحمه الله کړی دی چې د بحث د لاندې حدیث کې د وترو اطلاق معروف وتر باندې نه دی شوی بلکې دلته د وترو اطلاق د شپې په مونځ باندې شوی دی.

**دریم جواب:** دا دی چې کیدلی شي چې نبي کریم ﷺ د څه عذر په وجه په سورلۍ باندې مونځ کړی وي. او د عذر له وجې خو فرائض هم په سورلۍ باندې کېږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ ذَلِكَ قَدْ فَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وایي چې نبي کریم ﷺ هر څه کړیدي نبي کریم ﷺ (د سفر په حالت کې) |

| قَصَرَ الصَّلَاةَ وَ أَتَمَّ . (رَوَاهُ فِي شرح السنة). (۱) |
|---|
| کم رکعتونه هم کړې دي او پوره رکعتونه يې هم کړې دي. |

**توضيح**: قصر واتم: يعني نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په شرعي سفر کې کله قصر کړې دی کله يې نه دی کړی بلکې اِتمام يې کړې دی. (المرقات ۳/۴۳۰).

دا مطلب دا چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سفر کې قصر کړيد او په حضر کې يې قصر نه دی کړی بلکې اتمام يې کړی دی. يا مطلب دا دی چې په ابتداء کې په دواړو امور کې اختيار ؤ نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله قصر وکړو او کله يې اِتمام وکړو. وروسته به داسي نه ؤو. بلکې په قصر کې متعين شو. په ابتدائی خبرو کې د دې حديث متعلق تفصيل تير شوی دی.

## تر څو پورې چې د اقامت نيت نه وي قصر کيږي

| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَشَهِدْتُ مَعَهُ الْفَتْحَ |
|---|
| عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې زه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په غزواتو کې شامل ؤم نو زه ورسره وم |
| فَأَقَامَ بِمَكَّةَ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ لَيْلَةً |
| د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره د مکې په فتح کې (هم) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (په دغه موقع) مقيم ؤ په مکه کې اتلس (۱۸) شپې |
| لَا يُصَلِّي إِلَّا رَكْعَتَيْنِ يَقُولُ : يَا أَهْلَ الْبَلَدِ صَلُّوا أَرْبَعًا |
| او (څلور رکعتيز مونځ به يې) دوه رکعته کول او دا به يې فرمايل چې ای د ښار والاؤ! تاسو څلور رکعته |
| فَإِنَّا سَفْرٌ. (۲) |
| کوی ځکه چې زه مسافر يم. |

**توضيح**: يعني نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتلس (۱۸) ورځې تيري کړې مګر د اقامت نيت يې نه کړو. بلکې نن سبا نن سبا به يې کولو او ورځې تيرې شوې. نو دا اقامت نه دی بلکې د سفر حالت ؤ و لهذا قصر به يې کولو. احناف وايي چې کله يو سړی د ۱۵ ورځو نيت وکړي نو بيا قصر نشته دی او که نيت نه وي نو تر يو کال پورې هم مقيم نه شي کيدلی. بلکې مسافر وي نو قصر به کوي دلته هم نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مکې د فتحې په موقع باندې هم داسي کړي ؤو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه غوښتل چې د

---

(۱) أخرجه الدار قطني في السنن ۲/۱۸۹، رقم الحديث ۴۳، باب القبلة للصائم.

(۲) أخرجه أبوداؤد ۲/۲۳، رقم الحديث ۱۲۲۹، مسند احمد ۴/۴۳۰

کوم ښار نه د الله د رضا د پاره يو ځل هجرت وکړو او س دوباره هملته اقامت اختيار کړي. (المرقات ٣/٤٣١).

سفرٌ: د سافر جمع ده لکه رکب د راکب او صحب د صاحب جمع ده سافر د مسافر په معنی دی. (المرقات ٣/٤٣١).

## قصر فقط په څلور رکعتيز مونځ کې دی

| |
|---|
| ﴿١١﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې ما د سفر په حالت کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره د غرمي دوه رکعته او د هغې |
| وَ بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ : |
| نه وروسته (يعني د سنت) دوه رکعته وکړل. او ديو بل روايت دا الفاظ دي چې : ابن عمر رضي الله عنه وفرمايل |
| صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي الْحَضَرِ وَ السَّفَرِ |
| "چې ما د نبي عليه السلام سره هم په سفر کې مونځ کړی دی او په ښار (يعني حضر) کې هم. نو ما په حضر کې |
| فَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي الْحَضَرِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا وَ بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وَ صَلَّيْتُ مَعَهُ |
| د نبي عليه السلام سره غرمې څلور رکعته او د هغې نه وروسته (د سنت) دوه رکعته کړيدي او ما د نبي عليه السلام |
| فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَ بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وَ الْعَصْرَ |
| سره په سفر کې د غرمي دوه رکعته مونځ کړې دی او د هغې نه وروسته د سنت دوه رکعته مونځ کړې دی |
| رَكْعَتَيْنِ وَ لَمْ يُصَلِّ بَعْدَهَا شَيْئًا |
| او د مازيگرېې دوه رکعته مونځ کړې د مازيگر نه وروسته نبي عليه السلام هيڅ يو مونځ نه دی کړی او ماد |
| وَ الْمَغْرِبُ فِي الْحَضَرِ وَ السَّفَرِ سَوَاءٌ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ |
| نبي عليه السلام سره په حضر او په سفر کې د ماښام مونځ يو شان درې رکعته کړې نبي عليه السلام به هغه مونځ |
| وَلَا يَنْقُصُ فِي حَضَرٍ وَلَا سَفَرٍ وَ هِيَ وِتْرُ النَّهَارِ وَ |
| کې په سفر او په حضر کې هيڅ (اضافي) مونځ نه دی کړی او د ماښام مونځ ته د ورځې وتر (هم وايي) او د |

| بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ). (۱) |
|---|
| هغې نه وروسته يې (د سنت) دوه رکعته کړي. |

**توضيح**: د دې حديث د تفصيل نه معلومه شوه چې قصر فقط په څلور رکعتيز مونځونو کې دی چې د غرمي، ماز يګر او په ماسخوتن کې دی او په سحر کې قصر نشته دی ځکه يو رکعت مونځ نه وي او نه يو نيم رکعت مونځ وي.

**وهي وتر النهار**: د مابنام مونځ ته **وتر النهار** يعنې د ورځي وتر په نوم سره ياد کړلی شوی دی. د دې نه **په واضحه توګه ثابته شوه** چې وتر د يو سلام سره درې رکعته دي ځکه د مابنام درې رکعته دې او د يو سلام سره دي د وترو مماثل ګڼلی شوي دي.

## د جمع بين الصلوتين تفصيل

| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ : إِذَا |
|---|
| او معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غزوه تبوک کې (داسي عمل کولو چې) کله به |
| زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَ الْعَصْرِ |
| درواني‌دو نه مخکې غرمه ختمه شوه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د غرمي او د ماز يګر مونځ يوځای کولو او چې کله به |
| وَ إِنِ ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَزِيْغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ حَتّٰى يَنْزِلَ لِلْعَصْرِ |
| يې د غرمي د ختميدو نه مخکې سفر کولو نو د غرمي مونځ کې به يې تاخير کولو او د ماز يګر د پاره به کوزيدو |
| وَ فِي الْمَغْرِبِ مِثْلَ ذٰلِكَ |
| (يعنې د غرمي او د ماز يګر مونځونه به يې په يوځای کول) د مابنام مونځ به هم نبي عَلَيْهِ السَّلَام همدغه شان |
| إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَ الْعِشَاءِ |
| که لمر به د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د رواني‌دو نه مخکې پريوتلو نو د مابنام او ماسخوتن مونځونه به يې يوځل وکړل او |
| وَ إِنِ ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَغِيْبَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتّٰى يَنْزِلَ لِلْعِشَاءِ ثُمَّ يَجْمَعُ |
| که د لمر د پريوتو نه مخکې به نبي عَلَيْهِ السَّلَام روان‌يدو نو په مابنام کې به يې تاخير کولو تر دې چې د ماسخوتن |

(۱) أخرجه الترمذي ۲/۴۳۷، رقم الحديث : ۵۵۲.

| |
|---|
| بَيْنَهُمَا. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد، وَالتِّرْمِذِيّ). (١) |
| مونځ د پاره كوز شو او (هغه وخت) به يې دواړه مونځونه په يو ځاې وكړل. |

**توضيح**: د دې حديث توضيح او تشريح د دې نه مخكې تيره شوې ده. جمهور فقهاء د دې نه استدلال نه شي كولې د ډير ضعيف كيدو په وجې سره دې حديث كې ډير احتمالات دي لهذا د احتمالاتو سره استدلال نه صحيح كيږي.

| |
|---|
| ﴿١٣﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله سفر كولو (يعني د ښار نه وتلو كه مسافر به ؤ يا به مقيم |
| وَأَرَادَ أَنْ يَتَطَوَّعَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ بِنَاقَتِهِ فَكَبَّرَ |
| ؤ) او د نفل مونځ كولو اراده به يې كوله نو د خپلې اوښې مخ به د قبلې اړخ ته كړو او تكبير تحريمه به يې وويلو |
| ثُمَّ صَلَّى حَيْثُ وَجَّهَهُ رِكَابُهُ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد). (٢) |
| بيا به چې سورلۍ كوم اړخ ته مخ كړلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به همغه اړخ ته مونځ كولو. |
| ﴿١٤﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: بَعَثَنِيْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَاجَةٍ فَجِئْتُ |
| او جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه د يو كار د پاره (چرته) وليږلم كله چې بيرته راغلم نو ومې |
| وَهُوَ يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ وَيَجْعَلُ السُّجُودَ |
| كتل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خپله سورلۍ باندې د مشرق اړخ ته مخ كړې ؤ او مونځ يې كولو او سجده به يې د |
| أَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوعِ. (٣) |
| ركوع نه ټيټه كوله". |

---

(١) أخرجه أبوداؤد ٢/١٨ رقم الحديث: ١٢٢٠، الترمذي ٢/٤٣٨، رقم الحديث ٥٥٣، النسائي ١/٢٨٤، رقم الحديث ٥٨٦، مسند أحمد ٥/٢٤١

(٢) أخرجه أبوداؤد ٢/٢١ رقم الحديث ١٢٢٤، دار القطني ١/٣٩٦، رقم الحديث ٣

(٣) أخرجه أبوداؤد ٢/٢٢ رقم الحديث: ١٢٢٨، ترمذي ٢/١٨٢، رقم الحديث ٣٥١، مسند احمد ٣/٣٣٢

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منی کې د قصر نه کولو وجه

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په منی کې (څلور رکعتيز مونځ) دوه رکعته وکړو دهغې نه |
| وَ أَبُو بَكْرٍ بَعْدَهُ وَ عُمَرُ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ وَ عُثْمَانُ صَدْرًا مِنْ خِلَافَتِهِ |
| وروسته حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دوه رکعته مونځ کړی دی او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه |
| ثُمَّ إِنَّ عُثْمَانَ صَلَّى بَعْدُ |
| وروسته دوه رکعته کړی دی حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د خلافت په ابتدائی دور کې خو دوه رکعته کړی وُو |
| أَرْبَعًا فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا صَلَّى مَعَ الْإِمَامِ |
| خو وروسته به یې څلور رکعته کول. د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې هغه به کله د امام سره |
| صَلَّى أَرْبَعًا وَ إِذَا صَلَّاهَا وَحْدَهُ |
| (یعني د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره) مونځ کول نو څلور رکعته به یې کول او چې کله به یې ځان له (یعني |
| صَلَّى رَكْعَتَيْنِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (۱) |
| په سفر کې) مونځ کولو نو دوه رکعته به یې کول". |

**توضیح**: د دې حدیث تشریح او توضیح او توجیه د دې نه مخکې تیره شوې ده هلته یې وګورۍ.

## قصر رخصت نه دی، عزیمت دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: فُرِضَتِ الصَّلَاةُ رَكْعَتَيْنِ |
| د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا باره کې منقول دي چې هغې وویل چې فرض شوې وو مونځ (سفر او حضر کې اول) دوه |
| ثُمَّ هَاجَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَفُرِضَتْ أَرْبَعًا |
| رکعتونه بیا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هجرت وکړونو (د مقیم لپاره) څلور رکعته فرض کړی شو او د سفر په |

---

(۱) أخرجه البخاري ۵۶۳/۲، رقم الحديث: ۱۰۸۲، مسلم ۴۸۲/۱، رقم الحديث: ۱۶-۶۹۴، نسائي ۱۲۱/۳ رقم الحديث: ۱۴۵۱، دارمي ۴۲۳/۱، رقم الحديث ۱۵۰۶.

وَ تُرِكَتْ صَلَاةُ عَلَى الْفَرِيضَةِ الْأُولَى . قَالَ الزُّهْرِيُّ : قُلْتُ لِعُرْوَةَ :

حالت کې اولني دوه رکعته فرض پاتې شو. زهري رَحِمَهُ اللهُ وايي ما عروه ته عرض وکړو چې: په حضرت

مَا بَالُ عَائِشَةَ تُتِمُّ ؟ قَالَ :

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څه وشول چې هغه په سفر کې پوره (څلور رکعته) مونځ کوي هغه وويل: هغه هم د غه شان

تَأَوَّلَتْ كَمَا تَأَوَّلَ عُثْمَانُ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). (۱)

تاويل کوي لکه څنګه چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاويل کړې دی ".

نوټ: د دې حديث تشريح او توضيح او توجيه د دې نه مخکې ذکر شوي ده.

## قصر د الله تعالى حكم او عزيمت دى

﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: فَرَضَ اللهُ الصَّلَاةَ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې الله تعالى نازل کړي دی ستاسو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژبه باندې په

الْحَضَرِ أَرْبَعًا وَ فِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَ فِي الْخَوْفِ رَكْعَةً . (۲)

حضر کې څلور رکعته او په سفر کې دوه رکعته او د ويرې په حالت کې يو رکعت فرض کړې دی.

**توضيح**: **وفي الخوف ركعة**: يعنې د دښمن د ويرې په وخت کې **صلوة الخوف** کې يو رکعت د امام سره فرض دی. او يو رکعت بيل فرض دی. خو چې سړی په سفر کې وي. په دې حديث کې د صلوة الخوف نقشه حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان کړيده. د دې حديث دا مطلب نه دی چې **صلوة الخوف** فقط يو رکعت دی. د امت ټول فقهاء د دوه رکعتونو قائل دي د يو رکعت خبره د حسن بصری رَحِمَهُ اللهُ نه بغير بل چا نه ده کړې. د **صلوة الخوف** تفصيل به ان شاء الله وروستو راشي. (المرقات ۳/۴۳۶).

## قصر د سنت نبوی نه ثابت دی

﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَا : سَنَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَاةَ

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راويان دی وايي چې مقرر کړي دي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ د

(۱) أخرجه البخاري ۱/۴۶۴، رقم الحديث ۳۵۰، مسلم ۱/۴۷۸، رقم الحديث ۱ - ۶۸۵، أبوداؤد ۲/۵، رقم الحديث ۱۱۹۸، دارمي ۱/۴۲۴، رقم الحديث ۱۵۰۹، موطا مالک ۱/۱۴۶، رقم الحديث ۸، من كتاب قصر الصلاة

(۲) أخرجه مسلم ۱/۴۷۹، رقم الحديث ۶ - ۶۸۷.

جلد 3 5

السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ وَالْوِتْرُ فِي السَّفَرِ سُنَّةٌ.(۱)

سفر د پاره دوه رکعتونه او دا ناقص نه دي پوره دي او په سفر کې وتر سنت دي.

**توضيح: تمام غير قصر**: مطلب دا دی چې د سفر د پاره دوه رکعته مشروع دي. داسي نه ده چې مخکې څلور رکعته مشروع ؤو او وروسته دوه رکعته مشروع شول. دوه پاتې شول او دوه ساقط شول. داسي نه ده بلکې د سفر دوه رکعته په ابتداء کې پوره او کامل راغلي دي. او وتر په سفر کې سنت دي. دا مسئله واضحه شي چې چرې سفر نه وي نو وتر واجب دي. (المرقات ۳/۴۳۶).

## د قصر د مسافت حد

﴿۱۹﴾ وَعَنْ مَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ بَلَغَهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ راوي دی چې ده ته دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې خبر را رسيدلی دی چې هغه (يعني

كَانَ يَقْصُرُ فِي الصَّلَاةِ فِي مِثْلِ مَا يَكُوْنُ بَيْنَ مَكَّةَ وَالطَّائِفِ

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) به د قصر مونځ کولو د هغه مسافت په دوران کې چې د مکې او د طائف په مينځ کې وو

وَفِي مِثْلِ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَعُسْفَانَ وَفِي مِثْلِ مَا بَيْنَ

او د هغه مسافت په دوران کې چې د مکې او د عسفان په مينځ کې وو او د هغه مسافت په دوران کې چې

مَكَّةَ وَجُدَّةَ قَالَ مَالِكٌ: وَذٰلِكَ أَرْبَعَةُ بُرُدٍ.(۲)

د مکې او د جدې په مينځ کې وو امام مالک وايي چې دا مسافت څلور بريده دي.

**توضيح**: د دې حديث متعلق تشريح او توضيح او تفصيل مخکې په تفصيل سره بيان شوی دی.

## په سفر کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو معمول

﴿۲۰﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَفَرًا

براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ماته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ملگرتيا اتلس (۱۸) ځله د سفر شرف حاصل شوی

فَمَا رَأَيْتُهُ تَرَكَ رَكْعَتَيْنِ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ

دی ما (په دې دوران کې) کله هم دا نه دي ليدلي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دې پرېښي وي دوه رکعته د زوال

(۱) أخرجه ابن ماجه ۳۷۷/۱، رقم الحديث ۱۱۹۴.

(۲) أخرجه مالک في الموطا ۱۴۸/۱، رقم الحديث: ۱۵، من كتاب قصر الصلاة في السفر.

قَبْلَ الظُّهْرِ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ) وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (۱)

(دلمر نه وروسته) مخکې د غرمې نه ،امام ترمذي وايي دا حديث ضعيف دی.

## که فرصت وي نو په سفر کې نفل کولې شي

﴿۲۱﴾ وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ : إِنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ يَرَى ابْنَهُ عُبَيْدَ اللهِ يَتَنَفَّلُ فِي السَّفَرِ

او نافع وايي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه وليدلو خپل ځوی حضرت عبيد الله چې نفل يې کول د سفر په

فَلَا يُنْكِرُ عَلَيْهِ. (رَوَاهُ مَالِكٌ). (۲)

حالت کې او نه به يې منع کولو.

**توضيح : سوال:** ددې نه مخکې په حديث نمبر۲ کې په واضحه توګه ذکر دی چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د سفر په حالت کې د خلکو په نفل کولو باندې تعجب کړی ؤ او خپله يې د نه کولو وجه هم بيان کړه. خو دلته د بحث په لاندې حديث کې ذکر دې چې ابن عمر رضي الله عنه خپل ځوی د سفر په حالت کې په نفل کولو باندې ليدلو او هغه يې منع نکړلو، د دې څه وجه ده؟

**جواب:** د دې جواب دا دی چې کيدلی شي چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ځوی د سنت مؤکده مونځ کولو نو ځکه يې منع نه کړو.

**دويم جواب:** دا دی چې امکان لري چې د ابن عمر رضي الله عنه ځوی عبيد الله رحمه الله په دا سې وخت کې مونځ کولو چې په هغې کې ډير وسعت ؤ. او دغه شان فارغه وخت کې چې کله يو سړی په بل څه کار کې نه مشغوله وي بلکې په مونځ کولو کې ځان مشغوله کړي نو د هغې منع کولو والا به څوک کيدی شي؟ يا به د ابن عمر رضي الله عنه په ذهن کې دا آيت ؤ : ﴿أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ﴾ (ماعون آيت: ۹/۱۰) چې په هغې کې مطلق د مونځ منع کولو باندې د سخت وعيد ذکر دی. نو ځکه ابن عمر رضي الله عنه د مونځ منع کولو جرأت ونه کړلو او عبيد الله رحمه الله په نوافلو کې مشغول ؤ.



---

(۱) اخرجه ابوداؤد في السنن ۱۹/۲، رقم الحديث : ۱۲۲۲، سنن الترمذي ۴۳۵/۲، رقم الحديث : ۵۵۰ .

(۲) اخرجه مالک في الموطأ ۱۵۰/۱، رقم الحديث : ۲۴، من کتاب قصر الصلاة .

۲۰ جمادي الاول ۱٤۱۰ھ

# بَابُ الْجُمُعَة
## د جمعې بيان

قال الله تعالى: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ (سورة جمعه آیت : ۹)

وقال الله تعالى: ﴿ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ، وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ﴾ (سورة بروج آیت : ۲/۳)

په لفظ **جمعه** کې ډير لغات دي د ټولو نه فصيح لغت د **جيم** او **ميم** ضمه "**جُمُعه**" دی. ددې نه وروستصصه په **جيم** باندې ضمه د **ميم** سکون دی. او بيا د **جيم** ضمه او د **ميم** فتحه هُمَزَه په شان دی. د **جمعة** لفظ کې **تآء** تانيث د پاره نه ده بلکي د مبالغې د پاره ده. جمعه ددې اسلامي نوم دی په جاهليت کې د دې پوره نوم "**يوم العروبة**" ؤ. عروبه د رحمت په معنی کې دی. اوس دا خبره چې جمعه ته د جمعه نوم کيخودلو څه وجه شته او که نه؟ نو علماؤ يو څو وجوهات بيان کړې دي :

۱-دا چې په دې ورځ باندې د خلکو لويه اجتماع وي نو دې ته جمعه ويل شوي ده يعنې **يوم الفوج المجموع**.

۲- په دې کې د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د جسد مبارک خميره راجمعه کړی شوي وه.

۳: په دې ورځ باندې حضرت حوا عَلَيْهَا السَّلَامُ او د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د جنت نه د وتلو نه وروسته اولنی ملاقات او اجتماع شوي وه.

۴- ځېنې حضرات وايي چې کعب بن لوئی به په دغه ورځ خلک جمعه کول او وعظ به يې ورته کولو. د دې جمعه کولو په وجه د دې نوم جمعه شو. بهرحال د مسلمانانو د پاره د جمعې ورځ د الله تعالی له اړخه يو لوي نعمت او غټ رحمت دی. يهود او نصاری الله تعالی د دې ورځې نه محروم کړل او مسلمانان يې د دې دولت عظيمه باندې دولت مند کړل. چې د هغه د روحاني برکاتو نه بغير نور بې شميره فايدې هم دي بغير د روپو د مصرف نه تقريباً پنځوس کروړه (۵۰۰۰۰۰۰۰) نه ډير مسلمانان د جمعې په اجتماعاتو کې هر جمعه راجمعه کېږي. د جوماتو اړخ ته مخ کړي او د خطيبانو نه نصيحتونه واوري او د قرآن او حديث او د دين اسلام سره په تماس کې شي. پنځوس کروړو خلک په هفته کې راغونډول د دنيا کوم يو مذهب کولی شي؟ او که راغونډ يې هم کړي نو په هغې به څومره مصرف راځي؟ واقعي د الله تعالی دين رحمت دی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د جمعې د فضيلت نه د يهود او نصارى محروميتيا

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَحْنُ الْآخِرُونَ |
| ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: مونږ (دنيا ته) وروسته راغلي يو |
| السَّابِقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بَيْدَ أَنَّهُمْ أُوتُوا |
| او د قيامت په ورځ (شرف او مرتبه کې) به د ټولو نه مخکې يو د دې نه بغير اهل کتاب (يهود او نصارى) ته |
| الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا وَ أُوتِينَاهُ مِنْ بعدهم ثُمَّ |
| (د الله له اړخ نه) زمونږ نه مخکې کتاب ورکړى شوى ؤو. او مونږ ته وروسته کتاب راکړى شوى دى. بيا |
| هٰذَا يَوْمُهُمُ الَّذِيْ فُرِضَ عَلَيْهِم يَعْنِي يَوْمَ الْجُمُعَةَ فَاخْتَلَفُوا فِيهِ |
| دا د جمعې ورځ په هغو (اهل کتاب) والاؤ باندې فرض کړلى شوه. خو هغوى په دې کې اختلاف وکړونو |
| فَهَدَانَا اللّٰهُ لَهُ |
| الله تعالى د هغه ورځ (يعنې جمعه) په باره کې مونږ ته حکم وکړو (په دغه وخت کې چې مونږ د خداى د |
| وَ النَّاسُ |
| حکم تابعداري وکړه او دا ورځ مو د الله تعالى د عبادت لپاره اختيار کړه) او خلک (يعنې يهود او نصارى |
| لَنَا فِيهِ تَبَعٌ الْيَهُودُ غَدًا |
| نه فقط د شرف او د فضيلت بلکې دورځې په اعتبار سره هم) مونږ تابع دي يهود دوسبا (يعنې د خالي ورځ) |
| وَ النَّصَارَى بَعْدَ غَدٍ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).(۱) |
| اختيار کړه او نصاراؤ باندې بل سبا (يعنې ديک شنبې ورځ) اختيار کړه. |
| وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: نَحْنُ الْآخِرُونَ الْأَوَّلُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او په روايت د مسلم کې دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايلي مونږ (دنيا ته) وروسته راغلي يو او د قيامت په ورځ |

(۱) أخرجه البخاري ۲/۳۵۴، رقم الحديث: ۸۷۶، مسلم ۲/ ۵۸۵، رقم الحديث ۱۹–۸۵۵، نسائي ۳/۸۵، رقم الحديث: ۱۳۶۷، مسند أحمد ۲/۳۴۱.

| |
|---|
| وَ نَحْنُ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ بَيْدَ أَنَّهُمْ وَذكر |
| (شرف او مرتبه کې) به د ټولو نه مخکې يو او مونږ به اول هرهغه څوک يو چې جنت ته به داخليږو او ذکر يې |
| نَحوه إِلَى آخِره وَ فِي رِوَايَة لِمُسْلِم عَنْ أَبِي هُرَيْرَة وَ عَنْ حُذَيْفَةَ |
| کړو حديث د دې په شان تر ترآخره پورې او په روايت د مسلم کې ابو هريره رضي الله عنه او حذيفه رضي الله عنه دا سې |
| قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي آخِرِ الْحَدِيثِ : نَحْنُ الْآخِرُونَ |
| منقول دي چې دواړو ويلي دي: نبي کريم صلی الله علیه وسلم د حديث په آخر کې فرمايلي دي: مونږ به وروسته يو |
| مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا وَ الْأَوَّلُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمَقْضِيُّ لَهُمْ قَبْلَ الْخَلَائِقِ. (۱) |
| د اهل دنيا نه او مخکې به يو د قيامت په ورځ چې فيصله به وشي زمونږ د پاره د ټول مخلوقات نه مخکې. |

**توضيح : نحن الآخرون:** يعني دنيا ته په ټولو کې آخر راغلو خو د شرف او د منزلت او د رتبې او د مقام په اعتبار سره به د قيامت په ورځ مونږ د ټولو نه مخکې يو. د ټولو مخلوقاتو نه به مخکې زمونږ فيصله کيږي. او مونږ به د ټولو نه اول جنت ته ځو . (المرقات ۴۳۹-۳/۴۴۰).

علماؤ د احاديثو په رڼا کې دا خبره په وضاحت سره ليکلې ده چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د ظهور او بعثت په اعتبار سره اګر که د ټولو نه روستى دى خو د نبوت او د نبوت د برکاتو د ظهور په اعتبار سره د ټولو نه مخکې وي نو کنت نبيا وآدم بين الماء والطين د حديث مطلب همدغه دى.(المرقات ۳/۴۴۰)

**فرض عليهم:** يعني څنګه چې الله تعالى په مسلمانانو باندې د جمعې د ورځې عبادت کول فرض کړيدي. همدغه شان د دې ورځې عبات يې په اهل کتابو يهود او نصارىٰ باندې هم فرض کړى ؤو. او هغوى ته حکم کړلى شوى ؤو چې په دې ورځ راجمعه کيږي او الله تعالى عبادت کوى . او د دنيا کاورنه پريږدى. خو هغه خلکو د خپل کم عقلۍ او باغيانه ذهنيت په بنياد باندې د دېنه اعراض وکړو نو الله تعالى دا ورځ مسلمانانو ته ورکړه.

يا د دې جملې مطلب دا دى چې الله تعالى د خپل علم مطابق د جمعې ورځ په يهودو او نصارىٰ باندې د خپل عبادت کولو د پاره ورکړه او حکم يې وکړو چې الله تعالى د خپل عبادت د پاره يوه ورځ ستاسو د پاره انتخاب کړې ده. لهذا تاسو د خپل فکرى قوت او د اجتهادي سوچ نه کار واخلئ او دهغه ورځ خوښه کړئ . په دغه صورت کې په يهود او په نصارى باندې امتحان ؤو چې هغوى د خپل اجتهاد نه

---

(۱) أخرجه البخاري ۳۵۴/۲، رقم الحديث:۸۷۶، مسلم ۵۸۵/۲، رقم الحديث ۱۹-۸۵۵، نسائي۸۵/۳، رقم الحديث : ۱۳۶۷، مسند احمد ۳۴۱/۲.

صحيح خبري ته د رسيدلو صلاحيت لري او که نا او په دغه امتحان کې هغوی کامیابیږي او که نه (المرقات ۳/۴۴۰).

نو د هغه دواړه فرقو سوچ په غلط اړخ لاړو او صحيح شی یې ونه موندلو بلکې په صحيح شي کې یې اختلاف وکړو او ناکامه شول.

**فاختلفوا:** يعنې اهل کتابو د دې ورځې په انتخابولو کې اختلاف وکړو او د خپل عقل سرکش اَسونه یې په غلط اړخ روان کړل نو يهودو د شنبې يعنې خالي ورځ اختيار کړه او دا اجتهاد یې وکړو چې په دې ورځ باندې الله تعالی د کائنات د تخليق نه فارغه شوی ؤو نو مونږ به هم په دغه ورځ باندې د دنيا د ټولو کارونو نه فارغه شو او ځانونه به د الله تعالی په عبادت کې مشغول کړو. نو يهودو ته د شنبې ورځ ورکړلی شوه او تر ننه پورې **يوم السبت** د مقدسي ورځې په توګه لمانځي.(المرقات ۳/۴۴۰).

په **اهل کتابو** کې دويمې فرقې نصاراؤ دا اجتهاد وکړو چې د يک شنبې ورځ دا الله تعالی پکې د کائنات د تخليق ابتداء کړې وه او دا چې هم دغه ورځ مبدأ کمالات او د انعامونو ده چې په دې کې الله تعالی په خپل مخلوق باندې د فضل کولو د پاره متوجي کيږي او هغوی له وجود ورکوي. نو لهذا د عبادت د پاره همدغه ورځ د ټولو نه افضله او مهمه ده. نو نصاراؤ د يک شنبې ورځ د مقدسي ورځې په توګه لمانځل پيل کړه او تر نن ورځ پورې یې لمانځي. يهود او نصارى د خپل کم عقلۍ او متمردو سرکشه عادتونو په وجه د جمعې حقيقت ونه پيژندلو او د دې د دولت نه محرومه شول. نو الله تعالی د جمعې ورځ مسلمانانو ته ؤرکړه. د مسلمانانو امت هم خير الامم دی او دا د جمعې ورځ هم سيد الايام ده. نو ځکه الله تعالی د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت ته دا ورکړه. اوس دا اوشوه چې د جمعې د ورځې نه د ټولې هفتې د ورځو ابتداء کيږي. نو مسلمانانو په اول نمبر جمعې باندې راغلل، په دويم نمبر د خالي په ورځ يهود راغلل او نصارى په دريم نمبر د يک شنبې په ورځ راغلل﴿ وَ ذَٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ﴾. (المرقات ۴۴۰-۳/۴۴۱)

**تبع:** يعنې په عباداتو کې خلک زمونږ تابع دي. ځکه د جمعې ورځ مبدا تخليق آدم او مبدأ تخليق انساني ده. د انسان وجود په همدغه ورځ راغلو او د انسان وجود د عبادت د پاره دی. لهذا عبادت کې د جمعې ورځ متبوع او د ټولو نه اوله ورځ ده. او شنبه او يک شنبه د دې تابع دي.

د تبع مطلب همدغه دی او پاس چې کوم ليکلی شوی دی چې جمعه د هفتې په اووه (۷) واړه ورځو کې د ټولو نه اوله ورځ ده. د همدغې نه هفته شروع کيږي. هم هغه مطلب اخستل هم صحيح دی. (المرقات ۳/۴۴۲).

**بيد:** دا غير په معنی دی. (المرقات ۳/۴۴۳).

## د جمعې دورځې فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَيْرُ يَوْمٍ |
| ابو هریره رضي الله عنه او ي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل د ټولو نه بهتره ورځ هغه ورځ ده چې |
| طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ فِيهِ خُلِقَ آدَمُ |
| په هغې کې لمر راخیژي ورځ د جمعې ده په دې ورځ آدم علیه السلام پیدا کړی شوی ؤو (یعنې د هغې تخلیق پوره |
| وَفِيهِ أُدْخِلَ الْجَنَّةَ وَفِيهِ أُخْرِجَ مِنْهَا |
| شوی ؤ) په همدغه ورځ هغه جنت ته داخل شوی ؤو او په همدغه ورځ هغه د جنت رایستلی شوی ؤو (او |
| وَلَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ إِلَّا فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ. (رواه مسلم). (۱) |
| زمکې ته راخکته کړلی شو) او قیامت به هم د جمعې په ورځ قائم کړلی شي. |

**توضیح**: په راتلونکو احادیثو کې همدغه شان ډیر قسمه شیان د جمعې د فضیلت په باره کې ذکر کړی شوي دي چې جمعه ځکه د ټولو ورځو نه افضله ده چې په دې کې لوي لوي واقعات شوي دي. یا به کیږي.

**سوال**: اوس پوښتنه دا ده چې د حضرت آدم علیه السلام اخراج په ظاهره خو څه د فضیلت خبره نه ده. د دې د جمعې د ورځې د فضیلت سره څه اړیکه ده؟ دغه شان د قیامت د ورځ راتلل د یو آفت او مصیبت دی. د دې د جمعې د ورځې سره څه کار دی؟

**جواب**: د دې سوال دوه جوابه دې او جواب دا دی چې د حضرت آدم علیه السلام د جنت نه اخراج یوه لویې تدبیر پوره کولو د پاره ؤو چې انسان دې دنیا ته راشي او اباد شي. د الله تعالی د کائناتو نه فایده واخلي او په عبادت کولو سره د الله تعالی رضا حاصله کړي او جنت ته داخل شي. همدغه شان د قیامت په قیام سره هم انسان الله تعالی ته ورسیږي او د الله تعالی په رضا او رحمت سره ورته جنت ملاؤ شي. لهذا دا شیان د جمعې د فضیلت ذریعې دي.

د دې پوښتنې واضحه او صحیح جواب دا دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د جمعې د ورځې فضیلت په داسې انداز سره بیان کړو چې په جمعه کې لوي لوي واقعات او انقلابونه به ښکاره کیږي. او بیا به هم په دغه عظیمه ورځ کې عظیم واقعات ښکاره کیږي. او په کومه ورځ چې دومره لوي واقعات ښکاره شوي دي هغه به خپله څومره لوي وي.

(۱) اخرجه مسلم ۲/۵۸۵، رقم الحدیث: ۱۸-۸۵۴، سنن ترمذي ۲/۳۵۹ رقم الحدیث: ۴۸۸.

په دې سلسله کې د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د پيدائش عظيم الشانه واقعه، بيا د جنت نه د اخراج لويه واقعه او بيا په قيامت کې کائنات ذره ذره کيدو په شان لوي واقعات نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جمعې د ورځې په يو ځاې کولو سره د جمعې انقلابي شان بيان کړو. دا دير ښه جواب ؤ او په دې ټولو احاديثو کې جاري کيدلی شي. چې په کومو احاديثو کې د دغه شان واقعاتو ذکر راغلی دی.(المرقات۴۴۴-۳/۴۴۵).

اوس په دې کې بحث دی چې د عرفې افضله ده او که د جمعې ورځ افضله ده. علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ځينې حضرات وايي چې عرفه افضله ده او ځينې وايي چې جمعه افضله ده.بهرحال په دې کې تطبيق داسې کيدلی شي چې په کال کې د ټولو نه افضله ورځ د عرفې ده او د اونۍ په ورځو کې د ټولونو نه افضله ورځ د جمعې ورځ ده. نو څه تضاد نشته دی. (المرقات۳/۴۴۵).

## د جمعې په ورځ کې يو ساعت د قبوليت دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّ فِي الْجمعة لَسَاعَةً |
| ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د جمعې په ورځ يو داسې ساعت راځي |
| لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللهَ فِيهَا خَيْرًا إِلَّا أَعطَاهُ إِيَّاه.(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) |
| که هغه يوبنده مؤمن بيامومي اوپه هغې کې دالله تعالى نه دښيګړې سوال وکړي نوخداى به هغه ته ښيګړه |
| وَ زَاد مُسلم : |
| ورکړي (يعنې په دې ساعت کې غوختلی شوې دعاءخامخاقبليږي)اوزيات کړي مسلم په يوروايت کې |
| قَالَ وَ هِيَ سَاعَةٌ خَفِيفَةٌ . وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُمَا |
| چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل هغه ساعت ډيرلږوې.اودبخارى اومسلم په يوروايت کې داالفاظ نقل شوى |
| قَالَ : إِنَّ فِي الْجمعة لَسَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا مُسْلِمٌ قَائِم |
| چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل: بيشکه د جمعې په ورځ يو داسې ساعت راځي که هغه يوبنده مؤمن مونځ |
| يُصَلِّي يَسْأَلُ اللهَ خَيْرًا إِلَّا أَعطَاهُ إِيَّاهُ .(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).(۱) |
| دولاړې په حالت کې بيامومي اودخداى نه دښيګړې دعاءوکړي نوخداى هغه ته ښيګړه خامخاورکوي. |

---

(۱) أخرجه البخاري ۴۱۵/۲، رقم الحديث ۹۳۵، مسلم ۵۸۴/۲، رقم الحديث ۱۵-۸۵۲،سنن ترمذي ۳۶۲/۲ رقم الحديث: ۴۹۱، نسائي ۱۱۵/۳، رقم الحديث:۱۴۳۱،ابن ماجه ۳۶۰/۱ رقم الحديث:۱۱۳۷، دارمي ۴۴۳/۱، رقم الحديث: ۱۵۶۹، مؤطا امام مالک ۱۰۸/۱، قم الحديث ۵ ، کتاب الجمعة ، مسند احمد ۵۱/۵

**توضیح**: د دې حدیث نه دا خبره معلومیږي چې د جمعې په ورځ یو داسې ساعت دی چې کوم بنده د الله تعالی نه د څه ښیګړې سوال وکړي نو الله تعالی هغه ته ښیګړه خامخا ورکوي.مطلب دا دی چې الله تعالی په خپل حکمت سره دا وخت او ساعت پټ ساتلی دی. د دې د پاره چې هر سړی په دې ټوله ، کې په عبادت او دعاګانو کې ښه محنت او مشقت وکړي او د کوم خاص وخت انتظار ونه کړي. ( المرقات ۳/۴۴۵).

**الااعطاه ایاه**: د دعاء د قبولیت خو یو صورت دا وي چې کوم دعاء یې وغوختله الله تعالی په دنیا کې پوره کړه او انسان ته د دې د نتیجې علم وشو . دویم صورت دا وي چې په دنیا کې د دې دقبولیت اثر نه ښکاره کیږي.خو د قیامت په ورځ الله تعالی د دې دعاء په بدله کې دغه سړې ته ثواب ورکوي. دا هم د **الا اعطاه ایاه** یو صورت دی. کله کله د قبولیت دعا صورت دا هم وي چې دعا غوختونکې سړي باندې یو غیبي مصیبت راتلي خو د دعا په برکت سره دغه مصیبت واوړیږي. دا هم د الا اعطاه صورت دی. بهرحال د دمسلمان دعاء نه ضائع کیږي.

**قائم یصلي**: د دې جملې مطلب دا دی چې واقعې هغه سړی په مونځ باندې ولاړ وي او سوال کوي دا وخت راورسیږي . د دې دویم مطلب دا دی چې دغه سړی د مونځ په انتظار کې ناست وي او دا خو هم حکمًا په مونځ کې شماریږي. یو مطلب دای چې دغه سړی بس فقط مونځ کوي، یعنې د مونځ ډیره پابندي کوي . ( المرقات ۳/۴۴۵).

دا مطلب مې ځکه بیان کړو چې د دې په باره کې په ټولو احادیثو کې تطبیق راشي.

## جمعې په ورځ د قبولیت وخت کوم یو دی

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ ابْنِ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ |
| او ابی برده ابن ابی موسی راوي دی وایي چې ما د خپل پلار (ابو موسی) نه اوریدلي دي چې ویل یې ما د |
| سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ شَاْنِ سَاعَةِ الْجُمُعَةِ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي چې د جمعې (د ورځې) د ساعت د قبولیت باره کې یې فرمایلي دي |
| هِيَ مَا بَيْنَ اَنْ يَجْلِسَ الْاِمَامُ اِلٰى اَنْ تُقْضٰى الصَّلَاةُ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ) . (۱) |
| چې هغه ساعت (د خطبې د پاره) د امام په منبر د ناستې او د تر مونځ کولو پورې مینځنی وخت دی. |

---

(۱) أخرجه مسلم ۲/۵۸٤ رقم الحدیث ۳، أبوداؤد ۱/۵٦۳ رقم الحدیث ۱۰٤۸.

**توضیح**: د جمعې په ورځ د دعا د قبولیت دا ساعت او ده وخت خو یقیني دی. په دې کې د هیڅا اختلاف نشته دی او نه په دې کې شک شته دی. خو په دې کې د علماؤ اختلاف دی چې هغه ساعت په کومه موقع باندې راځي. ځینې علماء وایي چې څنګه الله تعالی اسم اعظم پټ ساتلی دی او شبِ قدر یې هم پټ ساتلی دی. همدغه شان یې د جمعې ورځ هم پټه ساتلې ده.

ځینې علماء فرمایي چې هغه ساعت د جمعې په ورځ بدلیږي رابدلیږي. کله د جمعې په سحر کې راشي. کله په غرمي یا د زوال په وخت راځي او کله د جمعې په ورځ د مازیګر نه وروسته راځي.

د اکثرو علماؤ دا رائی ده چې هغه ساعت د جمعې په متعین وخت کې راځي. اوس هغه متعین وخت کوم یو دی. په مظاهر حق کې لیکل شوي دي چې په دې کې ۱۳۵ اقوال دي.

د بحث لاندې حدیث کې ویل شوي دي چې د امام د خطبې نه تر مونځ ختمیدو پورې چې کوم وخت دی، په هغه کې دا ساعت موجود دی. په حدیث نمبر ۵ کې عبدالله بن سلام تصریح کوي چې دا وخت د مازیګر د مونځ نه وروسته وي. په مظاهر حق کې د ۱۳۵ اقوالو په رڼا کې د ټولو وختونو ذکر کړی شوی دی. هلته دې وکتلی شي خو د بحث لاندې حدیث کې چې کله د یو وخت متعلق تصریح راغلې ده بس همدغه بس دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د جمعې فضیلت او د ساعت قبولیت

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : خَرَجْتُ إِلَى الطُّورِ فَلَقِيتُ كَعْبَ الْأَحْبَارِ |
| ابو هریره رضي الله عنه وایي چې (یوه ورځ) زه د کوه طور طرف ته لاړم او هلته مې د کعب احبار سره ملاقات وشو |
| فَجَلَسْتُ مَعَهُ فَحَدَّثَنِي عَنِ التَّوْرَاةِ وَ حَدَّثْتُهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| زه د هغه سره کیناستلم هغه ماته د تورات څه خبرې بیان کړلې او ما هغه ته د نبي کریم صلی الله علیه وسلم حدیثونه |
| فَكَانَ فِيمَا حَدَّثْتُهُ أَنْ قُلْتُ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| بیان کړل ما چې هغه ته کوم احادیث بیان کړل په هغې کې یو حدیث دا هم ؤ چې نبي علیه السلام فرمایلي دي چې |
| " خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجمعةِ |
| په هغه ورځو کې چې په هغې کې لمر راخیژي د ټولو نه بهتره د جمعې ورځ ده د جمعې په ورځ آدم علیه السلام |
| فِيهِ خُلِقَ آدَمُ |
| پیدا کړی شوی ؤ په همدغه ورځ هغه د جنت نه (زمکې ته) راخکته کړلی شوی ؤ، په همدغه ورځ (یعنې |

وَ فِيهِ أُهْبِطَ وَ فِيهِ

په کومه جمعه چې د جنت نه راخکته کړې شوی ؤ د هغه جمعه په آخري وخت کې ياداچې په بلې جمعې په

تِيبَ عَلَيْهِ وَ فِيهِ مَاتَ وَ فِيهِ تَقُوْمُ السَّاعَةُ

ورځ) د هغې توبه قبوله شوي وه په همدغه ورځ هغه مړ شوی ؤ او په همدغه ورځ به قيامت وي او دغه شان

وَمَا مِنْ دَابَّةٍ إِلَّا وَهِيَ مُصِيخَةٌ يَوْمَ الْجمعة مِنْ حِينِ تُصْبِحُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ شَفَقًا مِنَ السَّاعَةِ

هيڅ داسي ځاروی نشته چې د جمعې په ورځ دلمر د راختلو نه دلمر ترېريو توبه د قيامت د راتللو په انتظار

کې نه وي (يعنې ځاروې ته هم دا معلومه ده چې قيامت به د جمعې په ورځ راځي نو ځکه هغه د هرې جمعې

إِلَّا الْجِنَّ وَ الْإِنْسَ

په ورځ په دې ويره کې وي چې چرته نن ورځ قيامت رانه شي) په غير د پيريانو او دانسانانو نه (يعنې پيريان

او انسانان د دې ورځې بی خبره ساتلی شوي دي چې د دې ورځې د هيبت نه د انسان ژوند ګډ وډ نه شي)

وَ فِيهِ سَاعَةٌ لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَ هُوَ يُصَلِّي

او د جمعې په ورځ يو داسي ساعت راځی چې که يو مسلمان بنده چې هغه (حکمًا يا حقيقتًا) مونځ کوي

يَسْأَلُ اللهَ شَيْئًا

(يعنې د مونځ انتظار کوي او يا دعا غواړي) هغه ومومي او د الله تعالی نه د شي غوښتنه کوي نو هغه

إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهَا . قَالَ كَعْبٌ :

ته هغه شی خامخا ورکړی کېږي (يعنې هغه چې هغه وخت کومه دعاء غواړي نو قبلېږي به) کله چې کعب

(داو اوريدل نو) وي ويل چې: نا! دا ورځ (کوم ساعت چې قبوليت يې په خپله لمن کې پټ کړی دی) په

ذٰلِكَ فِي كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ . فَقُلْتُ : بَلْ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ

کال کې يو ځل راځي ما ورته وويل بلکې د هرې جمعې په ورځ يو ځل راځي. کعب (د دې خبرې د تصديق

فَقَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ . فَقَالَ : صَدَقَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ.

دپاره) تورات ولوستلو او (د دې نه وروسته) يې وويل چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم رښتيا فرمايلي دي:

قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ : لَقِيتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ سَلَامٍ

ابو هريره رضی الله عنه وايي چې (د دې نه وروسته) زه د عبد الله ابن سلام رضی الله عنه سره مخ شوم او هغه ته مې د

فَحَدَّثْتُهُ بِمَجْلِسِي مَعَ كَعْبِ الْأَحْبَارِ وَمَا حَدَّثْتُهُ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ
کعب سره ملاقات تذکره وکړه او د جمعې باره کې چې ما کوم حدیث کعب ته بیان کړی ؤ هغه مې ورته ووېل

فَقُلْتُ لَهُ : قَالَ كَعْبٌ : ذٰلِكَ كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ ؟ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ
بیا ما عبد الله بن سلام رضي الله عنه ته دا هم ووېل چې کعب ووېل چې دا ورځ په کال کې یو ځل راځي عبد الله بن

سَلَامٍ : كَذَبَ كَعْبٌ . فَقُلْتُ لَهُ ثُمَّ قَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ . فَقَالَ:
سلام ووېل چې کعب غلط وېلي دي. بیا ما ووېل: چې کعب خو وروسته بیا تورات ولوستلو او وې وېل

بَلْ هِيَ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ . فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ :
چې (د نبي علیه السلام وینا صحیح ده) چې دا ساعت په هره جمعه کې راځي. عبد الله بن سلام ووېل چې:

صَدَقَ كَعْبٌ ثُمَّ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ : قَدْ عَلِمْتُ أَيَّةَ سَاعَةٍ هِيَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ
کعب دا رښتا وېلي، او بیا یې ماته ووېل چې زه پوهېږم چې هغه کوم جماعت دی؟ ابو هریره رضي الله عنه وایي

فَقُلْتُ لَهُ: أَخْبِرْنِي بِهَا. وَلَا تَضِنَّ عَلَيَّ. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: هِيَ آخِرُ سَاعَةٍ فِي يَوْمِ الْجمعة.
چې ما ووېل چې بیا ماته ووایه او د بخل نه کار مه اخله عبد الله بن سلام ووېل چې هغه د جمعې آخري وخت

قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ : فَقُلْتُ : وَ كَيْفَ تَكُونُ آخِرَ سَاعَةٍ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ
دی ابو هریره رضي الله عنه وایي چې ما ورته ووېل چې هغه ساعت د جمعې د ورځې آخري وخت ولې کېدی شي

وَ قَدْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَ هُوَ يُصَلِّي
حال دا چې د نبي علیه السلام ارشاد دی چې کوم مؤمن بنده دا ساعت ومومي او هغه په دې کې مونځ کوي

وَ تِلْكَ السَّاعَةَ لَا يُصَلِّي فِيهَا ؟
(او ته وایې چې هغه ساعت د جمعې د ورځې آخري وخت دی هغه وخت خو د مونځ هم نه کېږي ځکه مکروه

فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ : أَلَمْ يَقُلْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :
دی؟) عبد الله بن سلام ووېل (دا خو صحیح ده خو) آیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد نه دی؟ چې کوم

مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ فَهُوَ فِي صَلَاةٍ حَتَّى يُصَلِّيَ ؟
سړی د مونځ په انتظار کې ناست وي نو هغه د مونځ گزار په حکم کې دی تر دې چې هغه (حقیقتًا) مونځ وکړي

قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ : فَقلت : بَلٰى. قَالَ: فَهُوَ ذٰلِكَ. (وَ رَوَى أَحمد إِلى قَوْله: صَدَقَ كَعْب). (۱)

ابو هريره رضي الله عنه وويل: ما ورته وويل آوا وريدلي مې دي نو ده راته وويل چې د مونځ نه مراد د مونځ انتظار دی (د ورځې په آخري برخه کې ناسته ممنوع نه ده که هغه وخت کې څوک دعا وغواړي نو هغه به قبليږي)

**توضيح** : **مصيخة**:اصاخ د باب **افعال** نه دی. په غوږ کيدلو سره د چا اواز او بل څه اوريدل او انتظار کولو ته وايي ، دلته **مصيخة** د انتظار کولو په معنی دی. ( المرقات ۳/۴۴۹).

**ولا تضن علي:** **ضن يضن** بخل او کنجوسی ته وايي لکه ﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ﴾ (تکوير آيت:۲۸) يعني نه ماته ښکاره وواېه. او په دې کې د بخل نه کار مه اخله. (المرقات ۳/۴۵۱)

په دې حديث کې د عبد الله ابن سلام او د حضرت ابو هريره رضي الله عنهما د جمعې د ورځې د فضيلت والا ساعت د وخت د تعين متعلق يوه مکالمه بلکې مناظره ذکر شوي ده. حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه وفرمايل چې دا ساعت د مازيگر نه وروسته وي. حضرت ابو هريره رضي الله عنه په هغې باندې اشکال وکړو چې د مازيگر نه وروسته خو مونځ کول منع دي. حال دا چې د دغه ساعت د موندلو په سلسله کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې کوم سړی مونځ کوي نو دعا قبليږي. حال دا چې هغه مونځ نه شي کولی. حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه په جواب کې وفرمايل چې کوم سړی د مونځ په انتظار کې ناست وي، ايا هغه مونځ گزاره نه دی ؟ حضرت ابو هريره رضي الله عنه وفرمايل چې آو! مونځ گزاره دی. حضرت عبد الله ابن سلام رضي الله عنه وفرمايل چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم همدغه مقصد دی. چې هغه سړی چې کله د مازيگر د مونځ په انتظار کې وي. نو هغه مونځ گزاره دی.

علماؤ ليکلي دې چې د عوامو ميلان همدې طرف ته دی چې د قبوليت دا ساعت د مازيگر د مونځ نه وروسته وي. (المرقات ۳/۴۵۱).

کعب احبار د اهل کتابو لوي عالم ؤو. د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې يې اسلام قبول نه کړو. وروسته مسلمان شو. لهذا تابعي دی، صحابي نه دی.

## د قبوليت ساعت د مازيگر نه وروسته ولټوئ

﴿٦﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اِلْتَمِسُوا السَّاعَةَ الَّتِي تُرْجٰى

انس رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ولټوئ تاسې هغه ساعت چې اميد د قبليدو

---

(۱) اخرجه ابوداؤد ۶۳۴/۱، رقم الحديث : ۱۰۴۶، ترمذي ۳۶۲/۲، رقم الحديث : ۴۹۱، نسائي ۱۱۳/۳، رقم الحديث : ۱۴۳۰، مؤطا امام مالك ۱۰۸/۱، رقم الحديث : ۱۶ ، كتاب الجمعة

فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ بَعْدَ الْعَصْرِ إِلٰى غَيْبُوبَةِ الشَّمْسِ.[۱]

د دعاء وي په ورځ د جمعې پس د مازيګر نه تر لمر پريوتو پورې.

## د جمعې فضيلت

﴿۷﴾ وَعَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ

وس بن اوس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په ورځو کې بهتره ورځ هغه

يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِيْهِ خُلِقَ آدَمُ وَ فِيْهِ قُبِضَ

ورځ د جمعې ده (ځکه) په دې کې حضرت آدم عليه السلام پيدا شوی ؤ په همدغه ورځ يې روح قبض شوی ؤ

وَ فِيْهِ النَّفْخَةُ

په همدغه ورځ به (دويمه) شپيلۍ وهلی کېږي (چې دهغې په اوازسره به مړي په ميدان حشر کې راجمعه

وَ فِيْهِ الصَّعْقَةُ

شي) په همدغه ورځ به اوله شپيلۍ پوک وهلی کېږي چې دهغې په اوازسره به قيامت شي او ټول مخلوقات

فَأَكْثِرُوْا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيْهِ فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوْضَةٌ عَلَيَّ

به فنا شي) لهذا په هغه ورځ باندې تاسو په ما باندې ډير درود وايئ ځکه ستاسو درود به ماته راړسول کېږي.

فَقَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ وَ كَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ

صحابو وويل چې يارسول الله! زمونږ درود به تاته څنګه دررسيږي حال دا چې (زمونږ د درود ليږلو په وخت

وَ قَدْ أَرَمْتَ؟ قَالَ: يَقُوْلُوْنَ: بَلِيْتَ

کې) ستا هډوکي به وراسته شوي وي؟ راوي وايي چې لفظ ارمت نه د صحابو مراد لفظ بليت ؤ يعنې

قَالَ: إِنَّ اللهَ حَرَّمَ

د نبي عليه الصلاة والسلام جسم مبارک به وروست شوي وي، نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالى حرام کړې دی

۱) أخرجه الترمذي ۲/ ۳٦۰، رقم الحديث: ٤۸۹.

| عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعْوَاتِ الْكَبِيرِ) (۱) |
|---|
| په زمکې باندې د انبياء کرامو جسمونه (يعني د انبياؤ بدن زمکه نه خرابوي). |

**توضيح : فأكثروا علي من الصلوٰة**:يعنې د جمعې ورځ د ډيرو فضيلتونو، برکتونو او د لوي لوي انقلابونو ورځ ده په دې کې په ما باندې ډير ډير درود راليږئ ځکه ستاسو درود ماته رارسيږي. د جمعې په ورځ په کثرت سره د درود ويلو وجه دا ده چې درود د ډيربنه عباداتو نه دی او د جمعې ورځ د نورو ورځو سرداره ده. په دې کې يوه نيکي تر اوياؤ (۷) پورې رسيږي. نو د درود ويلو سره ډيره فايده کيږي. جمعه هم لوي نعمت دی درود هم لوي نعمت دی. د جمعې ورځ د قبرونو د زيارت ورځ ده، نو په ويلو سره به د نبي کريم ﷺ زيارت وشي. په سترګو سره نه سی ، په زړه مازغو او نفس او په ژبه سره زيارت وشي. (المرقات ۳/۴۵۲).

**وقد ارمت**:د دې لفظ په اصل ماده کې او بيا په صيغه کې ډير اختلاف دی. ډير واضح او صحيح دا دی چې ارمت د ضرب يضرب نه ورستيدلو ته وايي. لکه **من يحي العظام وهي رميم**. شيخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کې ليکلي دي چې په ارمت کې اصل کې ارممت ؤو. يو ميم حذف کړلی شوی دی ارمت پاتې شو. بهرحال دا ماده چې په کوم باب واخلې د هغې په مفهوم کې ورست کيدل دي. (المرقات ۳/۴۵۳، اشعة اللمعات).

د صحابی د پوښتنې مقصد دا دی چې يارسول الله! زمونږه درود به تاته څنګه درسيږي. حال دا چې ته به په قبر کې ژوندی نه يې. بلکې ذره ذره شوی به يې. ددې په جواب کې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د انبياؤ جسم الله تعالی په زمکه باندې حرام کړيدی چې هغه وخوري. دا جواب د سائل (پوښتنه کونکي) د پوښتنې مطابق دی. سائل وويل چې ته به د مرګ نه وروسته ژوندی نه يې. نبي کريم ﷺ وفرمايل چې انبياء ژوندي وي او زه به هم ژوندی يم. چې د هغې جواب د سائل جواب دی. هغې د مرګ خبره وکړه نو نبي کريم ﷺ د ژوند خبره وکړه. د دې مسئلې تحقيق په باب تشهد کې شوی دی.

**يقولون بليت**:دا د راوي د اړخ نه د ارمت تفسير دی چې د صحابؤ د ارمت ويلو نه مراد دا دی چې ته به وروست شوی يې. (المرقات ۳/۴۵۳).

---

(۱) اخرجه ابوداؤد ۱/۶۳۵، رقم الحديث : ۱۰۴۷، نسائي ۳/۹۱ رقم الحديث : ۱۳۷۴، ابن ماجه ۳/۹۱ رقم الحديث : ۱۳۷۴، دارمي ۱/۴۴۵، رقم الحديث : ۱۵۷۲، مسند احمد ۸/۴.

## د جمعې په مقبول ساعت کې دعاء قبلیږي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْيَوْمُ الْمَوْعُودُ يَوْمُ الْقِيَامَةِ وَ

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی وايي چې: نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يوم موعود د قيامت ورځ ده او

الْيَوْمُ الْمَشْهُودِ يَوْمُ عَرَفَةَ وَالشَّاهِدُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ وَمَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَلَا غَرَبَتْ عَلَى يَوْمٍ

يوم مشهود د عرفې ورځ ده او شاهد د جمعې ورځ ده لمر په يوه داسې ورځ كې نه راخيژي او نه پريوځي

أَفْضَلَ مِنْهُ فِيهِ سَاعَةٌ

چې هغه د جمعې د ورځې نه غوره وي (يعني د جمعې ورځ د ټولو نه غوره ده) په همدې ورځ كې يو ساعت دی

لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُؤْمِنٌ يَدْعُو اللهَ بِخَيْرٍ إِلَّا اسْتَجَابَ اللهُ لَهُ وَلَا يَسْتَعِيذُ مِنْ شَيْءٍ

چې هغه كوم مؤمن بنده و مومي نو الله تعالى به هغه ته ضرور خير وركړي يا چې د كوم شي نه پناه وغواړي

إِلَّا أَعَاذَهُ مِنْهُ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ) وَ قَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُوسَى

نو الله تعالى ضرور د هغې نه پناه وركوي. امام ترمذي وايي چې دا حديث غريب دی ځكه يو سړی موسى

بْنِ عُبَيْدَةَ وَ هُوَ يُضَعَّفُ. (۱)

بن عبيد نه علاوه بل چا نه دې نقل كول معلوم نه دي او موسى د محدثينو په نزد ضعيف شمارلی كيږي.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د جمعې فضيلت

﴿۹﴾ عَنْ أَبِي لُبَابَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُنْذِرِ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

ابو لبابه ابن منذر رضي الله عنه راوي دی وايي چې: نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د جمعې ورځ د الله تعالى

سَيِّدُ الْأَيَّامِ وَ أَعْظَمُهَا عِنْدَ اللهِ وَ هُوَ أَعْظَمُ عِنْدَ اللهِ مِنْ يَوْمِ الْأَضْحَى

په نزد د ټولو ورځو سرداره او باعظمته ده او د الله تعالى په نزد د جمعې د ورځ عظمت ډير دی د غټ اختر

وَ يَوْمِ الْفِطْرِ فِيهِ خَمْسُ خِلَالٍ : خَلَقَ

او وړوكي اختر نه او په دې كې پنځه خبري دي (چې د هغې د عظمت او د فضيلت دليل دی) ۱: پيدا كړي

(۱) أخرجه الترمذي ۵/۴۰۶، رقم الحديث: ۳۳۳۹، مسند أحمد ۳/۱۳۰.

اللّٰهُ فِيهِ آدَمَ وَ أَهْبَطَ اللّٰهُ فِيهِ آدَمَ إِلَى الْأَرْضِ

الله تعالى په دې ورځ آدم عَلَيْهِ السَّلَام. ۲: په همدغه ورځ باندې الله تعالى آدم عَلَيْهِ السَّلَام زمکې ته راکوز کړو.

وَ فِيهِ تَوَفَّى اللّٰهُ آدَمَ وَ فِيهِ سَاعَةٌ لَا يَسْأَلُ

۳: په همدې ورځ آدم عَلَيْهِ السَّلَام مړ شو. ۴: په همدې ورځ کې يو ساعت راځي چې په هغې کې سوال وکړي

الْعَبْدُ فِيهَا شَيْئًا إِلَّا أَعْطَاهُ مَا لَمْ يَسْأَلْ حَرَامًا وَ فِيهِ

بنده په غير د حرام څيز نه نو الله تعالى به يې ضرور ورکوي ترڅو يې چې نه وي غوښتې حرام. ۵: او په دې

تَقُومُ السَّاعَةُ مَا مِنْ مَلَكٍ مُقَرَّبٍ وَلَا سَمَاءٍ وَلَا أَرْضٍ وَلَا رِيَاحٍ وَلَا جِبَالٍ وَلَا بَحْرٍ إِلَّا هُوَ مُشْفِقٌ

ورځ به قيامت قائم شي ټولي مقربي فرښتي، آسمان، زمکه، هوا، غرا و دريابونه به ټول ويريږي د ورځې

مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ. (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه). (۱)

د جمعې نه (ددې وجې نه چې قيامت به د جمعې په ورځ راځي دا معلومه نه ده چې څه وخت به راځي).

وَ رَوَى أَحْمَدُ عَنْ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ: أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

او امام احمد د سعد بن معاذ نه داسې نقل کړي چې يو انصاري د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر

فَقَالَ: أَخْبِرْنَا عَنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مَاذَا فِيهِ مِنَ الْخَيْرِ؟ قَالَ:

شو او وي ويل چې: ماته د جمعې په اړه ووايه چې په دې کې څه څه نېوالي دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې

فِيهِ خَمْسُ خِلَالٍ وَ سَاقَ إِلَى آخِرِ الْحَدِيثِ. (۲)

د دې ورځې پنځه خبري دي. نور حديث يې تر آخره پورې هم دغه شان نقل کړو، کوم چې پاس ذکر شو.

## جمعې ورځې ته د جمعې ويلو وجه

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: لِأَيِّ شَيْءٍ سُمِّيَ

ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام نه پوښتنه وشوه چې د جمعې ورځ نوم په څه وجه

يَوْمَ الْجُمُعَةِ؟ قَالَ: لِأَنَّ فِيهَا طُبِعَتْ طِينَةُ أَبِيكَ آدَمَ

کيخودلی شوی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: په دې وجه چې په دې ورځ ستاد پلار آدم عَلَيْهِ السَّلَام خاوره راجمع کړی

(۱) أخرجه ابن ماجه ۱/۳۴۴، رقم الحديث ۱۰۸۴. مسند أحمد ۳/۴۳۰

(۲) أخرجه مسند أحمد ۵/۲۸۴.

وَ فِيهَا الصَّعْقَةُ
شوي وه او هغه واغګلی شوه په دې ورځ به (اولنی) شپیلی پوک وهلی شوي (چې د هغې په آواز به ټول د

وَ الْبَعْثَةُ
دنیا والامړه شي) او (دویمه) شپیلی به پوک وهلي شي (چې د هغې په آواز سره به ټول مړي به په دویم ځل

وَ فِيهَا الْبَطْشَةُ وَ فِي آخِرِ ثَلَاثِ سَاعَاتٍ مِنْهَا
راژوندي شي) او په دغه (قیامت) په ورځ به سخته نیوکه وي او د دغي ورځ په آخري درې ساعتونو کې یو

سَاعَةٌ مَنْ دَعَا اللَّهَ فِيهَا
ساعت داسي دی (یعني د جمعې آخري ساعت) چې په هغه وخت کې چې څوک د الله نه دعا وغواړي، د

اسْتُجِيبَ لَهُ. (۱)
هغه دعاء به قبلیږي.

## د جمعې په ورځ په کثرت سره درود ویل په کار دي

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَكْثِرُوا الصَّلَاةَ عَلَيَّ
ابودرداء رضي الله عنه روایت دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په کثرت سره درود رالیږئ په ما

يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَإِنَّهُ مَشْهُودٌ تَشْهَدُهُ الْمَلَائِكَةُ
باندې د جمعې په ورځ ځکه د جمعې ورځ مشهود (حاضره کړی شوي) ده په دغه ورځ ملائکې حاضریږي او

وَ إِنَّ أَحَداً لَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ إِلَّا عُرِضَتْ عَلَيَّ صَلَاتُهُ
چې کوم سړی هم په ما باندې درود رالیږي د هغه درود ماته (مکاشفه یا د ملائکو په ذریعه) رارسیږي.

حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهَا : قَالَ : قُلْتُ : وَ بَعْدَ الْمَوْتِ ؟
تردې چې هغه ددې نه فارغ شي. ابودرداء وایي چې ما (دا واوریدل) نو عرض مې وکړو چې: پس د مرګ

قَالَ : إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ
نه به تاسو ته درود څنګه در رسیږي؟ نبي علیه السلام وفرمایل چې الله تعالی حرام کړې دي په زمکه باندې

---

(۱) اخرجه مسند احمد ۲/ ۳۱۱.

| أَنْ | تَأْكُلَ | أَجْسَادَ | الْأَنْبِيَاءِ | فَنَبِيُّ | اللهِ | حَيٌّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دانبیاؤ جسم خوړل نو د خدای نبیان (په خپل خپل قبرونو کې بالکل د دنیا په حقیقي ژوند سره) ژوندي دي | | | | | | |
| يُرْزَقُ . (۱) | | | | | | |
| او رزق ورکول کیږي. | | | | | | |

**توضیح : مشهود**: دا حدیث د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د تفسیر تائید کوي. هغه د سورت بروج د آیت ﴿ وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ﴾ (بروج آیت :۳) کې د **مشهود** نه د جمعې ورځ مراد اخستې ده. خو حضرت علي رضي الله عنه د **شاهد** د لفظ نه د جمعې ورځ مراد اخستې ده.

او همدغه راجح او صحیح دی. دلته هم احتمال دی چې د مشهود نه د جمعې ورځ مراد ده. (المرقات ۳/۴۵۹).

**عرضت**: یعني د هرې ورځې درود رالیږلو والادرود په ماباندې پیش کېږي خو د جمعې د ورځې درود په خصوصي توګه باندې په ما باندې پیش کېږي. (المرقات ۳/۴۵۹).

صحابي پوښتنه وکړه چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! د مرګ نه پس به هم درود پیش کېږي. حال دا چې ته به مړ یې؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په جواب کې وفرمایل چې انبیاء ژوندي دي ځکه الله تعالی د انبیاؤ جسدونه په زمکه باندې حرام کړیدي.

د حیات انبیاء متعلق تفصیل بحث په **باب التشهد** کې شوی دی.

د بحث لاندې حدیث کې **حيّ يرزق** د الفاظو نه په واضحه توګه باندې حیات انبیاء ثابتیږي. په دې کې دلیل پیش کولو ته ضرورت نشته دی د امت په حیات انبیاء باندې اتفاق دی په دې کې اختلاف کول په کار نه دی. (المرقات ۳/۴۵۹).

## د جمعې په ورځ د مړ کیدونکي مؤمن د پاره زیري

| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَا مِنْ مُسْلِمٍ |
|---|
| عبدالله بن عمرو رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: دا سې هيڅ يو مسلمان نشته |

(۱) أخرجه ابن ماجه ۱/۵۲۴، رقم الحديث : ۱۶۳۷.

يَمُوتُ يَوْمَ الْجمعة أَوْ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ إِلَّا وَقَاهُ اللهُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ . وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ. [1]

چې د جمعې په ورځ يا د جمعې په شپه مړ شي مګر بچ به کړي الله تعالی دا د قبر د فتنې نه (يعنې د قبر د پوښتنو او د قبر د عذاب).

**توضيح** : **مسلم**: د جمعې په ورځ به ډير کافر هم مړه کېږي. مګر د حديث دا بشارت د کافرانو د پاره نه دی بلکې دا زيرې د مسلمانانو سره خاص دی. يعنې چې يو خوش قسمته مسلمان د جمعې په ورځ چې مړ شي نو هغه د جمعې په ورځ د الله تعالی د بې شميره رحمتونو او په نعمتونو کې به ي او د قبر د عذاب نه به محفوظ وي. (المرقات ۳/۴۶۱).

په يو بل حديث کې دي چې د جمعې په ورځ مړ کيدونکي مسلمان ته به دقبر د عذاب نه نجات وي او هغه په ميدانِ حشر کې هم په همدغه حال کې راځي چې په هغې باندې به د شهيدانو مهر وي. (المرقات ۳/۴۶۱).

په يو بل روايت کې دي چې د جمعې په ورځ چې کوم کس مړ شي هغه ته به د شهيد اجر او ثواب ليکلې کيږي او د قبر د عذاب نه به بچ کولې شي . (المرقات ۳/۴۶۱).

په يو بل روايت کې دې چې د کوم نارينه يا د ښځې مرګ د جمعې په ورځ وشي يا د جمعې په شپه وشي. نو هغه نارينه يا ښځه د قبر د عذاب نه بچ کړی کېږي. او د الله تعالی ملاقات به ورسره په داسې حال کې وي چې د هغې سره به هيڅ حساب نه وي ځکه د هغې سره به ګواه وي يا په هغې باندې د شهداؤ مهر لګيدلې وي. د دې حديث د زيرې تعلق د يو مسلمان سره دی چې مسلمان ته جمعې په ورځ د مرګ نه دا فايده حاصليږي، هيڅ يو کافر يا زنديق او منافق ته ددې نه فايده نشته دی ، اَوْ د شک د پاره نه دي بلکې د تنويع د پاره دی.

## جمعه د مسلمانانو د پاره د اختر ورځ ده

| ﴿۱۳﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ قَرَأَ : ﴿ اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ ﴾ الْآيَةَ |
|---|
| او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُما باره کې منقول دي چې هغه دا آيت تلاوت کړو : نن ورځ ما تاسو لپاره ستاسو دين پوره |
| وَ عِنْدَهُ يَهُودِيٌّ |
| کړو د هغه سره (هغه وخت) يو يهودي (ناست) ؤ. هغه (چې د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا آيت واوريدلو) نو |

[1] أخرجه الترمذي ۳/۳۸٦، رقم الحديث ۱۰۷٤، مسند احمد ۲/۱٦۹.

فَقَالَ : لَوْ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ عَلَيْنَا
وي ويل چې كه چيرې دا آيت په مونږ نازل شوى وى نو مونږ به دا (يعنې د غه ورځ چې په كوم ورځ دا آيت

لَاتَّخَذْنَاهَا عِيدًا فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : فَإِنَّهَا نَزَلَتْ فِيْ يَوْمِ عِيدَيْنِ
نازل شوې ؤ) د اختر ورځ به مو ټاكلې وي. ابن عباس رضي الله عنه وويل: دا آيت د دوو اخترونو ورځ يعنې (د

فِيْ يَوْمِ جُمُعَةٍ وَ يَوْمِ عَرَفَةَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ) وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1]
حجة الوداع په موقع) د جمعې او د عرفې په ورځ نازل شوى امام ترمذي وايي چې دا حديث حسن غريب دى

**توضيح**: **لاتخذناه عيدا**: يعنې د ﴿ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ ﴾ چې كوم آيت په تاسو نازل شوى دى دا دومره د لوى شان والا آيت دى چې كه چيرې په مونږ يهودو باندې نازل شوى وى نو مونږ به دا ورځ د تاريخي ورځ په توګه لمانځلې وى مګر تاسو مسلمانان په كې هيڅ نه كوى.

ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل چې تاسو يو اختر كوئ حال دا چې دا آيت كوم وخت نازل شو نو مونږ مسلمانانو دوه اختره لمانځل. ځكه يوه خو د جمعې ورځ وه او د جمعې ورځ د مسلمانانو د پاره د اختر ورځ وي. (المرقات ۳/۴۶۲)

او بل اختر داسې چې هغه وخت د عرفې ورځ وه او عرفه د مسلمانانو د پاره د اختر ورځ وي.

په يو روايت كې دې چې د يو يهودي دا مكالمه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سره شوې وه. حضرت عمر رضي الله عنه ورته فرمايلي ؤو پريږده مونږ خپل اخترونه خپله پيژنو ستا ضرورت نشته دى. مونږ ته دا هم معلومه ده چې وخت كوم يو ؤو او ورځ كومه يوه وه. ياد وساته د عرفې ورځ وه او د جمعې په ورځ د مازيګر وخت ؤو.

## د جمعې شپه روښانه او د هغې ورځ پړقيدونكې ده

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ رَجَبٌ قَالَ: اَللّٰهُمَّ
انس رضي الله عنه وايي چې كله به د رجب مياشت راغله نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم به دا دعا كوله چې "اى الله!

بَارِكْ لَنَا فِيْ رَجَبٍ وَ شَعْبَانَ وَ بَلِّغْنَا رَمَضَانَ
د رجب او د شعبان په مياشت (زمونږ طاعت او عبادت) كې مونږ ته بركت واچوې او مونږ ورسوې د رمضان

---

(۱) أخرجه البخاري ۸/ ۲۷۰، رقم الحديث ۴۶۰۶، سنن ترمذي ۵/ ۲۳۳، رقم الحديث ۳۰۴۴.

| قَالَ : وَ كَانَ يَقُولُ : لَيْلَةُ الجمعة لَيْلَةٌ أَغَرُّ وَ يَوْمُ |
|---|
| پورې انس رضي الله عنه داهم وايي چې نبي عليه السلام به داهم فرمايل چې د جمعې شپه روښانه شپه ده او ورځ د |
| الْجُمُعَةِ يَوْمٌ أَزْهَرُ . (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ)[1] |
| جمعې پرقيدونكي ورځ ده. |

**توضيح** : **اغر**:دا د روښانه او پرقيدونكي په معنى ده. غره داد اَسپي په تندي باندې سپين داغ ته وايي. نو بيا هر روښانه او مبارک مخ ته اغر ويل شوى دى.

**ازهر**:روښانه مخ ته وايي.(المرقات ۳/۴۳۲).

**وبلغنا رمضان**:دا د امر صيغه ده. چې د دې تقاضا دا ده چې يو انسان وايي چې اى پروردګار! مونږ له دا سعادت راکړې چې رمضان ته ورسيږو او په ټول رمضان کې ستا عبادت وکړو، تراويح وکړو، تلاوت وکړو او اعتکاف ته کينو. (المرقات ۳/۴۳۲).

**ليلة اغر**: د اغر پر ځاى اغراء ويل ؤو مګر اغر د موصوف زمان محذوف دى ليلة موصوف نه دى. (المرقات ۳/۴۳۲).



(۱) أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ۳/۳۷۵، رقم الحديث : ۳۸۱۵.

# باب وجوبها
## د جُمعې د فرضیت بیان

**قال الله تعالیٰ: ﴿ إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾(جمعه آیت:۹)**

### د جمعې مونځ په هر عاقل بالغ ازاد او مقیم مسلمان باندې فرض دی

علامه یحیی رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د جمعې مونځ محکمه فریضه ده چې د قرآن کریم، احادیث کثیره او د امت د اجماع نه ثابت ده. ﴿ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ د آیت د جمعې د فرضیت دلیل دی. او احادیث هم راروان دي چې د هغې د جمعې فرضیت په واضحه توګه ثابتیږي. لهذا د جمعې د فرضیت نه انکار کونکي کافر دی او پریخودونکي فاسق دی. چې کومو علماؤ جمعې ته فرض کفایه ویلي دی هغوی لویه غلطي کړې ده جمعه فرض عین ده خو څه خلک ددې نه مستثنی دي.

په مدینه منوره کې د ټولو نه اول د اسعد بن زراره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کور کې د جمعې مونځ قائم شو. د ځینې روایاتو نه معلومیږي چې هغې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم باندې جمعه قائمه کړې وه مګر تر او سه پورې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مکه کې ؤو. هجرت یې نه ؤو کړی خو په ځینې روایاتو کې دي چې اسعد بن زراره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل اجتهاد او د خپل ایماني فراست او په کشف صادق سره جمعه شروع کړې وه.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ
## د جمعې مونځ پریخودلو باندې سخت وعید

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُمَا قَالَا: سَمِعْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه راویان دي وایي چې مونږ اوریدلي دي د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه |
| يَقُولُ عَلَى أَعْوَادِ مِنْبَرِهِ: لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمُ الْجُمُعَاتِ |
| چې فرمایل یې د هغه ممبر په (پوړو) باندې چې دلرګو ؤو چې "خلک د جمعې مونځ پریخودلو نه منع شي |
| أَوْ لَيَخْتِمَنَّ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ ثُمَّ لَيَكُونُنَّ مِنَ الْغَافِلِينَ.(۱) |
| ګیني الله تعالی به د هغوی په زړونو باندې مهر ولګوي او هغه به په غافلانو کې شمیر شي. |

(۱) اخرجه مسلم ۲/۵۹۱، رقم الحدیث: ٤-۸٦٥، نسائي۳/۸۸، رقم الحدیث:۱۳۷۰،ابن ماجه۱/۲٦۰،رقم الحدیث: ۷۹٤، دارمي ۱/٤٤٤ رقم الحدیث: ۱۵۷۰، مسند احمد ۲/ ۸٤.

**توضيح** : **اعواد منبرة**: اعواد د **عود** جمع ده لرګي ته وايي. چونکې په ۲هـ کې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اجازت سره حضرت عائشه انصاريه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په حکم باندې د هغې غلام باقوم رومي چې کوم ممبر تيار کړي ؤ و هغه د غابه ځنګل د ګنو بوټو د لرګو نه جوړ شوی ؤ و نو په دغه وجه باندې صحابي د لرګي ذکر کړې دی او دې طرف ته يې اشاره کړې ده چې زه دا حديث په ښه پوهې سره او په هوش او حواس سره بيانوم چې هغه ممبر د لرګي ؤ. څه د وسپني يا د کاڼي نه ؤ.

**ودعهم**: **فتح يفتح** نه ودع د پريخودلو يا د منع کيدلو په معنی دی. يعنې خلک دې د جمعې مونځ د پريخودلو نه خامخا منع شي. ګيني د هغوی په زړونو باندې به الله تعالی د جباريت مهر ولګوي. بيا به دا خلک په غفلت کې پراته وي او بيا په عذاب کې اخته شي. د جمعې د فرضيت که څوک انکار وکړي نو هغه کافر دی او که د سستی په وجه يې پريږدي نو هغه فاسق دی. لاندې د دې نه هم ډير سخت وعيدات راتلونکي دي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د درې جمعو پريخودلو سره په زړه مهر ولګي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ أَبِي الْجَعْدِ الضَّمْيْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ |
| ابی الجعد ضميري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: څوک چې پريږدي درې جمعې |
| تَهَاوُنًا بِهَا طَبَعَ اللهُ عَلَى قَلْبِهِ (وَرَوَاهُ مَالك، عَن صَفْوَان بن سليم وَرَوَاهُ أَحْمد، عَن أبي قَتَادَة) (۱) |
| فقط د نارستی په وجه جمعې پريږدي. الله تعالی به د هغې په زړه باندې مهر ولګوي. |

**توضيح** : **تهاوناً**: يعنې د ناراستی په وجه يې درې جمعې پريخودلي نو د هغه سړي په زړه باندې به د نفاق مهر ولګولی شي او که دانکار په صورت کې يې پريخودو نو په دې به هغه سړی کافر شي (المرقات ۳/۴۶۶)

## په غير د عذر نه د جمعې مونځ پريخودلو په وجه صدقه کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ |
| سمرة ابن جندب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کوم سړی چې پريږدي جمعه |

---

(۱) أخرجه أبو داؤد ۱/۶۳۸، رقم الحديث ۱۰۵۲، سنن الترمذي ۲/۳۷۳، رقم الحديث : ۵۰۰، نسائي ۳/۸۸، رقم الحديث: ۱۳۶۹، ابن ماجه ... رقم الحديث: ۱۱۲۵، دارمی ۱/۴۴۴ رقم الحديث ۱۵۷۱، مسند أحمد ۳/۴۲۴

| مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِينَارٍ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَبِنِصْفِ دِينَارٍ. (رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه). [۱] |
|---|
| په غیر د عذر نه نو په کار ده چې یو دینار صدقه ورکړي او که یو دینار نه وي نو نیم دینار صدقه دې ورکړي. |

**توضیح**: یعني که چا د ناراستۍ په وجه د جمعې مونځ پریخودو نو د کفارې په توګه هغه ته یو دینار صدقه کول په کار دي خو که چرې سړي غریب وي نو نیم دینار دې صدقه کړي. نن سبا یو دینار د ۱۹۰ پاکستانی روپو ته نزدې دی. په دې صدقې سره خو د جمعې د پریخودو ګناه نه ختمېږي خو تخفیف به په کې راشي او د جمعې پریخودونکي دې بنه تنبیه کړل شي چې هغه د ګناه ارتکاب کړیدی او س یې جرمانه ورکوي. (المرقات ۳/۴۶۷).

## د جمعې اذان اوریدونکو باندې د جمعې مونځ کې شرکت کول واجب دي

| ﴿٤﴾ وَ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : قَالَ |
|---|
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کړې دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: کوم سړي |
| اَلْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد). [۲] |
| چې (د جمعې) اذان واوري نو په هغې باندې د جمعې مونځ کول واجب شي. |

**توضیح**: **من سمع النداء**: د ندا نه مراد دلته اذان دی. مطلب دا چې کوم خلک د جمعې په ورځ د مؤذن د اذان اواز واوري نو په هغه باندې په جمعه کې شرکت واجب شي او س هغه د جمعې نه بهر نه شي کیدی (المرقات ۳/۴۶۷).

شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې د دې حدیث مطلب دا دی چې کوم خلک د جمعې اذان واوري نو په هغوی باندې د جمعې تیاری او جمعه کې حاضري لازمه ده. (اشعة اللمعات ۱/۶۱۸).

ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې دا حدیث په ظاهري معنی باندې حمل کولو سره ډېر اشکالات پیدا کېږي. ځکه د دې به دا مطلب واخستلی شي چې جمعه په هغه سړي باندې واجب ده چې هغه په یو داسې مقام کې وي چرته چې د هغې او د ښار په مینځ کې دومره مسافت وي چې په ښار کې یو سړی په زور سره اواز وکړي نو تر هغه ځای پورې اواز ورسیږي. (المرقات ۳/۴۶۷).

د منیة المصلی په شرح کې لیکلي دی چې جمعه په هغه سړي لازم ده چې د ښار په چاپیریال کې په یو داسې ځای کې مقیم وي چې د ښار او د هغې په مینځ کې ابادي متصل وي او د کورونو تسلسل وي،

---

(۱) أخرجه أبو داؤد ۱/۶۳۸، رقم الحديث ۱۰۵۳، سنن النسائي ۳/۸۹، رقم الحديث ۱۳۷۲، ابن ماجه ۱/۳۵۸، رقم الحديث ۱۱۲۸، مسند أحمد ۵/۸

(۲) أخرجه أبو داؤد ۱/۶٤۰، رقم الحديث ۱۰۵٦، دار القطني ۲/٦، رقم الحديث ۲، باب الجمعة على من سمع النداء

هغه که اذان واوري او که نه. او که د هغې د ښار په مینځ کې پټې ځرځایونه او یا داسي نور څه حائل وي نو په هغې باندې د جمعې مونځ واجب نه دی اګر که هغه اذان واوري. (المرقات ۳/۴۶۷).
دا توجیه او تعبیر دیر ښه دی خو د دې آخري جمله چې اذان واوري او که نه. نو داد حدیث سره بالکل معارض ده چې د قبلولو وړ نه ده خو که چیرې داسي حائل وي چې په هغې تیریدل مشکل وي مثلاً لوی نهر یا دریاب او یا بل څه وي.
بهرحال کوم سړی چې اذان واوري نو په هغې باندې د جمعې حاضري لازم ده. ځکه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کوم سړی اذان واوري نو په هغې باندې واجب ده چې په جمعه کې شرکت وکړي او فتوی د همدغه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په قول باندې ده. په راتلونکو حدیثونو کې هم دغه مسئله راروانه ده. (المرقات ۳/۴۶۷).

## په کومو خلکو باندې د جمعې په مونځ کې شرکت کول واجب دی؟

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ آوَاهُ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: د جمعې مونځ په هغه چا فرض دی چې تیره کړي |
| اللَّيْلُ إِلَى أَهْلِهِ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ) وَقَالَ: هٰذَا حَدِيث إِسْنَاده ضَعِيف. (۱) |
| شپه په خپل کور. امام ترمذي دا روایت نقل کړی او ویلي یې دي چې ددې حدیث اسناد ضعیف دی. |

**توضیح**: **آواه**: یعني یو سړی چې کله په ښار کې جمعه ادا کړی او کور ته روان شي او د شپې خپل کور ته ورسیږي نو په داسي ځایونو کې وسیدونکي مسلمان باندې په جمعه کې شرکت کول واجب دی د هغه مونځ په خپل مقام کې د جمعې نه بغیر د غرمي په وخت کې جائز نه دی. (المرقات ۴۶۷-۳/۴۶۸).
دلته دوه جدا جدا مسئلي دې چې په هغې کې د اختلاط نه بچ کیدل ضروري دي. یو مسئله خو دا ده چې هغه کوم ځایونه دې چرته چې جمعه ویل صحیح او د هغې ادا کول جائز دي آیا د جمعې د صحت دپاره د ښار کیدل شرط دی او که لوي کلي ضروري دی یا باهر به ابادۍ کې جمعه صحیح ده. که هغه ښار وي یا لوي کلی وي او که وړوکی کلی وي. دا مسئله صاحب مشکوة نه ده چیړلي حال دا چې ددې دپاره په بخاري کې "قرية جوائي" موجود دی چې د هغې نه بحث راوځي مګر تعجب دی چې صاحب مشکوة دې طرف ته توجه نه ده ورکړي. زه به دا مسئله په مختصره توګه ذکر کړم چې لوستونکي ته څه فایده وشي.
دلته دویمه مسئله دا ده چې په کومو ځایونو کې جمعه کیږي مثلاً ښار دی یا لوئي کلی دی نو د هغې

---

(۱) اخرجه الترمذي ۳۷۶/۲، رقم الحديث: ۵۰۲.

د آبادۍ دننه وسیدونکو خلکو باندې خو شرکت واجب دی. په دې کې اختلاف نشته دی خو چې کوم خلک نژدې نژدې وسیږي یا لوي کلي ته نژدې وسیږي. هغوی په څومره مسافت کې د جمعې د پاره حاضري ضروري او واجب ده. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او په یو قول کې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کوم سړی د جمعې اذان واوري نو په هغې باندې د جمعې حاضري واجب ده. ګینې نه ده. مګر د اذان د پاره شرط دا دی چې هغه په اوچت ځای باندې وي او خلکو ته په رسیدلو کې څه مانع نه وي مثلاً د هوا تیزوالی بل طرف ته نه وي چې خلکو ته اواز نه رسیږي. (المرقات ۳/۴۶۷).

امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو سړی د جمعې مونځ کولو نه وروسته تر شپې خپل کور ته رارسیدلی شي نو په هغې باندې په جمعه کې شرکت کول فرض دی. (المرقات ۳/۴۶۷).

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کوم سړی د ښار په اطرافو او غاړو او چاپیریال کې وسیږي نو په هغې باندې جمعه فرض ده. مثلاً په کومو اطرافو کې چې د حکومت د خلکو دفترونه وي، محبس او ولسوالي او حکومتي پوستې وي، نو داسي مقامات د ښار سره نژدې دي. په داسي مقاماتو کې چې کوم خلک وسیږي په هغوی باندې جمعه فرض ده. (المرقات ۳/۴۶۷).

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د دې حدیث نه مخکې د حدیث نمبر ۳ نه استدلال کړی دی. چې په هغه باندې په واضحه توګه باندې په اذان اوریدلو سره جمعه کې حاضریدلو د پاره شرط ثابت کلی شوی دی. امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړیدی چې په هغې کې په واضحه توګه باندې تر شپې پورې کور ته د رارسیدلو ذکر دی. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د دې دواړو حدیثونو نه د ښار اطراف او غاړو او عوالی او توابع د ښار مراد دي. چې د مقصد د واضحه کولو د پاره دا حدیث دی. چې څوک اذان واوري او د همدغې مقصد بیانولو د پاره دا تعبیر دی چې د جمعې مونځ کولو نه وروسته کور ته راورسیږي. د دېنه مخکې چې د حدیث کومه توضیح شوي ده په هغې کې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ مسلک بیان شوی دی. ځکه که د هغه حدیثونو نه عوالی او چاپیریال مراد وانغستلی شي نو ډیر امکان لري چې د بیخي د ښار په مینځ کې یو سړی اذان وانوري نو آیا په هغې باندې به جمعه نه وی؟ تر شپې پورې کور ته د رارسیدلو فاصله هم دومره وي چې ترته چې د ښار سره پیوسته او چاپیریال واقع وي. معلومه شوه چې په دې دواړو حدیثونو کې چې کوم تحدید او تعین دی دا په حقیقت کې د ښار د چاپیریال او د ملحقات ذکر کولو یو تعبیر دی.

**په کلي کې د جُمعې حکم**: صاحب مشکوة اګرکه دې مسئلې طرف ته اشاره نه ده کړې خو د ډیرې فائدې په غرض یې زه لږ تفصیل لیکم: د ټولو نه اول په دې خبره پوهیدل په کار دي چې د ټولو فقهاؤ او متبوعینو په نزد د جمعې د ادا کولو د پاره څه شرائط دي د شرائطو نه بغیر غیر مقلدینو یو هم د جمعې

د فرضيت خبره نه ده کړي. او س صحت ادا د جمعې د پاره هغه شرطونه څه دي چې په هغې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد په هر هغه کلي کې جمعه جائز ده چرته چې **صيفًا وشتاءً** څلوېښت کورونه اباد وي او څلوېښت عاقل بالغه د جمعې په مونځ کې شريک شي. که ۳۹ شريک نو جمعه صحيح نه ده، د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد چې په کوم کلي کې **صيفًا وشتاءً** ۵۰ کورونه اباد وي نو په هغې کې جمعه جائز ده ګيني نه ده او ابادي هم متصل وي. غير مقلدين وايي چې جمعه په هر ځاې کې فرض ده. د کوم ښار يا د کلي او يا د نور څه شرط نشته دی. زمونږ بدعتيان هم داسي وايي. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د جمعې د ادا کولو دپاره د ښار شرط لازم دی. او که ښار نه وي نو کم نه کم د لوي کلي کيدل شرط دی. د دېنه بغير په وړو کي کلي يا بانډو کې جمعه جائز نه ده، د احنافو د ائمؤ د ښار په تعريف کې ډير اقوال دي. او د ښار ټول تعريفات په حقيقت کې رسومات دي. يعنې د پوهې د پاره د عرف عام د لاندې مختلف تعبيرات دي. د غه تعبيرات وګورئ :

۱- د احنافو په نزد د ښار يو تعريف دا دی چې ښار هغه وي چرته چې مفتي وي يا قاضي وي. چې د دين په احکامو او حدودو په تنفيذ باندې قدرت لري. او هلته دومره ابادي وي لکه څومره ابادي چې په منی کي وي. خلاصة الفتاوی کې يې همد غه تعريف ته قابل اعتماد ويلی دی. خو د تنفيذ احکام نه مراد دا دی چې په هغې باندې قدرت وي. بالفعل نافذول شرط نه دی.

۲- د ښار دويم د تعريف دا دی چې د ښار اطلاق په غټ ښار باندې کېږي. چرته چې بازار وي او داسي حاکم وسيږي چې د متو په زور د ظالم نه د مظلوم حق اخستلی شي او خلک په خپلو مسائلو کې هغې ته رجوع کوي. صاحب بدائع دا تعريف د ټولو نه ښه او صحيح ګڼلی دی.

۳- د ښار دريم تعريف دا دی چې ښار هغه ځاې وي چې هلته دومره خلک وي چې کچرې ټول خلک د علاقي ټولو جوماتونو نه په يو لوي جومات کې راغونډ شي او په هغه جومات کې راځی نشي. صاحب شرح وقايه دا تعريف راجح ګڼلی دی.

۴- څلورم تعريف دا دی چې ښار هغه دی چرته چې بازار او کوڅې وي او دومره ډيره ابادي وي چې هلته د خلکو د ورکيدلو خطر وي او د ضرورت ټول شيان پوره کېږي.

۵- ځېنو دا تعريف کړی دی چې ښار هغه دی چې هلته لس زره (۱۰۰۰۰) خلک وي.

۶- ځېنو دا تعريف کړيدی چې ښار هغه ځاې دی چې چرته هره ورځ يو انسان پيدا کېږي او مړ کېږي.

۷- ځېنو دا تعريف کړيدی چې ښار هغه دی چې که چرته يو طاقتور دښمن ناساپه حمله وکړي نو د هغه ښار خلک خپله د هغې دفاع کولی شي.

۸- حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ دا تعریف کړیدی چې ښار هغه ځای وي چرته چې سرشمیره د اعتبار نه کم او ډیر درې زره (۳۰۰۰) سړي وسیږي. (بهشتي زیور)
۹- مفتي الهند حضرت مولانا مفتي کفایت الله صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې د درې زره خلکو په ځای که یونیم زره (۱۵۰۰) خلک هم وي. مګر ټیلیفون موجود وي. کولال، نجار، لوهار او دهوبي موجود وي نو په داسي ځای کې جمعه صحیح ده.
فقهاؤ لیکلي دي چې د آبادی نه مراد متصله آبادي ده. په مینځ کې نهر یا پټي او نور څه حائل نه وي.
**دلائل**: جمهورو ائمؤ د قرآن عظیم د دې آیت نه استدلال کړیدی:
**﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ (جمعه: ۹)**
طرز استدلال داسي دی چې فاسعو د امر صیغه ده. په دې کې د ښار یا د لوي کلي څه قید نشته دی.
لهذا جمعه د څه شرائطو سره هر ځای کې ضروري ده. نزدې نزدې همدغه شان استدلال غیر مقلدینو هم کړیدی او د صوبه سرحد په کلیوالو کې د جمعه ی اداکولو والااهل بدعت هم دغه شان استدلال کوي.
۲- د ائمه ثلاثۀ دویم دلیل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه حدیث دی چې د هغې تخریج امام ابو داؤد رَحِمَهُ اللّٰهُ کړیدی. اګر که صاحب مشکوة هغه نه دی ذکر کړی. د هغه حدیث الفاظ دا دي: **ان اول جمعة جمعت في الإسلام بعد جمعة جمعت في مسجد رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بالمدينة لجمعة جمعت بجواثى قرية من قرى البحرين. (رواه ابو داؤد:۲۸۰)**
دا حدیث ذ الفاظو د کمي او ډیروالي سره امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ هم په خپل کتاب کې ذکر کړیدی. په دې حدیث کې د "قرية" لفظ راغلی دی. چې د کلي په معنی کیدی. لهذا د ښار ضرورت نشته دی.
۳- د ائمه ثلاثۀ دریم دلیل د عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ یو فرمان دی چې هغې صحابؤ ته یې خط ولیکلو الفاظ یې دا دي: **عن ابي هريرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ انهم كتبوا الى عمر يسئلون في الجمعة فكتب عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ان جمعوا حيث ما كنتم. (بيهقي و مصنف ابن ابي شيبة)**
۴- د ائمه ثلاثۀ څلورم دلیل د ابوداؤد شریف دلیل دی چې حضرت اسعد بن زراره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په **نقيع الخضمات** کې جمعه قائمه کړه. "**وهي قرية على ميل من المدينة**" معلومه شوه چې په قریه او کلي کې جمعه جائز ده. احنافو په کلي کې د جمعې د نه صحیح کیدلو باندې ډیر دلائل را جمعه کړیدي. د یو څو ذکر به کافي وي.

۵- د احنافو اولنى دليل د قرآن آيت دى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ (جمعه: ۹)
طرز استدلال داسي دى چې په دې آيت کې ډير اشارات دي چې د هغې اشاره ملاويږي چې د صحت جمعې د پاره دا آيت مطلق نه بلکي مقيد دى او ډير قيودات او د شرائطو نه وروسته د جمعې قائمول صحيح کېږي. مثلاً "الذين" کې کم نه کم درې سړي راځي. "اذا نودي" کې يو اذان کونکى ذاغلو "يوم الجمعة" کې يو معتدبه او د قابل ذکر اجتماع طرف ته اشاره ده "فاسعوا" کې کم نه کم درې سړي راغلل "الى ذکر الله" نه اشاره ملاويږي چې هلته د مخکې نه په جومات کې يو نه يو ذکر کونکى موجود وي.
"وذروا" هم د جمعې صيغه ده. چې د هغې نه کم نه کم درې مراد کيدلى شي "البيع" دا لفظ د هغه بازار طرف ته اشاره کوي چرته چې پرق پروق وي او تاجرانو ته حکم کېږي چې بازار بند کړى.
د دومره اشاراتو نه وروسته دا نه شي ويل کيدې چې د جمعې د پاره د څه شرط ضرورت نشته دى. همدغه وجه او همدغه مجبوري ده چې ائمه ثلاثۀ هم د جمعې د قيام د پاره فقط دشته او څنګل کافي نه دى منلى بلکي همغه هم د څلويښتو کورونو او د نفرو په جماعت کې شامليدلو د پاره شرط ټاکي. دلته تعجب فقط په غير مقلدينو او په اهل بدعتو حضراتو باندې دى چې هغوى ته دومره خداى اشاري نه ښکاري او هغه هم بغير د څه قيد نه په غر يا په غونډۍ باندط جمعه لکه د مسلمانانو عظيمه اجتماع او د اسلام شوکت په بى دردۍ سره ذبح کوي.
۲- د احنافو د ائمو دويم دليل په بخارى او مسلم کې د حضرت عائشه رضي الله عنها حديث دى چې د هغې الفاظ دا دي: كان الناس ينتابون الجمعة من منازلهم والعوالى. (بخارى باب الجمعة)
دا صريح حديث دى چې د د ښار او د کلي په خلکو باندې جمعه نشته دى ګيني د عوالى مدينه خلک به کله هم نمبر په نمبر نه راتلى بلکي فرض په صورت کې به ټول په يو ځاې حاضر شوى وى او نبي کريم صلى الله عليه وسلم پسي به يې د جمعې مونځ کړى وى او بيرته به خپلو بانډو ته تللى. او د دې حديث مطلب دا دى چې د مديني د اطرافو او بانډو نه به خلک نمبر په نمبر راتلل.
۳: عن ابن عباس رضي الله عنه قال ان اول جمعة جمعت بعد الجمعة في مسجد رسول الله صلى الله عليه وسلم في مسجد عبدالقيس بجواثى من البحرين. (بخارى ص: ۱۲۲)
دا حديث په دې خبره باندې واضح دليل دى چې د مسجد نبوى نه وروسته اوله جمعه د بحرين په جواثى کې قائم شوى وُو. کچرې جمعه په ښار يا کلي کې کيدلى نو د مديني او د ښار په مينځ کې په سوونو کلي اباد وُو. په هغې کې ولې ونه شول او فقط په بحرين کې هغه وخت جمعه قائمه شوه کله چې

۸ھ کې دا ښار د اسلام د لیرغونو د لاندې راغلو. د سوچ مقام دی په دومره ډیره موده کې دمره ډیرو کلو کې دا فرضیه د صحابؤ په دور کې بلکې په عهد نبوي کې ولې د نظر لاندې کړلی شوه؟

۴- د ائمه احنافو څلورم دلیل د حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی چې د هغې الفاظ دا دي: **عن حذيفة قال ليس على اهل القرى جمعة فانما الجمعة على اهل الامصار.** (رواه ابن ابي شيبة مرسل)

دا واضحه دلیل دی او د جمهورو په نزد دا حدیث مرسل دی.

۵- **عن علي قال لا جمعة ولا تشريق ولا فطر ولا ضحٰى الا في مصر جامع او مدينة عظيمة.** (رواه عبدالرازق في مصنفه و ابن ابي شيبة)

دې روایت ته اګرچې امام نووی رَحِمَهُ اللهُ او داسې نورو ضعیف ویلی دی چې د دې مرفوع طریق نه دې ملاؤ شوي. خو علامه عیني رَحِمَهُ اللهُ په جواب کې ویلی دې چې په حدیث کې صحیح مرفوع طرق موجود دی او د اثبات رفع په انکار رفع باندې مقدم کېږي. که دا حدیث مرفوع هم وي نو غیر مدرک بالقیاس د حکم متعلق روایت مرفوع د حدیث په حکم کې راځی. لهذا د حضرت دا روایت مرفوع د حدیث په حکم کیدی.

۶- د احنافوّ د ائمؤ یو مضبوط دلیل دا هم دی چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په زرګونو ښارونه فتح کړل خو جمعه یې په ځینې ځینې ځایونو کې قائمه کړه. نو شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شپږدیرش (۳۶) ښارونه فتح کړل خو جمعه یې فقط نهه سوه (۹۰۰) جامع جوماتونو کې قائمه کړه. همدغه شان کله چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مدینې طرف ته هجرت وکړو نو بین عمرو بن عوف په کلي کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو لس (۱۱) یا ددې نه هم ډیرې ورځې تیرې کړلی او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قریه په وجه هلته په مسجد قباء کې جمعې مونځ ونه کړلو.

همدغه شان د عرفات په میدان کې د جمعې ورځ وه. څلویښت زره (۴۰۰۰۰) نفوس قدسیه یا د دې هم ډیر د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ؤو. او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هلته د جمعې مونځ ونه کړلو. د هغې وجه فقط همدغه کیدلی شي چې عرفات یوه بانډه ده. مزدلفه کلی دی. منی کلی دي. نن هم هلته د جمعې مونځ نه کېږي.

**جواب:** د جمهور فقهاؤ د اولني دلیل د قرآني آیت جواب دا دی چې دا آیت مطلق نه دی بلکې مشروط دی او مقید دی. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د صحابؤ په تعامل سره هغه د ښار یا د لوئي کلي سره مقید کړیدی. هسې هم په دې آیت کې ډیر داسې اشارات موجود دی چې د هغې په موجودګۍ کې دا آیت مطلق نه شي کیدلی. لکه څنګه چې د ائمه احنافو دلیل نمبر ۱ د لاندې تفصیل لیکلی شوی دی.

د جمهورو د دویم دلیل جواب دا دی چې په بحرین کې د واقع جوائی هیڅ کلی نه ؤو. بلکې هغه غټ

ښار ؤ. او هلته د تجارت لويه منډي قائمه وه. هغه ويه بندرګاه وه. کلي چرته ؤ؟ او که دا حضرات دا وايي چې په دې باندې د قريې اطلاق شوى دى نو اهل لغت قريه د کلي سره خاص نه ده منلي بلکې د قريه اطلاق هم په کلي باندې کېږي. لکه په قرآن کې ﴿عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ﴾(زخرف:۳۱) کې طائف او مکه د قريې په نوم سره ياد کړلى شوي ده حال دا چې دا غټ ښار دى.

﴿وَاسْأَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِي كُنَّا فِيهَا﴾ (يوسف:۸۲) کې د قريه اطلاق د مصر په هېواد باندې شوى دى. او مصر قريه نه ده بلکې مصر ؤ. د انصاف تقاضا دا ده چې د جواشي والاحديث د احنافو دليل خو دى ځکه ټولي باندې پريخودل او په جواثى کې جمعه قائمول د دې ښار کېدلو دليل دى.

د جمهورو د دريم دليل جواب دا دى چې د "**حيث ما کنتم**" عموم د نورو نصوصو په وجې سره به خاص کول غواړي. مطلب دا چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې تاسو چرته په ښار کې يې نو جمعه قائمه کړى.

**دويم جواب**: دا دى چې هغه وخت حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه مقام والي ؤ. چرته چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمان ليږلى ؤ.

د جمهورو د څلورم دليل جواب دا دى چې حضرت اسعد بن زراره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مديني په عوالى کې کومه جمعه قائمه کړې وه دا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم باندې نه وه بلکې تر اوسه پورې جمعه فرض شوې هم نه وه. هغې په خپل اجتهاد سره او صائب رائى او په روحاني انکشاف سره د هغې ادراک کړى ؤ او قائمه يې کړه.

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په فتح الباري کې ليکلي دي: **جمع اهل المدينة قبل ان قدمها رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وقبل ان لزل الجمعة** يعنې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راتګ خو لا لري خبره ده چې تر اوسه پورې جمعه هم فرض شوې نه وه. بهرحال په باندو کې جمعه قائمول د جمعې توهين دى. او سلف صالحينو د عملي نموني خلاف ورزي ده.

خو په کومو علاقو کې چې سرکونه موجود وي، بجلي وي، ټيليفون او شخصي مکتبونه او نور ضروريات موجود وي نو هلته د په جمعه کې سختي کول پکار نه ده. د جمعې په اقامت سره امت ته ډېره لويه فايده رسيږي. عوامو ته د حق اواز رسيږي او د اسلام د عظمت بيرغ او چتيږي.

## هغه خلک چې په هغوى باندې جمعه فرض نه ده

| ﴿۶﴾ وَعَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اَلْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ |
|---|
| طارق ابن شهاب راوي دى وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: جمعه حقه ده او جمعه کول واجب ده |

| عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فِي جَمَاعَةٍ إِلَّا عَلَى أَرْبَعَةٍ: عَبْدٍ مَمْلُوكٍ أَوِ امْرَأَةٍ أَوْ صَبِيٍّ أَوْ مَرِيضٍ ". (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ) |
|---|
| په هر مسلمان باندې په غیر د څلورو کسانو نه: غلام چې د چا په ملک کې وي، ښځه، ماشوم او مریض |
| وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي وَائِلٍ. (۱) |
| (چې په دوي باندې جمعه واجب نه ده). |

**توضیح**: **حق واجب**: د دې دواړو الفاظو نه د فرض اراده کړلی شوي ده. ځکه د جمعې مونځ د کتاب الله او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د واضحه نصوصو نه فرض ده یعنې د ذکر شوي کسانو نه غیر په ټول انسانانو باندې جمعه فرض ده.(المرقات ۳/۴۶۸).

**في جماعة**: یعنې په جماعت سره فرض دی ځکه جمعه په انفرادي توګه باندې قائم کیدلې نه شي. (المرقات ۳/۴۶۸).

**عبد**: دا چې غلام د بل په حق کې وي او د بل په ملکیت او تصرف کې وي نو ځکه په هغې باندې جمعه فرض نه ده. په ازادو خلکو باندې فرض ده. (المرقات ۳/۴۶۸).

**امرأة**: په ښځه باندې خو جمعه یو په دې وجه نه ده فرض چې هغه د خپل خاوند په خدمت کې وي. کورنۍ نظام د هغې ذمه واري ده. د جمعې په مونځ کې د شرکت په وجه دا حقوق ضایع کیږي. نو ځکه په هغې باندې جمعه فرض نه ده.

ددې نه معلومه شوه چې په ښځو باندې د مړونو خدمت څه د رضا معامله نه ده بلکې په هغوی باندې فرض ده. او د هغوی ذمه واري ده. جمعې له به نه ځی. مګر خدمت به کوي. په ښځه باندې د جمعې شرکت په دې وجه هم فرض نه دی چې د جامع جوماتو کې او په لارو کې د ښځو د سړو سره د اختلاط خطره ده. د جمعې په ورځ د سړو رَش وي. نو ځکه د ښځو شرکت د فتنې او د فساد ذریعه جوړیدلی شي نو ځکه ضروري نه ده. (المرقات ۳/۴۶۸).

**صبي**: دا چې ماشوم غیر مکلف وي نو ځکه په هغې باندې جمعه فرض نه ده. (المرقات ۳/۴۶۸).

**مریض**: د مریض نه مراد هغه مریض سړی دی چې هغه په یو داسې مرض کې اخته وي چې د هغې په وجه هغه په جمعه کې شرکت نه شي کولی یا شریک کیدل د هغې د پاره مشکل وي. د ماشوم په حکم کې لیوني او بې عقل سړی هم دی په هغه باندې هم د ماشوم په شان جمعه فرض نه ده همدغه شان په ګوډ

---

(۱) أخرجه أبوداود ۲/٦٤٤، رقم الحديث : ۱۰٦۷، دار القطني ۲/۳، رقم الحديث ۲، باب من تجب عليه الجمعة .

او شل باندې د جمعې مونځ فرض نه دی. (المرقات ۳/۴۶۸).
دغه شان په هغه تیماردار باندې هم د جمعې مونځ فرض نه دی چې هغه د داسې ناروغه خدمت وي که دا لاړ شي نو مریض ته نقصان رسیدلی شي، دغه شان په مسافر باندې هم د جمعې مونځ نشته، هو! که دا خلک جمعې حاضر شو نو جمعه لوستل جائز دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د جمعې پریخودونکي ته سخت وعید

| ﴿۷﴾ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ لِقَوْمٍ |
|---|
| ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل د هغه خلکو په باره کې کوم چې |
| يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ : لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ رَجُلًا يُصَلِّي |
| د جمعې د مونځ نه پاتې کېږي (یعنې د جمعې مونځ نه کوي) زه سوچ کوم چې زه یو سړي ته ووایم چې مونځ |
| بِالنَّاسِ ثُمَّ أُحْرِقَ عَلَى رِجَالٍ يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ بُيُوتَهُمْ. (رَوَاهُ مُسلم). [۱] |
| ورکړي خلکو ته او بیا زه (لاړ شم) د هغه خلکو کورونه او سوزوم چې (بغیر د عذر نه) جمعه پریږدي. |

**توضیح**: د دې حدیث په شان په **باب الجماعة** کې حدیثونه تیر شوي، دا حدیث د جمعې د پریخودونکو په باره کې دی. خو د حدیثو شارحین وایي چې دا حکم د جمعې سره خاص نه دی بلکې د دې نه مخکې عمومي حدیثونو کې دا وعید هغه خلکو ته هم اورول شوی دی چې هر یو مونځ وي هغه بغیر د عذر نه پریږدي. ګویا کې څنګه چې دا حکم د جمعې د پریخودونکي د پاره دی.
همدغه شان دا حکم د عام مونځونو پریخودونکو د پاره هم دی. نبي کریم صلی الله علیه وسلم خواهش ظاهر کړیدی او په هغې یې عمل ونه کړو. د دې ډیر وجوهات دي.

ما هلته په تفصیل سره په توضیحات کې لیکلي دي په **باب الجماعة** کې وګورئ. په دې حدیث کې د هغه خلکو د پاره ډیر سخت وعید دی چې کوم د جمعې مونځ په جماعت سره د شرکت کولو نه پاتې کېږي.

(۱) اخرجه مسلم ۱/۴۵۲، رقم الحدیث ۲۵۴-۶۵۲

## بغیر د شرعي عذر نه درې جُمعې جماعت پرېخودونکی منافق دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ |
| ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل : څوک چې پرېږدي مونځ د جمعې |
| مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ كُتِبَ مُنَافِقًا فِي كِتَابٍ لَا يُمْحَى وَلَا يُبَدَّلُ. وَفِيْ |
| بغير د عذر نه هغه په هغه کتاب کې منافق ليکلی کېږي. چې هغه کله هم نه ورانيږي. او نه بدليږي. او په |
| بَعْضِ الرِّوَايَاتِ ثَلَاثًا . (رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ) (۱) |
| ځېنو رواياتو کې دا دي چې: کوم سړی درې جمعې پرېږدي (دا وعيد د هغوی د پاره دی) |

**توضيح : من غير ضرورة:** يعني که د شرعي عذر نه په غير چا مسلسل درې جمعې پرېخودلي نو هغه به داسي رجسټر کې منافق وليکلی شي چې په هغې کې ليکلې شوي شيان نه ورانيږي دا سړی به عملي منافق شي ځکه اعتقادي منافق به هغه وخت ؤ کله چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ژوندی ؤ او وحي نازليده او نبي کريم صلی الله علیه وسلم د مرګ نه وروسته د دنيا د تللو نه پس هغه عملي منافقان پاتې شول چې د هغې تذکره اکثر په قرآن کې کېږي. (المرقات ۳/۴۷۰).

**في کتاب:** د دې نه مراد اعمال نامه ده.

**ثلاثا:** يعني د بحث د لاندې حديث کې د يوې جمعې د پرېخودلو ذکر دی خو ځېنو نورو رواياتو کې د درې جمعو د پرېخودلو د وعيد خبره شوې ده. سوچ کوونکو ته سوچ په کار دی چې څومره سخت وعيد دی د جمعې په پرېخودلو باندې او د هغوی د طرف نه په جمعه کې څومره ناراستي ده؟

## د تجارت يا د غفلت په وجه د جمعې د پرېخودلو نقصان

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ |
| جابر رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل: څوک چې ايمان او عقيده لري د الله تعالی |
| وَ الْيَوْمِ الْآخِرِ فَعَلَيْهِ الْجُمُعَةُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِلَّا مَرِيضٌ أَوِ امْرَأَةٌ أَوْ مُسَافِرٌ |
| په ذات او صفاتو او په آخرت باندې په هغه باندې د جمعې مونځ کول فرض دی بغير د مريض. ښځې. مسافر. |

(۱) أخرجه الشافعي في مسنده ص ۷۰

| اُسْتَغْنٰی | فَمَنِ | مَمْلُوْكٌ | اَوْ | مَجْنُوْنٌ | اَوْ | صَبِيٌّ | اَوْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

ماشوم او لیوني او غلام نه (چې په هغوی باندې جمعه فرض نه ده) لهذا کوم سړی چې بې پروایي اختیار

| اللهُ | وَ | عَنْهُ | اللهُ | اسْتَغْنٰی | تِجَارَةٍ | اَوْ | بِلَهْوٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

کړي د مونځ د جمعې نه او په لوبو او تجارت کې مشغول شي نو الله تعالی د هغه نه بې پروا دی او الله تعالی

غَنِيٌّ حَمِيْدٌ .(رَوَاهُ الدار قطني). (۱)

بې پروا تعریف شوی دی.

**توضیح : بلهو**: یعنې که یو سړی په لوبو یا تجارت او په نورو کارونو کې د مشغولیت په وجې سره د جمعې په مونځ کې بې پروایې کوي او د جمعې د خریدلو د هغې سره څه احساس نه وي نو دا سړی خپل نقصان کوي. ځکه الله تعالی د هغې نه بې نیازه شي او هغه د خپل رحمت نه وباسي او هغه پریږدي. (المرقات ۳/۴۷۰).

نو د داسې سړي په تباهۍ او بربادۍ کې څه شک کیدلی شي دده دنیا هم تباه شوه او آخرت یې هم برباد شو. الله تعالی دې مونږ د داسې حالت نه وساتي اللهم آمین



(۱) اخرجه الدار القطني ۳/۲ رقم الحديث : ۱ ، باب من تجب عليه الجمعة .

# باب التنظيف والتبكير

## ځان صفاکول او د جمعې د پاره دوختي تللو بيان

**تنظيف**: د **نظافة** نه دى پاکي کولو ته وايي ددې نه د جمعې د ورځي غسل کول او د غسل په ذريعي سره بدن صفا کول، مسواک کول، بريت پاکول، نوکان غوڅول، د نامه لاندې ويختان اخوا کول، د ترخ ويختان پاکول او پاکي جامي اغوستل او خوشبو استعمالول مراد دي، چې دا ټول شيان د جمعې سنت اعمال دي. (المرقات ۳/۴۷۱).

**التبكير**: دا د **بكورة** نه دى سحر وختي راوتلو ته وايي دلته مراد د جمعې مونځ د پاره د جومات طرف ته وختي راوتل مراد دى يعنى د جمعې مونځ د پاره د مونځ په اول وخت کې تلل مراد دي. ځينې خلک په حرمينو شريفينو کې سحر وختي راشي، جانماز خور کړي او بيا باهر لاړ شي او د خطبي په وخت کې راشي. دا طريقه په هيڅ يو ځاې مناسب نه ده او نه مطلوب شرعي ده بلکې اکثر ددې نه خلکو ته ضرر رسيږي. که د وختي تللو د فضيلت حاصلولو د چا شوق وي نو په جوماتک کې دې خپله کيني او ذکر او فکر دې وکړي نه دا چې جانماز خور کړي او په خپله بهر ګرځي راګرځي. (المرقات ۳/۴۷۱).

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د جمعې د مونځ آداب

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَلْمَانَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَغْتَسِلُ رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَة |
| سلمان رضي الله عنه اوي دى وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چې د جمعې په ورځ ولامبي او |
| وَ يَتَطَهَّرُ مَا اسْتَطَاعَ مِنْ طُهْرٍ وَ يَدَّهِنُ مِنْ |
| خومره يې چې وس کېږي پاکي دې حاصله کړي او تيل ولګوي په خپل ځان (يعني په کور کې چې يې |
| دُهْنِهٖ أَوْ يَمَسُّ مِنْ طِيبِ بَيْتِهٖ ثُمَّ يَخْرُجُ |
| تکلفه وي) تيل ولګوي او د خپل کور عطر ولګوي او جومات ته رادروان شي او (جومات ته چې راورسيږي) |
| فَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ اثْنَيْنِ ثُمَّ يُصَلِّي مَا كُتِبَ لَهٗ |
| د دوؤ سړو په مينځ کې فرق ونه کړي او بيا مونځ وکړي څومره چې دده په تقدير کې وي (يعني د جمعې |
| ثُمَّ يُنْصِتُ إِذَا تَكَلَّمَ الْإِمَامُ إِلَّا غُفِرَ لَهٗ مَا بَيْنَهٗ |
| سنتو نفلونه يا قضا) او د امام د خطبه لوستلو وخت کې چپ کيني نو بخښلي کيږي ده ته ګناهونه په مينځ |

وَ بَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى .(رَوَاهُ البُخَارِيّ)[۱]

د دې جمعې او د تیره شوې جمعې په مینځ کې.

**توضیح**: **يتطهر**: دا همغه صفائي او پاکوالی دی چې د کوم تفصیل پاس تیر شو. (المرقات ۳/۴۷۲).

**دهنه**: یعنې کورنی تیل استعمال کړی یا داسې تیل او خوشبو وي چې مسلمانانو جوړه کړې وي او په هغې کې د حرام شیانو ګډوډ والی نه وي. کیدای شي چې د مسلمان او د مونځ ګزار د طرفه د دې تیل د اضافت مقصد همدغه وي نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې د دې د اضافت فایده ډیره معلومه شوي نه وه. نه خو نن سبا دومره سخت ضرورت محسوسیږي. ځکه په عطرو کې حرام جزیات شریک کړی کیږي. غیر مسلمه فابریکې د عطر جوړولو کارونه کوي او قصداً مسلمانان د ناپاکه کولو کوشش کوي.

او دا هم امکان لري چې د **من دهنه یا من دهن بیته** د اضافت قید اتفاقي او قید په واقعي توګه باندې وي چې په هغه زمانه کې تیل او عطر کورني ؤو. **والله اعلم** (المرقات ۳/۴۷۳).

**بین اثنین**: د دې جملې مطلب دا دی چې دوه سړي ناست وي او هغه اندیوالان او اهل محبت دې یا پلار او ځوي دی یا د یو بل نه د بیلیدلو او د ورکیدلو خطر وي او بل دریم سړی راشي او د هغوی په مینځ کې سره ددې نه چې ځای نشته دی دیکا ورکړي او کیني دا جائز نه ده. په حرمینو شریفینو کې په دې حدیث سړی ښه پوهیږي. (المرقات ۳/۴۷۳).

د حدیث دویم مطلب دا دی چې یو سړي ناوخته راشي او د خلکو د پاسه ښپې اړوي او مخکې ځي. هغه په بې پرواهۍ سره د دوه سړو په مینځ کې تفرقه پیدا کړي او خپله لاره جوړه کړي او مخکې ځي او خلکو ته ضرر رسوي. د دې کتنه هم په حرمین شریفینو کې ښه کیږي. خو دا ده که چیرې په مخکې صفونو کې ځای خالي ښکاري نو بیا د هغه سړي مخکې تلل جائز دې ځکه دا قصور د خلکو دی چې کوم شاته ناست دي. او مخکې ځایونه یې تش پریخي دي.

د حدیث شریف دریم مطلب دا کیدلی شي چې د دوه سړو په مینځ کې یې تفرقه او کرکه پیدا کړه.

**ثم ینصت**: چونکې په جمعه او اخترونو کې رَش وي نو هلته چپتیا د ټولو نه مهم شی دی ددې د پاره چې نظم و ضبط وساتل شي. نو ځکه د جمعې د زیاتي ثواب ګټلو د حصول د پاره دا بنیادي شرط کیخودلی

---

(۱) أخرجه البخاري رقم الحديث ۸۸۳، نسائي ۱۰۴/۳، رقم الحديث ۱۴۰۳، دارمي ۴۳۵/۱، رقم الحديث ۱۵۴۱.

شوي دي چې سړی په ژبي سره هم څه ؤو نه وايي بلکي چپ وسي تردې چې د نیکۍ خبره به هم نه کوي مثلاً چاته دا ويل چې چپ شه، دا امر بالمعروف دی مګر دا هم جائز نه دی . (المرقات ۳/۴۷۳).

**غفرله**: یعنې د دې جمعې نه تر بلي جمعې پورې به د هغه سړي ګناهونه اوبخښلی شي. ددې نه واړه ګناهونه مراد دي. او که ربښتني توبه وکړی شي نو غټ ګناهونه نه بخښلي کېږي ګیني کمزوري خو به شي. (المرقات ۳/۴۷۴).

**الجمعة الاخرٰی**: شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ لیکي چې تر بلي جمعې پورې نه مراد هغه جمعه ده چې ددې نه مخکې تیره شوي ده. ګویاکي د آخري مطلب او معنی دا ده چې یوه بله جمعه . دا ضروري نه ده چې هغه بله جمعه همغه وي چې وریسي راروانه ده بلکي تیره شوي هم کیدلی شي. دا توجیه شارحین ځکه کوي چې د مخکې راتلونکو حدیثونو پوهه په دې باندې موقوف ده.

**ثلاثة ايام**: د دې وجه دا ده چې یوي جمعې نه تر بلي جمعې پوري اووه (۷) ورځي دې او د دې امت یوه نیکي لس (۱۰) چنده ډیریږي. لهذا د جمعې یوه ورځ د لسو (۱۰) ورځو برابره کیدل په کار دي. نو ځکه په اووه ورځو باندې د درې ورځو ډیره ول ﴿مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ ددې نه پوره کړی شوي دی. (المرقات ۳/۴۷۵).

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنِ اغْتَسَلَ ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چاچې غسل وکړو او بیا جمعې ته راغلو |
| فَصَلَّى مَا قُدِّرَ لَهُ ثُمَّ أَنْصَتَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ ثُمَّ يُصَلِّيَ مَعَهُ |
| او چې څومره د هغه په تقدیر کې ؤ مونځ یې وکړو بیا د امام تر خطبې پورې چپ پاتې شو او د هغه سره یې مونځ |
| غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الجمعة الْأُخْرَى وَ فَضْلُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ .(رَوَاهُ مُسلم).(۱) |
| وکړو نو د دې جمعې نه تر تیره شوي جمعې پورې بلکې ددې نه درې ورځې ډیر د ده ګناهونه بخښل کیږي . |

## د جمعې په مونځ کې معمولي کار هم ناجائزه دی

| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چاچې اودس وکړو او ښه اودس یې |

---

(۱) أخرجه مسلم ۲: ۵۷۸، رقم الحديث ۲۶-۸۵۷

| ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَاسْتَمَعَ |
|---|
| وکړو (یعني داودس دآدابو سره) بیا جمعې ته راغلو او (که نزدې ؤنو) خطبه یې واوریدله او (که لرې ؤ |
| وَ أَنْصَتَ غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَ بَيْنَ |
| او خطبه یې وانوریدلی شوه) چپ پاتې شو نو بخښلې کیږي ده ته ګناهونه ددې (جمعې) او د تیره شوي |
| الْجُمُعَةِ وَ زِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَ مَنْ مَسَّ الْحَصَى فَقَدْ لَغَا. (رَوَاهُ مُسلم) (۱) |
| جمعې په مینځ کې بلکې ددې نه هم درې ورځې ډیر او چاچې کانړو له ګوتې وروړې نو هغه غلطي وکړه. |

**توضیح: مس الحصی:** کانړو له ګوتې وروړل ددې نه مراد دا دی چې چا په مونځ کې دا شغل وکړو چې د کانړو سره یې لوبې شروع کړې یعنې د سجدې د ځای نه یې د یو ځل په ځای بیا بیا کانړي لرې کول شروع کړل نو هغه فضول کار وکړه او چاچې غلطي وکړه د هغه د جمعې اضافي ثواب ضایع شو.

ددې نه د عربو او د عجمو هغه سلفي وروڼو ته تنبیه کیږي چې په مونځ کې ډیر څه کوي د بل جیبونو نه تشو پیپر راوباسي او پوزه پرې پاکوي او موبائل هم اوري او د مونځ په دوران کې اخوا دیخوا تلل او کله څوک خپل طرف ته راخکل دا د هغوی په نزد معمولي خبره ده. (المرقات ۳/۴۷۵).

ځینو شارحینو د دې حدیث دا مطلب اختسلی دی چې د خطبې په دوران کې یو سړی د خطبې د اوریدلو په ځای کانړو سره لوبې کوي دده ثواب ضایع شي، دا مطلب ډیر واضحه دی.

## د جمعې په ورځ اول وخت کې د راتلو فضیلت

| ﴿٤﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: إِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی، وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: چې کله ورځ د جمعې راشي نو |
| وَقَفَتِ الْمَلَائِكَةُ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ يَكْتُبُونَ الْأَوَّلَ |
| او دریږي فرښتې د جومات په دروازه نو کوم سړي چې جومات ته اول وخت کې راشي نو اول د هغه نوم لیکي |
| فَالْأَوَّلَ وَ مَثَلُ |
| بیا دده نه د وروسته راتلونکو نومونه لیکي او کوم سړی چې جومات ته په اول وخت کې راشي دده مثال |

---

(۱) اخرجه مسلم ۵۸۸/۲، رقم الحدیث: ۲۷-۸۵۷.

| ثُمَّ | بَدَنَةً | يُهْدِيْ | الَّذِيْ | كَمَثَلِ | الْمُهَجِّرِ |
|---|---|---|---|---|---|
| داسي دى لكه يو سړى مكي ته د قربانۍ دپاره يو اوښ راوليږي (چې د هغه ثواب ډير زيات وي) بيا دده | | | | | |

| بَقَرَةً | يُهْدِي | كَالَّذِي |
|---|---|---|
| نه وروسته چې كوم سړى راځي د هغه مثال داسي دى لكه يو سړى مكي ته د قربانۍ دپاره يوه غوا راوليږي | | |

| كَبْشًا | ثُمَّ |
|---|---|
| بيا دده نه وروسته چې كوم سړى راځي دده مثال داسي دى لكه يو سړى چې صدقه كې يوه ګډه وركړي. | |

| دَجَاجَةً | ثُمَّ |
|---|---|
| بيا دده نه وروسته چې كوم سړى راځي دده مثال داسي دى لكه يو سړى چې په صدقه كې چرګه وركړي. | |

| فَإِذَا | بَيْضَةً | ثُمَّ |
|---|---|---|
| بيا دده نه وروسته چې كوم سړى راشي نو دا په صدقه كې د هګۍ د وركونكي په شان دى او چې كله | | |

| الذِّكْرَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). (۱) | يَسْتَمِعُوْنَ | وَ | صُحُفَهُمْ | طَوَوْا | الْإِمَامُ | خَرَجَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| امام (خطبي دپاره منبر ته) راشي. نو هغه خپلي صحيفي راغونډي كړي او خطبه اوريدل شروع كړي. | | | | | | |

**توضيح : اذا كان:** دا **كان** تامه دى لهذا د دې د پاره د خبر ضرورت نشته دى.

**فالاول:** دا منصوب دى چې د "**يكتبون**" د پاره مفعول دى او "**فا**" د ترتيب د پاره دى.

**المهجر:** دا د باب **تفعيل** نه دى **تهجير** د **هاجرة** نه دى. د غرمي په وخت كې لمر د زوال وخت ته **هاجرة** وايي دلته په تادۍ او جلتي سره په اول وخت كې راتللو ته ويل شوي دي.(المرقات ۳/۴۷۶).

د دې حديث مطلب دا دى چې مثلاً دلمر د راختلو نه وروسته د جمعې وخت شي. اوس د هغه وخت نه تر د امام په ممبر باندې د ناستي پورې چې كوم وخت دى. هغه وخت فرښتو په پنځه وختونو كې تقسيم كړى دى. د همدغه پنځه وختونو بيان په دې حديث كې شوى دى. يعنې كوم سړى چې د دې وخت په اوله برخه كې راغلو نو ګويا كې هغه د بيت الله د قربانۍ د پاره د هديې او د صدقې او د خيرات په توګه اوښ راوليږلو او كوم سړى چې په دويمه برخه كې راغلو ګويا كې هغه د بيت الله د قربانۍ د پاره يوه غوا صدقه كړه او كوم سړى چې په دريمه برخه كې راغلو ګويا كې هغه يوه ګډه راوليږله او كوم سړى چې په

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۴۰۷، رقم الحديث : ۹۲۹، مسلم ۲/۵۸۷، رقم الحديث : ۲۴-۸۵۰، أبوداؤد ۱/۲۴۹، رقم الحديث : ۳۵۱، ترمذي ۲/۳۷۲ رقم الحديث : ۴۹۹، موطا امام مالک ۱/۱۰۱، رقم الحديث ۱، كتاب الجمعة ، مسند أحمد ۲/۲۵۹.

ځلورمه برخه کې راغلو ګویاکې هغه یوه چرګه صدقه کړه او کوم سړی چې په پنځمه برخه کې راغلو ګویاکې هغه هګۍ صدقه کړه. او د دې نه وروسته د صدقاتو دروازه بنده کړی شي ځکه امام راوځي خطبه شروع شي. اوس د انسانانو په شان فرښتي هم د خطبي د اوریدلو پابند شي. لهذا رجسټر بند کړلی شي او د خطبي د اوریدلو د پاره کیني. (المرقات ۳/۴۷۶).

## د خطبې په دوران کې په نیکیو سره امر او نهي د منکر نه هم منع ده

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چې کله دې وویل خپل خواکې ناست |
| يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَنْصِتْ وَ الْإِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱) |
| سړي ته چې "چپ شه" د جمعې په ورځ چې کله امام خطبه وايي ، نو تا خوشې کار وکړو. |

**توضیح : فقد لغوت:** ښکاره خبره ده چې یو سړی بل سړي ته په زور سره وايي چې چپ شه نو هغه خو خپله هم شور وکړو. لهذا دا هم د خوشې خبري په ډول کې راځي چې په هغې سره د جمعې اضافي ثواب باطل شي. اګرکه دا نیک کار دی خو په دغه وخت کې په اشاري سره پوهه کول په کار دي. هیڅ ویل په کار نه دي. د سوچ مقام دی. کوم لوفر مزاجه خلک چې په دې دوران کې شور کوي یا امام او به بل چا اعتراض کوي نو د هغوی به څه حال وي. (المرقات ۳/۴۷۸).

**د خطبې په دوران کې د چپ کیدو شرعي حیثیت** :کله چې امام خطبه ورکوي نو د اکثرو علماؤ په نزد چپ کیدل واجب دي. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ هم دغه مسلک دی. هغه فرمايي چې د امام د خطبي په دوران کې نه مونځ کول جائز دي نه نورې څه خبري کول جائز دي ځکه "**اذا خرج الامام فلا صلاة ولا کلام**". امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د خُولي نه په زوره آواز سره په دې دوران کې درود ویل هم ناجائز دي بلکې په زړه کې یې دې وایه او کوم خلک چې د خطبي اواز نه اوري بلکې وړاندې ناست دي او لاوډ سپیکر نشته دی نو هغوی ته هم چپ کیدل په کار دي . د فقهې د عبارت "**والنائي کالقریب**" همدغه مطلب دی. (المرقات ۳/۵۰۵).

علماؤ د خطبې په آدابو کې لیکلي دي چې په هغه وخت کې لیک لوست هم منع دی. بلکې د پرنچې جواب ورکول هم مکروه دی. په درمختار کې دا قاعده لیکلی شوې ده "**وکل شئ حرم في الصلوٰم حرم**

---

(۱) أخرجه البخاري ۴۱۴/۲، رقم الحديث ۹۳۴، مسلم ۵۸۳/۲، رقم الحديث ۱۱-۸۵۱، أبوداؤد ۶۶۵/۱، رقم الحديث : ۱۱۱۲، ترمذي ۳۸۷/۲ رقم الحديث ۵۱۲، نسائي ۱۰۴/۳، رقم الحديث ۱۴۰۲، موطا امام مالک ۱۰۳/۱، رقم الحديث ۶، كتاب الجمعة، مسند أحمد ۲۷۲/۲.

**في الخطبة**" بهرحال په دې حدیث کې د جمعې د پاره د ادابو خیال ساتلو سره وختې تلل د لوی فضیلت شی دی. مسلمانانو له په دې عمل کول په کار دي. "**ومن بطأ به عمله لم يسرع به نسبه**" کوم سړی چې د هغه عمل وروسته پاتې کړو نو هغه دده نسب مخکې کولی نه شي.

## په جومات کې یو سړی د هغه د ځای نه اخوا کول منع دی

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمایل: په تاسو کې یو سړی د جمعې په ورځ (چې |
| " لَا يُقِيمَنَّ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ ثُمَّ يُخَالِفُ إِلَى مَقْعَدِهِ فَيَقْعُدَ فِيهِ |
| جامع جومات ته لاړ شيځ) خپل مسلمان ورور د هغه د ځای نه مه اخوا کوی او هلته خپله د کیناستلو اراده مه |
| وَ لٰكِنْ يَقُوْلُ افْسَحُوْا ". (رَوَاهُ مُسلم) . (١) |
| کوی لیکن (خلکو ته) دا وایئ چې (ورونو!) ځای پرانیزی. |

**توضیح**: مطلب دا دی چې د جمعې په ورځ د ډیر رش په وجه د ځای مسئله پیدا شي او خاص کر په حرمینو شریفینو کې دا مسئله ډیر سخت صورت اختیاروي. د حکم د مونځ ګزارو د پاره دی. خو د دې صورت د جمعې یا په اخترونو کې ډیر زیات راځی. نو ځکه یې دا په جمعه کې ذکر کړلو. چې یو سړی راشي او د متو په زور سره د بل سړی د هغه د ځای نه اخوا کړی او خپله کیني دا خو خالص حرام دي. که چرې هغه سړی په خپله خوښه ځای پریږدي نو د ظاهر او د باطن د دواړو رضا ضروري ده. نه دا چې ویره، حیا یا امید د لالچ په وجه هغه اجازت ورکوي. او که یو سړی بل سړی اول جومات ته راولیږي او هلته د هغه سړي د پاره ځای ونیسي او خپله په هغه ځای کې کیني بیا چې هغه سړی راشي او په هغه ځای کې کیني او خپله دا د ځای نیونکي لاړ شي نو دا صورت په هغه وخت کې جائز دی چې کله راتلونکی سړی عالم، فاضل، مخدوم او بزرګ وي. نو د هغه کمتره خادم د پاره دا قربانی ورکول جائز دي خو که هغه سړی عالم او فاضل نه وي نه په درجه کې د هغه نه لوي دی. نو د هغه کیناستل او بیا بیرته تلل دا مکروه دي. او دا صورت هغه وخت ډیر قبیحه شي چې ځای نیونکي ځکه ځای نیسي چې هغه به دیته څه روپی ورکوي لکه نن سبا په رمضان کې په حرمینو شریفینو کې د عربو شیوخ د تکرونی غریب د تورو مسلمانانو سره همدغه معامله کوي. او کیدی شي چې پخوا زمانه کې هم دغه سلسله په بل صورت کې کیدله. نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع کړې ده. نن سبا خو د صورتحال د ظلم

---

(١) أخرجه مسلم ١٧١٥/٤، رقم الحديث ٣٠-٢١٧٨

حد ته رسیدلی دی. څکه یو ولي الله ویلي دي چې د چا په عبادت کې دا ظلم کېږي د عبادت نه بغیر به د هغوی د ظلم او د ګناه څه عالم وي؟ (المرقات ۴۸۰-۳/۴۸۱).

د جوماتونو زمکه وقف ده کوم سړی چې مخکې راغلو د هغه حق دی چې هلته کینی. اوس مسئله د **ایثار بالتبرع** ده یعنې یو طالب خپل معلم ته په مخکې صف کې ځاې ورکړي او خپله قرباني وکړي او ثواب د پاره ځاې پرېږدي او وروسته صف ته لاړشي. نو د دې متعلق ځینې علماء فرمايي چې دا جائز ده. ځینې وایي **ایثار بالتبرع** مکروه ده.

**افسحوا:** دا حدیث مونږ ته دا تعلیم راکوي چې د یو بل نه د ځاې نیولو په ځاې بهتره دا ده چې تاسو په خپلو کې د فراختیا او د وسعت پیدا کولو کوشش وکړی، مه څوک د خپل ځاې نه تختوی او مه څوک د خپل ځاې نه پاڅوی. (المرقات ۳/۴۸۱).

## د جمعې په ورځ ښه جامه اغوندی

| |
|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ اغْتَسَلَ |
| ابي سعيد او ابو هريره رضي الله عنهما روایان دي وایي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم وفرمایل: کوم سړی چې غسل |
| يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلَبِسَ مِنْ أَحْسَنِ ثِيَابِهِ وَمَسَّ مِنْ طِيبٍ إِنْ كَانَ عِنْدَهُ ثُمَّ أَتَى |
| وکړي د جمعې په ورځ او ښې جامې واغوندي او چې کوم خوشبو ورسره وي هغه ولګوي بیا راشي |
| الْجمعة فَلَمْ يَتَخَطَّ أَعْنَاقَ النَّاسِ ثُمَّ صَلَّى مَا كَتَبَ اللهُ لَهُ |
| جمعې ته او هلته د خلکو په څټونو تېرنه وي بیا مونځ وکړي چې څومره الله تعالی ده ته لیکلي په |
| ثُمَّ أَنْصَتَ إِذَا خَرَجَ إِمَامُهُ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ كَانَتْ |
| مقدر کې او کله چې امام (خطبی د پاره) لاړشي او هغه چپ شي تردې چې د مونځ نه فارغه شي نو دا دده د |
| كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ جُمُعَةٍ الَّتِي قَبْلَهَا. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد). [۱] |
| پاره د ګناهونو کفاره کېږي د دې جمعې او د دې نه د مخکې جمعې په مینځ کې. |

**توضیح: احسن ثیابه:** د دې نه هغه سپیني جامې مراد دي چې هغه پاک صفا وي. (المرقات ۳/۴۸۱).

**ان کان عنده:** په دې جمله کې چې کومې فایدې او اشارې دې هغه مخکې لیکلی شوي دي. یوه فایده

---

(۱) أخرجه أبوداؤد ۲۴۴/۱، رقم الحديث: ۳۴۳، مسند أحمد ۸۱/۳

دا هم ده چې د خپل عطر او خوشبو سره نبي کريم ﷺ اشاره وفرمايله چې خپل نه وي نو د چانه يې مه غواړه. ثواب په همدغه کې دی چې خپل عطر يا تيل ولګولی شي او د چانه ونه غوښتلی شي. (المرقات۳/۴۸۱).

**قبلها:** د دې حديث په تصريح کې دې چې تيره شوي جمعه او د هغې په مينځ کې ګناهونه معاف کېږي.

مخکې چې کوم ليکلی شوي دې چې د اخرئ نه مراد راتلونکي جمعه نه ده. هغه د دی حديث د نظر لاندې ليکلی شوي دی. ځکه دا حديث وايي چې تيره شوي جمعه او د دې جمعې په مينځ کې ګناهونه معاف کېږي. (المرقات۳/۴۸۱).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## جامع جومات پورې پيدل تلل افضل دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ غَسَّلَ |
| اوس بن اوس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل "کوم سړي چې غسل وکړي د |
| يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ اغْتَسَلَ وَ بَكَّرَ وَ ابْتَكَرَ وَ مَشَى |
| جمعې په ورځ او خپله ولامبي او وختي (جامع جومات ته) لاړ شي چې د شروع نه خطبه واوري او پيدل لاړ |
| وَ لَمْ يَرْكَبْ وَ دَنَا مِنَ الْإِمَامِ وَ اسْتَمَعَ وَ لَمْ يَلْغُ كَانَ |
| شي سپور نه وي او امام ته نژدې کيني او خطبه واوري او دا چې چتې خبري د خُلې نه ونه باسي نو دده د |
| لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ عَمَلُ سَنَةٍ أَجْرُ صِيَامِهَا وَ قِيَامِهَا. (۱) |
| هر قدم په بدل کې ديو کال د روژو او د شپې د عبادت کول ثواب ليکلی کېږي. |

**توضيح** : **غسل:** د باب **تفعيل** نه د لامبلو په معنی دی. د دې مطلب دا دی چې خپله هم ولامبي او خپله ښځه هم ولمبوي. د ښځې لمبول دا چې جماع وکړي چې هغه هم د جنابت د وجې نه غسل وکړي نو ګوياکې هغه خپله ښځه ولمبوله. په دې کې دې خبرې طرف ته لارښود نه ده چې د جمعې په شپه کې يا د ورځې کوروالی کول مستحب دي. د دې د پاره د شيطان وسوسې او د زنا خطر نه نارينه او زنانه دواړه محفوظ شي. ځکه د جمعې په رش کې اختلاط خطر دير وي. (المرقات۴۸۲-۳/۴۸۳).

---

(۱) أخرجه أبوداؤد ۱/۲۴۶، رقم الحديث ۳۴۵، سنن الترمذي ۲/۳۶۷، رقم الحديث : ۴۹۶، نسائي ۳/۹۷رقم الحديث : ۱۳۸۴، ابن ماجه ۱/۳۴۶ رقم الحديث : ۱۰۸۷، مسند احمد ۴/۱۰۴.

**بکر وابتکر**: د دواړه لفظونه د یو بل د پاره تاکید دی. چې هغه سړی وختي وختي جومات ته لاړ یا د "**بکّر**" مطلب دا دی چې خپله وختي لاړو "**وابتکر**" او خطبه یې د اول نه واوریدله. یا د "**بکّر**" مطلب وختي تلل نه دې بلکي صدقه کول دې چې د جمعې صدقه یې وکړه او بیا وختي د خطبي اوریدلو د پاره لاړو او خطبه یې واوریدله. (المرقات ۳/۴۸۳).

**مشی ولم یرکب**: په دې کې هم دویم لفظ د اولني لفظ مشی د پاره تاکید دی یعنې پیدل تلل او بیخي سپور نه وي. بهرحال که جامع جومات ډیر لري نه وي نو په پیدل تللو کې ثواب ډیر دی. هغه دا چې قدمونه لیکلی کېږي. د ګرد لګیدلو ثواب بیل وي او که جومات لري وي نو بیا په سورلۍ باندې تلل منع نه ده. (المرقات ۳/۴۸۳).

## د جمعې او د اخترونو د پاره خاصې جامې ساتل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: مَا عَلَى أَحَدِكُمْ إِنْ وَجَدَ |
| عبد الله بن سلام رضي الله عنه وايي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې په تاسو کې د چا د پاره مقرره وي |
| أَنْ يَتَّخِذَ ثَوْبَيْنِ لِيَوْمِ الْجُمُعَةِ سِوَى ثَوْبَيْ مَهْنَتِهِ. (رَوَاهُ مَالك عَن يحيى بن سعيد). (۱) |
| چې هغه د جمعې د مونځ د پاره بغير د کاروبار د جامو نه دوه جامې جوړې کړي نو څه باک نشته دی. |

**توضیح**: **سِوَی ثوبي مهنته**: یعنې د عام خدمت او د کاروبار د جامو نه بغير خاص د جمعې او د اخترونو د پاره که یو سړی جامې تیارې کیدي نو منع نه ده. بلکي محموده ده. خو په دې شرط چې الله تعالی ورته فراخي ورکړې وي نو دا په اسراف کې داخل نه ده او نه د زهد او د تقوی خلاف ده. په دې کې د اسلام د شعائرو د جمعې او د اخترنو یو اعزاز هم دی او شوکت هم دی. نبي کريم صلى الله عليه وسلم د خپل فرمان په ذریعي سره هم او د خپل مبارک فعل په ذریعي سره هم د دې تعلیم ورکړی دی نو ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم د جمعې او د اخترونو د پاره خاص لباس او جبّه ساتله او بیا به یې استعمالوله.

نن سبا د دنیا والاؤ د یونیفارم رواج دی. د عدالت په کوټه کې انګریز یا انګریز مخي قاضیان کله د ننه راځي نو په لازمي توګه هغه جبه او قبه استعمالوي. وکیلان او د سکول او کالج یونیفارم وي. د جمعې او اخترونو د پاره جبه استعمالول او پټکي تړل اسلامي یونیفارم دی. په هر خطیب باندې لازمه ده چې هغه د اسلام دا امتیازي جامې استعمال کړي او شرم محسوس نه کړي. په عوامو کې په دې سره د دین عظمت ډیریږي. او په وعظ او نصیحت باندې اعتماد ډیریږي. ډیر د افسوس مقام دی چې د برصغیر

(۱) أخرجه أبوداؤد ۱ / ۶۵۰، رقم الحديث ۱۰۷۸. ابن ماجه ۱ / ۳۴۸، رقم الحديث ۱۰۹۵. موطأ امام مالک ۱ / ۱۱۰، رقم الحديث ۱۷. كتاب الجمعة.

عامو خطيبانو دا سنت پريښود لی دی. اګر که په سنن زوائدو کښې ولې نه وي.(المرقات ۳/۴۸۵).

## د خطبې په دوران کښې د امام سره نزدې کينی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: احْضُرُوا الذِّكْرَ |
| سمره بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د خطبې په وخت کښې زر حاضريږی. |
| وَادْنُوا مِنَ الْإِمَامِ فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ يَتَبَاعَدُ حَتَّى يُؤَخَّرَ فِي الْجَنَّةِ |
| او د امام سره نزدې کيني. ځکه چې سړی (د خيرونو ځای نه بغير د عذر نه) چې څومره لرې ځي نو وروستو |
| وَإِنْ دَخَلَهَا. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد).(۱) |
| به پاتې کيږي جنت ته به په داخليدلو کښې. |

**توضيح**: دا حديث مسلمانانو ته دا تعليم ورکوي چې هغه هميشه اعلی او اوچتې حوصلې خپلې کړي او په نيکۍ کښې د خکته کيدلو په ځای اوچت طرف ته لاړ شي او د خپل عظمتونو پرواز لاندې نه بلکې اوچت بوځي. (المرقات ۳/۴۸۵).

نگاه بلند سخن دلنواز و دل پُرسوز ❁ يہی ہے رختِ سفر مير کارواں کے لئے

ہمت بلند دار کہ نزدِ خدا و خلق ❁ باشد بقدرِ ہمتِ تو اعتبارِ تو

## په څټونو د پاسه د تيريدلو سخت وعيد

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ |
| سهل بن معاذ بن انس جهنی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړی |
| تَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ |
| چې د جمعې په ورځ (جامع جومات کښې د ځای حاصلولو د پاره) د خلکو په څټونو باندې اوړي هغه د |
| اتَّخَذَ جِسْرًا إِلَى جَهَنَّمَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ)(۲) |
| جهنم طرف ته پُل جوړوي. |

**توضيح**: شيخ سيد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې حديث سند په سند کښې **معاذ ابن انس عن ابيه** ويل سهو دہ.

---

(۱) اخرجه أبوداؤد ۶۶۳/۱، رقم الحديث: ۱۱۰۸.

(۲) اخرجه الترمذي ۳۸۸/۲، رقم الحديث: ۵۱۳، مسند احمد ۴۳۷/۳

ځکه د معاذ پلار انس نه صحابي دی نه هغه د کوم يو حديث راوي دی نو ځکه صحيح سند داسي دی "عن سهل بن معاذ رضي الله عنه عن ابيه". د حديث الفاظ "اتخذ جسرا" يعني دا سړی به د دوزخ د پاسه پُل جوړوي. (المرقات ۳/۴۸۶).

د دې مطلب دا دی چې څنګه يو سړی مسلمانان تنګوي او د خلکو په څټونو د پاسه اوړي او خلکو ته ضرر رسوي. اوس به د قيامت په ورځ هغه سړی د جهنم د پاسه پُل جوړوي او خلکو ته به وويلی شي چې د دې سړي د پاسه تيرېږي نو خلک به تيرېږي او هغه به د ښپو ومګي.

## د خطبې په دوران د ناستي يو ممنوع صورت

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْحُبْوَةِ يَوْمَ |
| معاذ ابن انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم منع کړې ده د بوڅ کيناستلو نه په ورځ د |
| الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ). (۱) |
| جمعې په داسې حال کې چې امام خطبه وايي. |

**توضيح**: **الحبوة**: دا يو قسمه ناسته ده چې هغې ته پړيخه ناسته وايي نو ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دې نه منع کړې ده. چې د داسې ناستي سره خوب غالبيږي چې په هغې سره اودس ماتيږي يا په يو سړي ناڅاپه يو طرف ته باندې را اوغورزيږي يا په ناسته ناسته اودس مات شي او هغه ته احساس هم نه کيږي. (المرقات ۴۸۶-۳/۴۸۷).

## د پرکالی په صورت کې ځای بدلول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې کله پرکالي شروع کړي يو کس |
| فَلْيَتَحَوَّلْ مِنْ مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ). (۲) |
| په تاسو کې يو سړی د جمعې په ورځ (جومات کې په ناسته باندې) نو هغه ته په کار دي چې خپل ځای بدل کړي |
| (يعني په کوم ځای کې چې ناست دی د هلته نه دې پاسيږي او بل ځای کې دې کيني نو د غه شان به د خوب غلبه ختمه شي). |

---

(۱) أخرجه أبوداؤد ۶۶۴/۱، رقم الحديث: ۱۱۱۰، ترمذي ۳۹۰/۲، مسند احمد ۴۳۹/۳.

(۲) أخرجه أبوداؤد ۶۶۸/۱، رقم الحديث: ۱۱۱۹، ترمذي ۴۰۴/۲، رقم الحديث: ۵۲۶، مسند احمد ۳۲/۲.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## څوک د هغه د خپل ځای نه مه پاسوی

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ عَنْ نَافِعٍ قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُولُ: نَهٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا اوريدلي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې خبرې نه منع |
| أَنْ يُقِيْمَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَقْعَدِهٖ وَ يَجْلِسَ فِيهِ . قِيلَ لِنَافِعٍ: |
| كړې چې يو سړی د هغه د ځای نه پاڅوي او خپله هلته كيني د نافع نه پوښتنه وشوه چې آيا دا منع فقط د |
| فِي الْجُمُعَةِ قَالَ: فِي الْجُمُعَةِ وَ غَيْرِهَا . (مُتَّفق عَلَيْهِ)(۱) |
| جمعې د پاره ده؟ هغه وويل چې د جمعې د پاره ده او د جمعې نه بغير هم ده. |

## په جمعه كې حاضريدونكي درې قسمه خلک

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَحْضُرُ الْجُمُعَةَ |
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: راځي دې مونځ د جمعې ته |
| ثَلَاثَةُ نَفَرٍ: فَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِلَغْوٍ |
| درې قسمه خلک: يو سړی هغه چې خوشې خبرې كوي او بيكاره كار كوي (يعنې هغه د خطبې په وخت |
| فَذٰلِكَ حَظُّهُ مِنْهَا. |
| كې بيكاره خبرې او بيكاره كار كې مشغول وي) نو د جمعې په حاضری د هغه همدغه برخه ده (يعنې هغه |
| وَ رَجُلٌ |
| د ثواب نه محروميږي او خوشې خبرو او كارونو وبال د هغه په برخه كې راځي) دويم هغه سړی دی چې هغه |
| حَضَرَهَا بِدُعَاءٍ |
| د جمعې په ورځ دعا د پاره راځي (نو د خطبې په وخت كې دعا كې مشغول وي تر دې چې د هغه دعا هغه د |

---

(۱) اخرجه البخاري ۱۱/۶۲، رقم الحديث ۶۲۷۰. مسلم ٤/۱۷۱٤، رقم الحديث ۲۷ ۲۱۷۷، أبو داود ٥ ۱۶٥. رقم الحديث ٤٨٢٨. ترمذي ٥ ٨٢. رقم الحديث . ۲۷٤۹. دارمي ۲ ۳۶٥. رقم الحديث ۲۶٥۳. مسند احمد ۲ ۱۷

| |
|---|
| فَهُوَ رَجُلٌ دَعَا اللهَ |
| خطبې د اوریدو یا د خطبې د ثواب نه پاتې شي) نو هغه دعا غواړي که الله تعالی (په خپل فضل او کرم په |
| إِنْ شَاءَ أَعْطَاهُ وَ إِنْ شَاءَ مَنَعَهُ . وَ رَجُلٌ |
| صدقه کې) د هغه دعا قبوله کړي او که نه، دریم هغه سړی دی چې (که دامام د خطبې په وخت کې د امام |
| حَضَره بِإِنْصَاتٍ وَ سُكُوتٍ |
| سره نزدې ناست وي نو د خطبې اوریدلو د پاره) چپ شي او (که دامام نه لرې وي او د خطبې آواز د هغه پورې) |
| وَ لَمْ يَتَخَطَّ رَقَبَةَ مُسْلِمٍ |
| نه رسیږي نو بیا هم هغه د خطبې په احترام کې سکوت اختیار کړي همدغه شان هغه د خلکو په څټو نو نه اوړي |
| وَ لَمْ يُؤْذِ أَحَدًا فَهِيَ كَفَّارَةٌ إِلَى الْجُمُعَةِ الَّتِي |
| او نه خلکو ته ضرر رسوي لهذا هغه په حق کې دا جمعه د دې (یعنې اولنۍ) جمعې نه تر بلې جمعې پورې |
| تَلِيهَا وَ زِيَادَةِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَ ذٰلِكَ بِأَنَّ اللهَ يَقُولُ : ﴿ مَنْ |
| چې د هغه سره مخ شي بلکې نور هم درې ورځو نه ډیرو پورې کفاره شي ځکه الله تعالی فرمایي: کوم سړی |
| جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ... ﴾. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد). (۱) |
| چې یوه نیکي کوي نو هغه ته به د لس چنده نه ډیر ثواب ور کولی کیږي. |

**توضیح : ثلاثة نفر** : یعنې په جمعه کې په حاضریدونکو کې درې قسمه خلک دي یو خو هغه قسمه خلک دي د هغه خلکو همغه خلک دي چې د څه د پاره راغلی دی لکه ثواب او داسې نور څه بلکې د خوشې خبرو د پاره راغلی وي او د همغه یې د ځان سره بیرته ویوړل. ځکه د خطبې په مینځ کې خبرې کول منع دي اګر که خبرې ښې وي.

دویم قسمه هغه خلک دي چې د دعا په غرض جمعې کې حاضریږي او د خطبې په دوران کې په دعا غوښتلو کې مشغول شي. اوس که دا خلک په اوچت اواز سره دعا غواړي نو دا یقینًا ناجائزه ده او که په زړه کې په خاموشۍ سره دعا غواړي نو بیا هم دا خلک په خپل کار مشغول او د آدابو د خطبې خلاف ورزی کوي. نو که الله تعالی او غواړي نو خالص په خپل فضل او کرم سره به د هغه دعاء قبوله کړي

---

(۱) اخرجه أبو داؤد ۱/۶۶۵، رقم الحديث ۱۱۱۳

ګيني د عدل او انصاف او قانون او قاعدي مطابق د بد کار په وجه به د هغه دعا رد کېږي. د احنافو د ائمؤ په نزد د خطبې په دوران کې دعا غوښتل مکروه دي. او د قریب مطلب دا دی چې د نور و ائمؤ په نزد حرام ده. (المرقات ۴۸۸-۳/۴۸۹).

**تلیها:** تلي د نزدې په معنی دی. او نزدې مطلب دا دی چې ددې نه مخکې چې کومه نزدې جمعه تیره شوي ده تر هغې پورې د ټولو ګناهونو کفاره ده. په دې توجیه سره به په ټولو احادیثو کې تطبیق راشي ځکه په راتلونکو احادیثو کې راتلونکي جمعه مراد نه ده بلکې تیره شوي جمعه مراد ده. مګر د ظاهري الفاظو نه راتلونکي جمعه هم مراد کیدلی شي. نو ځکه چې د نزدې معنی واخستلی شوه نو مخکینی او د راتلونکي دواړو جمعو حدیث به شامل شي. او په ټولو حدیثونو کې به تطبیق راشي. ځکه دا خبره ښکاره ده چې تر راتلونکي جمعې پورې ګناه خو لاتر وسه شوي هم نه ده. د دې د مغفرت مطلب واضحه نه دی. لهذا تیره شوي جمعه مراد ده. (المرقات ۳/۴۸۹).

## د خطبې په دوران کې خبرې کونکي د خر په شان دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ |
| ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: کوم سړی چې خبرې اترې کوي |
| تَكَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ الْإِمَامُ يَخْطُبُ فَهُوَ كَمَثَلِ الْحِمَارِ |
| په ورځ د جمعې باندې په داسې حالت کې چې امام خطبه ورکوي نو دا د هغه خر په شان دی چې په هغه باندې |
| يَحْمِلُ أَسْفَارًا وَ الَّذِيْ يَقُوْلُ لَهُ أَنْصِتْ |
| کتابونه ایخودلی شوي وي او کوم سړی چې هغه (خبرو کې مشغولیدونکي ته) دا ووايي چې چپ شه |
| لَيْسَ لَهُ جُمُعَةٌ. (رَوَاهُ أَحْمد). (۱) |
| نو د هغه د پاره د جمعې ثواب نشته دی. |

**توضیح: کمثل الحمار:** یعنې د خطبې په دوران کې په خبرو اترو کې د مشغوله سړي مثال نبي کريم صلی الله علیه وسلم د هغه خر په شان بیان کړې دی چې په هغه باندې کتابونه کیخودلی شوي وي او هغه ته خپله معلوم نه وي چې په ما باندې څه ایخودلی شوي دي د بې علمه عالم هم د غه مثال دی. (المرقات ۳/۴۹۰).

---

(۱) أخرجه مسند احمد ۱ ۲۳۰

**يقول له:** يعنې كه هغه جې جاهل سړي ته يو سړى د شفقت په خاطر د امربالمعروف او نهى عن المنكر د لاندې ووايي چې چپ شه نو د هغه د جمعې ثواب هم ضايع شو. ځكه د خطبې په دوران كې هر قسمه خبره كول منع ده. باقي د خطبي په دوران كې كه د نبي كريم ﷺ نه څه خبري ثابت دې نو هغه د نبي كريم ﷺ خصوصيت ؤو. يا نبي كريم ﷺ د خطبي نه مخكې كلام وكړو وروسته يې خطبه شروع كړه يا به د خطبي په اختتام په آخر كې كلام شوى وي. لهذا د خطبي په دوران كې خبري كول مطلقًا منع ده. (المرقات ۳/۴۹۰).

## د مسلمانانو د پاره جمعه يو قسمه اختر دى

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ مُرْسَلًا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ جُمُعَةٍ مِنَ الْجُمَعِ |
| عبيد بن سباق نه مرسلا روايت دى وايي چې نبي كريم ﷺ د جمعو نه په يوه جمعه كې وفرمايل: |
| يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ ! اِنَّ هٰذَا يَوْمٌ جَعَلَهُ اللهُ عِيْدًا |
| اى د مسلمانانو ډلي! دا (جمعه) هغه ورځ ده چاته چې الله تعالى (د مسلمانانو) عيد ټاكلى دى. لهذا |
| فَاغْتَسِلُوْا وَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ طِيْبٌ فَلَا يَضُرُّهُ أَنْ يَمَسَّ مِنْهُ وَ |
| (په دغه ورځ) غسل كوئ او كه د چاسره خوشبو وي نو استعمال دې كړي نو څه باك نشته دى او تاسو |
| عَلَيْكُمْ بِالسِّوَاكِ . (رَوَاهُ مَالِكٌ وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَه عَنْهُ وَهُوَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مُتَّصِلًا) (۱) |
| مسواك هم كوئ. |

**توضيح : عيدا:** جمعې ورځې ته په حديث كې اختر ويل شوي دى. دا د څه اعتبار نه اختر دى؟ د دې باره كې علماء ليكلي دي چې د فقيرانو، مسكينانو، بې وسو، بې وزلو او د اولياء الله او د صالحينو د پاره د خوشحالۍ او زيب و زينت اختيارولو ورځ ده. د دې ورځ په خوشحالو كې ډير غريب سړى هم شركت كولى شي. او د دې نه خوند اخلي. هغوى په دې ورځ غسل كوي. جامې واغوندي او جامع جومات ته لاړ شي عطر استعمال كړي. لهذا د مسلمانانو لړ مصرف كه اختر دى نو هغه جمعه ده. نو ځكه هغه د مسلمانانو د اختر په نوم سره ياد كړلى شوى دي. (المرقات ۳/۴۹۱).

**فلا يضره ان يمسه:** په دې جمله باندې دا سوال پيدا كېږي چې د دې قسمه جملو د استعمال هغه موقع وي چېرته چې د ګناه احتمال وي يا دلته د دغه قسمه جمله ولې استعمال شوې ده؟ چې د هغې مطلب دا

(۱) اخرجه ابن ماجه ۱ ۳۴۹، رقم الحديث ۱۰۹۸، موطا امام مالک ۱ ۶۵، رقم حديث ۱۱۳، كتاب الطهارة

دی چې د جمعې په ورځ که چا د خپل کور عطر استعمال کړل نو په هغې کې هیڅ گناه نشته دی.
د دې جواب دا دی چې د جمعې په ورځ کله د عطر د لگولو حکم وشو نو نارینو د عطرو په استعمالولو باندې څه تنگسیا محسوسه کړه چې عطر استعمالول د ښځو کار دی. د سړو د پاره به په دې کې گناه وه. د دې جواب دا ورکړلی شو چې د عطر په استعمالولو کې څه باک نشته دی. (المرقات ۳/۴۹۱).

## په مسلمانانو باندې په هره اونۍ کې غسل کول واجب دی

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : حَقًّا عَلَى الْمُسْلِمِينَ أَنْ |
| براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې واجب دي په مسلمانانو باندې د |
| يَغْتَسِلُوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ لْيَمَسَّ أَحَدُهُمْ مِنْ طِيبِ أَهْلِهِ |
| جمعې دورځې لامبل همدغه شان مسلمانانو ته په کار ده چې په هغې کې هر سړی خپله خوشبو استعمال |
| فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَالْمَاءُ لَهُ طِيبٌ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ ،وَالتِّرْمِذِيُّ ،وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ) (۱) |
| کړي او که د چا سره خوشبو نه وي نو د هغې د پاره اوبه خوشبو ده. |

**توضیح**: **حقاً**: دا بنا بر مصدریت منصوب دی اصل عبارت داسې دی **"أی حق حقا"** یعنې په مسلمانانو باندې حق او واجب دی چې هغوی په هره میاشت کې یو ورځ غسل وکړي او خوشبو استعمال کړي او که کورنۍ خوشبو نه وي نو بیا پاک صفا او خالصې اوبه به د خوشبو په ځای وي چې په هغې سره پاکوالې راځي. (المرقات ۳/۴۹۲).



(۱) أخرجه الترمذي ۲/ ۴۰۷، رقم الحديث ۵۲۸، مسند [illegible]

# باب الخطبة والصلٰوة

## د خطبې او د جمعې د مونځ بیان

په لغوي اعتبار سره خطبه او خطابت مطلق تقریر او خبرو او کلام ته وایي. چې د هغې په ذریعي سره خلک مخاطب کېږي. خو د شرع په اصطلاح کې خطبه د هغه مجموعه نوم دی چې وعظ او نصیحت او د الله ذکر او شهادت د توحید او رسالت باندې مشتمل وي. د جمعې د مونځ لپاره خطبه شرط او فرض دی. بیا په دې کې بحث دی چې د فرض خطبې څه مقدار دی. نو امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د فرض خطبې مقدار کم نه کم یو ځل سبحان الله یا الحمدلله یا لا اله الا الله ویل کافي دي د دې نه زیات سنت دي. د جمعې لپاره دا شرط نه دی چې د لویې خطبې نه بغیر د جمعې مونځ نه صحیح کېږي.

خو امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د فرض خطبې مقدار دومره په کار دی چې په هغې کې طویل ذکر وي او په هغې کې نصیحت وي چې هغې ته په عرف عام کې خطبه وایي. فقط سبحان الله خطبه نه ده. د احنافو عمل د صاحبینو په قول باندې عمل دی.

د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد او ږده خطبه فرض ده. که دوه خطبې ؤو نشوي نو د جمعې مونځ جائز نه دی. بهرحال دا سې معلومیږي چې شریعت دوه خطبې د غرمې د څلور رکعتو د مونځ د دوؤ رکعتو په بدل کې ایخي دي. نو ځکه ضروري ده. په عربو کې همدغه دوه خطبې د هغوی تقریر دی. خو عجم په عربي نه پوهیږي. نو ځکه اول په عامه ژبه کې تقریر کېږي. او بیا په عربي کې خطبه کېږي. دا ښه طریقه ده. خو په حدیث باندې د عمل دعویداران د غیر مقلدینو په نزد په اردو کې خطبه کېږي. همغه خطبه ده او همغه تقریر دی. هغوی ودرېږي او په اردو کې تقریر کوي او همغې ته خطبه وایي. دا هم عجیبه ده چې د هغوی په مسبر کې بدعت داخل شوي دي. صحابه کرامو دنیا فتح کړه مګر په هیڅ فتح کړی شوي علاقه کې د عربي نه بغیر بله خطبه شروع نه کړه.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د جمعې د مونځ وخت

| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ حِيْنَ |
|---|
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د جمعې مونځ په هغه وخت کې کولو کله به |

| تَمِيلُ الشَّمْسُ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ)(۱) |
|---|
| چې لمر پريوتلو. |

**توضيح** : **تميل الشمس**: يعني عين د زوال په وخت کې به نبي کريم ﷺ خطبه ولوستله او د جمعې مونځ به يې وکړو. نن سبا په سعودي کې هم داسې کيږي. او داسې کول ډير ښه دي. کاش که زمونږ په عجمو کې هم داسې کيدلی. (المرقات ۳/۴۹۴).

بهرحال عين د زوال په وخت کې چې کوم مونځ کړی شوي دا به په يخنی کې کيدلو. کومه چې د يخني نقشه ده. په ګرمی کې به نبي کريم ﷺ د يخوالي د وخت انتظار کولو. لکه راروان د حضرت انس رضي الله عنه په حديث نمبر ۳ کې د دې بيان راغلی دی.

| ﴿۲﴾ وَ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ : مَا كُنَّا نَقِيلُ وَلَا نَتَغَدّٰى |
|---|
| حضرت سهل ابن سعد رضي الله عنه راوي دي وايي چې مونږ به قيلوله کوله او ډوډوي به مو خوړله کله به چې |
| إِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۲) |
| د جمعې د مونځ فارغ شو. |

**توضيح** : **نقيل**: دا د قيلوله نه دی او قيلوله د غرمي په وخت کې ارام کولو او تر لږ ساعت پورې اوده کيدلو ته وايي يعني صحابه کرام رضي الله عنهم به د جمعې په ورځ باندې د جمعې د مونځ نه مخکې قيلوله او خواړو کې نه مشغوليدلو. دا دواړه شيان به د جمعې د مونځ نه وروسته ؤو. د دې نه هم معلوميږي چې د جمعې مونځ به وختي او زر کيدلو. خو د دې مطلب دا هرګز نه دی چې د وخت د راتلو نه مخکې جمعه جائز ده. د جمعې لپاره ضروري ده چې د هغې وخت راشي او هغه زوال شمس دی لکه مخکې به يې تفصيل راشي.

لهذا د جمهورو مسلک دا دی چې د زوال نه مخکې جمعه ناجائزه ده. د امام احمد بن حنبل رحمه الله او د اسحاق بن راهويه رحمه الله په نزد جمعه د زوال نه مخکې هم جائز ده اګر که معمول به نه ده. (المرقات ۳/۴۹۵).

| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا اشْتَدَّ الْبَرْدُ بَكَّرَ بِالصَّلَاةِ |
|---|
| انس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ د سختې يخنی په موسم کې به د جمعې مونځ وختي کولو |

(۱) أخرجه البخاري ۲/ ۳۸۶، رقم الحديث ۹۰۴، ابوداود ۱/ ۶۵۴، رقم الحديث ۱۰۸۴، مسند أحمد ۳/ ۱۵۰

(۲) أخرجه البخاري ۲/ ۴۲۷، رقم الحديث ۹۳۹، مسلم ۲/ ۵۸۸، رقم الحديث ۳۰-۸۵۹، ابوداود ۱/ ۶۵۴، رقم الحديث ۱۰۸۶، ترمذي ۲/ ۴۱۳، رقم الحديث ۵۲۵، ابن ماجه ۱/ ۳۵۰، رقم الحديث ۱۰۹۹، مسند أحمد ۵/ ۳۳۶

| وَ إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ أَبْرَدَ بِالصَّلَاةِ . يَعْنِي الْجُمُعَةَ.(رَوَاهُ الْبُخَارِيّ). (۱) |
|---|
| او چې کله چې به سخته ګرمي وه نو ناوخته به يې کولو. |

**توضیح**: **بکّر**: تندي کولو ته بکر تبيکر وايي. د دې حديث نه معلومه شوه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په سخته ګرمۍ کې د جمعې مونځ هم او په نورو مونځونو کې هم تاخير کولو. نن سبا په سعودي کې په دې باندې عمل نه کېږي. بلکې په هر موسم کې "**بکر**" باندې عمل کېږي او "**ابرد**" د نظر نه پناه کړی شوی دی. (المرقات ۳/۴۹۵).

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې د جمعې يو اذان وُ

| ﴿٤﴾وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ: كَانَ النِّدَاءُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوَّلُهُ إِذَا جَلَسَ الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ عَلَى |
|---|
| سائب ابن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې وُ به اول اذان د جمعې په ورځ چې کله به امام په منبر باندې کيناستو په |
| عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَبِي بَكْرٍ وَ عُمَرَ فَلَمَّا |
| زمانه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې مګر کله چې خليفه |
| كَانَ عُثْمَانُ وَ كَثُرَ النَّاسُ زَادَ النِّدَاءَ الثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاء .(رَوَاهُ الْبُخَارِيّ). (۲) |
| شو عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او خلک ډير شول نو دريم اذان هم په کې اضافه شو چې په زورا کې به کيدلو. |

**توضیح** : **النداءالثالث**: د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به د جمعې لپاره يو اذان هغه وخت کيدلو کله به چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ممبر کيناستلو. د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې هم دغه طريقه وه. بيا چې کله د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دور راغلو او خلک ډير شول. مصروفيتونه هم ډير شول او د خلکو کورونه هم د مسجد نبوی نه کافي لرې شول. نو د خلکو لپاره د جمعې په مونځ کې شراکت مشکل شو. ځکه په ممبر باندې د ناستې په وخت کې د اذان نه وروسته په دې لږ وخت کې به خلک د خطبې د اوريدلو نه هم محرومه شول او په جمعه کې د شريک کيدلو هم مشکل پيدا کيدلو. نو ځکه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په مشوره باندې د مديني نه بهر يو اوچت ځاې په مقام زوراء باندې د وخت شروع کيدلو سره د اذان کولو حکم وکړو. او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زماني والا اول اذان يې هم په همدغه وخت کې قائم وساتلو. د دې سره خلکو ته دا اساني شوه چې وخت شروع کيدلو

---

(۱) أخرجه البخاري ۲ ۳۸۸ رقم الحديث : ۹۰۶.

(۲) اخرجه البخاري ۳۹۳/۲، رقم الحديث ۹۱۲، ابوداؤد ۶۵۵/۱، رقم الحديث ۱۰۸۷، ترمذي ۳۹۲/۲، رقم الحديث : ۵۱۶، مسند احمد ۴۵۰/۳.

سره به جومت ته راغونډ شول او بیا به د خطبي دا آذان په وخت کې په جومات کې حاضر شول او په خطبه او په جمعه کې به شریک ؤو. (المرقات ۴۹۶-۴۹۷/۳).

تر ننه پورې په مسلمانانو کې همدغه طریقه رائج ده. په هغه مبارک دور کې هیچا په حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې اعتراض ونه کړلو. صحابؤ ولیدل، واي وریدل او چپ شول. دغه شان د صحابؤ اجماع هم وشوه. لهذا دغه اذان ته بدعت نه شي ویل کیدلی.

لکه څنګه چې غیر مقلدین حضرات وایي او په خپلو جوماتونو کې په دې عمل نه کوي. ما خپله د یو غیر مقلد نه اوریدلی چې دا اذان حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ځان نه کړی دی. د تعجب خبره ده چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلفاء راشدینو نه دی او هغه خپل یو شرعي حیثیت او واک دی. نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي ؤ: "**علیکم بسنتي و سنة الخلفاء الراشدین**" چې زما سنت و طریقه خپله کړی او د خلفاء راشدینو سنت او طریقه په کلکه خپله کړی.

بیا د صحابؤ اجماع هم وشوه او ټولو صحابؤ قبوله هم کړه. په حرمینو شریفینو کې په دې عمل هم کیږي. بیا دیته د ځان نه جوړ کړی اذان او په دې عمل نه کول ډیر لویې سپکاوی او بې ادبي ده.

مګر حقیقت دا دی چې غیر مقلدینو د هرې هغه مسئلې نه انکار کړې دی. کومه چې د صحابؤ نه ثابته شوې ده یا د خلفاء راشدینو د قول او فعل سره رائج شوې وي. مثلاً شل (۲۰) رکعته تراویح او د طلاق ثلاثو واقع کیدل، د جمعې دریم اذان او داسې د نورو ډیرو مسائلو نه هغوی ځکه انکار کوي چې دا د صحابؤ په زمانه کې رائج شوي دي.

**سوال**: دلته په دې حدیث کې اذان د "**النداء الثالث**" په نوم سره یاد شوی دی. حال دا چې د جمعې په ورځ غرمه کې دوه اذانه کیږي. دریم چرته دی؟

**جواب**: د دې جواب دا دی چې د ضرورت په بناء کله دا دریم اذان د جمعې په ورځ د غرمې د وخت په راتلو باندې وویلی شو نو دا د ټولو نه اول اذان شو. د دې نه وروسته د منبر مخې ته د خطیب راتللو په وخت د خطبي په وخت کې چې کوم اذان ؤ. هغه د ترتیب په اعتبار سره دویم اذان ؤ او د دې نه وروسته د مونځ لپاره د اقامت دریم اذان شو. ځکه اقامت هم اذان الحاضرین دی. نن سبا خلک همدغه ترتیب باندې پوهیږي او په شمیرلو کې یې هم دغه شان شماري. خو د حقیقت په اعتبار سره اول اذان همغه دی کوم چې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته د خطبي په وخت کې کیدلو. د دې نه وروسته اقامت ته اذان ثاني ویل شوی دي. نو ځکه د بحث لاندې روایت کې یې دې اذان ته ثالث ویلی دی. خلاصه دا چې اقامت ته په اذان ویلو سره د اذانونه درې شول او د اصل ترتیب په اعتبار سره دا زیاتي اذان په دریم نمبر باندې د دریم اذان په نوم یاد کړې شو. نو نن سبا چې کوم اذان ته مونږ اول اذان وایو دا دریم اذان دی او کوم ته چې مونږ دویم اذان وایو دا اولنی اذان دی. (**المرقات ۴۹۷/۳**).

**فلما كان**: دا كان تامه دى يا خبر محذوف دى "اى فلما كان عثمان خليفة".

## اخستل او خرڅول به د كوم اذان نه وروسته بند يږي؟

اوس سوال دادى چې د اخستلو او خرڅولو ممانعت د كوم اذان سره تړل شوي دي. همدغه شان **سعي الى الجمعة** د كوم اذان نه به وروسته جائز وي؟ دا يوه مهمه پوښتنه ده؟

شيخ عبد الحق رحمه الله په لمعات ج ۴ ص ۱۸۴ باندې ليكلي دې چې د ځينو علماؤ په نزد دې ممانعت تعلق د همغه اذان سره دى چې د خطيب مخې ته د خطبې په وخت كې كېږي. خو عام علماء او فقهاء وايي چې صحيح خبره ده دا چې د وجوب سعى او د بيع و شراء حرمت د همدغه نوي اذان اعتبار دى كوم چې د حضرت عثمان رضي الله عنه په دور كې شروع شوي ؤو. ځكه اصل بنياد په دې باندې دى چې خلك په وخت سره اذان واوري نو په هغوى باندې لازمه ده چې سعى شروع كړي او اخستل او خرڅول پرېږدي. اعلان د همدغه نوي اذان نه كېږي. او خلك همدغې ته اذان وايي. لهذا د همدغې اعتبار به وي. په هدايه كې هم دغه شان ليكل شوي دي. (المرقات ۳/۴۹۸. اشعة اللمعات).

## د جمعې په ورځ به نبي كريم صلى الله عليه وسلم دوه خطبې وركولې

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطْبَتَانِ يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا |
| جابر بن سمره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به دوه خطبې وركولې او كيناستو به په مينځ د |
| يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَ يُذَكِّرُ |
| دواړو خطبو كې او لوستل به نبي كريم صلى الله عليه وسلم په دې خطبو كې قرآن كريم، او نصيحت به يې كولو |
| النَّاسَ فَكَانَتْ صَلَاتُهُ قَصْدًا وَ خُطْبَتُهُ |
| خلكو ته او د نبي عليه السلام مونځ به په درميانه درجه كې ؤ (نه به ډير اوږد ؤ او نه به بيخي لنډ ؤ) او خطبه |
| قَصْدًا. (رَوَاهُ مُسْلِم). (۱) |
| به يې هم په درميانه درجه كې وه (نه به ډيره اوږده وه او نه به بيخي لنډه وه). |

**توضيح: يقراء القرآن**: يعنى نبي كريم صلى الله عليه وسلم به د جمعې د مونځ نه مخكې دوه خطبې لوستلې او

(۱) اخرجه مسلم ۲/۵۸۹، رقم الحديث ۳-۸۶۲، ابوداؤد ۱/۶۵۷، رقم الحديث ۱۰۹۴، ترمذي ۲/۳۸۱، رقم الحديث: ۵۰۷، نسائي ۳/۱۱۰، رقم الحديث: ۱۴۱۸، ابن ماجه ۱/۵۱، رقم الحديث ۱۱۰۶، دارمي ۱/۴۴۰، رقم الحديث ۱۵۵۷، مسند احمد ۵/۹۳

د دواړو خطبو په مینځ کې به لږ ساعت کیناستلو او دواړه خطبې به مختصرې وې او د جمعې مونځ به هم مختصر ؤو. (المرقات ۳/۴۹۸).

د دې حدیث نه یو څو فایدې او یو څو مسائل ثابتیږي: یوه مسئله دا ثابته شوه چې نبي کریم ﷺ به خطبه په عربۍ کې لوستله. د نبي علیه الصلاة والسلام وعظ به د غه خطبه وه. او د نبي علیه الصلاة والسلام ژبه عربي وه. د نبي علیه الصلاة والسلام نه وروسته صحابه کرامو رضي الله عنهم په مشرق او مغرب کې مختلف هیوادونه فتح کړل او هلته یې جمعې قائمې کړلې. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه شپږ دیرش زره (۳۶۰۰۰) ښارونه فتح کړل. څلور زره (۴۰۰۰) جوماتونه یې جوړ کړل او نهه سوه (۹۰۰) جامع جوماتونه یې جوړ کړل او په هغې کې یې د جمعې مونځونه شروع کړل. خو په تاریخ کې چرته نه هم ثابت نه دې چې نبي کریم ﷺ یا صحابه کرامو یا تابعینو یا تبع تابعینو په خیر القرون کې چرته د جمعې خطبې د عربي په ځای په عجمي ژبه استعمال کړي وي. په ټولو مقاماتو کې سره ددې نه چې خلک د عربۍ ژبې سره واقف هم نه ؤو خو خطبه په عربۍ کې وه. او دا چې ممبر او محراب د اسلام مرکز دی او د اسلام ژبه عربي ده نو ډیره نامناسبه ده چې د اسلام په مرکزونو کې د اسلام د ژبې په ځای بله ژبه استعمال کړلی شي. علماؤ لیکلي دي چې د عربۍ په ځای په بله ژبه کې خطبه ویل بدعت دی. غیر مقلدینو ته په کار دي چې خپل ځانونه وساتي او په خپلو جوماتونو کې د جمعې په مبارک وخت کې د ممبر او محراب په مینځ کې بدعت ونه کړي. د محققینو علماؤ په نزد د عربۍ نه بغیر په بله ژبه خطبه ویل مکروه تحریمي ده.

## د جمعې د خطبې حیثیت :

د امام شافعي رحمه الله په نزد دوه خطبې فرض دي. او په مینځ کې لږ ساعت لپاره ناسته هم فرض ده. خطبه په ولاړه ویل هم فرض ده او د خطبې دننه لږ ډیر د قرآن تلاوت هم فرض دی. (المرقات ۳/۴۹۸).

د احنافو په نزد مطلق خطبه د جمعې د صحت لپاره شرط دی. بیا امام ابو حنیفه رحمه الله بالکل مختصره خطبه هم جائز مني خو صاحبین وایي چې خطبه دومره اوږده په کار ده چې هغې ته په عرف عام کې خطبه وایي. او چې په هغې کې اوږد ذکر وي او د قرآن آیتونه وي. (المرقات ۳/۴۹۸).

## آیا د لمر د زوال نه مخکې خطبه او جمعه جائز ده :

دا مسئله د دې باب د اولني حدیث په ضمن کې بیانول په کار ؤو خو هلته پاتې شوه لهذا دلته بیانیږي چې آیا د لمر د زوال نه مخکې او غرمې د وخت د راتللو نه مخکې د جمعې مونځ او د هغې خطبه جائز ده یا نا. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام احمد بن حنبل رحمه الله او د امام اسحاق بن راهویه رحمه الله په نزد د جمعې مونځ دی لمر د زوال نه مخکې جائز دی. د هغوی په نزد د جمعې په ورځ مکروه وخت هم نشته دی. لهذا د وخت نه

مخکې د جمعې مونځ کول جائز دی. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ او د جمهورو فقهاؤ په نزد د وخت راتلو نه مخکې د جمعې مونځ نه کېږي او نه جائز دی. (المرقات ۳/۴۹۴).

**دلائل**: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ او اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللّٰهُ د دې باب د اول فصل د حدیث نمبر ۲ نه استدلال کړې دی. چې په هغې کې حضرت سهل وايي چې مونږ به د غرمې ډوډۍ او قیلوله د جمعې د مونځ نه وروسته کوله. (المرقات ۳/۴۹۵).

جمهورو فقهاؤ ددې نه مخکې د حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حدیث نمبر ۱ نه استدلال کړیدی چې په هغې کې په واضحه الفاظو سره ذکر دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د لمر د زوال نه وروسته د جمعې مونځ کولو. (المرقات ۳/۴۹۴).

**جواب**: امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ چې د کوم حدیث نه استدلال کړې دی هغه استدلال واضحه نه دی. په دې حدیث کې دې خبرې طرف ته هم اشاره شوې ده چې د وخت نه مخکې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جمعې مونځ کړیدی بلکې هلته دا بیان دی چې د جمعې په ورځ به مونږ قیلوله وروسته کوله. او ډوډۍ به مو وروسته خوړله. نو ددې نه چرته لازمیږي چې د وخت نه مخکې جمعه شوې وه. او الله تعالی خو ټول مونځونه د وختونو سره تړلي دي د هغې نه مخکې وروسته مونځ کول جائز نه دی ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا﴾ (سورة النساء آیت: ۱۰۳).

## د جمعې مونځ اوږد او خطبه لنډه د هوښیارتیا نښه ده

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَمَّارٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ طُولَ صَلَاةِ الرَّجُلِ وَ |
| عمار رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې: ما د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي چې فرمایل یې: اوږد مونځ کول او |
| قِصَرَ خُطْبَتِهِ مَئِنَّةٌ مِنْ فِقْهِهِ فَأَطِيلُوا الصَّلَاةَ وَاقْصُرُوا الْخُطْبَةَ وَ إِنَّ |
| او مختصره خطبه ویل د ځیرکه سړي علامت دی. لهذا تاسو مونځ اوږد او خطبه مختصره کوئ، ځکه |
| مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا. (رَوَاهُ مُسلم). (۱) |
| ځینې بیان د سحر (په شان تاثیر) لري. |

**توضیح**: **مئنة**: په **میم** باندې **فتحه** ده **همزه** باندې **کسره** ده **نون** باندې **شد** دی. (المرقات ۳/۴۹۹).

---

(۱) أخرجه مسلم ۵۹۴/۲، رقم الحدیث: ۴۷-۸۶۹، دارمي ۴۴۰/۱، رقم الحدیث ۱۵۵۶، مسند أحمد ۲۶۳/۴

"مَئِنَّةٌ" د علامت او د دلیل په معنی دی. یعنې کوم سړي چې لنډه خطبه کوي او مونځ اوږد کوي. دا د هغه سړي فقاهت او هوښیارۍ او د حکمت علامت او دلیل دی خو په دې شرط چې د سنتو مطابق وي. نه ډیره اوږده وي او نه ډیره لنډه وي او د همغې مناسب وي. د دې وجه دا ده چې د جمعې مونځ اصل دی او خطبه د مونځ دپاره فرع ده. او په اصل کې د اهتمام د فرع ډیر په کار دی. هسې هم چې تر کومې پورې خطیب خطبه ورکوي. نو هغه خپله هم د عجب ښکار کیدلی شي او د خلکو توجه هم د خالق په ځای په مخلوق باندې پریوتلی شي. او په مونځ کې هم د عجب نه د عجز طرف ته راځي. او د عوامو توجه هم د مخلوق نه د خالق طرف ته تاؤ شي. نو ځکه په خطبه کې د کم نه کم وخت د ضرورت په درجه کې لګول په کار دي او نور وخت په مونځ کې مصرفول په کار دی. ځینې خطیبان یو نیم ساعت په تقریر کې تیر کړي او بیا د سورت کوثر او د سورت اخلاص سره د جمعې مونځ په درې دقیقو کې ختم کړي. دا ډیر ''لمم او ناداني ده. (المرقات ۳/۴۹۹).

**لسحرا:** د دې کلام دوه طرفه دي: یو خو د مدحي صورت دی، بل په دې کې مذمت دی، که په خطبې سره د خلکو زړونه خپل طرف ته مائل کول مقصود وي نو دا سحر ګر او جادوګر خطیب دی. دا د مذمت صورت دی. او که د خلکو زړونه د الله تعالی اړه ته مائل کول وي دا خوګ بیان جادو اثر لرونکي بیان دی. دا د مدحي صورت دی. بهرحال خطیب کې چې کله اخلاص وي نو د الله تعالی سره به یې ښه ډیر تعلق وي. نو د هغې بیان د عوامو زړونه متاثر کوي. او لفاظی او خوش الحانی وختي تاثیر لري. مګر پائدار نه دی. (المرقات ۳/۵۰۰).

## د خطبې په دوران کې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کیفیت

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا خَطَبَ احْمَرَّتْ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله (د جمعې یا بل وخت) کې خطبه ورکوله نو سرې به |
| عَيْنَاهُ وَ عَلَا صَوْتُهُ وَ اشْتَدَّ غَضَبُهُ حَتّٰى |
| شوې سترګې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اواز به یې اوچت شو او غصه به یې ډیره شوه تردې چې (داسې به |
| كَأَنَّهُ مُنْذِرُ جَيْشٍ يَقُوْلُ : صَبَّحَكُمْ |
| محسوسې دله) ګویا کې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خلک د (د دښمن د لښکر نه) ویروي او فرمایي چې سحر |

وَ مَسَّاكُمْ وَ يَقُولُ :

او ماښام په تاسو باندې د دښمن لښکر حمله کونکی دی او نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به په خطبه کې دا فرمايل

بُعِثْتُ أَنَا وَ السَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ . وَ يَقْرُنُ

چې زه او قیامت په یو ځای داسې رالیږلی شوي یو، د دې ویلو سره به یو ځای کړي نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَابَةِ وَ الْوُسْطَى . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). (۱)

دوه ګوتې یعنې د شهادت ګوته او د مینځ ګوته به یې یو ځای کړلې.

**توضیح** : **احمرت عیناه**: یعنې د امت د غم او ګناهونو کثرت او د کفر او شرکونو تورتمونو او په دې کې د امت د راګیریدلو کتلو د وجې نه به په خطبه کې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سترګې مبارکې سرې شوې. همدغه شان به د خپل امت د هدایت په فکر کې او د موجود خلکو غوږونو ته د اواز رسیدلو په خاطر به د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اواز اوچت شو. ګویا کې په اضطراري حالت کې د د شمن د حملې نه قوم یره وي نو د هغې په وجې سره یې اواز اوچت شو. (المرقات ۳/۵۰۰).

**یقول**: یعنې د هغه لخکر نه به یې خپل قوم یرا ول ګویا کې هغه وایي چې "**صبحکم**" یعنې په تاسو باندې د سحر په وخت کې حمله کونکي دی.

**مسأکم**: یعنې په تاسو باندې دښمن د ماښام په وخت کې حمله کونکی دی. (المرقات ۳/۵۰۱).

دلته دا احتمال هم دی چې د **یقول** ضمیر نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راجع وي. مطلب دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله اعلان کوي چې "**صبحکم**" په تاسو باندې د سحر په وخت کې دښمن حمله کونکی دی یاد د ماښام وخت کې حمله کونکی دی. د دې حدیث نه معلومه شوه چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په اوچت اواز سره او ښه په تیز انداز سره خطبه کوله. او دا جائز ده. او ښه په محنت سره به یې اوریدونکي پوهه کول. ځکه بیداره خطیب د قوم د بیدارولو لپاره بیداره خطبه ورکوي. (المرقات ۳/۵۰۱).

**ویقرن**: یعنې د شهادت او مینځه ګوته به یې ملاؤ کړه او اشاره به یې کوله چې زه او قیامت داسې یو شان یو. لکه څنګه چې دا دوه ګوتې دي. یعنې څنګه چې دا دوه ګوتې د یو بل سره نزدې دې او مینځه ګوته لږه مخکې ده. همدغه شان قیامت زما سره نزدې فقط لږ شان مخکې دی. په دې حدیث کې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قیامت نزدې والي بیان کړیدی. (المرقات ۳/۵۰۱).

---

(۱) أخرجه مسلم ۲: ۵۹۲، رقم الحدیث ۴۳-۸۶۷، ابن ماجه ۱۷/۱، رقم الحدیث ۴۵

## په خطبه کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير د رد ناکه آيت تلاوت کړو

﴿۸﴾ وَ عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ : سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ :

يعلى بن اميه راوي دي وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په ممبر باندې دا (آيت) اوريدلى چې :

﴿ وَ نَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ﴾ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (۱)

اى سرداره! ته خپل پروردګار ته ووايه چې هغه زمونږ کار خلاص کړي.

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د جمعې په مونځ کې سورة "ق" لوستلو

﴿۹﴾ وَ عَنْ أُمِّ هِشَامٍ بِنْتِ حَارِثَةَ بْنِ النُّعْمَانِ قَالَتْ: مَا أَخَذْتُ ﴿ ق وَ الْقُرْآنِ الْمَجِيدِ ﴾

ام هشام بنت حارثة بن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راويه ده وايي چې ما زده کړې دى سورت "ق والقرآن المجيد" د

إِلَّا عَنْ لِسَانِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقْرَؤُهَا كُلَّ جُمُعَةٍ عَلَى الْمِنْبَرِ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خُلې مبارکي نه فقط داسې چې نبي کريم ﷺ به لوستلو هره جمعه په منبر باندې

إِذَا خَطَبَ النَّاسَ . (رَوَاهُ مُسلم) (۲)

چې کله به يې خلکو ته خطبه ورکوله (او ما په اوريدو اوريدو زده کړو).

**توضيح** : دا مطلب نه دى چې هميشه هميشه به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جمعې په مونځ کې سورت "ق" لوستلو. بلکې دا مراد دى چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په کثرت سره سورت "ق" د جمعې په ورځ لوستلو.

ددې نه بغير نور سورتونه لوستل هم د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ثابت دي هيڅ ممانعت نشته دى. (المرقات ۳/۵۰۲).

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تور پټکي تړلى ؤو او د جمعې مونځ يې وکړو

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ خَطَبَ

عمرو بن حريث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جمعې په ورځ په داسې حال کې خطبه فرمايلي

---

(۱) أخرجه البخاري ۸ ۵۶۸، رقم الحديث ۴۸۱۹، مسلم ۲ ۵۹۴، رقم حديث ۴۹-۸۷۱

(۲) أخرجه مسلم ۲ ۵۹۵، رقم الحديث ۵۱ ۸۷۳، مسند احمد ۶ ۴۳۶

وَ عَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ قَدْ أَرْخَى طَرَفَيْهَا

چې په سر مبارک بندې توره پګړۍ تړلې وه چې د پګړۍ دواړه غاړې پرېښې وې نبي علیه الصلاة والسلام

بَيْنَ كَتِفَيْهِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ. (رَوَاهُ مُسلم). ۱

د خپلو دواړه اوږو په مينځ کې.

ضیح: د امت ټولو فقهاؤ او علماؤ ته په کار دي چې د دې حديث نه تعليم زده کړي او د جمعې په ورځ سلامي دريشي خپله کړي. چې په هغې کې جبه او عبا او پګړۍ او نور شيان شامل دي. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سپينه پګړۍ هم د جمعې په ورځ استعمال کړې ده. او توره پګړۍ يې هم استعمال کړې ده. و پګړۍ د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ثابته نه ده اهل بدعت شنه پګړۍ د ډېر وخت نه وروسته په ستعمال راګيدلي دي خو هغوی د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر مبارک نقل کوي د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سنتو سره يې هيڅ کار نشته دی.

## د خطبې په دوران کې د تحية المسجد مسئله

۱۱﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم وَ هُوَ يَخْطُبُ: إِذَا جَاءَ

ابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خطبې په دوران کې وفرمايل چې: کله راشي

حَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ الْإِمَامُ يَخْطُبُ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ

وماتو ته) يو کس په تاسو کې د جمعې په ورځ او امام خطبه لولي نو دوه رکعته مونځ دې وکړي مګر

وَلْيَتَجَوَّزْ فِيهِمَا. (رَوَاهُ مُسلم). (۲)

دوه سپک (مختصر) يې وکړي.

ضیح: فليركع ركعتين: په مشکوة شريف کې دا حديث مختصر دی مسلم شريف دا حديث د حضرت بر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه نقل کړې دی. چې اوږد حديث دی. او په هغې کې قصه داسې ده چې يوه ورځ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جمعې خطبه لوستله چې په دې ساعت کې سليک غطفاني رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جوماتته راغلو او استلو. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ای سليکه! پاسه او مختصر دوه رکعته وکړه. نبي کريم

---

أخرجه مسلم ۲/۹۹۰، رقم الحديث ۴۵۲-۱۳۵۹، أبوداؤد ۴/۳۴۰ رقم الحديث ۴۰۷۷، نسائي ۸/۲۱۱ رقم الحديث ۵۳۴۶، ابن ماجه ۹۴، رقم الحديث ۲۸۲۱

خرجه مسلم ۲/۵۹۷، رقم الحديث ۵۹-۸۷۵، مسند أحمد ۳/۳۱۶

صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کله په تاسو کې یو سړی د جمعې په ورځ راشي او امام خطبه وایي نو هغه ته په کار ده چې هغه مختصر دوه رکعته مونځ وکړي. (المرقات ۳/۵۰۵).

د دې حدیث نه معلومیږي چې د خطبې په دوران کې تحیة المسجد دوه رکعته کول په کار دي. په دې کې د فقهاؤ ډیر سخت اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّهُ وایي چې د خطبې په دوران کې هم دوه رکعته تحیة المسجد کول په کار دي او بیا وروسته خطبه اوریدل په کار دي دا مستحب دي. د غیر مقلدینو حضراتو په نزد تحیة المسجد دوه رکعته عند الخطبه واجب دي.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ، امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ، امام محمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ، امام ابو یوسف رَحِمَهُ ٱللَّهُ او اوزاعی شام او سفیان ثوري رَحِمَهُ ٱللَّهُ ټول وایي چې د خطبې په دوران کې په نورو کارونو مشغولیدل مکروه تحریمي دي اگر که مونځ ولې نه وي لهذا دوه رکعته تحیة المسجد هم جائز نه دی. د حضرت عمر فاروق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ او عثمان رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ او د حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په شان اکابرو صحابؤ نه هم دغه شان منقول دي.(معارف السنن) (المرقات ۳/۵۰۵).

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ او امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ د نظر د لاندې حدیث نه استدلال کړیدی. چې هغه قولي حدیث دی او په هغې کې د قاعدې او د ضابطې په توگه بیان شوي دي چې دوه رکعته مختصر کول په کار دي.

د دې حدیث په اکثره طریقو کې د قاعدې او د ضابطې په توگه حکم نشته دی بلکې د یوې جزئی واقعې په توگه بیان شوی دی چې یو سړی راغلو او نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه لوستله او هغه کیناستلو. نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې پاسه او په مختصره توگه باندې دوه رکعته تحیه وکړه. اوس دغه یوه واقعه ده نو د شوافعو یو دلیل دی او که دوه واقعې وي نو د شوافع او د حنابلو به دوه دلیلونه شي.

امام نووي رَحِمَهُ ٱللَّهُ خو دا حدیث داسې مضبوط دلیل او د قاعده کلیه په توگه منلي ده چې خپله فرمایي:

**"لا اظن عالما یبلغه هذا الحدیث صحیحا بهذا اللفظ ثم یخالفه"**

گویا کې امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ او امام ابو حنیفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ ته دا حدیث نه دی رسیدلی. که رسیدلی وی نو هغوی به کله هم د دې مخالفت نه وی کړی (د احنافو او د مالیکیو د امامانو سره د دې مسئلې په باره کې ډیر دلائل دي چې یو څه یې لاندې وگورئ):

۱: د دې حضراتو اولنی دلیل د قرآن کریم آیت دی ﴿وَإِذَا قُرِىءَ ٱلْقُرْآنُ فَٱسْتَمِعُواْ لَهُۥ وَأَنصِتُواْ الخ﴾ دا آیت چې څنگه د قرأت خلف الامام باره کې دی. همدغه شان د جمعې د خطبې باره کې هم دی. ځکه په خطبه کې هم د قرآن آیتونه وي. نتیجه دا شوه چې د جمعې خطبه اوریدل قرآن په وجه فرض شوه او تحیة المسجد مستحب دی. نو یو مستحب باندې د عمل کولو لپاره فرض پریخودل مناسب نه دي.

۲: د احنافو ام مالیکیو دویم دلیل د دې باب هغه ټول حدیثونه دي چې په هغې کې د خطبې په مینځ کې د چپ کیناستلو حکم دی. مثلاً د حضرت ابو هریره رضي الله عنه په حدیث نمبر ۵ (پنځم) کې دي: **"اذا قلت لصاحبك يوم الجمعة انصت والإمام يخطب فقد لغوت"** (بخاري و مسلم) (المرقات ۳/٤٧٨).

دلته د چا د چپ کولو لپاره چپ لفظ نهی عن المنکر دی. چې واجب دی. مګر د خطبې په دوران کې په دې واجب باندې عمل کولو سره ټول ثواب باطلیږي. نو **تحیة المسجد** یو **مستحب عمل دی. د دې** اجازت د خطبې په دوران کې څنګه کیدی شي؟

۳: د احنافو او د مالکیو دریم دلیل په معجم طبراني کې حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا حدیث دی:

**قال سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول اذا دخل احدكم المسجد والامام على المنبر فلا صلوة ولا كلام حتى يفرغ الامام. (طبراني)**

په مؤطا مالک کې امام مالک رحمه الله دا روایت نقل کړې دی: **"اذا اخرج الامام فلا صلوة ولا كلام" (مؤطا مالك) (المرقات ۳/٥٠٥).**

همدغه شان امام طحاوی په طحاوی کې دا روایت نقل کړې دی: **"خروج الامام يمنع الصلوة وكلامه الكلام" (طحاوي)**

همدغه شان د جمعې په ورځ د مونځو کونکو د رجاتو لیکونکي فرښتې خپلې رجسټرې بندې کړې او خطبه اوري کله چې امام د خطبې لپاره وځی. دغه شان د عهد نبوی کې هم ډیر واقعات موجود دي. چې د نبي کریم صلى الله عليه وسلم په دور کې د خطبې په دوران کې خلک راغلل. نبي کریم صلى الله عليه وسلم لیدلي دی او چاته یې هم د نفل کولو یا د تحیة المسجد حکم نه دی کړی. خپله د ابن مسعود رضي الله عنه مشهوره واقعه ده چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم عام حکم وکړو چې کیني نو حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په دروازه کې کیناستلو. نبي کریم صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې زه تاته نه وایم ته مخکې راشه. په دغه موقع باندې ابن مسعود رضي الله عنه ته د تحیة المسجد حکم نه ؤ شوی. همدغه شان د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خطبې په دوران کې حضرت عثمان رضي الله عنه د غسل نه کولو په وجه ورټلو مګر د دوه رکعتو حکم یې ور نه کړو.

۵: احنافو او ملکیو د مصنف ابن ابی شیبه د روایت نه هم استدلال کړی دی چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د اثر په توګه منقول دی. الفاظ یې دا دي:

**انهما كانا يكرهان الصلوة والكلام يوم الجمعة بعد خروج الامام. (ج: ۲ ص: ۱۲۴)**

همدغه شان په مصنف ابن ابی شیبه کي د حضرت ثعلبه بن مالک د قرظی روایت موجود دی چې هغوی د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عهد مبارک معمول نقل کړې دی فرمایي:

**ادرکت عمر و عثمان فکان الامام اذا اخرج یوم الجمعة ترکنا الصلوٰة فاذا تکلم ترکنا الکلام.**

**(مصنف ابن ابي شیبه حواله بالا)**

د دې ټولو روایاتو او د معمولاتو نه واضحه کېږي چې د خطبې په دوران کې کلام او سلام او نفل تحیة المسجد جائز نه دې.

**جواب**: د حضرت سلیک غطفانی فعلي روایت او د هغې د فعل نه چې شوافع او حنابلو کوم استدلال کړیدی. د دې جواب دا دی چې امام نسائی په خپل کتاب نسائي کې ذکر کړیدي چې سلیک غطفانی یو نوی اوغریب او فقیر سړی ؤو. د هغې جامې شلیدلي او زړې بلکې د نش برابري وي. هغې ته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عین د خطبې په دوران کې په عامه غونډه کې د مونځ کولو لپاره اودرولو چې خلک دا ویني او د دې سره مرسته وکړي دا د هغې سره مرستي کولو یوه بانه وه تحیه عند الخطبة قاعده او ضابطه نه وه. ګویا کې یوه جزئی واقعه وه. چې د یو مقصد لپاره وه. قاعده او ضابطه نه وه. دلته نور هم ډیر احتمالات دي.

یو احتمال دا دی چې خطبه شروع شوي نه وه. دویم احتمال دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خطبې شروع کیدو نه وروسته منع کړی ؤو. دا دار قطنی په واضحه توګه ذکر کړې دي. چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه منع کړي وه.

دریم احتمال دا دی چې دا د جمعې خطبه نه وه بله کومه یوه خطبه هم کیدلی شي. چې دا پیغمبري خصوصیت دی. که چیرې دا احتمالات شوافع نه مني نو مونږ د هغوی نه پوښتنه کوؤ چې دلته تحیة المسجد چرته شوی دی؟ په حدیث په واضحه توګه ذکر دې سلیک غطفانی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اول جومات ته راغلو او کیناستلو. بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پاسو. حال دا چې د ناستي نه وروسته ستاسو په نزد تحیة المسجد نه کېږي. نو بیا د دینه څنګه استدلال کوي؟ لازماً به منل غواړي چې دا څه بله معامله وه. یوه جزئي واقعه ده. د یو خاص مقصد لپاره ده. دا د ضابطي په توګه نه خپلول کېږي. ځکه په دې سره به نور ډیر احادیث او تعامل د امت سره تعارض راشي. پاتي شوه د سلیک غطانی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ متعلق حدیث نو د هغې جواب دا دی چې دار قطنی د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په سل (۱۰۰) روایاتو باندې تنقید کړی دی. په هغې کې همدغه یو ذکر شوی روایت دی چې هغه مسلم شریف په کتاب کې ذکر کړی خو دی خو امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ کیدی شي د همدغې وجې نه په ترجمة الباب کې خو نقل کړیدی خو په اصل کتاب کې یې نه دی درج کړی.

خلاصه دا ده چې د خطبې په دوران کې سلام او کلام منع دی. امر بالمعروف و نهی عن المنکر هم منع دی. ذکر او تلاوت کول هم منع دی. نو تحیة المسجد د یو مستحب اجازت څنګه کیدلی شي. او دا چې دا د اباحت او د حرمت مسئله هم ده. چې په هغې کې ترجیح حرمت ته ورکول کېږي.

## د جمعې یو رکعت موندونکي ته جمعه ملاؤ شوه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: چا چې وموندو يو رکعت |
| مِنَ الصَّلَاةِ مَعَ الإِمَامِ فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ كُلَّهَا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (۱) |
| مونځ د امام سره نو ده وموندلو ټول مونځ. |

**توضیح: من ادرك ركعة:** د دې حدیث د مضمون والا حدیث په **باب ما على المأموم** کې تیر شوی دی. هلته په دې هم بحث شوي دی. دلته صاحب مشکوة دا حدیث د جمعې په باب کې درج کړو حال دا چې د دې حدیث تعلق مطلق د مونځونو باره کې دی د جمعې سره متلعق نه دی. خو دا امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د بحث د لاندې د جمعې سره مقید کړې دی نو ځکه صاحب مشکوة دلته درج کړې دی. د حدیث مطلب دا دی چې کوم سړي د مونځ یو رکعت پوره نه وي نه وموندلو نو هغې پوره مونځ وموندلو. اوس دلته د فقهاؤ په مینځ کې لږ شان اختلاف دی چې مثلاً یو سړي ته د دویم رکعت هیڅ برخه ملاؤ نشوه بلکې په قاعده یا سجده کې شریک شو. نو اوس به هغه د جمعې دوه رکعتونه پوره کړی یا به د غرمې مونځ کوي؟ (المرقات ۳/۵۰۶).

**د فقهاؤ اختلاف:** د ځینو سلفو مسلک دا دی چې که د یو سړي نه د جمعې خطبه هم فوت شوه نو اوس دې هغه د غرمې مونځ وکړي. جمعه دې نه کوي. مګر جمهور فقهاء داسې نه وايي. بیا د جمهور فقهاؤ په مینځ کې اختلاف دی.

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ یعنې جمهور فرمايي چې د جمعې په مونځ کې تر څو پورې سړي ته یو رکعت موندلی نو هغې ته جمعه نه ملاویږي یعنې که سړي ته آخري رکعت بیخي ملاؤ نه شو بلکې سجده یا قعده کې شریک شو نو دده نه د جمعې مونځ فوت شو. اوس به هغه د غرمې مونځ کوي.

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۵۷، رقم الحديث ۵۸۰، مسلم ۱/۴۲۴، رقم الحديث ۱۶۲-۶۰۷، أبوداؤد ۱/۶۶۹ رقم الحديث ۱۱۲۱، سنن الترمذي ۲/۴۰۲، رقم الحديث ۵۲۴، نسائي ۱/۲۷۴، رقم الحديث ۵۵۳، سنن ابن ماجه ۱/۳۵۶، رقم الحديث ۱۱۲۲، دارمي ۱/۳۰۱، رقم الحديث ۱۲۲۰، مؤطا امام مالک ۱/۱۰۵، رقم الحديث ۱۱، کتاب الجمعة، مسند أحمد ۱/۲۴۱

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد که یو سړي ته د جمعې په مونځ کې آخري قعده هم ملاؤ شي نو هغه دې د جمعې مونځ وکړي د غرمې دې نه کوي ځکه هغې جمعه و موندله.

**دلائل**: جمهورو د حضرت ابو هریره د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی خو مفهوم یې د مخالف په توګه کړې دی یعنې چا چې یو رکعت وموندلو نو هغه مونځ وموندلو او چا چې یو رکعت هم ونه موندلو نو هغه بیخي مونځ ونه موندلو. اګر که د بحث لاندې حدیث کې د جمعې ذکر نشته دی. مګر په همدغه باب کې په بل د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حدیث نمبر ۱۹ کې راروان دې په هغې کې جمعې ذکر موجود دی. لهذا د جمهور د مخالف مفهوم په توګه د دې روایت نه استدلال کوي.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او قاضي امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ د دې حدیث نه استدلال کوي: **اذاسمعتم الإقامة فأمشوا إلى الصلوة و عليكم السكينة و الوقار ولا تسرعوا فما ادركتم فصلوا وما فاتكم فأتموا. (بخاري)**

په دې حدیث کې "**فما ادركتم**" کې کله "**ما**" عامه ده چې څومره یې وموندلو که هغه تشهد کې شامل شو نو هغې مونځ وموندلو. دلته اګر که د جمعې ذکر نشته دی. خو دا حکم ټول د مونځونو لپاره یې فرمایلی دی. لهذا دا جمعې ته هم شامل دی.

د احنافو دویم دلیل د حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اثر دی چې په مصنف ابن ابی شبیه کې ذکر دی. الفاظ دا دي "**من ادرك التشهد فقد ادرك الصلوة**".

په همدغه مصنف ابن ابی شبیه کې د حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا روایت هم دی چې د هغه اثر دی فرمایي: **اذا دخل في صلوة الجمعة قبل التسليم وهو جالس فقد ادرك الجمعة وعن الضحاك اذا ادرك الناس يوم الجمعة جلوساصلى ركعتين.**

**جواب**: جمهورو د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړې دی موږ هم دا منو په دې کې دا ذکر دي چې چا یو رکعت وموندلو نو هغې مونځ وموندلو.

موږ هم دا وایو چې په دې حدیث کې د دې نه زیاتي هیڅ نشته دی. که دا حضرات د مفهوم مخالف نه د استدلال کوشش کوي نو په ادب سره عرض دی چې موږ د مفهوم مخالف قاعده نه منو. لهذا مفهوم مخالف په موږ حجت نه دی خاص کر کله چې د منطوق په خلاف هم وي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خطبې تقرير

﴿۱۳﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ كَانَ يَجْلِسُ

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دوه خطبې داسې ويلې چې (اول) به کيناستلو کله

إِذَا صَعِدَ الْمِنْبَرَ حَتّٰى يَفْرُغَ

به چې ممبر ته ختلو تر دې چې فارغ به شو .راوي وايي چې زما گمان دا دی چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ويلي ؤو

أُرَاهُ الْمُؤَذِّنَ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ ثُمَّ

چې تر دې چې مؤذن به فارغ شو . بيا به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ودريدلو او خطبه به يې وفرمايله . بيا به

يَجْلِسُ وَلَا يَتَكَلَّمُ ثُمَّ يَقُوْمُ فَيَخْطُبُ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد). (۱)

کيناستو او خبرې به يې نه کولې بيا به پاڅيدو او بله خطبه به يې ورکړه .

**توضيح : ولا يتكلم**: يعني د دوؤ خطبو په مينځ کې به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبرې نه کولې. د دواړو خطبو په مينځ کې د ناستې مقدار په متعلق ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د سورت اخلاص د ويلو په مقدار ناسته په کار ده. (المرقات ۳/۵۰۶).

**په خطبه کې د بادشاه بې ځايه تعريف ناجائز دی** : مسئله دا ده چې په بله خطبه کې به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کور او د صحابؤ او ازواج مطهراتو او د خلفاء راشدينو حمزه او د عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره دعاء کول مستحب دي. گويا کې د شاهي خاندان دی. نور خلک په هغوی باندې نه شي قياس کيدې. د وخت خليفه لپاره هم دعا کول جائز دې خو په شرح منيه کې ليکل شوي دې چې د بادشاهانو داسې تعريف کول چې خلاف واقعه او غلط وي يا د هغوی داسې اوصاف بيانول چې په هغوی کې نه وي نو دا مکروه تحريمي دي ځکه په عبادتونو کې دروغ ويل شول.

په دې مسئله کې د زمانې په تيريدو سره نور سخت والی راغلو لهذا زمونږ ځينو ائمه حضراتو ويلي دي چې زمونږ د زمانې بادشاهانو ته عادل ويل د حدود کفر ته د نزدې کيدلو مترادف دي. (**كذا في مظاهر حق**)

---

(۱) أخرجه أبوداؤد ۶۵۷/۱، رقم الحديث ۱۰۹۲، مسند أحمد ۳۵/۲

## د خطبې په دوران کې دې مونځ کوونکي د خطیب طرف ته متوجه شي

﴿۱٤﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَوَى عَلَى الْمِنْبَرِ

عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به کله (د خطبې په وخت کې) تشریف راوړو

اسْتَقْبَلْنَاهُ بِوُجُوهِنَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ:

ممبر ته نو مونږ به د نبي کریم صلی الله علیه وسلم طرف ته متوجي شو، امام ترمذي دا روایت نقل کړې دی او ویلي

هٰذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ الْفَضْلِ وَ هُوَ

يې دي چې دا حدیث مونږ صرف د محمد ابن فضل د سند نه غیر د بل چا په سند سره نه پیژنو، او هغه

ضَعِيفٌ ذَاهِبُ الْحَدِيثِ. (ترمذي). (۱)

ضعیف دی، ده ته حدیثونه نه یادیږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په ولاړه خطبه لوستله

﴿۱٥﴾ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَخْطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يَجْلِسُ

جابر بن سمره رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په ولاړه (اوله) خطبه فرمایله بیا به کیناستلو

ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا فَمَنْ نَبَّأَكَ أَنَّهُ

بیا به (دویمې) خطبې ته (هم) پاڅیدلو او خطبه به یې وفرمایله، لهذا که په تاسو کې یو سړي ووایې

كَانَ يَخْطُبُ جَالِسًا فَقَدْ كَذَبَ فَقَدْ وَ اللهِ

چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په ناسته خطبه فرمایله نو بیشکه هغه دروغژن دی. په خدای قسم! ما د نبي

صَلَّيْتُ مَعَهُ أَكْثَرَ مِنْ أَلْفَيْ صَلَاةٍ. (رَوَاهُ مُسلم). (۲)

کریم صلی الله علیه وسلم سره د دوه زرو (۲۰۰۰) نه ډیر مونځونه کړي دي.

**توضیح: قائماً:** په قرآن کریم کې ﴿وَتَرَكُوكَ قَائِمًا﴾ الفاظو نه په یقیني توګه معلومیږي چې نبي کریم

---

(۱) أخرجه الترمذي ۲/۳۸۳، رقم الحديث ۵۰۹

(۲) أخرجه مسلم ۲ ۵۸۹ رقم الحديث ۳۵-۸٦۲

ﷺ به په ولاړه خطبه فرمایله. اسلام یو ژوندي او تابنده مذهب دی. ځکه د دې د اصولو نه او فروع نه معمولي شان خبره هم ورکه نه ده. دلته وګورئ چې د خطبې په دوران کې د نبي کریم ﷺ په ممبر باندې د قیام ذکر هم شته دی.

**الفي صلوٰة**: د دوه زره (۲۰۰۰) مونځونو نه عام مونځونه او جمعې مراد دي. فقط د جمعې مونځونه مراد نه دي. ځکه د جمعې مونځونه په مدینه کې شروع شوي ؤو. او هلته د نبي کریم ﷺ د ژوند مبارک موده لس کاله وه. او په لس کالو کې د پنځه سوه (۵۰۰) مونځونو نه ډیر نه شي کیدې. لهذا! حضرت جابر رضي الله عنه عام مونځونه مراد اخلي. او په دې کلام سره د هغې مقصد دا دی چې د نبي کریم ﷺ سره هغه په ډیر زیات رفاقت کې پاتې شوی دی. (المرقات۵۰۸-۳/۵۰۹).

د خطیب لپاره مستحب ده چې د هغې په لاس کې نیزه یا توره وې چې په هغې سره اشاره کېږي چې د دې دین احکامات محفوظ دې ځکه د جهاد عمل جاري دی. چې کوم ښار د تورې په زور فتح شوي وي لکه مکه نو هلته دې د جمعې په ورځ خطیب په لاس کې توره واخلي او خطبه دې ولولي. او کوم ښار چې په صلحې سره فتح شوي وي نو هلته دې بغیر د تورې نه خطبه ولوستل شي. **ینابیع** کې لیکل شوي دې چې دویمه خطبه دې لږ په قلاره او از سره وویل شي. (المرقات ۳/۵۰۸).

## په ناسته خطبه جائزه نه ده

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ : أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ |
| او د کعب ابن حجره باره کې منقول دی چې هغه (یو ځل د جمعې په ورځ) په جومات کې (هغه وخت) داخل |
| وَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أُمِّ الْحَكَمِ يَخْطُبُ قَاعِدًا |
| شو. کله چې عبدالرحمن ابن ام الحکم (چې د بنو امیئ نه ؤ) په ناسته خطبه لوستله. نو کعب ابن حجره |
| فَقَالَ : انْظُرُوا إِلٰى هٰذَا الْخَبِيثِ يَخْطُبُ قَاعِدًا وَ قَدْ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى : |
| وویل چې (لږ) د دې خبیث طرف ته وګورئ په ناسته خطبه وایي حال دا چې د الله تعالی ارشاد دی: یعنې |
| ﴿ وَ إِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوا إِلَيْهَا وَ تَرَكُوكَ قَائِمًا ﴾. (رَوَاهُ مُسلم). (۱) |
| کله چې خلک سوداګري یا لوبې کوي نو د هغوی طرف ته منډې وهي او تا په ولاړه پریږدي. |

**توضیح**: وعبدالرحمن: دا سړی د بنو امیه نه ؤ. د وخت د حاکم د طرف نه والي ؤو. ده په ناسته خطبه

---

(۱) أخرجه مسلم ۵۹۱/۲، رقم الحديث ۳۹-۸۶۴

ورکوله. چې جلیل القدر صحابي پرې په سختو الفاظو سره تنقید وکړو او منکر باندې رد کول د صحابؤ یو لویې امتیاز ؤو. (المرقات ۳/۵۰۹).

**تجارة**: په مدینه منوره کې ځل ډیره سخته وچ کالي راغله. د هغه وچ کالي په وخت کې د شام نه یوي قافلي غله راوړله. د جمعې ورځ وه. چې د جومات خلکو ته پته ولګیده نو د مجبوري په وجه د قافلي طرف ته په منډو شول. نبي کریم ﷺ په ممبر ولاړ ؤو. یو څو صحابه هم ؤو. مګر اکثر باهر لاړل. د همدغه متعلق دا ایت نازل شو. چې په هغې د نبي کریم ﷺ په ممبر باندې د ولاړ پاتې کیدلو بیان دی. الحمدلله د دین اسلام یوه یوه شعبه او د هغې ټولي نښاني محفوظي او په امن کیدي. آیا د دینا یو مذهب والاد خپل نبي یا د دیني پیشوا د حالاتو دغه شان پوره نقشه خودلی شي؟ نه هرګز نه. دا نعمت فقط د اسلام او د اهل اسلام والاؤ ته حاصل دی. (المرقات ۳/۵۰۹).

## د خطبې په دوران کې حرکتونه کول او لاسونه خوځول مناسب نه دي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عُمَارَةَ بْنِ رُوَيْبَةَ : أَنَّهُ رَأَى بِشْرَ بْنَ مَرْوَانَ عَلَى الْمِنْبَرِ |
| او د عماره ابن رویبه باره کې منقول دې چې هغوی (یو ځل) بشر ابن مروان ته په ممبر باندې (د خطبې |
| رَافِعًا يَدَيْهِ |
| په وخت کې) خپل لاسونه اوچتولو باندې ولیدو (لکه نن سباچې مقررین او واعظین د تقریرونو په دوران |
| فَقَالَ : قَبَّحَ اللهُ هَاتَيْنِ الْيَدَيْنِ |
| کې د خطابت په جوش کې خپل لاسونه اوچتوي) نووې ویل چې: الله تعالی دده دواړه لاسونه هلاک کړي |
| لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَزِيدُ عَلَى أَنْ يَقُولَ بِيَدِهِ هٰكَذَا |
| ما نبي کریم ﷺ لیدلی دی چې په خپل لاس سره به یې ډیري اشاري نه کولي، ددې وینا سره هغه |
| وَأَشَارَ بِأُصْبُعِهِ المسبحة. (رَوَاهُ مُسلم). (۱) |
| د خپلې شهادت ګوتې سره اشاره وکړه. |

**توضیح**: **قبح الله**: په دې حدیث کې صحابي د وخت د حکمران یو منکر باندې په سختو الفاظو کې تنقید کړیدی. هغه سړي د خطبې په دوران کې د ضرورت نه لاسونه زیات خوځول. (المرقات ۳/۵۱۰).
علماؤ لیکلي دي چې د خطبې په دوران کې لاسونه خوځول یا اوچتول دا یوه طبعي او عادي معامله ده.

---

(۱) أخرجه مسلم ۲/۵۹۵، رقم الحدیث ۵۳-۸۷٤.

نبي کريم ﷺ به د خپل عادت مطابق فقط ګوتي سره اشاره کوله. لاس به يې د ير نه خوځولو. د دهغه شان عادتونو د خپلولو څوک په سختۍ سره پاېند کولی نشي. خو صحابه کرام رضي الله عنهم دا چې د نبي کريم ﷺ عاشقان ؤو. هغوی به د نبي کريم ﷺ په اداګانو کې يو بدلون هم نه شو برداشت کولی. ځکه يې په يو امرعادي کې يې خلاف کولو باندې دا سرې ورتلو ابو سخته جمله يې استعمال کړه. فجزاه الله خيرا. (المرقات ۳/۵۱۰).

## د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د اطاعت مثال

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: لَمَّا اسْتَوَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الجمعة عَلَى الْمِنْبَرِ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ يو ځل د جمعې په ورځ (د جمعې د پاره) په منبر باندې ودريدلو |
| قَالَ : اجْلِسُوا فَسَمِعَ ذٰلِكَ ابْنُ مَسْعُودٍ |
| او صحابؤ ته يې وفرمايل چې (د خطبې د اوريدلو لپاره) کينئ. چې عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه کله دا |
| فَجَلَسَ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ فَرَآهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ارشاد واوريدونو هغه د جومات په دروازه کې کيناستل چې نبي کريم ﷺ هغه وليدلو نو وي |
| فَقَالَ: تَعَالَ يَا عَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ). (۱) |
| فرمايل چې اى عبد الله ابن مسعوده! ته دلته راشه. |

**توضيح : باب المسجد:** د صحابه کرامو رضي الله عنهم اطاعت وګورئ چې په غوږونو يې د "**اجلس**" آواز ولګيدو بيا يې دې ته ونه کتل چې چاته وايي يا ځاې هم د کيناستلو دى يا نه، هيڅ شي ته يې ونه کتل بلکي فقط حکم ته يې وکتل چې د کيناستلو حکم شوى دى اوس کيناستل دي. (المرقات ۳/۵۱۱).
دلته حضرت ابن مسعود رضي الله عنه همدغه شان وکړل او په دروازه کې کيناستلو. نو هغه بيا نبي کريم ﷺ په خوګو الفاظ سره راوغوښتلو "**تعال يا عبد الله ابن مسعود** رضي الله عنه".
علماؤ ليکلى دي چې دا خبري د خطبې د شروع کيدلو نه مخکې وي ځکه وروسته بيا د خطبې په دوران کې خطيب هم خبره نه شي کولی. د دې حديث نه دا خبره په واضحه توګه ثابته شوه چې د خطبې په دوران کې تحية المسجد جائز نه دى. ګيني نبي کريم ﷺ به حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته حکم کړى وى چې دوه رکعته مونځ وکړه. (المرقات ۳/۵۱۱).

---

(۱) أخرجه أبو داود ۱/۶۵۶، رقم الحديث ۱۰۹۱.

## د جمعې مونځ نه موندلو په صورت کې د غرمې لمونځ کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَدْرَكَ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: چا ته چې ملاو شي (دامام سره) د |
| مِنَ الْجُمُعَةِ رَكْعَةً فَلْيُصَلِّ إِلَيْهَا أُخْرَى |
| جمعې د ورځې يو ركعت نو د هغه سره دې دويم ركعت هم وكړي (يعنې دويم ركعت دې يو اځې وكړی |
| وَمَنْ فَاتَتْهُ الرَّكْعَتَانِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا أَو |
| او مونځ دې پوره كړي) او كوم سړي ته چې دواړه ركعته ملاؤ نه شي نو هغه دې څلور ركعته وكړی يا |
| قَالَ: الظُّهْرَ. (رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ). (۱) |
| يې وفرمايل چې د غرمې مونځ دې وكړي. |

**توضيح: الركعتان:** يعنې كه د جمعې په دواړو ركعتونو كې هيڅ يو ركعت ملاؤ نه شو، نه تشهد او نه سجده، نو اوس به هغه سړی د جمعې مونځ په ځاې د غرمې څلور ركعته وكړي.
د دې حديث د ظاهري الفاظو نه هم جمهورو استدلال كړی دی چې د يو ركعت ملاويدل د جمعې د موندلو لپاره ضروري دی. د دې مسئلې تفصيل مخكې تير شوی دی. (المرقات ۳/۵۱۲).



(۱) أخرجه الدار القطني ۲/۱۱، رقم الحديث ۷

۲۳ جمادی الاول ۱٤۱۰هـ

# باب صلوة الخوف

## دويرې د مونځ بيان

قال الله تعالى: ﴿ وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُم مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَى لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً ﴾

(سورة نساء آيت: ۱۰۲)

د صلوة خوف مشروعيت کله وشو په دې کې ډير اقوال دي: د ځينې علماؤ قول دی چې د صلوة خوف مشروعيت په څلورمه هجری کې شوی ؤو، ځينو پنځمه هجري، ځينو شپږمه هجري او ځينو اومه هجري قول کړيدي. مګر جمهور علماء څلورمي هجری ته ترجيح ورکوی. د ټولو نه اول دا مونځ د مکې او جدې په مينځ کې په يو مقام کې شوی ؤو چې د هغې نوم عسفان دی. په حديث کې دا سې تصريح ده چې د ضجنان غر او عسفان په مينځ کې اولنی مونځ ويرې ادا شوی ؤو. د کفارو د ويرې او د دښمن د حملې کيدلو په وخت کې چې مونځ کېږي هغې ته ويرې مونځ وايي. د ويرې دا مونځ د کتاب الله نه ثابت دې او تر يو حد پورې په کتاب الله کې د دې د ادا کولو طريقه هم بيان شوې ده. دا مونځ د سنت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه هم ثابت دی. البته د حالاتو د مقاماتو د نظر لاندې د دې مختلفې طريقې څرګندې شوې دي. امام ابو داؤد رَحِمَهُ اللهُ په خپل سنن کې د دې مونځ اته (۸) طريقې بيان کړې دي. (المرقات ۳/۵۱۴).

ابن حبان نهه (۹) طريقې ذکر کړې دي. ابن حزم رَحِمَهُ اللهُ د دې متعلق مستقل جز ليکلی دی په هغه کې ده څوارلس (۱۴) طريقې بيان کړيدي او ځينو شپاړس (۱۶) طريقې بيان کړې دي.

په دې باندې د امت اتفاق او اجماع ده چې د ويرې مونځ يو مشروع او جائز مونځ دی او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ نه بار بار ثابت شوې دي.

د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته خلفاء راشدينو او د صحابؤ په دور کې د دې مشروعيت پاتې ؤو. په دې باندې هم د جمهورو اتفاق دی. البته د امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ نه يو روايت دی. هغه فرمايي چې د ويرې مونځ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خاص ؤو. کله چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو نو اوس دا مونځ مشروع نه دی. (المرقات ۳/۵۱۴).

**د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ دليل:** امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ قرآن د آيت ﴿وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ﴾ نه استدلال كوي چې په دې كې په خاصه توګه باندې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خطاب دی. او د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د موجوديت طرف ته واضحه اشاره ده. ګويا د ويرې د مونځ لپاره د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ موجوديت قيد او شرط دی. نو چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دنيا كې پاتې نشو نو د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مخصوص دا مونځ پاتې نشو. دويم دليل دا چې د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د موجودګۍ كې به خلكو د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بغير بل چا پسې مونځ كول نشو برداشت كولی. لهذا د بيل بيل جماعتونو ګنجائش نه ؤو. د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ نه وروسته دا صورت پاتې نه شو. لهذا د يو جماعت په ځاې ډير ډير جماعتونه شي نو هيڅ ضرورت نشته دی.

خو په دې مسئله كې چا هم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ سره ملګرتيا نه ده كړې ځكه دا رائی د هغې د تفرداتو او په شواذ كې شميرل شوي ده. بيا د جمهورو فقهاؤ په نزد د ويرې مونځ د كولو په طريقو كې څه اختلاف دی. (المرقات ۳/۵۱۴).

**د امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په دويرې د مونځ طريقه** امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې په احاديثو كې څومره طريقې څرګندې شوې دې هغه د موقع او مقام او د حالت او د زمان د نظر لاندې ټولې طريقې جائز دي. علماء وايي چې د دوه طريقونه بغير د امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد ټولې طريقې جائز دي.

**د امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد ويرې د مونځ طريقه**

د اما شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد هم د ويرې د مونځ ډيرې طريقې دي. البته د هغوی په نزد يوه طريقه راجحه او غوره ده. هغه طريقه دا سې چې امام به خلک په دوه جماعتونو تقسيم كړي: يوه ډله به د دښمن په مقابله كې ودروي او بلې ډلې سره به يو ركعت وكړي. دا ډله به دويم ركعت وكړي او لاړ به شي او د پوستې ډله به د مونځ لپاره راوليږي او امام به د هغوی انتظار كي اوسي. كله چې هغه ډله راشي نو د امام سره به يو ركعت وكړي. اوس امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې امام به د قعدې نه وروسته سلام وګرځوي او فارغ به شي. مګر امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې سلام دې نه ګرځوي بلكې د مقتديانو انتظار دې وكړي. كله چې دويمه ډله مونځ پوره كړي نو د امام سره دې سلام وګرځوي او د مونځ نه دې فارغ شي. د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په مينځ هم د غه لږ شان فرق دی. په دې طريقه كې دا ښه والې خو شته دی چې په دې مونځ كې د مقتديانو تګ راتګ خو نشته دی خو په دې كې نقصان دا دی چې د قلب (زړه) موضوع لازم راځي هغه دا چې امام به د مقتديانو انتظار كوي نو پيش امام به د "شا" امام جوړ شي.

دويم نقصان دا چې د اولنۍ ډلې مقتديان به د مونځ نه د امام نه مخكې فارغه شي. دا هم قلبي موضوع ده چې امام لا تر اوسه په مونځ كې دي او مقتديان فارغه شو او پوستې او سنګر ته ورسيدل.

**د احنافو په نزد دويري د مونځ غوره طريقه** :د احنافو د ويري د مونځ يوه طريقه په متون کې ذکر ده. او يوه طريقه په شروحاتو کې ذکر ده دواړه طريقې غوره دي. د احنافو په کتابو کې په متون کې چې کومه طريقه ذکر ده هغه داسې ده چې امام به ټول مونځ ګزاره په دوه ډلو کې تقسيم کړي. اوله ډله به مونځ ته راشي او بله ډله به د دښمن مخې ته ودريږي. اوله ډله به يو رکعت د امام سره وکړي او د دښمن مقابلې ته به د مونځ په حالت کې به د پوستې طرف ته لاړ شي. د هلته نه به دويمه ډله راشي او د امام سره به يو رکعت وکړي. امام به د سلام نه وروسته فارغ شي. ځکه دا د سفر د حالت مونځ دی چې دوه رکعته دی. بهرحال دا ډله به د مونځ په حالت کې پوستې او سنګر ته لاړ شي او د هلته نه به اوله ډله راشي او دويم رکعت به پوره وکړي او لاړه به شي او هغه دويمه ډله به راشي او مونځ به پوره کړي.

په دې طريقې تګ او راتګ ډير زيات دی او دا طريقه **اقرب الی حکم القرآن** ده ځکه د قرآن آيت کې هم ډير تګ راتګ ذکر دی. احنافو د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حديث نه دا طريقه اخستلې ده.
دا چې د مونځ باره کې دا ويل شوي دي چې د کوم ځای نه شروع شي او هملته دې ختم کړی شي. نو ځکه تګ راتګ ډير شو. مونږ ته دلته دا خيال ساتل په کار دي. چې اوله ډله کله خپل دويم رکعت پوره کړی نو هغه به قرأت نه کوي بلکې چپ به ولاړ وي ځکه هغه وروستني دې او وروستي به په خپل مونځ کې قرأت نه شي کولی.
د احنافو په کتابونو کې چې کومه مختاره طريقه ليکلې شوي ده هغه دا ده چې دويمه ډله چې کله يو رکعت وکړي نو د پوستې طرف ته به بغير د مونځ نه لاړ شي بلکې خپل دويم رکعت به پوره کړي او لاړ دې شي. اوس دواړه طريقو ته د احنافو په نزد ځکه مختار ويل شوي دي چې په اوله طريق کې خوځيدل راخوځيدل او تګ راتګ ډير دی. او په بله طريقه کې اګر که خوځيدل لږ دې خو په هغې کې نقصان دا دی چې لاحقينو نه مسبقين زر فارغ شو. حال دا چې د اصولو مطابق به وروستني د مخکنيو نه اول فارغيږي. غرض دا چې په دواړو طريقو کې څه ښه والی او څه نقصان شته دی. لهذا دواړه په مختار کيدو کې مساوي دي.

**دلائل** :مالکيو او شوافعو د دې باب د حديث نمبر ۲ نه استدلال کړيدی چې د حضرت يزيد رومان رضي الله عنه نه روايت دی او بخاری دا د سهل بن ابی حشمه رحمه الله نه روايت کړيدی. د احنافو ائمؤ د باب د اولني حديث نه استدلال کړيدی چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه منقول دی. د ابن عمر رضي الله عنه دا روايت د قرآن کريم سياق او سباق ته ډير نزدې دی. لهذا د احنافو مختاره طريقه اقرب الی القرآن دی.

**جواب**:ماليکيو او شوافعو خپله مختاره طريقې ته افضله ګڼلې ده. ځکه په هغې کې تګ راتګ نشته دی. مونږ د دې جواب ورکؤو چې د مونځ د ننه خوځيدل راخوځيدل او تګ راتګ د شريعت د قواعدو په رڼا کې د مجبوري په وخت کې صحيح او معهود او معروف دی. لکه د لړم او د مار چيچلو لپاره يا د

بي او دسه د او دس لپاره تګ راتګ ثابت دي. خو شوافعو او مالکيو چې کومه طريقه خپله کړې ده. هغه خو د امامت د اصولو خلاف ده. او په هغې د قلب موضوع ده چې امام تابع شي او مقتدي متبوع شي. لهذا دا طريقه افضله نه ده بلکي کومه طريقه چې مونږه خپله کړيده هغه افضله ده. بهر حال دا د اولی او غير اولی مسئله ده د جواز او د عدم جواز اختلاف نه دی. (المرقات ۳/۵۱۸).

**دوه طريقي معمول به نه دي:**

خو په دې ټولو طريقو کې دوه طريقي داسي دي چې په هغې باندې عمل امکان نه لري.

اوله طريقه دا ده چې هره طريقه يو يو رکعت وکړي او لاړ دې شي. د امام به دوه رکعته وي او د قوم به يو يو رکعت وي دا طريقه د جمهور فقهاؤ په نزد جائز نه ده. اګر که امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ دا هم جائز ګڼلي په دې طريقه کې مشکل دا دی چې يو رکعت مونځ په شريعت کې معهود او معروف نه دی.

دويم طريقه معمول به طريقه هغه ده چې هره ډله دوه دوه رکعته وکړي نو د امام به څلور رکعته شي او د مقتديانو به دوه دوه رکعته شي. په دې کې مشکل دا دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دوه رکعتونو باندې سلام ګرځولی دی. که چيرې دا مونځ د مسافرؤ نو څلور رکعته ولي شو؟ او که دا مونځ د مقيم وي نو په مينځ کې يې سلام ولي وګرځولو؟ بهرحال په دې کې به دا تاويل کېږي چې دا د هغه وخت خبره ده کله چې فرض مونځ دوه ځله ادا کيدی. دا طريقه صاحب مشکوة په فصل ثانی کې اولني حديث نمبر ۵ کې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت به حوالي سره ذکر کړی دی. هلته به په دې کې نوره تشريح او توضيح او توجيه ذکر ده. (المرقات ۳/۵۱۸).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دور کې دويرې د مونځ يوه طريقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ |
| سالم ابن عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل پلار (حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه روايت کوي چې هغوی |
| قَالَ : غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ |
| وويل چې مونږ (يو ځل) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د نجد طرف ته د جهاد لپاره لاړو (کله چې) مونږ |
| فَوَازَيْنَا الْعَدُوَّ فَصَافَفْنَا لَهُمْ فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دښمنانو ته مخامخ شو نو مونږ د هغوی (مقابلي) لپاره صفونه جوړ کړل نو او دريدو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يُصَلِّي لَنَا فَقَامَتْ طَائِفَةٌ مَعَهُ . |
| مونږ د مونځ کولو لپاره نو يوې ډلې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره (د مونځ د پاره) ودريدو او بله ډله د |

وَ أَقْبَلَتْ طَائِفَةٌ عَلَى الْعَدُوِّ وَ رَكَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِمَنْ

دښمن په مقابله کې ودریدله نویوه رکوع وکړه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه خلکو سره چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

مَعَهُ وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ

سره (د مونځ په ډله کې) شریکه وه او دوه سجدې یې وکړې بيا هغه خلک (چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په

انْصَرَفُوا مَكَانَ الطَّائِفَةِ الَّتِيْ لَمْ تُصَلِّ

مونځ کې وه) د هغه خلکو په ځای لاړل چا چې مونځ نه ؤو کړی (او د دښمن په مقابله کې ودریدل) کومو

فَجَاءُوْا فَرَكَعَ رَسُوْلُ

خلکو چې مونځ نه ؤو کړی هغه راغلل (او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په مونځ کې شریک شو) نو رکوع وکړه رسول

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِهِمْ رَكْعَةً وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ

الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه خلکو سره او دوه سجدې یې وکړې بيا یې سلام وګرځولو او بيا دا خلک ودریدل

كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ فَرَكَعَ لِنَفْسِهِ رَكْعَةً وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ. وَ رَوَى نَافِعٌ نَحْوَهُ

او هريو خپله خپله يوه رکوع او دوه دوه سجدې وکړې نافع هم دغه شان روایت بیان کړی مګر هغه دومره

وَ زَادَ : فَإِنْ كَانَ خَوْفٌ هُوَ أَشَدُّ مِنْ ذَلِكَ

ډیر نه دی بیان کړی چې که (عین د جنګ په حالت کې او) ویره د دې نه هم ډیره وي (چې پاس ذکر شوي

صَلُّوْا رِجَالًا قِيَامًا عَلَى أَقْدَامِهِمْ

طریقې سره مونځ کول امکان نه لري) نو مونځ دې وکړي خلک پیاده، یا په ولاړه او یا (که پیاده نه وي)

أَوْ رُكْبَانًا مُسْتَقْبِلِي الْقِبْلَةِ أَوْ غَيْرَ مُسْتَقْبِلِيهَا

نو په سورلۍ باندې (که امکان لري نو) قبلې طرف ته (او که ممکن نه وي) چې هر طرف ته مخ کړي وي

قَالَ نَافِعٌ لَا أُرَى ابْنَ عُمَرَ ذَكَرَ ذَلِكَ إِلَّا عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ). (۱)

نافع وايي چې زما دا خیال دی چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا الفاظ به د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کړي وي.

**توضیح: فوازینا:** دا صیغه د موازات نه د متکلم مع الغیر صیغه ده د مقابل کیدو په معنی سره

---

(۱) أخرجه البخاري ۴۲۹/۲، رقم الحديث: ۹۴۲، نسائي ۱۷۱/۳، رقم الحديث ۱۵۳۹، دارمي ۴۲۸/۱، رقم الحديث ۱۵۲۱، مسند احمد ۱۵۰/۲.

دی.(المرقات ۳/۵۱۵).

**صافقنا لهم**: یعني د دشمن په مقابل کې د جنګیدو د پاره مونږ هم د هغوي د مقابلې د پاره صفونه جوړ کړل. (المرقات ۳/۵۱۵).

**قبل نجد**: نجد او چتي زمکي ته وايي. د نجد نه مراد دلته نجد حجاز دی نجد یمن نه دی. (المرقات ۳/۵۱۵-۵۱۴).

نن سبا په سعودی باندې د نجد د اوسیدونکو حکومت دی، د صن اطراف نجد دی.

**فرکع لنفسه**: په حدیث کې چې د ویرې د مونځ کومه طریقه دا د احنافو په نزد مختار ده او اقرب الی القرآن ده. په دې حدیث کې اګر که هغه ټوله طریقه موجوده نه ده کومه چې احنافو اخیستې ده خو په حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې موقوف یوه حدیث کې هغه طریقه په پوره توګه ذکر ده. چې هغه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب الآثار کې ذکر کړې ده. (المرقات ۳/۵۱۵).

د احنافو ائمه وايي چې که د مازیګر مونځ وي نو اوله ډله به دوه رکعته وکړي او دویمه ډله به یو رکعت وکړي.

**رجالا قیاما علی اقدامهم**: یعني که ویره ډیره سخته وي نو بیا پیدل په تلو تلو کې مونځ کېږي. په دې کې به د رکوع او د سجدې لپاره اشاره کېږي. او که په سورلۍ باندې سپور وي نو په اشاره باندې به فرض مونځ وکړي که د قبلې طرف ته وي او که نه وي. (المرقات ۳/۵۱۵).

د احنافو ائمه وایی چې په دغه شان صورت کې هغه سړی مونځ کولی شي چې هغه مطلوب وي یعنې دښمن هغې پسې وي او د هغې د راګیرولو لپاره هغې پسې منډې وهي. احناف وايي چې د طالب لپاره داسې مونځ کول جائز نه دی. یعنې کوم سړي چې دښمن پسې وي او دښمن مخکې تختې. د دې حدیث نه معلومه شوه چې د فرض مونځ څومره مهم شی دی او دا د الله تعالی څومره مهم حکم دی چې په دې حالت کې هم مونځ نه شي پرېښودل کېدی. همدغه شان د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې جهاد څومره مهم حکم دی ځکه د عباداتو ټولې نقشې ماتېږي خو جهاد موقوف یا مؤخر کېدی نه شي. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې فرض مونځ په یو مکرر وخت کې نه شي کېدلی ګیني امام به بیل بیل دوه ځل کولی. علماء لیکي چې د ویرې د مونځ دا صورت په هغه وخت کېدی کله چې د یو امام پسې خلک د مونځ کولو ټینګار کوي او بل امام پسې مونځ نه کوي لکه څنګه چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې ؤ. خو که جدا جدا امامانو پسې خلک مونځ کوي نو بیا به د ویرې د مونځ د دغه صورت ضرورت نه پېښیږي. بهر حال دا حدیث په جزوي توګه بندې د احنافو دلیل دی.

## دويرې د مونځ يوه بله طريقه

﴿۲﴾ وَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَمَّنْ

يزيد بن رومان د صالح ابن خوات نه او داد هغه سړي نه (د ويرې د مونځ طريقه) نقل کوي چې د ويرې

صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ صَلَاةَ الْخَوْفِ : أَنَّ طَائِفَةً

مونځ يې کړې ؤ د رسول الله ﷺ سره د ذات الرقاع په ورځ کې چې (په هغه ورځ) يو جماعت د نبي

صَفَّتْ مَعَهُ وَ طَائِفَةٌ وِجَاهَ الْعَدُوِّ

عليه السلام سره (د مونځ لپاره) صفونه جوړ کړل او بل جماعت د دښمن مقابلې ته په صف کې ودريدل نو نبي

فَصَلَّى بِالَّتِي مَعَهُ رَكْعَةً ثُمَّ ثَبَتَ قَائِمًا

عليه السلام د هغه جماعت سره چاچې د هغه سره يو رکعت مونځ کړى ؤ (يو رکعت يې پوره کړو) نو ودريدل او

وَ أَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ ثُمَّ

هغه جماعت خپل مونځ پوره کړو (يعنې دويم رکعت هغوى ځان له وکړو بيا د هغې نه وروسته دا جماعت (د

انْصَرَفُوا فَصَفُّوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ

مونځ نه فارغ شو) واپس شو او د دښمن مقابل کې يې صف جوړ کړو او هغه جماعت چې د دښمن مقابل کې

وَ جَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى فَصَلَّى بِهِمُ الرَّكْعَةَ الَّتِي بَقِيَتْ مِنْ صَلَاتِهِ

په صفونو کې ولاړ ؤ (د مونځ لپاره) راغلل نو نبي عليه السلام دويم رکعت چې پاتې ؤ د هغه جماعت سره وکړو

ثُمَّ ثَبَتَ جَالِسًا وَ أَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ

او (التحيات ته) کيناستو او هغه جماعت خپل هغه اولنى رکعت چې پاتې ؤ هغه يې ځان له وکړو او په التحيات

ثُمَّ سَلَّمَ بِهِمْ . (مُتَّفقٌ عَلَيْهِ) [1]

کې د نبي کريم ﷺ سره شريک شول. نبي کريم ﷺ د هغوى سره سلام وګرځول.

وَأَخْرَجَ الْبُخَارِيُّ بِطَرِيقٍ آخَرَ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

---

(۱) اخرجه البخاري ۴۲۱/۷، رقم الحديث ۴۱۲۹، مسلم ۱ ۵۷۵، رقم الحديث ۸۴۲-۳۱۰، ابوداؤد ۳۰/۲، رقم الحديث ۱۲۳۸، ترمذي ۴۵۵/۲، رقم الحديث ۵۶۵، نسائي ۳ ۱۷۱، رقم الحديث ۱۵۳۷، دارمي ۴۲۹/۱، رقم الحديث ۱۵۲۲

**توضيح** : ذات الرقاع : د يوې غزوې نوم دی چې په ۵ھ کې شوې ؤو. (المرقات ٣/٥١٨).

رقاع: د ټوټې ټوکړې او چيرړو ته وايي. دا چې په دې غزوه کې د صحابه کرام رضي الله عنهم سره بوټان ؤو يا نه ؤو يا شليدلي ؤو او هغوی لوڅې خپې سفر کولو چې د هغې په وجه د هغوی ښپې زخمي شوې او په هغې کې سوري وشو نو بيا هغوی د خپلو ښپو نه د ټوټو چيرړې وتړلې نو ځکه د دې غزوې مونځ ذات الرقاع شو. ځينې علماء وايي چې په کومه زمکه مجاهدينو سفر کولو نو په هغه کې مختلف رنګ او ټوټې وې نو ځکه هغې غزوې ته ذات الرقاع وويل شو. (المرقات ٣/٥١٨).

په دې حديث کې چې د ويرې د مونځ کومه طريقه ده دا د امام مالک رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله د مسلک موافق دی. دا حديث د هغوی دليل دی لکه څنګه چې د دې نه مخکې حديث د احنافو دليل دی او د حنابلو په نزد ټولې طريقې جائز دي.

لطف سجن دم بدم قہر سجن گاہ گاہ ۞ وہ بھی سجن واہ واہ وہ بھی سجن واہ واہ

## دويرې د مونځ يو بله طريقه او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم شجاعت

| |
|---|
| ﴿٣﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : أَقْبَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَتَّى إِذْ كُنَّا |
| جابر رضي الله عنه وايي چې مونږ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره (د جهاد لپاره) روان شو تر دې چې مونږ ورسيدو |
| بِذَاتِ الرِّقَاعِ قَالَ : كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا عَلَى شَجَرَةٍ ظَلِيلَةٍ |
| ذات الرقاع ته جابر رضي الله عنه وايي چې (زمونږه قاعده وه) چې مونږ به کله سيورې کونکې بوټی ومونده نو |
| تَرَكْنَاهَا لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| مونږ به هغه نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته پريخودو (چې نبي عليه السلام د هغې د لاندې آرام وکړي) نو په ذات الرقاع |
| قَالَ : فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ سَيْفُ |
| کې داسې وشو چې نبي عليه الصلاة والسلام د يو سيورې والا ونې لاندې آرام کولو نو يو مشرک راغلو او توره |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعَلَّقٌ بِشَجَرَةٍ فَأَخَذَ سَيْفَ نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَرَطَهُ |
| د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ونې ته زوړنده وه نو را وايې خيسته توره د نبي کريم صلى الله عليه وسلم (او نبي کريم صلى الله عليه وسلم په هغه باندې خبر نه شو ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم اوده ؤ او يا د هغې سره مشغول ؤ) |
| فَقَالَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَتَخَافُنِي ؟ قَالَ : لَا. |
| هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل چې آيا ته زما نه ويريږې؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې نه |

(زه ستانه ولې ویرېږم ځکه زما نه بغیر بل څوک نه ماته ګټه رارسولی شي او نه نقصان) نودې مشرک

قَالَ : فَمَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي ؟ قَالَ : اللهُ

ورته وویل چې بیا به تا زما نه څوک بچ کړي؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل چې الله تعالی به مې

يَمْنَعُنِي مِنْك . قَالَ : فَتَهَدَّدَهُ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَغَمَدَ السَّيْفَ

ستانه بچ کړي جابر رضی الله عنه وايي چې صحابؤ (کله داولیدونو) دایې وویرولو هغه توره په نیام کې کیخوده

وَ عَلَّقَهُ قَالَ : فَنُودِيَ بِالصَّلَاةِ

او هغه بوټي ته يې راځوړنده کړه جابر رضی الله عنه وايي چې بیاد (غرمي یادمازیګر) مونځ لپاره اذان (او تکبیر)

فَصَلَّى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ

وویل شو نو نبي کریم ﷺ (اول) دیو جماعت سره دوه رکعتونه وکړل او هغه جماعت (دوه رکعته

ثُمَّ تَأَخَّرُوا وَ صَلَّى بِالطَّائِفَةِ الْأُخْرَى

مونځ وکړو او ددښمن دمقابلې اړادي لپاره) وروسته لاړل. بیا نبي کریم ﷺ د دویم جماعت سره

رَكْعَتَيْنِ قَالَ : فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَرْبَعُ رَكَعَاتٍ

دوه رکعته وکړل. جابر رضی الله عنه وايي چې (دغه شان) نبي کریم ﷺ څلور رکعته پوره کړل او د

وَلِلْقَوْمِ رَكْعَتَانِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1]

خلکو دوه دوه رکعته شول.

**توضیح : فاخترطه: اخترط** د توري د نیام نه راویستلو او تاوولو په معنی کې دی. (المرقات ۳/۵۲۰).

**قال لا:** ددې نه معلومه شوه چې نبي کریم ﷺ اشجع العرب او د ټولو نه زړه ور ؤو. همدغه وجه وه چې د حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه پشان لوي لوي زړه وړور په نبي کریم ﷺ باندې ایمان راوړلو او د نبي کریم ﷺ تابع شول. ګیني په انساني طبعیت کې داسي واقع شوي دي چې زړه ور سړی کله هم د ېرندوکي تابعداري نه کوي. (المرقات ۳/۵۲۰).

د علامه واقدی وینا ده چې دا مشرک کله عاجز شو نو بیا مسلمان شو او د دې وجې نه ډیر خلک

[1] أخرجه البخاري ۷ ۴۲۶، رقم الحديث ۴۱۳۶، مسلم ۱ ۵۷۶، رقم حديث ۳۱۱ ۸۴۳، مسند احمد ۳/ ۳۹۰

مسلمانان شو خو ابو عوانه او داسي نور محدثین وايي چې دا سړی مسلمان شوی نه ؤ خو هغه دا وعده کړې وه چې بیا به مقابله نه کوم نو نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه معاف کړو او هیڅ سزا یې ورنه کړه.

**سوال**: شیخ مظهر فرمایي چې د ویرې د مونځ دا واقعه هم په ذات الرقاع کې شوې وه چې په کې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څلور رکعته مونځ کړی ؤ او د دېنه مخکې د حدیث نمبر ۲ واقعه هم د ذات الرقاع ده. حال دا چې هلته د دوه رکعتو ویرې د مونځ ذکر دی. په دې دواړه روایاتو کې تضاد دی. حال دا چې واقعه یوه ده. (المرقات ۳/۵۲۱).

**جواب**: د دې جواب دا دی چې کیدی شي په غزوهٔ ذات الرقاع کې د ویرې د مونځ واقعه دوه ځل راغلي وي. نو سهل بن حثمه چې کومه طریقه بیان کړې ده هغه د سحر په مونځ باندې محمول ده. او د لاندې حدیث کې چې حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کومه طریقه ذکر کړې ده کیدی شي دا د غرمې یا د مازیګر مونځ باندې محمول وي. دویم جواب دا دی چې د دواړو روایتونو تعلق یو ځاې یا د یوې واقعې سره نه دی. بلکې بیل بیل غزواتو باندې محمول دي. (المرقات ۳/۵۲۱).

دلته دویم سوال دا دی چې د بحث د لاندې حدیث کې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څلور رکعته ولې کړي ؤ حال دا چې په سفر کې دوه رکعته د قصر سره کېږي. د دې جواب دا دی چې چرته نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څلور رکعته مونځ کړی دی هغه د قصر مقام نه ؤ. دویم جواب دا دی چې هغه وخت د قصر حکم نه ؤ نازل شوی.

## دویرې د مونځ یوه بله طریقه

﴿۴﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَاةَ الْخَوْفِ

جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته (یو ځل) دویرې مونځ وکړونو مونږ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پسې

فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ صَفَّيْنِ وَ الْعَدُوُّ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ فَكَبَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

دوه صفونه جوړ کړل او دښمن زمونږ او د قبلې په مینځ کې ؤ نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تکبیر وویلو مونږ هم

وَ كَبَّرْنَا جَمِيعًا ثُمَّ رَكَعَ وَ رَكَعْنَا جَمِيعًا ثُمَّ

(دواړو صفونو) تکبیر وویلو کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (د قرأت نه وروسته) رکوع وکړه نو مونږ هم رکوع وکړه

رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَ رَفَعْنَا جَمِيعًا

بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د رکوع نه سر را اوچت کړونو مونږ (دواړو صفونو) هم (خپل سرونه د رکوع نه) را اوچت کړل

ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُودِ وَ الصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيْهِ

بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د سجدې لپاره د هغه صف سره خکته شو چې کوم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره نزدې ؤ (یعنې اولنی

وَ قَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ فِيْ نَحْرِ الْعَدُوِّ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ السُّجُودَ

صف) اودويم صف د دښمن مقابله کې (په قومه کې) ولاړ وو بیا چې کله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سجده وکړه اود نبي

وَ قَامَ الصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيهِ انْحَدَرَ

کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره هغه صف اودریدل (کوم چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره نزدې ؤ یعنې اولنی صف) نو د

الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُودِ ثُمَّ قَامُوْا ثُمَّ تَقَدَّمَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ وَ تَأَخَّرَ الْمُقَدَّمُ

وروستني صف والا سجدې ته لاړو بیا دا اودریدل ددې نه وروسته مخکنی صف وروسته راغلی او

ثُمَّ رَكَعَ النَّبِيُّ

(وروستنی صف مخکې لاړو بیا نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قیام کې قرأت وکړو) بیا رکوع وکړه نبي کریم

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ رَكَعْنَا جَمِيعًا ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نو مونږ هم رکوع وکړه بیا نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رکوع نه سر را اوچت کړو نو مونږ هم د رکوع

وَ رَفَعْنَا جَمِيعًا ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُودِ وَ الصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيهِ

نه سر را اوچت کړو بیا نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجدې ته لاړو او هغه صف چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته نزدې ؤ او په

الَّذِيْ كَانَ مُؤَخَّرًا فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى وَ قَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ

اولنۍ رکعت کې وروسته ولاړؤ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره سجدې ته لاړل او ولاړ وو وروستنی صف (چې په

فِيْ نَحْرِ الْعَدُوِّ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السُّجُودَ وَ الصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيهِ

اول رکعت کې مخکې ؤ) د دښمن په مقابل کې بیا چې کله نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د ده سره د نزدې صف

انْحَدَرَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُودِ فَسَجَدُوْا ثُمَّ سَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ټول خلک سجدې نه فارغه شو نو وروستني صف سجده وکړه بیا دا هغې نه وروسته سلام وګرځولو نبي

وَ سَلَّمْنَا جَمِيعًا. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). (۱)

کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او بیا دهغه نه وروسته مونږ هم سلام وګرځول (یعنې دواړه صفونو التحیات ولوستله)

**توضیح: والصف الذي يليه**: د ويرې د مونځ دا یوه بله طریقه ده د هغې صورت دا ؤ چې دښمن د قبلې

(۱) أخرجه مسلم ۱ .۵۷٤، رقم الحديث ۳۰۷-۸٤۰

مخې ته ؤ او س د اسلام د لښکر بل کوم طرف ته د متوجه کیدلو ضرورت نه ؤ و نو ځکه ټولو صحابؤ نبي کریم ﷺ پسې د ویرې مونځ د قبلې طرف ته وکړو. اسلحه خو وه. د ښمن پوهیدلو چې دا ټول خلک زمونږ مقابلې ته ولاړ دي. تر رکوع پورې ټول صحابه کرام رضي الله عنهم یو شان ولاړ ؤو. خو کله چې نبي کریم ﷺ سجدې ته لاړو نو او س د صحابؤ دوه جماعتونه شول. کوم خلک چې د نبي کریم ﷺ د صف والاؤ هغه خو د نبي کریم ﷺ سره رکوع ته لاړل. مګر د وروستني صف والا ولاړ پاتې شو او د ښمن ته یې سترګې خودلې. چې کله یو رکعت پوره شو نو هغه خلک چاچې یو رکعت کړی ؤو هغه وروسته صف ته لاړل او کوم چې وروسته ؤو هغه مخکې راغلل او یو رکعت یې د نبي کریم ﷺ سره وکړو او وروستني صف والا د ښمن په مقابله کې ودریدل. کله چې د نبي کریم ﷺ مونځ پوره شو نو صحابه کرامو رضي الله عنهم خپل پاتې مونځ پوره کړو. (المرقات ۳/۵۲۸).

همدغه شان مونځ نبي کریم ﷺ په عسفان کې هم کړی ؤ.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### دویرې د مونځ یوه مخصوصه طریقه

﴿۵﴾ عَنْ جَابِرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ صَلَاةَ الظُّهْرِ فِي الْخَوْفِ بِبَطْنِ

جابر رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ خلکو ته د ویرې مونځ وکړو د غرمې په وخت کې په بطن

نَخْلٍ فَصَلَّى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ

نخل مقام کې نو نبي علیه السلام خلکو ته (داسې) مونځ وکړو چې یوه جماعت ته یې دوه رکعته ولوستل او

سَلَّمَ ثُمَّ جَاءَ طَائِفَةٌ أُخْرَى فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ. (رَوَاهُ فِي شرح السنة). [۱]

سلام یې وګرځولو بیا چې کله دویم جماعت راغلو نو هغوی ته یې هم دوه رکعته وکړل او سلام یې وګرځولو.

**توضیح**: بطن نخل: د مکې او د طائف په مینځ کې د یو ځای نوم بطن نخل دی.

په دې حدیث کې چې د ویرې د مونځ کومه طریقه ده دا عجیبه سخته طریقه ده. د احنافو لپاره سخته دا ده چې په دې کې څلور رکعته د ویرې مونځ شوی دی. که چیرې دا د سفر حالت ؤ نو څلور رکعته ولې وشو او که دا حضر ؤ نو د دوه رکعتونو نه وروسته یې سلام ولې وګرځولو؟

(۱) أخرجه النسائي ۳/۱۷۸، رقم الحديث ۱۵۵۱، دار القطني ۲/۶۰، رقم الحديث ۱۰

د شوافعو حضراتو د پاره خوځه د تشویش ور خبره نشته د ی ځکه هغوی وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه رکعته د قصر وکړل د خلکو یوي ډلی د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقتدا وکړه او بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه رکعته نفل وکړل. یوي ډلي نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسي دوه رکعته فرض مونځ وکړو او د نفل کونکو نه وروسته د فرض کونکو مونځ صحیح شو لهذا څه د تشویش خبره نه ده.

د احنافو ائمه وایي چې دا نه د سفر مونځ ؤو او نه د فرض کونکي مونځ د نفل کونکي پسي کېږي. بلکي دا د حضر مونځ ؤو. بیا په دې کې دوه رکعتونو پسي سلام ګرځول شوی دی. احناف وایي چې دا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصیت ؤو. د بل چا لپاره جائز نه دی. دویم جواب دا دی چې د ویرې د مونځ شپاړس (۱۶) یا څلورویشت (۲۴) طریقي دي. چې معمول به نه دي. لکه په ابتداء کې لیکل شوي دي.

امام طحاوی رَحِمَهُ اللهُ د دې حدیث ډیره ښه توجیه کړې ده. هغه وایي چې دا د هغه وخت خبره ده کله چې یو مونځ دوه ځله کیدلی شي. لهذا اوس اشکال پاتې نه شو.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دویرې د مونځ یوه بله طریقه

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ بَيْنَ ضَجْنَانَ وَ عُسْفَانَ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د جهاد لپاره) کوز شو په مینځ د ضجنان او عُسفان کې |
| فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ : لِهٰؤُلَاءِ صَلَاةٌ هِيَ أَحَبُّ إِلَيْهِمْ مِنْ |
| نو مشرکانو (په خپل مینځ کې) وویل چې د مسلمانانو یو مونځ دی چې هغه دوی ته محبوب دي د دوی د |
| آبَائِهِمْ وَ أَبْنَائِهِمْ وَ هِيَ الْعَصْرُ فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ |
| پلار او د ځامنو نه او هغه د مازیګر مونځ دی نو تاسو د خپل مقصد (یعني د جنګ) د پاره تیار شی او (کله |
| فَتَمِيلُوا عَلَيْهِمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً |
| چې مسلمانان په هغه مونځ کې مشغول شي نو) په هغوی باندې په یو ځای حمله وکړی کله چې جبرائیل |
| وَ إِنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَهُ أَنْ يَقْسِمَ أَصْحَابَهُ شَطْرَيْنِ |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو او وي فرمایل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې خپل صحابه په دوه ډلو تقسیم |
| فَيُصَلِّيَ بِهِمْ وَ تَقُومَ طَائِفَةٌ أُخْرَى وَرَاءَهُمْ |
| کړي یوه ډله دې مونځ وکړي او بله ډله دې هغوی پسې (د دښمن د خطري اراده و جواب لپاره) ودریږي |
| (همدغه شان بلي ډلي ته مونځ وکړی نو اوله ډله به د دښمن په مقابل کې ودریږي د غه شان ټول مونځ ګزارو |

| وَلْيَأْخُذُوا | حِذْرَهُمْ | وَ | أَسْلِحَتَهُمْ | فَتَكُونَ |
|---|---|---|---|---|
| ته)په کار ده چې خپل د دفاع سامان يعنې سپر او سلحه او نور شيان د ځان سره کيږدي. دغه شان به د | | | | |
| لَهُمْ رَكْعَةٌ وَلِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَانِ.(رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ). (۱) | | | | |
| خلکو نو (د امام سره) يو يو رکعت شي او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دوه رکعتونه شي. | | | | |

**توضيح : فقال المشركون:** په دې حديث کې د ويرې د مونځ ابتداء او د هغې د مشروعيت او ضرورت طرف ته اشاره کړې شوې ده چې په کومه مجبورۍ کې چېرته دا مونځ مشروع او بيا شروع شوې وو. (المرقات ۳/۵۲۷).

**ضجنان:** د مکې او د مدينې په مينځ کې د يو غر نوم دی او **عسفان** د مکې او جده په مينځ کې د يوې علاقې نوم دی په **عين** باندې ضمه ده **سين** ساکن دی. (المرقات ۳/۵۲۷).

بهرحال د ويرې د مونځ د دې ټول منظر نه او ټول بحث نه دا خبره واضحه کېږي چې جهاد د الله تعالى يوه لويه فريضه ده او د دې په قيام سره د نورو فرائضو حفاظت کېږي. لهذا دا په هر حالت کې قائم ساتل په کار دي. اګر که په دې سره د نورو عبادتونو نقشې هم بدلې شي. نو د مونځ د کولو نقشې بدلې شوې. د مونځ د وختونو نقشې بدلې شوې. لکه په خندق کې هوا د صوم نقشې بدلې کړې مګر جهاد يې جارې وساتلو. نن مسلمان د هر څه لپاره تيار دی مګر د جهاد لپاره تيار نه دی. او کفار په ټولو عبادتونو کې د مراعاتو او د اجازت لپاره تيار دی بلکې کوشش کونکې دې خو د جهاد لپاره قطعاً هيڅ ګنجائش او اجازت ورکولو ته تيار نه دی.



(۱) اخرجه النسائي ۳/۱۷۶، رقم الحديث ۱۵۱۹، مسند أحمد ۳ ۳۷٤

# بَابُ صَلٰوةِ الْعِيْدَيْن
## د اخترونو د مونځ بيان

قال الله تعالىٰ: ﴿اللّٰهُمَّ رَبَّنَا أَنْزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّأَوَّلِنَا وَآخِرِنَا﴾ (مائده: ١١٤)

وقال الله تعالىٰ: ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ (سورة الكوثر آيت: ٢).

وقال الله تعالىٰ: ﴿وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدَاكُمْ﴾ (سورة البقرة آيت: ١٨٥).

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د مکې مکرمې نه مدينې منورې طرف ته هجرت وکړو نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هلته وکتل چې خلکو يوه ورځ خوشحالي لمانځله. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه [illegible] دا څه ورځ ده چې تاسو په کې لوبي کوئ او خوشحالي په کې لمانځئ؟ هغوی په جواب کې ووئيل چې د اسلام نه مخکې مونږ دواړه يعنې په نيروز او په مهرجان کې د جاهليت په زمانه کې لوبې او خوشحالئ لمانځلې. نو په دې باندې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې اوس الله تعالى ستاسو لپاره د دې دواړه په بدل کې تاسو ته بهترينې دوه ورځې درکړلې. په هغې کې يوه د وړوکي اختر ورځ ده او بله د لوي اختر ورځ ده. دا تفصيل د فصل الثاني په اولني حديث نمبر ۱۴ کې موجود دی.

دا چې اسلام يو پوره بلکې اکمل مذهب دی نو ځکه په دې کې د خوشحالئ او د غم ټول قواعد او احکامات موجود دي. دا چې د دنيا خلک د ديوالي په موقع باندې خوشحالئ لمانځي. څوک د کرسمس ورځ، څوک د نورو نومونو باندې په نورو ورځو کې خوشحالو د لمانځلو ترتيب برابروی. په اسلام کې هم الله تعالى مسلمانانو ته په ټول کال کې دوه ورځې خوشحالي ورکړې ده.

خو اسلام چې مسلمانانو ته کوم اخترونه ورکړي دي هغه د نورو د قومونو په شان اخترونه نه دي. چې په هغې کې د الله تعالى نافرماني وشي. عياشيانې او بدمعاشيانې په کې وشي. او د غفلت پوره انتظام په کې کيږي. د مسلمانانو د اختر ابتداء د خدای د اطاعت نه کيږي. چې په هغې کې ټول مسلمانانو په يو ځای کې په يوه ژبه د الله تعالى کورونو جوماتو اړخ ته متوجې شي او د خپل مذهبي مشرانو نه د خوشحالئ د لمانځلو او د خوشحالئ د خپلولو د هدايت او د لاربښونې خبرې اوري. بيا د اختر مونځ کوي. د الله تعالى لويې بيانوي .د الله تعالى شکر وباسي او د يو بل ناروا معاف کړي، د مينې اظهار کوي د غټو احترام کوي په هديرو کې خپلو مړو ته د ثواب رسولو د پاره لاړ شي او دعاګانې کوي. بيا شرعي حدودو د ننه ټوله ورځ خپله خوشحالئ لمانځي. ځکه دا دواړه تاريخي ورځې دي.

د وړوکي اختر په ورځ مسلمانانو ځکه خوشحالي لمانځي چې د دې نه مخکې په ټول رمضان کې مسلمانانو روژې نيولې وي او د الله تعالى د رضا د پاره يې يوه مشکل عبادت پوره کړی وي.

اوس دوي ته د خوشحالی د لمانځلو اجازت ورکړی شوی دی ځکه هغوی د الله تعالی حکم پوره کړو.
اوس به په دې باندې د الله تعالی شکر وباسي.
[illegible] حج کې مسلمانانو ته د حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ د لوي قربانۍ د یادګار په توګه حکم ورکړی شوی دی. د دې د پاره چې مسلمانان د خپلو مذهبي مشرانو سره په اړیکه کې وسي. لکه څنګه چې د هغوی لوي مذهبي مشر په یو لوي امتحان کې کامیاب شو او هغې د الله تعالی شکر ویستلو او د خوشحالۍ اظهار یې وکړو. همدغه شان د هغوی پیروکار هم د الله تعالی د رضا کولو د پاره او د قربنې کولو عادت جوړولو د پاره قرباني وکړي او په هغې کې د کامیابۍ باندې په هغه ورځ د شرعي حدودو دننه خوشحالي ولمانځي.
خلاصه ده چې د مسلمانانو اختر د شر او فساد او بد اخلاقۍ نوم نه لکه څنګه چې په نورو قومونو کې کېږي بلکي دا د یو سپېڅلي عظمت او عزت او مرستي او خیر ښیګڼې او اطاعت او د خدمت کولو نوم دی. او د خپل اسلام د شعائرو سره د تعلق پوره مظاهره ده، مسلمانان په دغه موقع باندې دا آواز پورته کونې شي:

**من معشر سنت لهم آباءهم ❁ ولكل قوم سنة و امامها**

مونږ هغه خلک یو چې زمونږ بزرګانو زمونږ د پاره ښې طریقې جوړې کړې دي او د هر قوم څه طریقې ښې او د هغوی بزرګان وي.

**العيدين:** دا چې په کال کې دوه اخترونه وي نو ځکه د تثنیه صغیه استعمال شوي ده. **عيد** (اختر) د **عود** نه دی. په لغوي توګه باندې **عود** د بیرته راتلو په معنی ده. اوس **عيد** ته ځکه **عيد** ویل شوی دی چې دا هر کال بیرته راځي. لکه یو شاعر ویلي دي:

**عيد و عيد و عيد اجتمعا ❁ وجه الحبيب و يوم العيد و الجمعا**

مګر دا معنی د عید په تخصیص باندې دلالت کوي. ځکه په ټول کال کې خو بیرته راتلونکي خو ډیر شیان دي. نو ځکه د عید په مفهوم کې د خوشحالۍ او د سرور دخول منل شوی دی. یعنې عید د عود نه دی ځکه دا هر کال نوي خوشحالو سره راځي.

**عيد بأية حال عدت يا عيد ❁ بما مضى ام بامر فيك تجديد**

یعنې یوې نوي خوشحالۍ سره اختر راروان دی. یا همدغه زاړو شیانو سره اختر بیا راروان دی.

**داختر د مونځ شرعي حیثیت:** د امام مالک، امام شافعي او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د اخترونو مونځ سنت مؤکده دی. د امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ یو قول د فرض کفایه هم دی. صاحبین هم د سنت مؤکده قائل دي. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د اخترونو مونځ واجب دی.

**دلائل**: د جمهورو فقهاؤ دلیل د ضمام بن ثعلبه رَحِمَهُ اللّٰهُ روایت دی. چې په هغې کې دا الفاظ دي "الا ان تطوع" یعني د پنځه لمونځونو نه بغیر ټول تطوع او سنت دي. د جمهورو فقهاؤ دویم دلیل دا دی چې د اختر مونځ د پاره نه اذان شته او نه اقامت دا د سنت کیدو دلیل دی.

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ اولني دلیل ﴿ وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ ﴾ (سورة البقرة آیت: ۱۸۵) د قرآن آیت دی. د دې آیت مصداق تکبیرات د مونځ د اختر دي کله چې تکبیرات د امر په صیغې سره واجب شو نو په تکبیراتو باندې مشتمل د اختر مونځ هم واجب شو. هم دغه شان ﴿ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ﴾ (سورة الکوثر آیت: ۲) کې هم **صلٰوة العید** مراد دی او د امر او وجوب د پاره دی. لهذا دا مونځ واجب دی دا د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ دویم دلیل دی.

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ دریم دلیل د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مواظبت دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدة العمر اخترونو کې مونځ کړی دی. او کله یې نه دې پریخی. په مواظبت من غیر ترک کې هم د وجوب دلیل دی. او دغه شان صحابؤ او د هغې نه وروسته ټول امت دا اخترونو په مونځونو باندې همیشوالی کړی دی. دا د وجوب دلیل دی.

**جواب**: ائمه ثلاثؤ چې د کوم حدیث نه استدلال کړی دی د هغې جواب دا دی چې هغه د ابتدائی زماني خبره ده. هغه وخت د اختر وجوب نه ؤو شوی. یا دا چې په دې حدیث کې د فرائض قطعیه خبره ده. اخترونو ته مونځ فرض قطعي نه وایو بلکي واجب وایو. باقي اذان د فرض اعتقادي د پاره کیږي. د اخترونو مونځ فرض اعتقادي نه دی بلکي فرض عملي دی یعنې واجب دی.

یا دا جواب دی چې د داعیه د موجودي دلو باوجود هم نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذان او اقامت نه دی کړی. د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عدم عمل د عدم جواز دلیل دی. د اختر د وجوب سره د اذان هیڅ تعلق نشته دی. نه په کوم حدیث کې د اذان ممانعت شته دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د اخترونو مونځ دې په عیدګاه کې وي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَ |
| ابو سعید خدری رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (کله) تشریف راوړو د وړوکي اختر او د |
| الْأَضْحٰى إِلَى الْمُصَلّٰى فَأَوَّلُ شَيْءٍ يَبْدَأُ بِهِ الصَّلَاةُ ثُمَّ |
| لوي اختر (د مونځ) لپاره نو (هلته) به یې د ټولو نه اول کار دا کولو چې (د خطبي نه مخکې) به یې مونځ کولو |

| يَنْصَرِفُ فَيَقُومُ مُقَابِلَ النَّاسِ وَ النَّاسُ جُلُوسٌ عَلَى صُفُوفِهِمْ |
|---|
| بيا مونځ نه فارغ شو او د خلکو مخې ته به ودريدلو او خلک به خپلو صفونو کې ناست ؤ و نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| فَيَعِظُهُمْ وَ يُوصِيهِمْ وَ يَأْمُرُهُمْ وَ إِنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَقْطَعَ بَعْثًا |
| به هغوی ته وعظ او نصيحت کولو او احکامات به يې ورته ويل که (د جهاد لپاره) چرته به يې کوم لښکر ليږلو |
| قَطَعَهُ أَوْ يَأْمُرَ بِشَيْءٍ |
| نو د هغوی د تللو حکم به يې وکړو، د غه شان به که د خلکو د معاملاتو د مقدمو باره کې حکم ورکول ؤو نو |
| أَمَرَ بِهِ ثُمَّ يَنْصَرِفُ . (مُتَّفق عَلَيْهِ).[۱] |
| حکم به يې وکړو. بيا به يې (کور) ته بيرته تشريف وړلو. |

**توضيح : الى المصلى:** د اختر د مونځ افضليت په عيدګاه کې دی. د مجبورۍ په وجه جوماتو کې جائز دی. نن سبا دوه مجبورۍ دي. يوه خو دا چې خلک دومره ډير شوي دي چې د جوماتونو به بغير د ټولو لپاره ځای کول نه وي او که ځاې وي نو هم نن سبا مسلمانان د دومره فتنو ښکار شوي دي چې د هغوی په خپل مينځ کې د يو بل نه وروسته هم پيدا شوي دي او عقائد هم ګډ وډ شوي دي. بدعتيان، بريليان، ديوبنديان او د غير مقلدينو جلا جلا عقيدي دي. نو ځکه د وروسته والي سره سره بغض هم پيدا شو. اوس مونږ ديوبنديان په يو بريلي امام پسې مونځ نه شو کولی نو هغوی هم مونږ پسې مونځ نه کوي نو د دې وجې نه په خپل خپل مسلک باندې خپلو جوماتونو کې مونځونه کوي.

**ثم ينصرف:** د جمعې خطبه فرض ده، د اخترونو خطبه سنت ده. دويم فرق ده چې د جمعې خطبه د مونځ نه مخکې ده د اخترونو خطبه وروسته ده. (المرقات ۳/۵۲۹).

**بعثا قطع:** لښکر ليږلو ته وايي. د جمعې او د اخترونو په مقصدونو کې يو مهم مقصد دا هم دی چې دا چې په مسلمانانو باندې جهاد هر وخت فرض دی او په جمعه او اخترونو کې مختلف خلک راجمعه شي او يوه اجتماع جوړه شي. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د دغه اجتماع په موقع که چيرې ضرورت به ؤ نو د جهاد لپاره به يې ډله روانه کړه. نن سبا د مسلمانانو د اجتماعاتو نه د درې ورځنی او د کال جماعتونه ليږلی کېږي. او په دې باندې فخر کوي او د جهاد د نوم نه ويريږي. دې ته نزدې هم نه ورځي

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۴۴۸/۲ رقم الحديث ۹۵۶، ومسلم في صحيحه ۶۰۵/۲ رقم الحديث: ۸۸۹/۹، والنسائي في السنن ۳/ ۱۸۷ رقم الحديث: ۱۵۷۶ . وابن ماجه ۴۰۹/۱ رقم الحديث: ۱۲۸۸، واحمد في المسند ۳۶/۳.

بلکي انکار ترې نه کوي. فياأسفى على فرطنا في جنب الله. (المرقات ۵۲۹-۳/۵۳۰).

## د اخترونو په مونځ کې اذان نه وي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِيدَيْنِ |
| جابر ابن سمره رضي الله عنه وايي چې ما مونځ کړې دی د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره د وړوکي او لوي اختر |
| غَيْرَ مَرَّةٍ وَلَا مَرَّتَيْنِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[1] |
| يو ځل دوه نه (بلکي ډير ځله) بغير د اذان او د تکبير نه. |

**توضيح**: دا چې د خلکو د رابللو لپاره رابلونکی موجود ؤو. او رابلونکي د ضرورت باوجود هم نبي کريم صلى الله عليه وسلم پرې اذان ونه کړو نو د نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا عدم فعل د عدم جواز دليل دی. ګينې په کوم قولي حديث کې نشته دی چې اذان منع دی. (المرقات ۳/۵۳۱).

همدغه شان په عيدګاه کې سحر وختي د ثابت يا د اشراق مونځ کول هم جائز نه دی. نه د اختر د مونځ نه مخکې جائز دی او نه وروسته جائز دی. خو د اختر نه وروسته په کور کې جائز دی.

## د اخترونو خطبه د اختر د مونځ نه وروسته ده

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ يُصَلُّونَ الْعِيدَيْنِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم او ابوبکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه به د اخترونو مونځونه |
| قَبْلَ الْخُطْبَةِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| کول د خطبې لوستلو نه مخکې. |

## د اسلام په خوروبولو کې د ښځو کالي هم مصرف شوې دي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَسُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ: أَشَهِدْتَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِيدَ؟ |
| (روايت دی چې يو ځل) د ابن عباس رضي الله عنه نه پوښتنه وکړی شوه چې آيا ته شريک شوي يې د رسول الله |
| قَالَ: نَعَمْ خَرَجَ |
| صلى الله عليه وسلم سره په اختر کې؟ هغه ورته وويل چې "آو" (بيا يې دا تفصيل بيان کړو چې) کله به راغلو |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۰۴/۲ رقم الحديث ۸۸۷/۷. وأبوداؤد في السنن ۶۸۰/۱ رقم الحديث ۱۱۴۸.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۵۳/۲ رقم الحديث ۹۲۳. ومسلم في صحيحه ۶۰۴/۲ رقم الحديث ۸ ۸۸۸. والنسائي في السنن ۳/ ۱۸۳ رقم الحديث ۱۵۶۴. وابن ماجه ۴۰۷/۱ رقم الحديث ۱۲۷۶۹. و مالک في الموطا ۱۸۳/۱ رقم الحديث ۳ من كتاب العيدين

| |
|---|
| رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَصَلَّى ثُمَّ خَطَبَ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (عید ګاه) ته نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هلته د اختر مونځ وکړو. بیا یې خطبه ولوستله. |
| وَ لَمْ يَذْكُرْ أَذَانًا وَلَا إِقَامَةً |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ تفصیل بیانولو په دوران کې) د تکبیر او د اذان ذکر ونه کړو. |
| ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ |
| (بیا یې وویل چې) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې نه وروسته د ښځو د جماعت طرف ته راغلو بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ورسره ؤ |
| فَوَعَظَهُنَّ وَ ذَكَّرَهُنَّ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ښځو ته نصیحت وکړو د دین احکامات یې ورته زده کړل د ثواب او عذاب باره کې یې ورته |
| وَ أَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ |
| وویل او هغوی ته یې د صدقې (یعنې سرسایه، زکوة یا خالي د الله په نوم باندې) د ورکولو حکم وکړو |
| فَرَأَيْتُهُنَّ يُهْوِينَ إِلَى آذَانِهِنَّ وَ حُلُوقِهِنَّ |
| نو په ښځو کې ما ولیدل چې هغوی خپل لاسونه غوږونو او مرو طرف (د زرو د راایستلو لپاره) وړل او د |
| يَدْفَعْنَ إِلَى بِلَالٍ |
| غوږونو او د مرونه یې زر (راایستل) بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې ورکول (چې دا د دوي د طرفه فقیرانو او مسکینانو |
| ثُمَّ ارْتَفَعَ هُوَ وَ بِلَالٌ إِلَى بَيْتِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| باندې تقسیم کړي) بیا د هغې نه وروسته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور ته تشریف راوړو. |

**توضیح : یهوین:** دا صیغه د ضرب یضرب نه د جمعه مؤنث صیغه ده. د ټیټیدلو او کګیدلو په معنی کیدی. مراد ترینه د غوږونو والو اړخ ته لاسو وړل دي. علامه طیبی رَحِمَهُ اللهُ دا صیغه د باب افعال نه د جمعه مؤنث صیغه ګڼلي ده. مګر شیخ عبد الحق د دواړو بابونو نه ګڼلي ده. خو د ضرب نه یهوین په یاء باندې به فتحه وي. (اشعة اللمعات).

**حلوقهن:** د حلق جمعه ده د ډېنه مرۍ مراد دي. (المرقات ۳/۵۳۳).

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۲/۲ رقم الحديث ۹۶۱، ومسلم في صحيحه ۶۰۲/۲ رقم الحديث ۲-۸۸۴، وابوداؤد في السنن ۶۷۹/۱ رقم الحديث ۱۱۴۶، وابن ماجه ۴۰۶/۱ رقم الحديث ۱۲۷۳، والدارمي ۴۵۶/۱ رقم الحديث ۱۶۰۳، وأحمد في المسند ۳۹۶/۳

علماؤ د دې حديث نه استدلال کړی دی چې د ښځو لپاره غوږونه سوري کول جائز دي. ځکه که غوږونه سوري کول جائز نه وو نو صحابياتو به سوري غوږونو کې زرځنګه استعمال کړل؟ همدغه شان په يو بل روايت کې د غوږونو د سوري کولو ذکر هم شته دی لهذا هغه هم جائز دی. (المرقات ۳/۵۳۳).

## د اختر د مونځ نه مخکې یا وروسته نفل کول منع دي

﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى يَوْمَ الْفِطْرِ رَكْعَتَيْنِ

ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دوړوکي اختر په ورځ (د اختر د مونځ) دوه رکعته وکړل

لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهُمَا وَلَا بَعْدَهُمَا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1]

نه خو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې نه مخکې (نفل) مونځ وکړو او نه يې وروسته.

**توضیح: قبلهما:** يعني عيدګاه ته د تللو نه مخکې خو نفل نه په جومات کې جائز دي نه په عيدګاه کې جائز دي. او د اختر د مونځ نه وروست په عيدګاه کې کول مکروه دي مګر کور ته چې راشي نو کولی شي. دليل همدغه دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دي کړي. (المرقات ۳/۵۳۴).

## د اختر په مونځ کې د ښځو د شريک کيدو مسئله

﴿۶﴾ وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: أُمِرْنَا أَنْ نُخْرِجَ الْحُيَّضَ

ام عطيه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې مونږ ته حکم کړی شوي ؤ چې مونږ بوځو عيدګاه ته هغه ښځې چې هغه دورځو

يَوْمَ الْعِيدَيْنِ

والا وي (چې کوم په ورځو کې وي يا دا چې بالغه وي) د وړوکي او د غټ اختر په ورځ او هغه ښځې (هم)

وَذَوَاتِ الْخُدُورِ فَيَشْهَدْنَ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ وَدَعْوَتَهُمْ

چې هغه په پرده کې وي چې دا ټول د مسلمانانو په جماعت او دعا کې شريکې شي. او کومې ښځې

وَتَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ عَنْ مُصَلَّاهُنَّ قَالَتِ امْرَأَةٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ

ښځې چې په ورځو کې وي او هغه د مونځ د ځای نه جلا شوي. يوې ښځې عرض وکړو چې يا رسول الله!

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵۳/۲ رقم الحديث ۹۶۴، ومسلم في صحيحه ۲/۶۰۶ رقم الحديث ۱۳-۸۸۴، وأبو داود في السنن ۱/۶۸۵ رقم الحديث ۱۱۵۹، والترمذي ۴۱۷/۲ رقم الحديث ۵۳۷، والنسائي في السنن ۳/۱۹۳ رقم الحديث ۱۵۷۸، وابن ماجه ۱/۴۱۰ رقم الحديث ۱۲۹۱، وأحمد في المسند ۱/۲۸۰.

| إِحْدَانَا | لَيْسَ | لَهَا | جِلْبَابٌ | ؟ | قَالَ | : | لِتُلْبِسْهَا | صَاحِبَتُهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په مونږ کې چې د چا سره څادر نشته (هغه څه وکړي) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې هغه دې د خپلې ملګرې | | | | | | | | |
| مِنْ جِلْبَابِهَا . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] | | | | | | | | |
| څادر تاؤ کړي. | | | | | | | | |

**توضیح** : **الحیض**: حا باندې ضمه ده او یا مشدد باندې فتحه ده دا د **حائض** جمعه ده. د میاشتنې بیمارۍ کې اخته شوې ښځې ته وایې په بالغې ښځې باندې هم د دې اطلاق کیدې شي. (المرقات ۳/۵۳۵-۵۳۴).

**ذوات الخدود**: د کور دننه د پردې والاکوټې ته خدر بکسر الخاء وایې. مراد ترینه د پردې والا ښځې دي. (المرقات ۳/۵۳۵).

**ودعوتهم**: معلومه شوه چې د مسلمانانو په اجتماع کې عام مسلمانان، نارینۀ، ښځو او په سرحداتو باندې پراته مجاهدین په دعا کې یاد ولی کېږي. (المرقات ۳/۵۳۵).

**جلباب**: دا غټ څادر ته وایې. عزتمنده ښځې دا د ځان نه راچاپیروي. دا د سر نه تر ښپو پورې وي. د درنې ټوټې نه جوړیږي. تورنګه ټوټه وي. د دې غاړو ته سره پټۍ وي. او ښځه په دې کې ټوله پټه وي. (المرقات ۳/۵۳۶).

**سوال**: د دې حدیث نه په واضحه معلومیږي چې د اسلام ښځې د اخترونو په مونځونو کې عیدګاه ته د مونځ لپاره به تللې. اوس علماء اجازت ولې نه ورکوي؟

**جواب**: د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به د اسلام احکامات نازلیدل. د نارینۀ په شان ښځو ته هم د احکاماتو د خودلو ضرورت ؤو. د خلکو بیروبار کم ؤو. د وحي برکتونه عام ؤو. جبرائیل امین عَلَيْهِ السَّلَامُ به د مدینې منورې مقدسې زمکې ته تلو راتلو. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وجود مبارک موجود ؤو. د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ مقدس جماعت موجود ؤو. او د ټول محتاطه تد باهر و نه وروسته به ښځو ته د عام مونځونو او د اختر د مونځونو کې د شرکت اجازت ؤو. بیا د صحابؤ په دور کې په هم دې باندې پاپندې ولګیدله. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ممانعت حمایت وکړو. نو ځکه علماؤ جوماتو او عیدګاهونو ته د ښځو تګ د فساد په وجه غیر مستحب وګڼله. د دې باوجود اوس هم که په کوم مقام

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۶۳/۲ رقم الحديث ۹۷۴.ومسلم في صحيحه ۶۰۶/۲ رقم الحديث ۱۲-۸۸۳، وأبوداؤد في السنن ۶۷۵/۱ رقم الحديث ۱۱۳۶ ، والترمذي ۴۱۹/۲ رقم الحديث ۵۳۹ .والنسائي في السنن ۳/ ۱۸۰ رقم الحديث ۱۵۵۸ . والدارمي ۴۸۵/۱.وأحمد في المسند ۸۴/۵ .

کې د پردې پوره اهتمام وي نو دې ته بالکل منع نه شي ويل کيدلی. د افغانستان د طالبانو په دور کې په قندهار کې په عيدګاه کې د لکونو انسانانو په اجتماع کې په زرونو ښځې به هم کله په اجتماع کې حاضريدلې. د عيدګاه يوه برخه د مصلى النساء په نوم سره مشهوروه وه. د پردې پوره انتظام ؤو. دا به محسوسيدله هم نه چې ښځې هم شامليږي. اوس معلومه نه ده چې څه حال دی. ځکه د دنيا کفار را يو ځاې شول او هغوی د ځان سره د مسلمانانو منافق حکمرانان شامل کړل او دا مبارک نظام يې ختم کړلو. کوم خلکو چې د طالبانو په راګوزارولو کې کې د کفار سره مرسته کړې ده. الله تعالى دې په هغوی باندې کروړونه لعنتونه راوليږي. او په دنيا او آخرت کې دې ذليل او خوار کړي.

بهرحال د ښځو جوماتونو ته د مونځ لپاره تللو يا د نه تللو مسئله د دې باب نه مخکې په **باب الجماعة** کې په تفصيل سره ليکلې شوې ده.

## د اخترونو په موقع باندې د نغمو او د سرور حکم

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : إِنَّ أَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَيْهَا وَ عِنْدَهَا جَارِيَتَانِ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ابوبکر رضي الله عنه زما خوا ته راغلو او زما سره دوه ماشومانې ناستې وې |
| فِي أَيَّامِ مِنًى |
| (د انصارو د جينکونو نه) د منى په ورځو کې (يعنې په کومو ورځو کې حاجيان منى کې قيام کوي او ايام تشريق چې ورته ويل کېږي په هغې د وړوکي اختر په ورځ يا د هغې نه په وروستي ورځو کې) او |
| تُدَفِّفَانِ وَ تَضْرِبَانِ وَ فِي رِوَايَةٍ : تُغَنِّيَانِ |
| چمبه يې وهله په يو بل روايت کې (د دې الفاظو په ځاې) دا الفاظ دي چې "ماشومانو (شعرونه) ويل |
| بِمَا تَقَاوَلَتِ الْأَنْصَارُ يَوْمَ بُعَاثَ وَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مُتَغَشٍّ بِثَوْبِهِ |
| چې د انصارو د بعاث (د جنګ متعلق) ويلي ؤ. او نبي عليه السلام (هغه وخت) په ځله باندې ټوټه اچولې |
| فَانْتَهَرَهُمَا أَبُو بَكْرٍ فَكَشَفَ |
| وه. ابوبکر رضي الله عنه هغه ماشومانې ورټلې (يعنې هغوی يې د شعرونو ويلو نه منع کړي) نو کولاو کړه |
| النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ وَجْهِهِ فَقَالَ : " دَعْهُمَا يَا أَبَا بَكْرٍ فَإِنَّهَا أَيَّامُ عِيدٍ |
| نبي عليه السلام د ځلې نه ټوټه او وي فرمايل چې "ابوبکر دا پريږده (څه ورته مه وايه) ځکه دا ورځ د اختر |
| وَ فِي رِوَايَةٍ : يَا أَبَا بَكْرٍ إِنَّ لِكُلِّ |
| (يعنې د خوشحالۍ) ورځ ده. او په يو روايت کې دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "ابوبکره! د هر |

| قَوْمٍ عِيْدًا وَهٰذَا عِيْدُنَا" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| --- |
| يو قوم اختر وي دا زمونږ اختر دی. |

**توضيح : ايام منى:** د ايام تشريق او په منى كې د جمرات د ويشتلو د ورځو ذكر دى چې په هغه ورځو كې دوه ماشومانو چمبه وهله او نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چپ ناست ؤ و صديق اكبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغلو او هغوى يې ورټلې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې پرېږده دا د اختر ورځې دي. (المرقات ۳/۵۳۷).

اوس مسئله داسې ده يو فقط د ژبې په اشعار ويلې. هغه داسې معامله ده كچرې اشعار ښه وي نو ويل يې ښه دي. كه چيرې اشعار قبيح وي نو ويل يې قبيح دي. ګويا كې اشعار د خبرو په شان شى دى "فحسنه حسن وقبيحه قبيح" او بله دا كچرې د اشعارو باجي او سازونه وي. شپيلى او ستار او رباب وي، هارمونه او سندري وي نو دد حرمت كې هيڅ شک نشته. د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دى **الغناء حرام في الاديان كلها"** يو بل حديث دى **الغناء ينبت النفاق في القلب كما ينبت الماء البقل.**

په فتاوى قاضى خان كې ليكل شوي چې: **استماع صوت الملاهى حرام و معصية لقوله عليه السلام استماع الملاهى معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها من الكفر.** (المرقات ۳/۵۳۸).

په دې سلسله كې كتاب **كف الرعاع عن محرمات اللهو والسماع لابن حجر الهيتمي** ډير ښه كتاب دى. او په لويه كچه باندې د موسيقى سره متعلق احاديث په دې كې جمعه دي.

حضرت مولانا مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللهُ هم په احكام القرآن جزء پنځم (۵) كې د سورة لقمان په ابتداء كې په دې مسئله باندې ډير تفصيل سره كلام كړى دى. ما په توضيحات جلد څلورم كې كتاب النكاح كې څه لكيلي دي او څه به ان شاء الله په باب الشعر كې ليكل كېږي. په م مظاهر حق كې د دې حديث د لاندې ډير تفصيل ليكلى شوي دى. زه دلته تفصيل نشم كولى. د پاس ذكر شوى دوه صورتونو نه بغير دلته دريم صورت د هغه چمبه وهلو دى چې د هغې سره اشعار وي. خو په چمبه كې هيڅ كړنګ او د وهلو شى نه وي او نه هغه د چتې او د سندرو غاړو د اسبابو سره وي نو دا چمبه د اخترونو په موقو كې او په ختني او په ودونو او د خوشحالو په ورځو كې جائز دي. اګر كه خان ساتل ډير غوره دي. خو مباح دي. لكه دلته ماشومانو وهلو او صديق اكبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې وګڼل چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متوجې نه دى نو ځكه يې هغه ورټل نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اختر تذكره وكړه او اجازت يې وركړو. ځكه هغه ساده

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲ /۳۳۵ رقم الحديث ۹۵۲. ومسلم في صحيحه ۱ /۶۰۷ رقم الحديث ۱۶-۸۹۲. والنسائي في السنن ۳/ ۱۹۵ رقم الحديث ۱۵۹۷. وابن ماجه ۱/ ۶۰۷

چمبه وه. چې د هغې اواز هم چم چم وي. بیا وړي ماشوماني وي او شعرونه هم د جرأت او زړه ور توب سبق خودنکی ؤو. نو ځکه نبي کریم ﷺ منع کړو. په دې باندې د غټو ښځو ګډا او یا باجې وهل قیاس کیدلی نه شي. لکه څنګه چې اهل باطل قیاس کوي او ګډا لپاره د جواز پیدا کولو کوشش کوي. باقي د اوریدلو مسئله جدا ده. چې د هغې تفصیل به په **باب الشعر** کې ان شاء الله راځي.

**یوم بعاث**: د جاهلیت په جنګونو کې یو جنګ ته اشاره ده. چې د نبي کریم ﷺ د هجرت نه مخکې په مدینه کې د انصارو د دوؤ قبیلو د اوس او د خزرج په مینځ کې په مقام بعاث کې شوي ؤو. چې هغه تر یو سلو شل (۱۲۰) کالو پورې روانه وه. چې په هغې ډیر لوي قتلونه شوي ؤو. او کله چې اسلام راغلو نو د هغې رحمت عام شوی او په نبي کریم ﷺ باندې ایمان راوړلو سره په عرب کې د دې اوږد جنګ نه وروسته صلح وشوه. (المرقات ۳/۵۳۷).

چې د هغې اړخ ته قرآن اشاره کوي ﴿فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا﴾ د مقام بعاث باره کې شیخ عبد الحق رحمه الله په لمعات کې لیکلي دي چې دا مقام د مدیني منوري نه د دوه ورځو په مسافت کې دی. یا دا چې د قبیله اوس د یوي قلا نوم دی او یا دا چې د بنو قریظه په علاقو کې د یو ځای نوم دی. (اشعة اللمعات ۱/۶۴۰).

## دوړو کي اختر د مونځ نه مخکې په کهجوري سره روژه ماتی کول په کار دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَغْدُو يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَأْكُلَ تَمَرَاتٍ |
| انس رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ به د کهجورو د خوړلو نه عیدګاه ته نه تللو او کهجوري به یې |
| وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [1] |
| طاق خوړلې. |

## نبي کریم ﷺ به د اختر په ورځ لاره بدلوله

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدٍ خَالَفَ الطَّرِيقَ. [2] |
| جابر رضي الله عنه وایي چې کله به د اختر ورځ وه نو نبي کریم ﷺ به په لارو کې فرق کولو. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۴۴۶ رقم الحديث ۹۵۳. والترمذي في السنن ۲/۴۲۷ رقم الحديث ۵۴۳. وأحمد في المسند ۳/۱۲۶

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۴۷۶ رقم الحديث ۹۸۶. والترمذي في السنن ۲/۴۲۴ رقم الحديث ۵۳۱. وابن ماجه ۱/۴۱۲ رقم الحديث ۱۳۰۱. والدارمي ۱/۳۶۰ رقم الحديث ۱۶۱۳

**توضیح**: **خالف الطریق**: یعني عید ګاه ته د تګ په وخت کې به یوه لاره لاړو خو په بله لاره به بیرته راتللو. په دې کې حکمت دا ؤ چې مختلف لارې به په عبادت باندې ګواه شي او په هغه لارو کې فرښتې او پیریان او مخې ته راتلونکي انسان ګواه شي. ځینې علماؤ څه نور وجوهات لیکلي دي خو دا د تهول اندازې دی. حقیقت دا دی چې د دې حقیقت بغیر د شارع عَلَیْهِ السَّلَام نه بل هیچا سره نشته دی. (المرقات ۳/۵۳۸).

## په لوي اختر کې د قرباني وخت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ : خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ |
| حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې خطبه راکړه مونږ ته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یوم النحر کې (یعنې د |
| فَقَالَ : إِنَّ أَوَّلَ مَا نَبْدَأُ بِهِ فِي يَوْمِنَا هٰذَا |
| لوي اختر په ورځ) او ارشاد یې وفرمایل چې "په دې ورځ باندې چې مونږ ته د تهولو نه اول کوم کار کول په |
| أَنْ نُصَلِّيَ ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ فَمَنْ |
| کار دی هغه دا دی چې مونږ (د لوي اختر) مونځ وکړو بیا کور ته راشو او قرباني وکړو لهذا کوم سړي چې |
| فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ أَصَابَ سُنَّتَنَا |
| دا عمل وکړو (چې د قرباني نه مخکې د مونځ او خطبې نه فراغت حاصل کړي) هغې زمونږ سنت اختیار |
| وَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ أَنْ نُصَلِّيَ فَإِنَّمَا هُوَ شَاةُ لَحْمٍ |
| کړو او چا چې مونځ نه مخکې قرباني وکړه نو هغه قرباني نه ده بلکې هغه د غوښې والا بیزه چې هغې د |
| عَجَّلَهُ لِأَهْلِهِ لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| خپل کور والو لپاره په تُندۍ سره ذبح کړه. |

**توضیح**: **فننحر**: یعنې مونږ قرباني وکړه "**اصاب سنتنا**". (المرقات ۳/۵۴۰).

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ مسلک دا دی چې په هر استعداد لرونکي باندې قرباني واجب ده. خو امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې قرباني واجب نه ده بلکې سنت دي. د احنافو په نزد معمولي مال لرونکي والا باندې هم قرباني واجب ده. د دې لپاره د ډیر مالونو د فکر کولو ضرورت نشته دی. د لوي اختر

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۶/۲ رقم الحديث ۹۶۸. ومسلم في صحيحه ۱۵۵۳/۳ رقم الحديث ۱۹۶۱/۷. واحمد في المسند ۲۸۲/۴

ترتیب داسي دی چې د قرباني په ورځ اول مونځ وکړی شي. بیا خطبه واوریدلی شي. بیا قرباني وکړی شي. قرباني د مونځ نه وروسته ده. که چا مخکې وکړه نو هغه قرباني نه ده بلکې د خوړلو غوښه ده. په ښار چې په یو ځاې مونځ وشي نو د ټولو ښارونو لپاره اوس قرباني کول جائز شوه. کوم خلک چې په کلو کې وسیږي او هلته د اختر مونځ نه کیږي نو د هغه خلکو لپاره د سحر د مونځ نه وروسته هم قرباني جائز ده. د احنافو په نزد د قرباني ټولي ورځي لسم ذوالحجه، یولسمه ذوالحجه او دولسمه ذوالحجه درې ورځې دي خو شوافع او غیر مقلدین د لسم نه تر دیارلسم پورې قرباني ته جائز وايي. په آخري ورځ باندې اوښ ذبح کوي او تماشه ښايي. (المرقات ۳/۵۴۱).

## د قرباني د واجب کیدلو دلیل

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْبَجَلِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: مَنْ

جندب ابن عبد الله بجلی راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم سړی چې (د قرباني څاروی)

ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا

اختر د قرباني د مونځ نه مخکې ذبح وکړي نو هغه ته په کار ده چې هغه د دې په بدل کې (د قرباني لپاره)

أُخْرَى وَ مَنْ لَمْ يَذْبَحْ حَتَّى صَلَّيْنَا

بل څاروی ذبح کړي او کوم سړی چې تر مونځ کولو پورې ذبح نه کړي نو هغه ته په کار ده چې د مونځ نه

فَلْيَذْبَحْ عَلَى اِسْمِ اللهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱)

وروسته د الله تعالی په نوم باندې (د قرباني څاروی) ذبح کړي.

﴿۱۲﴾ وَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: مَنْ ذَبَحَ

براء رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "کوم سړي چې ذبح کړو (د قرباني څاروی) د

قَبْلَ الصَّلَاةِ فَإِنَّمَا يَذْبَحُ لِنَفْسِهِ

مونځ نه مخکې نو ګویا چې هغه (فقط د خوراک لپاره) د خپل ځان د پاره ذبح کړو (نو ځکه د هغې د

وَ مَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ

قرباني ثواب ونه شو) او کوم سړي چې د مونځ نه وروسته ذبح کړو نو بیشکه د هغې قرباني وشوه او

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶۳۰/۹ رقم الحديث ۵۵۰۰، ومسلم في صحيحه ۱۵۵۱/۳ رقم الحديث ۶-۱۹۶۰، والنسائي ۲۱۴/۷ رقم الحديث ۴۳۶۷، وابن ماجه ۱۰۵۳/۲ رقم الحديث ۳۱۵۲

وَ أَصَابَ سُنَّةَ الْمُسلمين. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

(دغه شان) هغې د مسلمانانو طريقه خپله کړه.

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په عيدګاه کې قرباني کوله

﴿۱۳﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَذْبَحُ وَ يَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى.[2]

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په عيد ګاه کې ذبح او قرباني کوله.

**توضيح**: **ينحر**: د قربانۍ لپاره په شريعت کې ګډه، بيزه، ګډه، غوا، مېښه او اوښ مقرر دي. که هغه نر وي يا ماده وي هيڅ فرق نه کوي. د دې څاروُ نه بغير بل په هيڅ يو څاروي باندې قرباني نه کېږي. (المرقات ۳/۵۴۲).

د اوښ نه بغير نور څاروي هم د ذبح لپاره مقرر دي چې راځملولی شي او په مرۍ ورله چاړه راخکلی شي. البته د اوښ لپاره نحر دی او د نحر طريقه دا ده چې د اوښ مخکينۍ ښپو کې به يوه ګکه کړلی شي او د زنګون سره وتړلی شي. اوس اوښ منډه نشي وهلی. ولاړ به وي. نو هله به سرې نيزه با برچه يا د توري څوکه د اوښ په حلقوم باندې تيره کړي. او د هغې د مرۍ نه به وينه راتوېږي. د ډيري وينې توپيدلو سره اوښ خپله راوغورځېږي او مړ به شي. دا طريقه د نحر ده. (المرقات ۳/۵۴۲).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د مسلمانانو د پاره په کال کې دوه اخترونه دي

﴿۱۴﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْمَدِينَةَ وَ لَهُمْ يَوْمَانِ

انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله مديني ته راغلو نو د مديني خلکو دوه ورځې مقرري

يَلْعَبُونَ فِيهِمَا فَقَالَ:

کړې وي چې په هغې به هغوی لوبې توقې (خوشحالۍ لمانځلې) کولې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (چې

مَا هٰذَانِ الْيَوْمَانِ ؟ قَالُوا : كُنَّا نَلْعَبُ فِيهِمَا

وکتل) پوښتنه يې وکړه چې دا دوه ورځې ده څه دي؟ صحابؤ عرض وکړو چې "مونږ به لوبې کولې په

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۱۰ رقم الحديث ۵۵۴۶، ومسلم في صحيحه ۳/۱۵۵۲ رقم الحديث ۴-۱۹۶۱.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۳۷۱ رقم الحديث ۹۸۲

| |
|---|
| فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " قَدْ أَبْدَلَكُمُ اللهُ |
| دې دوه ورځو کې په جاهلیت کې رسول الله ﷺ و فرمایل چې: په بدل کې درکړې الله تعالی تاسو |
| بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا : يَوْمَ الْأَضْحَى وَ يَوْمَ الْفِطْرِ " . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| ته ددې دوه ورځو په بدل کې د دېنه غوره ورځې. او هغه د وړوکي اختر ورځ او د لوي اختر ورځ ده. |

**توضيح : في الجاهلية:** د اسلام نه مخکې به په مدېنه کې د خوشحالۍ دوه ورځې لمانځل کېدلې. د يوې ورځ نوروز ؤو او د بلې نوم مهرجان ؤو. دا فارس والاؤ د اختر او د خوشحالۍ لمانځلو ورځې وې. چې په هغې که هوا به برابره او موسم به ښايسته ؤو. د فارس والو دا ورځې په عربو کې هم رغلې وې. او هغوی هم د اختر په توګه د دې لمانځل شروع کړل. لکه نن سبا چې په ايران، عراق، شام او داسې نورو ملکونو کې لمانځل کېږي. نبي کريم ﷺ د مدينې والو نه د دې حقيقت پوښتنه کول وغوښتل نو هغوی ورته ښکاره وويله. نو نبي کريم ﷺ ورته په جواب کې و فرمايل چې اوس الله تعالی تاسو ته د دې په بدل کې د خوشحالۍ لمانځلو لپاره دوه ورځې درکړې دي. يوه د کوچني اختر ورځ ده او بله د لوي اختر ورځ ده. (المرقات ۳/۵۴۳).

اوس هيڅ يو مسلمان لره جائز نه ده چې د هغه د غير مسلمو په اختر کې شرکت وکړي يا هغوی ته تحفې ډالۍ کړي او يا هغوی له مبارکي ورکړي. ځکه په دې سره د غير مسلمو د مېلو تعظيم کېږي چې کول يې حرام دي. بلکې د کفر خطره ده. ځکه کچرې مسلمان د تعظيم په توګه د کفارو په مېلو کې شريک شي نو هغه کافر کېږي. او که فقط د لوبو ټوقو لپاره شريک شي نو بيا هم هغه مکروه تحريمي دی. ځکه په دې د کافرانو سره مشابهت کېږي. (المرقات ۵۴۳-۳/۵۴۴).

په فتاوی ذخيره کې ليکل شوي دي چې کوم خلک د هولي او ديوالي لپاره په خاص توګه ځي نو هغه حدود کفر ته نزدې کېږي. په نوارد الفتاوی کې ليکل شوي چې کوم سړی د غير مسلمو رسومات ښه ګڼلي نو هغه کافر شي. بهرحال په مسلمانانو باندې لازمه ده چې هغه د غير مسلمو په محبت کې د هغوی په رسوماتو کې شرکت ونه کړي. دا ډير خطرناکه دي او نه د هغوی مېلو ته څه اهميت ورکړي. دا دېنه هم ډير خطرناکه دي. د روافضو او بدعتيان او اهل باطلو په محفلونو او مجلسونو او جلوسونو کې شرکت کول هم منع دي. څوک چې نه منع کېږي. نه دې منع کېږي تاوان به يې خپل وي. د هدايت دروازې خلاصې دي که څوک راځې او که نه راځي.

---

(۱) أخرجه ابوداؤد في السنن ۶۷۵/۱، رقم الحديث ۱۱۳۴ . و النسائي ۱۷۹/۳، رقم الحديث : ۱۵۵۶ . وأحمد في المسند ۱۰۳/۳ .

درِ فیضِ محمد واہے آئے جس کا جی چاہے ❀ نہ آئے آتشِ دوزخ میں جائے جس کا جی چاہے

مریضانِ گناہ کو دو خبر فیضِ محمد کی ❀ بلا قیمت دوا ملتی ہے جس کا جی چاہے

## وړوکي اختر کې خوراک د مونځ نه مخکې او په لوي اختر کې وروسته خوړل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَطْعَمَ |
| بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به د خوراک څښاک کولو نه بغير عيدګاه ته نه تللو او نه به يې |
| وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الْأَضْحَى حَتَّى يُصَلِّيَ. (۱) |
| کولو خوراک او څښاک په لوي اختر کې په غير د مونځ کولو نه. |

**توضيح**: د ټول رمضان د روژو نيولو نه وروسته سړي د کوچني اختر په ورځ خوراک ته ډير په شوق سره ګوري. ځکه شريعت اجازت کړی دی چې دا سړي خواک خوړلی شي. دا چې د اختر د مونځ نه وروسته نو مصروفيتونه به وي لهذا سړی د اختر د مونځ نه مخکې خوراک کولی شي او د روژه ماتې خوندونه واخلي او مونځ ته لاړ شي. خو د لوي اختر د مونځ نه وروسته د قرباني يو لوي کار دی. لهذا غوره هم دا ده چې مونځ زر هم وي او د هغې نه مخکې خوراک هم ونه کړی شي. وروسته بيا د قربانۍ د غوښې نه څه برخه پخه کړلی شي او خپله يې وخوري او په ميلمنو يې وخوري.

## په اخترونو کې د تکبيراتو تعداد

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| او کثير ابن عبد الله د خپل پلار نه او هغه کثير د خپل نيکه نه (يعنې د خپل پلار مکرم نه) نقل کوي چې |
| أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَبَّرَ فِي الْعِيدَيْنِ فِي الْأُولَى سَبْعًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ وَفِي الْآخِرَةِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د اخترونو مونځ کې په اولنې رکعت کې د قرأت نه مخکې اوه تکبيرونه او په دويم رکعت |
| خَمْسًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ. (۲) |
| کې د قرأت نه مخکې پنځه تکبيرونه وويل. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴۲۶/۲ رقم الحديث ۵۴۲ ،وابن ماجه ۵۵۸/۱ رقم الحديث ۱۷۵۶ ،والدارمي ۴۵۵/۱رقم الحديث ۱۶۰۰ ،وأحمد في المسند ۳۵۲/۵ .

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۶۸۱/۱ رقم الحديث۱۱۵۱ ،والترمذي ۴۱۶/۲ رقم الحديث ۵۳۶ ،وابن ماجه ۴۰۷/۱ رقم الحديث ۱۲۷۷ ،والدارمي ۲۲۰/۱ رقم الحديث ۱۶۰۶ ومالک في الموطا۱۸۰/۱ رقم الحديث ۹ من كتاب العيدين ،،واحمد في المسند۳۵۷/۲

**توضيح** : سبعاً: په دې باندې د ټول اتفاق دی چې د اخترونو مونځ کې څه تکبيرونه زيات دي خو په دې کې اختلاف شوی دی. چې په هر رکعت کې د تکبيرونو تعداد څومره دی.(المرقات ۳/۵۴۵).

**د فقهاؤ اختلاف** :د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد د اخترونو مونځ په اولني رکعت کې د سورت فاتحی د قرأت نه مخکې د تکبيرات تحريمه سره اوه (۷) تکبيرات دي او په دويم رکعت کې پنځه تکبيرات دي.د جمهور په خپل مينځ کې فقط دومره فرق دی چې د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد اوه او پنځه تکبيراتو سره اصل تکبير هم شامل دی. يعنې تکبير تحريمه او د رکوع تکبير. خو د اما شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد اوه او پنځه تکبيرونه زياتې دي. تکبير تحريمه او د رکوع تکبير په دې کې نشته دی.

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد په اولني رکعت کې قرأت فاتحی نه مخکې درې تکبيرات دې او درې واړه زياتې دي. او د دويم رکعت د فراغت نه وروسته رکوع ته د تللو نه مخکې په ولاړه ولاړه زياتې درې تکبيرونه دې يعنې ټول شپږ تکبيرونه زياتې دي. (المرقات ۳/۵۴۵).

**دلائل** :جمهورو د بحث د لاندې د کثير بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه استدلال کړی دی. چې په خپلې مدعا باندې واضح دليل دی. د احنافو ائمۀ په همدغه مقام باندې د يو حديث نه وروسته حديث نمبر ۱۸ نه استدلال کړی دی. چې د حضرت سعيد بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی. او په هغې کې پوښتنه او جواب او د ټول بحث او تحقيق نه وروسته د شان والاصحابې په ډير وضاحت سره ويلي دې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د جنازې د مونځ په شان د اخترونو کې څلور تکبيرونه ويل يعنې يو به اصل تکبير او درې به زياتې تکبيرونه ؤو. حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې "صدق" يعنې ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ريښتيا ويل او همدغه شان معامله وه. (المرقات ۵۴۶-۳/۵۴۷).

احنافو د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يو روايت نه هم استدلال کړی دی او د دغه شان د مغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه يې هم استدلال کړی دی. چې په هغې کې د درې زياتې تکبيرونو ذکر دی. په نصب الرايه کې دا روايات بيان کړی شوي دي.

همدغه شان امام طحاوی رَحِمَهُ اللهُ د قاسم بن عبد الرحمان حديث نقل کړی دی چې په هغې کې هغوی د په ګوتو باندې وشميرل او وي ويل چې په اخترونو کې څلور څلور تکبيرونه دي. يو اصل او درې زياتې دي.

همدغه شان امام طحاوی رَحِمَهُ اللهُ يو ه واقعه نقل کړې ده چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ راجمعه کړل او د اخترونو په تکبيرونو باندې خبرې وشوې. اتفاق په څلورو رکعتو باندې وش. ګوياکې په څلور رکعتو باندې اجماع شوې ده. احنافو يو عقلي دليل هم پيش کړی دی چې زياتې

تکبيرونه د مونځ برعکس دې او کوم شی چې د عام معمول برعکس وي په هغې کې په کمو باندې اکتفا کول ډير غوره دی. لهذا د اوؤ (۷) په ځاې په څلور تکبيرونو باندې اکتفا کول ډير بهتردې. يو تکبير اصل او درې زياتې دي.

**جواب**: د کثير بن عبدالله په روايت کې زياتې تکبيرونه کيدلی شي چې د جواز لپاره وي يا به د نبي کريم ﷺ ابتدائي معمول ؤو. هسې دا عجيبه ده چې کثير بن عبدالله شوافع خپله ضعيف گنړي. ځينو په هغې باندې د کذاب تور لگولی دی. او بيا هم د هغوی د روايت نه استدلال کوي. دا امر هم د تعجب نه خالي نه دی چې د دې متفق عليه ضعيف روايت ته امام ترمذی رحمه الله حسن ويلی دې چې د ترمذی لپاره د تعجب سبب دی. (المرقات۵۴۶-۳/۵۴۷).

## اخترونو په مونځو کې جهري قرأت دی

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ مُرْسَلًا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَبَا بَكْرٍ وَ عُمَرَ |
| جعفر ابن محمد مرسلاً روايت کوي چې نبي کريم ﷺ، حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما |
| كَبَّرُوا فِي الْعِيدَيْنِ وَ الِاسْتِسْقَاءِ سَبْعًا وَ خَمْسًا وَ صَلَّوْا |
| به د اخترونو او د استسقا په مونځ کې اوه او پنځه تکبيرونه ويل او مونځ به يې کولو د (اخترونو او د |
| قَبْلَ الْخُطْبَةِ وَ جَهَرُوا بِالْقِرَاءَةِ . رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.(۱) |
| استسقاء) مخکې د خطبې نه او دغه شان قرأت به يې هم په اوچت اواز سره لوستلو. |

## اخترونو په مونځ کې زياتې تکبيرونه درې درې دي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ قَالَ : سَأَلْتُ أَبَا مُوسَى وَ حُذَيْفَةَ : |
| سعيد ابن عاص رضي الله عنه وايي چې ما د ابوموسی او د حضرت حذيفه رضي الله عنهما نه پوښتنه وکړه چې نبي |
| كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحَى وَ الْفِطْرِ ؟ فَقَالَ أَبُو مُوسَى: |
| کريم ﷺ به د وړوکي اولوي اختر په مونځ کې څو تکبيرونه ويل؟ نو موسی رضي الله عنه جواب راکړو |
| كَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا تَكْبِيرَهُ عَلَى الْجَنَائِزِ |
| چې څنگه به نبي عليه السلام د جنازې په مونځ کې څلور تکبيرونه ويل نو همدغه شان به يې د اخترونو په |

(۱) أخرجه الشافعي في مسنده ص۷۶.

| رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | . | صَدَقَ | : | فَقَالَ حُذَيْفَةُ |
|---|---|---|---|---|

مونځ کې هم ویل" حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (دد ې په اورید و سره) وویل چې (ابوموسی) رښتیا وویل.

**توضیح**: د اصل تکبیرونو په ځای د احنافو په نزد د اخترونو مجموعي زیاتې تکبیرونه شپږ دي. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد د زیاتې تکبیرونه ټول لس دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد زیاتې تکبیرونه دولس دي.

## د خطبې په دوران کې خطیب لره د نیزې، لیندې یا تورې نه مرسته اخستل په کار دي

﴿۱۹﴾ وَ عَنِ الْبَرَاءِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نُوِلَ يَوْمَ الْعِيدِ قَوْسًا

براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې د اختر په ورځ یو نیزه وړاندې کړې شوه

فَخَطَبَ عَلَيْهِ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغې په مرستې سره خطبه ورکوله.

**توضیح**: **قوسا**: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لینده یا نیزه په لاس کې فقط د دې لپاره نه وه اخستلې چې هغه د خطبې لپاره د هغې نه بغیر نشو ودریدلو بلکې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې شیانو سره اشاره وفرمایل چې د اسلامي احکاماتو د حفاظت لپاره جهاد ضروري دی. او د جهاد لپاره د تورې، نیزې او د لیندې ضرورت دی. هم دغه وجه ده چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسلحه او آلې استعمال کړې دې ګیني د مرسته اخستلو لپاره خو همسا وي. چې د هغې ملاویدل هیڅ مشکل نه دي. علماؤ لیکلي دې چې مسلمانو کومې علاقې د جهاد په ذریعې سره فتح کړې دې نو هلته نیزه او لینده په لاس کې ساتل په کار دې او په نورو علاقو کې دې د همسا نه کار واخستلی شي. بهرحال نن سبا د حرمین شریف امامان په لاس کې همساء نیسي دا د مرسته اخستلو لپاره نه وي بلکې فقط د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنت پوره کولو لپاره دي.

علامه اقبال همدغه پرمختګ او زوال اړخ ته اشاره کړې ده:

الفاظ و معانی میں تفاوت نہیں لیکن ۞ ملا کی اذاں اور ہے مجاہد کی اذاں اور

علامه آلوسي رَحِمَهُ اللهُ د قرآن کریم یو حرف ته چې کلمه زائد ووایي نو د ادب په توګه د هغې تشبیه د خطیب د تورې سره ورکوي چې **هذا الحرف سیف خطیب** یعنې صرف د خودلو توره ده د کار نه ده. په

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۶۷۲/۱ رقم الحديث ۱۱۵۳ .وأحمد في المسند ۴۱۶/۴

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ۶۷۹/۱ رقم الحديث ۱۱۴۵

راتلونکي روايت کې عنزه نوم راغلی دی يعنې نيزه، دا نيزه هم تاريخي نيزه وه. چې د حضرت زبير رضي الله عنه وه. په بدر کې هغې د يو مشهور کافر په سترګه کې وهلي وه دا په هغې ونختله. په رايستلو کې زور راغلو او کږه شوه. نبي کريم ﷺ به ستر او د نور شيانو لپاره ډيره استعمالوله. بيا خلفاء راشدينو استعمال کړه.

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَطَاءٍ مُرْسَلًا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَطَبَ يَعْتَمِدُ عَلَى عنزته |
| عطاء بطريق ارشاد روايت کوي چې نبي کريم ﷺ به کله خطبه ورکوله نو تکيه به يې وکړه په |
| اعْتِمَادًا. رَوَاهُ الشَّافِعِي(۱) |
| نيزه باندې او اودريدلو به. |
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: شَهِدْتُ الصَّلَاةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي يَوْمِ عِيدٍ |
| جابر رضي الله عنه راوي دی چې زه د نبي کريم ﷺ سره د اختر په ورځ مونځ کې شريک شوم. نبي |
| فَبَدَأَ بِالصَّلَاةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ |
| کريم ﷺ د اذان او تکبير نه بغير د خطبې نه مخکې مونځ شروع کړو کله چې د مونځ نه فارغ شو |
| قَامَ مُتَّكِئًا عَلَى بِلَالٍ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ أَثْنَى عَلَيْهِ |
| نو (د خطبې لپاره) د بلال رضي الله عنه په مرسته اودريدلو. نبي کريم ﷺ د الله تعالی حمد او تعريف |
| وَ وَعَظَ النَّاسَ وَ ذَكَّرَهُمْ وَ |
| يې بيان کړو. خلکو ته يې نصيحت وکړو او هغوی ته يې د عذاب او ثواب (احکامات) راياد کړل او د |
| حَثَّهُمْ عَلَى طَاعَتِهِ ثُمَّ قَالَ: وَ مَضَى إِلَى النِّسَاءِ |
| الله تعالی د بندګۍ اړخ ته دعوت ورکړی ؤو. بيا نبي کريم ﷺ د ښځو ډلې اړخ ته متوجې شو. |
| وَ مَعَهُ بِلَالٌ فَأَمَرَهُنَّ |
| بلال رضي الله عنه هم د نبي کريم ﷺ سره ؤ (هلته هم) نبي کريم ﷺ ښځو ته يې حکم وکړو د |

(۱) اخرجه الشافعي في مسنده ۷۷

| بِتَقْوَى اللّٰهِ وَ وَعَظَهُنَّ وَ ذَكَّرَهُنَّ . رَوَاهُ النَّسَائِيُّ (۱) |
|---|
| الله تعالی نه د ویریدو او هغوی ته یې نصیحت وکړو او د عذاب او د ثواب (احکامات) یې ورته یاد کړل. |

## عیدګاه ته د تللو طریقه

| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به کله د اختر په ورځ (عیدګاه) ته په یوه لاره لاړو او |
| رَجَعَ فِي غَيْرِهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ والدارمي (۲) |
| بیرته به په بله لاره راتللو. |

**توضیح**: عید ګاه ته تللو لپاره یوه لاره او بیرته د راتللو لپاره بله لاره اختیارول په کار ده. او وجه مخکې په حدیث نمبر ۹ کې بیان شوي ده. (المرقات ۳/۵۳۸).

فقهاؤ لیکلی دي چې عید ګاه ته پیدل تلل مستحب دي. بغیر د ضرورت نه سپوریدل غیر اولی دي. د اختر مونځ په تللو تللو کې په اوچت اواز سره تکبیرات تشریق ویل غوره دي. په لوي اختر کې خو د ټولو اتفاق دی البته په وړوکي اختر کې صاحبین د دې قائل دې او امام ابو حنیفه رحمه الله قائل نه دی حنفیان چې په رو رو ویل په کار دي.

## عذر او د مجبورۍ په وجه د اختر مونځ په جوماتونو کې هم کیږي

| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ أَصَابَهُمْ مَطَرٌ فِي يَوْمِ عِيدٍ فَصَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه اوي دی چې (یو ځل) د اختر په ورځ باران وشو نو مونځ وکړو صحابؤ ته نبي علیه الصلاة والسلام |
| صَلَاةَ الْعِيدِ فِي الْمَسْجِدِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه (۳) |
| د اختر په جومات کې. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه مختصرا ۵۲۳/۲ رقم الحديث ۹۶۱ .ومسلم في صحيحه ۶۰۳/۲ رقم الحديث ۴-۸۸۵ .والنسائي ۱۸۶/۳ رقم الحديث ۱۵۷۵، وأحمد في المسند ۳۱۸/۳

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴۲۴/۲ رقم الحديث ۵۴۱ .وابن ماجه ۴۱۲/۱ رقم الحديث ۱۳۰۱ .والدارمي ۴۶۰/۱ رقم الحديث ۱۶۱۳ .وأحمد في المسند ۳۳۸/۲ .

(۳) أخرجه أبوداود في السنن ۶۸۶/۱ رقم الحديث ۱۱۶۰ .وابن ماجه ۴۱۶/۱ رقم الحديث ۱۳۱۳

## وړوکي اختر کې مونځ ناوخته او لوي اختر کې وختي کول په کار دي

﴿۲٤﴾ وَعَنْ أَبِي الْحُوَيْرِثِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ وَهُوَ بِنَجْرَانَ

ابی الحویرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليکلو عمرو ابن حزم ته چې په نجران کې ؤ

عَجِّلِ الْأَضْحَى وَ أَخِّرِ الْفِطْرَ وَ ذَكِّرِ النَّاسَ. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.[1]

دا (حکم) چې دلوي اختر مونځ زر او د وړوکي اختر مونځ ناوخته وکړه او خطبه کې خلکو ته پند او نصیحت کوه.

**توضیح**: نجران د یو ښار نوم دی. په اوس وخت کې د سعودی عرب په حکومت کې دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عمرو بن حزم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه ځای والي مقرر کړی ؤ. د هغې عمر په هغه وخت کې او ولس (۱۷) کاله ؤ. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته حکم وکړو چې د وړوکي اختر مونځ ناوخته کوه. مقصد دا ؤ چې خلک د وړوکي اختر صدقه د مونځ نه مخکې ورکړي. روژه ماتی هم وکړي. او په لوي اختر کې مونځ زر وکړي مقصد دا ؤ چې خلک وروسته د قرباني لپاره فارغ شي. (المرقات ۳/۵۵۲).

## که د زوال نه وروسته ګواهي وشي نو د اختر مونځ به په دا بله ورځ کیږي

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي عُمَيْرِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ عُمُومَةٍ لَهُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ رَكْبًا

عمیر ابن انس د خپلو ترونو نه چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابؤ کې ؤ نقل کوي چې یوه قافله د

جَاءُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَشْهَدُونَ أَنَّهُمْ رَأَوُا الْهِلَالَ بِالْأَمْسِ

نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په خدمت کې حاضره شوه او دا ګواهې یې ورکړه چې دوي پرون د اختر سپوږمۍ ولیدله.

فَأَمَرَهُمْ أَنْ يُفْطِرُوا وَ إِذَا أَصْبَحُوا أَنْ يَغْدُوا إِلَى مُصَلَّاهُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.[2]

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابؤ ته د روژه ماتي حکم وکړو او وي فرمایل چې سبا عیدګاه ته لاړ شي.

**توضیح**: د رمضان د دیرشتم تاریخ په شپه کې مدینه منوره کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته سپوږمۍ ښکاره نه شوه. نو ځکه د مدیني والو په دیرشتم د رمضان باندې روژه ونیوله. په همدغه ورځ د باهر نه یوه قافله راغله او هغوی د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخکې کې ګواهي ورکړه چې مونږ پرون سپوږمۍ لیدلې ده. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه قافلې ګواهي قبوله کړه او صحابؤ ته یې حکم وکړو چې روژه ماته کړي ځکه چې دا خبر د زوال نه وروسته شوی ؤ نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اختر د مونځ باره

---

(۱) أخرجه الشافعي في مسنده ص ۷٤

(۲) أخرجه أبوداؤد ۱/٦٨٤رقم الحديث ۱۱۵۷ ،والنسائي ۳/۱۸۰رقم الحديث ۱۵۵۷ ،وابن ماجه ۱/۵۲۹رقم الحديث ۱٦۵۳ ،واحمد في المسند ۵/۵۷

کې وفرمايل چې مونځ به سبا ادا کېږي ځکه د اختر د مونځ د کولو وخت نه ؤو. نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه ورځ باندې د اختر مونځ ونه کړو. په همدغه باندې د امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ مسلک قائم دی چې د لمر د زوال نه وروسته که په تيره شي شپه د سپوږمۍ د ليدلو خبر راغلو نو د اختر مونځ به په بله ورځ ادا کېږي. ځکه د اختر وخت د لمر د زوال نه تر وروستي زوال پورې دی. همدغه شان که عذر پيښ شو نو د اختر مونځ په دويمه ورځ هم کيدلی شي. په دريمه ورځ جائز نه دی. خو د لوي اختر مونځ تر دويمي، دريمي ورځي پورې هم دا کيدی شي اګر که کراهت دی مګر جائز دی. (المرقات ۳/۵۵۳).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د اخترونو په مونځونو کې اذان او اقامت نشته دی

| |
|---|
| ﴿۲٦﴾ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ: أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَ جَابِرِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَا: |
| ابن جريج رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې عطاء د ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه نقل کړی دي چې هغه وويل چې |
| لَمْ يَكُنْ يُؤَذَّنُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَلَا يَوْمَ الْأَضْحَى |
| نه خو د وړوکي اختر په ورځ (د مونځ لپاره) اذان کيدلو او نه د لوي اختر په ورځ. ابن جريج وايي چې |
| ثُمَّ سَأَلْتُهُ يَعْنِي عَطَاءً بَعْدَ حِينٍ عَنْ ذَلِكَ فَأَخْبَرَنِي قَالَ: |
| "څه ورځي وروسته ما بيا د عطاء نه د همدغې مسئله باره کې پوښتنه وکړه نو هغه وفرمايل چې ماته |
| أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنْ لَا أَذَانَ لِلصَّلَاةِ يَوْمَ الْفِطْرِ حِينَ يَخْرُجُ الْإِمَامُ |
| جابر ابن عبد اللّٰه ويلي چې د وړوکي اختر په ورځ د اختر مونځ لپاره اذان نشته دی. نه خو د امام د باهر |
| وَلَا بعد مَا يَخْرُجُ وَلَا إِقَامَةَ وَلَا نِدَاءَ وَلَا شَيْءَ |
| راتللو وخت کې او نه د امام باهر ته د راتللو باندې او نه تکبير شته دی او نه اواز شته دی او څه بل شی |
| لَا نِدَاءَ يَوْمَئِذٍ وَلَا إِقَامَةَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| شته دی. په دې ورځ نه آواز شته دی او نه تکبير. |

**توضيح**: **يعني عطاءً**: د دې جملي مطلب دا دی چې ابن جريج رَحِمَهُ اللّٰهُ د خپل استاذ شيخ عطاء نه همدغه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۳۵۱ رقم الحديث ۹٦۰ ،ومسلم في صحيحه ۲/٦۰٤ رقم الحديث ۸۸٦/٥ .

مسئله مخکې پوښتلي وه او عطاء جواب ورکړی ؤو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړو فرمايلي دي اذان نه خو به نه په کوچني اختر کې کيدلو او به لوي اختر کې کيدلو. کيدلی شي چې ابن جريج رَحِمَهُ اللهُ د ډير تفصيل معلومولو په غرض په دويم ځل همدغه مسئله بيا د عطاء نه وپوښتله. اوس شيخ عطاء فقط د جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حوالې سره حديث بيان کړلو او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم يې وانخستلو. همدغه شان جابر بن عبد الله فقط د کوچني اختر ذکر وکړو او لوي اختر ذکر ونکړو ځکه د دواړو د مسئلو او حکم يو شان ؤو. (المرقات ۳/۵۵۴).

خو دلته په حديث کې بيا بيا تاکيد راغلی دی د دې څه وجه ده؟ نو يو تاکيد خو ولا نداء ولا شيء کې دی. چې د "ان لا اذان ولا اقامة" تاکيد دی او خپل لاشيئ هم د نداء تاکيد کوي. د دېنه وروسته يو بل تاکيد دی. چې په "لانداء يومئذ ولا اقامة" کې دی. دا جمله لانداء ولا شيئ کې تاکيد راغلی دی. اوس پوښتنه دا ده چې د دې تاکيداتو څه وجه ده. آخر د دې تاکيداتو څه مقصد دی؟(المرقات ۳/۵۵۴).

د دې پوښتني د پوهيدل لپاره بلکې د دې حديث د پوهيدلو لپاره د شيخ عبد الحق محدث دهلوی رَحِمَهُ اللهُ او د ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ تحقيق اړخ ته رجوع کول ضروري دی. د دواړو بيل بيل تحقيق دی.

نو شيخ عبد الحق فرمايي چې په دې حديث کې د "نداء" نه "الصلوة" يا دغه نور الفاظ مراد دي. چې د مونځ د اطلاع ورکولو لپاره ويل کېږي. د دېنه ورسته لفظ لا شيئ لانداء د تاکيد لپاره راوړلی شوی دی. بيا د هغه حديث د تاکيد لپاره د حديث آخري الفاظ لانداء يومئذ ولا اقامة راوړلی شوی دی. د حديث مطلب دا دی چې د اخترونو مونځ لپاره نه اذان شته دی او نه اقامت شته دی او د دېنه بغير الصلوة او د نور څه إعلانات شته دی. دا ټول ناجائز دي. د شيخ عبد الحق مقصد دا دی چې په خلکو کې چې کوم رواج دی چې اذان خو نه کوي خو د اختر د مونځ لپاره نور اعلانونه کوي. په دې حديث کې ټول ممنوع ګڼلی شوي دي.

د شيخ عبد الحق دا تحقيق ډير ښه دی او د حديث د پوهيدلو لپاره بالکل بې تشويشه کلام دی. (المرقات اشعة اللمعات ۱/۹۴۶).

د دې نه بغير د ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ تحقيق د چې د دې برعکس دی هغه وايي چې "ولانداء" نه آخر تر جملي پورې د مخکې کلام لپاره تاکيد دی او دا به ډير مناسب وي چې د "نداء" نه اذان مراد واخستلی شي او د اذان نفي د بيا بيا تاکيد مقصود وي ځکه د اذان نه بغير الصلوة جامعة او داسي نور الفاظو

سره خلک د اختر مونځ لپاره رابلل مستحب دی. لهذا د دې نفي په کار نه ده. نو د نداء نه اذان مراد اخستل ډیر بهتره دي. (انتهیٰ کلامه)

د ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ د تشریح مطلب دا دی چې بار بار چې دا نفي شوي ده دا فقط د اذان او د اقامت نفي ده د دې نه بغیر د اعلاناتو نفي نه ده. اوس دا دواړه قولونه په خپل مینځ کې متضاد دي. د دې د تطبیق لپاره دا ویل کیدلی شي چې شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ چې د کومې نفي حکم کړی دی هغه د نداء نفي ده. چې هغه التزام سره د عیدګاه دننه وي. ظاهره ده چې د عیدګاه دننه مسلسل دغه شان چغې وهل جائز نه دي. او دا ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ مطلب به دا وی چې د عیدګاه نه باهر کله کله دغه شان د الصلوٰة جامعة په اواز کولو سره خلک راوبلل شي نو ډیر څه باک په کې نشته دی. (المرقات ۳/۵۵۴).

بهرحال د ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ تحقیق د حدیث د ظاهر سره موافق نه دی. د شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ تحقیق واضحه او بهرته دی. نن سبا دا بدعت په پاکستان کې نشته کیدلی شي چې په نورو هیوادونو کې وي.

## په اخترونو کې خطبه د مونځ نه وروسته وي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَخْرُجُ يَوْمَ الْأَضْحَى |
| ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به کله وړوکي اختر او لوي اختر ته (عیدګاه) ته تللو |
| وَ يَوْمَ الْفِطْرِ فَيَبْدَأُ بِالصَّلَاةِ فَإِذَا صَلَّى صَلَاتَهُ قَامَ |
| نو (اول) به یې مونځ شروع کړو چې کله به د مونځ نه فارغه شونو (د خطبې لپاره) وبه دریدلو او خلکو |
| فَأَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ وَ هُمْ جُلُوسٌ فِي مُصَلَّاهُمْ فَإِنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ بِبَعْثٍ |
| ته به متوجې شو خلک به خپل مونځونو ځاې باندې ناست وُو نو که نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به چرته لښکر لیږلو نو |
| ذِكْرَهُ لِلنَّاسِ أَوْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ |
| (هغه وخت) خلکو ته به یې د هغې ذکر کړو (او لښکر به یې ولیږلو) یا به د خلکو څه حاجت وُ (یعنې د |
| بِغَيْرِ ذٰلِكَ أَمَرَهُمْ بِهَا وَ كَانَ |
| مسلمانانو د فایدې څه خبره به وه) نو د هغې باره کې به یې خبره وکړه او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به (د |
| يَقُولُ : تَصَدَّقُوا تَصَدَّقُوا تَصَدَّقُوا . وَ كَانَ أَكْثَرَ مَنْ يَتَصَدَّقُ النِّسَاءُ |
| خپلې خطبې دوران کې) دا فرمایل چې صدقه ورکړئ، صدقه ورکړئ، نو ښځو به ډیره صدقه ورکوله |

ثُمَّ يَنْصَرِف

د هغې نه وروسته به نبي کريم ﷺ کور ته راغللو (د نبي کريم ﷺ په مبارکه زمانه کې

فَلَمْ يَزَلْ كَذٰلِكَ

او د څلورو خلفاء راشدينو په دور خلافت کې بلکې د هغې وروسته پورې هم) دغه معمول جاري ؤو

(خطبه به د مونځ نه وروسته وه او خطبه په ممبر باندې نه وه بلکې په زمکه باندې به ولاړ ؤو او لوستل

حَتّٰى كَانَ مَرْوَانُ ابْنُ الْحَكَمِ

کیدله) تردې چې (امیر معاویه رضي الله عنه له طرفه د مدینې حاکم) مروان ابن حکم مقرر شو (یوځل د اختر

فَخَرَجْتُ مُخَاصِرًا مَرْوَانَ حَتّٰى أَتَيْنَا الْمُصَلّٰى

په ورځ) ما د مروان ابن حکم لاس په خپل لاس کې نیولی ؤو او عیدګاه ته راغلو (چې مونږ عیدګاه ته

فَإِذَا كَثِيرُ بْنُ الصَّلْتِ قَدْ بَنٰى مِنْبَرًا مِنْ طِينٍ وَ لَبِنٍ فَإِذَا

راوسیدلو نو څه وینو چې) هلته کثیر ابن صلت د خاورا و د کچه خختو نه ممبر جوړ کړی ؤو. نو ناڅاپه

مَرْوَانُ يُنَازِعُنِي يَدَهُ كَأَنَّهُ يَجُرُّنِي نَحْوَ الْمِنْبَرِ

مروان زه د خپل لاس سره راکش کړم ګویاکې هغې زه د ممبر اړخ ته راکش کولم (چې د مونځ نه مخکې

وَ أَنَا أَجُرُّهُ نَحْوَ الصَّلَاةِ فَلَمَّا

خطبه ووایي) او ما هغه د مونځ طرف ته راکش کولو (چې هغه اول مونځ او بیا خطبه ووايي) کله چې ما

رَأَيْتُ ذٰلِكَ مِنْهُ قُلْتُ : أَيْنَ

ولیدل (چې هغه اول په خطبه لوستلو باندې اصرار کوي) نو ما ورته وویل چې چیرته دی هغه فعل چې

الِابْتِدَاءُ بِالصَّلَاةِ ؟

شروع به یې کولو د اختر د مونځ کولو؟ (چې په هغې باندې د نبي کريم ﷺ او د خلفاء راشدينو

فَقَالَ : لَا يَا أَبَا سَعِيدٍ قَدْ تُرِكَ

د زمانې نه عمل راروان دی) مروان وویل چې: ای ابو سعید! جنګ مه کوه. اوس هغه پریخودلې شي په

مَا تَعْلَمُ

کومه خبره چې ته خبر یې (یعنې ما د مصلحت د وجې نه اول مونځ کول پریخودلی دی او مصلحت دا

| قُلْتُ : كَلَّا |
|---|
| چې که خطبه د مونځ نه مخکې ولوستل شي نو خلک به پاسیږي او روان به شي) ما ورته وویل چې هیڅ |
| وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ |
| کله هم نه قسم په هغه ذات د چا په قبضه کې زما ژوند دی کوم شي باندې چې زه خبر یم ته د هغې نه بهتره |
| لَا تَأْتُوْنَ بِخَيْرٍ مِمَّا أعلم ثَلَاثَ مَرَّاتٍ |
| شی نه شي راوړی ما دا خبره درې ځل دغه شان وکړه. بیا (مروان د دې فعل په وجه) ابو سعید (عیدګاه |
| ثُمَّ انْصَرَفَ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1] |
| ته) لاړلو (او په جماعت کې شریک نه شو). |

**توضیح** : **تصدقوا**:تکرار د تاکید لپاره دی یا مختلف احوالو اړخ ته اشاره ده. ۱:یعنې صدقه ورکړئ د خپل ژوند لپاره ۲:صدقه ورکړئ د مرګ لپاره ۳:صدقه ورکړئ د آخرت لپاره. (المرقات ۳/۵۵۵).

**مخاصرًا**:اوږه په اوږه ورکول او لاس په لاس کې نیولو سره د دوه سړو مزل ته مخاصره وایي. چې د خیټې سره نزدې وي. (المرقات ۳/۵۵۶).

**مروان ابن الحکم**:دا سړی د مدینې منورې والي ؤو. د حضرت معاویه رضي الله عنه د خلافت زمانه وه. مروان د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې ډیر نقصانونه کړي ؤو. په جنګ جمل کې یې ډیر نقصان کړي ؤو. دا ډیر هوښیار سړی نه ؤو. اول والي ر بیا بادشاه شو. حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه یو زړه ور حق ویونکی انسان ؤو. او د صحابې همدغه شان وي.

د مراوان خطبه به د یو څو شکایتونو د غیبتونو مجموعه وه. الا ماشاء الله که څه لږ خلک به د مونځ نه وروسته د هغې اوریدلو ته کیناستل. اوس خطبه او تقریر په جبرې توګه د اورولو لپاره مروان دا کوشش وکړو چې خطبه د اختر د مونځ نه مخکې وشي. نو صحابې یې د ممبر اړخ ته راکش کولو چې اول خطبه وکړي بیا مونځ وکړي. حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه هغې ته وویل چې د هغه مونځ اولیت څه شو؟ هغې وویل چې مخکې به داسې ؤو چې مونځ به اول او خطبه به وروسته وه. خو اوس هغه طریقه پریخودلې شوې ده. په دې خبره حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه هغې ته وویل چې په خدای قسم ته د سنت په مقابل کې کله هم خیر او نیکي نه شي کولې. د دې صحابې جرأت او حق ګوئی ته بیا هم سلام

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۰۵/۲ رقم الحديث ۸۸۹/۹

کول په کار دی دا همغه خلک ؤوچې د دوي باره کې د الله تعالی ارشاد دی ﴿وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ﴾ مروان په دویمه هجری کې پیدا شوی ؤو. دا صحابي نه ؤو. (المرقات ۳/۵۵۷).

**دا اختر د مونځ پوره طریقه**: اختر د مونځ دوه رکعته دي او د دې د لوستلو طریقه ده چې د ټولو نه اول مونځ کونکی د دوه رکعته واجب کولو نیت وکړي چې د اختر د دوؤ (۲) رکعتو د واجب مونځ نیت کوم. د زیاتې تکبیرونو سره امام پسي وروسته الله اکبر ویلو سره به لاسونه وتړي. بیا به ثنا ووایي او قرأت شروع کولو نه مخکې به درې زیاتې تکبیرونه داسي ووایي چې په هر تکبیر کې به لاس تر غوږونو پورې اوچت کړي او الله اکبر به ووایي او لاس زوړند ونیسي. د دریم تکبیر نه وروسته لاس زوړند مه نیسی بلکې وي تړی او خاموشه ودریږی او د امام قرأت واوری. امام به دا رکعت وکړي او د دویم رکعت لپاره به ودریږي او قرأت نه فارغ شي او رکوع ته د تللو نه مخکې به د قیام په حالت کې بیا زیاتې درې (۳) تکبیرونه ووایي خو په دې زیاتې تکبیرونو کې د ذې دا خیال وی چې د دریم تکبیر نه وروسته د څلورم تکبیر سره امام او مقتدي په نوم باندې د لاس تړلو نه بغیر رکوع ته لاړ شي او د دویم رکعت پوره کولو نه وروسته چې د قعدي نه فارغ شي نو سلام به وګرځوي.

د دې نه وروسته امام ته په کار دي چې دواړه خطبې په ممبر باندې په ولاړه ولاړه ووایي. د وړوکي اختر په موقع باندې خلکو ته صدقه فطر مسائل بیان کړي او د لوي اختر په موقع باندې د قربانۍ مسائل بیان کړي او تکبیرات تشریق بیان کړي. تکبیرات تشریق په لوي اختر کې وي او دا واجب دي. د دې طریقه دا ده چې د هر فرض مونځ نه وروسته یوه ځل په اوچت اواز سره "**الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله والله اکبر الله اکبر ولله الحمد**" ووایي. دا تکبیرات تشریق دي.

تکبیرات تشریق د عرفي په ورځ په ۹ د ذی الحجه د سحر د مونځ نه وروسته تر دیالسم (۱۳) تاریخ نه تر د ماز یګر مونځ پورې دي. دا تکبیرات به ښځې نه وایي. همدغه شان په مسافر باندې هم واجب نه دي.

اهل حق علماء دیوبند لپاره په کار دی چې دا تکبیرات دې لږ په اوچت اواز سره ووایي د اهل حقو په جوماتونو کې د دې دیر کمې محسوسیږي. په ښځو باندې اګر که تکبیرات واجب نه دي. بیا هم د ثواب دپاره دوي ته لوستل په کار دي ثواب خو ورته ملاویږي او یوائې مونځ کونکي ته یې لوستل هم په کار دي.



# باب في الأضحية
# دقرباني بيان

قال الله تعالى: ﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ، لَا شَرِيكَ لَهُ﴾ (۱)
وقال الله تعالى: ﴿إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ﴾ (۲)
وقال الله تعالى: ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ (۳)

شيخ اصمعی رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په لفظ اضحيه کې ډير لغات دي : ۱: **اضحيه** د همزې د ضمې سره ۲: **اضحيه** د کسري سره. د دې دواړو لغتونو جمعه اضاحی راځي. ۳: **ضُحيه** بضم الضاد دې جمعه ضحايا راځی. ۴: **اضحاة بفتح الهمزة**. (المرقات ۳/۵۵۸).

صاحب مشکوة چې کله د اخترونو په باب کې د دې اعمالو او د افعال تذکره پوره کړه او دا چې د لوي اختر په اعمالو کې د ټولو نه مهم عمل قرباني عمل ؤو. نو ځکه يې دا باب شروع کړلو.

**د قرباني شرعي حيثيت**: په دې خبره د ټول اتفاق او اجماع ده چې د الله تعالی په نزد د لوي اختر په ورځ کې قربانۍ ډير محبوب او مقبول عمل دی. مګر د فقهاؤ په دې کې اختلاف دی چې آيا قربانۍ کول واجب ده او که سنت ده.

**د فقهاؤ اختلاف**: د علامه ابن رشد رَحِمَهُ اللهُ د تصريح مطابق ائمه ثلاثو په نزد د قرباني عمل سنت مؤکده دی. د احنافو په نزد په مالداره او مقيم باندې قربانۍ واجب ده. البته امام طحاوی رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې قربانۍ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد واجب ده او د صاحبينو په نزد سنت مؤکده ده.

**دلائل**: جمهورو فقهاؤ د دې باب په فصل اول کې د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حديث نمبر ۷ نه استدلال کړی دی. چې په هغې کې دا الفاظ راغلي دي: "**اذا دخل العشر و اراد بعضكم ان يضحي الخ**" په دې حديث کې د **اراد** لفظ نه معلوميږي چې که څوک د قرباني اراده نه لري نو ضروري نه ده دا د سنت کيدو دليل دی.

جمهور فقهاؤ دويم دليل د دې باب هغه حديثونه دي چې په هغې کې د قربانۍ باندې د سنت د لفظ

---

(۱) سورة الأنعام آيت ۱۶۲-۱۶۳
(۲) سورة المائدة آيت ۲۷.
(۳) سورة الكوثر آيت ۲

اطلاق شوی دی. مثلاً په حدیث نمبر ۲۳ کې "**سنة ابیکم ابراهیم**" کې سنت اطلاق شوی دی.

او د حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت نمبر ۱۲ کې د "**اصاب سنة المسلمین**" الفاظ راغلي دي. دا ټول د قرباني د سنت کیدلو دلیل دی.

احنافو د ائمؤ اولنی دلیل د قرآن کریم آیت دی "**فصل لربك وانحر**" دلته صیغه د امر ده او د قرباني حکم دی او امر د وجوب لپاره راځی. لهذا قرباني واجب ده. د احنافو دویم دلیل د دې باب په فصل ثالث کې حدیث نمبر ۲۰ دی چې په هغې کې دا الفاظ راغلي دی "**من کان ذبح قبل ان نصلی فلیذبح مکانها اخری**" دلته هم امر دی چې د وجوب دلیل دی. همدغه شان د یوې قرباني په خریدلو باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دویمې قرباني کولو امر کړی دی. دا قضا راګرځول هم د وجوب دلیل دی. د احنافو دریم دلیل د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی. چې د هغې الفاظ دا دي: **من کان له سعه ولم یضح فلا یقربن مصلانا. (ابن ماجه)**

قرباني نه کولو باندې د دومره سخت وعید نه اندازه کېږي چې قرباني کول واجب ده سنت نه ده.

د احنافو څلورم دلیل په بخاری کې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوع حدیث دی. الفاظ دا دي "**من ذبح قبل الصلوة فلیعد**". (**بخاري کتاب العیدین ص ۱۸۹**)

د قرباني د اعادې دا حکم د قرباني د وجوب دلیل دی.

د مشکوة فصل ثالث حدیث نمبر ۲۳ هم د احنافو دلیل دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدینه منوره کې تر لس کالو پورې مسلسل قرباني کړې ده او دا یې کله هم نه ده پریخودلي. دا هم د وجوب دلیل دی.

**جواب**: جمهورو چې د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د روایت نه کوم استدلال کړی دی. د دې جواب دا دی چې د "اراد" دلفظ نه د وجوب نفي مراد اخستل مناسب نه دي.

په یو حدیث کې دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: "**من اراد الحج فلیعجل**" دلته د ارادې نه نفي وجوب څنګه اخستل کیدلی شی. په یو حدیث کې راغلي دې چې "**ومن اراد الجمعة فلیغتسل**" دلته د جمعې باره د اراد لفظ راغلی دی نو آیا جمعه فرض نه ده. او چې په کوم کوم حدیث کې د سنت د لفظ اطلاق شوی دی نو د هغې جواب دا دی چې د سنت نه اصطلاحی مراد نه دی بلکې سنت د طریقې په معني اخستل شوی دی. دا د وجوب منافي نه ده.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د قرباني څاروی په خپل لاس سره ذبح کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : ضَحَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ |
| انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم قرباني وکړه په دوو داسې چې د ښکرو والا (يعني چې |
| ذَبَحَهُمَا |
| ښکران يې اوږده ؤو يا دا چې ښکر يې مات نه وي) او املح (يعني د تور او سپين) وي ذبح يې کړل دواړه |
| بِيَدِهِ وَ سَمَّى وَ كَبَّرَ قَالَ : |
| په خپل نبي لاس باندې او بسم الله او الله اکبر يې وويل. انس رضي الله عنه وايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم |
| رَأَيْتهُ وَاضِعًا قَدَمَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا وَيَقُولُ: بِسْمِ اللهِ وَاللهُ أَكبر. (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| د هغې هر طرف (يا په مرۍ) باندې خپې کېخودلي او ويل به يې بسم الله و الله اکبر. |

**توضیح: املحین**: د تور رنګه او سپين رنګه ګډ ته وايي. يعني دوه ښکرور ګډان. (المرقات ۳/۵۵۸).

**اقرنين**: چې د هغې غټ غټ ښکران وي. (المرقات ۳/۵۵۹).

**وسمی وکبر**: قرباني کونکي لپاره مستحب دې چې که هغه د قربانۍ کولو آدابو باندې پوهيږي نو هغه دې په خپل لاس باندې ذبح کړي. ګيني په نورو صورتونو کې دې بل چا باندې ذبح کړي او خپله هلته موجود وي يا د هغه د طرف نه اجازت وي. (المرقات ۳/۵۵۹).

د ذبح کولو په وخت کې بسم الله ويل د احنافو په نزد شرط دی او **الله اکبر الله اکبر** ويل د ټولو علماؤ په نزد مستحب امر دی. "**بسم الله والله اکبر**" د واړو سره ادا کول ډير بهتره دي. د ذبح کولو په وخت کې درود لوستل ويل د جمهورو فقهاؤ په نزد مکروه دي. (المرقات ۳/۵۵۹).

**على صفاحها**: صفاح اړخ ته هم وايي او د غه شان صفاح مخ ته وايي. (المرقات ۳/۵۶۰).

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۲ رقم الحديث ۵۵۶۴. ومسلم في صحيحه ۳/۱۵۵۶ رقم الحديث ۱۷-۱۹۶۶. وابوداود في السنن ۳/۲۳۰. و الترمذي في السنن ۴/۱۴۹۴. والنسائي ۷/۲۱۹ رقم الحديث ۴۳۸۷. وابن ماجه ۲/۱۰۴۳ رقم الحديث ۳۱۲۰. والدارمي ۲/۱۰۳ رقم الحديث ۱۹۴۵. و احمد في المسند ۳/۹۹

## د قربانۍ څاروی دې څنګه وي؟

﴿۲﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَمَرَ بِكَبْشٍ أَقْرَنَ

عائشه رضی الله عنها روایت کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم (د قربانۍ د پاره) یو داسې ښکرور ګډ راوړلو حکم

يَطَأُ فِيْ سَوَادٍ وَ يَبْرُكُ فِيْ سَوَادٍ

وکړو چې په تورو والي کې ګرځي (یعنې د هغه ښپې توري وي) او په تورو والي کې کيني (یعنې د هغې

وَ يَنْظُرُ فِيْ سَوَادٍ

خيټه او سينه توره وي) او په تورو والي باندې ګورې (یعنې د هغې ستر ګې ګير چاپيره توري وي) نو (کله

فَأُتِيَ بِهِ لِيُضَحِّيَ بِهِ قَالَ : يَا عَائِشَةُ هَلُمِّي الْمُدْيَةَ

چې د) نبي کريم صلی الله علیه وسلم لپاره داسې ګډ راوستلی شو (نو) وي فرمايل چې يا عائشې! چاړه راوړه

ثُمَّ قَالَ : اشْحَذِيهَا بِحَجَرٍ فَفَعَلَتْ ثُمَّ أَخَذَهَا وَ أَخَذَ الْكَبْشَ فَأَضْجَعَهُ

(چې چاړه راوړلی شوه نو) وي فرمايل چې دا په کاڼي باندې (ومږه چې) تيره شي. نبي کريم صلی الله علیه وسلم

ثُمَّ ذَبَحَهُ ثُمَّ قَالَ : بِسْمِ

چاړه را واخستله او ګډ يې سرچپه څملولو بيا يې د هغې د ذبح کولو اراده وکړه نو دا يې وفرمايل: په نوم

اللهِ اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ وَ آلِ مُحَمَّدٍ وَ مِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ

د الله سره . ای الله! دا قبول کړې د محمد صلی الله علیه وسلم . او د آل محمد نه او د محمد صلی الله علیه وسلم د امت د

ثُمَّ ضَحَّى بِهِ. رَوَاهُ مُسلم [1]

طرف نه او بيا يې هغه ذبح کړلو .

**توضيح** : **يطاء**: د ښپو لاندې کولو په معنی کې دی مراد ترې نه ګرځيدل دي. (المرقات ۳/۵۶۰).

**يَبْرُكُ**: د کيناستلو په معنی کې دی. (المرقات ۳/۵۶۰).

**في سواد**: يعنې هغه ګډ چې د ښپو غاړې يې توري وي نور سپين ؤو. خله او د ستر ګو کړۍ يې توري وي او نور سپين ؤو او سينه او نور داسې لاندنۍ برخه يې توره وه نور سپين ؤ د دې رنګ څاروی د ټولو نه ښايسته وي. (المرقات ۳/۵۶۰).

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۵۵۷ . رقم الحديث ۱۹-۱۹۶۷ . وابوداؤد في السنن ۳/ ۲۲۹ . رقم الحديث ۲۷۹۲ . وأحمد في المسند ۶/۷۸

**المدية:** چاړه ته وايي. (المرقات ۳/۵۶۰).

**اشحذ بها:** چاړه تيره كولو ته تشحيذ وايي. (المرقات ۳/۵۶۰).

فقهاؤ ليكلي دي: چې يو څاروى بلكل د بل څاروى مخې ته ذبح كول مكروه دى، او چاړه تيره كول مستحب دي.

**امة محمد:** امت ته يې په ثواب كې شريک كيدو دعا كړې ده ګيني په يو ګډ كې ټول امت څنګه شريک كيدې شي. (المرقات ۳/۵۶۰).

## د كوم عمر په څاروي باندې قرباني كول په كار ده؟

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَذْبَحُوا إِلَّا مُسِنَّةً |
| جابر رضي الله عنه راوي دى وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: تاسو مه ذبح كوئ (په قرباني كې) |
| إِلَّا أَنْ يَعْسُرَ عَلَيْكُمْ فَتَذْبَحُوا جَذَعَةً مِنَ الضَّأْنِ. رَوَاهُ مُسلم.[1] |
| مګر مسنه څناور ذبح كړئ، خو! كه مسنه بيانه مومئ نو بيا ګډ يا ګډي بچي ذبح كړى. |

**توضيح: مُسِنَّة:** **جذعة** او **مسنة** د كوم خاص څاروي نوم نه دى بلكې اصطلاحي الفاظ دې چې د قربانى د څاروي د نوم لپاره استعماليږي. دا حنفي مسلک مطابق د دې الفاظو تشريح داسې ده چې په اوښانو كې مسنة هغه اوښ وي چې د هغې پنځه كاله پورا شوي وي او په شپږم كال كې داخل شوى وي. غوا، غويا او ميخه كې مسنة هغه وي چې دوه كاله يې پوره شوي وي او په دريم كال كې داخل شوي وي. بيزه، ګډه او ګډ كې مسنة هغه وي چې د هغې يو كال پوره شوى وي او په دويم كال كې داخل شوى وي. خو كه ګډ او ګډه اګر جذعه هم وي نو قرباني پرې هم جائز ده. جذعه ګډ او ګډه هغه وي چې د هغې عم د يو كال نه كم وي خو شپږ مياشتي يا د هغې نه ډير وي.

دا تفصيل د احنافو د مسلک مطابق دى. څېنې علماء وايي چې جذعه يعنې ګډه د شپږو مياشتو كوم بچى وي د هغې قرباني په هغه صورت كې جائز ده چې هغه دومره څربه وي چې د يو كلن بچى سره يې ودروي نو بالكل د هغې برابر وي. (المرقات ۳/۵۶۱).

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۵۵/۳ رقم الحديث ۱۳-۱۹۶۳، وابوداؤد في السنن ۲۳۲/۳، والنسائي ۲۱۸/۷ رقم الحديث ۴۳۷۸، وابن ماجه ۱۰۴۹/۲ رقم الحديث: ۳۱۴۱، واحمد في المسند ۳۱۲/۳

## د بيزي (چيلى) په بچي باندې قرباني

| ﴿٤﴾ وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ :أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَعْطَاهُ غَنَمًا |
|---|
| د عقبه ابن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته د بيزو يوه رمه ورکړه دې دپاره |
| يَقْسِمُهَا عَلَى صَحَابَتِهِ ضَحَايَا فَبَقِيَ عَتُودٌ |
| چې هغه په صحابؤ کې تقسيم کړي نو (دا رمه يې تقسيم کړه) د تقسيم نه وروسته د بيزي يو بچى پاتى شو |
| فَذَكَرَهُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : ضَحِّ بِهِ أَنْتَ |
| هغه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د دې ذکر وکړو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې: په دې قرباني وکړه. |
| وَ فِي رِوَايَةٍ قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَصَابَنِي جَذَعٌ |
| ديو بل روايت الفاظ دي چې: ما عرض وکړو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته د بيزي يو بچى ملاؤ شوى دى |
| قَالَ : ضَحِّ بِهِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په هغې قرباني وکړه. |

**توضيح : عتود**: د بيزې هغه بچى ته **عتود** وايي چې ځربه وي او د يو کال وي. د دې حديث نه معلومه شوه چې د بيزې په يو کلن بچى باندې قرباني جائز ده. او همدغه مسلک د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دی. خو امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د دوه کلن بچى قرباني وايي. ځينې علماء وايي چې عتود د بيزي هغه بچى ته وايي چې د شپږو مياشتو نه ډير وي او د کال نه کم وي. په دغه صورت کې عتود د قرباني لپاره قبلول د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيت هم ؤو او د هغه کس خصوصيت هم ؤو. د عامو مسلمانانو لپاره د بيزي په دغه شان بچى باندې قرباني جائز نه ده لکه څنګه چې د نورو رواياتو نه په واضحه توګه معلوميږي چې دا د هغه کس لپاره خصوصي حکم ؤو. (المرقات ٥٦٢/٣).

## عيد ګاه کې قرباني افضله ده

| ﴿٥﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2] |
|---|
| او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په عيد ګاه کې د قربانۍ څاروي ذبح او نحر کولو. |

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٠/٤ رقم الحديث ٥٥٤٧. ومسلم في صحيحه ١٥٥٦/٣ رقم الحديث ١٦-١٩٦٥. والترمذي في السنن ٧٤/٤. والنسائي ٢١٨/٧ رقم الحديث ٤٣٧٩. وابن ماجه ١٠٤٨/٢ رقم الحديث ٣١٣٨. والدارمي في السنن ١٠٦/٢ رقم الحديث ١٩٥٣. وأحمد في المسند ١٤٩/٤

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ٥٤٦/٢ رقم الحديث ٩٨٢

**توضيح**: د دې حدیث تفصيل مخکې تیر شوی دی.

## په يو اوښ کې اوه کسان قرباني کولې شي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: الْبَقَرَةُ عَنْ سَبْعَةٍ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (د قرباني دپاره) يو غوا د اوو کسانو د |
| وَ الْجَزُوْرُ عَنْ سَبْعَةٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَأَبُوْ دَاوُدَ وَاللَّفْظُ لَهُ. [1] |
| طرف نه کافي ده او يو اوښ هم د اوو سړو د طرف نه کافي دې. |

**توضيح**: ګډه او بیزه کې فقط يو سړی قرباني کولی شي. غوا، غويا او ميخه کې اوه کسان د قربانۍ لپاره شريک کيدې شي. اوس مسئله د اوښ پاتې شوه په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۳/۵۶۳).

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د غير مقلدينو په نزد يه يو اوښ کې د کور لس (۱۰) کسان په شريکه قرباني کولی شی. د جمهور فقهاؤ په نزد دا صحيح نه ده. بلکې په اوښ، غوا، غويا او ميخه کې فقط اوه کسان قرباني کولی شي. (المرقات ۳/۵۶۳).

**دلائل**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه استدلال کړی دی چې د مشکوة په ص ۱۲۸ باندې حدیث نمبر ۱۷ باندې دی. په هغې کې د لس کسانو د اوښ په قربانۍ کې د شرکت او قربانۍ ثبوت موجود دی. (المرقات ۵۶۳-۳/۵۶۴).

د جمهورو دليل د بحث د لاندې حديث نمبر ۶ دی چې په خپل مطلب باندې واضح دی.

**جواب**: جمهور فقهاؤ چې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه کوم استدلال کړی دی دا د ثواب والاقرباني ده. واجبه قرباني نه ده. مثلاً د ثواب ګټلو لپاره څه خلک را جمعه شي. دغه شان قربانۍ کې دولس (۱۲) کسان هم شريک کيدلی شي.

د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت دويم جواب دا دی چې د اوښ د قربانۍ باره کې مختلف متعارض روايات دي. ځينو کې د اوه کسانو ذکر دی. ځينو کې د لس کسانو ذکر دی. نو احتياط په دې خبره کې دی چې اوه واخستلی شي او د لس کسانو صورت اختلافي دی هغه وانخستلی شي. دغه شان د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت د بحث د لاندې حديث مقابله نشي کولی بلکې په دې سره هغه منسوخ شو. لهذا هغه دې پريخودلی شي او د بحث د لاندې حديث دې قبول کړلی شي. بهرحال د لس کسانو شرکت په هغه قربانۍ کې جائز دی چې هغه قرباني د ثواب په توګه وي د وجوب په توګه نه وي.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۹۵۵/۲، رقم الحديث: ۳۵۲-۱۳۱۸، و أبوداؤد في السنن ۲۳۹/۳، والنسائي ۲۲۲/۷، رقم الحديث: ۴۳۹۳.

که د ثواب په توګه په یو اوبن کې لس کسان شرکت وکړي. نو صحیح خو ده خو مقصود به فقط ثواب وي. قرباني واجبه نه ده.

## د قرباني کوونکي د پاره هدايات

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ |
| ام سلمه رضي الله عنها راويه ده چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کله چې داخله شي د ذي الحجه اولنۍ عشره |
| وَ أَرَادَ بَعْضُكُمْ أَنْ يُضَحِّيَ فَلَا يَمَسَّ مِنْ شَعْرِهِ وَ بَشَرِهِ شَيْئًا وَ فِي رِوَايَةٍ |
| نو په تاسو کې چې کوم کس د قرباني اراده وکړي نو هغه خپل ويختان او نوکان مه غوځوي په يو روايت |
| فَلَا يَأْخُذَنَّ شَعْرًا وَلَا يَقْلِمَنَّ ظُفُرًا وَ فِي رِوَايَةٍ مَنْ رَأَى هِلَالَ ذِي الْحِجَّةِ |
| کې دي مه ويختان غوځوي او مه نوکان غوځوي په بل روايت کې دي چې کوم سړی وويني مياشت د ذي |
| وَ أَرَادَ أَنْ يُضَحِّيَ فَلَا يَأْخُذْ مِنْ شَعْرِهِ وَلَا مِنْ أَظْفَارِهِ . رَوَاهُ مُسْلِم[1] |
| الحجې او هغه د قرباني اراده لري نو هغه دې (د قرباني کولو پورې) خپل ويختان او نوکان نه غوځوي. |

## د ذي الحجې د لسو ورځو د اعمالو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَا مِنْ أَيَّامٍ |
| ابن عباس رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: داسې هيڅ ورځ نشته چې په هغې نيک |
| الْعَمَلُ الصَّالِحُ فِيهِنَّ أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ هٰذِهِ الْأَيَّامِ الْعَشَرَةِ قَالُوا : |
| عمل کول د خدای په نزد د دې لس ورځو نه (د ذي الحجه اولنۍ عشرې نه) ډير محبوب وي صحابو عرض |
| يَا رَسُولَ اللهِ وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ ؟ |
| وکړو چې يا رسول الله! آيا (د دې ورځو نه بغير په نورو ورځو کې) د خدای په لاره کې جهاد کول هم (د دې |
| قَالَ : وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| ورځو د نيک اعمالو برابر) نه دي نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې جهاد في سبيل الله هم نه. خو د هغه |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۵۶۵ رقم الحديث ۳۹-۱۹۷۷، و ابوداؤد في السنن ۳/۲۲۸ رقم الحديث: ۲۷۹۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۸۶/۴ رقم الحديث: ۱۵۲۳، والنسائي ۷/۲۱۱ رقم الحديث ۴۳۶۴، وابن ماجه ۲/۱۰۵۲ رقم الحديث: ۳۱۴۹.

إِلَّا رَجُلٌ خَرَجَ بِنَفْسِهِ وَ مَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ مِنْ ذٰلِكَ بِشَيْءٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

سړی جهاد چې د خپل نفس او مال سره (د خدای په لاره کې جنګیدلو) لپاره وځي او بیا بیرته رانه شي (هغه د دې ورځو د اعمالو نه ډیر افضل دی).

**توضیح : ولا الجهاد:** د صحابه کرام رضی الله عنهم په زړونو او مازغو کې د جهاد نقشه ډیره اوچته وه ځکه د هغې فضائل ډیر اوچت دي. نو ځکه شک وکړی شو چې آیا د جهاد نه هم د دې عشرې عملونه اوچت دي؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې آؤ د جهاد نه هم افضل دي. الا دا چې مجاهد جهاد ته لاړ شي او خپله شهید شي، آس یې هم مړ شي او ټوله سرمایه قرباني کړي چې د هغې باره کې دا وویل شي.

جو پاس تھا وہ سب ہی لوٹا دیا حق تو یہ ہے کہ حق ادا ہی کیا

کله کله الله تعالی په لږ عمل باندې ډیر ثواب ورکوي دا جزئی فضیلت دی د جهاد فضیلت کلی او عمومي دی. (المرقات ۳/۵۶۶).

## آیا عشره ذوالحجه بهتره ده یا آخري عشره د رمضان؟

اوس دلته دا بحث دی چې د رمضان آخري عشره د ډیر فضیلت والا ده یا که د ذوالحجه اوله عشره د ډیر فضیلت والاده. د بحث لاندې حدیث نه خو معلومیږي چې د ذوالحجه عشره د رمضان د عشرې نه افضله ده. مګر علماؤ د تطبیق په توګه لیکلي دي چې امکان لري چې د ذوالحجه د عشرې دا فضیلت د رمضان د عشرې نه بغیر په نورو ورځو باندې وي. د عشره رمضان سره یې مقابله نه وي. دویمه توجیه دا ده چې دواړو عشرو ته په جلا جلا حیثیت سره فوقیت حاصل دی مثلاً عشره ذوالحجه په دې اعتبار سره افضله ده چې په دې ورځې باندې عرفه ده او د رمضان آخري عشره په دې اعتبار سره افضله ده چې په دې کې شبِ قدر دی. که د عشره ذوالحجه نه د عرفې ورځ اخوا کړی شي نو د عشره رمضان افضله ده او که د عشره رمضان نه شب قدر اخوا کړی شي نو عشره ذوالحجه غوره ده. (المرقات ۳/۵۶۶).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د قربانۍ په وخت کې دعاء

﴿۹﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : ذَبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَوْمَ الذَّبْحِ كَبْشَيْنِ

جابر رضی الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ذبحې په ورځ (یعنې د لوې اختر په ورځ) دوه ګډان

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ٢ /٤٥٧ رقم الحديث ٩٦٩. وأخرجه ابوداؤد ٢/٨١٥ رقم الحديث ٢٤٣٨. والترمذي ٣/١٣٠ رقم الحديث :٧٥٧. و ابن ماجه ١ /٥٥٠ رقم الحديث ١٧٢٧

| |
|---|
| أَقْرَنَيْنِ أَمْلَحَيْنِ مَوْجُوْئَيْنِ فَلَمَّا وَجَّهَهُمَا قَالَ : |
| چې ښکرور، برګ او خصي ؤو ذبح کول يې وغوښتل. نو هغه يې د قبلې اړخ ته کړل او دا يې وويل يعني |
| إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوَاتِ وَ الْأَرْضَ عَلٰى مِلَّةِ إِبْرَاهِيْمَ |
| زه د هغه ذات اړخ ته متوجه کيږم چا چې آسمانونه او زمکې پيدا کړي دي په داسې حال کې په دين ابراهيمي |
| حَنِيْفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ إِنَّ صَلَاتِيْ وَ نُسُكِيْ |
| باندې يم چې د توحيد منونکی يم او زه د مشرکانو نه، نه يم. بيشکه زما مونځ، زما ټول عبادتونه، زما |
| وَ مَحْيَايَ وَ مَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَ |
| ژوند او مرګ (ټول) دالله لپاره دي چې د ټولو جهانو پروردګار دی چې بل څوک شريک ورسره نشته او |
| بِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَ أَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ اَللّٰهُمَّ مِنْكَ |
| ماته د دې حکم راکړی شوی دی او زه د مسلمانانو نه يم. ای الله! دا قرباني ستا د طرفه راکړی شوې ده. |
| وَ لَكَ عَنْ مُحَمَّدٍ وَ أُمَّتِهٖ بِسْمِ اللّٰهِ |
| او خالص ستا د رضا لپاره ده. ته دا د محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د هغه د امت د طرفه قبوله کړې سره د نوم دالله نه |
| وَ اللّٰهُ أَكْبَرُ ثُمَّ ذَبَحَ . وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ وَ أَبِيْ دَاوُدَ وَ التِّرْمِذِيِّ :(1) |
| او الله ډير لوي دی د هغې نه وروسته يې هغه ذبح کړ. او په يو روايت د احمد، ابوداؤد او ترمذي کې دي |
| ذَبَحَ بِيَدِهٖ وَ قَالَ : بِسْمِ اللّٰهِ وَ اللّٰهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُمَّ هٰذَا |
| چې په خپل لاس سره يې ذبح وکړه او وې فرمايل: د الله په نوم سره او الله ډير لوي دی. ای الله! دا زما د |
| عَنِّيْ وَ عَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِيْ. |
| طرف نه او د هغه چا د طرف نه چې هغه زما د امت نه د قرباني طاقت نه لري. |

**توضيح : املحين:** مخکې ليکل شوي دي چې املح برګ ګډ ته وايي چې هغه سپين او تور رنګه وي چې ابلق هم ورته وايي. **موجوئين وجأ يوجأ ووجأ فهو موجوء:** ټکولو او ميده کولو په معنی کې دی.

---

(1) اخرجه ابوداود في السنن ۲۳۰/۳رقم الحديث۲۷۹۵،والترمذي ۷۵/٤رقم الحديث ۱۵۲۱، وابن ماجه ۱۰٤۳/۲رقم الحديث ۳۱۲۱،والدارمي ۱۵۳/۲رقم الحديث ۱۹٤۶،واحمدفي المسند۳۷۵/۳.

خصيتين چې کله د دوه کانو په ميغ نبه وټکولی شي هغې ته وجاء وايي. دلته همدغه مراد دی. موجوء د اسم مفعول صيغه ده او موجوئين د دې تثنيه ده. مطلب دا دی چې هغه دواړه ګډان خصي ؤو چې د څاروي دواړه هګۍ کله رايستلی شي هغې ته عربۍ کې خصي وايي. مګر خصيتين چې کله د کانو مينځ کې وټکولی شي نو هغې ته وجاء وايي. بهرحال په عمل سره د قربانۍ په څاروي کې غوښه نه کميږي بلکې نوره هم خوګه شي نو ځکه دا جائز بلکې احسن ده.

**لم يضح من امتي:** د دې مطلب دا دی چې زما په امت کې چې کوم خلک غريبانان او بې وسه دې او د قربانۍ کولو قدرت نه لري. د هغې له اړخه دا قرباني ده چې زما سره هغوی ته هم ثواب ورکړې. د دې جملې مطلب دا نه دی چې د قرباني د هغوی له اړخ نه هم ده. ځکه ټول امت په دې کې نه شي شريک کيدی. البته په ثواب کې شريک کيدی شي. او که ټول فقيران او د غريبانانو له طرف نه حقيقي قرباني مراد واخستلی شي او دا هم د نبي کريم ﷺ د خصوصياتو نه شمير کېږي. د نورو لپاره دا قاعده نه جوړيږي. (المرقات ۳/۵۵۸).

## د مرحومينو لپاره قرباني جائز ده

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ حَنَشٍ قَالَ : رَأَيْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ |
| حنش رضي الله عنه وايي چې ما وليدو حضرت علي رضي الله عنه چې په دوه ګډو باندې يې قرباني وکړه نوما ترې |
| فَقُلْتُ لَهُ : مَا هٰذَا ؟ فَقَالَ : |
| پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ (يعنې چې د يوې ګډې قرباني کافي ده نو دوه ګډان ولې قرباني کوي؟) |
| إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَوْصَانِي أَنْ |
| هغه وويل چې ماته نبي کريم ﷺ دا وصيت کړی ؤ چې (د هغې د مرګ نه وروسته) د هغه د پاره |
| أُضَحِّيَ عَنْهُ فَأَنَا أُضَحِّي عَنْهُ. وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ[1] |
| قرباني وکړم لهذا زه د هغه د پاره قرباني کوم. |

## عيب دار څاروي باندې قرباني نه کيږي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ : أَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ |
| حضرت علي رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ مونږ ته حکم وکړو چې مونږ (د قربانۍ د څاروی) |

[1] أخرجه أبو داؤد في السنن ۲۲۷/۳ رقم الحديث ۲۷۹۰، والترمذي ٤ / ۷۱ رقم الحديث ۱٤۹٥ وأحمد في المسند ۱ / ۱٥٠

نَسْتَشْرِفَ الْعَيْنَ وَ الْأُذُنَ

سترګې او غوږونه ښه وګورو (چې څه داسې عیب په کې نه وي چې د هغې په وجه قرباني نه صحیح کېږي

وَ أَنْ لَا نُضَحِّيَ بِمُقَابَلَةٍ وَلَا

او دا حکم یې هم کړی دی چې) د هغه څاروي قرباني ونه کړو چې غوږ شوې وي د هغې مخکني اړخ یا

مُدَابَرَةٍ وَلَا شَرْقَاءَ وَلَا خَرْقَاءَ . (۱) و انتهت رِوَايَته إِلَى قَوْله : وَالْأُذُنَ.

وروستنی اړخ او نه د هغه څاروي چې د غوږ اوږد والي کې تیره والی او په پلن والي کې شلیدلي وي.

**توضیح : ان نستشرف:** په توجو سره کتني او د معلومولو په معنی دی. یعني د څارو سترګو او غوږونو ته په غور سره وګوری چې په هغې کې څه نقص او عیب نه وي. (المرقات ۳/۵۷۰).

**مقابلة: هي التي قطع من قبل اذنها شئ ثم يترك معلقا (طيبي) (الكاشف ۳/۲۶۲).**

یعني مقابله هغه څاروی دی چې د هغې د غوږ نه مخکنی برخه غوڅه شوي وی او بیا زوړنده پرېخودلی شوي وي.

**ولا مدابرة:** مدابره هغه څاروی دی چې د هغې د غوږ وروستنی برخي سره همدغه شان معامله شوي وي یعني د وروستي اړخ نه غوږ غوڅ شوی وي. (المرقات ۳/۵۷۰).

**ولا شرقاء: أي المشقوقة الإذن بأثنين. (طيبي) (الكاشف ۳/۲۶۲).**

یعني د څاروي غوږونه په اوږد والي کې تیره وي.

**ولا خرقاء: المثقوبة الاذن ثقبا مستديرا (طيبي) (الكاشف ۳/۲۶۲).**

یعني د غوږونو ګردوالی شلیدلی وي او په هغې کې ګرد سوری کړلی شوی وي.

د شوافعو حضرات فرمایي چې د کوم څاروي غوږ لږ شان هم غوڅ شوی وي په هغې باندې قرباني جائز نه ده. خو احناف وایي چې که نیم او یا د نیم نه ډیر غوږ غوڅ شوی وي نو قرباني جائز نه ده او که د دینه کم وي نو قرباني پرې جائز ده البته که ښکر یې مات وي نو د ټولو په نزد قرباني جائز ده. (المرقات ۳/۵۷۰).

**د قرباني د څاروي یو څو عیبونه:** د احنافو چې کوم مسلک دی په هغې کې دا دی چې په داسې قرباني

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۷۳/۴ رقم الحديث ۱۴۹۸، والنسائي ۲۱۶/۷ رقم الحديث ۴۳۷۲، وابن ماجه ۱۰۵۰/۲ رقم الحديث ۳۱۴۲، والدارمي ۱۰۶/۲ رقم الحديث ۱۹۵۲، وأحمد في المسند ۱۰۸/۱.

جائز نه ده چې د هغې د غوږ دريمه برخه يا د دېنه ډيره غوڅه شوي وي او د هغې غوږونه پيدائشي نه وي په هغې هم جائز نه ده. دغه شان لکی يا پوزه که دريمي يا د دېنه ډيره غوڅه شوي وي په هغې هم جائز نه ده. د ړوند سترګي څاروي قرباني هم صحيح نه ده. دغه شان د دريمی برخی يا د دې نه ډيره بينانی (نظر) تلی وي په هغې هم جائز نه ده. د کومو څارو سينې چې وچې شوې وي د هغې قرباني هم جائز نه ده. په هغه څاروي هم جائز نه ده چې د هغې په هډوکو کې رس او مازغه نه وي په داسي ګوډ څاروی باندې هم قرباني جائز نه ده کوم څاروی چې د قربانۍ ځاې پورې نه شي تللی. او نه په داسي مريض څاروی جائز ده چې وابنه نه شي خوړلی. مردار خور څاروي باندې هم قرباني جائز نه ده. که چيرې غوږ غوڅ شوی وي خو زوړند وي د هغې قرباني جائز ده. د احنافو په کتابونو کې داسي ليکل شوي دې خو د بحث لاندې حديث کې د دې ممانعت شوی دی. احناف وايي چې په داسي صورت کې د دې حديث ممانعت په کراهت تنزيهی باندې محمول دی. (المرقات۳/۵۷۲).

## مات ښکر والا څاروي باندې قرباني

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ : نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ نُضَحِّيَ |
| حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړي ده چې مونږ قرباني وکړو په داسي |
| بِأَعْضَبِ الْقَرْنِ وَ الْأُذُنِ . رَوَاهُ ابْن مَاجَه .[1] |
| څاروي باندې چې د هغې ښکر مات شوې وي او غوږونه يې غوڅ شوي وي. |

**توضيح** : **اعضب**: **ضرب يضرب** نه **اعضب** هغه څاروي ته وايي چې د هغې ښکر مات شوی وي يا يې غوږونه غوڅ شوي وي. د احنافو د مسلک مطابق په هغه څاروي قرباني جائز ده چې د هغه ښکر پيدائشي توګه باندې مات وي يا يې د ښکر څرمن د پاس نه اوړيدلي وي خو که ښکر د بيخ نه وتلی وي چې د څاروي غوښه پرې متاثره شوي وي نو په هغه څاروي باندې قرباني جائز نه ده. د ذکر شوي حديث د ممانعت نه کيدلی شي چې داسي څاروی مراد وي چې د هغې ښکر د بيخ نه مات شوي وي نو د احنافو د مسلک موافق به شي يا دا چې ممانعت تنزيهی يعنې خلاف اولی باندې محمول دی. (المرقات ۳/۵۷۱).

---

(۱) أخرجه أبوداؤدفي السنن ۳/ ۲۳۸ رقم الحديث ۲۸۰۵، والترمذي ٤/ ۷٦ رقم ... ۱۵۰٤، ... ۷/ ۲۱۷ رقم الحديث ٤۳۷۷، وابن ماجه ۲/ ۱۰۵۱ رقم الحديث ۳۱٤۵، وأحمدفي المسند ۱/ ۸۳

## څلور قسمه څاروۀ باندې قرباني صحيح نه ده

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ: مَاذَا |
| براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وشوه چې د کوم څاروي د |
| يُتَّقَى مِنَ الضَّحَايَا؟ فَأَشَارَ بِيَدِهِ فَقَالَ: أَرْبَعًا |
| قرباني نه ځان وساتلې شي؟ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د لاس په ګوتو سره اشاره وکړه چې په څلور قسمه څاروۀ قرباني |
| الْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ ظَلْعُهَا |
| صحيح نه ده ۱: ګوډ چې د ګوډوالي په وجه هغه نه شي تللی. ۲: ړوند: چې د هغه ړوندوالی ښکاره وي په |
| وَالْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا وَالْمَرِيضَةُ الْبَيِّنُ |
| يوه سترګه بالکل ليدل نه شي کولی يا د ريمي نه ډېره برخه بينائي تلې وي ۳: ناروغه: چې ښکاره وي |
| مَرَضُهَا وَالْعَجْفَاءُ الَّتِي لَا تُنْقِي [1] |
| ناروغتيايې چې د هغې په وجه هغه وابنه نه شي خوړی ۴: داسي وچ چې د هغې په هډوکو کې رس نه وي. |

**توضيح**: **العرجاء**: ګوډ څاروي ته وايي. (المرقات ۳/۵۷۹).

**ظلعها**: د ګوډ څاروی ګوډوالي ته ظلع وايي. فصحاء د عربو ته وايي "**وان لم يدرك الظالع شأ والضليع**". (المرقات ۳/۵۷۹).

**العوراء**: د اعور نه دی. هغه څاروي ته ويل شوی دی چې په يو سترګه ړوند وي. (المرقات ۳/۵۷۹).

**العجفاء**: د مريضتيا په وجه چې کله څاروي وچ کلک او نری شي هغې ته "**عجفاء**" وايي. (المرقات ۳/۵۷۹).

**لاتنقی**: دا د باب افعال نه **تآ** باندې ضمه ده او **نون** ساکن دی. (المرقات ۳/۵۷۹).

**نقی**: د هډوکی دننه رس او مازغو ته وايي. د لا تنقي معنی دا شوه چې د کوم په هډوکو کې رس او مازغه ختم شوی وي. دغه شان په کمزوری او نري څاروي باندې قرباني هم جائز نه ده. (المرقات ۳/۵۷۹).

---

(۱) أخرجه ابوداود ۳/ ۲۳۵ رقم الحديث ۲۸۰۶ والترمذي ٤/ ۷۲ رقم الحديث ۱٤۹۷ والنسائي ۷/ ۲۱۵ رقم الحديث ٤۳۷۰ وابن ماجه ۲/ ۱۰۵۰ رقم الحديث ۳۱٤٤ والدارمي ۲/ ۱۰۵ رقم الحديث ۱۹٤۹ ومالک في الموطا ۱/ ۱۰۲ رقم الحديث ۱ من كتاب الضحايا والحمدي في مسنده ۲۸۹

## ځوربځاروي باندې قرباني بهتره ده

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُضَحِّي بِكَبْشٍ أَقْرَنَ فَحِيلٍ |
| ابو سعيد رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم په داسي ښکرورا وځوربګډباندې قرباني کوله چې هغه |
| يَنْظُرُ فِيْ سَوَادٍ وَ يَأْكُلُ فِيْ سَوَادٍ |
| به تور رنګه ښکاريدو يعنې د هغه سترګي ګردي توري وي په تور والي کې به يې خوراک کولو يعنې د هغه |
| وَ يَمْشِي فِي سَوَادٍ .[1] |
| خُله هم توره وه او په تور والي باندې به ګرځيدلو يعنې ښپې يې هم توري وي. |

**توضيح : فحيل: ككريم وزناً ومعناً هو القوي خلقة والكثير لحمًا.** يعنې په چاغ، غوښين، ښايسته او قوي ګډ باندې به نبي کريم صلی الله علیه وسلم قرباني کوله. (المرقات ۳/۵۷۳).

فقهاؤ ليکلي دې چې په چاغ، تازه او ښايسته ځاروي باندې قرباني کول مستحب ده. نو که چاغه او تازه بيزه وي او نرى، او وچې دوه بيزې وي نو د يوي قرباني د هغه دوؤ وجو نه افضله ده خو که د غلامانو د ازادى خبره وي نو هلته د دوه کمزورو غلامانو ازادول د يو چاغ غلام د ازادول نه بهتر دى. (المرقات۳/۵۷۳).

د دې وجه داده چې د ځاروي قرباني په حقيقت کې د حضرت اسماعيل عليه السلام د نفس قرباني په بدل کې د الله تعالى په انسانانو باندې مهرباني قبوله کړې ده. لهذا د ځاروي په بدن او په ښايست کې د هغې د صفاتو خيال ساتل ضروري دي چې په وجود او په ښايست سره کوم صفات د حضرت اسماعيل عليه السلام کې د قرباني، په وخت کې وُو.

## په شپږ مياشتني ګډ باندې قرباني جائز ده

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ مُجَاشِعٍ مِنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: إِنَّ الْجَذَعَ |
| د قبيله بني سليم (يو کس) حضرت مجاشع راوي دى چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به فرمايل چې جذعه |

---

(۱) اخرجه ابوداؤد في السنن ۳/ ۲۳۱رقم الحديث: ۲۷۹۶، والترمذي ۴/ ۷۲ رقم الحديث: ۱۴۹۶،والنسائي ۷/ ۲۲۵رقم الحديث: ۴۳۹۰، و ابن ماجه ۲/ ۱۰۴۶ رقم الحديث: ۳۱۲۸.

| يُوفِي | مِمَّا | يُوفِي | مِنْهُ | الثَّنِيُّ. [1] |
|---|---|---|---|---|
| (هغه کډ یا ګډه چې عمریې د شپږ میاشتو نه ډیروي) کافی دی د هغه شي نه چې کفایت کوی چې هغه ثنی دي | | | | |

**توضیح**: **الجذع**: شپږ میاشتنی ګډي ته جذعه وایي. د دغه عمر ګډي قرباني جائز ده د بیزي جائز نه ده خو که بیزه د یو کال وي نو د هغې قرباني جائز ده خلاصه دا چې څنګه قرباني د کال په بیزي باندې جائزه ده هم دغه شان د شپږ میاشتنی ګډي باندې جائز ده. په دې حدیث کې هم دغه مسئله بیان شوي ده. او د **یوفي** ترجمه هم دغه ده چې شپږمیاشتنی ګډه د کال د بیزي په شان کافی ده. (المرقات ۳/۵۷۳).

**الثني**: دا هم یو اصطلاحي لفظ دی. په بیزو کې هغې ثنی وایي. چا چې یو کال پوره کړلو او په دویم کال کې داخل شو. غوا او په غویا کې ثنی هغه وي چې د هغې دوه کاله پوره شوي وي او په دریم کال کې یې قدم یخی وي او په اوښ کې ثنی هغه وي چې هغه د پنځه کاله پوره کولو نه وروسته سپږم کال کې داخل شوی وي. (المرقات ۳/۵۷۳).

| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: نِعْمَتِ الْأُضْحِيَّةُ |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دي وایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چې بهتره ده قرباني د |
| الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ. [2] |
| ګډ جذعه (یعنې شپږمیاشتني بچي) باندې. |

## په اوښ کې د لسو کسانو د شرکت مسئله

| ﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَحَضَرَ الْأَضْحَى |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنه وایي چې مونږ په یو سفر کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره ؤو چې د قربانۍ اختر راغلو |
| فَاشْتَرَكْنَا فِي الْبَقَرَةِ سَبْعَةٌ وَفِي الْبَعِيرِ عَشَرَةٌ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غريبٌ [3] |
| نو د غوا په قربانۍ کې مونږ اوه کسان او د اوښ په (قربانۍ) کې لس کسان شریک شو. |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲۳۳/۳ رقم الحديث ۲۷۹۹، والنسائي ۲۱۹/۷ رقم الحديث: ۴۳۸۴، وابن ماجه ۱۰۴۹/۲ رقم الحديث ۳۱۴۰، و أحمد في المسند ۳۶۸/۵

(۲) أخرجه الترمذي ۷۴/۴ رقم الحديث ۱۴۹۹، وأحمد في المسند ۴۴۵/۶

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ۷۵/۴ رقم الحديث ۱۵۰۱، والنسائي ۲۲۲/۷ رقم الحديث ۴۳۹۳، وابن ماجه ۱۰۴۷/۲ رقم الحديث ۳۱۳۱، وأحمد في المسند ۲۷۵/۱.

**توضیح** : **عشرة**:ګډه یا بیزه باندې یو سړی قرباني کولی شي. غوا او غویا کې اوه کسان شریک کیدلی شي. اوس د اوښ مسئله څنګه ده. نو په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** :اسحاق بن راهویه. اهل ظواهر او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د یو اوښ په قرباني کې د یو کور لس کسان شرکت کولی شي او د لس کسانو له طرفه د یو اوښ قرباني جائز ده. د ائمه ثلاثۀ او د جمهورو فقهاؤ په نزد د غوا او غویا پشان په اوښ کې هم اوه کسانو نه د ډیرو شرکت جائز نه دی. (المرقات ۳/۵۷۳).

**دلائل** :امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او اهل حدیثو د بحث د لاندې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حدیث نه استدلال کړی دی. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ یو عقلي دلیل هم دی. هغه دا چې هغه په قربانۍ سره تقرب الهی حاصلول غواړي او تقرب یو غیر مستقیم شی دی. په هغې کې به د افرادو په وحدت باندې اعتبار کول غواړي. نو د یو کور کسان خو شرکت کولی شي. د جلا جلا کورونو کسان شرکت نه شي کولی د دې لپاره چې په تقرب کې تقسیم را نه شي. جمهور فقهاؤ د فصل اول د حدیث نمبر ۶ نه استدلال کړی دی. هلته په یو اوښ کې اوه کسانو د شرکت حکم دی. (المرقات ۳/۵۷۳).

**جواب** :د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حدیث مطلب د ثواب والاقرباني ده. واجبه قرباني مراد نه ده او د ثواب لپاره که څوک اوښ ذبح کول غواړي نو په هغې کې پنځلس کسان هم شرکت کولی شي یا دا روایت موقوف او منسوخ دی. یا دا د صحیح روایت په مقابل کې متروک دی.

باقي د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د عقلي دلیل جواب دا دی چې د صریح نص په مقابل کې قیاس لره اعتبار نشته دی. دا مسئله مخکې په ص۹۱۸ کې لیکل شوې ده.

## د قربانۍ کولو لوي فضلیت

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا عَمِلَ ابْنُ آدَمَ مِنْ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راویه دی وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دیو انسان هیڅ یو داسې عمل نشته |
| عَمَلٍ يَوْمَ النَّحْرِ أَحَبَّ إِلَى اللهِ مِنْ إِهْرَاقِ الدَّمِ وَ إِنَّهُ |
| دقربانۍ په ورځ چې د خدای په نزد دویني تویولو (قرباني کولو) نه ډیر محبوب وي او (د قربانۍ) هغه |
| لَيَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِقُرُونِهَا وَ أَشْعَارِهَا وَ أَظْلَافِهَا وَ إِنَّ الدَّمَ |
| ذبح کړی شوی ځاروی به دقیامت په ورځ د خپلو ښکرونو، ویختانو او نوکانو سره راشي او دقربانۍ وینه |
| لَيَقَعُ مِنَ اللهِ بِمَكَانٍ قَبْلَ أَنْ يَقَعَ بِالْأَرْضِ |
| دهغې په زمکې باندې د لیدلو (یعنې د ذبح کولو ارادې په وخت کې) د خدای په بارګاه کې قبوله شي. |

| |
|---|
| فَطِيبُوا بِهَا نَفْسًا .[1] |
| لهذا تاسو به د دې په وجه (يعني په قرباني کولو سره) خپل نفسونه خوشحاله کړئ . |

## د ذوالحجې په عشره کې د عبادت لوي فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا مِنْ أَيَّامٍ أَحَبُّ إِلَى اللهِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: نشته هيڅ داسې ورځ خوښه الله |
| أَنْ يُتَعَبَّدَ لَهُ فِيهَا مِنْ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ يَعْدِلُ |
| تعالی ته چې په هغې کې عبادت کول د عشره ذی الحجه نه ډېره افضله وي په دې کې برابر ګڼل کيږي |
| صِيَامُ كُلِّ يَوْمٍ مِنْهَا بِصِيَامِ سَنَةٍ وَقِيَامُ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْهَا بِقِيَامِ لَيْلَةِ الْقَدْرِ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ[2] |
| هره ورځ د روژې د يو کال د روژو برابر او په دې کې هره يوه شپه د شب قدر د عبادت برابره ګڼلی کيږي . |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د لوي اختر په ورځ د مونځ کولو نه مخکې قرباني کول صحيح نه ده

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ عَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ : شَهِدْتُ الْأَضْحَى يَوْمَ النَّحْرِ مَعَ رَسُولِ |
| جندب ابن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ايي چې زه (يو ځل) حاضر شوم عيدګاه کې د قرباني په اختر کې د رسول |
| اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَعْدُ أَنْ صَلَّى وَفَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ وَسَلَّمَ |
| الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره او لا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ او خطبې نه پوره فارغه شوی هم نه ؤو (يعني |
| فَإِذَا هُوَ يَرَى لَحْمَ أَضَاحِيِّ قَدْ ذُبِحَتْ |
| قرباني يې شروع کړې نه وه) چې څه ويني چې د قرباني. غوښه ايخودلې شوې ده چې قرباني شوې وه |
| قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ فَقَالَ : مَنْ كَانَ ذَبَحَ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ |
| مخکې د مونځ کولو نه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چاچې مخکې د دې نه چې مونځ وکړي يا يې دا وفرمايل |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤ / ٧٠ رقم حديث ١٤٩٣ وابن ماجه ٢ / ١٠٤٥ رقم حديث ٣١٢٦

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ٣ / ١٣١ رقم الحديث ٧٥٨ وابن ماجه ١ / ٥٥١ رقم حديث ١٧٢٨

أَوْ نُصَلِّيَ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا

چې مخکې ددې نه چې مونږ مونځ وکړو (د قرباني څاروی) ذبح کړی وي نو هغه ته په کار ده چې په بدل

أُخْرَى. وَ فِي رِوَايَةٍ : قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

کې بل څاروی ذبح کړي. په يو راويت کې دي چې جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: نبي کريم صَلَّى اللهُ ... د اخترنځ وکړو

يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ خَطَبَ ثُمَّ ذَبَحَ وَ قَالَ . مَنْ كَانَ

دلوي اختر په ورځ او خطبه يې ولوستله. بيا يې (د قرباني څاروی) ذبح کړو او وې فرمايل چې کوم سړي

ذَبَحَ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ

مخکې ددې نه چې هغه مونځ وکړي، يا يې وفرمايل چې مونږ مونځ وکړو، ذبح وکړي نو هغه ته په کار ده

فَلْيَذْبَحْ أُخْرَى مَكَانَهَا وَ مَنْ لَمْ يَذْبَحْ

چې د هغه په بدل کې بل څاروی ذبح کړي او کوم سړي چې (د مونځ نه مخکې) ذبح نه کړه نو هغه ته په کار

فَلْيَذْبَحْ بِاسْمِ اللهِ . (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

دی چې (د مونځ نه وروسته د قرباني څاروی) د الله تعالى په نوم سره ذبح کړي.

**توضيح : قبل ان يصلي**: يعنې ترڅو پورې چې د لوي اختر مونځ نه وي شوی نو د هغې نه مخکې قرباني جائز نه ده او که چا قرباني وکړه نو هغه قرباني نه بلکې د غوښې لپاره به د څاروي ذبح شميرل کيږي.

علماؤ ليکلي دي چې په ټول ښار کې د صحيح وخت مطابق په يو ځای هم د اختر مونځ وکړی شي نو د ښار په هر ځای کې د قربانۍ اجازت کيږي. او چې په کومو علاقو کې د اختر مونځ نه کيږي نو هلته د سحر د مونځ نه وروسته قرباني جائز کيږي. (المرقات ۳/۵۷۶).

## د لوي اختر نه وروسته فقط دوه ورځو پورې قرباني جائز ده

﴿۲۱﴾ وَعَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ: الْأَضْحَى يَوْمَانِ بعد يَوْمِ الْأَضْحَى. رَوَاهُ مَالِك[2]

وَقَالَ: وَبَلَغَنِي عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ مثله

نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل : د لوي اختر نه وروسته د قربانۍ دوه ورځې دي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲ رقم الحديث ۹۸۵، ومسلم ۳/۱۵۵۱ رقم الحديث ۱-۱۹۶۰، والترمذي في السنن ۴/۷۸ رقم الحديث ۱۵۰۸، والنسائي ۷/۲۱۲، وابن ماجه ۲/۱۰۵۳ رقم الحديث ۳۱۵۲، وأحمد في المسند ۳/۱۱۳

(۲) أخرجه المالک في الموطأ ۲/۲۸۷ رقم الحديث ۱۲ من كتاب الضحايا.

**توضيح** :**يومان**:د لوي اختر نه وروسته قرباني تر دوو ورځو پورې جائز ده يا تر درې ورځو پورې جائز ده. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** :د علامه ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ او د څه نورو علماؤ په نزد د لوي اختر ورځ فقط يوه ورځ ده او هغه د اختر ورځ ده. د دې حضراتو سره څه صريح دليل نشته دی. فقط رائی او اجتهاد دی. لهذا د دوي قول د التفات قابل نه دی، نه د جواب قابل دی.د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، حسن بصری رَحِمَهُ اللهُ او اهل ظواهرو په نزد د لوي اختر نه وروسته تر درې ورځو پورې قرباني جائز ده يعنې تر يولسم. دولسم او ديارلسم د ذوالحجه پورې قرباني جائز ده. د جمهورو فقهاؤ په نزد د اختر د ورځي نه وروسته فقط دوه ورځي په يولسم او په دولسمي ورځي پورې قرباني جائز ده.

**دلائل** :د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، حسن بصری رَحِمَهُ اللهُ او د غير مقلدينو دليل د حضرت جبير بن مطعم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې ابن حبان په خپل صحيح کې نقل کړی دي ، چې الفاظ يې دا دي : **"قال النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفي كل ايام التشريق ذبح"** (رواه ابن حبان) (المرقات ۳/۵۷۷).

د ايام تشريق نه وروسته يولسمه، دولسمه او ديارلسمه درې ورځې دي. ټولي څلور ورځې دي. د شوافعو دويم دليل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی **"قال الاضحى ثلاثة ايام بعد ايام النحر"** **(رواه بيهقي)**

د دې حضراتو دريم دليل دا روايت دی **"عن ابي سعيد الخدری انه عليه الصلوٰة والسلام قال ايام التشريق كلها ذبح"**. **(رواه ابن عدی فی الكامل)**

د ائمه ثلاثو اولنی دليل د بحث لاندې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دليل دی. چې په خپل مطلب باندې ډير واضحه دی. د جمهورو دويم دليل د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی **"قال ايام النحر ثلثة اولهن افضلهن"**. (مختصر كرخی) (المرقات ۳/۵۷۷).

د جمهورو فقهاؤ دريم دليل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی. الفاظ دا دي :

**"وعن ابن عباس قال الاضحى ثلاثة ايام يومان بعد يوم النحر"**. **(رواه بيهقي)**

د جمهور فقهاؤ څلورم دليل حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی : **وعن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال الذبح بعد يوم النحر يومان.**

**فقهاؤ پنځم دليل د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مشترکه دليل دی.**

"قال النحر ثلاثة ايام اولها افضلها".

**جواب**: د شوافعو د اولني دليل جواب دا دی چې جبير بن مطعم روايت منقطع دی. (كما قال البزار) باقي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت په مقابل کې خپل د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه امام طحاوی رحمه الله په سند جيد سره دا روايت نقل کړی دی. چې الفاظ يې پاس ذکر شوي دي. ځکه شوافع د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت نه استدلال نشي کولی. د شوافعو دريم دليل د د کامل بن عدی روايت دی هغه يحی بن معين، نسائي او علي بن مدينی ضعيف ګرځولی دی. بلکې ابن ابن حاتم د خپل پلار په حوالې سره ويلي دي چې د حديث په دې سره سند موضوع دی.

بهرحال د بحث لاندې حديث چې د مرفوع په حکم کې دی دا په شوافعو باندې حجت دی.

## نبي کريم صلى الله عليه وسلم به هميشه قرباني کوله

| ﴿۲۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: أَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ عَشْرَ سِنِينَ يُضَحِّي.[1] |
|---|
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي عليه السلام په مدينه کې لس کاله قيام وکړو او (هر کال به يې قرباني) کوله. |

**توضيح**: **يضحي**: د دې حديث نه په واضحه توګه دا خبره ثابتيږي چې قرباني واجب ده سنت نه ده ځکه په څنګه اهتمام، استمرار او دوام سره نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مدينه منوره کې لس کاله په دې عمل کړی دي. دا د وجوب دليل دی. د دې حديث نه دويمه دا خبره ثابته شوله چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مدينه کې په دوام داری سره قرباني کړې ده. په دې سره په دې خلکو باندې رد کيږي د چا چې خيالات فاسد دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مدنی دور کې د قربانی عمل پريخودلی ؤ. (المرقات ۳/۵۷۷).

په دې حديث سره په هغه روشن خياله. د نوم مسلمان ملحدينو باندې هم رد کيږي چې وايي چې د مسلمانانو په يوه ورځ باندې دومره څاروي ذبح کول بې فايدې او ظلم دي. د دېنه بهتره دا ده چې د دې نرخ د حکومت په خزانه کې جمعه کړي.

مونږ هغوی له دا جواب ورکوو چې مونږ اول يو شريعت تسليم کړی دی. تر څو پورې چې هغه شريعت وي مونږ به د هغې مطابق عمل کوو. تا خو په خپله نوی شريعت جوړ کړی دی مونږ د هغې لپاره وزګار نه يو. باقي د حکومت د خزانو ډکولو لپاره د سينماخانو، شراب خانو او جوار ګری ټيکسونه کافي دي. د الله تعالی حکم، د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سنت او جد انبياء حضرت ابراهيم عليه السلام يادګار او د مسلمانانو اسلامي شعار قرباني ته د حکومت د خزانو د ډکولو شپيلی مه غږوه.

(۱) خرجه الترمذي في السنن ٤ ٧٨ رقم حديث ١٥٠٧ ،واحمد في المسند ٢ ٣٨

## قرباني د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ سنت دي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ: قَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابو وپوښتل چې "يا رسول الله! دا |
| مَا هٰذِهِ الْأَضَاحِيُّ ؟ قَالَ : سُنَّةُ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ السَّلَام |
| قرباني څه شى دى؟نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې قرباني ستاسو د پلار ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ طريقه او سنت دى. |
| قَالُوا : فَمَا لَنَا فِيهَا يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : |
| صحابو عرض وكړو يا رسول الله! په دې كې زمونږ د پاره څه ثواب دى؟" نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| بِكُلِّ شَعْرَةٍ حَسَنَةٌ. |
| (دغوااو بيزي په قرباني كولو كې چې په هغې كې څومره ويختان وي) د هر ويخته په بدل كې نيكي ده. |
| قَالُوا: فَالصُّوفُ |
| هغوى عرض وكړو چې صوف (وړئ) (يعنې د ګډه، ګډې او د اوښ په څرمن او د هغې په بدل كې څه |
| يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : بِكُلِّ شَعْرَةٍ مِنَ الصُّوفِ حَسَنَةٌ .[1] |
| ثواب شته او كه نه) يارسول الله؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل "د اوښ د هر ويخته په بدل كې هم يوه نيكي ده. |

**توضيح** : قرباني يو لوي يادګار دى چې د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د لوي امتحان په لويه كاميابۍ په ياد كې مسلمانان د عبادت په توګه لمانځي. اصل بنياد د قربانۍ همدغه دى او د همدغي اړخ ته په حديث كې اشاره هم شوي ده. خو مسلمانان چې د لوي اختر په دغه ورځ باندې عمل كوي. هغه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سنت او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اطاعت او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حكم په نتيجه كې كوي چې په حقيقت كې د شريعت محمدي يوه برخه ده. (المرقات ۵۷۷-۳/۵۷۸).



[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/ ۱۰۴۵ رقم الحديث ۳۱۲۷، وأحمد في المسند ۳۶۸/۴.

# باب العتيرة

## د عتيرې بيان

قال الله تعالی: ﴿فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ﴾. (سورة انعام آيت:۱۳۷).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### د فرع او د عتيره ممانعت

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : لَا فَرَعَ وَلَا عَتِيرَةَ. |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل نشته هيڅ حقيقت د فرع او د عتيرې (په) |
| قَالَ : وَ الْفرع : أَوَّلُ نِتَاجٍ كَانَ يُنْتَجُ لَهُمْ |
| اسلام کې ابو هريره رضي الله عنه وايي چې "فرع د ښاروي هغه اولنی بچی دی چې د کافرانو سره پيدا کېږي. |
| كَانُوا يَذْبَحُونَهُ لِطَوَاغِيتِهِمْ وَالْعَتِيرَةُ: فِي رَجَبٍ. (مُتَّفق عَلَيْهِ).[1] |
| نو هغوی دا د خپلو بتانو په نوم ذبح کوي او عتيره په رجب کې کېږي. |

**توضيح**: لا فرع: د جاهليت په زمانه کې دا طريقه رائج وه چې د چا کره به د ښاروي اولنی بچی پيدا شو نو هغه به يې د بتانو په نوم ذبح کولو. د اسلام په ابتداء کې د فرع رواج جاري ؤو مګر دا فرع به مسلمانانو د الله تعالی په نوم ذبح کوله خو دا چې په دې عمل کې د جاهليت او د اهل جاهليت سره مشابهت ؤو. نو ځکه اسلام د فرع رواج ختم کړو. ګويا کې د دې حکم منسوخ شو. (المرقات ۳/۵۷۹).

**طواغيت د طاغوت** جمعه ده مراد ترې نه بُت دی.

**عتيره څه ته وايي؟**: د جاهليت په ورځو کې دا يو رسم ؤو چې عامو خلکو به د رجب په اولنۍ عشره کې د خپلو معبودانِ باطلؤ د خوشحالۍ لپاره يو بيزه ذبح کوله. همغې ته به يې د "عتيره" نوم اخستلو. هغه خلکو به د هغه بتانو تقرب حاصلولو. د اسلام په ابتداء کې هم مسلمانانو به عتيره د رجب په مياشت کې په اولنۍ عشره کې ذبح کوله خو کافرانو به دا د خپلو بتانو په نوم باندې ذبح کولو. خو مسلمانانو

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۹۶/۹ رقم الحديث ۵۴۷۴، ومسلم۳/۱۵۶۴رقم الحديث.۳۸-۱۹۷۶،وابوداؤدفي السنن ۳/۲۵۶ رقم الحديث: ۲۸۳۱، و الترمذي ۸۱/٤ ، رقم الحديث ۱۵۱۲،والنسائي۱۶۷/۷رقم الحديث ٤۲۲۲، وابن ماجه ۱۰۵۸/۲ رقم الحديث :۳۱۶۸ ، والدارمي ۱۱۰/۳ رقم الحديث ۱۹۶٤، وأحمد في المسند۲/۲۳۹

به د تقرب الی الله ذریعه ګڼله او خاص د الله تعالی په نوم به یې ذبح کولو. څه لږه موده دا سلسله روانه وه خو بیا عتیره هم د فرع په شان منسوخ شوه. (المرقات ۳/۵۷۹).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ مِخْنَفِ بْنِ سُلَيْمٍ قَالَ: كُنَّا وُقُوفًا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَةَ |
| مخنف ابن سليم وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ سره (د يو حج په موقعه کې) په عرفات کې ولاړ وو |
| فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّ عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَّةً وَعَتِيرَةً |
| چې ما واوريدل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: خلکو! په کورو الا باندې هر کال قرباني کول او عتيره کول واجب |
| هَلْ تَدْرُونَ مَا الْعَتِيرَةُ؟ هِيَ الَّتِي تُسَمُّونَهَا الرَّجَبِيَّةَ.[1] |
| ده او تاسو پوهيږئ عتيره څه شی دی؟ عتيره هغه ده چې هغې ته تاسو رجبيه وايي. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ ضَعِيفُ الْإِسْنَادِ وَقَالَ أَبُو دَاوُد: وَالْعَتِيرَةُ مَنْسُوخَةٌ |
| امام ترمذي وايي چې دا حديث غريب او ضعيف الاسناد دی. او ابوداؤد وايي چې عتيره منسوخه کړی |
| شوي ده، دا اوس جائزه نه ده. |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په غريب باندې قرباني واجب نه ده

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أُمِرْتُ بِيَوْمِ الْأَضْحَى |
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ما ته حکم شوی چې زه د لوي اختر |
| عِيدًا جَعَلَهُ اللهُ لِهَذِهِ الْأُمَّةِ. قَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| ورځ د اختر ونه کم او دا ورځ الله د دې امت د پاره اختر مقرر کړې ده يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله! |
| أَرَأَيْتَ إِنْ لَمْ أَجِدْ إِلَّا مَنِيحَةً أُنْثَى أَفَأُضَحِّي بِهَا؟ |
| ما ته دا وايه که چیرې ما سره د منيحه نه بغير بل (څاروی) نه وي نو آيا زه په هغه د باندې قرباني وکړم؟ نبي |

(۱) اخرجه ابوداؤد في السنن ۳/۲۲۶، رقم الحديث: ۲۷۸۸، والترمذي ۴/۹۹، رقم الحديث: ۱۵۱۸، والنسائي ۷/۱۶۷، رقم الحديث: ۴۲۲۴، وابن ماجه ۲/۱۰۴۵، رقم الحديث: ۳۱۲۵، واحمد في المسند ۴/۲۱۵.

| قَالَ : لَا وَ لٰكِنْ خُذْ مِنْ شَعْرِكَ وَ أَظْفَارِكَ وَ تَقُصُّ مِنْ شَارِبِكَ وَ تَحْلِقُ |
|---|
| عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: نه خو ته خپل ويختان جوړ کړه نوکان واړه کړه د شونډو ويختان واړه کړه او پاک کړه د نامه |
| عَانَتَكَ فَذٰلِكَ تَمَامُ أُضْحِيَّتِكَ عِنْدَ اللهِ .[1] |
| لاندې ويختان. د الله په نزد به ستا همدغه قرباني وشي يعنې تا ته به د قرباني په شان ثواب ملاؤ شي. |

**توضيح**: **منيحه**: دا لفظ د **منح** نه مشتق دی. چې معنی يې عطيه او بخښل دي. د عربو دا عادت ؤو چې هغوی به د زړه خوګۍ په توګه د خپل شوده ورکونکي بيزي يا اوښان او يا نور څاروي محتاجه يا غريبانانو ته ورکول. هغه سړي به د هغې شوده څکل او د هغې د څرمن نه به يې استفاده کوله. د هغې نه به يې بچي ساتل او فايده به يې ترې نه اخستله او يا به يې هغې ته بيرته ورکوله. دا چې د **منيحه** لفظ مؤنث او د مذکر دواړو لپاره استعماليږي نو ځکه دغه سړي دا مقيد کړو او پوښتنه يې وکړه چې زما سره يوه ښځينه منيحه ده آيا په هغې قرباني کولې شم؟.

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه سړی منع کړلو ځکه منيحه د قاعدې مطابق د هغه سړي مال نه ؤو ځکه دا بل سړي مال وي بلکې د څه مودې وروسته د فايدې اخستلو نه پس يې بيرته ورکوي. ځکه د دې د قرباني اجازت ورنه کړی شو ځکه دا د بل چا مال وي. دويمه وجه داده چې کوم سړی خپله د منيحه اخستلو محتاج وي هغه قرباني څنګه او ولې وکړي؟ معلومه شوه چې په غريب سړي باندې قرباني نشته دی.

بهرحال د جمهورو علماؤ مسلک دا دی چې که په غريب او تنګدسته سړي باندې قرباني واجب نه ده. البته د احنافو په نزد د قرباني لپاره د دومره ډير مال ضرورت نشته دی. معمولي شان مالداره کيدل هم کافي دي مګر فقير چې نه وی. (المرقات ۳/۵۸۲).



(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۲۲۷/۳، رقم الحديث ۲۷۸۹، والنسائي ۲۱۲/۷، رقم الحديث ۴۳۶۵، وأحمد في المسند ۱۶۹/۲

# باب صلوة الخسوف
# د خسوف د مونځ بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا﴾ . (سورة بني اسرائیل آیت : ۵۹).

خسوف او کسوف دوه لفظونه دي. دلغت ائمو په دې دواړه لفظونو کې فرق بیان کړی دی : امام لغت شیخ ثعلب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د کسوف (دلمر نیول کېدل یا تتوالی) اطلاق زیاتره د لمر نیول کېدو ته وایي او د خسوف (د سپوږمۍ نیول کېدل یا تتوالی) اطلاق زیاتره د سپوږمۍ په نیول کېدو باندې کېږي. امام جوهری رَحِمَهُ اللهُ دا فصیحه ګڼلې دی. (المرقات ۳/۵۸۲).

فقهاء کرامو د فقهې په کتابونو کې همدغه طریقه اختیار کړې ده. چې د لمر نیول کېدو یا تتوالي لپاره کسوف او سپوږمۍ نیول کېدو یا تتوالي لپاره د خسوف الفاظ استعمالیږي.

همدارنګې خسف هم د زمکي منډل کیدلو ته وایي. د دې د سپوږمۍ سره څه نه څه تعلق شته دی. ځکه فلسفیان وایي چې کله زمکه د سپوږمۍ او لمر مینځ کې راشي نو د سپوږمۍ رڼا ختمه شی. په قرآن کریم کې آیت دی : ﴿فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ ۷ وَخَسَفَ الْقَمَرُ﴾ (سورة قیامة آیت: ۷-۸)

ځینو اهل لغت والو په دې دواړه الفاظو کې ترادف قول کړی دی ځکه دا په یو بل باندې اطلاق کېږي. دلته بحث لاندې ځینو احادیثو کې د خسوف لفظ استعمال شوی دی په ځینو کې د کسوف لفظ استعمال شوی دی. (المرقات ۳/۵۸۲).

حال دا چې په ټولو حدیثونو کې د لمر د تتوالي واقعه بیان شوې ده. د سپوږمۍ د تتوالي ذکر په صراحت سره هیڅ یو حدیث کې نشته دی. خو په حدیث نمبر ۲ کې احتمال دی. لهذا صاحب مشکوة له په کار ده چې هغې د **صلوٰة الخسوف** په ځای د **صلوٰة الکسوف** عنوان ایخی وي. خو کیدی شي چې د هغه په ذهن کې د ترادف تصور وُو او دا اشاره کول یې غوښتل چې په حدیثو کې د **خسوف** لفظ په حقیقت کې د کسوف په معنی راغلی دی. لهذا په عنوان کې هم د خسوف لفظ د کسوف په معنی دی. محدثین په عامه توګه په دې دوه لفظونو کې فرق نه کوي. (المرقات ۳/۵۸۲).

مشهور ماهر فلکیات علامه محمود پاشا مصري رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب : " **نتائج الافهام في تقویم العرب قبل الاسلام** " کې تصریح کړې ده چې د قواعد ریاضیه په رڼا کې د نبي کریم ﷺ په دورمبارک کې د کسوف شمس فقط یو ځل شوی دی. د دېنه ډیر امکان نه دی. د اکثرو علماؤ هم دغه قول دی البته د سپوږمۍ د خسوف واقعه د نبي کریم ﷺ په زمانه کې ډیر ځل شوې ده.

د **کسوف الشمس** په موقع کې په نبي کريم ﷺ باندې د ويرې حالت ؤو د دې څه وجه وه؟ بيا د لمر خسوف او د سپوږمۍ کسوف په موقع کې نبي کريم ﷺ څنګه مونځ کړی ؤ؟ جاهليت په زمانه کې به عربو څه تصور کولو؟ دا ټول بحثونه د راروان حديثونو په ضمن کې راتلونکي دي لږ انتظار وکړئ.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د لمر په خسوف کې د مونځ طريقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ الشَّمْسَ خَسَفَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې لمر تندرونيولو د نبي کريم ﷺ په زمانه کې (د هجرت نه وروسته يو ځل) |
| فَبَعَثَ مُنَادِيًا : الصَّلَاةُ جَامِعَةٌ |
| نو نبي کريم ﷺ يو آواز کونکي ته (چې د خلکو په مينځ کې) اواز وکړي چې مونځ کيدونکي |
| فَتَقَدَّمَ فَصَلّٰى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ |
| دی نو (کله به چې ټول خلک راجمع شو نو) نبي کريم ﷺ به مخکې شو او دوه رکعته مونځ به يې |
| فِي رَكْعَتَيْنِ وَ أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ . قَالَتْ عَائِشَةُ : |
| وکړو چې په هغې کې به څلور رکوع او څلور سجدې کولې. عائشه رضي الله عنها وايي چې (څومره اوږده رکوع |
| مَا رَكَعْتُ رُكُوعًا قَطُّ وَلَا سَجَدْتُ سُجُودًا قَطُّ كَانَ أَطْوَلَ مِنْهُ.[1] |
| او سجده ما د خسوف په مونځ کې کړي) د دې نه ډېر اوږده رکوع او سجده ما کله نه ده کړې. |

**توضيح: فبعث مناديا:** د صلوة کسوف د پاره اذان او اقامت نشته دی خو د خلکو راجمع کولو لپاره په اوچت ځای باندې اودريدل او داسې رابلل په کار دي **الصلوٰة جامعة**. خو نن سبا په حرمين شريفين کې دغه قسمه رابلل په لاؤډ سپيکر باندې کېږي. حديث کې هم دغې طرف ته اشاره ده. (المرقات ۳/۵۸۳)

**على عهد رسول الله:** د نبي کريم ﷺ په عهد مبارک کې يو ځل د لمر خسوف شوی ؤو او

---

(۱) أخرجه البخاري ۵۳۸/۲ رقم الحديث ۱۰۵۱، ومسلم ۶۲۷/۲ رقم الحديث ۹۱۰، وأبوداؤد في السنن ۷۰۳/۱ رقم الحديث ۱۱۹۰.

تصادفي (اتفاقي) په ۍ غه ورځ بانديځ د نبي کريم ﷺ ځوي مړ شوی ؤو. دا ۱۰ ه موقع وه. د عرب د جاهليت خلکو دا عقيده وه چې د سپوږمۍ او لمر کسوف او خسوف د يو معتبر سړي د مرګ په وجه راځي. د ابراهيم عليه السلام په وفات سره دا غلطه عقيده نوره هم پخيدلې شوه. نو ځينو نوي مسلمانانو يا د کمزوري عقيدي والامسلمانانو هم دا ويل شروع کړل. نو په دې بانديځ نبي کريم ﷺ دوه رکعته مونځ نه وروسته يوه اوږده خطبه وکړه او د جاهليت په دې عقيده بانديځ يې سخت رد وکړو. (المرقات ۳/۵۸۶).

**فصل اربع رکعات:** د صلوة کسوف په مشروعيت او په جواز کې د چا اختلاف نشته دی. ځکه د صحيح حديثونو نه او د امت د اجماع نه دا ثابته ده بلکې ځينې فقهاء د دې د وجوب هم قائل دي. (المرقات ۳/۵۸۴).

خو جمهور فقهاء وايي چې صلوة کسوف سنت دی. البته د جمهورو په خپل مينځ کې د دې د لوستلو په طريقه کې اختلاف دی او د اختلاف وجه دا ده چې په مختلف حديثونو کې د مختلفو طريقو ذکر دی. د يو نه تر پنځو پورې رکوع ګانو پورې ثبوت شته دی.

**د فقهاؤ اختلاف:** امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چې په حديثونو کې چې د څومره طريقو ذکر دی ټولې جائز دي. د موقع او محل په مناسبت سره چې کومه طريقه اسانه وي هغه دې وکړی شي. چې تر څو پورې د لمر خسوف نه وي شوی. دا طريقي استعمالول جائز دې او رکوع ګانې کول په کار دي.

د امام مالک رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله په نزد په يو رکعت کې فقط دوه رکوع ګانې دي د دې نه ډيرې رکوع ګانې جائز نه دي. (المرقات ۳/۵۸۴).

د احنافو ائمه وايي چې د صلوة کسوف طريقه د عام مونځونو په شان ده. په يو رکعت کې يوه رکوع ده. (المرقات ۳/۵۸۴).

**دلائل:** امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چې په کومو حديثونو کې چې د څومره رکوع ګانو ذکر راغلی دی ټولې طريقي جائز دې چې تر څو پورې د لمر خسوف نه وي شوي تر هغه وخت پورې رکوع ګانې کول په کار دي. امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله د دې باب د اولني حديث نه استدلال کړی دی چې په خپله مدعاء بانديځ واضحه دی. د احنافو ائمؤد حضرت قبيصه هلالي د روايت نه استدلال کړی دی چې امام ابو داؤد او امام نسائي رحمه الله په خپل خپل کتاب کې ذکر کړی دی الفاظ دا دي: **اذا رئيتموها فصلوا کاحدث صلوة صليتموها من المکتوبة.** (ابو داؤد)

د احنافو دويم دليل د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه روايت دی وايي: **ان النبي صلى الله عليه وسلم کان يصلي في کسوف الشمس کما تصلون رکعة وسجدتين.** (ابو داؤد نسائي و طحاوي)

ډیر زیات روایات دي چې په هغې کې د یو رکوع ذکر دی. امام طحاوی رَحِمَهُ اللهُ هم استدلال کړی دی او په زجاجة المصابیح کې د د لسو (۱۰) نه ډیر روایات ذکر شوي دي. په ټول کې نزدې نزدې دا الفاظ دي **"فصل کما تصلون یا مثل صلوتک یا نحوا من صلوتکم"**.

حضرت نعمان بن بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي :**ان رسول الله صلی الله علیه وسلم صلی فی کسوف الشمس نحوا من صلوٰتکم یرکع ویسجد رواه احمد و نسائی. (ازجاجة المصابیح ج۱ ص ۴۱۵)**

**جواب**:د احنافو ائمه وایي د صلوة کسوف واقعه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې یو ځل راغلي ده. او په دې کې فعلي حدیثونو په خپلو کې متعارض دي. اوس دا خو اه ګن نه لري چې دا متعارض فعلي روایات په یوه واقعه باندې منطبق شي. لهذا ممکن حل فقط دا دی چې دا فعلي روایاتو نه د تعارض په وجه پریخودلی شي او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قولي روایتونو باندې عمل وشي. او په قولي روایت کې تصریح ده چې اوس اوس تا کوم مونځ وکړو هغه د غه شان د کسوف مونځ وکړه او هغه د سحر مونځ دی.

احناف فرمایي چې مونږ په واضحه الفاظ کې ویل غواړو چې په صلوة کسوف کې د یو نه زیاتې رکوع ګاني شوي. د یو نه تر دوه. درې. څلور تر پنځو پورې ذکر دي. چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې عمل کړی دی. مونږ د دې نه قطعًا انکار نشته دی او نه پکې زمونږ څه تردد شته دی خو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې مونږ ته کوم حکم کړی دی مونږ به په همغې باندې عمل کوؤ. او کوم عمل چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله کړی دی هغه په نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې پریږدی.

**دویم جواب**:دا دی چې د کسوف مونځ په مقام کې نه بلکې په ډیرو مقاماتو کې د داسې افعالو ظهور شوی دی. مونږ دیته د پیغمبري خصوصیت نه بغیر بل هیڅ نه وایو. مونږ پو ښتنه کوؤ. په دې مونځ کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې تلی دی وروسته تلی دی. په دواړه لاسونو سره یې د یو شي د نیولو کوشش کړی دی. دا افعال که د بل چانه ظاهر شي نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم سره به هغې مونځ فاسد شي. معلومه شوه چې دا معامله بیغمبري وه. نو کثرت رکوعاتو ته په دغه تناظر سره کتل په کار دي. چې په صلوة کسوف کې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه عمل کړی دی هغه بیشکه او بې تردد دې خو مونږ ته چې کوم حکم کړی شوی دی مونږ په هغې باندې د عمل کولو پابند یو. قول او په فعل کې د تضاد په وخت کې ترجیح قول ته ورکول کېږي. دغه شان دلته دا هم ویل کیدلی شي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خصوصي توګه باندې چې په کثرت سره کومې رکوع ګاني کړې دې دا د مونځ رکوع ګاني نه وې بلکې د آیت رکوع ګاني وې چې د الله تعالی عظیم آیتونه په صلوة کسوف کې په لیدلو باندې بیا بیا رکوع کوله. چې خالص یو خصوصیت ؤو.

خلاصه دا چې رکوع صلوة نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقط يوه کړې ده. ددې نه زياتې چې څومره زياتې کړې کړي شوي دي نو هغه رکوع صلوت نه دي بلکې رکوع آيت وي. والله اعلم

## د کسوف د مونځ حکم

| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: جَهَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْخُسُوْفِ |
|---|
| عائشه صديقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې جهر کړې وو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سپوږمۍ د تندر نيولو مونځ کې |
| بِقِرَاءَتِهٖ.[1] |
| په قرأت سره. |

**توضیح**: جهر النبي: د کسوف په مونځ کې يوه مسئله دا هم ده چې آيا په دې کې په اوچت اواز سره قرأت کول په کار دي او که رو اواز سره کول په کار دي. په څېنو رواياتو کې د څه اختلاف په وجه د فقهاؤ په منيځ کې لږ شان اختلاف راغلی دی. (المرقات ۳/۵۸۵).

**د فقهاؤ اختلاف**: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د اسحاق بن راهويه او د صاحبينو په نزد په صلوة کسوف کې جهري قرأت سره مونځ کول په کار دی. جمهور فقهاء فرمايي چې د کسوف په مونځ کې په رو قرأت کول په کار دی.

**دلائل**: امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او صاحبين او داسې نور فقهاء دليل د بحث دلاندې د بخاری او د مسلم حديث نمبر ۲ دی چې په خپلې مدعا باندې ډير واضحه دليل دی. د جمهور فقهاؤ دليل په فصل ثانی کې د حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث نمبر ۱۰ دی. چې په هغې دا الفاظ دي: **صلى بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم في كسوف لا نسمع له صوتاً. (ترمذی ابو داؤد)**

د احنافو فقهاؤ په کتابونو کې ليکل شوي دي چې په دواړه طريقو باندې عمل جائز دی. خو د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د صاحبينو دليل د بخاري او مسلم حديث دی چې په خپله مدعا باندې ډير واضحه دی او په رواياتو کې ډير قوي دی. د جمهورو سره مضبوط دليل نشته دی.. ځکه د لا نسمع له صوتا نه خو دا ثابتيږي چې مونږ به نه اوريدلو. خو نه اوريدل د جهر نه کولو قطعي دليل خو نه دی. ډير امکان لري چې قرأت جارې ؤو او د لېرې والي په وجه سړو نه اوريدلو. بهرحال د کسوف مونځ د جمعې مونځ کونکو خطيبانو ذمه واري نه ده. د امام ذمه واري نه ده. کومو خطيبانو ته چې لوي لوي سورتونه ښه ياد وي هغه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲ ۵٤۹ رقم الحديث ۱۰۵۲، وأبوداؤدفي السنن ۱ ۷۰۲ رقم الحديث۱۱۸۸، والترمذي ۲ ٤۵۲ رقم الحديث ۵٦۳.د، والنسائي ۳ ۱٤۸ رقم الحديث ۱٤۹٤

جهر وکړي. او چاته چې اوږده سورتونه ياد نه وي هغه به سرّي مونځونه کوي. دا چې دواړه طريقي جائز دي لهٰذا د جواب ورکولو ضرورت نشته دی.

## د لمر د کسوف حقيقي سبب

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: انْخَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې د لمر کسوف وشو. نو داسې |
| فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ مَعَهُ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا نَحْوًا مِنْ قِرَاءَةِ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ |
| مونځ وکړو نبي کريم صلى الله عليه وسلم د خلکو سره چې د سورت بقره قرأت يې د اوږد قيام په اندازه وکړو |
| ثُمَّ |
| (يعني په قيام کې به دومره ولاړ ؤو چې په خومره وخت کې به سورت بقره لوستل کيدلې شوي) بيا نبي |
| رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا |
| کريم صلى الله عليه وسلم رکوع وکړه، رکوع هم اوږده وه د رکوع نه يې سر اوچت کړو او ډير ساعت پورې ولاړ ؤو |
| وَ هُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَ هُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْأَوَّلِ |
| خو دا قيام د مخکنې قيام نه کم ؤ و بيا يې (دوباره) رکوع وکړه دا رکوع هم اوږده وه مګر د اولنۍ رکوع نه کمه |
| ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ قَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَ هُوَ |
| وه بيا او دريدو او سجده يې وکړه بيا د (دويم رکعت لپاره) اودريدو او ډير اوږد قيام يې وکړو مګر دا قيام د |
| دُوْنَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَ هُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ |
| اولنۍ رکعت د قيام نه کم ؤ. بيا رکوع ته لاړو دا رکوع هم اوږده وه مګر د اولنۍ رکوع نه کمه وه بيا |
| رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَ هُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَ هُوَ |
| اودريدو او ډير اوږد قيام يې وکړو مګر دا قيام د اولنۍ رکعت د قيام نه کم ؤ بيا يې رکوع رکوع وکړه دا |
| دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا |
| رکوع هم اوږده وه مګر د اولنۍ رکوع نه کمه وه بيا او دريدو او سجده يې وکړه بيا اودريدو او ډير اوږد قيام |
| وَ هُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَ هُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْأَوَّلِ |
| يې وکړو مګر دا قيام د اولنۍ رکعت د قيام نه کم ؤ بيا يې رکوع وکړه دا رکوع هم اوږده وه مګر د اولنۍ رکوع |

ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ

نه کمه وه بیا او درید و او سجده یې وکړه. ددې نه وروسته (یعنې د التحیات او د سلام نه وروسته د)

اِنْصَرَفَ وَ قَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَقَالَ : إِنَّ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ

مونځ نه فارغ شو نو لمر روښانه شوی ؤو. نبي کریم ﷺ وفرمایل، لمر او سپوږمۍ داد الله

آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ

تعالی په (قدرت کې) د نښانو نه دوه نښاني دي! دا نه د چا مرګ په وجه خسوف کېږي او نه د چا په پیدا

فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذَلِكَ فَاذْكُرُوا اللهَ

کیدو باندې کله چې تاسو وویني. چې (داخسوف شوي دي) نو د خدای په یاد ونه کې مشغول شئ صحابه

قَالُوْا : يَا رَسُوْلَ اللهِ رَأَيْنَاكَ

کرامو رضي الله عنهم عرض وکړو چې یا رسول الله (د مونځ په دوران کې) مونږ ولیدل چې تا ﷺ د خپل

تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِي مَقَامِكَ ثُمَّ رَأَيْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ ؟ فَقَالَ :

ځای نه د یو شي د رایستلو اراده وکړه بیا مونږ تاسو په شاته لیدو باندې ولیدلې؟ نبي علیه السلام وفرمایل

إِنِّي رَأَيْتُ الْجَنَّةَ

(چې کله تاسو زه د یو شي د نیولو د پاره مخکې تللو باندې ولیدم نو هغه وخت) ما جنت ولیدو او د هغه نه

فَتَنَاوَلْتُ مِنْهَا عُنْقُودًا وَ لَوْ أَخَذْتُهُ لَأَكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتِ

مې د انګورو غونچه راشکولو اراده کړې وه که ما د انګورو غونچه راشکولې وی نو بیشکه چې تر څو پورې

الدُّنْيَا وَ رَأَيْتُ النَّارَ فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ

دنیا وی تاسو به هغه خوړلی او کله چې تاسو زه په شاته تللو باندې ولیدم (نو هغه وخت) ما دوزخ لیدلی ؤ

مَنْظَرًا قَطُّ أَفْظَعَ

(د هغې د ګرمۍ د رارسیدلو د ویرې نه شاته لاړمه) نو نن ورځ ما په هیڅ ورځ کې داسې هیبتناکه ځای

وَ رَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ . فَقَالُوْا:

کله نه ؤ لیدلی او په دوزخ کې مې زیاتره ښځې ولیدې. صحابه کرامو عرض وکړو چې : یا رسول الله!

| |
|---|
| بِمَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : بِكُفْرِهِنَّ . قِيلَ : يَكْفُرْنَ بِاللهِ؟ |
| د څه وجې نه؟نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل دهغوی د کفر د وجې نه.صحابؤ عرض وکړو چې آيا ښځې د الله تعالیٰ |
| قَالَ : " يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ وَ يَكْفُرْنَ الْإِحْسَانَ |
| په کفر کې اخته دي؟نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل نه بلکې هغه د خاوندانو د نعمتونو او د احسان نو کفران کوي |
| لَو أَحْسَنْتَ إِلَى أَحْدَاهُنَّ الدَّهْرَ |
| (د خاوندانو ناشکري او نافرماني کوي او د چا احسان نه مني)نو که په تاسو کې د دوي سره تاسو تر مودو |
| ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ : مَا رَأَيْتُ مِنْك |
| احسان وکړې،مګر بيا چې هغوی يو شی د خپلې مرضی خلاف و مومي نو همدغه به وايي چې ما کله هم ستانه |
| خَيْرًا قَطُّ " (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| دلته خير نه دی ليدلی. |

**توضیح** : **لموت احد**:لکه څنګه چې مخکې ليکل شوي دي چې د جاهليت په زمانه کې د عربو دا غلطه عقيده وه چې د لمر کسوف څکه کېږي چې يو معتبر سړی مړ شي. نو تصادفي په د غه ورځ حضرت ابراهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مړ شوی ؤو چې ماريه قبطيه نه پيدا شوی ؤو. چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويټزوه وه. په دې واقعي سره د جاهليت عقيده نوره هم مضبوط دلی شوه چې واقعي د يو معتبر سړي په مرګ باندې د لمر کسوف شوی دی. نو څکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د ترديد لپاره خطبه ورکړه او اعلان يې وکړو چې په سپوږمۍ او لمر کې بدلون راتلل د الله تعالیٰ کار دی. د الله تعالیٰ د وحدانيت او د قدرت کامله نښاني ده. دا بدلون د يو معتبر سړي د مړ کيدلو په وجه نه دی. بس په تاسو لازمه ده چې کله په سپوږمۍ او لمر کې دا سې بدلو ووينی. نو مونځونه کوی او د الله تعالیٰ ذکر کوی. د الله تعالیٰ ته ژړا او فرياد کوی. (المرقات ۳/۵۸٦).

**تکعکعت**:شاته د تللو په معنی کې دی دا چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لمانځه کې مخکې وړ روسته تللی ؤو. لهذا همدغه پوښتنه کړي ده. بهرحال د لمر د کسوف سبب دا نه دی چې د چا د مرګ اثر دی. بيا مونځ په دواړو کې دی خو د سپوږمۍ معامله د شپې سره ده نو څکه په دې مونځ د جماعت سره نه

(۱) أخرجه البخاري ۲/۵٤۰ رقم الحديث ۱۰۵۲، ومسلم ۲/٦۲٦ رقم الحديث (۱۷-۹۰۷)، [illegible] ۱/۷۰۲ رقم الحديث ۱۱۸۹، النسائي ۳/۱۳۷ رقم الحديث ۱٤۸۲، ابن ماجه ۱/٤۰۲ رقم الحديث ۱۲٦۵، ومالک في الموطأ ۱/۱۸۷ رقم الحديث ۲ [illegible] ۱/۲۹۸

بلکې په کور کې په انفرادي توګه لوستلی کېږي. لهذا د دې مسائل جدا او کم دي او د لمر د خسوف دا چې د ورځې وي نو ځکه په دې کې جماعت وي. لهذا د دې مسائل ډېر دي. باقي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد په صلوة کسوف کې خطبه نشته دی. چرته چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه کړې ده نو هغه خو د جاهليت د خلکو د رسوماتو او د لمر د کسوف باره کې د عربو عقيده باطله رد کول مقصود ؤو. د شوافعو حضراتو په نزد د کسوف خطبه شته دی خو په ظاهر د حديث کې د خطبې ذکر شته دی. (المرقات ۳/۵۸۷).

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ نَحْوُ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ |
| د عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه (هم) د ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پاس ذکر شوی روايت په شان روايت منقول دی دې (هم) |
| وَ قَالَتْ : ثُمَّ سَجَدَ فَأَطَالَ السُّجُودَ ثُمَّ انْصَرَفَ |
| دا ويلي چې بيا نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجدې ته لاړو نو اوږده سجده يې وکړه بيا د مونځ نه فارغ شو نو |
| وَ قَدِ انْجَلَتِ الشَّمْسُ فَخَطَبَ النَّاسَ |
| (لمر) روښانه شوی ؤ دې نه پس نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (خلکو ته) خطبه وفرمايله. نو (اول) نبي کريم |
| فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ أَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ : إِنَّ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ آيَتَانِ |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله تعالی حمد او ثناء بيان کړه او بيا يې وفرمايل چې: لمر او سپوږمۍ دا دواړه نښانې دي |
| مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ فَإِذَا |
| د الله تعالی د نښانو نه، خو نه د چا په مرګ باندې د دې کسوف کېږي او نه د چا په پيدائش. کله چې تاسو |
| رَأَيْتُمْ ذٰلِكَ فَادْعُوا اللّٰهَ وَ كَبِّرُوا وَ صَلُّوا وَ تَصَدَّقُوا ثُمَّ |
| کسوف ووينئ نو د الله نه دعا غواړئ، تکبيرونه وايئ او مونځ کوئ او د الله په لاره کې صدقه کوئ. بيا |
| قَالَ : يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ وَ اللّٰهِ مَا مِنْ أَحَدٍ أَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ |
| يې وفرمايل چې: ای امت محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! قسم په الله! د الله نه بل هيڅ څوک ډېر غيرتي نشته دا چې |
| أَنْ يَزْنِيَ عَبْدُهُ أَوْ تَزْنِيَ أَمَتُهُ يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ |
| کله د الله يو بنده (نارينه) زنا کوي يا کوم بنده (زنانه) په زنا کې اخته شي او ای امت محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! زه |

| |
|---|
| وَ اللهِ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلًا وَ لَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| چې په څه باندې خبر يم په الله قسم که تاسو په هغې خبر شي نو ستاسې خنده به لږه او ژړا به موډيره شي. |

## د لمر د کسوف په وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويره ولې وه؟

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسٰى قَالَ: خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ و سَلَّمَ فَزِعًا |
| ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (کله) لمر کسوف شو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ويرې نه اودريدلو او |
| يَخْشٰى أَنْ تَكُوْنَ السَّاعَةَ فَأَتَى الْمَسْجِدَ |
| په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به داسې ويره راغله لکه قيامت شوی چې وي. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ جومات ته تشريف راوړو |
| فَصَلّٰى بِأَطْوَلِ قِيَامٍ وَ رُكُوعٍ وَ سُجُوْدٍ |
| او اوږد قيام، رکوع او سجدې سره مونځ يې وکړو ما دغه شان کله هم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (په دومره اوږد قيام. رکوع |
| مَا رَأَيْتُهُ قَطُّ يَفْعَلُهُ وَ قَالَ : هٰذِهِ الْآيَاتُ الَّتِي يُرْسِلُ اللهُ |
| او سجدې کولو) باندې نه ؤليدلی بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: دا هغه نښانې دي چې الله تعالى يې راليږي |
| لَا تَكُوْنُ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ وَلٰكِنْ يُخَوِّفُ اللهُ بِهَا عِبَادَهُ |
| نو د چا د مرګ په سبب سره نه (ښکاره) کېږي او نه د چا د پيدائش په سبب ښکاره کېږي خو الله تعالى د دې |
| فَإِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ |
| په ذريعې سره خپل بنده ګان ويروي لهذا تاسو چې کله په دې نښانو کې يو نښانه ووينئ نو د خدای په |
| فَافْزَعُوا إِلٰى ذِكْرِهِ وَ دُعَائِهِ وَ اسْتِغْفَارِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| ويريدلو سره د هغې ذکر کوئ، د الله نه دعا وغواړئ او په استغفار کې مشغول شئ. |

**توضيح** : **فزعا**: يعنې کله چې د لمر کسوف شروع شو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ويرې سره ودريدل او داسې ويره پرې راغله ګويا کې قيامت شو. (المرقات ۳/۵۹۰).

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۵۲۹رقم الحديث ۱۰۴۴،مسلم ۲/۶۱۸رقم الحديث ۹۰۱، نسائي ۳/۱۳۲ رقم الحديث ۱۴۷۴، ومالک في الموطأ ۱/۱۸۲رقم الحديث۱ ،وأحمدفي المسند۳/۳۷۴.

(۱) أخرجه البخاري ۲/۵۴۵رقم الحديث ۱۰۵۹،مسلم ۲/۶۲۸رقم الحديث۲۴ ۹۱۲،أبوداؤد ۱/۶۹۵رقم الحديث۱۱۷۷، نسائي ۳/۱۳۵ رقم الحديث ۱۵۰۳،وابن ماجه۱/۴۰۱ رقم الحديث ۱۲۶۳.

**پوښتنه**: دلته دا پوښتنه ده چې د لمر کسوف يو امر عادي دی چې "حيأولة الارض بين الشمس والقمر" کېږي. په دې کې ويري څه شي ده او د تشويش څه ضرورت دی.

**جواب**: د لمر کسوف د قيامت په نښانو کې يوه نښانه ده. چې په هغې کې دا اشاره ده چې دا لوی لوی غرونه او دا لوي لوي دريابونه او دا نظام علوي او سفلي او دا نظام سماوي به په ناڅاپه ذره ذره شي. دا ستورې. سپوږمۍ او دا لمر او د دې دا سې بې نوره کيدل د قيامت د علاماتو يوه نښانه ده او د قيامت د ويرې يو عکس دی. نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويريدلو او جوماتته راغلو او امت ته يې حکم وکړو چې تاسو هم په ويره کې جوماتته ځئ او مونځ کوئ. ذکر کوئ داسې نه چې د همدلته نه قيامت شروع نه شي.

## د کسوف په مونځ کې د رکوع او د سجدو شمار

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ مَاتَ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د لمر کسوف وشو په زمانه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې به کومه ورځ چې وفات |
| إِبْرَاهِيمُ ابْنُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ سِتَّ |
| شوې و ابراهيم د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځوی، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ وکړو خلکو ته شپږ |
| رَكَعَاتٍ بِأَرْبَعِ سَجَدَاتٍ.[۲] |
| رکوع ګانو او په څلور سجدو سره. |

**توضيح**: **ابراهيم**: دا د ماريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پيدا شوی وو. د اتلس (۱۸) مياشتو په عمر کې وفات شوی و. په ۸ھ کې پيدا شوی و او په ۱۰ھ کې د پيئو څکلو په عمر کې مړ شو. په دې روايت کې يو رکعت کې درې رکوع ګانې بيان شوې دي. (المرقات ۵۸۶-۳/۵۹۰).

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ كَسَفَتِ الشَّمْسُ ثَمَانَ رَكَعَاتٍ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لمر د کسوف په وخت کې دوه رکعته مونځ داته رکوع |
| فِيْ أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ |
| ګانو او څلورو سجدو سره (داسې) وکړو (چې په هر رکعت کې يې څلور رکوع ګانې او دوه سجدې وکړې) او |

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲ ۶۲۳ رقم الحديث ۹۰۱

وَ عَنْ عَلِيٍّ مِثْلُ ذٰلِكَ .(۱)

دغه شان د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه هم منقول دي.

## د یو صحابي د کسوف مونځ د پاره منډه وهل

﴿۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ : كُنْتُ أَرْتَمِيْ بِأَسْهُمٍ لِيْ بِالْمَدِيْنَةِ فِيْ حَيَاةِ

او عبد الرحمن ابن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ما به تیر اندازي کوله په مدینه منوره کې په زمانهٔ حیات د

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ كُسِفَتِ الشَّمْسُ

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې (نو یو ورځ زه په تیراندازی کې مشغول ؤم) چې لمر کسوف شو ما غشي

فَنَبَذْتُهَا. فَقُلْتُ: وَاللهِ لَأَنْظُرَنَّ إِلَى مَا حَدَثَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ كُسُوْفِ الشَّمْسِ.

وویشتل او په (زړه کې مې) وویل چې په خدای قسم زه به دا خامخا وینم چې څه حالت به وي د رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لمر په کسوف سره (یعنې دا به ګورم چې په داسې وخت کې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ څه کوي)

قَالَ : فَأَتَيْتُهُ

عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (په دې سوچ کې) زه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم

وَ هُوَ قَائِمٌ فِي الصَّلَاةِ رَافِعٌ يَدَيْهِ

(نو ومې لیدل چې) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دواړه لاسونه اوچت کړي او په مونځ ولاړ ؤ بیا (ما اوریدل

فَجَعَلَ يُسَبِّحُ وَ يُهَلِّلُ وَ يُكَبِّرُ وَ يَحْمَدُ وَ يَدْعُو

چې) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سبحان الله ولا اله الا الله الله اکبر او الحمد لله لوستل او دعاء یې غوښتله

حَتّٰى حُسِرَ عَنْهَا فَلَمَّا حُسِرَ عَنْهَا قَرَأَ سُوْرَتَيْنِ

تردې چې د لمر کسوف ختم شو چې کله د لمر نه توروالې لرې شو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه سورتونه

وَ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ. (۲)

ولوستل او دوه رکعته مونځ یې وکړو (یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه رکعته مونځ وکړو چې په هغې

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲ ٦٢٧

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/٦٢٩ رقم الحديث ۲٦ ۹۱۳

| |
|---|
| رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِي صَحِيحِهِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ |
| کړې يې د دوه سورتونو قرأت وکړو) دا حديث مسلم په خپل صحيح مسلم کې د عبد الرحمن ابن سمره نه |
| وَكَذَا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ عَنْهُ وَ فِي نُسَخِ الْمَصَابِيحِ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ. |
| نقل کړې دی. دغه شان په شرح السنة کې هم (دا روايت) دغه شان (د عبد الرحمن ابن سمره نه) منقول دی |
| او د مصابيح په نسخو کې دا روايت د جابر ابن سمره نه نقل شوی دی. |

## د لمر په کسوف کې غلام آزادول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَتْ: لَقَدْ أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او د ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لور اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم کړې دی د غلام په |
| بِالْعَتَاقَةِ فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ. (۱) |
| آزادولو دلمر په کسوف کې. |

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د کسوف په مونځ کې قرأت به په قلاره او که په آوچت اواز سره کولې شي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ سَمُرَةَ بن جُنْدُب قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كُسُوفٍ |
| سمره ابن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته د لمر کسوف په وخت کې (داسې) مونځ |
| لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا. (۲) |
| وکړو (چې) مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اواز نه اوريدلو. |

**کتنه**: د دې حديث متعلق ټول بحث تېر شوي حديث نمبر ۱ کې شوی دی.

## د يو مشکل وخت کې سجده کول

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ: قِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: |
| عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې (کله) ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا ووېل شو چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ازواج |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲ / ۵۴۳ رقم الحديث ۱۰۵۴، وأحمد في المسند ۶ / ۳۴۵

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱ / ۷۰۱ رقم الحديث ۱۱۸۴، والترمذي في السنن ۲ / ۴۵۱ رقم الحديث ۵۶۲، والنسائي في السنن ۳ / ۱۴۱ رقم الحديث ۱۴۸۴، وابن ماجه ۱ / ۴۰۲ رقم الحديث ۲۶۴، وأحمد في المسند ۵ / ۱۶

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَاتَتْ | فُلَانَةُ | بَعْضُ | أَزْوَاجِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَ سَلَّمَ |

مطهراتو کې فلانۍ زوجه مطهره (يعنې حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا) مړه شوه نو هغه (د دغه لوي پيښې خبر

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَخَرَّ | سَاجِدًا | فَقِيلَ | لَهُ | تَسْجُدُ | فِي | هٰذِهِ | السَّاعَةِ ؟ |

اوريدو سره) په سجده شو (يادا چې هغه مونځ وکړو) هغه ته عرض وشو چې ته دغه وخت کې سجده ولې

فَقَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا رَأَيْتُمْ آيَةً

کوې؟ نو هغه وويل چې دا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد مبارک دی چې کله تاسو ووينې يوه نښانه

فَاسْجُدُوا وَ أَيُّ آيَةٍ أَعْظَمُ مِنْ ذَهَابِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ [1]

نو سجده کوۍ او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ازواج مطهراتو دائمي جدائۍ د تللو نه لويه نښانې نه بل څه کيدی شي؟

**توضيح : ماتت فلانة:** د دېنه ام المؤمنين حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مراد ده. کله چې هغه مړه شوله نو چا حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خبر ورکړو نو هغې سجده وکړه. نو هغه سړي ترينه وپوښتل چې دا کوم وخت دی او څه وجه ده چې تا سجده وکړه؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورته وفرمايل چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد مبارک دی چې کله تاسو يوه نښانه ووينې نو زر سجده کوۍ او د زوجهٔ رسول د مرګ نه بله کومه لويه نښانه کيدل شي. (المرقات ۳/۵۹۷).

علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ ليکي چې په حديث کې د "آية" لفظ مطلق مذکور دی اوس که چيرې دا د سپوږمۍ او د لمر په کسوف باندې حمل کړي نو د سجدې نه به مراد مونځ وي او که د آيت نه دوه نښاني مثلاً طوفان، هوا او زلزله مراد واخستلی شي نو بيا به سجده مراد اخستلی کېږي مونځ نه شي مراد کيدي. (المرقات ۳/۵۹۷).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د کسوف د مونځ رکوع

﴿۱۲﴾ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابي ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې لمر کسوف شو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱ /۷۰٦ رقم الحديث ۱۱۹۷، والترمذي ٥/٦٦٥ رقم الحديث ۳۸۹۱.

فَصَلّٰى بِهِمْ فَقَرَأَ بِسُوْرَةٍ مِنَ الطُّوَلِ وَ رَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ

صحابو ته مونځ وکړو چې په اولني رکعت کې په اوږدو سورتونو کې د یو سورت قرأت او پنځه رکوع

وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ قَامَ الثَّانِيَةَ فَقَرَأَ بِسُوْرَةٍ مِنَ الطُّوَلِ

کاني او دوه سجدې وکړې. بیا دویم رکعت دپاره ودرېدونو په دې کې هم قرأت وکړو په اوږدو سورتونو

ثُمَّ رَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ كَمَا هُوَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ

کې یو سورت او پنځه رکوع کانې او دوه سجدې یې وکړې. بیا د مونځ په شان د قبلې طرف ته کیناستو

يَدْعُو حَتّٰى انْجَلٰى كُسُوْفُهَا.[1]

او دعاء یې غوښتله تر دې چې لمر روښانه شو.

## د کسوف مونځ د عامو مونځونو په شان دی

﴿۱۳﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ: كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او نعمان بن بشیر رضي الله عنه وايي چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې لمر کسوف شونو نبي کریم

فَجَعَلَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ

صلی الله علیه وسلم دوه دوه رکعته مونځ شروع کړو (یعني دوه رکعته به یې وکړل او وبه یې کتل چې کسوف نه دی ختم شوی نو بیا به یې دوه رکعته وکړل او تر کسوف پورې به یې مونځ کولو) او د (الله تعالی نه یې

وَ يَسْأَلُ عَنْهَا

دادعاء) وغوښتله (چې آیا لمر روښانه شوی دی یا دا چې د هر رکعت نه وروسته د کسوف باره کې پوښتنه وکړه چې کسوف ختم شوی دی او که نه؟ که خلکو به هم وویل چې اوس هم کسوف باقي دی نو بیا به په

حَتّٰى انْجَلَتِ الشَّمْسُ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ[1]

مونځ کې مشغول شو) تر دې چې لمر به روښانه شو.

---

(۱) أخرجه أبوداؤدفي السنن ۶۹۹/۱رقم الحديث ۱۱۸۲،وابن ماجه ۴۰۱/۲رقم الحديث ۱۲۶۲ ،وأحمدفي المسند ۱۳۴/۵.

(۱) أخرجه أبوداؤدفي السنن۷۰۴/۱ رقم الحديث۱۱۹۳، والنسائي ۱۴۵/۳ رقم الحديث۱۴۸۷.

| |
|---|
| وَفِي رِوَايَةِ النَّسَائِيِّ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى حِينَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ مِثْلَ صَلَاتِنَا |
| دنسائي روايت دى چې كله لمر كسوف شو نو نبي عليه السلام مونږ ته زمونږ د مونځونو په شان مونځ وكړه |
| يَرْكَعُ وَ يَسْجُدُ وَ لَهُ فِي أُخْرَى: |
| چې په هغې كې به مو ركوع او سجده كوله. د نسائي ديو بل روايت الفاظ دا دې چې: يوه ورځ چې كله |
| أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا مُسْتَعْجِلًا إِلَى الْمَسْجِدِ وَقَدِ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فَصَلَّى حَتَّى |
| لمر كسوف شو نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم په تونده سره جومات ته راغلو او مونځ يې وكړو. تر دې چې |
| انْجَلَتْ ثُمَّ قَالَ: " إِنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا يَقُولُونَ: إِنَّ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ |
| لمر روښانه شو بيا نبي عليه السلام وفرمايل چې: د جاهليت په زمانه كې به خلكو ويل چې د لمر او د سپوږمۍ |
| لَا يَنْخَسِفَانِ إِلَّا لِمَوْتِ عَظِيمٍ مِنْ عُظَمَاءِ أَهْلِ الْأَرْضِ وَ إِنَّ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ |
| نه كسوف كيږي په مرګ د يو معتبر سړي په مرګ باندې حال دا چې (حقيقت دا دى) لمر او سپوږمۍ خو |
| لَا يَنْخَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ وَ لَكِنَّهُمَا |
| نه د چا د مرګ په وجه كسوف كيږي او نه د چا د پيدائش په وجه كسوف كيږي. دا دواړه فقط د الله تعالى په |
| خَلِيقَتَانِ مِنْ خَلْقِهِ يُحْدِثُ اللهُ فِي خَلْقِهِ مَا شَاءَ |
| مخلوق كې دوه مخلوقه دي. خداى چې څه غواړي په خپل مخلوق كې بدلو (مثلاً كسوف. رڼا او تورتم) |
| فَأَيُّهُمَا انْخَسَفَ فَصَلُّوا حَتَّى يَنْجَلِيَ |
| پيدا كوي لهذا چې په دې كې په كوم يو كې كسوف شي نو تاسو مونځ شروع كړئ تر دې هغه روښانه شي |
| أَوْ يُحْدِثَ اللهُ أَمْرًا. |
| يا الله تعالى څه حكم ښكاره شي (يعني عذاب راشي يا قيامت شروع شي). |

**توضيح**: **مثل صلوتنا**: دا حديث په واضحې طريقې سره د احنافو د مسلك تائيد كوي چې وايي چې د كسوف مونځ د عامو مونځونو په شان يو مونځ دى. د دې هيڅ بله جدا طريقه نشته دى. مونږ ته قولي حديث ته كتل په كار دي او عامه قاعده داده چې د مونځ يو ركعت كې يوه ركوع وي. (المرقات ۳/۵۹۹).



۲۶ جمادی الاول ۱٤۱۰هـ

# باب في سجود الشکر
# د سجده شکر بیان

په مونځ کې د ننه سجدونو بغیر د مونځ نه باهر ډیر قسمه سجدې دي چې تفصیل يې په لاندې ډول دی:

۱: یوه سجده سهو ده دا اصطلاح د صلوة لپاره وي چې د صلوة په حکم دې دی په دې کې هیڅ اختلاف نشته دی.

۲: دویمه سجده تلاوت دی چې د مونځ نه باهر دي. د اکثر علماؤ د ظاهري اقوالو نه معلومیږي چې دا مکروه دي. عوام الناس دا د مونځ نه وروسته کوي. ځینې خلک دواړه لاسونه په زمکه سرچپه کیدي او د دعا شکل جوړ کړي. دا مکروه دي.

۴: څلورمه سجدهٔ شکر ده چې د حصول نعمت یا د زوال مصیبت په وخت کې کیږي. په دې کې د علماؤ اختلاف دی.

**د علماؤ اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او په احنافو کې امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کله یو خاص سړی ته د خوشحالۍ موقع راشي نو سجدهٔ شکر کول سنت دي. (المرقات ۳/٦۰۱).

دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ او دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دبعضو اقوالو نه معلومیږي چې سجده شکر مکروه ده. (المرقات ۳/٦۰۱).

**دلائل**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ دلیل د دې باب په ذکر شوي درې حدیثونه دي. چې په هغې کې د سجدهٔ شکر واضح ثبوت موجود دی. د دې حضراتو د جنګ بدر د هغه واقعي نه هم استدلال کړی دی چې کله د ابو جهل سر نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راوړلی شو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجدهٔ شکر وکړه او بیا يې وفرمایل چې د دې امت فرعون ووژل شو. د "**فخر ساجدا**" الفاظ راغلي دي. همدغه شان چې کله صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کله د مسیلمه کذاب د قتل خبر وشو نو ابو بکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سجدهٔ شکر ادا کړه. دغه شان په ډیرو موقعو باندې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شکر سجدې کړي دي کله چې ورته د مسلمانانو د فتح خبر را ورسیدو. (المرقات ۳/٦۰۲).

دغه شان چې کله د خوارجو یو لویي سرنوش مړ شو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شکر سجدهٔ ادا کړه. دا ټول د سجده شکر د مسنون کیدلو دلائل دي. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د الله تعالی نعمتونه بې شمیره دي او هر وخت د هغې ظهور کیږي. که چیرې په یو نعمت باندې مسلمانان په

سجدهٔ شكر باندې مكلف كړې شي نو دا تكليف مالايطاق دى.

امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ متعلق دې سلسله باره كې يو د جمله نقل كړې ده "انه كان لا يراها شيأ" (كذا في الذخيرة) يعنې امام صاحب د سجدهٔ شكر باره كې په هيڅ نه پوهيږي.

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ د دې كلام څه مطلب دى. په دې كې د علماؤ مختلفې رائې دي. ځېنې وايي چې دا د سنت كيدلو نفې ده ځېنو ويلي دي چې هغه د سجدهٔ شكر د وجوب نه نفې كوي. ځېنو ويلي دي چې هغه د سجدهٔ شكر د جواز نه نفې كول غواړي. ځېنو ويلي دي چې هغه د شكر تام نه نفې كول غواړي چې فقط سجدهٔ شكر كامل شكر نه دى بلكې كامل شكر ده دى چې دوه ركعته شكر مونځ اوكړې شي.

د دې ټولو اقوال په خلاف خبره دا ده چې د احنافو فتوى په دې باندې ده چې سجدهٔ شكر واجب ده ځكه په ډېرو حديثو كې د دې ثبوت موجود دى. او امت دا قبوله كړه او په هر نعمت باندې اگر كه سجده كول تكليف مالايطاق دى خو دغه لوى نعمتونو باندې كله كله سجده شكر ادا كول مشكل نه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

دا عجيبه خبره ده چې په دې كې فصل اول هم نشته دى او فصل ثالث هم نشته دى فقط فصل ثاني دى. چې په هغې كې فقط درې حديثونه دي. چې ستاسو په خدمت كې دى.

## د خوشحالۍ په وخت كې د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجدهٔ شكر

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَاءَهُ أَمْرٌ سُرُورًا أَوْ |
| ابو بكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې كله به نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د خوشحالۍ امر و شويا راوي لفظ سرور په ځاي |
| يُسَرُّ بِهِ خَرَّ سَاجِدًا شَاكِرًا |
| ديسر به ويل. چې په هغې سره به نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوشحاله شونو په سجده به پريوتو او شكر به |
| لِلّٰهِ تَعَالَى. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حسن غَرِيبٌ[1] |
| يې اداء كړو د الله تعالى. |

**توضيح:** خرساجدا: كوم حضرات چې سجده شكر سنت گڼي نو هغه د دې حديث نه استدلال كوي. حضرت

---

[1] أخرجه أبو داود في السنن ۳/۲۱٦ رقم الحديث: ۲۷۷٤، والترمذي في السنن ٤/۱۲۰ رقم الحديث: ۱۵۷۸.

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ خو ساجدا د نه دوه ركعته مونځ مراد اخلي. او د حديث په الفاظو کې پوره پوره وسعت شته خو احنافو له خواه فتوى په دې باندې ده چې ځان له د شکر سجده ادا کول مستحب دي. (المرقات ۳/۶۰۲).

سُرُوْرًا: دا لفظ منصوب دی. د دې فعل يُوْجِبُ محذوف دی. يا حال دی يعنې سارًا. (المرقات ۳/۶۰۲).

## چې په مصيبت کې څوک راګير شوی ووينې نو سجده د شکر کوی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي جَعْفَرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا مِنَ النُّغَاشِينَ فَخَرَّ سَاجِدًا. [۱] |
| او حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو لنډ سړی وليدلو نو د شكر سجده يې وكړه. |
| رَوَاهُ الدَّارَ قُطْنِيُّ مُرْسَلًا وَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ لَفْظُ المصابيح. |
| دار قطني دا روايت نقل كړی دی او شرح السنة کې د مصابيح په الفاظ کې نقل دی. |

**توضيح**: **النغاشين**: په يو روايت کې **لغاشين** هم دی او **النغاشي** هم دی. په دې صيغه کې نون باندې ضمه ده او عين باندې تشديد دی بلکې تخفيف دی.

**النغاش**: هغه سړي ته وايي چې د چا قد د حد نه ډير کم وي او هغه ناقص الخلقت او ضعيف الحركت وي. دغه قسمه سړی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدلو نو الله تعالى ته د شكر كولو لپاره سجده وكړه. ظاهره ده چې په اعتدال سره كله د لوړ قد والا سړی په لاره ځي نو څومره ښايسته او پړق والابنكاري ګويا كې د سروكا بوټي يا د صنوبر لوړ ښاښونه په زمكه باندې مخكې راروان وي. په دې د الله تعالى شكر كول خو ډير ښه ده. (المرقات ۳/۶۰۳).

خو علماؤ ليكلي دي چې د داسي سړي مخي ته سجده شكر كول په كار نه ده. ځكه چې هغې ته ضرر ونه رسي. ځكه د سجدۀ شكر مطلب دا نه دی چې په نورو باندې افتخار وكړي. بلكي د دې مقصد دا دی چې خپله د الله تعالى شكر ادا كړي او د الله تعالى د عظمتونو اعتراف وكړی شي. علماؤ دا هم ليكلي دي چې د هغه فاسق او فاجر مخي ته سجده كول په كار ده چې الله تعالى زه د دې فسق نه ساتلی يم. خو دا ده چې د فاسق مخي ته سجده كول ډيره بهتره ده. دا د دې لپاره چې هغې ته تنبيه وشي. د شيخ شبلي رَحِمَهُ اللهُ باره کې مشهوره ده چې كله هغې يو فاسق فاجر په مزو كې وليدلو نو د هغې مخكې يې وفرمايل **"الحمد لله الذي عافاني مما ابتلاك به"** يعنې په فسق او فجور الله تعالى ته اخته كړی يې او زه يې ترې نه محفوظ ساتلی يم. په دې باندې د الله تعالى ډير ډير شكر دی. (المرقات ۳/۶۰۳).

---

(۱) أخرجه الدار قطني ۴۱۰/۱ رقم الحديث : ۱ من باب السنة في سجود الشكر.

## د امت په حق کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاء

﴿۳﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَكَّةَ نُرِيْدُ

او سعد ابن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ روان شو د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د مكې نه چې اراده

الْمَدِيْنَةَ فَلَمَّا كُنَّا قَرِيْبًا مِنْ عَزْوَزَاءَ

موږه مدينې ته كله چې مونږ عزوزاء ته نزدې (چې د مكې او مدينې په منيځ كې يو ځاې دی) ورسيدلو

نَزَلَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَدَعَا اللهَ سَاعَةً

نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د (او بښې نه) كوز شو او دواړه لاسونه يې د لږ ساعت لپاره او چت كړل (دعاء يې

ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيْلًا ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ

غوښتله) بيا سجدې ته لاړو او ترلږ ساعت پورې يې سجده وكړه، بيا ودريدلو او اوچت يې كړل لاسونه لږ

سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيْلًا ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ

ساعت (دعاء يې غوښتله) بيا سجدې ته لاړو او ترلږ ساعت پورې يې سجده وكړه، بيا ودريدلو او اوچت

يَدَيْهِ سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا قَالَ: إِنِّيْ سَأَلْتُ

يې كړل لاسونه لږ بيا بيا سجدې ته لاړو بيا ددې نه پس نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ما دعاء وغوښته

رَبِّيْ وَ شَفَعْتُ لِأُمَّتِيْ

د خپل پروردګار نه او شفاعت مې وكړو د خپل امت (د ګناهونو بخښلو، په عيبونو پرده او اوچت درجاتو)

فَأَعْطَانِيْ ثُلُثَ أُمَّتِيْ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّيْ شُكْرًا

د پاره نو زما دامت دريمې برخې امت ته (مغفرت) وشو. ما د خپل رب د شكر ادا كولو لپاره سجده وكړه.

ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِيْ فَسَأَلْتُ رَبِّيْ لِأُمَّتِيْ

بيا ما سر راوچت كړو او د خپل رب نه مې د امت لپاره (د الله د رضا او د مغفرت) خواست وكړو نو الله

فَأَعْطَانِيْ ثُلُثَ أُمَّتِيْ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّيْ شُكْرًا ثُمَّ

تعالى زما او د دريمې برخې امت (مغفرت) وكړو. نو ما د خپل رب شكر ادا كولو لپاره سجده وكړه. بيا

رَفَعْتُ رَأْسِيْ فَسَأَلْتُ رَبِّيْ لِأُمَّتِيْ فَأَعْطَانِيْ الثُّلُثَ الْآخِرَ

ما سر راوچت كړو او د خپل امت د پاره مې دعا وكړه نو الله زما دامت د باقي دريمې برخې امت (هم مغفرت)

| فَخَرَرْتُ | سَاجِدًا | لِرَبِّي | شُكْرًا. [1] |
| --- | --- | --- | --- |
| و کړو. نو زه بیا د الله تعالی د شکر ادا کولو لپاره په سجده کې پرېوتلم. | | | |

**توضیح: عزوزا:** د مکي او مدیني په مینځ کې د یو ځاې نوم عزوزا ده چې حجفه ته نزدې دی. په عین باندې فتحه ده او په زا باندې سکون دی او آخر کې ممدودزا دی. (المرقات ۳/۶۰۳).

**رفع یدیه:** د دعا په دغه موقع باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بار بار لاسونه اوچت کړي دي. چې ترې نه معلومیږي چې د دعا په وخت کې لاسونه اوچتول د دعا د آدابو نه دي لکه څنګه چې فقهاؤ لیکلي دي. په دې سره د عربو مسلمانانو لره په هوش کې راتلل په کار دي چې هغه لاسونه اوچتول ګویا کې ګناه ګڼي او د سلفیت په فتنه کې د دعا د خوند نه محروم شوي دي. (المرقات ۳/۶۰۳).

**الثلث الآخر:** یعني درې ځله یې د الله تعالی نه دعا وغوښتله هر ځل الله تعالی ماته زما د امت دریمه برخه راکړه چې دا خلک به د عذاب نه محفوظ وي. چې درې برخي پوره شوي نو ما د شکر ادا کولو په توګه د شکر سجده ادا کړه. د الله تعالی د اعلی درجي والاخلک د اولنی دعا په موقع باندې معاف کړل او د متوسط درجي خلک یې په دویمه دعا کې معاف کړل او د ادنی درجې خلک یې په دریمې دعا کې معاف کړل. (المرقات ۳/۶۰۴).

**پوښتنه:** د قرآن او حدیث نه معلومیږي چې د قیامت په ورځ به ګناه ګار مسلمانان دوزخ ته ځي او د خپلو کړو سزا به ورکړی کیږی. خو د دې حدیث نه معلومیږي چې ټول امت بخښل شوی دی.

**جواب:** د دې پوښتني په جواب کې علماؤ یو جواب دا کړی دی چې د شفاعت او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دعاء تعلق د دنیا د سزا ګانو او عذابونو سره دی یعني په دې امت باندې په زمکه کې د منډلو عذاب دی یا د شکلونو د مسخ کیدلو عذاب دی یا داسي نور عذابونه دي. د دېنه به په مجموعي توګه باندې دا امت محفوظ وي او څنګه چې مخکني امتونه دغه قسمه عذابونو ورک کړي. په دې امت باندې به خسف او قذف او مسخ او غرق به اجتماعي عذاب نه راځي. د دې شفاعت او دعا مطلب دا نه دی چې د قیامت په ورځ به د دې امت ګناه ګاران دوزخ ته نه ځي. (المرقات ۳/۶۰۵).

د دې پوښتني دویم جواب دا دی چې د دې شفاعت او دعا تعلق بیشکه د آخرت د عذاب سره دی خو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شفاعت او دعا دا ذمه واري ملاؤ شوله چې کوم مسلمان چې دوزخ ته داخل شو نو د همیشه لپاره به په دوزخ کې نه وي بلکې الله تعالی وعده کړي ده چې د سزا خوړلو نه وروسته به هغه د دوزخ نه راایستلی کیږي.

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۳/۲۱۷، رقم الحدیث ۲۷۷۵

# باب صلوة الإستسقاء
## د استسقاء د مونځ بيان

قال الله تعالى: ﴿فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا، يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا﴾ (نوح آيت: ۱۰-۱۱)

**استسقاء** د باب استفعال مصدر دی. مجرد کې د دې مصدر "**السقي**" چې د څروبولو په معنی کې دی.

**استسقاء** کې **سين** او **تاء** د طلب لپاره دی. مطلب دا شو چې "**طلب السقي**" یعنې سیرابی او باران غوښتل. (المرقات ۳/۶۰۶).

په شرعي اصطلاح کې د استسقاء تعریف داسي دی: **طلب السقي بوجه مخصوص بأنزال المطر و دفع الجدب والقحط**. په پښتو کې د دې تعریف داسې دی: په وچ کالي د باران د طلب لپاره د خودلی شوي طريقو مطابق مونځ کول او دعاء غوښتل.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استسقاء د مونځ طريقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ إِلَى الْمُصَلَّى يَسْتَسْقِي |
| عبد الله ابن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلکو سره د باران د طلب دپاره عيدګاه ته لاړو نو |
| فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ جَهَرَ فِيهِمَا بِالْقِرَاءَةِ وَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام هلته دوه رکعته وکړل چې په هغې کې يې په اوچت اواز سره قرأت وکړو او قبلې ته يې مخ کړو او |
| يَدْعُو وَ رَفَعَ يَدَيْهِ وَ حَوَّلَ رِدَاءَهُ |
| دعاء يې وغوښتله. دغه شان نبي عَلَيْهِ السَّلَام د (دعا دپاره) خپل دواړه لاسونه اوچت کړي ؤ او قبلې طرف ته |
| حِينَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ. (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| مخ کولو په وخت کې يې خپل څادر وګرځو. |

**توضيح: الى المصلى**: د قرآن او سنت نه د استسقاء درې صورتونه معلوميږي: ۱: د مونځ کولو نه بغير

(۱) أخرجه البخاري ۲/۵۱۴، رقم الحديث ۱۰۲۴، ومسلم ۲/۶۱۱ رقم الحديث ۸۹۴، وأبوداود ۱/۶۸۹، رقم الحديث: ۱۱۶۶، والترمذي في السنن ۲/۴۴۲ رقم الحديث ۵۵۶

استغفار ويل او دعا غوښتل. ۲: د جمعې د خطبې په دوران کې او د فرض مونځونو نه وروسته د باران لپاره دعا کول. ۳: د باران لپاره په خصوصي توګه د استسقاء مونځ کول او د هغې نه وروسته دعا کول. په استسقاء کې اعلیٰ صورت همدغه دی چې ټول خلک پراخه ميدان ته راوځي. د کافر او ذمي نه بغير ټول مسلمانان په ميدان کې ډير په نرمۍ او عاجزۍ سره په عيدګاه کې مونځ وکړي او ښه ډيره توبه او استغفار وکړي او بيا د باران لپاره دعا وغواړي او صدقه او خيرات وکړي. (المرقات ۳/۶۰۷).

د استسقاء پاس درې صورتونه د ټولو په نزد ثابت هم دي او جائز هم دي. اختلاف په دې کې د اعلیٰ درجه کومه يوه ده. او آيا د استسقاء سنت فقط د مونځ سره مخصوص دی يا نا. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د جمهورو فقهاؤ او د صاحبينو په نزد د استسقاء د سنت پوره کيدل په مونځ باندې بنا دی. که مونځ ونشو نو د استسقاء سنت پاتې شو او د مونځ طريقه دا ده چې اول امام دوه رکعته مونځ وکړي او په ښه ژړا او فرياد سره دعا وغواړي او څادر وغوړوي.

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې استسقاء فقط په مونځ باندې بنا نه ده. (المرقات ۳/۶۰۷).

يعنې د استسقاء سنت په مونځ بنا نه دی بلکې دا سنت په دعا سره هم پوره کيږي. او د پاس ذکر درې طريقو نه هم د استسقاء عمل پوره کيږي. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د استسقاء قطعاً انکار نه کوي بلکې هغه په مونځ کې د استسقاء بنا او بند کولو قائل نه دی. د دې باوجود هم د احنافو فتوی د صاحبينو په مسلک ده. د امام صاحب په قول نه ده. ځکه په استسقاء کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مونځ ثابت دی.

**دلائل**: جمهور فقهاء د هغه ټولو حديثونو نه استدلال کوي. چې په هغې کې مونځ ذکر دی. لکه څنګه چې د بحث د لاندې حديث دی. په دې کې د مونځ ذکر موجود دی. دغه شان د فصل ثالث په حديث نمبر ۱۲ فصلی رکعتين کې هم د مونځ ذکر شوی دی. د دېنه بغير يو څو حديثونه داسې هم دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استسقاء لپاره عيدګاه ته تشريف يوړو. د مونځ کولو اګر که ذکر نشته دی خو عيدګاه ته د تللو نه همدغه معلوميږي چې مونځ مقصود ؤو. (المرقات ۳/۶۰۷).

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دليل د قرآن کريم دا آيت دی: ﴿فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا . يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا﴾.

په دې آيت کې د باران د طلب لپاره فقط د استغفار ذکر شوی دی. او باران يې فقط د استغفار سره معلق کړی. همدا رنګې سعيد بن منصور رَحِمَهُ اللهُ نقل کوي چې: **اخرج عمر يستسقى فلم يزد على الاستغفار فقالوا ما رئيناك استسقيت فقال لقد طلبت الله الغيث بمجاديح السماء الذى يتنزل به المطر ثم قرأ ﴿استغفروا ربكم الخ﴾**

د دې روايت نه هم معلومه شوه چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د استسقا، لپاره فقط استغفار كافي ګڼلو. مونځ به يې لازم نه ګڼلو. دا عمل د ټولو صحابؤ مخې ته ؤو. په دې باندې د ټولو صحابؤ اجماع وه. دغه شان د بخاري حديث خو مشهور دی چې هغې په وچكالۍ كې شكايت وكړو نو نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس اوچت كړل او د خطبې په دوران كې يې دعا وكړه. په دې كې هم د مونځ ذكر نشته دی. (المرقات ۳/٦۰۸).

په دې باب كې هم صاحب مشكوة اكثر حديثونه داسي نقل كړي دي چې په هغې كې فقط د دعا ذكر دی. او مونځ هيڅ تذكره نشته دی. معلومه شوه چې د استسقا، لپاره مونځ متعين نه دی بلكي د دې نه بغير هم داسي طريقي شته دی چې په هغې سره د استسقاء عمل پوره كېږي.

په مصنف ابن ابی شيبه كې يو روايت داسي دی: **وعن عطاء بن ابي مروان الاسلمي عن ابيه قال خرجنا مع عمر بن الخطاب سيتسقي فمازاد على الاستغفار (ابن ابي شيبه زجاجة المصابيح ج۱ص ۴۲۲)**

بهرحال د استسقاء درې طريقې دي. د موقع او ځاې په اعتبار سره چې كومه يوه اسانه وي هغه كول جائز ده. البته بهترينه طريقه همغه ده چې په هغې كې د مونځ په ضمن كې استسقاء وي او په همدغې باندې د احنافو فتوى ده.

**جهر فيهما بالقراءة:** معلومه شوه چې د استسقاء په مونځ كې قرأت په اوچت اواز سره دی. (المرقات ۳/٦۰۸).

**ورفعه يديه:** دلته نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حد نه ډير لاس اوچت كړي دي او دعا يې غوښتلې ده. معلومه شوه چې لاس اوچتول د دعا د آدابو نه دي. د غير مقلديت جنون په وجه په جزيرۀ عرب كې په دعا كې لاس اوچتول ختم شوي دي. نو ځكه د هغوی د زړونو نه د ايمان رڼا ختم شوی دی. ځكه سلفيت هغه خراب كړي دي. د استسقاء په مونځ كې افضله دا ده چې په اول ركعت كې سورت ق يا سورت اعلى يو سورت ولوستل شي او په بل ركعت كې سورت غاشيه ولوستل شي.

**وحول ردائه:** څادر غوړول د استسقاء څه لازمي برخه نه ده. د احنافو په نزد څادر غوړول د مونځ توكه نه بلكي د تفاول او د حالات بدلولو اړخ ته اشاره ده. د څادر غوړولو طريقه معروفه ده مګر لږه شان ګرانه ده.

## د استسقاء په دعاء كې لاس اوچتول

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ دُعَائِهِ |
| انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استسقاء نه بغير په بله كومه موقع كې به د دعا لپاره لاس نه |

| |
|---|
| إِلَّا فِي الِاسْتِسْقَاءِ فَإِنَّهُ يَرْفَعُ |
| او چتول نو (د استسقاء لپاره د دعا په وخت کې) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل دواړه لاسونه دومره ډېر او چتول |
| حَتَّى يُرَى بَيَاضُ إِبْطَيْهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تخرګونو سپين والی به ښکاره کيدو. |

**توضيح**: لايرفع يديه: پوښتنه دا ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استسقاء نه بغير په ډېرو ځايونو کې لاس اوچت کړي دي. دلته د نفي مطلب څه دی؟

د دې جواب علماؤ دا ورکړی دی چې دلته په حديث کې د مطلق د لاس اوچتولو نفي مراد نه ده بلکې په استسقاء کې به يې چې څومره لاس اوچتول دغه شان يې په نورو ځايونو کې نه اوچتول. همدغه وجه ده چې په دې روايت کې د **بياض ابطيه** ذکر راغلی دی. راوي دا بيانول غواړي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استسقاء په مونځ کې لاس دومره اوچت کړل چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ترخونو سپين والی ښکاره شو د ډېر ښايست د وجې يو پرق ؤ. حال دا چې د خلکو د ترخونه سپين نه وي د دې نه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډېر ښايست ثابتول هم مقصود دی او د استسقاء په دعا کې د غير معمولي لاس بيان هم مقصود دی. (المرقات ۳/۶۰۹).

## د دعاء په وخت کې د لاسونو کيفيت

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَسْقَى فَأَشَارَ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د باران لپاره دعاء وکړه نو اشاره يې وکړه د دواړو |
| بِظَهْرِ كَفَّيْهِ إِلَى السَّمَاءِ.[2] |
| لاسونو شا يې آسمان ته کړل. |

**توضيح**: **بظهر كفيه**: په استسقاء کې د لاسونو لاندنی طرف د اسمان طرف ته کول هم يو تفاول دی. چې دې طرف ته اشاره ده چې څنګه لاس څرچپه شول او د لاس تلي د زمکي طرف ته راغلي دې دغه د وريځو حالت هم بدل کړي او باران وکړي. (المرقات ۳/۶۰۹).

(۱) أخرجه البخاري ۲، ۵۱۷، رقم الحديث ۱۰۳۱، ومسلم في صحيحه ۲ ۶۱۲ رقم الحديث ۷ ۸۹۵، وأبوداود في السنن ۱ ۶۹۲، رقم الحديث ۱۱۷۰

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲، ۶۱۲ رقم الحديث ۶ ۸۹۶

## د باران په وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه دعاء

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى الْمَطَرَ قَالَ: |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به چې کله باران وليدو نو دا دعاء به يې غوښتله |
| اَللّٰهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا. (۱) |
| اى الله! نفع رسوونکي وورویٔ. |

## د باران په وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمل

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَنس قَالَ : أَصَابَنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَطَرٌ |
| حضرت انس رضي الله عنه وايي چې يو ځل مونږ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره ؤ وچې باران شروع شو انس رضي الله عنه |
| قَالَ : فَحَسَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَوْبَهُ حَتَّى أَصَابَهُ مِنَ الْمَطَرِ |
| وايي چې :رسول الله صلى الله عليه وسلم د (خپل سرنه يا د ملا نه) څادر کوز کړو تر دې چې باران وورېدو د نبي |
| فَقُلْنَا : يَا رَسُولَ اللهِ |
| عليه الصلاة والسلام (سرمبارک يا ملا) باندې باران مونږ (چې دا وليدو) نو عرض مو وکړو چې: يارسول الله! |
| لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا ؟ قَالَ : لِأَنَّهُ حَدِيثُ عَهْدٍ بِرَبِّهِ. (۲) |
| تا داسې ولې وکړل؟ نبي عليه السلام وفرمايل: ځکه چې دا اوبه اوس اوس د الله تعالى د طرف نه راغلي دي. |

**توضيح : حديث عهد:** د باران لاندې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ودريدلو او زياتې څادر يې اخوا کړلو مثلاً د سره نه يې خلې اخوا کړه، د متو نه يې ټوټه اخوا کړه او باران د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په بدن مبارک باندې مستقيماً راوريدلو. صحابؤ د دې عمل وجه معلومول وغوښتل نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې دا اوبه اوس وس د پاس نه د الله تعالى د اړخ نه راغلي دي. د دې اوبه مبارکې دي. په دې وجه نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خپل بدن باندې ومونبلي. د دې اوبه لا تروسه د کوم ګناهګار لاس نه دی لګيدلی. په يو حديث کې دي چې د جهاد په ميدان کې د جنګ په دوران کې يا د باران لاندې دعاء قبليږي. (المرقات ۳/٦۱۰).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۵۱۸، رقم الحديث: ۱۰۳۲، وأحمد في المسند ٦/٤۱.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/٦۱۵ رقم الحديث :۱۳-۸۹۸، وأبوداود في السنن ۵/۳۳۰، رقم الحديث: ۵۱۰۰.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د څادر د غوړولو كيفيت

﴿٦﴾ عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمُصَلَّى فَاسْتَسْقَى
عبدالله ابن زيد رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم عيدګاه ته لاړو او هلته يې د باران دعا وكړه نو
وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ حِينَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْمَنَ عَلَى عَاتِقِهِ الْأَيْسَرِ وَ
نبي عليه السلام قبلې ته مخ كړو او د خپل څادر ښي څنډه يې ټاوه كړه او خپلې كسې اوږې ته يې راوستلو او د
جَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْسَرَ عَلَى عَاتِقِهِ الْأَيْمَنِ ثُمَّ دَعَا اللّٰهَ.[1]
څادر كسه غاړه يې ټاوه كړه او خپل ښي اوږې ته يې راوستو بيا يې د الله تعالى نه (د باران لپاره) دعا وغوښته

**توضيح: خميصة:** د يمن ښايسته نقش كړى شوي څادر ته خميصه وايي. په مقامات حريرى كې خميصه ذكر راغلى دى: (المرقات ۳/٦۱۲).

**لبست الخميصة وابغى الخبيصة ۞ وانشبت شصى في كل شيصة**

په شعر كې د **خميصه** نه څادر مراد دى چې د يمن ښايسته څادرې به وې.

**فلما ثقلت:** دا چې د څادر د اړولو عمل مشكل شو نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم د څادر په وړو باندې په اسانه طريقه واچولو او معامله ختمه شوه.

**فلما ثقلت:** دا جمله په راتلونكي حديث نمبر ۷ كې ده. (المرقات ۳/٦۱۲).

﴿۷﴾ وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: اسْتَسْقَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
عبدالله رضي الله عنه وايي چې (يو ځل) نبي كريم صلى الله عليه وسلم د باران د طلب (لپاره دعا) وكړه نو هغه وخت د
وَعَلَيْهِ خَمِيصَةٌ لَهُ سَوْدَاءُ فَأَرَادَ أَنْ يَأْخُذَ أَسْفَلَهَا فَيَجْعَلَهُ أَعْلَاهَا
نبي عليه السلام په بدن مبارك باندې تور رنګى څادر ؤ نبي عليه السلام دا اراده وكړه چې د څادر لاندنۍ څنډه د پاس
فَلَمَّا ثَقُلَتْ
اړخ ته راوړي (لكه څنګه چې د څادر د ټاوهلو طريقه ده) مګر هغه وخت نبي عليه الصلاة والسلام ته مشكل

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۱/٦۸۸، رقم الحديث: ۱۱٦۳.

| |
|---|
| قَلَبَهَا عَلَى عَاتِقَيْهِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ[1] |
| شو. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپل څټ باندې څادر راتاؤ كړو. |

## كله ناكله به نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دعاء كې لاس لږ اوچتولو

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د آبي اللحم ازاد كړى شوى غلام ؤ روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې وليدو ته |
| يَسْتَسْقِي عِنْدَ أَحْجَارِ الزَّيْتِ قَرِيبًا مِنَ الزَّوْرَاءِ قَائِمًا يَدْعُو |
| احجار الزيت سره چې د زوراء سره نزدې ده په باران غوښتلو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ودريدو او دعاء |
| يَسْتَسْقِي رَافِعًا يَدَيْهِ قِبَلَ وَجْهِهِ لَا يُجَاوِزُ بِهِمَا رَأْسَهُ. وروى التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ نَحْوَهُ[2] |
| يې غوښته د باران د پاره او خپل دواړه لاسونه يې خپل مخ ته اوچت كړي ؤ وچې د سر نه اوچت نه ؤ. |

**توضيح** : **لايجاوزبهما راسه**: يعني دواړه لاسونه يې دومره نه ؤ او اوچت كړي چې د سر نه اوچت ؤو. (المرقات ۳/۶۱۲).

**سوال**: په حديث نمبر ۲ كې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه معلوميږي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په استسقاء كې لاسونه ډير اوچت كړي ؤو او دلته په روايت كې دې چې لاسونه يې دومره نه ؤو اوچت كړي بلكې د سر نه لاندې لاندې ؤو. په دې دواړه روايتونو كې تضاد او تعارض دى. بله په دې روايت كې دا دي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس مبارك د مخ طرف ته ؤو. خو د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث نمبر ۳ كې دې چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس مبارك د زمكې طرف ته او لاندنى طرف يې د اسمان طرف ته ؤو.

**جواب**: په استسقاء كې چې كومې طريقې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اختيار كړي دي ټولې جائز دي كله نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه طريقه اختيار كړې ده او كله يې بله طريقه اختيار كړې ده. په دې كې تضاد نشته دى بلكې د وسعت او د رحمت خبره ده. (المرقات ۳/۶۱۳).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱ ۱۸۸، رقم الحديث ۱۱۶٤

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱ ۶۹۰، رقم الحديث ۱۱۶۸ ، والترمذي في السنن ۲ ٤٤۳ رقم الحديث ۵۵۷ ، والنسائي ۳/۱۵۸ رقم الحديث ۱۵۱٤

## د استسقاء په وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاء

﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي فِي الِاسْتِسْقَاءِ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استسقاء د پاره بهر ووتو او په هغه وخت کې يې

مُتَبَذِّلًا مُتَوَاضِعًا

کيفيت داؤ چې ساده او د عاجزئ حالت کې ؤ (په باطن کې) عاجزي او بې وسي او په ظاهره (د الله په ذکر

مُتَخَشِّعًا مُتَضَرِّعًا. [1]

کې د ژبې په مشغوليت سره) عاجزي اختيار کړې وه.

**توضيح : متبذلا** : يعنې زړې جامې يې اغوستي وې. د ښايست جامه نه وه بلکې د خوارئ دوران کې چې کومه جامه وې هغه يې اغوستي وې. (المرقات ۳/۶۱۳).

**متواضعا**: په ظاهري اندامونو سره عاجزي کولو ته تواضع وايي. متخشعا: يعنې په باطني اندامونو سره هم پوره عاجزئ کې ؤ. يعنې د باران د دعا لپاره به چې کله نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وتلو نو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظاهر او باطن، ژبه او زړه ګويا کې د عاجزئ يوه نمونه به وه د دې لپاره چې الله تعالى دعا قبوله کړي. (المرقات ۳/۶۱۳).

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې چرته د په ظاهري توګه باندې زيب او زينت ترک کړو او سر نه تر ښپو پورې به د عاجزئ يوه نمونه وه نو په باطني توګه باندې هم د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زړه مبارک د الله تعالى د ويرې نه رپيدلو او په ژبه مبارکه به يې تضرع او عاجزي او زاري کې مشغول وه.

## د باران دعاء

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ

حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه (د حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحابي نه) روايت

قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا اسْتَسْقَى قَالَ : اللَّهُمَّ

کوي وايي چې: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله د باران لپاره دعا کوله نو دا دعاء به يې لوستله: اى الله!

(۱) أخرجه أبوداود ۱/۶۸۸، رقم الحديث ۱۱۶۵، ترمذي ۲/۴۴۵ رقم الحديث :۵۵۸، نسائي ۳/۱۵۶ رقم الحديث ۱۵۰۸، ابن ماجه ۱/۴۰۳ رقم الحديث :۱۲۶۶، مسند أحمد ۱/۳۵۵.

اسْقِ عِبَادَكَ وَ بَهِيمَتَكَ وَ انْشُرْ رَحْمَتَكَ وَ أَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ.[۱]

خپل بندگان او څاروي په اوبو ماړه کړي او خپل رحمت خور کړي او ژوندئ (زرغون) کړي مړي ځمکې.

## د باران یوه بله عجیبه دعاء

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُوَاكِئُ

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما وليدل چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د استسقاء لپاره) لاس اوچت كړي ؤو

فَقَالَ : اللَّهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيثًا

او دا دعا يې غوښته: اې الله! ته مونږ په باران ماړه كړې چې هغه فرياد ورباندې پوره شي چې د كوم انجام بهتر

مَرِيئًا مُرِيعًا نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ عَاجِلًا غَيْرَ آجِلٍ.

وي او چې ارزاني كونكي او فايده رسونكي او زر راتلونكي او ناوخته راتلونكي نه وي، جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

قَالَ : فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ.[۲]

وايي چې (د دې دعا نه وروسته) آسمان باندې وريځ راغله.

**توضيح : يواكئ**: واكأ يواكئ مواكأة د باب مفاعله نه دی. د دعا لپار دواړه لاسونه داسې اوچتول گويا كې په هغې باندې تكى وهل كېږي. (المرقات ۳/۶۱۴).

**غيثا مغيثا:اى مطر امشبعا منقذا من الشدة** يعنې داسې كڼ باران وي چې د وچ كالۍ ټول مضيبتونه لرې كړي. غيث هغه باران ته وايي چې د سخته گرمۍ او د وچكالۍ نه وروسته په ډيرو فريادونو او د دعاگانو په نتيجه كې وشي. اصل فرياد اوريدونكى الله تعالى دى. **غيث** ته مجازاً مغيث ويل شوى دى.

**مريئا:من مراء الطعام وامراء اذا لحدر من امعدة سريعا ولم يثقل يعنى مطرا محمود العاقبه غير ضار.** چې داسې باران وي چې انجام يې ښه وى. (المرقات ۳/۶۱۴).

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۶۹۵، رقم الحديث : ۱۱۷۶.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۶۹۱، رقم الحديث : ۱۱۶۹.

**مريعا:** عرب وايي **امرعت الارض** يعني زمکه ښنه اوبه او شنه شوه او هغې ښه شينکی وکړو يا د **مريعا** مطلب داسي هم دی **"ای آتیا بالریع والخصب"** داسی باران چې ارزاني او ښه ډير شينکي کونکی وي. (المرقات ۳/۶۱۴).

**فاطبقت:** يعني په اسمان باندې وريځي رايوځی شوي ګويا کې د اسمان څلور واړه طرفونه په وريځو کې بند شو مراد ترې نه د ګڼو وريځو راتلل او باران کيدل دي. (المرقات ۳/۶۱۴).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د استسقاء د دعاء تفصيل

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : شَكَى النَّاسُ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قُحُوطَ الْمَطَرِ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وايي چې خلکو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته د باران د نه کيدلو شکايت وکړو. نو |
| فَأَمَرَ بِمِنْبَرٍ فَوُضِعَ لَهُ فِي الْمُصَلَّى |
| نبي عَلَيهِ السَّلَام حکم وکړو چې عيدګاه کې ممبر کيږدی، نو ممبر په عيدګاه کې کيخودلی شو نو نبي عَلَيهِ السَّلَام |
| وَ وَعَدَ النَّاسَ يَوْمًا يَخْرُجُونَ فِيهِ . قَالَتْ عَائِشَةُ : |
| يو ورځ وټاکله چې په هغه ورځ ټول خلک عيدګاه ته ځي. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وايي چې (په ټاکلی |
| فَخَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حِينَ بَدَا حَاجِبُ الشَّمْسِ فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ |
| شوي ورځ) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ دلمر د غاړي په ښکاره کيدو سره (عيدګاه ته) لاړو او په ممبر کيناستلو |
| فَكَبَّرَ وَ حَمِدَ اللهَ عَزَّ وَ جَل ثُمَّ قَالَ : إِنَّكُمْ شَكَوْتُمْ |
| او تکبير يې وويل او د الله تعالی حمد او ثناء يې بيان کړه بيا يې وفرمايل چې تاسو شکايت کړې وو |
| جَدْبَ دِيَارِكُمْ وَ اسْتِئْخَارَ الْمَطَرِ عَنْ إِبَّانِ زَمَانِهِ عَنْكُمْ |
| (الله تعالی او د هغې د رسول نه) د خپل ښار د وچکالۍ او باران په خپل وخت نه وريدلو په باره کې او س |
| وَ قَدْ أَمَرَكُمُ اللهُ عَزَّ وَ جَل أَنْ تَدْعُوهُ وَ وَعَدَكُمْ |
| الله تعالی تاسو ته دا حکم کوي چې تاسو د هغې نه (د باران لپاره دعا) وغواړئ او هغه وعده کړې ده |
| أَنْ يَسْتَجِيبَ لَكُمْ . ثُمَّ قَالَ : الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ |
| چې ستاسو دعا به قبليږي. بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: "ټول تعريفونه الله د پاره دي چې د ټولو |

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ لَا إِلٰهَ

جهانونو پروردګار دی رحم کونکی او بخښونکی دی او د جزاء د ورځې مالک دی. نشته د الله تعالی نه

إِلَّا اللهُ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ اَللّٰهُمَّ أَنْتَ اللهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ

بغیر بل څوک معبود هغه چې څه غواړي هغه کوي ای الله! ته معبود یې ستا نه بغیر بل څوک معبود نشته

الْغَنِيُّ وَ نَحْنُ الْفُقَرَاءُ . أَنْزِلْ عَلَيْنَا

ته غني (بې پرواه) یې او مونږ فقیر او محتاجه یو په مونږ باران وکړي او کوم شی چې ته یې رانازل کړې

الْغَيْثَ وَ اجْعَلْ مَا أَنْزَلْتَ لَنَا قُوَّةً وَ بَلَاغًا إِلٰى حِيْنٍ

باران چې ترډیرې مودې پورې زمونږ لپاره قوت او (د دې په ذریعه خپل مقصدونو) ته د رسولو سبب جوړ

ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَلَمْ يَتْرُكِ الرَّفْعَ حَتّٰى

کړې. د دې نه وروسته نبي کريم ﷺ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او دومره یې اوچت کړل چې د

بَدَا بَيَاضُ إِبْطَيْهِ . ثُمَّ حَوَّلَ إِلَى النَّاسِ ظَهْرَهُ

نبي کريم ﷺ د ترخونو سپین والی ښکاریدلو. بیا د خپل شا طرف خلکو ته یې مخ وګرځولو او

وَ قَلَبَ أَوْ حَوَّلَ رِدَاءَهُ وَ هُوَ رَافِعٌ يَدَيْهِ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ

څادر یې سرچپه یا دا چې تاؤ یې کړو او خپل لاس یې داسې اوچت کړل. بیا خلکو ته مخ کړلو (او د ممبر

وَ نَزَلَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ فَأَنْشَأَ اللهُ سَحَابَةً فَرَعَدَتْ

نه) لاندې راکوز شو او دوه رکعته مونځ یې وکړو چې الله تعالی وریځې راښکاره کړې چې وغړمبیدلو او

وَ بَرَقَتْ ثُمَّ أَمْطَرَتْ بِإِذْنِ اللهِ فَلَمْ يَأْتِ مَسْجِدَهُ

وپرقیدلو. نو د الله په حکم سره باران شو تر دې چې نبي کريم ﷺ تر خپل جومات پورې رانغلو

حَتّٰى سَالَتِ السُّيُوْلُ فَلَمَّا رَأٰى سُرْعَتَهُمْ إِلَى الْكِنِّ

تر دې چې لختې هم وبهیدل. کله چې خلکو نبي کريم ﷺ ته د باران نه د بچ کیدو د پاره محفوظ

ضَحِكَ حَتّٰى

ځای ته په لټولو کې تُندي کولو باندې ولیدل نو نبي کريم ﷺ په خنده شو تر دې چې د نبي کريم

| بَدَت | نَوَاجِذه | فَقَالَ : | أَشْهَدُ | أَنَّ | الله | عَلى | كُلِّ | شَيْءٍ | قَدِيرٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وری ښکاره شوي. بیا یې وفرمایل "زه ګواهي ورکوم چې الله تعالی په هر څه باندې قادر | | | | | | | | | |
| وَ أَنِّي عَبْدُ اللهِ وَ رَسُولُهُ .[1] | | | | | | | | | |
| دی او دا چې زه د الله تعالی بنده او د هغې رسول یم. | | | | | | | | | |

**توضیح** : **استیخار المطر: ای تأخیر المطر تأخیر بعیدا:** یعنې د ډیر وخت راهسي باران نه دی شوی

**"عن ابان"** همزه باندې زیر دی او **"با"** باندې شد دی. نون د اصلي کلمي برخه ده. په قاموس کې لیکل شوي **"ابان الشئ حینه"** یعنې ابان د حین او د وخت په ومعنی کې دی. د **ابان** اضافت زماني طرف ته اضافت خاص الی العام دی یعنې دډیري مودې راهسی په خپل وخت باندې دنه راوریدلو تاسو شکایت وکړو. په یو بل حدیث کې د **"ابان"** لفظ د وخت لپاره داسي استعمال شوی دی **"هذا ابان نجومه ای وخت ظهوره"** یعنې دا وخت د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ظهور او د بعثت وخت دی. (المرقات ۳/۶۱۶).

**الکن:** کاف باندې زیر دی او نون باندې شد دی. د دې جمعه اکتان دی. په قرآن کریم کې د اکتان لفظ راغلی دی. په غرونو کې چې کوم قدرتي غار جوړ شوی وی. اصل کې د کن اطلاق په همدغي باندې کیږي. بیا دا د هر هغه شي لپاره ویل کیږي چې د هغې په وجه انسان خپل ځان د ګرمی او د یخنی او واوري او د باران نه ساتي اګر که هغه قدرتي پناګاه وي یا د انسانانو تعمیر شوي مقامونه او کورونه وي. (المرقات ۳/۶۱۸).

مقامات حریری د یخنی موسم راتللو باندې د یو څو ضروریاتو ذکر په اشعارو کې کړی دی. چې په هغې کې د کن لفظ استعمال شوی دی.

**جاء الشتاء و عندي من حوائجه ۞ سبع اذا القطر عن حاجتنا حبسا**

**کن و کالون و کیس و کأس طلا ۞ بعد الکباب و کسٌ ناعم و کساء**

حضرت امام مالک رَحِمَهُ اللهُ، امام شافعی رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ یو روایت فرمایي چې د استسقاء د مونځ نه وروسته دوه خطبي لوستل سنت دي. البته د استسقاء د خطبو په ابتداء کې استغفار ویل په کار دي. لکه څنګه چې د اخترونو په خطبو کې په اول کې د اختر تکبیرونه ویل مناسب دې یعنې د خطبې په ابتداء کې همدغه مناسب شیان کول پکار دي. (المرقات ۳/۶۱۶).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۶۹۲، رقم الحدیث : ۱۱۷۳

**ضحك**:نبي کريم صلى الله عليه وسلم ځکه وخندل چې انسان څومره کمزوري دی چې اوس خو يې فرياد کولو چې باران نشته دی او چې اوس باران شو نو کوم شی چې يې په ډيرو سفارشونو غوښتلو نو اوس د هغې نه منډې وهي. (المرقات ۳/۶۱۸).

په يو بل روايت کې دي چې کله باران شو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې کچرې ابو طالب ژوندی وی نو د باران په دې نظاره ليدلو سره به خوشحاله شوی وی. وجه دا ده چې ابوطالب د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په شان کې يوه ډيره ښه قصيده ويلي وه چې د هغې يو شعر دا دی.

**وابيض يُستقى الغمام بوجهه ۞ ثمال اليتامىٰ عصمة للارامل**

**ترجمه**: هغه داسې ښايسته دی چې د دې د مبارک مخ د برکته د وريځې نه اوبه غواړي هغه د يتيمانانو غمخوار او کونډو محافظ دی.

د احنافو په نزد په استسقاء کې خطبه نشته دی. فقط دعا او استغفار باندې اکتفاء کول په کار دي.

## په وسيلې سره د باران د پاره دعاء

| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
|---|
| حضرت انس رضي الله عنه راوي دی چې (د باران نه کيدو په وجه) وچکالي شوه نو عمر ابن الخطاب رضي الله عنه |
| كَانَ إِذْ قُحِطُوا اِسْتَسْقٰى بِالْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ : اللّٰهُمَّ إِنَّا |
| د حضرت عباس ابن عبد المطلب په وسيلې سره د باران لپاره دعا غوښتله. نو هغه فرمايي ای الله!مونږ |
| كُنَّا نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا فَتَسْقِينَا وَ إِنَّا نَتَوَسَّلُ |
| ستانه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په وسيلې سره ستانه دعا غوښتله چې مونږ خړوب کړې. او مونږ وسيله |
| إِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا فَاسْقِنَا . قَالَ : فَيُسْقَوْنَ .[1] |
| کوو تاته د نبي عليه السلام تره نو ته مونږ خړوب کړې. انس رضي الله عنه وايي چې (په دې دعا سره) به باران کيدو |

**توضيح : لتوسل**:نيک عملونو په وسيله کولو کې د چا اختلاف نشته دی او د حديث الغار واقعه په دې باندې واضح دليل دی. درې کسانو د خپل نيک اعمالو په وسيلې سره د الله تعالى نه دعا وغوښتله چې دا مصيبت لرې شي نو هغه مصيبت لرې شو. نو د نيک اعمالو په وسيله کولو کې د چا اختلاف نشته

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۱۹۴ رقم الحديث : ۱۰۱۰.

ي. خو په ذوات فاضله وسيله کول څنګه دي. په دې کې اختلاف دی مګر زه خپله په دې مسئله باندې
ما حقه نه پوهيږم او نه ما د پوهيدلو کوشش کړی دی.
حضرت مولانا محمد يوسف لدهيانوی شهيد رَحِمَهُ اللهُ په اختلاف امت او صراط مستقيم کې دا مسئله
ير په پاک انداز سره وړاندې کړې ده. ما د خپل استاذ محقق زمان حضرت مولانا فضل محمد صاحب
رحمه الله نه د مشکوة درس په دوران کې دومره واوريدله او وليکله چې د اشارو ژبه وه چې ما ليکلې ده.
غه د همغې په الفاظو کې نقل کوم. هغې به فرمايل. وسيله مظهر رحمت الهی په ګڼلو سره منل صحيح
ې خو که وسيله علت شوه چې دا وسيله مؤثر بالذات ده نو دا شرک دی. لکه څنګه چې په ناوه کې او به
ندې راليږي نو که ناوه دا اويو مظهر ومنل شي نو جلا معنی لري (يعنې دا څه باک نه کوي) او که ناوه
باران لپاره علت ومنل شي نو دا جلا معنی لري (يعنې ناجائز، ګناه او شرک دی. همدغه شان ذوات
ضله که يو سړی مستقل بالذات تصور کوي او هغه په کار کې مؤثر بالذات ګڼي نو دا د شرک صورت
ی. منقول دي چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کله د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په
سيلې سره د الله تعالی نه د باران دعا غوښتله نو حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به داسې ويل. ای زما
وردګار! ستا د پيغمبر امت زه وسيله کړی يم. مولائ کريم! ته زما دا بوډه والی رسوا مه کړې او ما د
ې خلکو په مخ کې د شرميدلو نه وساتې. بس دا الفاظ به يو اړخ ته د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ژبې نه
ل او بل اړخ ته به باران شروع شو. (لمعات)

## د استسقاء په سلسله کې د يو نبي او د ميږې واقعه

١٤ ﴿ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: خَرَجَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ

ضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې ووتلو يو نبي د انبياو

بِالنَّاسِ يَسْتَسْقِي فَإِذَا هُوَ بِنَمْلَةٍ رَافِعَةٍ

د خپلو خلکو سره د استسقا د پاره نو هغه نبي ناڅاپه يو ميږې وليده چې او چتې کړې يې وې هغه خپلې خپې

ضُ قَوَائِمِهَا إِلَى السَّمَاءِ فَقَالَ: ارْجِعُوا فَقَدِ اسْتُجِيبَ لَكُمْ مِنْ أَجْلِ هٰذِهِ النَّمْلَةِ". [1]

سمان ته (دا يې چې وليدل) نو هغه نبي وفرمايل چې بيرته لاړشئ. د دې ميږې په وجې ستاسو دعا قبوله شوه.

ضيح: نبي من الانبياء: ويل کيږي چې دا نبي حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ وو.

د دې واقعې نه يوه دا خبره ثابته شوه چې د الله تعالی شان ډير لوي دی او د هغې رحمت په ټول کائنات باندې خور دی. هغه که انسان وي يا حشرات الارض وي يا که يو ميږی وي. د دې حديث نه دويمه دا خبره معلومه شوه چې د کائناتو يوه يوه ذره د الله تعالی په علم کې ده او د کائنات په ټولو موجوداتو د احوالو او کوائفو باندې محيط دی. (المرقات ۳/٦٢٠).

د دې حديث نه دريمه دا خبره معلومه شوه چې مسبب الاسباب او قاضی الحاجات فقط د يو الله تعالی ذات دی. د دې واقعې په ضمن کې دا هم منقول دی چې د دې ميږي د دعاء الفاظ دا ؤو:

**اللهم انا خلق من خلقك لا غنیٰ بنا عن رزقك فلا تهلكنا بذنوب بن آدم.** (المرقات ۳/٦٢٠).

ای پروردګار! ستا په مخلوقاتو کې مونږ هم يو مخلوق يو ستا د رزق نه مونږ مستغني او بی نيازه نه يو. لهذا د آدم عليه السلام د اولاد د ګناهونو په سبب مونږ تباه مه کړي.



# باب في الرياح
## د بادونو بيان

قال الله تعالى: ﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ﴾ (سورة الحجر آیت: ۲۲).

و قال الله تعالى: ﴿أَن يُرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتٍ﴾ (سورة الروم آیت: ٤٦).

و قال الله تعالى: ﴿إِذْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ﴾ (سورة الذاريات آیت:٤١).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### هوا رحمت هم دی او عذاب هم دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: نُصِرْتُ بِالصَّبَا وَ |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل په باد صبا سره زما مدد |
| أُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ. (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| وشو او قوم عاد د باد دبور (د مغرب د طرف نه باد) په ذريعې سره هلاک شو. |

**توضیح**: د مشکوة شريف په اکثر نسخو کې دلته صرف لفظ د "بابٌ" په تنوين سره ليکل شوی دی. د صاحب مشکوة عادت دی چې کله کله هغه لفظ باب کيدي او عنوان قائم کړي. دا په حقيقت کې ما سبق باب د مُتَمِّمات او مکملاتو نه دی څه مستقل باب نه دی دلته هم ممکن ده چې معامله هم دغه شان وي ليکن د مشکوة په يوه نسخه کې **باب في الرياح** عنوان موجود دی او شارحينو تقريباً ټولو د باب سره د رياح عنوان لګولی دی. لهذا په دې باب کې په مستقله توګه باندې د هواګانو بيان وي. بهرحال هوا د الله تعالى يو تابعدار مخلوق دی. د الله تعالى د حکم مطابق چليږي او د هغې په حکم سره اودريږي د هغې په حکم سره چاته راحت رسوي او چاته سخت عذاب ورکوي. د غزوه خندق په موقع کې کفارو يو لوي لښکر راوستلو او تراته ويشت (۲۸) ورځو پورې يې مدينه کلا بند کړي وه. نو په دغه موقع باندې الله تعالى د مسلمانانو مدد وکړو او د باد صبا په ذريعې سره يې کفار ذليل او خوار کړل. هغه هوا دومره په تندۍ سره چليدله چې تراوويشت (۲۷) ورځو پورې بې نوا او بې مقصده د

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/ ۵۲۰، رقم الحديث ۱۰۳۵، ومسلم في صحيحه ۲ ۶۱۷ رقم الحديث ۱۷-۹۰۰، وأحمد في المسند ۱ ۲۲۳

سترې ستو مانه کافرانو سردار ابو سفيان او د هغه د لښکر په تابوتونو کې يې آخري مېخ ټک وهلې شو او هغه ټول وتختيدل. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ټول ژوند کې د دې انعام شکر ويستلو او په اکثرو ځايونو کې به يې په خاصه توګه باندې د دی ذکر کولو. دغه قوم عاد په تيرشوؤ قومونو کې يو سرکشه او مضبوط قوم تير شوی دی. د هغه ښلکو دولس دولس (۱۲) ګزه اوږده قدونه ؤو. کله چې هغه قوم د الله تعالى نافرماني اوکړه او سرکشي يې شروع کړه او د الله عذاب ته يې بلنه ورکړه نو الله تعالى په هغوی باندې د باد دبور مسلطه کړه چې هغه هوا د هغوی قدونه په هوا کې د کنډکو پشان والوځول او په زمکه يې راويشتل. چې خيټې يې وچاودلي او سرونه يې چت شول. (المرقات ۶۲۱/۳).

**قبول:** باد صبا او ډکې هوا ته وايي.

**دبور:** ته شاه اړخيز باد ته وايي. د دې هوا د تعيين باره کې شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې ليکي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ په قبله ودريدلو نو کومه هوا چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام شا طرف نه راتلله هغه الصبا ده او کومه هوا چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې طرف ته راتلله هغه الدبور ده. (المرقات ۶۲۱/۳).

## د وريځو او هواګانو په وخت کې به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تشويش کې شو

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ضَاحِكًا |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې کله هم ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې په خنده باندې نه دی ليدلی چې ما ته يې |
| حَتّٰى أَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ إِنَّمَا كَانَ يَبْتَسِمُ فَكَانَ إِذَا رَأَى غَيْمًا أَوْ |
| د ژامې غاښونه ښکاره شوي وي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فقط مسکی کيدو او کله به يې چې وريځ يا |
| رِيحًا عُرِفَ فِيْ وَجْهِهِ .(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| هوا وليده نو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مخ مبارک رنګ به بدل (پاک) به پيژندل کيدلو. |

**توضيح : عرف في وجهه:** د هواګانو او د وريځو وخت کې به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه تشويش کولو چې په همدغه وريځو او هواګانو باندې مخکني امتونو باندې قسما قسم عذابونه نازل شوی ؤو. نو ځکه د عام انسانو د کفر او د ګناهونو په وجه به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عذاب د نازليدلو د ويرې نه په تشويش کې شو کله به چې باران شو نو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طبيعت کې به راحت راغلو لکه څنګه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۷۸/۸، رقم الحديث ۴۸۲۸، ومسلم في صحيحه ۶۱۶/۲ رقم الحديث :۱۴-۸۹۹، أبوداود ۳۲۹/۵ رقم الحديث . ۵۰۹۸، مسند أحمد ۶۶/۶.

چې په لاندې حديث کې بيان شوی دی. (المرقات ۳/۶۲۲).

## د تيزې هوا په وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاء

﴿۳﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا عَصَفَتِ الرِّيحُ قَالَ : اللّٰهُمَّ

حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې کله به سخته هوا چليدله نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دا دعا کوله اې الله!

إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَ خَيْرَ مَا فِيهَا

زه غواړم ستا نه خير چې د دې (هوا) په ذات کې دې او خير غواړم د هغه شي نه چې په دې کې دې (يعني د

وَ خَيْرَ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ وَ أَعُوذُ

منافعو نه) او خير د هغه شي چې د کوم لپاره دا هوا راليږلی شوې ده (يعني د دې په مدد سره) او پناه غواړم

بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَ شَرِّ مَا فِيهَا وَ

ستا په ذريعې سره د دې د بدونه او د هغه شي د بدونه چې په دې کې دې (يعني د دې د نقصان نه) او د هغه

شَرِّ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ وَ إِذَا

شي د نقصان نه چې د کوم لپاره دا هوا راليږلی شوې ده (يعني چې دا د عذاب سبب نه شي) او کله به چې په

تَخَيَّلَتِ السَّمَاءُ تَغَيَّرَ لَوْنُهُ

اسمان کې وريځ شوه نو د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د مخ مبارک) رنګ به بدل شو نو (د ويرې او د تشويش

وَ خَرَجَ وَ دَخَلَ وَ أَقْبَلَ

په وجه په يو ځاى نه کيناستو بلکې) کله به د کور نه وتلو او کله به د بهر نه دننه راتلو، د غه شان به بيا راغلو

وَ أَدْبَرَ فَإِذَا مَطَرَتْ سُرِّيَ عَنْهُ

او بيا به تللو چې کله باران به شو نو د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويره او تشويش به ختم شو (يو ځل) چې کله به

فَعَرَفَتْ ذَلِكَ عَائِشَةُ فَسَأَلَتْهُ

عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا دا (بدلون او اضطراب) محسوس کړو نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه يې د دې سبب پوښتنه وکړه نبي

فَقَالَ : " لَعَلَّهُ يَا عَائِشَةُ ! كَمَا قَالَ

عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې: عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا! څه معلومه ده چې دا وريځ هم د غه شان وي چې لکه څنګه ويلي وو

| |
|---|
| قَوْمُ عَادٍ : ( فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا |
| قوم عاد چې: دا وریځ ده چې په مونږ به وریږي. نو په دې آیت کې د قوم عاد حال بیان شوی دی چې هر کله |
| مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوْا : هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا ) |
| هغوی وریځ په لختوا وغونډو باندې په راتللو ولیدې نو وې ویل چې دا وریځې دې چې په مونږ به وریږي |
| وَ فِيْ رِوَايَةٍ : وَ يَقُوْلُ إِذَا |
| په یو روایت کې (د فاذا امطرت سری عنه په ځای) دا الفاظ دي چې "نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله |
| رَأَى الْمَطَرَ رَحْمَةً .(مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| باران ولیدو نو دا به یې ویل چې: دا باران د رحمت سبب وي. |

**توضیح: عصفت الريح: عصف يعصف عصفقا وعصوفا فهي عاصفة**، په تونده سره هوا چلیدلو ته وایي.

**تخيلت السماء: خيلت وتخيلت** د باران لپاره تیاریدلو ته وایي چې په هغې سره د خلکو خیال شي چې اوس باران کیدلو والادی. (المرقات ۳/۶۲۳).

**هذا عارض ممطرنا:** حضرت هود عَلَيْهِ السَّلَامُ چې د کوم قوم لپاره نبي رالیږلی شوی ؤ. د هغې قوم نوم "**عاد**" ؤ. د هغه قوم د سرکشۍ په وجه الله تعالی په هغوی باندې د اسمان نه باران بند کړلو او دا قوم په وچکالۍ کې اخته شولو. حضرت هود عَلَيْهِ السَّلَامُ هغوی د عذاب د رانازلیدلو نه هم ویرولو خو هغوی د حضرت هود عَلَيْهِ السَّلَامُ په خبره باندې څه غوږ ونه ګرو. یو ځل د دې قوم معزز نماینده ګان مکې مکرمې ته په دې غرض سره راغلل چې هلته د الله تعالی نه په بیت الله کې د باران دعا اوکړي. کله چې دا نماینده ګان مکې ته راورسیدل نو د هغه ځای ځینو عقل مندو او عرفاء هغوی ته وویل چې تاسو بیرته لاړ شئ او په خپل نبي باندې د باران دعا اوکړئ. هغې خلکو ورته وویل چې هغې سره زمونږ د ښمنې ده. مونږ هغه نه منو نو په هغې دعا څنګه اوغواړو. د هغې نه وروسته په اسمان باندې درې قسمه وریځې رابنکاره شوې یعنې سپینه، توره او سره او بیا هغوی ته وویل شو چې په دې یو قسمه وریځ خوښه کړئ. هغه خلکو سوچ وکړو چې په تورو ورځو کې اوبه کمې وي او سرو کې عموماً عذاب وي. لهذا د سپینو وریځو انتخاب یې وکړو مخکې مخکې دا خلک روان ؤ او شاته شاته پسې وریځې راروانې وي. دې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۰/۶، رقم الحديث: ۳۲۰۵، ومسلم في صحيحه ۶۱۶/۲ رقم الحديث: ۱۵-۸۹۹.

خلكو نور هم د پيغمبر توهين او سپكاوى شروع كړو چې وګوره چې د هغې نه بغير څنګه مونږ پسې وريځې راروانې دي. كله چې خپلو ښارونو ته ورسيدل نو د همغه وريځو نه عذاب رانازل شو او ټول يې هلاک او تباه كړل همدغې واقعې طرف ته په قرآن كې بار بار اشاره شوې چې كومه نبي كريم ﷺ هم واورو له ﴿هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُم بِهِ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِأَمْرِ رَبِّهَا﴾ خلاصه دا چې مونږ ته په كار ده چې د الله تعالى نه بې ويرې او بې غوره نه شو.

## د غيبو پنځه خزانې

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَفَاتِيحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ ثُمَّ |
| حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل: د غيب پنځه خزانې دي بيا نبي كريم |
| قَرَأَ: ﴿ إِنَّ اللهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ ﴾. الْآيَةَ.(۱) |
| ﷺ دا آيت ولوستلو (ترجمه) الله تعالى ته د قيامت علم دى او دغه الله باران راوروي. |

## اصل وچكالي څه ده

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَتِ السَّنَةُ بِأَنْ |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل: سخته وچكالي د هغې نوم نه دى چې |
| لَا تُمْطَرُوا وَ لٰكِنِ السَّنَةُ أَنْ تُمْطَرُوا وَ تُمْطَرُوا وَلَا تُنْبِتُ الْأَرْضُ شَيْئًا.(۲) |
| په تاسو باران ونشي بلكې سخته وچكالي هغه ده چې په تاسو باران د پاسه باران وي خو فصل نه كېږي. |

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## هوا كانو ته كنځل مه كوئ

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: الرِّيحُ مِنْ رَوْحِ اللهِ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې ما د نبي كريم ﷺ نه اوريدلي دي چې: هوا د خداى رحمت دى او هغه |
| تَأْتِي بِالرَّحْمَةِ وَ بِالْعَذَابِ فَلَا تَسُبُّوهَا وَسَلُوا اللهَ مِنْ خَيْرِهَا وَ |
| رحمت هم راوړي او عذاب هم راوړي. تاسو هوا ته بد مه وايى او تاسو د خداى نه د هغې خير غواړئ او |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۱/۸، رقم الحديث ٤٦۲۷، وأحمد في المسند ۲٤/۲.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۲۸/٤ رقم الحديث ٤٤-۲۹۰٤، وأحمد في المسند ۳٤۲/۲

عُوْذُوْا بِهِ مِنْ شَرِّهَا.[1]

د الله تعالى نه د هوا د نقصان نه پناه غواړئ.

﴿۷﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَجُلًا لَعَنَ الرِّيحَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې (يو ځل) د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وړاندې يو سړي په هوا باندې لعنت

فَقَالَ : لَا تَلْعَنُوا الرِّيحَ فَإِنَّهَا

ووئيلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: په هوا باندې لعنت مه وايه ځكه هغه خو (د رحمت يا عذاب د پاره) د خداى د

مَأْمُوْرَةٌ وَ أَنَّهُ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ رَجَعَتِ

طرف نه مقرره ده او كوم سړى چې په داسې څيز باندې لعنت وايي چې د لعنت حقدار نه وي نو راګرځي

اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [2]

دغه لعنت په لعنت كونكي باندې.

﴿۸﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَسُبُّوا الرِّيحَ فَإِذَا

حضرت ابى بن كعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هوا ته بد مه وايي، خو چې كله

رَأَيْتُمْ مَا تَكْرَهُونَ

تاسو دا ووينئ (د دې سوزونكي هوا يا د هغې د يخې چپو په وجه) په تاسو هغه بد لګي (يا د هوا د توند

فَقُوْلُوْا : اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هٰذِهِ الرِّيحِ

والي په وجه تاسو ته تكليف يا نقصان كېږي) نو دا دعاء كوئ چې: اى الله! مونږ ستا نه د دې هوا د خير

وَ خَيْرِ مَا فِيهَا وَ خَيْرِ مَا أُمِرَتْ بِهِ وَ نَعُوذُ

او څه چې د دې د ننه دي د هغې د خير او په څه لپاره دا ليږلى شوي ده د هغې خير غواړو او مونږ پناه غواړو په

بِكَ مِنْ شَرِّ هٰذِهِ الرِّيحِ وَ شَرِّ مَا فِيهَا وَ شَرِّ مَا

تا سره د شر د دې هوا نه او د شر د هغه څه نه چې په دې كې دي او د شر د هغه څه نه چې د كوم شي د پاره

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳۲۸/۵، رقم الحديث ۵۰۹۷، وأحمد في المسند ۲۵۰/۲

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲۱۲/۵، رقم الحديث ۴۹۰۸. والترمذي في السنن ۴ ۳۰۹ رقم الحديث ۱۹۷۸.

أُمِرَتْ بِهِ ". (۱)

چې دا هوا راليږلې شوې ده.

## د تيزې هوا په وخت کې مسنون دعاء

﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مَا هَبَّتْ رِيحٌ قَطُّ إِلَّا جَثَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله به هم تيزه هوا الريدله نونبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کيناستو په دواړو ګونډو

وَقَالَ: اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا رَحْمَةً وَلَا تَجْعَلْهَا عَذَابًا اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا رِيَاحًا

باندې او دادعاءبه يې کوله: اې الله! دا هوا د رحمت کړې، عذاب يې نه کړې. اې الله! دا هوا وګرځې د رحمت

وَلَا تَجْعَلْهَا رِيحًا. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِي كِتَابِ اللهِ تَعَالَى: ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا

او مه يې ګرځوې د عذاب ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د قرآن کريم دا آيت کريمه دی (ترجمه) ومو ليږله

عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا﴾ وَ﴿أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ﴾

په هغوی باندې تيز باد" او وليږلو مونږ په هغوی باندې شنډ باد (يعنې داسې باد چې هغه به بوتې نه

﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ﴾ وَ﴿أَنْ يُرْسِلَ الرِّيَاحَ

ميوه دار کول) او وليږله مونږ په هغوی باندې ميوه راوړونکې بادونه او دا چې ليږي الله تعالى دا هوا (د

مُبَشِّرَاتٍ﴾. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعْوَاتِ الْكَبِيرِ (۱)

باران) زيري راوړونکې.

**توضيح**: **ريحاً**: ريح هوا ته وايي د دې جمعه **رياح** ده چې د ډيرو هواګانو د مجموعې لپاره استعماليږي.

اوس دلته دا بحث او تحقيق دی چې د **ريح** او **رياح** د مواقع په استعمال کې فرق شته يا هيڅ فرق نشته

دی؟ زير بحث حديث کې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تحقيق دا دی چې په دې دواړو الفاظو کې دا فرق

دی چې چرته په قرآن کريم کې د **رياح** لفظ د جمعې په صيغې سره راغلی دی هغه د رحمت او د بشارت

لپاره استعمال شوی دی او چيرته چې د **ريح** لفظ مفرد راغلی دی هغه د عذاب لپاره استعمال شوی

---

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵۲۱/۴ رقم الحديث ۲۲۵۲، وأحمد في المسند ۱۲۳/۵

(۱) أخرجه الشافعي في مسنده ص ۱۸۱.

دی. نو حضرت ابن عباس رضي الله عنه زير بحث روايت کې د استشهاد په توګه د قرآن کريم آيتونه وړاندي کړي دي او په دې خبره يې استدلال کړی دی چې ريح د عذاب لپاره او رياح د رحمت او د بشارت لپاره استعماليږي. امام طحاوی رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د دی استدلال سره اختلاف کړی دی او دا اشکال يې وړاندې کړی دی چې په قرآن کريم کې "ريح" د مفرد صيغي سره د رحمت او بشارت لپاره استعمال شوی دی لکه ﴿وَجَرَيْنَ بِهِم بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ﴾.

همدارنګې په ځينو حديثونو کې د الريح من روح الله الفاظ راغلی دي. چې ترې نه معلوميږي چې د ريح لفظ د رحمت او د خير لپاره استعماليږي. د دې اختلاف په تطبيق کې علامه خطابي رحمه الله وايي چې زير بحث حديث کې دا تاويل ممکن دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د کوم ريح نفي او د رياح دعا کړي ده. د هغې مطلب دا چې يو ريح کې کم خير راځي او رياح چې جمعه ده نو په دغه مجموعه کې ډير خيرونه راځي. نو ځکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم د ريح نفي کړي ده. دا جواب د سينه کشی نه ډير حيثيت نه لري او په دې کې ډير لري تاويل شوی دی. لهذا دا تطبيق مفيد نه دی. علامه طيبی رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنه رائی ته ترجيح ورکړي ده او د امام طحاوی رحمه الله د اشکال يې دا جواب ورکړی دی چې د قرآن عظيم عمومي اصطلاح په خپل ځای باندې صحيح ده او حضرت ابن عباس رضي الله عنه د قرآن کريم اصطلاح واضحه کړي ده. او د قرآن عظيم اصطلاح دا ده چې کله لفظ "ريح" مطلق ذکر شي او د هغې سره څه قيد نه وي نو دا د عذاب لپاره استعماليږي او "رياح" په عامه توګه باندې د رحمت او خير او د بشارت لپاره استعماليږي. (المرقات ۳/۶۲۷).

**بريح طيبة**: کې ريح مطلق ذکر نه دی بلکې طيبه سره مقيد دی او په حديثونو کې هم مطلق ريح د رحمت لپاره نه دی استعمال شوی بلکې "**الريح من روح الله**" مقيد جمله ده يا دا وويل شی چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه د قرآن په اصطلاح کې بيان کړي دی د حديث يې نه دی کړی. بهرحال د حضرت ابن عباس رضي الله عنه رائی بهتره ده. والله اعلم. (المرقات ۳/۶۲۸).

## دوريځې په وخت کې دعاء

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَبْصَرَ نَاشِئًا مِنَ السَّمَاءِ

حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به کله په اسمان کې کنه وريځ وليدله نو (مباح)

| تَعْنِي السَّحَابَ تَرَكَ عَمَلَهُ وَ اسْتَقْبَلَهُ وَ قَالَ : اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا |
|---|
| كارونه به يې پريخودل او متوجي به شو او دا دعاء به يې كوله :اى الله!زه په تا سره پناه غواړم د هغه بدي |
| فِيهِ فَإِنْ كَشَفَهُ حَمِدَ اللهَ |
| نه چې په دې كې دي كه الله تعالى به بغير دباران نه اسمان پاک كړونو دالله حمد او ثنا به نبي عَلَيْهِ السَّلَام بيان |
| وَإِن مَطَرَتْ قَالَ: اللَّهُمَّ سَقْيًا نَافِعًا . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَالشَّافِعِيُّ وَاللَّفْظُ لَهُ[1] |
| كړه او كه باران به شروع شو نو دا دعا به يې كوله " اى الله! نفع وركونكى باران را اوروى. |

**نوټ:** په دې حديث كې د **ناشئا** لفظ راغلى دى دا د **نشاء ينشاء** نه د پيدا كيدلو په معنى دى. كاتبان د دې په ليكلو كې اكثر غلط شوي دى اصل كې **ابصر** جدا صيغه ده او **ناشئا** جدا صيغه د اسم فاعل ده چې د دې تفسير حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په **السحاب** سره كړى دى. (المرقات ۳/٦۳۸).

## د غرهاري (ګړزاري) په وخت كې دعاء

| ﴿۱۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : كَانَ إِذَا سَمِعَ صَوْتَ الرَّعْدِ |
|---|
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله د غرهاري اواز واوريدلو يا به نبي كريم |
| وَ الصَّوَاعِقِ قَالَ : اللَّهُمَّ لَا تَقْتُلْنَا بِغَضَبِكَ |
| صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د برق د راپريوتو معلومات وشو نو دا دعا به يې كوله:اى الله!مونږ مه وژنه په خپل غضب |
| وَلَا تُهْلِكْنَا بِعَذَابِكَ وَ عَافِنَا قَبْلَ ذٰلِكَ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2] |
| باندې او په خپل عذاب مو مه تباه كوه او مونږ په عافيت كې وساته(يعني مونږ ته د عافيت مرګ راكړې |
| مخكې د دې نه چې ستا عذاب رانازل شي). |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٥/٣٣٠، رقم الحديث . ٥٠٩٩ ، وأحمد في المسند ٦/١٩٠

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٥٠٣ رقم الحديث ٣٤٥٠ ، وأحمد في المسند ٢/١٠٠.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د غرهاري (رعد) فرښتي دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَمِعَ الرَّعْدَ تَرَكَ |
| د عبد الله ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دې چې هغه به کله د غرهاري آوازو اوريدونو پرې به يې ښودي |
| الْحَدِيثَ وَ قَالَ : سُبْحَانَ الَّذِي يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ وَ الْمَلَائِكَةُ |
| خبري اترې او وبه يې ويل: پاک دی هغه ذات چې رعد يې تسبيح بيانوي دده په ثناء سره ، او فرښتې د |
| مِنْ خِيفَتِهِ. (۱) |
| الله ثناء بيانوي د الله تعالى د ويرې نه. |

**توضيح** : **الرعد**: د قرآن کريم په تفسير کې د مفسريونو دوه ډلي دي. يوه ډله اولیٰ اَثْری ده يعني کوم چې د حديث او د اثر نه د قرآن تفسير کوي. او هغوی خالص د نقل تابع روان وي. لکه ابن جرير. ابن کثير او قرطبي او داسي نور مفسيرين. دويمه ډله فلسفي ده دا هغه مفسرين دي چې د نقل سره فلسفيانه عقل هم داخلوي لکه فخر الدين رازی رَحِمَهُ اللهُ، قاضی بيضاوی رَحِمَهُ اللهُ او داسي نور دي.

اوس په قرآن کې د ﴿ويسبح الرع﴾ لفظ راغلی دی. د دې باره کې اکثر مفسرين وايي چې څنګه په حديثونو او اثارو کې راغلي دي چې دا د يوې فرښتي نوم دی چې د وريځو په چلولو باندې مقرره ده. د دې په لاس کې يو د پړق والادره ده او د هغې په خوزولو سره په وريځو کې پړق او برق پيدا کوي او خپله دا فرښته د الله تعالی تسبيح بيانوي چې په هغې سره د غرهار اواز پيدا کېږي. د بحث لاندې حديث د همدغه مفسرينو دليل او تائيد دی.

فلسفي مفسرين فرمايي چې د وريځو په خپل مينځ کې يو کيفيت دی. کله چې د ګرم او نرم مزاج والا وريځي خپل مينځ کې ټکر او کړي. نو په هغې سره د برق د کرنټ په پړق پيدا شي او د همغې دا سخت اواز راوزي.

بهرحال په صحابۇ کې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو روايت منقول دی چې د سفر په حالت کې مونږ يو ځل غرهار، پړق او يخنی راګير کړو. نو حضرت کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې کوم سړی د غرهار اواز اوريدلو سره درې ځل دا دا وايي نو هغه د آفتونو او خطرو نه محفوظ او په امن کې وي. نو مونږ هغه

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۹۹۲/۲ ، رقم الحديث ۲٦ ، كتاب الكلام.

دعا لوستل شروع کړه نو ویره لاړه هغه کلمات دا دي : **سبحان الذي من يسبح الرعد بحمده والملائكة من خيفته.** (موطا مالك)

د دینه معلومه شوه چې رعد د فرښتي نوم او غرهار د هغې اواز دی. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د وریځو پړق او غرهار او برق کړک او ترپ او د د اضطراب چپه د چا په زړه کې پیدا کېږي نو په دغه مبارک کلماتو او په دې بابرکت معمولاتو سره ډېره فایده به کېږي.

**حرف آخر** : محترم قارئین! د **کتاب الصلوة** تکمیل د فرښتو تسبیحاتو باندې مشتمل په دغه مبارک روایت باندې کېږي.

زه د خپل پروردګار لاکهه لاکهه شکر ادا کوم چې هغې خاص په خپل فضل او کرم او په خپل خاص نصرت او مدد سره **کتاب الصلوة** او د دې متعلقه بابونو باندې مشتمل د توضیحاتو د دغه برخي تکمیل بندهٔ عاجز ته ورکړو.

**اللهم لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك**

**اللهم صل على حبيبك ونبيك محمد صلى الله عليه وسلم وعلى آله وأصحابه أجمعين**

**آمين يا رب العٰلمين**

**شوال المكرم ۱۴۲۴هـ**



# كتاب الجنائز

## د جنازې بيان

قال الله تعالى: ﴿كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ . وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ . وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ . وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ . إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ﴾ .(سورة القيامة آيت : ٢٦-٣٠).

قال الله تعالى: ﴿وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ﴾. (سورة توبه : ٨٤)

**نوټ**: دا برخه تر كتاب الزكوة پورې د پنجشنبې په ورځ ۴ د رمضان په ۱۴۲۴ هـ كې په حرمين شريفين كې وليكل شو الحمد لله.

**جنائز** د **جنازة** جمعه ده او جنازه كې **جيم** باندې كسره هم ده او فتحه هم ده. مګر كسرې سره لوستل فصيح لغت دى دواړه جائز دي. ځېنو اهل لغتو ليكلي دي چې جيم د فتحي سره د مړي د كټ لپاره ويل كېږي او د جيم كسرې سره د مړي جسد لپاره ويل كېږي. دا خبره دې ياده وي چې د **جنائز** په جمعه لفظ كې **جيم** باندې فقط فتحه جائز ده كسره نشته دى. (المرقات ۵/۴).

جنازه واجب على الكفايه ده البته كله چې حاضره شي نو بيا په حاضرينو باندې فرض عين شي.

## بَابُ عِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَثَوَابِ الْمَرَضِ

## مريض دعيادت بيان

قال الله تعالى: ﴿الم تر الى الذين خرجوا من ديارهم وهم الوف حذر الموت﴾(بقرة: ٢٤٣).

وقال الله تعالى: ﴿قل لن ينفعكم الفرار ان فررتم من الموت او القتل﴾(الاحزاب: ١٦).

دا باب د احاديثو په اعتبار سره ډېر اوږد دى. په ۷۲ حديثونو باندې مشتمل په دې باب كې د عيادت فضيلت او د مرضونو او آلامونو فضيلت بيان شوى دى.

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَطْعِمُوا الْجَائِعَ |
|---|
| حضرت ابو موسى رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل : خوراك وخورئ په وږى (يعني |

وَ عُوْدُوا الْمَرِيْضَ وَ فُكُّوا الْعَانِيْ.[1]

مضطر او مسكين او فقير) باندې، د مريض بيمار پُرسي وكړئ او بندي د (دښمن د قيد نه) ازاد كړئ.

**توضيح: الجائع:** په دې حديث كې د درې پريشان حاله خلكو مدد كول په مسلمانانو باندې لازم كولى كېږي. په دې كې اول سړى فقير او مجبور مسلمان دى. هغې ته خوراك وركول په ټولو مسلمانانو باندې د فرض كفايه په درجه كې ده. خو په دې شرط چې هغه سړى د په اضطراري او مخمصه حالت كې وي. ګينې سنت دې او كه په ګاؤنډ كې يو سړى مالداره وي او نور مفلسان وي او وړى سړى داسې مجبور وي چې د هغې د مرګ خطر وي نو هغه مالداره باندې هغوى ته خوراك وركول فرض عين دى. دا د هغه ځايونو خبره ده چې هلته د هوټل انتظام نه وي، كه هوټل وي هم خو د هغه وړې سره روپۍ نشته دى. (المرقات۵/۴).

**عودا:** دا د بيمار پرسى نه دى د مريض بيمار پرسي كول سنت او د ثواب كار دى. خو دا په هغه صورت كي دى چې كله د مريض څوك پيوا ځى موجود نه وي او د خدمت لپاره څوك موجود نه وي او مريضتيا سخته وي په هغه وخت كې په عامه مسلمانانو باندې بيمار پرسي كول واجب على الكفايه ده. (المرقات۵/۴).

**وفكو العاني: فک يفک نصرنه** د امر صيغه ده بندي د راخلاصولو په معنى كې دى. **عانى** د **معانات** نه دى. دا هغه بندي ته وايي چې د بندي توب په وجه ذليل او خوار وي. (المرقات۵/۴).

ابن ملک وايي چې دد دې نه مراد د كفارو په زندان كې ګير شوى مسلمان دى. په دې حديث كې چې كوم اوامر دې دا د لازم على الكفايه په درجه كې دي. مطلب دا كه څښو مسلمانانو دا كار وكړو نو د نورو مسلمانانو ذمه وارې به ساقط شي ګينې ټول به ګناه ګاران وي. (كذا في تعليق الصبيح)

په يو حديث كې دې چې نبي كريم ﷺ وفرمايل چا چې كوم بندي د كفارو د لاس نه ازاد كړلو نو زه خپله هغه قيدي يمه يعني هغې ډير لوى ثواب وګټلو ګويا كې زه يې د بندي خانې نه راخلاص كړم.

## د يو مسلمان بل مسلمان باندې حقوق

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دى وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل: د يو مسلمان په بل مسلمان باندې

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۱۲، رقم الحديث ۵۶۴۹، ومسلم في صحيحه ۱/۵۰ رقم الحديث ۵۶۴۹.

| خَمْسٌ : رَدُّ السَّلَامِ وَ عِيَادَةُ الْمَرِيضِ وَ اتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ وَ إِجَابَةُ الدَّعْوَةِ |
|---|
| پنځه حقوق دي : ۱: د سلام جواب ورکول، ۲: بیمار پرسي کول، ۳: جنازې سره تلل، ۴: دعوت قبلول ، |
| وَ تَشْمِيتُ الْعَاطِسِ . (۱) |
| ۵: پرنچې کونکي ته جواب ورکول. |

**توضيح**: **حق المسلم**: اسلام د محبت او د آشتي مذهب دی. په دې کې اتحاد او اتفاق او محبت او د ترون ټول اصول متعین دي. دا فقط یو ه ذمه واري نه ده بلکې په دې باندې ډیر ثواب هم ملاؤیږي. د دغه شان کارونو د مسلمانانو په مینځ کې دعوت د دې خبرې دلیل دی چې اسلام یو کامل او پوره بلکې اکمل مذهب دی. چې په هغې کې د انسانانو د ټولو طبقو د ټولو احوالو او د حقوقو حل موجود دی. (المرقات۶/۴).

دلته په دې حدیث کې د پنځه حقوقو ذکر شوی دی. چې په مسلمانانو باندې په خپل مینځ کې لازم کړی شوي دي. په راتلونکو حدیثونوکې د نورو حقوق ذکر هم شوی دی. د یو مسلمان بل مسلمان ته سلام کول سنت او د ثواب کار دی. خو په اسلام کې د دې جواب ورکول واجب دی. په راروان باب السلام کې انشاء الله تفصیل راتلونکی دی. دلته په د جنازې د حقوقو په ضمن کې بالتبع ذکر دی.
سلام کولو کې دا خیال کول په کار دی چې مخې ته فاسق، مجاهر نه وي، رافضي او بدعتي نه وي. که داسې وي نو بیا په سلام کولو کې اولیت کول په کار نه دی. دغه شان په هغه حالاتو کې هم سلام کول په کار نه دی چې په هغې کې جواب ورکول مشکل وي. (المرقات۶/۴).

**عيادة المريض**: ددې نه هم داسې مریض مراد دی کوم چې مسلمان وي رافضي آغاخاني یا بدعتي وقادیاني وغیره نه وي ورنه دداسې خلکو جنازه او عیادت لازم نه دی . (المرقات۶/۴).
**اجابة الدعوة**: د خوراک دعوت قبلول په کار واجب دې خو شرط دا دی چې دعوت په اختیاري توګه باندې وي او په دعوت کې غیر شرعي کارونه نه وي او چاته چې دعوت ورکول کیږي هغه خپله په شرعي توګه باندې معذور او مجبوره نه وي. اصل وجه دا ده چې دا شیان قائم ساتلو سره په مسلمانانو کې محبت ډیریږي. او د دې شیانو پریخودلو سره نفرت پیدا کیږي. نو ځکه اسلام لاربنود نه کړې ده او بیمار پرسي، سلام کول او د دعوت قبلولو ترغیب یې ورکړی دی. (المرقات۵/۴).

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۲/۳ رقم الحديث ۱۲۴۰، ومسلم في صحيحه ۱۷۰۴/۴ رقم الحديث ۵۰۳۰، وابن ماجه ۴۶۱/۱ رقم الحديث ۱۴۳۵

وتشمیت: عاطس، پرنچې کونکې ته وایي او په دې باندې یرحمك الله سره جواب ورکولو ته تشمیت وایي. دا جوب ورکول هم واجب دی خو شرط دا دی چې پرنچې کونکی په پرنچې باندې الحمدلله ووایي کنې هیڅ لازمه نه ده. دا خبره هم یاده وساتئ چې د پرنچې جواب ورکول یو ځل واجب دی. دوه یا درې ځله لازم نه دی. (المرقات ۴/۶).

## د مسلمان په مسلمان شپږ حقوق

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتٌّ |
| ابو هریره رضی الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دیو مسلمان په بل مسلمان باندې شپږ حقوق |
| قِيلَ : مَا هُنَّ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ؟ قَالَ : إِذَا لَقِيتَهُ |
| دي: عرض وکړی شو چې یارسول الله! هغه څه دي؟ چې کله تاسو دیو مسلمان سره ملاقات کوي نو هغه |
| فَسَلِّمْ عَلَيْهِ وَ إِذَا دَعَاكَ فَأَجِبْهُ وَ إِذَا |
| ته سلام کوی، ۲: تاسو چې څوک (مرستي یا ضیافت ته) دعوت کړي نو هغه قبول کړی، ۳: چې په تاسو |
| اسْتَنْصَحَكَ فَانْصَحْ لَهُ وَ إِذَا عَطَسَ فَحَمِدَ اللّٰهَ |
| کې څوک ښیګړه غواړي نو د هغه په حق کې ښیګړه کوی، ۴: څوک چې پرنچی وکړي او الحمد لله ووایي |
| فَشَمِّتْهُ وَ إِذَا مَرِضَ فَعُدْهُ |
| نو (په یرحمک الله سره) هغه ته جواب ورکړی، ۵: څوک چې مریض شي نو د هغې بیمار پرسي کوی، |
| وَ إِذَا مَاتَ فَاتَّبِعْهُ .[1] |
| ۶: څوک چې مړ شي نو (د هغه د جنازي مونځ او خښولو لپاره) د هغه سره ځی. |

**توضیح: واذا ستضحك**: استنصاح د باب استفعال نه د نصیحت طلب کولو په معنی کې دی. امام راغب رحمه الله وایي چې "**نصح**" د قول او فعل نه د څه نیکی او د خیر کولو نوم دی. په دې لفظ کې ټول ښې مشورې او د ټولو نیکیو لاربنونه شامل ده. (المرقات ۴/۶).

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۷۰۵ رقم الحديث ٥ ۲۱۶۲، والنسائي ۴/۵۳ رقم الحديث ۱۹۳۸، وابن ماجه ۱/۴٦۱ رقم الحديث ۱۴۳۳.

**سوال**: زیر بحث حدیث کې د شپږو حقوقو ذکر دی خو ددې نه مخکې حدیث کې د پنځو حقوقو ذکر ؤو دا تعارض دی د دې څه جواب دی؟

**جواب**: دا تعارض نه دی ځکه یو عدد د بل عدد منافی نه وي.

**دويم جواب**: دا دی چې په دې حدیثونو کې حصر بیانول مقصود نه دی بلکې په مختلفو موقعو کې د مختلفو نیکیو او د حقوق ذکر دی.

**دريم جواب**: دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته څنګه د وحي په ذریعې سره حقوق وویل شول. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت ته ویلي دي. نو اول د الله تعالی په نزد د حقوق تعداد کم ویل شوی وروسته ډیر شول. (المرقات۴/۷).

## داوه شیانو حکم کول او داوه شیانو نه منع کول

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ |
| براءبن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته داوه شیانو حکم کړی او داوه شیانو نه یې منع |
| أَمَرَنَا : بِعِيَادَةِ الْمَرِيضِ وَ اتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَ تَشْمِيتِ الْعَاطِسِ |
| کړې یو: مونږ ته یې امر کړي ۱: بیمار پرسي کول ۲: د جنازې سره تلل ۳: پرنجې کونکي ته جواب ورکول |
| وَ رَدِّ السَّلَامِ وَ إِجَابَةِ الدَّاعِي وَ إِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَ نَصْرِ الْمَظْلُومِ |
| ۴: د سلام جواب ورکول ۵: درابلونکي دعوت قبلول ۶: د قسم خوړونکي قسم پوره کول ۷: او د مظلوم مدد |
| وَ نَهَانَا عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ وَ عَنِ الْحَرِيرِ |
| کول. او منع کړې یې یو: ۱: د سرو زرو ګوتمه په لاس کولو نه. ۲: د ریښم جامې اغوستلو نه. ۳: د غټو |
| و الْإِسْتَبْرَقِ وَ الدِّيبَاجِ وَ الْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ |
| ریښمو د جامو استعمالولو نه. ۴: نري ریښم د جامې اغوستلو نه. ۵: سور زین پوش د استعمالولو نه. |
| وَ الْقَسِّيِّ وَ آنِيَةِ الْفِضَّةِ وَ فِي رِوَايَةٍ |
| ۶: د کتان جامې اغوستلو نه ۷: د سپینو زرو لوخو د استعمالولو نه. په یو روایت کې دا الفاظ هم دی چې |
| وَ عَنِ الشُّرْبِ فِي الْفِضَّةِ فَإِنَّهُ مَنْ شَرِبَ فِيهَا فِي الدُّنْيَا |
| په سپینو زرو لوخو کې د اوبو څکلو نه (هم منع کړې ده) ځکه کوم سړي چې په دنیا کې د سپینو زرو لوخي |

| لَمْ | يَشْرَبْ | فِيْهَا | فِي | الْآخِرَةِ | . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
|---|---|---|---|---|---|
| کې او به و څکي نو په آخرت کې به ورته د سپينو زرو لوخي کې د اوبو څکل نه نصيب کيږي. | | | | | |

**توضيح : وابرار المقسم** :په دې حديث کې د **ابرار المقسم** اضافه ده. يعنې قسم کونکي ته قسم پوره کول او رښتيا کول مثلاً يو سړي بل سړي ته وويل چې تر څو پورې ته زما خبره ونه منې نو په خدای قسم زه خوراک نه کوم. او س هغه سړي له خبره منل په کار ده د دې لپاره چې د هغې قسم پوره شي او هغه حانث نه وي. په دې کې شرط دا دی چې هغه کار د دې سړي په اوس کې وي. او هغه په دې قادر نه وي نو مجبوره کولی نه شي. (المرقات۴/۷).

ځېنو علماؤ د دې دا مطلب هم بيان کړی دی چې يو سړی په بل سړي باندې قسم وخوري چې نن شپه زمونږ سره تيره کړه. زه تا ته قسم درکوم چې زمونږ سره خواړه وخوره نو د هغه سړي لپاره مستحب دي چې ايسار شي او خوړه وخوري. د حديث د الفاظو نه دا دواړه مطلبونه اخستل کيدلی شي.

**ونصر المظلوم**:د مظلوم نه مراد مسلمان او غير مسلم ذمي دواړه کيدلی شي او دا مرسته د استعداد مطابق واجبه ده. بيا دا مدد هم عام دی چې د قول سره وي يا د فعل سره وي يا په بل صورت کې وي **"الا تفعلوه تکن فتنة في الارض وفساد عريض"** (المرقات۴/۸).يعنې که تاسو د مظلوم مرسته او نکړه نو په زمکه باندې فتنې خورې شي او اوږد فساد به خور شي.

**خاتم الذهب**:د سرو زرو ګوتمه په ګوتو کول د ښځو لپاره جائز دي مګر د سړو لپاره حرام دي. د سړو لپاره د وسپينو ګوتمه په لاس کول هم ناجائزه ده. شوافع يې جائز ګڼي. علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې شيانو د حرمت او د حلت درجات مختلف دي. نو د سړو لپاره د سپينو زرو ګوتمه په لاس کول جائز ده او د سرو او د سپينو زرو لوخي د سړو او د ښځو دواړو لپاره حرام دي. (المرقات۴/۹).

**والاستبرق**:اعلی ريښمو ته **استبرق** وايي. د هغې نه په دويم نمبر باندې ديباج دی او په دريمه درجه کې القسي ده. دا ټول د حرير قسمونه دي. چې د ښځو لپاره جائز او د سړو لپاره حرام دي. (المرقات۴/۸).

**الميثرة الحمراء**:ميثره د هغه زين پوش نوم چې هغه د مالوچو نه ډک شوی وي او وړوکی شان وي. چې هغه د اسپي يا د نورو څارو په زين باندې اچولی کيږي. او په هغې باندې کيني. هغې ته نمده هم وايي.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۱۰۲ رقم الحديث ۱۲۳۹، ومسلم في صحيحه ۳/۱۲۳۰ رقم الحديث ۳/۲۰۶۶؛ والترمذي في السنن ۱۵۸/۵ رقم الحديث ۲۸۰۹، والنسائي ۴/۵۴ رقم الحديث ۱۹۳۹

د دنیادارو خلکو عادت دی چې د تکبر او د فخر او د مباهاتو له وجې نه مبثره باندې کینې. او س مسئله دا ده چې که دا زین پوش د ریښمو وی د دې استعمال حرام دی. اګر که سُر رنګي وي یا سپین رنګي وي یا تور وي. خو که ریښم نه وي نو بیا په سر رنګ استعمالول کې ممانعت راغلی دی. ځکه سر رنګ باندې ناسته مکروه دې حرام نه دي. او د ارجوان قید ځکه دی چې په هغې کې ریښم نه وي.

قاضی عیاض رَحِمَهُ اللهُ وایي چې په حدیث د ارجوان لفظ د غالب استعمالول په توګه راغلی دی. ځکه عجمو به سر استعمالولو چې د ریښمو ؤو. (المرقات۴/۸).

**القسي**: ریښم او کتان سره په ګډون یوه ټوټه به جوړیدله. دا د قس ارخ ته منسوب ده. چې د مصر د سمندر په غاړه د یو ځای نوم دی. په ریښمو ټوټو کې به دا بیکاره ټوټه وه. لم یشرب في الآخرة.

**سوال**: په دې حدیث کې د ظاهري الفاظو نه معلومیږي چې هغه سړی به جنت ته نه ځي ځکه دا نعمتونه د جنت دي د کوم نه چې دا سړی محرومه شو حال دا چې لوي ګناهونو ارتکاب کونکی سړی کافر نه وي؟

**جواب**: علامه مظهري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کوم سړې د استعمالول حلال وګڼل نو هغه کافر دی او که چا حلال ونه ګڼل نو بیا دا حدیث په زجر او توبیخ او په تشدید او تغلیظ باندې محمول دی.

ځینې علماء دا هم لیکي چې دا سړی جنت ته داخل شي نو د دې نعمت نه به محرومه وي او د غه شان د دې سړي د زړه او د مازغو نه به دا تصور وځي، نه به خواهش وي نه به څه شی ورته ملاویږي.

دریم احتمال دا دی چې جنت ته د داخلیدلو نه وروسته به څه لږه موده پورې دا سړی د دی نعمتونو نه محرومه وي. د همیش لپاره به نه وي. (المرقات۴/۹).

## د بیمار پرسۍ فضیلت

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا عَادَ أَخَاهُ |
| ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: یو مسلمان چې بیمار پرسي وکړي د یو ورور |
| الْمُسْلِمَ لَمْ يَزَلْ فِي خُرْفَةِ الْجَنَّةِ حَتّٰى |
| مسلمان نو (ګویا کې) هغه په جنت کې د میوؤ په خوراک کې (مشغول) دی تردې چې هغه (د بیمار |
| يَرْجِعَ . (١) |
| پرسۍ) نه بیرته راشي. |

---

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ٤ /١٩٨٩، رقم الحديث ٤١-٢٥٦٨، والترمذي في السنن ٣ ٢٩٩ رقم الحديث ٩٦٧، وابن ماجه ١ ٤٦٣، رقم الحديث ١٤٤٢ ،وأحمد في المسند ٥/٢٧٩ .

**توضيح** : **خرفة الجَنَّة: خرفه** "خ" باندې ضمه ده او را باندې سكون ده. اصل كې د باغ په ديوال باندې كيناستل او د ميوؤ شكولو او چاڼ كولو په معنى كې راځي. دلته د باغ معنى اخستل ډېره واضحه ده. يعنې د يو مسلمان بيمار پرسۍ لپاره تلل او هلته كيناستل داسې دي چې ګويا كې دا سړى د جنت په باغ كې ناست دى او ميوې راشكوي او هغه خوري. (المرقات ۴/۹).

## د بيمار پرسۍ لوي اهميت

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُوْلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى به د قيامت په ورځ (بنده ته) وفرمايي |
| يَا ابْنَ آدَمَ مَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِي قَالَ : يَا رَبِّ |
| اى ابن آدم! زه مريض شوى وم نو تا زما بيمار پرسۍ نه وه كړي؟ بنده به عرض وكړي چې: اى زما ربه! |
| كَيْفَ أَعُوْدُكَ وَ أَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ |
| ما به ستا بيمار پرسي څنګه كړې وى ته خو د دوا ړو جهانو پروردګار يې (او د بيمارۍ نه پاك يې) الله تعالى |
| قَالَ : أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ عَبْدِي فُلَانًا مَرِضَ فَلَمْ تَعُدْهُ ؟ أَمَا عَلِمْتَ |
| به ورته وفرمايي آيا ته خبر نه وې چې زما فلاني بنده مريض ؤ؟ او تا د هغه بيمار پرسي نه وه كړي آيا ته خبر نه |
| أَنَّكَ لَوْ عُدْتَهُ لَوَجَدْتَنِي عِنْدَهُ ؟ |
| وې چې كه تا د هغه مريض بنده بيمار پرسي كړې وى نو زما (يعنې زما رضا) به دې موندلى وى (بيا به الله |
| يَا ابْنَ آدَمَ اسْتَطْعَمْتُكَ فَلَمْ تُطْعِمْنِي قَالَ : |
| وفرمايي: اى ابن آدم! ما ستا نه خوراک غوښتى ؤ او تا ماته خوراک نه ؤ وركړى؟ بنده به عرض وكړي |
| يَا رَبِّ كَيْفَ أُطْعِمُكَ وَ أَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ |
| چې اى الله! ما تا ته څنګه خوراک دركړې وې ته خو د دواړو جهانو پروردګار يې (او د هيڅ شي محتاج نه يې) |
| قَالَ : أَمَا عَلِمْتَ أَنَّهُ اسْتَطْعَمَكَ عَبْدِي فُلَانٌ فَلَمْ تُطْعِمْهُ ؟ |
| الله به ورته وفرمايي: آيا تا ته ياد نه دي چې زما فلاني بنده تا نه خوراک غوښتى ؤ او تا هغه ته نه ؤ وركړى |
| أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ أَطْعَمْتَهُ لَوَجَدْتَ ذَلِكَ عِنْدِي ؟ |
| آيا ته خبر نه وې چې تا هغه ته خوراک وركړى وى نو هغه به دې (يعنې د هغې ثواب) به دې ما سره موندلى |

يَا ابْنَ آدَمَ اسْتَسْقَيْتُكَ فَلَمْ تَسْقِنِي

وې بيابه الله تعالى وفرمايي: اې ابن آدم! ماستانه اوبه غوښتې وې او تا ما باندې اوبه ونه څکولې؟ بنده

قَالَ : يَا رَبِّ كَيْفَ أَسْقِيكَ وَ أَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ ؟

به ووايي: چې اې زما پروردګاره! ما به په تا باندې اوبه څنګه څکولې وې؟ ته خو دوا ړه جهانونو پروردګار

قَالَ :

يې (يعنې ستا نه اوبو ته ضرورت شته او نه دې بل څه شي ته ضرورت شته) الله تعالى به وفرمايي: زما

اسْتَسْقَاكَ عَبْدِي فُلَانٌ فَلَمْ تَسْقِهِ أَمَا عَلِمْتَ إِنَّكَ لَوْ سَقَيْتَهُ

فلاني بنده تا نه اوبه غوښتې وې او تا نه وې ورکړې آيا تا ته خبر نه وې چې که تا په هغه باندې اوبه څکولې

وَجَدْتَ ذٰلِكَ عِنْدِي.[1]

وې نو هغه (يعنې د هغې ثواب) به دې ما سره موندلې وې.

**توضيح: لوجدتنى عنده**: يعنې که د هغه مجبوره بيمارپرسي دې کړې وې نو د هغې غمجن او مات شوى زړه به دې ما سره موندلى وى. يو حديث کې دى "**اناعندالمنکسرة قلوبهم لاجلي**".

په دې حديث کې د درې خبرو بيان دى: ۱: مريض بيمار پرسي ۲: وږي باندې خوراک کول ۳: ک او تږي باندې اوبه څکول خو د ثواب په بيانولو کې فرق دى ځکه اوبه او خوراک ورکونکي ته وويل شو چې: "**لوجدت ذلك عندي**" يعنې د دې ثواب به تا ته زما سره ملاؤ شوى وى. خو بيمار پرسي کونکي ته وويل شو چې تا به هلته زه موندلى وى. بهرحال په دې حديث کې په ډيرو ځايونو کې داسې الفاظ راغلي دي چې د الله تعالى د صفاتو سره منافي دي. نو د هغې جواب دا دى چې دا ټول به د: **مايليق بشانه** د لاندې وي. يعنې څنګه چې د الله تعالى د شان سره مناسب دې همغه مراد دي. (المرقات ۴/۱۰).

## د الله تعالى د رحمت نه نااميده کيدل په کار نه دي

﴿۷﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ :أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلٰى أَعْرَابِيٍّ يَعُودُهُ

ابن عباس رضي الله عنه راوي دى چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو خل ديو بانده چې خواته د بيمارپرسي د پاره لاړو

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۹۹۰/۴ رقم الحديث ۴۳ ۶۵۶۹

| وَ كَانَ إِذَا دَخَلَ عَلَى مَرِيضٍ يَعُودُهُ |
|---|
| دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (طريقه به دا وه) چې كله به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د يو مريض پوښتنې ته تللو نو هغه ته |
| قَالَ : لَا بَأْسَ طَهُورٌ |
| به يې فرمايل چې: هيڅ ويره نشته (يعني ديته غم مه كوه خكه) دا مريضتيا (د گناهونه) پاك كونكې ده |
| إِنْ شَاءَ اللهُ فَقَالَ لَهُ : |
| كه الله تعالى وغواړي نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (هغه وخت كې) هغه بانده چې ته هم دغه شان وفرمايل |
| لَا بَأْسَ طَهُورٌ إِنْ شَاءَ اللهُ. قَالَ: |
| چې هيڅ ويره نشته دې دا مريضتيا (د گناهونه) پاك كونكې ده كه الله تعالى وغواړي". اعرابي وويل |
| كَلَّا بَلْ حُمَّى تَفُورُ عَلَى شَيْخٍ كَبِيرٍ تُزِيرُهُ الْقُبُورَ . |
| چې هيڅكله نه! بلكې دا تبه ده چې لويو بوډاگانو باندې راغلې ده او په هغوى به د قبرزيارت كوي (يعني |
| فَقَالَ : فَنَعَمْ إِذاً . (۱) |
| مړه به يې كړي) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې واوريد ونو وې فرمايل چې ښه كه ته داگڼې نو هم دغه شان صحيح ده. |

**توضيح**: اعرابي: د بانده چې په معنى كې دى. ددې نه امت ته دا تعليم وركړى شو چې اعلىٰ او معزز انسان ته په كار دې چې كله كله د ادنىٰ او كمزورې او فقير سړې بيمار پرسې كوې لكه څنگه چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نا اشنا بانده چې بيمار پرسې وكړه. (المرقات ۴/۱۱).

**لا بأس طهور ان شاء الله**: يعني هيڅ پرواه مه كوه ان شاء الله صحيح سلامت يې. د دې تبې په وجه به ستا گناهونه پاك شي پس صبر وكړه د دې تبې فايدې به در ورسيږي. (المرقات ۴/۱۱).

**قال كلا**: دا جټ دهقان (زميندار) ؤو چې د بيمار پرسى او د ټولنې د آدابو نه سره ډير واقف نه ؤو. هغې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نصيحت قبول نكړو بلكې بې صبري يې وكړه او د كاهنانو په شان مسجع كلام يې استعمال كړو او دا نعمت يې رد كړو كوم چې ورته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وركړو چې صحيح يم او گناه به ومينځل شي بلكې داسې نه ده بلكې لوې بوده گان په جوش كې دې اوس به قبرونه د هغوى زيارت وكړي يعني نژدې ده چې هغوى به د قبرونو زيارت وكړي يعني مړه به شي. (المرقات ۴/۱۱).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۳۱ رقم الحديث ۵۶۶۲ ، وأحمد في المسند ۲۵۰۰۳

**فنعم اذا:** دلته د دی سړي د جواب ټول مضمون مقدر دی یعنې ما تاته د صبر کولو وویل او تبه مې درته د اجر او ثواب ذریعه وویله خو تا رد کړه نو صحیح ده. تبه به ستا د ګناهونو کفاره نه شي او ته به مړ شي. هغه دهقان نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ته غصه وروستله نو نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ورته دا خبره وکړه. (المرقات۱۲/۴).

**فنعم اذا:** د دې ترجمه دا ده "یعنې ښه ده چې ته دا ګڼې نو همدغه صحیح ده" اذاً په یوه نسخه کې "اذن" د نون سره دی.

## د مریض د دمولو د شفاء نبوي دعاء

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اشْتَكَى مِنَّا إِنْسَانٌ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰہُ عَنْهَا وایي چې د نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ (طریقه دا وه) چې کله به په مونږ کې څوک مریض |
| مَسَحَهُ بِيَمِينِهِ ثُمَّ قَالَ: أَذْهِبِ الْبَأْسَ رَبَّ النَّاسِ |
| ؤ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به خپل ښي لاس پرې تیر کړو او دا دعاء به یې فرمایله: ای د خلکو پروردګاره! مریضتیا لرې |
| وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| کړې او شفاء ورکړې هم ته شفاء ورکونکی یې ستا نه بغیر د بل چا شفاء دا سې نه ده چې هغه ناروغي لرې کړې. |

## په دم سره د دانو او زخمونو علاج

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: كَانَ إِذَا اشْتَكَى الْإِنْسَانُ الشَّيْءَ مِنْهُ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰہُ عَنْهَا وایي چې کله به یو کس د بدن د یوې برخې (د درد) شکایت وکړو یا به (د هغه د |
| أَوْ كَانَتْ بِهِ قَرْحَةٌ أَوْ جُرْحٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأُصْبُعِهِ: |
| بدن په یو اندام باندې) دانه یا زخم ؤ نو نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ به په خپلې ګوتې سره اشاره وکړه او دا دعاء |
| بِسْمِ اللّٰهِ تُرْبَةُ أَرْضِنَا بِرِيقَةِ بَعْضِنَا |
| به یې کوله: د خدای په نوم برکت حاصلوم دا خاوره زمونږ د ځینو سړو لاړو سره ګکړه (دا مونږ ځکه وایو چې |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۱/۱۰، رقم الحديث ۵۶۷۵، ومسلم في صحيحه ۴، ۱۲۷۱ رقم الحديث۴۶-۲۱۹۱، وابوداؤد في السنن ۲۱۷/۴ رقم الحديث ۳۸۹۰، والترمذي ۳۰۳/۳ رقم الحديث ۹۷۳، وابن ماجه ۵۱۷/۱ رقم الحديث ۱۶۱۹، وأحمد في المسند ۷۶/۱.

لِيُشْفَى سَقِيمُنَا بِإِذْنِ رَبِّنَا.[1]

د) پروردګار په حکم سره زمونږ مريضتيا ښه شي.

**توضيح**: **بأصبعه**: يعنې په ګوتې سره به يې اشاره وکړه او د تبرک په توګه به يې بسم الله ولوستله. (المرقات ۴/۱۳).

**تربة ارضنا**: امکان لري چې ددې نه خاص د مديني زمکه مراد وي او کيدلی شي چې عامه زمکه ترينه مراد وي. (المرقات ۴/۱۳).

**بريقة بعضنا**: **اي ممزوجة بريقة بعضنا**: ريق لاړي ته وايي. يعنې د دم کولو وخت کې به نبي کريم ﷺ په مريض باندې لاړې توکلې او د لاړې څاڅکي به يې ورته کول. (المرقات ۴/۱۳).
علامه قرطبی رحمه الله وايي چې د دې حديث نه ثابت شو چې د هر قِسمه درد لپاره دم کول او لاړې تُکل او پوکې وهل جائز دي او دا د صحابو په نزد عامه وه او ټولو ته ددې علم وو. (المرقات ۴/۱۳).
علامه اشرف علی تهانوي رحمه الله وايي چې د دې حديث لاړې تکل ثابتيږي. خو په دې شرط چې په هغې کې جادو يا نور کلمات نه وي. علماؤ ليکلي دی چې د کومو کلماتو معنی واضحه نه وي يا پکې شرک وي نو په داسې کلماتو باندې هم دم کول جائز نه دي. خو چې نبي کريم ﷺ د کوم دم کولو اجازت ورکړی دی او په هغې کې د شرک کلمه هم نه وي مګر معنی واضحه نه وي لکه نبي کريم ﷺ د لړم د منتر اجازت کړی دی لکه "**شجة قرنية ملحة بحر**". د نبي کريم ﷺ د دم کولو طريقه به داسې وه چې نبي کريم ﷺ به اول په ګوته باندې د خولې لاړې لګولې بيا به يې هغه په خاوره باندې کيخوده. کله به چې هغه د خاورې سره کلک شو نو هغه به يې د مريض د درد په ځای باندې کيخودو او په حديث کې به يې ذکر شوې دعا لوستله. بهرحال پاس ذکر شوی عمل يقين سره کول په کار دي فايده به يې ضرور وي. لطيفه کې مې د خپل مشر استاذ نه اوريدلي چې يو ځل يو ولي الله پخوا زمانه کې مريضان دمول يو مشهور فلسفي ورته راغلو او ناڅاپه يې د استهزاء په توګه وويل

**اذا كرفض فتلاشى** يعنې ته د اپو کې کوي د اپو کی خو هواده چې د خُلې نه ووځي او ختم شي، د دې به څه اثر وي. هغه ولي الله دې فلسفي ته ديرې غلطي کنځلي وکړې نو هغه ډير غصه شو او مخ يې سور شو او د څټ رګونه يې وپړسيدل دې ولي الله ورته وويل چې په تا څه وشول ولي دومره غصه شوې؟ هغه فلسفي

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۶/۱۰ ، رقم الحديث ۵۷۴۵ ،ومسلم في صحيحه ۱۱۶۳/٤ رقم الحديث ۵٤-۲۱۹٤ ،وابوداؤد في السنن ۲۱۹/٤ رقم الحديث ۳۸۹۵ ، وابن ماجه ۱۱۶۳/۲ رقم الحديث ۳۵۲۱ ،وأحمد في المسند ۹۳/٦ .

وويل چې اوس لا تپوس هم كوي تا څومره غلطي كنځلي وكړلي. الله والا ورته وويل چې "اذا ترفض فتلاشى" يعني دا كنځلي خو هم هوا ده چې د خلي نه ووځي نو ختمې شي. نو هغه فلسفي ورته وويل چې نا! زما په بدن يې خو ډير اثر وكړو. نو هله ورته هغه د الله والا وويل چې زما د خبرو په تا دومره اثر وشو نو د الله تعالى په كلام كې به څومره اثر وي؟

## د قرآن كريم په آيتونو سره دَم كول جائز دي

| |
|---|
| ﴿١٠﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اشْتَكَى نَفَثَ عَلَى نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې كله به نبي كريم صلى الله عليه وسلم مريض شونو په معوذاتو باندې به يې ځان دمولو |
| وَ مَسَحَ عَنْهُ بِيَدِهِ |
| او خپل نبي لاس به يې په بدن باندې (چې تر كوم ځاې پورې به رسيدو) را ښكلو به يې نو نبي عليه السلام |
| فَلَمَّا اشْتَكَى وَجَعَهُ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ كُنْتُ أَنْفِثُ عَلَيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ |
| په هغه مرض كې اخته شو چې په كوم كې هغه مړ شونو ما به معوذات لوستل او په نبي كريم صلى الله عليه وسلم |
| الَّتِي كَانَ يَنْفِثُ |
| باندې به مې دمول لكه څنګه چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم خپله په ځان باندې معوذات دمول. همدغه |
| وَ أَمْسَحُ بِيَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| شان ما به د نبي عليه السلام په لاس دمول او د نبي عليه السلام لاس به مې د نبي عليه السلام په بدن راخكل همدغه |
| شان به ما معوذات لوستل او د نبي عليه السلام په لاس به مې دمول او بيا به نبي عليه السلام دواړه لاسونه په |
| وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَتْ : كَانَ إِذَا |
| خپل بدن باندې راخكل د مسلم په يو روايت كې د عائشې رضي الله عنها نه دا منقول دي چې: كله به څوك |
| مَرِضَ أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِهِ نَفَثَ عَلَيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ.[1] |
| مريض شو په كور كې نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم به معوذات ولوستل او په هغې به يې دم كړو. |

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٢٠٦/١٠ ، رقم الحديث ٥٧٤٥، ومسلم في صحيحه ١٧٢٤/٤ رقم الحديث ٥٤ -٢١٩٤ ، وابوداؤد في السنن ٢١٩/٤ رقم الحديث ٣٨٩٥ ، وابن ماجه ٢ /١١٦٣رقم الحديث ٣٥٢١ ، وأحمد في المسند ٩٣/٦

**توضیح: المعوذات:** د دې نه سورة فلق او سورة الناس مراد دی. دا دواړه سورتونه دي. په حديث کې دا دواړه د جمعه صيغې سره ذکر شوي دي. دا د هغه سورتونو د آيتونو په وجه دې چې يولس (۱۱) دي. ځينو په معوذاتو کې قل هو الله احد هم شامل کړی دی. لهذا د جمعه صيغه صحيح ده. ځينو سورة کافرون هم شامل کړی دی. (المرقات ۴/۱۵).

**نفث:** دم سره لږې شريکول او د لاړو څاڅکي کولو ته نفث وايي. (المرقات ۴/۱۵).

**بيد النبي:** دا د کمال ادب او د کمال برکت اړخ ته اشاره ده چې حضرت عائشې رضي الله عنها به خپله لوستل خو کوم برکت چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په لاسونو کې ؤ هغه بل ځای کې نه ؤ. لهذا د هم د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په لاس به يې دم کولو او د نبي کريم صلی الله علیه وسلم لاس به يې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په بدن مبارک باندې مګلو. د دې حديث نه دم کول ثابتيږي انکار کونکي بې کاره خلک دي. (المرقات ۴/۱۵).

## هر قسمه درد ختمولو لپاره نبوي دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ أَنَّهُ شَكَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَجَعًا |
| دعثمان ابن ابي العاص رضي الله عنه نه روايت دی چې يو ځل يې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته د درد شکايت |
| يَجِدُهُ فِي جَسَدِهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| وکړو چې هغې د خپل بدن (په يوه برخه) کې محسوساوه. و نبي کريم صلی الله علیه وسلم ده ته وويل چې |
| " ضَعْ يَدَكَ عَلَى الَّذِي يَأْلَمُ مِنْ جَسَدِكَ وَ قُلْ : بِسْمِ اللهِ ثَلَاثًا وَ |
| کيږده لاس په هغه ځای باندې چېرته چې ستا په بدن کې درد دی او (اول) درې ځله بسم الله ووايه او بيا |
| قُلْ سَبْعَ مَرَّاتٍ : أَعُوذُ بِعِزَّةِ اللهِ وَ قُدْرَتِهِ |
| اوه ځله دا ووايه: زه د الله نه د هغه د عزت او د هغه د قدرت په ذريعې د هغه بدی (يعني درد) نه پناه غواړم |
| مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ وَ أُحَاذِرُ ". |
| چې زه يې (په دغه وخت) کې په خپل بدن کې محسوسومه او (بيا لپاره د دې د ډيروالي نه) ويره کوم. |
| قَالَ : فَفَعَلْتُ |
| حضرت عثمان رضي الله عنه وايي چې (د نبي کريم صلی الله علیه وسلم د ارشاد مطابق) ما هم دغه شان وکړل نو الله |

فَأَذْهَبَ اللهُ مَا كَانَ بِي. (۱)

تعالى زما تكليف لرې كړو.

## د حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ دعا

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ جِبْرِيْلَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ځل جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو او (د مزاج

فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ أَشْتَكَيْتَ؟ فَقَالَ: نَعَمْ. قَالَ:

پرسې په توګه يې) وويل چې: اى محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! آيا ته ناروغه يې؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې آو

بِسْمِ اللهِ أَرْقِيْكَ

جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وويل چې د خداى په نوم تا باندې دم (علاج) كوم چې تا ته تكليف دركوي. او د

مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيْكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنٍ حَاسِدٍ اللهُ يَشْفِيْكَ بِسْمِ اللهِ

هر هغه سړي د بدو نه يا د هرى كينه ګري سترګي نه دې الله تا ته شفاء دركړي. د خداى په نوم تا باندې

أَرْقِيْكَ. (۲)

دم (علاج) كوم.

**توضيح**: پاس حديث كې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عجيبه دعا ذكر ده چې د هر قسمه دردونو لپاره اكسير (فايده وركونكې) ده. د بحث لاندې حديث كې د حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه دعا ذكر ده چې هغې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د علالت په دوران كې په نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د علاج په توګه دم كړي وه. دا هم ژوند ته فائده وركونكې ده. خو د دې دعاګانو لپاره يو پوره يقين په كار دى. ځكه د تردد او شك په وخت كې هيڅ دعا اثر نه كوي. دويمه خبره دا ده چې سړى دا دعاګانې دوام داره ووايي. دا نه چې يو ځل دوه يې ووايي او بيا د اثر په انتظار كې وي. ځكه په دنيوي دواګانو كې دا تجربه ده چې هغه دوام داره استعمالول غواړي. نو د روحاني دعاګانو لپاره هم ضروري ده چې كم از كم سړى تر اووه

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۲۸/٤ رقم الحديث ٦٧ -۲۲۰۲، وأبوداود في السنن ۲۱۷/٤ رقم الحديث ۳۸۹۱ ،والترمذي ۳۵۵/٤ رقم الحديث ۲۰۸۰، وابن ماجه ۱۱٦۳/۲ رقم الحديث ۳۵۲۲ وأحمد في المسند ۳۹۰/٦ .

(۲) أخرجه مسلم ۷۸۱۸/٤ رقم الحديث ٤۰- ۲۱۸٦ ، وابن ماجه في السنن ۱۱٦۵/۲ رقم الحديث ۳۵۲۷ ، وأحمد في المسند ۱٦۰/٦ .

ورځو پورې یا ددې نه ډیر تر څلویښتو (۴۰) ورځو پورې دا وواییې. او بیا د اثر انتظار کوي. نو دا دعاګاني کله هم اثر نه کوي.

مفسرینو لیکلي دي چې د حضرت موسی عَلَیْهِالسَّلَامُ دعا الله قبوله کړه مګر د هغې اثر د څلویښت (۴۰) ورځو نه وروسته ظاهر شو.

**ارقیك:** دا د رقیه نه دی د دم کولو په معنی دی. (المرقات ۴/۱۶).

**من شر کل نفس اوعین:** دا جمله د مخکینۍ جملې نه بدل واقع ده. ددې نه نفس خبیث مراد دی. په دې جمله کې دا احتمال شته دی چې د "اَوْ" حرف د شک لپاره وي چې راوي ته په نقل کولو کې شک شو چې نبي کریم صَلَّىاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ کوم لفظ فرمایلی وُو.

مګر په تعلیق الصبیح کې لیکل شوي دي چې ظاهره دا ده چې د "اَوْ" حرف د تنویع لپاره دی. دلته د نفس نه د انسان نفس هم مراد اخستل کیدلی شي. او دا هم امکان لري چې د نفس نه مراد سترګه وي ځکه د سترګې په نفس باندې اطلاق کیږي.

**رجل منفوس:** یعنې د چا بد نظر ولګیدلو. په دې صورت کې به "اوعین" د تاکید لپاره وي. (المرقات ۴/۱۶).

**بسم الله:** دا جمله د مبالغې په توګه مکرر تکرار شوی دی.

## د بدنظرۍ نه د بچ کیدو د پاره مجربه دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يُعَوِّذُ الْحَسَنَ وَ الْحُسَيْنَ : |
| ابن عباس رَضِيَاللهُعَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّىاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ به حضرت حسن او حسین رَضِيَاللهُعَنْهُمَا ته به یې پناه ورکوله |
| أُعِيذُكُمَا بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَ هَامَّةٍ |
| چې زه (د خدای په) پناه سره تاسو ته پناه درکوم د کلمات الله په ذریعه چې کامل دي د هر شیطان د بدۍ نه |
| وَ مِنْ كُلِّ عَيْنٍ لَامَّةٍ وَ يَقُولُ : |
| او د هر هلاک کونکي، زهرجن او د هر نظر لګیدلو سترګي نه او نبي کریم صَلَّىاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ به دا (هم) فرمایل |
| إِنَّ أَبَاكُمَا كَانَ يُعَوِّذُ بِهَا إِسْمَاعِيلَ |
| چې ستاسو پلار (حضرت ابراهیم عَلَيْهِالسَّلَامُ) ددې کلماتو په ذریعې سره د خدای په پناه کې ورکول اسمٰعیل |

وَ إِسْحَاقَ .[1] وَ فِي أَكْثَرِ نُسَخِ المصابيح : بهما على لفظ التَّثْنِيَة

عَلَيْهِ السَّلَامُ او اسحاق عَلَيْهِ السَّلَامُ. او د مصابيح په اکثرو نسخو کې د بها په ځاى بهما تثنيې ضمير سره دى.

**توضيح** : **يعوذ الحسن**: نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تعوذ او د پناه په توګه دا دعاګاني ولوستلي او په حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او په حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې يې دم کړي دي. مخکې يو روايت راروان دى چې حضرت عبدالله ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د دې تعويذ جوړ کړلو او د ماشومانو په غاړه کې به يې اچولو. ددې نه د تعويذونو د ثبوت ملاويږي.

**بكلمات الله**: د كلمات الله نه دلته مراد د الله تعالى اسماء الحسنى دي. هسې خو کلمات الله د دلائل توحيد او د الله تعالى د خصوصي صفاتو لپاره ويل کېږي. او د الله د معلوماتو لپاره هم ويل کېږي. (المرقات ۴/۱۷).

**التامة**: د الله تعالى کلماتو ته "**تامة**" ځکه ويل شوي دي چې د انسانانو په کلماتو کې يو نه يو طرف کې عيب کيدى شي او د الله تعالى کلمات د هر عيب نه پاک دي ځکه کامل او پوره دي. (المرقات ۴/۱۷).

**شيطان**: ددې نه مراد انساني او جني دواړه قسمه شيطانان مراد دي. (المرقات ۴/۱۷).

**وهامة**: **ميم** باندې شد دى. دا هر هغه خاروي ته ويې چې په هغې کې شر او بدترينه زهر وي. د دې جمعه **هوام** ده. (المرقات ۴/۱۷).

د زمکې په حشراتو کې په کوم شي کې زهر قاتل وي هغې ته هامه وايي. کله مطلق د حشرات الارض لپاره د هوام اطلاق کېږي.

**وهامه**: مطلب دا دى چې "**اى من شرهما**" يعنې د شيطانانو او د انسانانو د شر نه پناه غواړم. دلته د يو بزرګ يوه جمله ډيره فايده منده او د کار ده. وايي چې کله چرته ځې نو دا دعا وايه "اى الله! زه ستا د ټولو مخلوقاتو د هر مکروه نه ستا پناه غواړم.

**لامه**: "**اى جامعة للشر على المعيون**"

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۰۸/۷، رقم الحديث ۳۳۷۱، والترمذي ۴ / ۳۴۶ رقم الحديث ۲۰۶۰، وابن ماجه ۱۱۶۴/۲ رقم الحديث ۳۵۲۵، وأحمد في المسند ۲۷۰/۱

**لَمَّ وَأَلَمَّ:** **میم** باندې شد سره د جمعه کولو په معنی کې راځی. **لامه** اصل کې د با افعال نه **ملمه** اسم فاعل ؤو خو په **هامه** کې مناسبت او د سجع په وجې **لامه** وویل شو. (المرقات۴/۱۷).

**نسخ المصابیح:** په دې کلام سره دې خبرې ته اشاره ده چې د مصابیح په اکثر نسخو کې "**بها**" د مفرد ضمیر په ځاې **بهما** تثنیه ده. علامه طیبی رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د تثنیه ضمیر بې ځایه تکلف دی. د کوم کاتب نه سهو شوې ده. دلته "**بها**" د مفر ضمیر دی چې په دعا کې د کلماتو طرف ته راګرځي. (المرقات ۴/۱۷).

## په مصیبت کې راګیر شوی سړی الله تعالی ته محبوب وي

| |
|---|
| ﴿١٤﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ يُرِدِ اللهُ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چاته چې الله تعالی اراده د |
| بِهِ خَيْرًا يُصِبْ مِنْهُ .(۱) |
| خیر رسولو کوي نو ده ته (د خیر رسولو لپاره) دا په مصیبت کې اخته کړي. |

**توضیح: یصب منه:** دا صیغه د باب **افعال** نه ده په مصیبت کې د اخته کولو په معنی کې دی. علامه طیبی رَحِمَهُ اللهُ وایي چې په **صاد** باندې فتحه ډیره بهتره ده. په دې صورت کې دا د مجهول صیغه ده.
علامه میرک رَحِمَهُ اللهُ وایي چې دا صیغه مجزوم ده د شرط په جواب کې ده. (المرقات۴/۱۷).
قاضي عیاض رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د حدیث مطلب دا دی الله چې کله یو بنده ته خیر اراده وکړي نو هغه په مصیبت کې اخته کړي چې د هغې ګناهونه وبنخل شي او درجات یې اوچت شي. (المرقات۴/۱۷).
بهرحال مصیبت عام دی که هغه د مریضتیا په صورت کې وی یا د څه تکر په صورت کې وي یا کوم غم وي او دا ټول صورتونه انسان ته فقط په دې وجه نه راځي چې دا د الله تعالی له اړخه د عذاب یو شکل دی. بلکې اکثر الله تعالی د هغه بنده د درجو اوچتولو لپاره په هغې باندې مصیبتونه راولي. چې هغه صبر وکړي او درجې ومومي. کوم سړی چې په مصیبت باندې صبر کوي او د الله نه ګیلې نه کوي نو دا د دې خبرې دلیل دی چې دا مصیبت د هغې لپاره د رحمت سبب دی او که هغه ګیلې کوي چیغې وهي، ژړا فریاد کوي، نو دا د دې خبرې علامت دی چې دا مصیبت رحمت نه بلکې د دې لپاره زحمت او عذاب دی. بهرحال نه هر مصیبت وهلی محبوب وي او نه هر مصیبت وهلی معتوب وي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰ : ۱۰۳ رقم الحديث ۵۶۴۵

## مؤمن باندې راتلونكى هر مصيبت سبب د اجر او ثواب دى

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْهُ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَا يُصِيبُ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او يان دي وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل كله چې ورسيږي |
| الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلَا وَصَبٍ وَلَا هَمٍّ وَلَا حُزْنٍ وَلَا أَذًى وَلَا غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةُ يُشَاكُهَا |
| مسلمانانو ته درد، تكليف، فكر، غم او مصيبت، آن تر دې پورې كه چيرې يوه غنه په كې لاړه شي هم نو |
| إِلَّا كَفَّرَ اللهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ. (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| الله تعالى ددې په ذريعې سره دده ګناهونه معاف كوي. |

**توضيح**: **نصب**: علامه مظهر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې نصب د هغه تكليف نوم دى چې د انسانانو په اندامونو باندې راځي. لكه زخم او داسې نور څه وي. او وصب اوږد او مزمن مريضتيا ته وايي. (المرقات ۴/۱۸، الكاشف ۳/۳۰۸).

او **غم** هغه تكليف ته وايي چې د انسان په زړه باندې راځى مثلاً د مال او د اولاد په ضايع كيدو سره چې كوم غم راځي هغې ته غم وايي ګوياكې چې غم سړي "**مغمى عليه**" يعنې بى هوشه كوي.(الكاشف ۳/۳۰۸).

**هم**: دا هغه غم ته وايي چې سړى ويلي كوي. (المرقات ۴/۱۹، الكاشف ۳/۳۰۸).

**حزن**: دا د زړه د تشويش نوم دى چې د "**هم**" نه لږ سپک دى. د دې الفاظو په مينځ كې دا لږ شان معمولي فرق دى چې په **تعليق الصبيح** كې بيان شوى دى. (المرقات ۴/۱۹، الكاشف ۳/۳۰۸).
ځينې علماء وايي چې غم هغه وي چې د هغې سبب معلوم وى او هم هغه وي چې د هغې سبب نه وي معلوم. فقط تشويش وي. يا مفسرين ليكي چې په خوف او حزن كې دا فرق دى چې حزن په مافات باندې كيږي او خوف په ماياتي باندې كيږي. يعنې مثلاً ورور مريض دى. د هغې د مرګ چې كوم فكر دى دا خوف دى او چې كله مړ شي او وروسته كومه صدمه وي دا حزن دى. (المرقات ۴/۱۹، الكاشف ۳/۳۰۸).

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰ / ۱۰۳ رقم الحديث ۵۶۴۱ ،و مسلم في صحيحه ۴/ ۱۹۹۲ رقم الحديث ۵۲ - ۲۵۷۳، والترمذي في السنن ۳/ ۲۹۸ رقم الحديث ۹۶۶.

**حق الشوكة:** شوكة ازغي ته وايي. دا لفظ مرفوع هم كيدلى شي. نو هغه وخت به مبتدا وي او مجرور هم كيدلى شي. نو د حتى كلمه به د "الى ان" په معنى شي. (المرقات ۴/۱۹، الكاشف ۳/۳۰۸).

**يشاكها:** دا د ضمير مفعول ثانى دى او مفعول اول مضمر دى چې د فاعل په خاى د. عبارت داسي دا "حق الشوكة يشاك المسلم تلك الشوكة" يعنې د يو مسلمان په يو اندام كې غنه پڅه شي نو د هغې ورته هم ثواب ملاويږي". (المرقات ۴/۱۹، الكاشف ۳/۳۰۸).

## د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تبه به دوه چنده كيدله

﴿۱٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ځل زه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضر شوم

وَهُوَ يُوعَكُ فَمَسِسْتُهُ بِيَدِي فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّكَ لَتُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا.

هغه وخت د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تبه وه ما پرې لاس راخكلو او عرض مې وكړو چې يا رسول الله! په تا ډيره سخته تبه

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَجَلْ إِنِّي أُوعَكُ كَمَا يُوعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ. قَالَ:

راځي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې "آو" زما د دوه كسانو برابر تبه وي. عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي

فَقُلْتُ: ذٰلِكَ لِأَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ؟ فَقَالَ:

چې ما عرض وكړو دا د دې وجې نه وي چې ستا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه چنده ثواب وشي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

أَجَلْ. ثُمَّ قَالَ: مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى مِنْ مَرَضٍ فَمَا سِوَاهُ

چې "آو". او بيا يې وفرمايل چې كوم مسلمان ته د مريضتيا په وجه په بل څه وجه تكليف ورسي، نو

إِلَّا حَطَّ اللهُ تَعَالَى بِهِ سَيِّئَاتِهِ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

الله تعالى د هغه په سبب د ده ګناهونه (داسي) لري كړي لكه څنګه چې د بوټي نه پاڼي رجيږي.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰ / ۱۱۱ رقم الحديث ۵۶۴۸، ومسلم في صحيحه ۴/۱۹۹۲ رقم الحديث ۴۵-۲۵۷۱، والدارمي في السنن ۲/۴۰۸ رقم الحديث ۲۷۷۱، وأحمد في المسند ۱/۳۸۱.

## د مرګ سختي د درجو د اوچت والي ذريعه ده

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا الْوَجَعُ عَلَيْهِ أَشَدُّ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ما داسي يو سړی نه دی ليدلی چې د هغه ناروغي سخته او شديده وي |
| مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [۱] |
| د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د ناروغۍ نه. |
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ حَاقِنَتِي وَذَاقِنَتِي |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم زما د سيني او د غاړې په مينځ کې وفات شو |
| فَلَا أَكْرَهُ شِدَّةَ الْمَوْتِ لِأَحَدٍ أَبَدًا بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [۲] |
| زه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم نه وروسته د هيڅ يو سړي د مرګ سخته هيڅ کله بد نه ګڼم. |

**توضيح: حاقنتي وذاقنتي:** د حضرت عائشې رضي الله عنها مقصد دا بيانول دي چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم مرګ زما په غيږه کې وشو او هغه داسي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم حضرت عائشه رضي الله عنها باندې تکيه کړې ده او د حضرت عائشه رضي الله عنها د څټ او د سينې په مينځ کې نبي کريم صلی الله عليه وسلم سر مبارک پخی ؤو. لکه څنګه چې عام عادت وي چې مريض په بستري باندې پروت وي او بيمارپرسۍ او خدمت والا د هغې سر په خپله غيږه کې کيږدي. د انسان زنه چې د سيني کومي برخي پوري رسيږي هغه برخي ته "ذاقنه" وايي. چې د څټ او مرۍ برخه ده. (المرقات۲۱/۴، الکاشف ۳/۳۰۹).

او د ذاقنه نه لاندې چې کومه برخه ده هغه حاقنه ده. (المرقات۲۱/۴، الکاشف ۳/۳۰۹).

حضرت عائشه رضي الله عنه دا بيانول غواړي چې د مرګ په وخت کې په نبي کريم صلی الله عليه وسلم باندې د نزع د حالت ما ته پورا اندازه ده چې په نبي کريم صلی الله عليه وسلم باندې څومره تکليف ؤو.

**فلا اکره:** د دې ځای نه حضرت عائشه رضي الله عنها دا ويل غواړي چې ما به د دې نه مخکې دا ګڼل چې د مرګ آساني د ګناهونو د نه کولو نښانه ده او د مرګ سختي د ګناهونو نښانه ده خو نبي کريم

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰ / ۱۱۰ رقم الحديث ۵۶۴۶ ،ومسلم في صحيحه ۱۹۹۰/۴ رقم الحديث ۴۴- ۲۵۷۰ ،وابن ماجه في السنن ۴۱۸/۱ رقم الحديث ۱۶۲۲ ،وأحمد في المسند ۱۷۳/۶

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه۱/ ۱۰۳ رقم الحديث۵۶۴۳ ،ومسلم في صحيحه ۲۱۶۳/۴ رقم الحديث ۵۹-۲۸۱۰ ،والدارمي في السنن ۴۰۰۲ رقم الحديث ۲۷۴۹ ،وأحمد في المسند ۱۵۴/۳

صلی الله علیه وسلم چې معصوم ؤ د هغه صلی الله علیه وسلم د نزع د حالت تکليف چې کله ما وليدو نو ماته اندازه وشوه چې د نزع تکليف د درجاتو او چتوالي سبب هم دی. ګيني نبي کريم صلی الله علیه وسلم باندې کله هم تکليف نه وي. دده نه مخکې په حديث ۱۶ او حديث ۱۷ کې همدغه بيان شوي دې چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم د مريضتيا شان هم جلا ؤ چې تبه به دوه چنده وه. دا د نبي کريم صلی الله علیه وسلم د اوچت شان علامت ؤ او د درجاتو د اوچتوالي ذريعه وه. (المرقات ۴/۲۱).
يو شاعر ويلي دي:

اذا داء هفا بقراط عنها ❀ فلم يعرف لصاحبها ضريب

يعنې د کومې مريضتيا د علاج او پيژندني نه حکيم بقراط عاجزه شي نو دا د دې دليل دی چې خپله مريضتيا بې مثله او بې نظير ده.
دا چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم په کامل، پوره، قوت او د صحت په حالت کې د دنيا نه لاړو. اګر که د نبي کريم صلی الله علیه وسلم عمر ۶۳ کاله ؤ. خو نبي کريم صلی الله علیه وسلم باکل د ځوانۍ په حالت کې ؤ. ځکه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم ږيره او د سر ويختانو کې نورلس (۱۹) يا د شلو (۲۰) نه ډير سپين ويختان نه ؤ. چې د ځوانۍ يو علامت دی او ښکاره خبره ده چې د ځوان د قوي بدن نه چې کله روح وځي نو د هغې شدت او سختي خو يو عادي او طبعي معامله ده.

## د دنيوي مصيبتونو په اعتبار سره د مؤمن او د منافق مثال

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَثَلُ الْمُؤْمِنِ |
| حضرت کعب ابن مالک رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل "د مؤمن مثال د |
| كَمَثَلِ الْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ تُفَيِّئُهَا الرِّيَاحُ تَصْرَعُهَا مَرَّةً وَ تَعْدِلُهَا أُخْرَى حَتَّى |
| پټي د تروتازه او نرمې څانګې په شان دی چې هوايې کږه کړي کله هغه را او غورځوي او کله يې نيغه کړي |
| يَأْتِيَهِ أَجَلُهُ وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ الْأَرْزَةِ الْمُجْذِيَةِ |
| تردې چې د هغه وخت پوره شي او د منافق مثال د هغه صنوبر د بوټي په شان دی چې کلک ولاړ وي. هغه |
| الَّتِي لَا يُصِيبُهَا شَيْءٌ حَتَّى يَكُونَ |
| هيڅ جټکه نه خوري (يعنې نه خو هغه د هوا په زوره راليږي او نه جټکا خوري) تردې چې هغه ناڅاپه په |

| **الْجِعَافُهَا مَرَّةً وَاحِدَةً.** [1] |
|---|
| زمکه باندې راوغورځيږي. |

**توضيح: الخامة:** د يو بوټي لمده څانګه او نرم وانښو او ګلدستي ته خامه وايي. دلته شين او تازه پټي مراد دی. (المرقات۴/۲۲، الکاشف ۳/۳۱۰).

**تفيئها:** د باب تفعيل او تفعل نه ښي او چپ اړخ ته اړولو او راړوړو او جټکا ورکولو په معنی کې دی. کله چې هوا د جنوب اړخ نه راځي نو بوټي د شمال اړخ ته کاږه کړي او کله چې د شمال اړخ نه راځي نو بوټي د جنوب اړخ ته کاږه کړي. (المرقات۴/۲۲، الکاشف ۳/۳۱۰).

**تصرعها:** دا جمله د ماقبل جملي اثر او کيفيت بيانوي. **صرع** او **تصريع** د لوشلو په معنی کې دی. ښي او چپ اړخ ته د راکږول او راخکته کول مراد دي. (المرقات۴/۲۲).

**تعدلها:** دا صيغه د باب **افعال** هم ويل کيدلی شي او د باب تفعيل نه هم ويل کيدلی شي. د نيغ او برابرولو په معنی کې دی. (المرقات۴/۲۲، الکاشف ۳/۳۱۰).

**الارزة:** همزه مفتوح دی "را" باندې سکون دی. ددې نه ورسته "زا" ده. د ځنګل يو مضبوط بوټي ته وايي. چې په خپل مضبوط والي کې د غوز (چارمغز) او جاخو د بوټي په شان کلک وي. عامه مشهور دا دې چې د دې نوم "صنوبر" دی خو دا د صنوبر مشابه دی صنوبر نه دی. (المرقات۴/۲۳، الکاشف ۳/۳۱۰).

**المجذية:** دا د **الارزة** صفت دی **جذا** د **يجذو** نه دی. په کلکه زمکه د استقامت سره قائم داسې بوټي ته وايي چې په زمکه باندې کلکه ولاړ وي. (الکاشف ۳/۳۱۰).

**انجعافها:** د انقطاع او د انقلاع او ودريدلو په معنی کې دی. (الکاشف ۳/۳۱۰).

د حديث مطلب دا دی چې د مؤمن مسلمان د ژوند مثال داسې دی چې کله خوشحاله وي او کله په مصيبتونو او دردونو کې راګير شوی وي لکه څنګه چې د هواګانو په چپو کې تازه څانګه کله راليږي کله او چتيږي.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۳/۱، رقم الحديث:۵۶۴۹، ومسلم في صحيحه ۲۱۶۳/۴ رقم الحديث :۵۹-۲۸۱۰، وأحمد في المسند ۴۵۴/۳

خو د منافق په ژوند کې په هغې باندې په ظاهري توګه څه مصیبتونه او آلام نه راځي. هغه هر وخت خوشحاله وي او مضبوط او صحت مند وي. هیڅ یو مصیبت هغه نه شي خوزولی لکه د صنوبر، د چارمغز بوټی او د جاخو بوټی هواګانې نه شي خوزولی. ګویا کې د قربانۍ دا میخه چې ځوربه ستالی شوي وي خو چې کله په هغې مرګ راشي نو ښه صحیح سالم یې بیخ نه راوباسي او ګوزار یې کړي او خپل ټول ګناهونه د ځان سره ویسي. خو مسلمان د مصیبتونو او مرضونو په وجه د ګناهونو نه پاک شي او منافق د ګناهونو سره لاړ شي. لهذا اکثر مصیبتونه د الله د ناراضګۍ علامت نه وي او نه همیشه روغ جوړ وسیدل د مقبولیت نښانه ده. (المرقات ۴/۲۳، الکاشف ۳/۳۱۱).

یو صحابیې ښځې د خپل خاوند نه د طلاق مطالبه وکړه خو ناڅاپه یې په میړه باندې څه مصیبت راغلو نو ښځې یې خپله مطالبه پریخوده او وې ویل چې کله ما ولیدل چې په تا باندې هیڅ مرض نه راځي نو زما شک شو چې چرته ته منافق خو نه یې خو اوس معلومه شوه چې ته مؤمن یې. ځکه دا مصیبت د ایمان نښانه ده د لاندې حدیث هم دغه مطلب دی. (المرقات ۴/۲۳، الکاشف ۳/۳۱۱).

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَثَلُ الْمُؤْمِنِ |
| او حضرت ابوهریره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمایل "د مؤمن مثال د هغه |
| كَمَثَلِ الزَّرْعِ لَا تَزَالُ الرِّيحُ تُمِيلُهُ وَلَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ يُصِيبُهُ الْبَلَاءُ |
| فصل په شان دی چې هواګانې یې همیشه ټیټ ساتي (دغه شان) مؤمن همیشه مصیبتونو راګیر کړې وي |
| وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ شَجَرَةِ الْأَرْزَةِ لَا تَهْتَزُّ حَتَّى تَسْتَحْصِدَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او د منافق مثال د صنوبر د بوټي په شان دی چې په هواګانو باندې نه خوزېږي خو (په آخر کې د بیخ نه) راوځي |

## بیمارۍ ته کنځل مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: دَخَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى أُمِّ السَّائِبِ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې (یو ځل) نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ام سائب رضي الله عنها خواته لاړو (چې ګرمۍ او |
| فَقَالَ: مَالَكِ تُزَفْزِفِينَ؟ . قَالَتْ: |
| لرزي کې اخته وه) او (چې هغه یې ولیده نو) وې فرمایل چې: دا په تا څه شوي دي چې لرزېږې؟ هغه وویل |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۰۳، رقم الحديث: ۵۶۴۴، ومسلم في صحيحه ۴/۱۱۶۳ رقم الحديث: ۵۸-۲۸۰۹.

| الْحُمَّى لَا بَارَكَ اللّٰهُ فِيهَا فَقَالَ : لَا تَسُبِّي الْحُمَّى فَإِنَّهَا |
|---|
| چې :تبه ده الله دې په کې برکت وانچوي نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې "تبې ته بد مه وايه ځکه تبه |
| تُذْهِبُ خَطَايَا بَنِي آدَمَ كَمَا يُذْهِبُ الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ. (۱) |
| د بني آدم د ګناهونه داسي لري کوي لکه بټۍ چې د وسپني نه زنګ لري کوي. |

**توضيح : تزفزفين**:د باب **فعلله دحرج** په شان د واحد مؤنث صيغه ده. دلرزيدلو او د رېږېږي په معنی دی.(المرقات۴/۲۳).

**الكير**:د هوا ورکونکي مشکيزي ته "کير" وايي. دا يوه آله ده چې دوه مشکيزي يو ځای کړی او د کوئله ډهيري اړخ ته يې کړي او په هغې سره هوا ورکوي چې کوئله ګرمه شي او ددې نه ډير کالي او اوزار جوړ شي. په دې عمل سره د وسپني ګند مند وسوزي او وسپنه پاکه شي. (الکاشف ۳/۳۱۱).

بهرحال د حديث مطلب دا دی چې هيڅ يو مرض ته کنځل مه کوی. بلکي صبر کوي دا د انسان د ګناهونو کفاره جوړه شي.

## د مخکني عمل ثواب مريض ته ملاويږي

| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا مَرِضَ الْعَبْدُ |
|---|
| حضرت ابو موسی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل:چې کله يو بنده بيمار شي |
| أَوْ سَافَرَ |
| يا په سفر ځي (او د هغه مريضتيا يا د سفر په وجه ده نه اوراد او نوافل پاتي شي) نو ده په اعمال نامه |
| كُتِبَ لَهُ بِمِثْلِ مَا كَانَ يَعْمَلُ مُقِيمًا صَحِيحًا. (۲) |
| کې دومره اعمال وليکل شي چې کوم په حالت قيام او د روغتيا په حالت کې کولو. |

**توضيح : كتب له**:د حديث مطلب دا دی چې مثلاً يو سړی د صحت مندی په وخت کې د فرائضو نه بغير سنت او نفلونه او عبادتونه او په وظائفو او تهجد کې ښه محنت کولو خو چې کله مريض شي يا د سفر په حالت کې نو ده د معمولات متاثر کېږي او خپل معمولات نه شي پوره کولی. نو په دې حديث کې دا ويل شوي دي چې هغه سړي ته په مرض او سفر کې د هغه اعمالو پوره بدله ملاويږي چې هغه به کوم په

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۹۹۳/۴ رقم الحديث ۵۳ ۱۵۷۵

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۶/۶ رقم الحديث : ۲۹۹۶.

صحت مندی کې کول. د معمولاتو پاتې کیدلو په وجه ثواب نه منقطع کېږي بلکې روان وي.

## د طاعون مرض کې مړ کیدونکي فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : الطَّاعُونُ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په طاعون کې (مړ کیدل) د |
| شَهَادَةُ كُلِّ مُسْلِمٍ.[1] |
| هر مسلمان لپاره شهادت دی. |

**توضيح : الطاعون**:طاعون د يو وبائي مرض نوم دی. دا وبائي مرض چې په کومو علاقو کې خورېږي نو هلته ټول شيان متاثره کېږي. د انسان د بدن نه بغير اوبه او هوا هم خرابوي. غرض دا چې په هر شي کې د دې جراثم داخل شي. د طاعون علامت ځینو شارحينو دا ليکلی دی چې د دې بيمارۍ په وجه د بدن د نرم اندامونه مثلاً ترخ، ورون، او خيټه او داسې نور اندامونه زخمي شي او د هغه زخمونو ګير چاپيره تور يا سره او شنې کرۍ جوړې شي. (المرقات۴/۲۵).

طاعون سره مړ کيدونكي ته شهادت درجه ځکه ملاويږي چې دا واقعي شهيد دی. ځکه په حقيقت کې د څه پيريانو يا د شيطانانو د نيزو ويشتلو په وجه دا زخمونه کېږي. نو ظاهره خبره ده لهذا شهيد دی. تفصيل مخکې راروان دی. (المرقات۴/۲۵).

## د حقيقي او حکمي شهيدانو بيان

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : الشُّهَدَاءُ خَمْسَةٌ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې : نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : شهيدان پنځه دي |
| الْمَطْعُونُ وَ الْمَبْطُونُ وَ الْغَرِيقُ |
| ۱:طاعون وهلي ۲:د خيټې مرض(يعني دست او استسقاء) کې مړ کيدونکی ۳:په اوبو کې بې اختياره غرق |
| وَ صَاحِبُ الْهَدْمِ وَ الشَّهِيدُ فِي سَبِيلِ اللهِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[2] |
| کيدونکي ۴:ديوال يا د چهت د راليدلو په وجه مړ کيدونکی ۵:د خدای په لاره کې شهيد کيدونکی. |

**توضيح : الشهداء خمسة**:يو حقيقي دی او يو شهيد حکمي دی. حقيقي شهيد همغه دی چې د کفارو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۸۰، رقم الحديث:۵۷۳۲، ومسلم في صحيحه ۳/۱۵۲۲ رقم الحديث :۱٦٦-۱۹۱٦.

(۲) أخرجه البخاري ٦/٤۲، رقم الحديث ۲۸۲۹، ومسلم في صحيحه ۳/۱۵۲۱ رقم الحديث :۱۲٤-۱۹۱٤، وأحمد في المسند ۳/٤۸۹.

سره جهاد کوي او ووژل شي يا ظلمًا د يو ظالم د لاس نه په تيره شي ووژل شي او د دنيوي فايدي اخستلو نه بغير د دنيا نه لاړ شي. حقيقي شهيد بغير د غسل او بغير د كفن نه هغه په خپلو اغوستلو جامو کې ښخول کېږي.

حکمي شهيد هغه وي چې بغير د يو څو مخصوصو احوالو او د افعالو په وجه مړ شي. په دې حديث کې د څلور قسمه حکمي شهيدانو ذکر شوی دی خو په نورو حديثونو کې د دې نه بغير د ډيرو خلکو حکمي شهادت تاکل شوی دی. (المرقات۴/۲۶).

**مثلاً ذات الجنب نمونيه:** کې مړ کيدونکي په او ورکې وسوزي، د ولادت او د ماشوم د پيدائښت په حالت کې مړه کيدونکي ښځه، په سفر کې مړ کيدونکي، جهاد کې په طبعي مرګ باندې مړ کيدونکي. د شهادت ريښتوني ارمان کونکي، موريقي د تبې د وجي نه مړ کيدونکی. د ځنګلي ځاروي د خوړلو په وجه مړ کيدونکی او د يو ظالم د تشدد په نتيجه کې د زخمونو په وجه مړ کيدونکی. او د ظالم په جيل کې بې ګناه مړ کيدونکی او په علمي مشغله کې مړ کيدونکی. (المرقات۴/۲۶).

او په حديثونو کې د ذکر شوي يو شپږو ښو عملونو کولو نه وروسته مړ کيدونکی دا ټول خلک حکمي شهيدان دي.

د دې حکم دا دی چې دا به د آخرت شهيدان شميرل کېږي. او د دنيا شهيدان نه دي. لهذا د دوي به جنازه کېږي، غسل به ورکړی کېږي. کفن او ښخول کېږي به. ګويا کې د حقيقي شهيدانو په شان يوه درجه ثواب به دوي ته ورکول کېږي. د حديث مطلب دا نه دی چې دا ټول حقيقي شهيدان دي دې خلکو ته ځکه د شهيدانو ثواب ورکړی شوی چې شهيد ډيري سختي تيري کړي او مړ شي د دغه خلکو مرګ هم دا چې په سخت شدت او سخت مصيبت سره راځي لهذا د هم د شهيدانو سره پيوست شوي دي. د **مطعون** تفصيل تير شوی دی **"مبطون"** د خيټي د مرض نه مړ کيدونکي ته وايي لکه هيضه او داسي نورو وبائي مرضونه وي.

**الغريق:** درياب، نير يا په سمندر کې مړ کيدونکي ته وايي. (المرقات۴/۲۶).

**صاحب الهدم:** ددې نه مراد هغه سړی دی چې د غر نه راوغوزيږي يا د چت نه راپريوزي يا چت او ديوال په هغې باندې راپريوزي او دا پکې لاندې شي او مړ شي. (المرقات۴/۲۶).

## صبر کونکي مسلمان لپاره طاعون رحمت دی

| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّاعُونِ |
|---|
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ما دنبي کريم صلى الله عليه وسلم نه د طاعون د حقيقت باره کې پوښتنه وکړه |

| فَأَخْبَرَنِي : أَنَّهُ عَذَابٌ يَبْعَثُهُ اللهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ |
|---|
| نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وويل چې (هسې خو) داعذاب دی چې الله يې چاباندې وغواړي راوليږي خو |
| وَ أَنَّ اللهَ جَعَلَهُ رَحْمَةً لِلْمُؤْمِنِينَ |
| الله تعالى دا د (هغه) مؤمنانو دپاره (سبب) درحمت ګرځولی چې په دې کې اخته وي (او ددې داخته |
| لَيْسَ مِنْ أَحَدٍ يَقَعُ الطَّاعُونُ |
| کيدو په وخت کې صبر) کوي او په کوم ښار يا په کوم ځای طاعون وي او يو مؤمن په خپل ښار کې پاتې شي |
| فَيَمْكُثُ فِي بَلَدِهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا |
| او صبر کونکی او خدای نه د ثواب طالب وي (يعنې په هغه طاعون زده علاقو کې څه د بل غرض او |
| يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا يُصِيبُهُ |
| مصلحت سره نه بلکې خاص د ثواب لپاره ايسار شي) او دا پوهيږي چې ده ته هيڅ شی ضرر نه شي رسولی |
| إِلَّا مَا كَتَبَ اللهُ لَهُ إِلَّا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ شَهِيدٍ .[1] |
| مګر هغه چې الله تعالى (دده په مقدر کې) ليکلي وي نو دې مؤمن ته به د شهيد په اندازه ثواب ملاويږي. |

## په طاعون اخته شوې علاقو ته مه ځئ او مه د هلته نه تختئ

| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الطَّاعُونُ رِجْزٌ أُرْسِلَ عَلَى |
|---|
| حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: طاعون عذاب دی چې راليږل |
| طَائِفَةٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَوْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ |
| شوی ؤ د بني اسرائيلو په جماعت باندې يا يې وفرمايل چې هغوی چې له تاسو نه مخکې تير شوي ؤو |
| (يعنې راوي په شک کې دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اولنی جمله ويلې وه يا دويمه) لهذا تاسو چې |
| فَإِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ فَلَا تَقْدِمُوا عَلَيْهِ وَ إِذَا وَقَعَ |
| کله د يوې علاقې باره کې واورئ چې هلته طاعون خور شوی دی نو هلته مه ځئ. او په کوم طاعون زده |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۹۲، رقم الحديث ۵۷۳٤

| بِأَرْضٍ وَ أَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِنْهُ.[1] |
|---|
| علاقه کې تاسو (د مخکې نه) موجود وی نو د هلته نه مه تختئ. |

**توضيح**: رجزا: يعنې طاعون يو اسماني عذاب دی الله تعالی په بنی اسرائيلو باندې دا مرض هغه وخت مسلط کړی ؤو چې هغوی نافرماني وکړه او د بيت المقدس د جهاد نه يې انکار وکړو. (المرقات ۴/۲۷).

قرآن کې دا آيت د همغې باره کې دی ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ﴾ (سورة الاعراف: ۱۶۲) يعنې په هغوی يې طاعون راوليږلو. په دې حديث کې امت ته دوه حکمونه شوي دې يو حکم دا دی چې د طاعون زده علاقو د تختيدلو کوشش مه کوی. مرګ په مقرر شوي وخت باندې د تقدير مطابق راځي نو کوم سړی چې د طاعون د مرض نه تختي نو ګويا کې هغه د تقدير باره کې تذبذب ښکار شوی دی او د تقدير د فيصلې نه تختي. دويم حکم په دې حديث کې دا بيان شوی دی چې چرته طاعون يا بل کوم وبائی مرض خور شوی وي نو هلته خامخا د تللو کوشش مه کوی. دا د خپل ځان د هلاکت ځای ته غورزولو مترادف دي. چې منع ده. همدغه شان د هغې د عقيدې د خرابيدلو خطره هم ده. خلک به دا وايي چې کچرې هلته نه وی تلی نو نه به وی مړ شوی. دا خبره ذهن کې وساتئ چې د وبائی مرضونو نه بغير نورو خطری ځايونو نه تختيدل جائز دي. مثلاً په يو ځای کې اور لګيدلی دی يا سيلاب راروان دی يا زلزله ده، ديوال يا چت نه راپريوزي نو د هغه ځايونو نه تخيدل منع نه دی. (المرقات ۴/۲۸).

## د صبر کوونکي ړوند فضيلت

| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "قَالَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى: |
|---|
| حضرت انس رضي الله عنه وايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي چې الله سبحانه وتعالى فرمايي |
| إِذَا ابْتَلَيْتُ عَبْدِي بِحَبِيبَتَيْهِ ثُمَّ صَبَرَ عَوَّضْتُهُ مِنْهُمَا |
| چې کله زه خپل يو بنده په دوه ګرانو شيانو کې اخته کړم او دې په هغې صبر کوي نو زه د هغه دواړو په بدل کې |
| الْجَنَّةَ " يُرِيدُ عَيْنَيْهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] |
| هغه ته جنت ورکوم (راوي وايي چې د دوه ګرانو شيانو نه) د نبي عليه السلام مراد دواړه سترګې دي. |

---

(۱) أخرجه البخاري ۱۲/۳۴۵، رقم الحديث ۶۹۷۴، ومسلم في صحيحه ۴/۱۷۳۶ رقم الحديث: ۹۲-۲۲۱۸، وأحمد في المسند ۱/۱۸۲.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۱۶، رقم الحديث ۵۶۵۳، وأحمد في المسند ۳/۱۴۴.

**توضيح**: **حبيبكيه**:ددې نه مراد دواړه سترګي دي. دا د "**كريمتيه**" په نوم هم يادول كيږي. د حديث مطلب دا دى چې كله الله تعالى د خپل يو بنده نه سترګې واخلي نو هغه ړوند كې او هغه په هغې باندې صبر كوي، نه د الله تعالى شكايت كوي، نه څوك ملامته كوي بلكي دا خيال كوي چې دا مصيبت الله تعالى زما د ګناهونو د بخښلو لپاره او د درجاتو د اوچتولو لپاره په ما راوستى دى. دغه شان سړي ته به الله تعالى په بدل كې جنت وركړي. (المرقات۴/۲۸، الكاشف:۳/۳۱۴).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## بيمار پرسى باندې اويازره فرښتي درحمت دعا كوي

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَا مِنْ مُسْلِمٍ |
| حضرت على كرم الله وجهه وايي چې ما د نبي كريم ﷺ نه اوريدلى دى چې "كوم مسلمان (د |
| يَعُودُ مُسْلِمًا غُدْوَةً إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ |
| بل مريض) مسلمان د ورځې په اولنۍ برخه كې يعني د غرمې نه مخكې بيمار پرسي كوي نو دعاء د |
| سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُمْسِيَ وَ إِنْ |
| رحمت او مغفرت كوي دده د پاره اويا زره (۷۰۰۰۰) فرښتي تر مابنامه پورې او كوم مسلمان چې د |
| عَادَهُ عَشِيَّةً إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ |
| ورځې په آخري برخه يعني د زوال نه وروسته بيمار پرسي كوي نو دعاءدرحمت او مغفرت كوي اويا زره |
| مَلَكٍ حَتَّى يُصْبِحَ وَ كَانَ لَهُ خَرِيفٌ فِي الْجَنَّةِ .[1] |
| فرښتي دده دپاره تر سحره پورې او په جنت كې دده دپاره يو باغ مقرر كړى شي. |
| ﴿۲۹﴾ وَ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ : عَادَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه وايي چې "نبي كريم ﷺ زما بيمار پرسى ته راغلو په داسې وخت |
| مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِعَيْنَيَّ.[2] |
| كې زما په سترګو درد ؤ. |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۴۷۵، رقم الحديث ۳۰۹۸، والترمذي في السنن ۳/۳۰۰ رقم الحديث :۹۶۹

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۴۷۷، رقم الحديث ۳۱۰۲، وأحمد في المسند ۴/۳۷۵

**توضیح**: د دې حدیث نه معلومه شوه چې نبي کریم ﷺ د زید بن ارقم بیمار پرسي په یوه معمولي مریضتیا کې هم کړي وه. یعنې کله چې د هغې سترګې خوږېدلې نو هغه وخت نبي کریم ﷺ د هغې بیمار پرسي وکړه. ددې نه امت ته تعلیم ملاؤ شو چې بیماري که وړه هم وي خو بیمار پرسي سنت ده، ثواب پرې ملاوېږي.

**سوال**:په جامع صغیر کې یو روایت راغلی دی چې په هغې د درې مریضتیاګانو د بیمار پرسۍ د نه کولو ویل شوي دي.یعنې کله چې په سترګه کې درد وي، یا په جامبه کې درد وي یا کومه دانه وغیره وي. حال دا چې دلته نبي کریم ﷺ د سترګې د خوګېدلو هم بیمار پرسي کړې ده.

**جواب**:د دې درې مریضتیاګانو د بیمار پرسۍ ممانعت چې په کوم روایت کې راغلی دی هغه عام نه دی بلکې خاص د هغه خلکو د بیمار پرسۍ کولو نه منع کړې شوې ده چې په هغې سره مریض نور هم د مرض د ډېرېدو خطر وي مثلاً یو داسې بزرګ د بیمار پرسۍ لپاره لاړ شي چې د هغې لپاره مریض د سترګو کولاؤ باندې مجبور شي یا په خبرو کولو باندې مجبور شي او ناستې ته مجبور شي. په دې درې صورتونو کې د مریض سترګو، غاښونو و د زخمونو تکلیف ډېرې دلی شي. نو ځکه منع کړې شوې ده. لهذا د دواړو حدیثونو محمل جلا جلا دی نو تعارض نشته دی. (المرقات:۴/۳۰).

## په اودس کې د بیمار پرسۍ فضیلت

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ تَوَضَّأَ |
| حضرت انس رضي الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل "کوم سړي چې اودس وکړو او |
| فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ وَ عَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ مُحْتَسِبًا |
| ښه(یعنې پوره)اودس یې وکړو اوبیا یې(د حصول)ثواب په اراده دخپل مسلمان وروربیمارپرسي وکړه |
| بُوعِدَ مِنْ جَهَنَّمَ مَسِيْرَةَ سِتِّيْنَ خَرِيْفًا.[1] |
| نو هغه د دوزخ نه د شپیتو (۶۰) کالو (د مسافې) په اندازه لرې ساتلی کېږي. |

**توضیح**: اودس ښه شي دی. هر مسلمان له په هر ممکن وخت کې په اودس کې ګرځېدل په کار دي. دغه شان د بیمار پرسۍ لپاره تلل وي نو اودس کول مستحب دې ځکه هلته د دعا ضرورت پېښېږي دلی شي. چې د هغې لپاره اودس ډېر ښه دی. همدغه شان د مونځ صورت کېدلی شي. نو ښه تیار تلل په کار دي.

**خریف**:د خزان موسم ته وایي او دا په کال کې یو ځل راځي. لهذا یو خریف د کال برابر وي نو شپیته

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۴۷۵، رقم الحديث : ۳۰۹۷.

(۶۰) کاله شو. خرفته باغ ته هم وايي. ددې سه مخکې حديث کې ذکر شوی دی. دلته کال مراد دی. (المرقات۳۱ /۴، الكاشف :۳/۴۱۶).

## د عیادت په وخت کې د مریض د پاره دعاء

﴿۳۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " مَا مِنْ مُسْلِمٍ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "کله چې يو مسلمان د مريض

يَعُودُ مُسْلِمًا فَيَقُولُ سَبْعَ مَرَّاتٍ : أَسْأَلُ اللهَ الْعَظِيمَ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ

مسلمان بیمارپرسي کوي او اوه (۷) ځل داووايي چې :زه د الله تعالی چې د عرش مالک دی دعاء کوم

أَنْ يَشْفِيَكَ إِلَّا شُفِيَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ قَدْ حَضَرَ أَجَلُهُ ".[1]

چې تاته شفاء درکړي، نو الله تعالی هغه ته شفا ورکوي خو په دې شرط چې د هغې وخت نه وي راغلی (يعني هغه مرض لاعلاجه نه وي).

## د تبې او درد ونو د پاره يو عجيبه دَم

﴿۳۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : كَانَ يُعَلِّمُهُمْ

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابؤ ته ښودنه کوله چې هغوی (يعني

مِنَ الْحُمّٰى وَ مِنَ الْأَوْجَاعِ كُلِّهَا أَنْ يَقُولُوا : بِسْمِ اللهِ الْكَبِيرِ

مريضان خلک) تبه بلکې د هر درد (نه د شفاء) لپاره داسې دعاء وکړه: زه برکت غواړم د الله تعالی په نوم سره

أَعُوذُ بِاللهِ الْعَظِيمِ مِنْ شَرِّ كُلِّ عِرْقٍ نَعَّارٍ وَ مِنْ شَرِّ حَرِّ النَّارِ.

او پناه غواړم د الله تعالی، د هر رګ جوش وهونکي د بدی نه (يعني د تکليف) نه او د اور د بدی نه.

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ

امام ترمذي دا حديث نقل کړی او وايي چې دا حديث غريب دی ځکه چې مونږ دا نه پيژنو په غير د حديث

إِبْرَاهِيمَ بْنِ إِسْمَاعِيلَ وَ هُوَ يضعف فِي الحَدِيث .[2]

د ابراهيم بن اسماعيل نه او هغه يعني ابراهيم روايت د حديث په باره کې ضعيف شمارلی کيږي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱۷۹/۳، رقم الحديث ۳۱۰۶، والترمذي في السنن ٤/٤٠٠ رقم الحديث ۲۰۸۰.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۰۲/٤ رقم الحديث ۲۰۷۵

**توضیح**: عرق رګ ته وايي او "**لعار**" د ويني سره جوش وهلو په معنی کې دی. عرب وايي "**نعر العرق**" يعنې په رګ کې ويني جوش ؤهلو يا په تبه کې هم داسي کېږي. چې په رګونو کې د ويني زور ډېر شي چې خطرناک وي. همدغه شان "**جرح لعار**" د زخم نه چې کله ويني فواره راوځي او اواز وکړي نو هغې ته نعار وايي. (المرقات ۴/۳۲).

## د کړدې کاڼړي د پاره مجرب دَم

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : " مَنِ |
| حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې: څوک چې په |
| اشْتَكَى مِنْكُمْ شَيْئًا أَوِ اشْتَكَاهُ أَخٌ لَهُ فَلْيَقُلْ : رَبُّنَا |
| تاسو کې کله بيمار شي يا د هغه کوم ورور بيمار شي نو هغه ته په کار ده چې دا دعا ووايي: زمونږ پروردګار |
| اللهُ الَّذِيْ فِي السَّمَاءِ تَقَدَّسَ اسْمُكَ أَمْرُكَ فِي السَّمَاء وَ الْأَرْض كَمَا |
| الله دی چې په آسمان کې دې (د ټولو نقصانونو نه) ستا نوم پاک دی، ستا حکومت، آسمان او زمکه (دواړه) |
| رَحْمَتُكَ فِي السَّمَاءِ فَاجْعَلْ رَحْمَتَكَ فِي الْأَرْضِ |
| کې دې لکه څنګه چې ستا رحمت په آسمان کې دی همدغه شان ته خپل رحمت په زمکه را وليږې، ته زمونږ |
| اغْفِرْ لَنَا حُوبَنَا وَ خَطَايَانَا أَنْتَ رَبُّ الطَّيِّبِينَ |
| واړه او غټ ګناهونه معاف کړې ته د پاکو خلکو پروردګار يې (يعنې د دوي محب او کارسازيې) او ته د خپل |
| أَنْزِلْ رَحْمَةً مِنْ رَحْمَتِكَ وَ شِفَاءً مِنْ شِفَائِكَ عَلَى هٰذَا الْوَجَعِ فَيَبْرَأُ ".[1] |
| رحمت نه (چې په شي باندې خور دی) رحمت (عظيم) نازل کړې او د دې مريضتيا نه راته شفاء راکړې. |

**توضیح**: حوب: لوې ګناه ته وايي. **خطايا** نورو وړو ګناهونو ته وايي يعنې زمونږ واړه او غټ ټول ګناهونه معاف کړې که هغه قصداً وي او که خطأً وي.

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۲۱۰، رقم الحديث ۳۸۹۲، وأحمد في المسند ۶/۲۱

## د جهاد د پاره د تندرستۍ دعا

| |
|---|
| ﴿٣٤﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا جَاءَ |
| حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "كله چې راشي يو |
| الرَّجُلُ يَعُوْدُ مَرِيْضًا فَلْيَقُلْ اللّٰهُمَّ اشْفِ |
| سړی د مريض د بيمارپرسۍ د پاره نو هغه ته دا دعائيه الفاظ لوستل په كار دي يعنې ای الله! شفاء وركړې |
| عَبْدَكَ يَنْكَأُ لَكَ عَدُوًّا |
| خپل بنده ته چې هغه ستا دښمنانو ته عبرتناكه سزا وركړي (يعني د دين د ښمنانو سره جهاد وكړي او هغوي |
| أَوْ يَمْشِيْ لَكَ إِلٰى جِنَازَةٍ.[1] |
| زخمي او مړه كړي) يا الله! ستا خوشالۍ او ستا د رضا په خاطر د جنازې مونځ د پاره راون يو. |

**توضيح** : **اشف**: شفاء د امر صيغه ده "**عبدك**" د دې نه مريض او مريض بنده مراد دی.

**ينكا**: دا صيغه د همزه سره هم ده او بغير د همزه نه هم راځي د همزه سره د باب **فتح يفتح** د د دښمن د وهلو او د عبرتناكې سزه وركولو په معنی كې دی. دلته دا صيغه د مجزوم جزم سره هم ده. ځكه د امر په جواب كې ده او مرفوع هم ده "**ای فانه ينكا**" دا د زخمي كولو او د عبرتناكې سزا وركولو په معنی كې دی. (المرقات ۴/۳۴، الكاشف : ۳/۳۱۸).

مطلب دا چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه مريض د شفاء لپاره د جهاد وسيله او ذريعه جوړه وكړه. چې ای الله! دې بنده ته شفاء وركړې. ستا په لاره كې به جهاد كوي. د جهاد په بركت سره ده ته شفاء وركړې. دا سړی به ستا دښمنانو ته سزه وركووي هغه به زخمي كړي او د هغوی سره به جهاد كوي او كه د دې وخت نه وُو نو كم نه كم د يو مسلمان په جنازه كې به لاړ شي يا به د شهيد جنازه وكړي. د دې حديث نه د جهاد د عظمت اندازه كېږي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وسيله او ذريعه كړه او د الله تعالی نه يې د دعا د قبوليت خواست وكړو چې كه بنده روغ شي نو به دا جهاد په شان لوي عمل كوي او د الله تعالی دښمنانو ته به شكست وركوي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴۸۰/۳، رقم الحديث : ۳۱۰۷ ، وأحمد في المسند ۱۷۲/۲.

## د مريض تكليف د ګناهونو كفاره ده

﴿۳۵﴾ وَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أُمَيَّةَ أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ

حضرت علي رضي الله عنه ابن زيد (بصري تابعي) د اميه نه روايت كوي چې هغه تپوس وكړو د حضرت عائشې

عَنْ قَوْلِ اللهِ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى : ﴿ إِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ

رضي الله عنها نه د الله تعالى د دې ارشاد د معنې په باره كې چې تاسو هغه شې چې ستاسو په زړونو كې دې ظاهره

أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللهُ ﴾ وَ عَنْ قَوْلِهِ : ﴿ مَنْ

كړې يا پټ كړې، الله تعالى به تاسو نه د هغې حساب اخلي، او د دې قول په باره كې چې : كوم سړې چې

يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ ﴾

بد عمل كوي (يعنې هغه كه وړه ګناه وي او كه لويه ګناه) نو د هغې جزاء دركول كيږي (يعنې د هغه سزا

فَقَالَتْ : مَا سَأَلَنِي عَنْهَا أَحَدٌ مُنْذُ

په دنيا كې يا په آخرت كې) عائشه رضي الله عنها وويل چې "څنګه ما د دې باره كې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه

سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ :

پوښتنه كړې وه هغه شان چا زما نه د دې باره پوښتنه نه ده كړې نو هغه (زما په پوښتنه باندې) وفرمايل چې

هٰذِهِ مُعَاتَبَةُ اللهِ الْعَبْدَ

"دا (يعنې محاسبه او سزا چې د واړه په آيتونو كې ذكر دي) د الله تعالى عذاب دى چې په هغې كې بنده

فِيمَا يُصِيبُهُ مِنَ الْحُمَّى وَ النَّكْبَةِ حَتَّى الْبِضَاعَةِ يَضَعُهَا فِي يَدِ قَمِيصِهِ

د تبې او د تكليف په صورت كې اخته شي تر دې چې يو بنده كيږدي خپل څه مال، د قميص لستوڼي (يا جيب)

فَيَفْقِدُهَا فَيَفْزَعُ لَهَا

كې او (بيا هغه مال ورك شي) او ونه موندلى شي نو هغه د دې په نه موندلو باندې خفه شي (نو د هغې په وجه

حَتَّى إِنَّ الْعَبْدَ لَيَخْرُجُ مِنْ ذُنُوبِهِ

د هغه ګناهونه معاف كيږي او هميشه دغه سلسله روانه وي چې بنده په يو تكليف او غم كې اخته وسي)

كَمَا يَخْرُجُ التِّبْرُ الأَحْمَرُ مِنَ الْكِيْرِ.[۱]

تردې چې هغه بنده د خپل ګناهونو نه داسې پاک شي لکه سره زر چې د اور د بهټۍ نه راوځي.

**توضيح**: دې صحابي د حضرت عائشه رضي الله عنها نه د دغه دوه آيتونو باره کې ځکه پوښتنه وکړه چې د دې آيتونو په مطلب کې هغه په يوه پريشانۍ کې اخته وه نو هغه صحابي دا ګڼل چې په اول آيت کې دې چې د زړه د پټو خبرو به حساب کېږي دا خو ډير مشکل ده ځکه د زړه د خيالاتو او د وسوسو نه بچ کيدل ممکن نه دي.

د دويم آيت مطلب دا چې سړی کوم يو عمل کوي د هغې بدله به ورکړی کېږي. نو سړی به د وړو ګناهونو په وجه عذاب کې اخته شي حال دا چې د وړو ګناهونو نه بچ کيدل ډير ګران کار دی. د دې په جواب کې حضرت عائشه رضي الله عنها وفرمايل چې د کله نه ما د دې آيتونو باره کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه کړې وه. نو د هغې نه وروسته د دې متعلق چا هم د دې باره کې پوښتنه نه ده کړې. فقط تا وپوښتل. نبي کريم صلى الله عليه وسلم ماته په جواب کې وفرمايل چې "هذه" يعنې دا محاسبه او سزه چې په دواړو آيتونو کې ذکر دي. ددې نه د الله تعالى سزا اړخ ته اشاره ده چې سړي ته د تبې په صورت کې وشي يا د يو بل مصيبت په صورت کې وشي تردې چې د قميص په لستوڼي کې چې څه شی يخې وي او هغه ورک شي او د هغې په وجه سړی په تشويش کې شي. دا ټول شيان د هغه قلبي خيالونو او د هغه اعمالو بدله ده. تردې چې د دغه وړو سزه ګانو سره سړی د ګناهونو نه داسې پاک شي لکه څنګه چې د بهټۍ نه سره زر پاک صفا راوځي. (المرقات ۴/۳۵).

**معاتبته**: د دوو انديوالو په مينځ کې د محبت باوجود غم او سزا ته عتاب وايي. (المرقات ۴/۳۵).

**نكبة**: د تکليف او مصيبت او حوادثو په معنى کې دی.

**بضاعة**: معمولي سامان ته وايي. (المرقات ۴/۳۶).

**يد قميصه**: د قميص د لاس نه مراد لستوڼي دی. پخوا زمانه کې به لستوڼي کې د سامان ايخودلو لپاره به جيب وُو. په هغې کې به سامان کيخودلی کيدلو. يا جيب مخکې سينې باندې جوړيدل شروع شو. يا اړخونو (ترخونو) باندې جوړ شول او اوس په پرتوګ کې هم جوړيږي. (المرقات ۴/۳۶).

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۲۱/۵ رقم الحديث ۲۹۹۱، وأحمد في المسند ۲۱۸/۶

## دتکلیفونو کفاره دګناهونو کفاره ګرځي

| |
|---|
| ﴿۳٦﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسٰى أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : " لَا يُصِيبُ عَبْدًا نَكْبَةٌ |
| حضرت ابو موسی رضي الله عنه راوي دی وايي چې : نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم څه چې رسیږي |
| فَمَا فَوْقَهَا أَوْ دُونَهَا إِلَّا بِذَنْبٍ وَمَا |
| بنده ته دمعمولي ضرراويا تکليف نه هغه که لږ وي او که ډيروي داد هغه دګناهونو ثمره وي او هغه ګناه چې |
| يَعْفُو اللهُ عَنْهُ أَكْثَرُ |
| هغه الله تعالى (بغير د سزاور کولو نه) په دنيا او آخرت کې بخښي د هغه ګناهونو نه ډيروي چې هغه باندې |
| وَ قَرَأَ : ﴿ وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ |
| هغه سزاور کوي او نبي علیه الصلاة والسلام دا آیت ولوستو (ترجمه) : او هر قسمه مصيبت چې تاته رسيږي هغه |
| فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَ يَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ ﴾.(۱) |
| ستاسو د لاس نه پيدا کيږي او الله تعالى ډير زيات (ګناهونه يا ګناه ګاران) معاف کوي. |

**توضيح** : يعنې څه تکليف چې تاسو ته رسيږي هغه ستاسو د بد عملونو وجه ده او الله تعالى ډير زيات ګناهونه معاف کوي. لهذا که مو ارام او راحت په کار وی نو د ګناهونو نه منع شئ. ددې نه معلومه شوه چې امتحان او حوادث د ګناهونو په وجه راځي. خو کوم خلک چې په ظاهري توګه د غټو ګناهونو مرتکب نه وي او په هغوی باندې کوم مصيبت راشي نو هغه د هغوی لپاره د امتحان او د درجو د اوچتولو لپاره سبب جوړيږي. علماؤ ليکلی دې چې ځينې اسماني مصيبتونه او حوادث داسي وي چې د هغې هيڅ سبب معلوم نه وي نو داد الله تعالى د طرفه د څه حکمت د لاندې وي. او ځينې مصيبتونه داسي وی چې د هغوی لپاره څه ظاهری سبب وي دا انسان د خپل طرفه د ګناهونو نتيجه وي. (المرقات ۴/۳۷).

## په بيمارۍ کې د تندرستۍ عملونه جاري وي

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " إِنَّ الْعَبْدَ |
| حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : چې کله بنده د |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۷۷/۵ رقم الحديث : ۳۲۵۲ ، وأحمد في المسند ۱۶۷/٦.

| إِذَا | كَانَ | عَلَى | طَرِيقَةٍ | حَسَنَةٍ | مِنَ | الْعِبَادَةِ | ثُمَّ | مَرِضَ | قِيلَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عبادت په نیکه لاره راوخي او مریض شي (او په هغه عبادت کولو باندې قادر نه شي) نو ورته وویل شي | | | | | | | | | |
| لِلْمَلَكِ الْمُوَكَّلِ بِهِ : | | | | | | | | | |
| هغه فرښتې ته چې په دې بنده باندې (ددې په نیک عملونو لیکلو باندې) مقرره وي (یعني الله تعالی | | | | | | | | | |
| اكْتُبْ | لَهُ | مِثْلَ | عَمَلِهِ | إِذَا | كَانَ | طَلِيقًا | | | |
| وايي) چې ددې بنده دپاره (ددې په اعمال نامه کې، ددې د هغه عمل مثل ولیکه چې کوم به یې د تندرستی | | | | | | | | | |
| حَتَّى | أُطْلِقَهُ | أَوْ | أَكْفِتَهُ | إِلَيَّ ". [1] | | | | | |
| په حالت کې کول) تردې چې هغه تندرست کړم یا هغه ځان ته راوبلم. | | | | | | | | | |

**توضیح:** دغه قسمه حدیث مخکې په ۲۲ نمبر کې تیر شوی د او د دې توضیح هم شوي ده. مطلب دا دی چې په مریضتیا کې الله تعالی د عمل لیکونکي فرښتي ته حکم وکړي چې دې به د مریضتیا په حالت کې کوم عبادت کولو هغه ورله اوس هم لیکه اګر که هغه عمل نه کوي دا د الله تعالی ډیر لوی احسان دی.

**اکفته:** دا د ضرب یضرب نه د واحد متکلم صیغه ده. د یو شي راغونډه ولو ته وایي مراد ترې نه مرګ دی.

**طلیقا:** یعني هغه وخت چې دا سړی مریض نه ؤو **طلیق** او مطلق د ازادولو په معنی کې دی.

**اطلقه:** یعني د دې مریضتیا نه یې خلاص کړم د باب **افعال** نه د واحد متکلم صیغه ده.

**اکفته:** همزه مفتوح دی **کفت** د **ضرب یضرب** نه د راغونډولو په معنی کې دی. مراد ترې نه مرګ دی. (المرقات ۴/۳۸).

| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا ابْتُلِيَ الْمُسْلِمُ بِبَلَاءٍ فِيْ |
|---|
| حضرت انس رضي الله عنه روایت دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې یو مسلمان اخته شي په |
| جَسَدِهِ قِيلَ لِلْمَلَكِ : |
| جسماني توګه مریضتیا کې نو الله تعالی (د هغه بنده د نیکۍ لیکونکي) فرښتي ته وایي چې ددې په |

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۴۰۷، رقم الحديث ۲۷۷۰، وأحمد في المسند ۲/۲۰۳

| فَإِنْ | يَعْمَلُ | كَانَ | الَّذِيْ | عَمَلِهٖ | صَالِحَ | لَهٗ | اكْتُبْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اعمال نامه کې ته همغه نیکي لیکه چې دي (ددې مریضتیانه مخکې) کولي نو که الله تعالی دې مسلمان

شَفَاهُ غَسَّلَهٗ وَ طَهَّرَهٗ وَ إِنْ قَبَضَهٗ غَفَرَ لَهٗ وَ

ته شفاء ورکړه نو هغه دده ګناهونه وینځي او پاک یې کړي او که هغه واخلي نو معاف یې کړي او په ده

رَحِمَهٗ". رَوَاهُمَا فِي شرح السّنة (۱)

باندې رحم وکړي".

## د شهیدانو اقسام

﴿۳۹﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: " الشَّهَادَةُ سَبْعٌ

جابر ابن عتیک رضی الله عنه روایت دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: شهادت په اوه قسمه دي په

سِوَى الْقَتْلِ فِي سَبِيْلِ اللهِ: الْمَطْعُونُ شَهِيدٌ

غیر د هغه شهادت نه چې د الله تعالی په لاره کې دی: ۱: څوک چې په طاعون کې مړ شي دا شهید دی،

وَ الْغَرِيْقُ شَهِيدٌ وَ صَاحِبُ ذَاتِ الْجَنْبِ

۲: چې په اوبو کې ډوب شي شهید دی ۳: څوک چې په ذات الجنب (یو قسم زخم دی چې د انسان په اړخ

شَهِيدٌ وَ الْمَبْطُونُ

کې د غوبنې لاندې پیدا کیږي) کې مړ شي شهید دی ۴: څوک چې د خیټې د ناروغی نه (یعنې د دست

شَهِيدٌ وَ صَاحِبُ الْحَرِيقِ شَهِيدٌ وَ الَّذِيْ

او استسقاء) نه مړ شي شهید دی ۵: کوم سړي چې په سوځیدلو سره مړ شي شهید دی ۶: کوم سړي چې

يَمُوتُ تَحْتَ الْهَدْمِ شَهِيدٌ وَ الْمَرْأَةُ تَمُوتُ بِجُمْعٍ شَهِيدٌ ". (۲)

د دیوال وغیره لاندې شي او مړ شي شهید دی ۷: او هغه ښځه چې د حمل په وخت کې مړه شي شهیده ده.

**توضیح**: مطلب دا چې حقیقي شهید هغه ده چې د کفارو په مقابل کې شهید شي خو د دینه بغیر د ټولو حکمي شهیدانو شمیره اووه ده. (المرقات ۴/۳۹).

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱۴۸/۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۴۸۲/۳، رقم الحديث: ۳۱۱۱.

**ذات الجنب**:د نمونیه مریضتیا ده. په دې سره په ترخ، سینه او په زړه کې داني راوخیژي. چې د هغې په وجه مریض ته خیږي او ساه یې بندیږي. (المرقات۴/۳۹).

**بجمعه**:دا لفظ د مجموع اړخ ته اشاره ده. مراد ترینه هغه ښځه ده چې د خیټې بچې سره مړه شي. ددې نه ماشوم د پیدائښت ټول احوال مراد دي. که د ولادت حمل نه مخکې په حمل کې مړه شي یا د ماشوم په درد کې مړه شي یا د ولادت نه وروسته په څلویښتو (۴۰) ورځو کې دننه مړه شي. دا ټول صورتونه د شهادت حکمي دي. (المرقات۴/۳۹).

## لوی درجو والا باندې لوی مصیبتونه راځي

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَ عَنْ سَعْدٍ قَالَ : سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَيُّ النَّاسِ |
| حضرت سعد رضي الله عنه وایي چې د نبي کریم ﷺ نه پوښتنه وشوه چې په خلکو کې کوم یو کس (په |
| أَشَدُّ بَلَاءً ؟ قَالَ : الْأَنْبِيَاء ثُمَّ |
| محنت او مصیبت کې) ډیر زیات اخته کیږي؟نبي کریم ﷺ وفرمایل چې: انبیاء او بیا هغه خلک |
| الْأَمْثَلُ فَالْأَمْثَلُ يُبْتَلَى الرَّجُلُ عَلَى حَسَبِ دِيْنِهٖ |
| چې د انبیاؤ سره ډیر مشابه وي، بیا هغه خلک چې ددوي سره ډیر مشابه وي (بیا نبي کریم ﷺ |
| فَإِنْ كَانَ فِيْ دِيْنِهٖ صُلْبًا |
| وفرمایل چې) انسان د خپل دین مطابق (په مصیبت کې) اخته کیږي نو کوم سړی چې په خپل دین کې ډیر |
| اشْتَدَّ بَلَاؤُهٗ وَ إِنْ كَانَ فِيْ دِيْنِهٖ رِقَّةٌ هُوِّنَ عَلَيْهِ |
| محنت کوي نو د هغه مصیبت هم سخت وي او که هغه په خپل دین کې نرم وي نو د هغه مصیبت هم سپک وي |
| فَمَا زَالَ كَذٰلِكَ حَتّٰى |
| لهذا په خپل دین سخت سړی، د غه شان (په مصیبتو او مشکلاتو کې راګیر وي) چې د هغې په وجه د هغه |
| يَمْشِيَ عَلَى الْأَرْضِ مَا لَهٗ ذَنْبٌ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ حسن صَحِيح.(۱) |
| مغفرت وشي تردې چې هغه په زمکه په داسې حال کې ګرځي چې د هغې په اعمال نامه کې هیڅ ګناه نه وي. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۶۰۱/۳ رقم الحديث ۲۳۹۸، وأحمد في المسند ۱۷۲/۱

**توضيح**: د دې حديث مطلب دا دی چې په انبياؤ باندې د ټولو نه ډير مصيبتونه راځي. په هغوی کې چې کوم يو په ډير اوچت مقام باندې وي په هغې ډير تکليفونه راځي.

نو ځکه په نبي کريم ﷺ باندې د ټولو نه ډير تکليفونه راغلي دې ځکه د نبي کريم ﷺ مقام ډير اوچت ؤو. نو برخه د بدن په اندازه باندې ده. او د اوچتو درجاتو په وجه مصيبتونه راځي. لکه د دورهٔ حديث محصلين د دې معيار مطابق وي او د درجه اولیٰ محصلين د امتحان په معيار باندې وي. همدغه شان د انبياؤ نه وروسته د انبياؤ په وارثينو د علماؤ، اولياؤ او صالحينو معامله ده.

**يبتلى الرجل**: د دې نه د سابقه جملې تشريح او توضيح او تفسير مقصود دی.

**صلبا**: تصلب د سختۍ او د مضبوط والي په معنی دی چې په دين کې مضبوط دی. (المرقات۴/۴۰).

**رقة**: يعني دين نرم دی، ايمان کمزوری دی، معيار کم دی. (المرقات۴/۴۰).

**هون**: د نرمۍ کولو او د سهولت ورکول په معني کې دی. (المرقات۴/۴۰).

الله تعالی د خپل رحمت او ډلوي حکمت د لاندې داسې اساني کړې ده ګينې که دا امتحان د ټولو يو شان وی نو ډير کمزورو ايمانونو والاؤ به ايمان سره مخه خا کړې وی.

## د مرګ سختی خراب څيز نه دی

| |
|---|
| ﴿٤١﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : مَا أُغْبِطُ أَحَدًا بِهَوْنِ مَوْتٍ بَعْدَ الَّذِيْ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي: چې زه فخر نه کوم د چا د مرګ په آسانۍ باندې د هغه وخت نه پس چې ما |
| رَأَيْتُ مِنْ شِدَّةِ مَوْتِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[۲] |
| ليدلي دي د مرګ سختي د نبي کريم ﷺ. |

**توضيح**: د حضرت عائشې رضي الله عنها د کلام مطلب دا دی چې ما به مخکې د مرګ سختۍ او د نزع د حالت تکليف د مسلمان لپاره بده ګڼله خو کله مې چې د نبي کريم ﷺ د نزع د حالت سختي وليدله نو اوس زه د چا د مرګ په اسانۍ باندې فخر نه کوم ځکه دا د درجو د اوچتولو ذريعه ده.

**اغبط**: د فخر کولو په معنې کې دی، هون: دا د نرمۍ او د سهولت په معنی کې دی. (المرقات۴/۴۰).

---

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۰۹ رقم الحديث ۹۷۹.

## د سکرات الموت په وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمل

﴿۴۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ بِالْمَوْتِ

حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ما وليدو نبي کريم صلى الله عليه وسلم چې د سکرات الموت په حالت کې و. د

وَ عِنْدَهُ قَدَحٌ فِيهِ مَاءٌ وَ هُوَ يُدْخِلُ يَدَهُ فِي الْقَدَحِ ثُمَّ

نبي کريم صلى الله عليه وسلم خوا کې يو پياله وه نبي کريم صلى الله عليه وسلم به هغه پياله کې لاس خکته کړو او بيا

يَمْسَحُ وَجْهَهُ ثُمَّ يَقُوْلُ : اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى مُنْكَرَاتِ

به يې خپل لاس مبارک په مخ باندې راخکلو او دا به يې فرمايل اى الله! زما مدد وکړې په لرې کولو د

الْمَوْتِ أَوْ سَكَرَاتِ الْمَوْتِ .[1]

سختۍ د مرګ سره يا د "مرګ د سختۍ" په ځاى "د مرګ شدت" وفرمايلو.

**توضيح:** سکراة: د سکرة جمعه ده د دې نه مراد د مرګ شدت دى. (المرقات۴/۴۰).

نبي کريم صلى الله عليه وسلم په پياله کې لاس وهلو او په خپل مخ به يې راخکلو چې د ساه وتلو په وجه چې بدن کې کوم ګرمائش پيدا کېږي هغه لرې سپک شي. په نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندې دا د نزع تکليف ځکه راغلو چې په دې سره امت ته سبق ورکړى شي چې د نزع حالت يو طبعي شى دى. که په چا راغله نو د نبي کريم صلى الله عليه وسلم حالت دې راياد کړي او اطمينان دې حاصل کړي. او نه دې نا اميده کېږي.

## د دنيا سزا د آخرت د سزا نه بهتره ده

﴿۴۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا أَرَادَ اللهُ تَعَالَى

حضرت انس رضي الله عنه راوي دى وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې الله تعالى اراده وکړي

بِعَبْدِهِ الْخَيْرَ عَجَّلَ لَهُ الْعُقُوبَةَ فِي الدُّنْيَا وَ إِذَا أَرَادَ اللهُ بِعَبْدِهِ الشَّرَّ

يو بنده ته د خير نو هغه ته د ګناهونو سزا زر په دنيا کې ورکړي او کله چې د بنده نه د بدو اراده کوي نو د

أَمْسَكَ عَنْهُ بِذَنْبِهِ حَتَّى يُوَافِيَهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[2]

هغې سزا ګاني بندي کړي تردې چې د قيامت په ورځ هغې ته د ګناهونو پوره پوره سزا ورکړي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۰۸ رقم الحديث ۹۷۸.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۱ رقم الحديث ۲۳۹۶، وأحمد في المسند ۴/۸۷.

## د الله تعالى په رضا راضي كيدل په كار دي

| |
|---|
| ﴿٤٤﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ عُظْمَ الْجَزَاءِ مَعَ عِظَمِ الْبَلَاءِ |
| حضرت انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې لوي اجر دی د لوي مصايبو |
| وَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ إِذَا أَحَبَّ قَوْمًا ابْتَلَاهُمْ فَمَنْ |
| په بدل كې او كله چې الله تعالى يو قوم خوښوي نو هغه (په مصايبو كې) اخته كړي نو څوك چې په (مصايبو |
| رَضِيَ فَلَهُ الرِّضَا وَ مَنْ سَخِطَ |
| كې) راضي شو نو د هغه دپاره (د الله تعالى) رضا ده او كوم سړی چې (په مصايبو كې) ناراضه ؤ نو د |
| فَلَهُ السَّخَطُ.[1] |
| هغه دپاره د الله ناراضګي ده. |

**توضيح**: په دې حديث كې د مصيبت په وخت كې د انسان د ژوند دوه اړخونه ذكر شوي دي چې كله الله تعالى د يو انسان نه خوشحاله شي نو هغه هم په مصيبت كې اخته كړي او چې د چا نه ناراضه شي نو هغه هم په مصيبت كې اخت كړي. په دې حديث كې فقط د اول طرف ذكر شوی خو دويم طرف هم د كلام د سياق نه معلوميږي. د حديث حاصل او مطلب دا دی چې كچرې د مصيبت په وخت كې بنده د الله تعالى په رضا باندې رضا وي نو دا دې خبرې علامت دی چې الله تعالى د دې بنده نه خوشحاله او رضا دی او كه د مصيبت په وخت كې بنده د الله تعالى په رضا باندې رضا نه وي بلكې ګيلې كوي او د مصيبت په وخت كې د ناراضګۍ او ناخوشالۍ اظهار كوي نو دا د دې خبرې دليل دی چې الله تعالى د دې بنده نه خوشحاله نه دی. خلاصه دا ده چې د الله تعالى محبوب بنده په مصيبتونو كې راګير وي او هغه په هغه مصيبتونو باندې صبر كوي او اجر ومومي. (المرقات۴/۴۲).

## دنيوي مصيبت سره ګناهونه وينځل كيږي

| |
|---|
| ﴿٤٥﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَزَالُ الْبَلَاءُ |
| حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: رسيږي هميشه مصيبتونه |
| بِالْمُؤْمِنِ أَوِ الْمُؤْمِنَةِ فِي نَفْسِهِ وَ مَالِهِ وَ وَلَدِهِ حَتَّى |
| مؤمن سړي او مؤمنې ښځې ته د دوي په ځان. مال او اولاد كې ترڅو چې (كله) دوي (د مرګ نه وروسته) |

(۱) أخرجه ابن ماجه ۲/۳۳۸ رقم الحديث ۴۰۳۱

| |
|---|
| يَلْقَى اللهَ تَعَالَى وَمَا عَلَيْهِ |
| د الله تعالی سره ملاقات وکړي نو په دوي باندې (يعنې ددوي په نامه اعمال کې) هيڅ يوه ګناه نه وي |
| مِنْ خَطِيئَةٍ . وَرَوَى مَالِكٌ نَحْوَهُ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[1] |
| (ځکه د مصيبتونو) په وجه د هغې ټول ګناهونه بخښل شوي وي. |

## بيماري به د قيامت په ورځ د نيک عملونو کار کوي

| |
|---|
| ﴿٤٦﴾ وَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ خَالِدٍ السُّلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| حضرت محمد بن خالد سلمی د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه (يعنې خپل پلار) نه نقل کوي چې |
| قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللهِ مَنْزِلَةٌ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د بنده د پاره د الله تعالی د طرف نه (په جنت کې) چې کومه عظيمه درجه مقرر |
| لَمْ يَبْلُغْهَا بِعَمَلِهِ ابْتَلَاهُ اللهُ فِي جَسَدِهِ أَوْ فِي مَالِهِ أَوْ فِي وَلَدِهِ |
| کړی شي او هغه يې د خپل نيک عملونو په وجه حاصل نه کړي نو الله تعالی د هغه په بدن يا مال يا اولاد |
| ثُمَّ صَبَّرَهُ عَلَى ذَلِكَ يُبَلِّغُهُ الْمَنْزِلَةَ الَّتِي |
| (په مصيبت کې) اخته کړي او بيا هغه ته د صبر کولو توفيق ورکړي ترڅو چې هغه تر هغې درجې پورې |
| سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللهِ.[2] |
| ورسوي کومه چې د الله تعالی د طرف نه مقرره وي. |

**توضيح**: د حديث مطلب دا دی چې يو سړی د يوې اندازې مطابق نيکي کوي خو د الله په نزد د هغه درجه په جنت کې دومره لويه ده چې هغه په خپلو نيک اعمالو باندې هغه نه شي موندلی نو الله تعالی هغه په مريضتيا ګانو کې اخته کړي. د دې لپاره چې هغه په جنت کې هغه لوي مقام ته ورسيږي چې کوم د دې نه مخکې الله تعالی د هغه د پاره مقرر کړی دی.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٦٠٢/٤ رقم الحديث ٢٣٩٩ ، وأحمد في المسند ٢٨٧/٢.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ١٧٠/٣ رقم الحديث ٣٠٩٠ ، وأحمد في المسند ٢٧٢/٥.

## د بوډوالي نه بچ کيدل ممکن نه دي

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شِخِّيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مُثِّلَ ابْنُ آدَمَ |
| او حضرت عبدالله بن شخير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی، وايي چې: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: ابن آدم |
| وَ إِلَى جَنْبِهِ تِسْعٌ وَ تِسْعُونَ مَنِيَّةً |
| (انسان په داسي حال کې پيدا شوی چې د هغه طرفونو کې (يعني هغه ته نزدې) ۹۹ هلاکونکې مصايب |
| إِنْ أَخْطَأَتْهُ الْمَنَايَا وَقَعَ فِي الْهَرَمِ حَتَّى يَمُوتَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1] |
| دي که دغه مصيبتونه ده ته را نه رسېږي نو په بوډا والي کې اخته شي تردې چې هغه مړ شي. |

**توضيح**: مطلب دا دی چې الله تعالی انسان په داسي حال کې پيدا کړی دی چې د هغې نه ګير چاپيره نهه نوي (۹۹) مهلک بلاګاني ګرځي راګرځي. که بالفرض هغه د دې ټولو بلاګانو نه بچ شو. نو بوډاوالی داسي مصيبت دی چې د دې نه بچ کيدل ممکن نه دي. بوډاوالی به پرې راشي او مړ به شي.

## دنيا کې صحت مند خلک به د قيامت کې د ناروغۍ ارمان کوي

| |
|---|
| ﴿۴۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: يَوَدُّ أَهْلُ الْعَافِيَةِ |
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: آرزو او اميد به کوي اهل عافيت |
| (يعني هغه خلک چې په دنيا کې د مصيبتونو نه محفوظ ؤ او ژوندېي ډېر په راحت او مزو کې تير شوی ؤ) |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ حِينَ يُعْطَى أَهْلُ الْبَلَاءِ الثَّوَابَ لَوْ |
| د قيامت په ورځ چې کله ورکړل شي په مصيبتونو کې اخته شوو خلکو ته ثواب او اجر، چې کاش! د دوي |
| أَنَّ جُلُودَهُمْ كَانَتْ قُرِضَتْ فِي الدُّنْيَا بِالْمَقَارِيضِ. [2] |
| څرمني په قينچې باندې غوځې شوې وې په دنيا کې (لکه څنګه چې نن په دې مصيبت کې اخته شوي |
| خلکو ته ډېر اجر او ثواب ورکول کېږي ما ته به هم دغه شان ډېر ثواب راکړلی شوی وی). |

**توضيح**: **قرضت**: دا د مجهول صيغه ده **قرض** د غوڅولو په معنی کې دی. (المرقات ۴/۴۵).

**بالمقاريض**: دا د مقراض جمعه ده چې د قينچي په معنی کې دی. لکه ويل کېږي چې: **القرض مقراض**

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٤٥٥ رقم الحديث: ٢١٥

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٦٠٤ رقم الحديث ٢٤٠٢

المحبة". (المرقات ۴/۴۵).

مطلب دا دی چې کله د قیامت په ورځ مریضانو ته د مریضتیا په وجه ثوابونه ورکول شروع شي نو هغه خلک چې په دنیا کې ورته کله هم تکلیف او مریضتیا نه وه رسیدلي هغوی به ارمان کوي چې کاش په دینا کې د مریضتیا په وجه زمونږه څرمني د بیتیګانو باندې غوڅي شوې وی چې مونږ ته دا اجر ملاؤ شوی وي خو اوس دا ارمان کول بې فایده وي.

الآن قد ندمت و لم ينفع الندم

اب کیا پچھتائے ہوت جب چڑیاں چگ گئیں کھیت

(پښتو متل دی): اوس اوبه د ورخه تېرې دي.

## عقلمند سړی د ناروغۍ نه عبرت اخلي

| |
|---|
| ﴿۴۹﴾ وَ عَنْ عَامِرٍ الرَّامِ قَالَ : ذَكَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْأَسْقَامَ |
| حضرت عامر رام رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم (يو ځل) د بيماريو ذکر وکړو نو نبي عليه الصلاة والسلام |
| فَقَالَ : إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَصَابَهُ السَّقَمُ ثُمَّ عَافَاهُ اللهُ مِنْهُ |
| وفرمايل چې: مؤمن کله په بيمارئ کې اخته شي او بيا ورته الله تعالى د هغې نه خلاصى ورکړي نو دغه |
| كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضَى مِنْ ذُنُوبِهِ وَ مَوْعِظَةً لَهُ فِيمَا يَسْتَقْبِلُ . |
| بيماري (فقط دا نه چې) هغه د وروستنيو ګناهونو کفاره شي بلکې د راتلونکي زماني د پاره د نصيحت سبب |
| وَ إِنَّ الْمُنَافِقَ إِذَا مَرِضَ ثُمَّ أُعْفِيَ |
| هم شي (يعنې بيماري دا هو بنيار کړي نو بيا د پاره ګناه نه کوي) او کله چې منافق مريض شي او بيا هغه ښه شي |
| كَانَ كَالْبَعِيرِ إِذَا عَقَلَهُ أَهْلُهُ ثُمَّ أَرْسَلُوهُ فَلَمْ يَدْرِ لِمَ عَقَلُوهُ وَلَمْ يَدْرِ |
| نو د ده مثال دا وښ په شان وي لکه اوښ چې خپل مالک وتړوا و بيا يې پرېخودوا و اوښ په دې نه پوهيږي |
| لِمَ أَرْسَلُوهُ . فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللهِ ( صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ) |
| چې دده مالک دا ولي تړلی ؤاو ولي يې پرېخودو؟ (ددې په اوريدو سره) يو سړي وويل چې: يارسول الله |
| وَمَا الْأَسْقَامُ ؟ وَ اللهِ مَا مَرِضْتُ قَطُّ فَقَالَ : |
| بيماري څه شی ده؟ قسم په خدای که زه کله هم مريض شوی نه يم؟ نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل |

| ثُمَّ عَنَّا فَلَسْتَ مِنَّا.[1] |
|---|
| زمونږ د خوا نه پاسه ته زمونږ نه، نه یې. |

**توضیح**: د دې حدیث مطلب واضحه ده. د نبي کریم ﷺ د ارشاد خلاصه دا ده چې یو ورځ نبي کریم ﷺ د مریضتیا ګانو تذکره وکړه او مؤمن او د منافق او مریض کیدلو او بیا د رغیدلو تذکره یې وکړه چې د مؤمن مریضتیا د هغې د ګناهونو کفاره وي او بیا لپاره ورته عبرت او نصیحت وي او توبه او استغفار کوي. خو منافق چې کله مریض شي او بیا تندرسته شي نو د هغې مریضتیا نه هیڅ عبرت او نصیحت اخلي بلکې د یو ښارري لکه د اوبن په شان وي چې هغه مالک ولي وتړلو او بیا یې ولي پرانیزلو؟ منافق نه توبه کوي، نه عبرت اخلي او نه استغفار وایي. د نبي کریم ﷺ په مجلس کې یو سړي پوښتنه وکړه چې دا مرض څه شی دی؟ زه خو کله نه یم مریض شوی. نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل زمونږ د خوا نه لاړ شه ځکه ته د مصیبتونو په لحاظ سره زمونږ نه نه یې. اګر که په اسلام قائم یې، کافر نه یې خو په دې خاصه شعبه کې د اسلام په طریقه نه یې. ځکه مسلمان په مصیبتونو او مشکلاتو کې اخته کېږي. (المرقات۴/۴۶،الکاشف:۳/۳۲۶).

## د بیمارپرسۍ په وخت کې بیمار ته اطمینان ورکوۍ

| ﴿۵۱﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا دَخَلْتُمْ عَلَى |
|---|
| حضرت ابو سعید رضي الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: کله چې تاسو لاړ شئ |
| الْمَرِيضِ فَنَفِّسُوا لَهُ فِي أَجَلِهِ |
| مریض(د هغه د حال پوښتني) ته نو د هغې د ژوند باره کې د هغه غم لرې کړۍ (یعني اطمینان ورکوۍ) |
| فَإِنَّ ذَلِكَ لَا يَرُدُّ شَيْئًا وَ يُطَيِّبُ |
| ځکه دا (تسلي اګرکه) هیڅ یو شی (یعني د مقدر لیکنه) نه شي منع کولی (مګر) دې سره خوشحالیږي |
| بِنَفْسِهِ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2] |
| (ضرور) زړه د مریض. |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۴۶۸ رقم الحديث ۳۰۸۹.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۱۲ رقم الحديث ۲۰۸۷.

**توضیح: فنفسوا له:** تنفیس دلته د غم لري کولو او د اطمینان ورکول په معنی کې دی. مطلب دا دی چې کله تاسو مریض د بیمار پرسۍ لپاره ورشئ نو بیمار پرسۍ په هغه دوران کې هغې له د هغې د ژوند باره کې اطمینان ورکوئ چې ته بالکل ښه یې. هیڅ د فکر خبره نه ده الله تعالی زر صحت درکړي. په دې مشورې سره تقدیر خو نه بدلیږي خو مریض خوشحاله شي او د اطمینان ورکونکي هیڅ روپۍ پرې نه مصرفیږي. (المرقات ۴/۴۷).

د انسان طبیعت عجیبه دی چې څه واوري نو څه نا څه اثر پرې کوي او "من یسمع یخل" یو متل دی چې سړی کله څه واوري نو څه نا څه سوچ کوي. همدغه وجه ده چې ډاکټر او هوښیار طبیب مریض په اضطراري حالت کې نه خبروي. د حضرت اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ متعلق یو قیصه مشهوره ده چې ستا خادم ستا د طبیعت حالت یو طبیب ته بیان کړو. طبیب ورته وویل چې د دغه شان کیفیت والا سړی تر څه پورې ښکه ژوندی دی؟ دا خو ډیر تشویشناک حال دی. خادم راغلو او اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ ته همغه الفاظ تکرار کړل. حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ ډیر پریشانه شو او وې فرمایل چې دا طبیب بې عقله دی. د مریض باره کې داسې ویل نه دي پکار. اوس ته لاړ شه او لږلرې لاړ شه او بیرته راشه او ماته ووایه چې طبیب وویله چې ستا حالت به ښه شي. هیڅ د پریشانۍ خبره نه ده. کله چې خادم د اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ مخکې دا جمله وویله نو ډیر خوشحاله شو. د بحث لاندې حدیث کې هم دغه حکمت بیان شوی دی.

## د خیټې په مرض د مړ کیدونکي فضیلت

﴿۵۱﴾ وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ قَتَلَهُ

حضرت سلیمان ابن صرد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم سړی چې مړ

بَطْنُهُ لَمْ يُعَذَّبْ فِيْ قَبْرِهِ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1]

شو د خیټې د مرضتیا (مثلاً دست او استسقاء) نه نو هغه به د قبر په عذاب نه اخته کیږي.

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۷۷ رقم الحديث: ۱۰۶۴، وأحمد في المسند ۴/۲۶۲.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د غیر مسلمو د بیمار پرسۍ د یو څو فایدو ذکر

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ غُلَامٌ يَهُودِيٌّ يَخْدُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| حضرت انس رضي الله عنه وايي چې يو يهودي هلک ؤ چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم خدمت به يې کولو کله چې |
| فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَعُودُهُ فَقَعَدَ عِنْدَ رَأْسِهِ |
| مريض شو نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم د هغه بيمار پرسي وکړه او د هغه سر سره نزدې کيناستلو او ورته يې |
| فَقَالَ لَهُ : أَسْلِمْ . فَنَظَرَ إِلَى أَبِيهِ وَ هُوَ عِنْدَهُ |
| وويل چې: ته مسلمان شه هلک د خپل پلار طرف ته وکتل چې د هغه خوا کې نزدې ناست ؤ د هغه پلار ورته |
| فَقَالَ : أَطِعْ أَبَا الْقَاسِمِ . فَأَسْلَمَ . |
| وويل چې د ابو القاسم (يعني نبي کريم صلی الله علیه وسلم) حکم ومنه نو هغه هلک اسلام قبول کړو. نبي کريم |
| فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ يَقُولُ : الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي |
| صلی الله علیه وسلم په دې وينا سره بهر راووتلو چې: حمد او ثناء د هغه خدای دپاره ده چا چې دا هلک (د |
| أَنْقَذَهُ مِنَ النَّارِ.[1] |
| اسلام په ذريعې سره) د اور نه خلاص کړو. |

**توضیح: فنظر الى ابيه:** دې ځوان د خپل پلار اړخ ته د اجازت خستلو په غرض وکتل. پلار يې اګرچې يهودي ؤ مګر د نبي کريم صلی الله علیه وسلم حقانيت يې پيژندلو او د نزع په حالت کې د ځوي لپاره د هغې زړه نرم شوی ؤ. ځکه هغې د مسلمان کيدلو اجازت ځوي ته ورکړو. (المرقات۴/۴۸).

**فايدې:** د دې حديث نه يو څو فايدې معلوميږي.

**اوله فايده:** دا ده چې د ذمي يهودي بيمار پرسي جائز ده. بلکي د عام يهودو بيمار پرسۍ کې هم څه باک نشته دی. په کتاب خزانه کې هم دغه شان ليکل شوي دي. البته د مجوسيانو په بيمار پرسۍ کې د علماؤ اختلاف دی. ځينې ورته جائز او ځينې ورته ناجائز وايي. راجحه ده چې د فاسق د بيمار پرسۍ لپاره په تللو کې هم څه باک نشته دی.

---

(۱) أخرجه البخاري ۳/۲۱۹، رقم الحديث:۱۳۵۶، وأبوداود في السنن ۳/۴۷۴، رقم الحديث. ۳۰۹۵،وأحمد في المسند ۳/۲۲۷.

**دویمه فایده**:دا ده چې د خدمت لپاره یهودي ساتل جائز دي خو په دې شرط چې خارجي مانع نه وي.
**دریمه فایده**:دا ده چې بیمار پرسي کونکي ته په کار ده چې د مریض سر ته کیني لکه څنګه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم کیناستلو. (المرقات۴/۴۸).
**څلورمه فایده**:دا ده چې حتی الوسع د انسان سره خیر خیګڼه کول په کار دي. د ژوند په آخري وخت کې هدایت نصیب کیدلی شي.
**پنځمه فایده**:دا ده چې ماشومانو له په کار ده چې د غټو په هره فیصله کې د اجازت اخستلو کوشش وکړي.
**شپږمه فایده**:دا ده چې مشرانو له په خپل کشرانو باندې ظلم کول په کار نه دي.
**اوومه فایده**:دا ده چې د یو کافر په مسلمان کیدلو باندې د الله تعالی شکر ویستل په کار دي.
**اتمه فایده**:دا ده چې د نابالغه هلک اسلام قبولو معتبر دي لکه څنګه چې د امام ابو حنیفه رحمه الله مسلک دی. د هغه خوش قسمته نوم عبدالقدوس ؤو. (المرقات۴/۴۸).

## بیمار پرسي کونکي ته فرښتې دعاء کوي

| |
|---|
| ﴿۵۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ عَادَ مَرِيضًا |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې څوک د مریض بیمار پرسي |
| نَادَى مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ : طِبْتَ |
| کوي نو آواز کونکی (یعنې فرښته) د آسمان نه په آواز کولو سره وایي چې خوشحالي دې وي تالره په دنیا او |
| وَ طَابَ مَمْشَاكَ وَ تَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلًا. [1] |
| آخرت کې، ښه دې وي ګرځیدل ستا (په دنیا یا آخرت کې) او در دې کړی شي تا ته په جنت کې یوه لویه درجه. |

## د مریض په باره کې خلکو ته د حوصلې خبره کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۵۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ عَلِيًّا خَرَجَ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه وایي چې کله حضرت علي رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د خوا نه راغلو په |
| وَجَعِهِ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ فَقَالَ النَّاسُ: |
| هغه وخت کې چې کله نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مرض الموت کې اخته شوی ؤو نو خلکو تري نه وپوښتل |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۶۰/۴ رقم الحديث:۲۰۰۸، وابن ماجه ۴۶۴/۱ رقم الحديث : ۱۴۴۳.

يَا أَبَا الْحَسَنِ ! كَيْفَ أَصْبَحَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ قَالَ :

يا ابو الحسن (دا د حضرت علي رضي الله عنه كنيت ؤ) د نبي كريم صلى الله عليه وسلم طبيعت څنګه ؤ؟ هغه وويل چې

أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللّٰهِ بَارِئًا.(۱)

د خداى شكر دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د مريضتيا نه د ښه كيدو نكي په شان سحر تير كړو (يعنې شكر دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ښه دى).

**توضيح: بارئا:** يعنې نبي كريم صلى الله عليه وسلم نن ښه دى. صحت مند دى. د مريضتيا حالت يې ښه دى. دا خبره نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه وخت وكړه چې كله نبي كريم صلى الله عليه وسلم د خلكو نه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د مرض باره كې معلومول وغوښتل. حضرت علي رضي الله عنه خلكو ته حوصله وركوله چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ښه دى. دا جمله به حضرت علي رضي الله عنه په خپل اندز سره كړې وي او يا د مايوسۍ باوجود د نيک فالۍ په توګه حضرت علي رضي الله عنه داسې ويلي وي حال دا چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم په همغه ورځ وفات شو. (المرقات ۴/۴۹).

## په بيمارۍ باندې صبر كول د جوړيدو نه بهتر دي

﴿۵۵﴾ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ : قَالَ لِيْ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ : أَلَا أُرِيْكَ

حضرت عطاء بن ابي رباح وايي چې يوه ورځ حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايل چې آيا زه و نه ښايم تاسو

امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ ؟ فَقُلْتُ : بَلٰى . قَالَ : هٰذِهِ الْمَرْأَةُ السَّوْدَاءُ

ته يوه جنتي ښځه؟ ما عرض وكړو چې آؤ (خامخا يې راته ؤښايه) هغه وويل چې دا "توره ښځه (بيا يې

أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . فَقَالَتْ :

وفرمايل چې يو ځل) دا ښځه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضره شوه او وې ويل چې: يا رسول

إِنِّي أُصْرَعُ وَ إِنِّي أَتَكَشَّفُ

الله! زه د مرګي په مرض اخته يم (چې مرګي پاسي) نو زه ويريږم چرته په بيخودۍ كې زما ستر كولاؤ نه شي.

فَادْعُ اللّٰهَ تَعَالٰى لِيْ . قَالَ :

لهذا ته (نبي عليه السلام) زما د پاره د الله نه دعا وغواړه (چې زما بيماري لرې شي) نبي عليه السلام وفرمايل:

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۵۷، رقم الحديث ۶۲۶۶، وأحمد في المسند ۱/۳۲۵

| إِنْ شِئْتِ صَبَرْتِ وَ لَكِ الْجَنَّةُ وَ إِنْ شِئْتِ دَعَوْتُ اللهَ تَعَالَى أَنْ يُعَافِيَكِ |
|---|
| که غواړې نو صبر وکړه تا ته به جنت ملاؤ شي او که غواړې زه به در ته دعاء وکړم چې الله تا ته شفاء درکړي |
| فَقَالَتْ أَصْبِرُ. فَقَالَتْ: إِنِّي أَتَكَشَّفُ |
| ښځې وويل چې زه صبر کوم او بيا يې وويل چې: زه د ستر ښکاره کيدو نه ويريږم نو د الله تعالى نه دا دعاء |
| فَادْعُ اللهَ أَنْ لَا أَتَكَشَّفَ |
| وغواړه چې (د مرض د شدت او په بيخودۍ کې) زما ستر ښکاره نه شي نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د هغې د پاره |
| فَدَعَا لَهَا.(۱) |
| دعاء وغوښتله. |

**توضيح: امرأة:** د هغه مبارکي ښځې نوم سعيره يا سقيره يا سکيره وه. دې به د حضرت خديجه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سر کومنځولو.

دې ښځې ته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صبر کولو وويله او صبر کولو باندې يې د جنت بشارت ورکړو. (المرقات۴/۵۰).

د علماؤ او صوفياؤ يوه طبقه دغه اړخ ته تلي ده چې ترک علاج أفضل دی. علاج کول په کار نه دی. خو د امت عام فقهاء دې اړخ ته تلي دې چې علاج کول سنت او جائز دي. خو واجب او لازم نه دي. اصل خبره دا ده چې د خلکو طبيعتونه او مشغولات مختلف دي. د ځينو طبيعتو لپاره علاج بهتره دی او د ځينو لپاره نه کول بهتر دې. خو ځينې خلک د نورو لپاره فائده مند وي. مثلاً علماء دې نو د داسي خلکو لپاره د مريضتيا په ځای صحت مند وسيدل ډير بهتره دي. دا د دې لپاره چې د خدای مخلوق ته فايده ورسوي. د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې علاج کول جائز او مسنون دي. (المرقات۴/۵۰).

دې ښځې ته د صبر کولو او په مرض کې پاتې کيدلو ترجيح ورکړی شوي ده چې جنت ورته ملاؤ شي خو يو عرض وکړو چې د مرګي د دوري په وخت کې خپلې جامې شلوم چې ستر مې ښکاري نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله تعالى نه دعا وغوښتله او هغه ښځه مريضه پاتې شوه خو جامې يې نه شلولې. (المرقات۴/۵۰).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۱٤، رقم الحديث ۵٦۵۲، ومسلم في صحيحه ٤/۱۹۹٤ رقم الحديث ۵٤-۲۵۷٦، وأحمد في المسند ۱/۳٤٦.

﴿۵۶﴾ وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ: إِنَّ رَجُلًا جَاءَهُ الْمَوْتُ فِي زَمَنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يحيى ابن سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمانه کې په يو سړي (ناڅاپا) مرګ راغلی

فَقَالَ رجلٌ : هنِيئًا لَهُ مَاتَ وَ لَمْ يُبْتَلَ بِمَرَضٍ

يو سړي وويل چې دا مرګ دې مبارک وي داسي مړ شو چې په هيڅ مرض اخته نهٔ دې په اوريدو سره

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : وَيْحَكَ وَمَا يُدْرِيكَ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل افسوس دی په تا باندې ته څه شوي دي؟(بغير د مرض نه ناڅاپه مرګ ښه مه

لَوْ أَنَّ اللهَ ابْتَلَاهُ بِمَرَضٍ فَكَفَّرَ عَنْهُ مِنْ سَيِّئَاتِهِ.[1]

ګڼه)که الله ده ته د مرض سره مرګ ورکړی وی نو (د مرض په بدل کې) به د ده خطاګاني بخښلی شوی وی

## د صبر کونکي مريض فضيلت

﴿۵۷﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ وَ الصُّنَابِحِيِّ أَنَّهُمَا دَخَلَا عَلَى رَجُلٍ مَرِيضٍ يَعُودَانِهِ

د شداد ابن اوس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د صنابحی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې روايت دی چې دواړه يو مريض سړي له لاړل او د

فَقَالَا لَهُ : كَيْفَ أَصْبَحْتَ قَالَ

هغه بيمار پرسي يې وکړه نو دواړو د مريض نه وپوښتل چې ستا سحر څنګه تير شو؟ مريض وويل چې ما

أَصْبَحْتُ بِنِعْمَةٍ

(رضاء او تسليم او شکر) نعمت سره سحر کړو (يعني د مرض او تکليف په وجې زه خواه بدی شوی نه يم

بلکې رضا بتقدير او د صبر لمن مې نيولې ده چې د هغې په وجه زما زړه په خوشالۍ او اطمينان کې دی)

قَالَ لَهُ شَدَّادٌ : أَبْشِرْ بِكَفَّارَاتِ السَّيِّئَاتِ وَ حَطِّ الْخَطَايَا

شداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې د ګناهونو د ختملو او د خطاګانو د لري کيدو د بشارت سره خوشحاله او سې

فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَقُولُ إِذَا أَنَا ابْتَلَيْتُ عَبْدًا

ځکه ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې الله تعالى وايي زه چې کله اخته کړم خپل مؤمن بنده

---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۲/۹٤۲ رقم الحديث : ۸ من کتاب العين.

مِنْ عِبَادِيْ مُؤْمِنًا فَحَمِدَنِيْ

په (مريضتيا يا مصيبت کې) او هغه بنده په هغه امتحان باندې (خفه نه شي بلکې) زما تعريف کوي نو

عَلٰى مَا ابْتَلَيْتُهُ فَإِنَّهُ يَقُوْمُ مِنْ مَضْجَعِهٖ ذٰلِكَ كَيَوْمِ

هغه د خپلې د علالت بسترې نه داسې (د ګناهونو نه پاک) راپاسي د هغه ورځې په شان په کومه ورځ

وَلَدَتْهُ أُمُّهُ مِنَ الْخَطَايَا. وَ يَقُوْلُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى : أَنَا قَيَّدْتُ عَبْدِيْ

چې د مور نه پاک پيدا شوې وي او د غه شان الله تعالى (فرښتو ته) وايي چې ما خپل بنده په قيد کې اچولې

وَ ابْتَلَيْتُهُ فَأَجْرُوْا لَهُ

دی او هغه مې په امتحان کې اچولې دی. لهذا ته (د هغې په اعمال نامه کې) هغه نيک اعمال جاري ليکه

مَا كُنْتُمْ تُجْرُوْنَ لَهُ وَ هُوَ صَحِيْحٌ ". [1]

چې تا به د تندرستۍ په زمانه کې ليکلو.

## مصيبتونه ګناهونه ختموي

﴿۵۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا كَثُرَتْ ذُنُوْبُ الْعَبْدِ

حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې د يو بنده ګناهونه ډېر شي او د

وَ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَا يُكَفِّرُهَا مِنَ الْعَمَلِ ابْتَلَاهُ اللهُ

هغه په نيک اعمالو کې هيڅ نيک عمل پاتې نه شي چې د هغې ګناهونه لرې کړي نو الله تعالى هغه اخته

بِالْحُزْنِ لِيُكَفِّرَهَا عَنْهُ. [2]

کړي په غم او مشکل کې کړي د دې د پاره چې د هغه بنده ګناهونه لرې کړي.

## د بيمار پرسې لوي فضيلت

﴿۵۹﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ عَادَ مَرِيْضًا

حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وايي چې کله يو سړی يو بيمار ته ورشي (د بيمار

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱۲۳/۴

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۶.

لَمْ يَزَلْ يَخُوضُ الرَّحْمَةَ حَتّٰى يَجْلِسَ فَإِذَا جَلَسَ

پرسي دپاره) نو ترڅو چې هغه کېناستلی نه وي نو د رحمت په درياب کې وي او کله چې د مريض سره کېني

اِغْتَمَسَ فِيهَا. (۱)

نو د رحمت په درياب کې ډوب شي.

## د اوبو په ذريعې سره د تبې علاج

﴿۶۰﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا أَصَابَ أَحَدَكُمُ الْحُمّٰى

حضرت ثوبان رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل "چې کله په تاسو کې د يو کس تبه شي

فَإِنَّ الْحُمّٰى قِطْعَةٌ مِنَ النَّارِ

او هغه تبه (داچې) د اور يوه ټوکړه ده نو څکه هغه مړ کول غواړي لهذا هغه سړی (چې تبه يې وي) ورته

فَلْيُطْفِئْهَا عَنْهُ بِالْمَاءِ فَلْيَسْتَنْقِعْ فِي نَهْرٍ جَارٍ وَلْيَسْتَقْبِلْ جِرْيَتَهُ فَيَقُولُ: بِسْمِ اللهِ

په کار ده چې په روان نهر کې کوزشي او د اوبو د بهيدلو مخې ته ودريږي. او ودې وايي: په نوم د الله

اللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ وَ صَدِّقْ رَسُولَكَ

سره يا الله شفاء ورکړي خپل بنده ته او خپل رسول ته (يعني د هغه خبره رښتيا کړي چې ما ته شفاء راکړې)

بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ وَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ

او دا عمل د سحر د مونځ نه وروسته د لمر د راختلو نه مخکې وکړي او غوپه دې وو هي په اوبو کې درې غوپې

وَلْيَنْغَمِسْ فِيهِ ثَلَاثَ غَمَسَاتٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِي ثَلَاثٍ فَخَمْسٍ فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ

درې ورځې که په درې ورځو کې ښه نه شو نو بيا دې (دا عمل) تر پنځه ورځو پورې وکړي او که ښه نه شو

فِي خَمْسٍ فَسَبْعٍ فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِي سَبْعٍ

په پنځه ورځو کې هم نو بيا دې تر اوه (۷) ورځو پورې دا (عمل) وکړي او که په اوه ورځو کې هم ښه نه شو

---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۲/۹۴۶ رقم الحديث: ۱۷ من کتاب العين.

| فَتِسْعٍ فَإِنَّهَا لَا تَكَادُ تُجَاوِزُ تِسْعًا بِإِذْنِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| نو بيا دې تر نهه(۹) ورځو پورې دا عمل وکړي دالله تعالى په حکم سره تبه به د نهه ورځو نه ډير د وام ونه لري |
| (يعنې د هغې نه وروسته به تبه ختمه شي). |

**توضيح** : **فَلْيُطْفِئْهَا بالماء** :يعنې تبه د اوريوه ټوټه ده. ددې نه مراد په بدن د حد نه ډير ګرمائش (حرارت) مراد دی. چې دېله وجې د مازغو د رګونو د چادولو خطر وي. نو ځکه دا ګرمائش د اوبو په ذريعې سره مړ کړی. (المرقات ۴/۵۳).

اوس د دې طريقه نبي کريم ﷺ بيان کړي ده چې **فليستنقع** استنقاء په اوبو کې کوزيدلو ته وايي يعنې په روانو اوبو کې کوز شی.

**وليستقبل**:يعنې د اوبو د بهاؤ اړخ ته دې سرې ودريږي او پاس ذکر شوي دعا دې ولولي. دا عمل د سحر د مونځ نه وروسته تر د لمر راختلو نه مخکې وکړي. (المرقات ۴/۵۳).

**ولينغمس**:**انغماس** غوپه وهلو په معنى کې دی.

**ثلاثة ايام**:د دې جملې مطلب دا دی چې د درې ورځو هره ورځ درې درې غوپې دې ووهي او دا احتمال هم دی چې تر درې ورځو پورې هره ورځ يوه غوپه ووهي. که په دې کې صحيح نه شو نو دا عمل دې تر پنځو ورځو وکړي. که صحيح نه شو نو تر اووه ورځو پورې دې دا عمل وکړي. که صحيح نه شو نو تر نهه ورځو پورې دې دا عمل وکړي او د نهه ورځو نه به ان شاء الله بخار نه ډيريږي. (المرقات: ۴/۵۴).
دا خبر د ياولو وړ ده چې د تبې ډير قسمونه وي. د هري تبې لپاره دا علاج نه دی. په ځينې تبه کې په غسل کولو سره مرض نور هم ډير شي. دا د يو مخصوص تبې متعلق علاج بيان شوی دی. کوم چې په حجاز کې ؤو. چې هغې ته صفراوی بخار وايي. نو ځکه اوبه د غسل لپاره ډير فايده مندي دي. ما يو ځل د تبې په حالت کې غسل وکړو. لا د غسل نه فارغ شوی نه ؤم چې تبه مې ختمه شوه.
بهرحال په دغه نوی زمانه کې هم په اوبه سره تبه کمول کېږي. او ماهرين ډاکټران مريض ته وايي چې د دوائی په ځای اوبه او واوري سره ځان يخ کړي. دست پاک لوند کړي او تندې او بدن نه يې راتاؤ کړي. او ډيره فايده ورسره کېږي. بهرحال ذکر شوي علاج نه مخکې د ډاکټر نه معلومول په کار دي چې کوم قسمه تبه ده. که صفرادی حجازی تبه وي نو بيا هم دغه علاج دی چې ډير مجرب دی. او بله کومه تبه ده او په غسل کولو سره ډيريږي نو بيا حديث مه ملامتوی بلکې خپله ناپوهي او بې تدبيري ملامته کړی.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۵۷/۴ رقم الحديث . ۲۰۸۴ ، وأحمد في المسند ۲۸۱/۵.

## تبې ته كنځل مه کوئ

| |
|---|
| ﴿٦١﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: ذُكِرَتِ الْحُمّٰى عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې: (يو ځل) د نبي كريم صلى الله عليه وسلم مخې ته د تبې ذكر وشو، نو |
| فَسَبَّهَا رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: لَا تَسُبَّهَا فَإِنَّهَا تَنْفِي الذُّنُوبَ |
| يو سړي ورته بد ويل شروع كړل (ددې په اوريدو سره) نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: تبې ته بد مه |
| كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْحَدِيدِ.[1] |
| وايه بلكې تبه ګناهونه داسې لرې كوي لكه څنګه چې اور د وسپنې نه ګند لرې كوي. |

## په مؤمن باندې تبه ولې راځي؟

| |
|---|
| ﴿٦٢﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَادَ مَرِيضًا |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د يو مريض بيمار پرسي وكړه (چې تبه يې وه) |
| فَقَالَ: "أَبْشِرْ فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ: هِيَ نَارِي أُسَلِّطُهَا |
| او هغه ته يې وفرمايل چې خوشخبري دې تا لره ځكه الله تعالى فرمايي چې تبه زما اور دی چې زه يې مسلط |
| عَلَى عَبْدِيَ الْمُؤْمِنِ فِي الدُّنْيَا لِتَكُونَ حَظَّهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".[2] |
| كوم په خپل مؤمن بنده باندې دادې دپاره چې دا تبه دده په حق كې د قيامت په ورځ د دوزخ د اور بدله شي |

## غريبي، ولږه او مريضتيا د ګناهونو د بخښلو سبب دی

| |
|---|
| ﴿٦٣﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الرَّبَّ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى يَقُولُ: |
| او حضرت انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې: نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى فرمايي چې |
| وَ عِزَّتِي وَ جَلَالِي لَا أُخْرِجُ أَحَدًا مِنَ الدُّنْيَا أُرِيدُ أَغْفِرَ لَهُ |
| قسم دی زما په خپل عزت او جلال باندې چې زه كوم بنده بخښم نو زه هغه د دنيا نه تر هغه وخت پورې نه بوزم |

---

(١) أخرجه ابن ماجه في السنن ١١٤٩/٢ رقم الحديث: ٣٤٦٩.

(٢) أخرجه الترمذي في السنن ٣٥٩/٤ رقم الحديث: ٢٠٨٨.

حَتَّى أَسْتَوْفِيَ كُلَّ خَطِيئَةٍ فِي عُنُقِهِ بِسَقَمٍ فِي بَدَنِهِ وَ إِقْتَارٍ فِي رِزْقِهِ ". رَوَاهُ رزين

تر څو چې هغه بنده په مرض كې اخته نه كړم او د هغه رزق تنګ كړم او د هرې ګناه بدله چې د هغه په ذمه وي ورنه كړم

**توضيح**: اقتار قتور: تنګدستي او فقر و فاقي ته وايي يعنې په بدن مريضونو او فقر و فاقي باندې به د هغې ګناهونه معاف كړم.

## د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يوه عجيبه واقعه

﴿٦٤﴾ وَ عَنْ شَقِيقٍ قَالَ: مَرِضَ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ فَعُدْنَاهُ

شفيق رَحِمَهُ اللهُ وايي چې (كله) حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مريض شو نو مونږ د ده بيمارپرسۍ ته لاړو

فَجَعَلَ يَبْكِي

هغه زمونږ مخامخ په ژړا شو خلكو (داګمان كولو چې هغه د خپلې مريضتيا د تكليف او د خپل ژوند سره مينې

فَعُوتِبَ فَقَالَ: إِنِّي لَا أَبْكِي لِأَجَلِ الْمَرَضِ

د وجې نه ژاړي) باندې د ناخوانبۍ اظهار وكړو ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل زه د مريضتيا د وجې نه ژاړم

لِأَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: الْمَرَضُ كَفَّارَةٌ

ځكه ما خپله د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې مريضتيا د ګناهونو د لرې كولو سبب دی. زه

وَ إِنَّمَا أَبْكِي أَنَّه أَصَابَنِي عَلَى حَالِ فَتْرَةٍ وَ لَمْ يُصِبْنِي فِي حَالِ اجْتِهَادٍ

خو ځكه ژاړم چې زه بوډا والي په حالت كې مريض شوم، د قوت او محنت په وخت كې ولې مريض نشوم؟

لِأَنَّهُ يُكْتَبُ لِلْعَبْدِ مِنَ الْأَجْرِ إِذَا مَرِضَ مَا كَانَ يُكْتَبُ لَهُ

ځكه كله چې بنده مريض شي نو (د هغې د مريضتيا په ورځو كې) همغه اعمال ليكل كيږي كوم به چې

قَبْلَ أَنْ يَمْرَضَ فَمَنَعَهُ مِنْهُ الْمَرَضُ. رَوَاهُ رَزِينٌ

د مريضتيا نه مخكې ليكل كيدل او اوس مريضتيا هغه د دې عمل نه لرې ساتلی دی.

**توضيح**: حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مريضتيا په حالت كې ژړل. چا ملامته كړو چې ته دومره معتبر سړی يې او د مريضتيا له وجې ژاړې. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې د مريضتيا له وجې نه ژاړم بلكې په دې وجه ژاړم چې د دې مريضتيا نه مخكې زه كمزوری او بوډا ؤم نو عمل به مې كم كولو. كاش كه زه ځوان وی او په عبادت كې مې بنه خواري كولی او بيا مريض شوی وی نو د بيمارۍ په حالت كې به مې ډير ثواب ګټلی وی. اوس خو به ماته ثواب كم ملاويږي. ځكه د بوډاوالي په وجه د صحت په

حالت كې ما ډېره خواري اونكړې شوه. ځكه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ارشاد مطابق مريض ته د مرض د حالت همغه ثواب ملاويږي كوم يې په روغ حالت كې كولو. (المرقات ۴/۵۷).

## د يو موضوعي حديث مطلب

| |
|---|
| ﴿٦٥﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَعُودُ مَرِيضًا إِلَّا بَعْدَ ثَلَاثٍ.(۱) |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې: نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د درې ورځونه ورسته د مريض بيمارپرسي كوله. |

**توضيح: الابعد ثلاث:** د دې حديث ظاهري حكم همدغه دې چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د مريض بيمار پرسي د درې ورځو نه وروسته كوله. د دې نه مخكې به تللو. تر كومه چې د دې مسئلې تعلق دى نو د بيمار پرسۍ حكم د كوم وخت سره مقيد نه دى. هر وخت كې سړى د مريض بيمار پرسۍ له تللى شي. تركومې چې د حديث تعلق دى نو علماء وايي چې دا ضعيف غير معمول به دى. (المرقات ۴/۵۷) بلكې ځينې علماء وايي چې دا حديث موضوعي دى يعنې د ځان نه جوړ كړى شوى دى او په مشكوٰة كې هم دغه يو حديث موضوعي دى. "**لكل جواد كبوة و لكل سيف نبوة**" يعنې هر ښه اس كله ټكر خورې او په هره ښه توره كې كله كنډو پيدا كېږي.

## د مريض دعا د فرښتو د دعا په شان ده

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٦٦﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا دَخَلْتَ عَلَى مَرِيضٍ | | | | | | |
| حضرت عمربن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كله چې تاسو مريض ته لاړ شئ | | | | | | |
| فَمُرْهُ | يَدْعُو | لَكَ | فَإِنَّ | دُعَاءَهُ | كَدُعَاءِ | الْمَلَائِكَةِ.(۲) |
| نو هغه ته ووايې چې ستاسو لپاره دعاء وكړي ځكه د هغه دعاء د فرښتو د دعاء په شان وي. | | | | | | |

**توضيح:** مريض له پكار ده چې هر وخت د ځان لپاره، د خپلوانو لپاره او د ټولو مسلمانانو لپاره دعا وكړي او بيمارپرسۍ كونكو له هم په كار ده چې په هغې باندې ځان لپاره دعا وغواړي ځكه هغه د خپل مخصوصو احوال په ذريعې سره د فرښتو ته هم نزدې شوي دى او د هغوى سره مشابه شوى هم دى ځكه د هغې دعا د فرښتو د دعا په شان دى.

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۴٦۲/۱ رقم الحديث ۱۴۳۷، والبيهقي في شعب الإيمان ٦ ۵۴۲ رقم الحديث ۹۲۱٦.

(۲) أخرجه ابن ماجه ۴٦۳/۱ رقم الحديث ۱۴۴۱.

## د مریض په خوا کې شور کول په کار نه دي

| |
|---|
| ﴿۶۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ تَخْفِيفُ الْجُلُوسِ وَقِلَّةُ الصَّخَبِ فِي الْعِيَادَةِ عِنْدَ الْمَرِيضِ |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې د بيمارپرسی په وخت کې د بيمار سره کمه ناسته او شور نه کول سنت |
| قَالَ: وَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَمَّا كَثُرَ لَغَطُهُمْ |
| دي" او ابن عباس رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم هغه وخت کله چې په صحابؤ کې د شور |
| وَ اخْتِلَافُهُمْ : قُومُوا عَنِّي. رَوَاهُ رزين |
| او غوغا او اختلاف ډير شو نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې زما له خوا نه پاسيږئ. |

**توضیح**: حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې په بيمارپرسی کې د سنت طريق دا ده چې د مريض سره کم کيني. دا په هغه وخت کې دی چې کله مريض باندې د بيمارۍ پوښتنه کونکي بوج شي او کوروالو ته زحمت شي خو که د بيمارپرسي والا داسي سړی وی چې په هغې سره مريض ته سکون او راحت وي نو بيا ډير ساعت پورې ناسته په کار ده.

**الصخب**: شور او غوغا ته صخب وايي دا خو په هر حالت کې ناجائز ده. حضرت ابن عباس رضي الله عنه په خپله دعوی باندې د حديث قرطاس نه استدلال کړی دی چې هغه وخت کله شور شو نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې زما له خوا نه لاړ شئ. د حديث قرطاس واقعه د مشکوة جلد ثاني په آخري بابونو کې "باب وفات النبي رضي الله عنه" د لاندې راروانه ده انتظار وکړئ. (المرقات ۴/۵۹).

## د بيمارپرسئ مسنونه طريقه هغه ده چې مختصره وي

| |
|---|
| ﴿۶۸﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اَلْعِيَادَةُ |
| او حضرت انس رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل :"د بيمارپرسئ افضله طريقه د |
| فَوَاقَ نَاقَةٍ . وَ فِي رِوَايَةِ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ مُرْسَلًا : |
| اوښې دوه ځله لشلو دمينځنی وقفې هومره دی او سعيد ابن مسيب د روايت مطابق چې د ارسال په طريقه |
| أَفْضَلُ الْعِيَادَةِ سُرْعَةُ الْقِيَامِ .[1] |
| منقول دی دا الفاظ دي چې: بهترينه بيمارپرسي همغه ده چې په هغې کې بيمارپرسي کونکي زر لاړ شي. |

(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۶ ۵۴۳ رقم الحديث ۹۲۲۲

**توضیح : فواق ناقه:** د دې جملې تشریح به ان شاء الله په **كتاب الجهاد** کې راشي. دلته دا وګڼئ چې د اوښې نه د شودو رایستلو لپاره چې کله سړی ځي او اوښه د هغې د تئینو لپاره پرېږدي. نو اوښه د خپل بچې لپاره شوده پرېږدي. خو دا چې انسان هوښیار دی نو هغه لاړ شي او هغه د اوښې بچی ترینه جلا کړي او شوده ولوشي.

## مریض چې څه شی وغواړي هغه پرې وخوری

| |
|---|
| ﴿۶۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَادَ رَجُلًا فَقَالَ لَهُ: |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د یو کس بیمار پرسي وکړه بیایې د هغه نه تپوس |
| مَا تَشْتَهِيْ ؟ قَالَ : أَشْتَهِيْ خُبْزَ بُرٍّ . قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| وکړو چې څه شی ته دې زړه کېږي؟ هغه ورته وویل چې: د وربشو ډوډۍ ته ، نبي علیه السلام وفرمایل چې |
| مَنْ كَانَ عِنْدَهُ خُبْزُ بُرٍّ فَلْيَبْعَثْ إِلَى أَخِيهِ. |
| چا سره چې د وربشو ډوډۍ وي نو هغه ته په کار ده چې هغه خپل ورور (یعنې دې مریض) ته راولیږي. |
| ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا اشْتَهَى مَرِيضُ أَحَدِكُمْ شَيْئًا |
| بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې "کله په تاسو کې څوک مریض وي او د یو شي غوښتنه وکړي نو |
| فَلْيُطْعِمْهُ . [1] |
| هغه شی پرې خوری. |

**توضیح** : یعنې یو سړی ډېر مریض دی او د ډېر وخت نه پرهیزانه ژوند تیروي او دده یو څیز ته ډېره اشتهاء وشوه او په پوره اشتهاء سره ددې څیز مطابه کوي. نو په دې حدیث کې دا ویل کېږي چې هغه شی پرې وخوری او د هغې د پرهیز پرواه مه کوی. (المرقات۶۱/۴).

**سوال**: دلته دا سوال پیدا کېږي چې د طب اصول او قاعده خو دا ده چې د مریض لپاره پرهیز ډېر ضروري دی او ځینې وخت د مریض د خواهش مطابق هغې ته نقصان هم ورکوي. حال دا چې د حدیث نه اجازت ثابتیږي؟

**جواب**: علماؤ د دې دا جواب ورکړی دی. چې د مریض طلب صادقه وي او د خواهش مطابق پرې شی هم وخوړلی شي نو عموماً هغه د مریض لپاره نقصان ورکونکی نه وي بلکي فایده مند ثابتیږي. حدیث

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۴۶۳ رقم الحديث : ۱۴۳۹.

کومه عامه ضابطه نه وايي او نه کلّي حکم کوي بلکي دا حکم جزوي او انفرادي دی. لهذا د مريض سره د بدپرهيزۍ معامله کول په کار نه ده. اګر که ځينې وخت په بد برېږۍ سره د مريض مريضتيا ختمه شي. ما خپله يو ځل د دې تجربه کړې ده او هغه داسي چې زمونږ يو خپلوان مريض شوی ؤو. زه چې کله د هغې بيمار پرسۍ له لاړم نو هغه بالکل د ژوند په آخري مرحلو کې ؤو. او فرياد به يې کولو او ګکلو لپاره به يې شوملي غوختلي. نو ما کور والو ته وويل چې دا سړی خو هسې هم مري. نو دا ارمان ورله پوره کړئ. نو کور والاو پرېړ شوملي (لسّي) وګکولي. نو څنګه چې هغه شوملي وګکلي نو هغه مريض تندرسته شو. او څو کلونه ژوندی ؤو. آخر کې بيا مرګ حاضر شو او وچت يې کړو. معلومه شوه چې د زير بحث حديث د ځينو جزوي حالاتو متعلق دی.

**دويم جواب**: علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا حديث د هغه سړي متعلق دی چې د هغې د ژوند نه ټول خلک نااميده شوي وي او خپله هم نااميده شوی وي. نو د دغه شان سړي د پرهيز کولو هيڅ ضرورت نشته دی. د هغې د ارمان والا شی په هغې وخوری چې هغه د خپل ژوند ارمان پوره کړي. بيا الله مالک دی. (الکاشف: ۳/۳۳۵).

## په حالت د سفر کې د وفات کيدو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۷۰﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : تُوُفِّيَ رَجُلٌ بِالْمَدِيْنَةِ مِمَّنْ وُلِدَ بِهَا |
| حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو سړی په مدينه کې مړ شو چې په مدينه کې پيدا شوی ؤ. نو |
| فَصَلّٰى عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : يَا لَيْتَهُ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه د جنازې مونځ وکړو او بيا يې وفرمايل چې: کاش! دا سړی د خپل پيدا کيدلو |
| مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهِ . قَالُوْا وَ لِمَ ذَاكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ |
| ځای نه بغير په بل ځای کې مړ شوی وی؟ صحابۇ عرض وکړو چې: يا رسول الله! دا ولې؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| قَالَ : إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهِ قِيْسَ لَهٗ مِنْ مَوْلِدِهِ |
| وفرمايل: کوم سړی چې د خپل ځائ نه بغير په بل ځای کې مړ شي نو ناپ کيږي د ده د پاره د ده د وطن نه |
| إِلٰى مُنْقَطَعِ أَثَرِهٖ فِي الْجَنَّةِ.(۱) |
| تر د مرګ ځای پورې په جنت کې. |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۷/٤ رقم الحديث : ۱۸۳۲ ، وابن ماجه ۵۱۵/۱ رقم الحديث : ۱٦۱٤.

**توضيح : ياليته**:يعنې اى كاش چې دا سړى د خپل پيدا شوي ځاى نه بغير د يو سفر په ځاى كې مړ شوى وى. صحابؤ پوښتنه وکړه چې يارسول الله ﷺ په دې کې څه فايده او حکم دى؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل چې کوم سړى د خپل وطن نه په سفر کې مړ شي نو د هغې د وطن او د کور نه تر هغې د مرګ ځاى پورې د هغې ځاى پيمائش (ناپ) کېږي او په جنت کې هغومره ځاى هغه مسافر ته ورکول کېږي.

علماؤ ليکلي دى چې د دې سفر نه د جهاد سفر مراد دى. يا دغه بل يو ديني سفروي نو هغه مراد دى. د معصيت او د نافرمانۍ سفر مراد نه دى. د سفر په حالت کې د مرګ غم ډير سخت وي. دا ورته دا اجر ورکړى کېږي. چا ويلي دي. (المرقات۶۱/۴).

مسافر مه وژني خاونده ❀ په زنکدن کې د وطن ارمان کوينه
په مسافرو مې زړه نه سو ❀ اوس مې پرې سوزي چې په ځان مسافر شومه

راتلونکي حديث مفهوم او مضمون هم دغه شان دى. په هغې کې دا دې چې دغه شان مسافر ته د شهادت ثواب ملاويږي.

| |
|---|
| ﴿۷۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَوْتُ غُرْبَةٍ شَهَادَةٌ.[۱] |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل "د مسافرۍ مرګ د شهادت دى. |
| ﴿۷۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ مَاتَ مَرِيضًا |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: کوم سړى چې مړ شي د مرض په حالت |
| مَاتَ شَهِيدًا أَوْ وُقِيَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَ غُدِيَ وَ رِيحَ عَلَيْهِ بِرِزْقِهِ مِنَ الْجَنَّةِ.[۲] |
| کې نو شهيد دي او د قبر د فتنو نه بچ کولى کېږي او (هر) سحر او مابنام هغه ته د جنت نه رزق ورکول کېږي |

**توضيح : من مات مريضا**:د مشکوة په ټولو نسخو کې د مريض لفظ ليکل شوى دى. په څېنو نسخو کې د **غريب** لفظ ليکل شوى دي. خو د صحيح نسخې مطابق لفظ **"مرابطا"** دى. (المرقات۶۲/۴). چې د رباط نه دى. د يو اسلامي وطن په سرحداتو باندې پېرا داري کولو نوم رباط دى. علامه ميرک رحمه الله د مشکوة شريف د خپلې نسخې په حاشيه باندې ليکلي دي چې **"صوابه مرابطاً"** يعنې صحيح لفظ

(۱) أخرجه ابن ماجه ۵۱۵/۱ رقم الحديث : ۱۶۱۳.
(۲) أخرجه ابن ماجه ۵۱۵/۱ رقم الحديث :۱۶۱۵.

**مرابطاً** دی **مریضاً** نه دی. (المرقات۴/۶۲).

**ملا علی قاری** رَحِمَهُ اللهُ وایي چې دلته راوي په غلطۍ سره د **مرابطاً** په ځاې **مریضاً** لیکلی دی. او بیا یې د ابن ماجه حواله ورکړي ده. چې هغې د حدیث تخریج کړی دی. په ډیرو حدیثونو کې راغلي دي چې **مرابط** ته د شهادت ثواب ورکول کېږي. اګر که هغه په خپله بستره مړ شي. (المرقات۴/۶۲).

**ووقی فتنة القبر**: یعنې هغه د قبر د عذاب نه محفوظ وي. (المرقات۴/۶۴).

**وغدی**: د **غدات** نه دی د سحر خوراک ته وایي.

**وریح**: د ماښام خوراک ته وایي. (المرقات۴/۶۳).

یعنې د شهادت نه وروسته چې کله شهیدانو ته بیا برزخي ژوند ورکول کېږي. نو هغې ته مرابط هم ملاویږي. او ورسره ورسره هغوی ته رزق هم ورکول کېږي. یاد وساتۍ چې د شهیدانو درجه د دوي نه اوچته وي او د انبیاؤ مقام د ټولو نه اوچت دی. لهذا د هغوی ژوند او رزق د ټولو نه اعلیٰ دی.

## د طاعون مرګ د شهادت مرګ دی

| |
|---|
| ﴿۷۳﴾ عَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَخْتَصِمُ الشُّهَدَاءُ |
| او حضرت عرباض ابن ساریه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: جنګ به کوي شهیدان |
| وَ الْمُتَوَفَّوْنَ عَلَى فُرُشِهِمْ |
| او هغه خلک چې په خپلو بسترو باندې (یعنې په کورونو کې) مړه شوي دي (او حقیقي شهیدان نه دي) |
| إِلَى رَبِّنَا فِي الَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنَ الطَّاعُونِ فَيَقُولُ الشُّهَدَاءُ : |
| د خپل پروردګار مخې ته د هغه خلکو باره کې چې په طاعون مرض مړه شوي دي، نو شهیدان خو به دا وایي |
| إِخْوَانُنَا |
| چې دا خلک (چې په طاعون مرض مړه شوي دي) زمونږ ورونه دي (یعنې زمونږ سره مشابه دي لهذا دوی |
| قُتِلُوا كَمَا قُتِلْنَا |
| ته هم زمونږ هومره مرتبه ورکول په کار دي) ځکه څنګه چې مونږ مړه کړی شوي یو همدغه شان دوي هم مړه |
| وَ يَقُولُ الْمُتَوَفَّوْنَ إِخْوَانُنَا |
| کړی شوي دي، او کوم خلک چې خپلو بسترو باندې مړه شوي دي هغه به وایي چې: زمونږ ورونه دي |

| مَاتُوا عَلَى فُرُشِهِمْ كَمَا مُتْنَا |
|---|
| (یعني زمونږ په شان دي) ځکه دا خلک هغه شان په بسترو باندې مړه شوي دي لکه څنګه چې مونږ مړه شوي |
| فَيَقُولُ رَبُّنَا : انْظُرُوا إِلَى جِرَاحَتِهِمْ فَإِنْ أَشْبَهَتْ جِرَاحُهُمْ جِرَاحَ الْمَقْتُولِينَ |
| يو نو زمونږ پروردګار به وفرمايي چې د دوي زخمونو ته وګورئ که د دوي زخمونه د شهيدانو په شان وي |
| فَإِنَّهُمْ مِنْهُمْ وَ مَعَهُمْ فَإِذَا |
| نو دا د شهيدانو نه دي (یعني د ثواب اعتبار سره د شهیدانو په شان دې او په حشر او مرتبه کې) د هغوی |
| جِرَاحُهُمْ قَدْ أَشْبَهَتْ جِرَاحَهُمْ ".(1) |
| سره دي. نو کله چې وکتلی شي نو د هغوی زخمونه به د شهیدانو په شان وي. |

**توضيح**: د دې حديث خلاصه دا ده چې د قيامت په ورځ به الله تعالى د طاعون په مرض باندې مړه شوي خلکو باره کې د شهيدانو او د هغه خلکو چې په خپلو بسترو باندې په طبعي مرګ مړه شوي دي جنګ به کوي. شهيدان به وايي چې دا زمونږ ملګري او زمونږ ورونه دی. زمونږ سره به وي. ځکه زمونږ په شان دوي هم مړه کړی شوي دي. د طبعي مرګ والا به وايي چې دا زمونږ ملګري او ورونه دي. دا زمونږ سره کيدل په کار دي. ځکه زمونږ په شان د يو مرض نه دوي هم په طبعي مرګ باندې مړه شوي دي.

الله تعالى به وفرمايي چې د دوي زخمونه وګورئ چې د چا سره مشابه دي. چې کله وکتل شو نو د هغوی زخمونه د شهيدانو د زخمونو په شان وُو. لهذا د هغوی سره شول. (المرقات ۴/۶۴).

**طاعون**: د طعن نه دی او طعن نيزه وهلو ته وايي. دا چې دا مرض د شيطان د نيزي وهلو سره پيدا کيږي. نو ځکه د هغې په ماده کې د طعن لفظ پروت دی. بهرحال کوم سړی چې په دنيا کې د طاعون د مرض نه مړ شي نو هغه به د قيامت په ورځ د شهيدانو سره وي.

## د طاعون نه د تختيدو مذمت

| ﴿٧٤﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : الْفَارُّ مِنَ الطَّاعُونِ |
|---|
| حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: تختيدونکي د طاعون د مرض نه (یعني |
| كَالْفَارِّ مِنَ الزَّحْفِ وَ الصَّابِرُ |
| چرته چې دا وباء خوره شوي وي) په جهاد کې د کفارو په مقابله کې د تختيدونکي په شان دی او صبر کوونکي |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۶/۳۷ رقم الحديث : ۳۱۶۴ ، وأحمد في المسند ۴/۱۲۸.

| فِيهِ لَهُ أَجْرُ شَهِيدٍ. [1] |
| --- |
| د طاعون ته به د شهیدانو ثواب ملاویږي. |

**توضیح**: علامه طیبی رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې په میدان جهاد کې تختدونکی او د طاعون نه تختدیونکي مشابهت د گناه کبیره به اعتبار دی. یعنې څنګه چې د میدان جهاد نه تختیدل گناه کبیره ده همدغه شان د طاعون نه تختیدل هم گناه کبیره ده او په طاعون باندې صبر کونکي ته گویا کې د شهادت درجه ورکول کېږي. او که د طاعون نه تختیدونکی دا عقیده لري چې که طاعون وهلی شوي علاقي ته لاړلو نو مړ به شم او که لا نړم نو بچ به شم نو دا عقیده ډیر خطرناکه ده بلکي کفر ته نزدې ده. (المرقات ۴/٦۴، الکاشف: ۳۳٦).

"مسجدالحرام ۹ رمضان ۱۴۲۴ھ مکة المکرمة

(پاؤ کم دوه بجې د شپې)

الحمد الله حمدا کثیرا".



(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳/۳۲٤.

# باب تمنی الموت وذکره

## د مرګ خواهش او ارمان کول او د مرګ یادول

**قال الله تعالی:** ﴿إِن زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاءُ لِلَّهِ مِن دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ (سورة الجمعة آیت:٦).

د بدني تکلیفونو، غریبۍ، ولږې او د مصیبتونو په وجې د مرګ ارمان کول مکروه دي. ځکه دا په غیر شعوري طریقې سره په الهی تقدیر باندې د ناخوښۍ علامه ده. او په آخرت کې د دیدار الهی د لذت، د جنت نعمت او د محبوبینو د ملاقات په وجه د مرګ ارمان کول د ایمان د کمال نښانه ده چې جائز ده. (الکاشف ۳۳۷-۳۳۸/۳).

همدغه شان د دیني ضرر او ازمائش او د نقصان په وجه هم د مرګ ارمان کول ناجائز دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ باره کې منقول دي چې هغې به په ابتداء کې مرګ نه خوښولو. خو چې کله دا تصور پیدا شو چې د انبیاء کرام عَلَيْهِمُ السَّلَام او د صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او د اولیاء الله کرامو رَحِمَهُمُ اللهُ سره ملاقات کېږي نو بیا یې د مرګ ارمان کولو.

: دې باب په حدیثونو کې یوه ضابطه هم بیان شوې ده هغه دا چې د مرګ معامله الله تعالی ته پریخودلی شي او وویل شي چې یا الله چې که ستا په علم کې زما مرګ فایده مند وي نو مرګ راکړې او چې تر څو پورې ستا په نزد ژوند کې زما فایده وي نو ژوندی مې وساتې. په دې باب کې دویم عنوان **"تذکرة الموت"** دی.

د مرګ د یادولو مطلب دا دی چې سړی هر وخت تیار وي او مرګ په وجه چې د مرګ نه وروسته کوم حالات رتلونکي دي نو هغه ټول د نظر لاندې ونیسي او د دنیاوي ژوند داسې تیر کړي چې کله هم مرګ غږ شي نو دا سړی بس د مرګ لپاره تیار وي.

د یو مسلمان د یوه ادنی درجه عالم کیدلو لپاره دا ضروري ده چې هغه په هره شعبه کې هر وخت د آخرت په دنیا باندې مخکې وساتي.

علامه شامي رَحِمَهُ اللهُ د مرګ د ارمان متعلق داسې ظابطه لیکلي ده:

**"قال في رد المختار قال في النهر ویکره تمنی الموت بضرر لزله به للنهي عن ذلك فان کان لابد فلیقل اللهم احینی ماکانت الحیاة خیرا لي و توفني ما کانت الوفاة خیرا لي".**

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د مرګ ارمان مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ |
| ابو هریره رضي الله عنه اوي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د مرګ ارمان دې نه کوي هیڅ یو کس |
| إِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَزْدَادَ خَيْرًا |
| په تاسو کې ځکه که دا نیک وي نو کیدې شي چې (د ده ژوند ډیرېدو په وجه) د هغه نیک اعمال ډیر شي |
| وَ إِمَّا مُسِيئًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعْتِبَ. (۱) |
| او که بدکاره وي نو شاید چې توبه وکړي او د خلکو حقوق ادا کړي او د الله تعالی رضا او خوشالي حاصله کړي. |

**توضیح**: **لایتمنی الموت**: دا د نفي په صورت کې نهي ده د مبالغې په توګه ویل شوي ده قاضي عیاض رحمه الله وایي چې دا نهی مطلق نه ده بلکې مقید ده ځکه په څه صورتونو کې د مرګ ارمان کول ناجائز دي. او په څه کې مکروه دی. علماء لیکلي دي چې د مرګ ارمان کولو وجه دا ده چې ژوند یو نعمت دی چې الله تعالی دې سړي ته ورکړی دی. د دې ژوند په وجه دا سړی ډیر نیک عملونه کولی شي. نو د الله تعالی د دغه نعمت ناشکري کول پکار نه ده. لهذا د مرګ ارمان کول مکروه دي. په ژوند کې د انسان منع کیدلو او د صحیح کیدلو امکان دی. که انسان نیک دی نو په نیکیو کې به ډیر والی راځي. او که بد وي نو دا امکان لري چې یو وخت به ورته د توبې توفیق ورکړی شي او په پوره هدایت به شي. په مرګ دا موقع د لاس نه لاړې شي او هر قسمه اعمال ثابت شي.

**یستعتب**: د باب **استفعال** نه د عتاب په معنی کې دی. سین او تا د سلب مأخذ لپاره دی یعنې سلب **العتبی** د خفګان لري کول او د خوشالۍ حاصلول دي. دا هغه وخت کیدلی شي کله چې الله تعالی هغه سړي ته د توبې توفیق ورکړي او په ژوند کې کیدی شي د مرګ نه وروسته نه شي کیدی. لهذا د مرګ ارمان کول مکروه دی. (المرقات ۴/۶۶). د عتاب متعلق شاعر ساحر وایي:

**لنا عند هذا الدهر حق یلطه ۞ وقد قل اعتاب و طال عتاب**

**یعنې په زمانه باندې زمونږ یو حق دی چې د هغې نه هغه انکار کوي او د هغې زمونږ راضي کول کم دي او ناراضه کول اوږد دي.**

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۲۷، رقم الحديث: ۵۶۷۳، وأحمد في المسند ۲/۲۶۳.

## د مؤمن ژوند خير د پاسه خير دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمْ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل: ارمان دې نه کوي يو کس په تاسو کې |
| الْمَوْتَ وَلَا يَدْعُ بِهِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَهُ إِنَّهُ |
| د مرګ (نه په زړه سره) او نه دې (په ژبې سره) دې د مرګ دعاء کوي مخکې د دې نه چې مرګ راشي ځکه |
| إِذَا مَاتَ انْقَطَعَ أَمَلُهُ وَ إِنَّهُ لَا يَزِيدُ الْمُؤْمِنَ عُمُرُهُ |
| کله چې انسان مړ شي نو (د نيکيو د ډيروالي لپاره) د هغه اميد ونه ختم شي او مؤمن د عمر ډيروالی د هغه |
| إِلَّا خَيْرًا .(۱) |
| په خير کې ډيروالی کوي. |

## د دنيوي مصيبتونو په وجه د مرګ ارمان مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ مِنْ ضُرٍّ |
| انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل: ارمان دې نه يو کس په تاسو کې د مرګ |
| أَصَابَهُ فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَاعِلًا فَلْيَقُلِ : |
| د (بدني او مالي) تکليف او ضرر په وجه چې هغه ته ورسيږي او که هم د غه قسمه ارمان وي نو بيا دې دا او وايي |
| اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي وَ تَوَفَّنِي |
| ای الله! ما تر هغه وخت پورې ژوندې و ساتې چې تر څو زما د پاره ژوند (د مرګ) نه بهتر وي او وفات کړې ما |
| إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي ".(۲) |
| چې کله مرګ زما د پاره (د ژوند نه) بهتر وي. |

**توضيح**: لا يتمنين: د دې حديث نه خو دا خبره معلومه شوه چې د مرګ ارمان مطلق نه دی بلکې مقيد دی. دلته "**من ضرا اصابه**" نه دې اړخ ته اشاره شوې ده. دويمه خبره د دې حديث نه دا معلومه شه چې

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٤ ٢٠٦٥ رقم الحديث ١٣ ٢٦٨٢

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ١٠ ١٢٧، رقم الحديث ٥٦٧١، ومسلم في صحيحه ٤ ٢٠٦٤ رقم الحديث ١٠ ٢٦٨٠، وأبوداود في السنن ٣/٤٨٠، رقم الحديث. ٣١٠٨، والترمذي في السنن ٣ ٣٠٢ رقم الحديث ٩٧١

که څوک د مرګ ارمان وکړي نو بیا د هغې صحیح طریقه دا ده چې په دې حدیث کې بیان شوي ده.
(المرقات ۴/۶۶. الکاشف: ۳/۳۳۸).

## مرګ د الله تعالی د دیدار ذریعه ده

﴿٤﴾ وَ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ أَحَبَّ

عباده ابن صامت رضی الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "کوم سړی چې خوښوي د

لِقَاءَ اللهِ أَحَبَّ اللهُ لِقَاءَهُ وَ مَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللهِ

الله تعالی سره ملاقات نو الله تعالی هم د ده ملاقات خوښوي او کوم سړی چې د الله تعالی ملاقات نه خوښوي

كَرِهَ اللهُ لِقَاءَهُ فَقَالَتْ عَائِشَةُ أَوْ

نو الله تعالی هم د ده ملاقات نه خوښوي (د دې په اورید وسره) عائشې رضی الله عنها یا د نبي کریم صلی الله علیه وسلم

بَعْضُ أَزْوَاجِهِ : إِنَّا لَنَكْرَهُ الْمَوْتَ قَالَ :

په ازواج مطهراتو کې یوې بي بي وویل: چې مونږ مرګ نه خوښوو؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل دا

لَيْسَ ذٰلِكَ وَ لٰكِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا حَضَرَهُ الْمَوْتُ بُشِّرَ بِرِضْوَانِ اللهِ

مراد نه دی بلکې (دا مراد دی چې) کله مؤمن ته مرګ راشي نو ده ته زیرې ورکول کیږي د الله په راضي کیدو

وَ كَرَامَتِهِ فَلَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ

او الله تعالی به دا عزتمند ساتي نو نه دی یو څیز چې خوښ وي ده ته د هغه څه نه چې دې پسې راتلونکی دی

فَأَحَبَّ لِقَاءَ اللهِ

(یعني د الله تعالی په نزد د خپل فضیلت او مرتبې نه) نو څکه یو مؤمن د الله تعالی سره ملاقات خوښوي

وَ أَحَبَّ اللهُ لِقَاءَهُ وَ إِنَّ الْكَافِرَ إِذَا حُضِرَ بُشِّرَ بِعَذَابِ اللهِ وَ عُقُوْبَتِهِ

او الله تعالی د هغه ملاقات خوښوي او چې کله کافر ته مرګ راشي نو هغه ته خبر ورکړي په (قبر کې) د

فَلَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَهَ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ

خدای عذاب او (په دوزخ کې د سختې) سزا نو نه دی یو څیز چې دې یې نه خوښي د هغه څیز نه چې د ه

| |
|---|
| فَكَرِهَ لِقَاءَ اللهِ وَ كَرِهَ اللهُ لِقَاءَهُ . (وَفِي رِوَايَةِ عَائِشَةَ: وَالْمَوْتُ قَبْلَ لِقَاءِ اللهِ)[1] |
| پسې راتلونکې دی (يعنې عذاب او سزا) نو ځکه دا د الله ملاقات نه خوښوي او الله د ده ملاقات نه خوښوي |
| (يعنې د خپل نورو نعمتونو نه يې لرې ساتي). |

**توضيح: فقالت عائشه:** نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې كله دا بيان كړل چې كوم سړى د الله تعالى ملاقات خوښوي نو الله تعالى هم د هغې ملاقات خوښوي. او كوم سړى چې د الله تعالى ملاقات نه خوښوي نو الله تعالى د هغې ملاقات نه خوښوي. (المرقات ۴/٦٨).

د دې كلام په ضمن كې د مرګ تصور خپله په تصور كې راځي ځكه د الله تعالى ملاقات د مرګ نه مخكې ممكن نه دى كله چې د لقاء الهى په ضمن كې د مرګ تصور لازم شو نو اوس د هر سړي په زړه كې يو اعتراض پيدا كېږي چې مرګ په طبعي توګه نه خوښوي او چا چې مرګ ناخوښ كړو ګوياكې هغې د الله تعالى ملاقات ناخوښ كړو چې يو خطري تصور دى. د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم د غه اشكال ؤ چې مونږ خو په طبعي توګه مرګ نه خوښۇ. نو ګوياكې مونږ د الله تعالى ملاقات نه خوښۇ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې جواب داسې وركړو چې مؤمن كله مرګ ته نزدې شي أو خپله د آخرت كاميابي ويني. د جنت نعمتونه ويني نو د هغې شوق پيدا شي چې زر مړ شي چې د غه نعمتونو ته ورسيږي او د خپل خالق ديدار وكړي. (المرقات ۴/٦٨).

په دغه وجه ويل شوي دي "**الموت تحفة المؤمن يوصل الحبيب الى الحبيب**".

مګر د مؤمن برعكس چې كله فاجر او كافر د مرګ په وخت كې د عالم آخرت مصيبتونه وګوري. دوزخ او د هغه عذاب ويني نو ويريږي او په زړه كې مرګ بد وګڼي ځكه د هغه لپاره همدغه مرګ ټولو سزا ګانو ته د رسولو يو پل دى. نو ځكه هغه سړى د الله تعالى طرف ته او د الله تعالى سره مخامخ كيدل نه خوښوي نو الله تعالى هم د ده ملاقات نه خوښوي. (المرقات ۴/٦٨).

د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جواب خلاصه دا شوه چې مرګ په طبعي توګه خلك نه خوښوي خو كله چې د مرګ راتللو په وجه د عالم آخرت نه حجابونه لرې كړى شي نو بيا مؤمن بنده مرګ خوښوي.

د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په روايت كې د دې جواب خلاصه په لنډو الفاظو كې داسې بيان شوي ده چې "**الموت قبل لقاء الله**" يعنې د مرګ نا خوښي د مرګ نه مخكې وي. كله چې د مرګ حالت شروع شي نو د الله تعالى نعمتونه ښكاره شي نو بيا د مرګ نه ناخوښي نه كوي. البته د كافر معامله برعكس ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۷/۱۱، رقم الحديث ۱۵۰۷، ومسلم في صحيحه ۲۰٦۵/۴ رقم الحديث: ۲٦٨۴، وأحمد في المسند ۱۰۷/۳

**ليس ذلك:** اي ليس الأمر كـ ذلك: دا د نبي كريم ﷺ جواب دى چې په هغې سره نبي كريم ﷺ د حضرت عائشه رضي الله عنها پوښتنې د جواب وضاحت بيان كړو. (المرقات ۴/۶۹).

## د مؤمن او فاجر د مرګ په خلګو باندې اثر

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرَّ عَلَيْهِ بِجِنَازَةٍ |
| ابو قتاده رضي الله عنه حديث بيانوي چې يو ځل دنبي كريم ﷺ مخې ته يوه جنازه راوړى شوه نو نبي |
| فَقَالَ : مُسْتَرِيحٌ أَوْ مُسْتَرَاحٌ مِنْهُ |
| كريم ﷺ وفرمايل چې: دا راحت مندونكى دى يا دا چې ده نه نورو ته راحت نصيب شوى دى. |
| فَقَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ ! مَا الْمُسْتَرِيحُ وَ الْمُسْتَرَاحُ |
| صحابه كرامو ووېل: چې يارسول الله! څوک راحت مندونكى دى او هغه څوک دى چې د ده نه نورو ته راحت |
| مِنْهُ ؟ فَقَالَ : الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ مِنْ نَصَبِ الدُّنْيَا وَ أَذَاهَا |
| نصيب كېږي؟ نبي عليه السلام وفرمايل: مؤمن بنده د خپل مرګ په ذريعه د دنيا د غم او تكليف نه راحت ومومې |
| إِلَى رَحْمَةِ اللهِ وَ الْعَبْدُ الْفَاجِرُ يَسْتَرِيحُ مِنْهُ الْعِبَادُ وَ الْبِلَادُ |
| او د خداى رحمت طرف ته ځي او د فاجر بنده د مرګ په وجه په راحت كې شي د ده د شر فساد نه بندګان، ښارونه، |
| وَالشَّجَرُ وَ الدَّوَابُّ.[1] |
| بوټي، او څاروى (ټول). |

**توضيح: مستريح:** راحت موندونكى يعنې كله چې مؤمن مړ شي نو هغه د دنيا د مصيبتونو او د خلكو د ضرر رسيدلو او احكام تكليفيه د ذمه وارۍ نه راحت ومومې. او د آخرت توخه او د سفر مصرف ورسره موجود وي او د دنيا د مصيبتونو نه خلاص شي. نو ځكه مؤمن بنده د مرګ نه ورسته ارام موندونكى دى. (المرقات ۴/۶۹).

**مستراح:** د اسم مفعول صيغه ده يعنې د ده په مرګ باندې نورو ته راحت ملاؤ شي. هغه داسې چې كله دې فاسق فاجر خلک تنګون د دې په قول او فعل سره د خدائ مخلوق هم پريشانه ؤو چاته يې كنځل كول، څوک يې وهل، د چا مال غلا غصب كول يا يې ترې نه پټولو يا فحاشي او بې حيايي يې خورولـه.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۶۶/٤ رقم الحديث : ۱٦-۲٦٨٤.

چې کله مړ شو نو ټولو خلکو ته د دې بدو اعمالو نه راحت ملاؤ شو. بلکې بوټو او ځاروُ او مرغانو ته هم راحت ملاؤ شو. نو ځکه دده مرګ د راحت سبب دی. (المرقات ۴/۶۹).

د بدعمله خلکو د ګناهونو اثر په باران باندې کیږي: وچکالي راځي. په زمکه باندې زلزلي او طوفانونه راځي، په واقعاتو سره ټول ځاروي او بوټي او خپله زمکه هم متأثره کیږي.

## په دنیا کې مسافر بلکې دروان مسافر په شان اوسیږه

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: أَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِمَنْكِبِي |
| عبدالله ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم (اول خو) زما اوږه ونیوله (چې زه متوجه شم) بیا |
| فَقَالَ: كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ. وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ |
| یې وفرمایل: ته په دنیا کې داسې ؤسه ګویا کې ته مسافریې او یا یو لاروئې یې او ابن عمر رضي الله عنه (ددې نه |
| يَقُولُ: إِذَا أَمْسَيْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الصَّبَاحَ وَ إِذَا أَصْبَحْتَ |
| وروسته خلکو ته) ویل چې کله ماښام شي نو د سحر انتظار مه کوئ او چې کله سحر شي نو د ماښام انتظار مه |
| فَلَا تَنْتَظِرِ الْمَسَاءَ وَ خُذْ مِنْ صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ وَ مِنْ حَيَاتِكَ لِمَوْتِكَ.[1] |
| کوئ، دغه شان خپل صحت د مریضتیا نه غنیمت وګڼئ او خپل ژوند د مرګ نه غنیمت وګڼئ. |

**توضیح**: **بمنکبي**: دا لفظ مفرد هم دی او په ځینو نسخو کې مشدد تثنیه ده. (المرقات ۴/۷۰).

**غریب**: مسافر او نااشنا سړي ته غریب وايي. چې د هغې نه کور وي، نه یې څه ځای وي او نه یې څ خپلوان او پیژندګلو وي.

**بل عابر سبیل**: راجح او بهتره دا ده چې دا **بل** د ترقي او د اضراب لپاره وي. مطلب دا دی چې مساف بیا هم د یو څو روځو لپاره په یو ځای کې ایسارېږی ته داسې شه لکه څنګه چې روان مسافر وي چې اودریدو نوم نه اخلي هغه د دنیا نعمتونو طرف ته التفات نه کوي او ضروري کارونه راغونډ کړي ا وځي. (المرقات ۴/۷۰).

د همدغه مضمون او مفهوم مطابق حضرت ابن عمر رضي الله عنه وفرمایل چې د دنیا ژوند یو اضطرار اجباری غیر اختیاري ژوند دی. لهذا تر سحر پورې د پاتې کیدو هیڅ ضمانت نشته دی او د صحت ا

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۲۹، رقم الحديث ۶۴۱۴، وأحمد في المسند ۲/۲۴.

مریضتیا هیڅ اعتبار نشته دی. لهذا څه چې په لاس راځي هغه غنیمت وګڼه او فایده ترینه اخستل پکار ده. د هیڅ یو شي ذمه واري نشته دی. چا په پښتو کې داسې ویلي دي:

آخـــر دې تـګ د بـل وطـن دی ❁ دلتـه کې څلـه جـوړوي دنـګ محـلونه
پـه دنیا مـه نـازیـګه خـلقـه ❁ د شاه جهان بادشاه نه پاتې شو تختونه
د دنـیـا ګـټـی فـانـي بـازاره ❁ مـا د سودا تـکل کـوؤ مـا فـر شومـه
د دنـیـا درې ورځـې ژوندون دی ❁ پـرون پـیدا شـوم نـن دلې صبا بـه زمـه

## د الله تعالی د ذات نه د رحمت امید ساتي

| ﴿۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ مَوْتِهِ بِثَلَاثَةِ أَيَّامٍ يَقُوْلُ: |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ نه درې ورځې مخکې دا اوریدلي چې فرمایل |
| لَا يَمُوْتَنَّ أَحَدُكُمْ إِلَّا وَ هُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللهِ.[1] |
| يې: تاسو کې دې هیڅ څوک مړ نشي مګر په داسې حال کې دې مړ چې هغه په الله باندې ښه ګمان ساتي. |

**توضیح**: علامه طیبی رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د "**یحسن الظن**" مطلب دا دی چې اوس په خپل ژوند کې اعمال ښه کوه چې د مرګ په وخت کې ستا په الله تعالی باندې ښه ګمان وي. ځکه کوم سړی چې بد عملونه کوي نو د مرګ په وخت کې په الله تعالی باندې بد ګمان ساتي. علماؤ لیکلي دي چې خوف او رجا د انسان د پرواز لپاره دوه وزرې دي) چې د آخرت په سفر کې په کاریږي. خو کله چې سړی ځوان او صحت مند وي نو هغه ته په کار ده چې په ځان باندې د خدای ویره غالبه کړي چې په عبادت کې ښه ډیر محنت وکړي. او کله چې د مرګ وخت نزدې نزدې راځي نو بوډا والي هم نزدې شي او بیا امید او امید غالب شي. ځکه د یو سخي او فیاض بادشاه طرف ته تګ دی نو ښه امید ساتل په کار دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د قیامت په ورځ د انسان نه د الله تعالی اوله پوښتنه

| ﴿۸﴾ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
|---|
| معاذ ابن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې (یو ورځ) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (مونږ ته مخاطب شو) او وي فرمایل |

(۱) أخرجه مسلم ۲۲۰۵/٤ رقم الحديث: ۸۱ ۲۸۷۷، وأبو داود في السنن ۱۸۱/۳، رقم الحديث: ۳۱۱۳، وأحمد في المسند ۲۹۳/۳.

إِنْ شِئْتُمْ أَنْبَأْتُكُمْ مَا أَوَّلُ مَا يَقُولُ اللّٰهُ لِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ؟

که تاسو غواړئ چې زه تاسو ته هغه خبره وکړم چې الله تعالی به يې د قيامت په ورځ د ټولو نه اول مؤمنانو

وَمَا أَوَّلُ مَا يَقُولُونَ لَهُ ؟ قُلْنَا : نَعَمْ يَا

ته وايي او هغه خبره در ته وکړم چې د ټولو نه اول به يې مؤمنان عرض کوي؟ مونږ عرض وکړو چې :آؤ يا

رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ : " إِنَّ اللّٰهَ يَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ

رسول الله (مونږ ته يې ضرور ووايه) نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل " الله تعالی به مؤمنانو ته ووايي

هَلْ أَحْبَبْتُمْ لِقَائِي ؟ فَيَقُولُونَ نَعَمْ يَا رَبَّنَا فَيَقُولُ :

چې آيا تاسو زما ملاقات خوښولو؟ مؤمنان به عرض وکړي چې آؤ، اې زمونږ ربه مونږ ستا ملاقات خوښولو

لِمَ ؟ فَيَقُولُونَ : رَجَوْنَا

بيا به الله تعالی وفرمايي چې تاسو زما ملاقات ولې خوښولو؟ مؤمنان به ووايي: ځکه چې مونږ اميد لرو

عَفْوَكَ وَمَغْفِرَتَكَ فَيَقُولُ : قَدْ وَجَبَتْ لَكُمْ مَغْفِرَتِي ". رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ [1]

ستا نه د عفوې او مغفرت نو الله تعالی به وفرمايي ستاسو لپاره اوس زما بخښش واجب شو.

## مرګ ډير ډير يادوئ

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَكْثِرُوا ذِكْرَ هَاذِمِ

او ابوهريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د ډير يادوئ ختمونکي د

اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ . [2]

لذتونو د دنيا چې هغه مرګ دی.

**توضيح**: هـاذم: دا صيغه د هذم ضرب يضرب نه د قطع کولو او د غوځولو په معنی کې دی. ځينو شارحينو دا لفظ د "هادم" دال سره نقل کړی دی. چې د راغوځولو او خرابولو په معنی کې دی. مګر ځينې شارحين ليکي چې هـادم د معنې په اعتبار اګرچه صحيح دی خو د نقل په اعتبار دال صحيح نه دی. بلکې ذال دی. د حديث مطلب دا دی چې مرګ ډير ډير يادول پکار دی. کله چې د مرګ تصور د

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲۳۸/۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵۵۰/۴ رقم الحديث : ۲۴۵۷ ، وأحمد في المسند ۲۸۷/۱.

انسان په زړه او مازغو باندې غالب وي نو د انسان دنیوي ژوند د اخرت ژوند په تیارۍ کې تیرېږي. او انسان هر وخت د نیک اعمالو کولو او د بد اعمالو نه ځان ساتلو لپاره په کوشش وي. (المرقات ۴/۷۲).

په نسائي کې د دې حدیث سره دا الفاظ هم نقل کړی شوي دي: **فَأَنَّهُ لَا يُذْكَرُ فِي كَثِيرٍ إِلَّا قَلَّلَهُ وَلَا فِي قَلِيلٍ إِلَّا كَثَّرَهُ** يعنې د مال د ډیروالي په وخت ئې د مرګ یادولو سره مرګ دغه مال کموي یعنې د دې دنیا نه یې بې پرواه او تقوه داره جوړ کړي او که مال کم وي سړی فقیر وي نو په مرګ یادولو سره مرګ دغه لږ مال ډیروي حکه سړی سوچ کوي چې مرګ په سر ولاړ دی. دا زما د ژوند آخري سلګۍ ده. چې څه مال دی دا هم د لنډ وخت لپاره دی. دغه شان سړی قانع شي. د مرګ یادولو یوه فایده دا هم ده چې سړی د دنیا ټول لذتونه او خواهشات ختمیدونکي ګڼي. لهذا د هغې د زړه نه د مال محبت وځي او د مال محبت د هرې بدۍ جړله ده. چې د بدۍ جړله غوڅه شي نو بیا نیکیانې ډیرې کیږي.

## د الله نه د حیاء کولو حق

| ﴿۱۰﴾ وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ لِأَصْحَابِهِ : |
|---|
| حضرت ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم یوه ورځ خپلو صحابؤ ته وفرمایل |
| اسْتَحْيُوا مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ |
| د الله تعالی نه حیا کوی (یعنې څنګه چې د الله تعالی نه حیا کول واجب دي) چې د کومې حیا هغه لائق دی |
| د هغه حیا حق ادا کړی. (مطلب دا دی چې د الله تعالی نه د ویریدلو کوم حق دی هغه حق ادا کړی) |
| قَالُوا : إِنَّا نَسْتَحْيِي مِنَ اللهِ يَا نَبِيَّ اللهِ |
| صحابؤ وویل چې یا نبي الله! بیشکه مونږ حیا کوؤ (خو اوس محال د دې جملې په اوامرو او نواهي باندې |
| وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| عمل کوؤ) او تعریف د الله تعالی لپاره دی (یعنې د خدای شکر دی چې هغه مونږ ته دا توفیق راکړی دی). |
| قَالَ : لَيْسَ ذٰلِكَ وَ لٰكِنَّ |
| نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د حیا حق دا نه دی لکه څنګه چې تاسو وایئ چې مونږ د خدای نه حیا کوؤ |
| مَنِ اسْتَحْيَى مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ |
| بلکې کوم سړی چې د الله تعالی نه په حیا کولو کې د الله تعالی حق ادا کړي نو هغه ته په کار ده چې هغه |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلْيَحْفَظِ | الرَّأْسَ | وَمَا | وَعَى | وَ لْيَحْفَظِ | الْبَطْنَ | وَمَا | حَوَى | | |
| دسرا و هغه څه چې د سر دې د هغه حفاظت وکړي، د خيټې او څه چې د خيټې سره دې د هغه حفاظت وکړي | | | | | | | | | |
| وَ لْيَذْكُرِ | الْمَوْتَ | وَ | الْبِلَى | وَ | مَنْ | أَرَادَ | الْآخِرَةَ | | |
| او هغه ته په کار ده چې مرګ او دهډوکي ورستيدل ياد کړي او کوم سړي چې د آخرت لپاره د خير اراده کوي | | | | | | | | | |
| تَرَكَ | زِينَةَ | الدُّنْيَا | فَمَنْ | فَعَلَ | ذٰلِكَ | | | | |
| نو هغه د دنيا ښکلا او آرائش (آرام) پريږدي لهذا چا چې په دې ذکر شوي هدايا تو باندې عمل وکړو | | | | | | | | | |
| فَقَدِ اسْتَحْيَى مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1] | | | | | | | | | |
| نو ده د الله تعالى نه د حياء کولو حق اداء کړو . | | | | | | | | | |

**توضيح : الحياء**: د توضيحات په جلد اول کې په ابتدائی صفحاتو کې د حيا متعلق په تفصيل سره کلام تير شوی دی. دلته د اعادې ضرورت نشته دی. ځکه چې کله صحابؤ په جواب کې وفرمايل چې الحمد لله مونږ حيا کؤو. نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چې "**ليس ذلك**" يعنې تاسو د حيا مطلق مفهوم اخلئ هغه اګر چې حيا ده خو اصل او حق حيا نه ده. اصل حيا دا ده چې : ۱:سر او د سر دننه شيانو حفاظت دې وکړی شي. د سر حفاظت دا دی چې د الله تعالى نه بغير بل چاته ټيټ نه شي او نه پرې غير الله ته سجده وکړی شي او نه د رياکارۍ په توګه د الله تعالى مخې ته سجده وکړی شي او نه په غرور او تکبر سره سر او چت کړی شي. (المرقات ۴/۷۴).

**وما وعى**: وعى يعى د يادولو او راغونډولو په معنى کې دی. مراد دا دی چې په سر کې څومره اعضاء راجمعه شوي دي د هغې هم حفاظت وکړی شي مثلاً د مازغو سوچ خالص د الله تعالى درضا لپاره وي، سترګه، پوزه، ژبه او غوږونه د هر قسمه ګناهونو نه وساتلی شي. نه غلط نظر وي او نه د غلط فرمائشونو اوريدل وي. (المرقات ۴/۷۴).

**۲:والبطن**:د خيټې حفاظت دا دی چې هغه د حرامو نه وساتلی شي ځکه د مرګ نه وروسته اول د انسان په بدن کې حرام راجمع شي او وچوي. لهذا په دې حلال مال پکار دی. نه دا چې د حرامو مرکز وي.

**۳:وما حوى**:حوى يحو د جمعه کولو او د راغونډولو په معنى کې دی. په خيټه کې چې کوم اعضاء دي نو هغه اعضاء مراد دي. مثلاً لاس، ښپې، زړه او نور اندامونه نو د هغه اندامونو حفاظت کول او د

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٥٥٠ رقم الحديث :٢٤٥٧.

ګناهونو نه لري ساتل د حيا حقيقت دی. لهذا د ښپو په ذريعی سره د ګناه اړخ ته مه ځی. په لاس سره ګناه مه کوی، د زړه ګنده خيالات او بدې عقيدې لري کړی. د حيا حقيقي برخه دا هم ده چې مرګ هر وخت ياد کړی شي او د مرګ نه ورسته د ورستيدل هم په نظر کې ونيول شي. (المرقات ۴/۷۴، الکاشف: ۳/۳۴۹).

**ومن اراد الآخرة:** د مخکني بيان خلاصه بيانيږي چې د آخرت غوښتونکي د دنيا په فاني ژنګونو کې وخت نشي خرابولی. (المرقات ۴/۷۴).

**فعل ذلك:** يعې مخکې چې د کومو شيانو او خصلتونو ذکر وشو نو چا چې په هغې عمل وکړو نو دا اصل او حقيقي حيا ده.

د دې حديث نه معلومه شوه چې د انسان د خپل ساخت په اعتبار سره او د خپل بدن په اعتبار سره د عيبونو او نقصانونو يوه مجموعه ده. او الله تعالى ته معلومه ده چې انسان په کوم يو اندام کې کوم يو عيب پروت دی چې انسان کله د دې اندامونو حفاظت وکړي نو ګويا کې هغه په پوره توګه د الله تعالى نه حياء کوي. امام نووی رَحِمَهُ اللَّهُ ليکلي دي چې علماؤ ته په کار ده چې دا حديث ډير ډير عوامو ته بيان کړي. (المرقات ۴/۷۴).

## مرګ د مؤمن تحفه ده

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تُحْفَةُ الْمُؤْمِنِ الْمَوْتُ. [1] |
|---|
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: "د مؤمن تحفه مرګ دی". |

**توضيح: تحفة:** انسان د خپل نيک اعمالو ميوه په آخرت کې مومي. او آخرت ته د رسيدو لپاره ضروري ده چې سړی مرګ ووينې نو چې تر څو پورې مرګ نه وي راغلی نو سړي جنت ته نه شي رسيدلی. لهذا د نعمتونو د حصول ذريعه او وسيله مرګ دی.

نو د مؤمن لپاره دده د مرګ د نتائجو په اعتبار سره تحفه ده او د همدغي ذکر په حديث شريف کې موجود دی. (المرقات ۴/۷۵).

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷ ۱۷۱ رقم الحديث ۹۸۸٤

## مؤمن د تندي د خولې سره مړ کېږي

| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْمُؤْمِنُ يَمُوتُ بِعَرَقِ الْجَبِينِ. [1] |
|---|
| بریده رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "مؤمن د تندي د خولې سره مړ کېږي. |

**توضیح**: **بعرق الجبين**: يعني د تندي د خولې سره مؤمن مړ کېږي. د دې کلام ډېر مفهومونه دي:
اول دا چې د مؤمن ژوند د مشقت والا دی يعنې مؤمن محنت کونکی وي. د معاش په کسب کې هم او په عباداتو کې هم.
دويم مفهوم يې دا دی چې کله د مؤمن مرګ واقع شي نو په تندي باندې يې معمولي شان خوله راشي. دا د خوش بختۍ او د سعادت او د سلامت ايمان علامت دی. په عوامو کې همدغه مشهوره ده.
دريم مفهوم يې دا دی چې مؤمن ته د مرګ په وجه ډېر تکليف او مشقت نه ور رسيږي. خو د ساه ويستلو دومره تکليف وي چې په هغې سره په تندي باندې خوله راځي. (المرقات ۴/۷۶).

## ناڅاپي مرګ

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَوْتُ الْفُجَاءَةِ أَخْذَةُ الْأَسَفِ |
|---|
| عبيد الله ابن خالد رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: ناڅاپه مرګ د الله تعالی غضب |
| وَ زَادَ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَ رَزِينٌ فِي كِتَابِهِ : أَخْذَةُ الْأَسَفِ |
| دی. بيهقي په شعب الايمان کې او رزين په خپل کتاب کې دا الفاظ نقل کړي دي چې: د غضب نيول |
| لِلْكَافِرِ وَ رَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِ. [2] |
| د کافر لپاره دي خو د مؤمن لپاره رحمت دی. |

**توضیح**: **الأسف**: د غضب او غصې لپاره دا لفظ استعماليږي. لکه په قرآن کريم کې ذکر دي: ﴿غَضْبَانَ أَسِفًا﴾ دلته په حديث کې دا لفظ د غضب د نيولو په معنی کې استعمال شوی دی.
مطلب چې ناڅاپي مرګ د الله تعالی د غضب په نښانو کې يوه نښانه ده. ځکه په ناڅاپي مرګ نه د کلمه شهادت لوستلو موقع وي نه د وصيت کولو او د ضروري کلام موقع ملاوېږي.
علماؤ ليکلي دي چې غضب نيونکي مرګ د کفارو لپاره دی د مسلمانانو لپاره نه دی. خلاصه دا ده چې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴۸۱/۳ رقم الحديث: ۳۱۱۰.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۴۸۱/۳، رقم الحديث: ۳۱۱۰، وأحمد في المسند ۴۲۴/۳.

ناڅاپه مرګ د ښو خلکو لپاره ښه شي دی او د بدو خلکو لپاره بد شي دی. (المرقات ۴/۷۶).

## د مرګ په وخت کې د الله د رحمت امید کول په کار دی

| |
|---|
| ﴿١٤﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى شَابٍّ وَ هُوَ فِي الْمَوْتِ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ديو ځوان خواته لاړو چې د سكرات الموت |
| فَقَالَ : كَيْفَ تَجِدُكَ ؟ قَالَ : أَرْجُو اللهَ |
| په حالت كې ؤ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وويل چې: ته په څه حال كې يې؟ هغه وويل د الله نه اميد لرم |
| يَا رَسُولَ اللهِ وَ إِنِّي أَخَافُ ذُنُوبِي |
| يارسول الله! (يعني د الله تعالى د رحمت اميدوار يم) خو د دې باوجود د ګناهونو نه په ويره (هم يم). |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَجْتَمِعَانِ فِي قَلْبِ عَبْدٍ فِي مِثْلِ هٰذَا الْمَوْطِنِ |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په داسې وخت كې چې د بنده په زړه كې ويره او اميد (دواړه) راجمع |
| إِلَّا أَعْطَاهُ اللهُ مَا يَرْجُو وَ |
| شي نو الله تعالى هغې ته هغه شى وركوي چې د كوم هغه اميد ساتي (يعنې خپل رحمت) او داد هغه شي |
| آمَنَهُ مِمَّا يَخَافُ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| نه ساتي چې د كوم نه هغه ويريږي. |

**توضيح : كيف تجدك:** يعنې ځان څنګه مومې؟ (المرقات : ۴/۷۷).

**قال:** مطلب دا دى چې هغه ځوان د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پوښتنه كې دا جواب وركړو چې د الله تعالى د رحمت اميد ساتم خو د خپلو ګناهونو په نتائجو باندې ويريږم. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د **سكرات الموت** په وخت كې ويره او رجاء په انسان باندې رايوځاى شي نو دا د دې خبرې ضمانت دى چې د كوم شي نه هغه ويريږي الله تعالى به يې د هغې نه بچ كړي او چې د كوم شي اميد لري هغه به ورته الله تعالى وركړي. (المرقات ۴/۷۷).

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۱۱ رقم الحديث ۹۸۳.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د نیک عمل د پاره ډیر عمر سعادت دی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا تَمَنَّوْا الْمَوْتَ فَإِنَّ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "د مرګ ارمان مه کوی ځکه د |
| هَوْلَ الْمُطَّلَعِ شَدِيدٌ وَ إِنَّ مِنَ السَّعَادَةِ أَنْ يَطُولَ عُمْرُ الْعَبْدِ وَيَرْزُقَهُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ الْإِنَابَةَ . [1] |
| ساه ویستلو ویره سخته ده بیشکه دا نیک بختي ده چې بنده عمر ډیروي او الله هغه اطاعتونو ته واړوي. |

**توضیح : هول:** د مرګ شدت او سختیو ته هول وویل شو . (المرقات ۴/۷۸).

**المطلع:** مطلع هغه اوچت ځاې ته وایي چې ورته وختل شي نو اخوا دیخوا سړی کتلی شي. د المطلع نه مراد سکرات او شدتونه مراد دي. مطلب دا چې د مرګ ارمان مه کوی ځکه د مرګ سختی او ساه ویستل ډیر زیات تکلیف ورکوي. انسان د عبادت لپاره پیدا دی او د هغې تول ه سرمایه د الله تعالی د رضا حصول دی. او دا دولت په عمر او ژوند باندې حاصلیږي. نو کوم سړي چې د مرګ ارمان وکړو نو هغې د سرمایه کارۍ اصل میدان ختم کړو. چا یو داسي تاجر لیدلی چې هغه د خپل مال د ضایع کولو کوشش کړی وي.

د مرګ د ارمان کولو د ممانعت دویمه وجه دا ده چې د مرګ سختیاني ډیري دي. چې د مرګ د مخکې سختیو نه ویریږي او ارمان یې کوي نو هغه اصل سختی به څنګه برداشت کړي. (المرقات ۴/۷۸).

علامه میرک فرمایي چې په دې حدیث کې د مطلع نه ملک الموت یا د منکرنکیر اطلاع مراد ده. چې هغه دا یو انسان ته هغې د مرګ د راتلو په وخت کې وایي. (المرقات ۴/۷۹).

**الانابة:** انابت د رجوع په معنی دی. د دې مفهوم یې داسې بیان کړی دی: **الانابة الرجوع من الکل الی من له الکل.** یعنې ټول دنیوي مشغولتیا او انسانانو لره پریږدي او هغه رب لره متوجي کیدل چې هغه سره هرڅه دي په نور الفاظو کې دا وویل شي: بابا! ټولو سره تعلق ختم کړه او د رب سره یې پیدا کړه. (المرقات ۴/۷۸).

---

(۱) اخرجه أحمد في المسند ۳۳۲/۳

## نيک عمل او ډير عمر دا لوي سعادت دی

﴿۱۶﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ : جَلَسْنَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَذَكَّرَنَا
ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يو ورځ مونږ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته متوجه ناست ؤو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نصيحت كولو

وَ رَقَّقَنَا فَبَكَى سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ فَأَكْثَرَ الْبُكَاءَ
او (دآخرت په ويرې يې) زمونږ زړونه نرم كړل. نو سعد بن ابن وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا شو او ډير يې وژړل او

فَقَالَ : يَا لَيْتَنِي مِتُّ .
بيا يې وويل چې: كاش! زه په ماشومتوب كې مړ شوې وې (نو گناهگار به نه وی او دآخرت د عذاب نه به

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : يَا سَعْدُ أَعِنْدِي
خلاص شوی وی) نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (د دې په اوريدو سره) وفرمايل چې: يا سعده! آيا ته زما په مخكې د

تَتَمَنَّى الْمَوْتَ ؟ فَرَدَّدَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ : يَا سَعْدُ
مرگ ارمان كوي. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا الفاظ درې ځله وفرمايل او بيا يې ارشاد وفرمايل چې "ای سعد!

إِنْ كُنْتَ خُلِقْتَ لِلْجَنَّةِ فَمَا طَالَ عُمُرُكَ وَ حَسُنَ مِنْ عَمَلِكَ
كه ته د جنت لپاره پيدا كړی شوی يې نو ستا عمر چې څومره اوږد وي نو هغومره به ته نيک اعمال كوي

فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ .[1]
نو هغومره به ستا لپاره بهتر وي.

## د حضرت خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واقعه

﴿۱۷﴾ وَ عَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ قَالَ : دَخَلْتُ عَلَى خَبَّابٍ
حارث ابن مضرب (تابعي رَحِمَهُ اللهُ) وايي چې زه د حضرت خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت كې حاضر شوم څو دا

وَ قَدِ اكْتَوَى سَبْعًا فَقَالَ :
چې (هغه مريض ؤ) او د هغه په بدن باندې اوه ځايه داغونه ؤو نو هغه ماته وويل چې: كه ما نه وې اوريدلي د

[1] أخرجه أحمد في المسند ۲٦۷/۵

| |
|---|
| لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُول : لَا يَتَمَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا ارشاد چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایلي ؤو : ارمان دې نه کوي یو کس په تاسو کې د مرګ |
| لَتَمَنَّيْتُهُ . وَ لَقَدْ رَأَيْتُنِي مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَا أَمْلِكُ دِرْهَمًا |
| نو ما به د مرګ ، ارمان کړې وی اګر که د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وخت کې زه دیو درهم مالک هم نه ؤم او اوس |
| وَ إِنَّ فِي جَانِبِ بَيْتِيَ الْآنَ لَأَرْبَعِينَ أَلْفَ دِرْهَمٍ قَالَ |
| دا حال دی چې زما د کور په ګوټ کې څلویښت زره (۴۰۰۰۰) درهم پراته دي. حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې |
| ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهِ فَلَمَّا رَآهُ بَكَى وَ قَالَ |
| بیا خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د هغه کفن راوړی شو هغه یې چې ولیدو نو په ژړا شو او وې ویل (اګرچې دا کفن |
| لَكِنَّ حَمْزَةَ لَمْ يُوجَدْ لَهُ كَفَنٌ إِلَّا بُرْدَةٌ مَلْحَاءُ |
| جائز دی خو) امیر حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته (پوره) نه ؤو ملاؤ شوی. فقط یو تور او سپین ټاکو والا څادر ؤو. او |
| إِذَا جُعِلَتْ عَلَى رَأْسِهِ قَلَصَتْ عَنْ قَدَمَيْهِ وَ إِذَا جُعِلَتْ عَلَى قَدَمَيْهِ |
| (هغه هم دومره وړوکی ؤ) چې سر به یې ورته پټ کړو نو خپې به یې ښکاره شوې او چې په خپو به یې ورته |
| قَلَصَتْ عَنْ رَأْسِهِ حَتَّى مُدَّتْ عَلَى رَأْسِهِ وَ جُعِلَ عَلَى قَدَمَيْهِ |
| واچولو نو سر به یې ښکاره شو. نو آخر کې یې ورله په هغه څادر باندې سر پټ کړلو او خپې یې ورته په |
| الْإِذْخِرُ. إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يذكر: ثُمَّ أُتِيَ بكفنه إِلَى آخِره [1] |
| اذخر (سرګړی) باندې پټې کړې. |

**توضیح** : **وقد اکتوی**: اور باندې داغ ورکولو ته اکتوی او کوی وایي ، په اور باندې د داغ ورکولو نه په حدیثونو کې منع راغلي ده ، خو هغه نهې ارشادي ده یعني د ضرورت په وخت کې ممانعت نشته دی. (المرقات ۴/۸۲).

**بردة**: څادر ته وایي. (المرقات ۴/۸۲).

**ملحاء**: چې په هغې سپینې او تورې کرخې او ټاکې وي. (المرقات ۴/۸۲).

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱/۵

**قلصت:** زبيخلو او كولو په معنى كې دى. مراد دا دى چې دغه وړوكى څادر به يې په سر واچولو نو ښپې به يې ښكاره شوې او كه په ښپو باندې به يې واچولو نو سره به يې ښكاره شو. نو نبي كريم ﷺ د سر د پټولو حكم وكړو او په ښپو باندې يې د (اذخر) سر كړې اچولو حكم وكړو. (المرقات ۴/۸۲).

**الاذخر:** دا يو قسمه وابنه دې چې په جوماتو كې يې د فرش په توګه اچول كيدل. او دغه شان د لوارانو په بټو كې د اور لګولو لپاره هم استعماليدل. ځكه هغه اور زر اخلي. لهذا په دې سره به كوئلو ته اور زر لګيدو. دغه كه د قبر فرش به لون شو نو په هغې باندې به يې خورولو. اوس دا وابنه په كلو كې په جوماتو كې اچولى كيږي او خلك پرې كيني. په دې وابنو كې يو قسم له خوشبو هم وي. (المرقات ۴/۸۲).

حضرت خباب رضي الله عنه امت ته تعليم وركړو چې د مالداره شكر كونكې نه فقير صبر كونكى بهتره او افضل دى. صحابه كرامو رضي الله عنهم ته د جهاد په وجه الله تعالى ډيره زياته دنيا وركړه او آخرت يې هم وركړو. حضرت حمزه رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ رضاعي ورور او محبوب تره ؤو. د احد په ميدان كې د وحشي بن حرب په لاس شهيد شو؛ بدن يې ورته مُثله كړو او د كفن لپاره يې هيڅ ټوټه نه وه. شهيد ته د جدا كفن اغوستلو ضرورت نشته دى. بلكې هغه دې په خپلو جامو كې خښ كړى شي. خو دلته معامله داسې ده چې د حضرت حمزه رضي الله عنه په بدن باندې د هغه وړوكى څادر نه بغير بل هيڅ څه نه ؤو. نو ځكه په وښو د بدن پټول ضرورت شو. (المرقات ۴/۸۲).



همدغه ظاهري امر غوره کړئ، ځکه چې په دې سره د باطني امر دپاره آساني پیدا کیدی شي او دغه امر په باطني امر باندې د دلیل او قرینې په طور وړاندې کیدلی شي.

## د بدکارۍ مراتب

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ |
| دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: خدای تعالی چې د انسان په تقدیر کې څومره |
| حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا أَدْرَكَ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ وَ زِنَا |
| برخه زنا لیکلې ده هغه به خامخا د هغه په عمل کې راځي، د سترګو زنا (د نامحرمو طرف ته) کتل دي او زنا |
| اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ وَ النَّفْسُ تَمَنَّى وَ تَشْتَهِي وَ الْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ |
| د ژبې (د نامحرمو ښځو سره د شهوت) خبرې دي او نفس آرزو او خواهش کوي او شرمګاه د دې آرزو تصدیق |
| وَيُكَذِّبُهُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ كُتِبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَصِيبُهُ مِنَ الزِّنَا |
| کوي یا تکذیب، او د مسلم یو روایت دی چې د انسان په تقدیر کې چې د زنا څومره حصه لیکل شوې ده |
| مُدْرِكٌ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ الْعَيْنَانِ زِنَاهُمَا النَّظَرُ وَ الْأُذُنَانِ |
| هغه به خامخا په عمل کې راځي د سترګو زنا (د نامحرمو طرف ته) کتل دي د غوږونو زنا (د نامحرمې ښځې) |
| زِنَاهُمَا الِاسْتِمَاعُ وَ اللِّسَانُ زِنَاهُ الْكَلَامُ وَ الْيَدُ |
| نه د شهوت اچوونکو خبرو آوریدل دي د ژبې زنا (د نامحرمې ښځې سره د شهوت) خبرې کول دي او د لاسونو |
| زِنَاهَا الْبَطْشُ وَ الرِّجْلُ زِنَاهَا الْخُطَا وَ الْقَلْبُ |
| زنا (د نامحرمې ښځې په بدې ارادې سره) لمس کول دي او د پښو زنا (د بدکارۍ طرف ته) تلل دي او زړه |
| يَهْوَى وَ يَتَمَنَّى وَ يُصَدِّقُ ذَلِكَ الْفَرْجُ وَيُكَذِّبُهُ. (بخاري، مسلم)[1] |
| خواهش او آرزو کوي او شرمګاه د هغه تصدیق یا تکذیب کوي. |

**توضیح: ان الله کتب الخ:** حافظ توربشتي رحمه الله ویلي دي چې کتب د ثبت په معنی دی د فرض او واجب په معنی نه دی، مراد دا دی چې الله تعالی په ابن آدم کې داسې حواس پیدا کړي دي د کومو په ذریعه چې هغه د زنا لذت (خوند) محسوسوي او د هغه نه وروسته د فرج په ذریعه د هغه تکمیل کوي،

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۲۶/۱۱، رقم الحديث: ۶۲۴۳، ومسلم في صحيحه ۲۰۴۶/۴، رقم الحديث ۲۰، واخرجه ابو داود في سننه ۶۱۱/۲، رقم الحديث ۲۱۵۲، واحمد في مسنده ۲۷۶/۲.

# باب ما یقال عند من حضره الموت

مرګ ته نزدې سړي مخې ته څه وویل شي؟

**قال الله تعالىٰ:** ﴿وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ﴾ (سورة ق: آیت: ۱۹)

په دې باب کې د مرګ نه مخکې او د مرګ نه وروسته د لوستلو دعاګانو ذکر دی. همدغه شان د روح او چتولو او د عالم برزخ بیان هم په دې تر کافي حد پورې راغلی دی.

د قریب المرګ نه مراد هغه سړی دی چې په هغې باندې د مرګ آثار ښکاره شوي وي. د مرګ په نښانو کې خپې سستیږي. په هغه وخت کې د پوزي هډوکی کوږ شي او رګونه یې کیني. د قریب المرګ مخې ته لوستونکی شی د توحید او شهادت کلمه ده او سورة یاسین او داسې نور سورتونه دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## قریب المرګ ته د اطمینان ورکولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَقِّنُوْا |
| ابو سعید رضي الله عنه او ابو هریره رضي الله عنه وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل تلقین کوي (وایي) خپلو |
| مَوْتَاكُمْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| مړو ته کله چې قریب الموت وي (کلمه) لا اله الا الله. |

**توضیح: موتاکم:** قریب المرګ باندې باعتبار مایؤل الیه د مړي اطلاق شوی دی. مطلب دا چې د نزع په حالت کې د قریب الموت سړي مخې ته کلمه او نور سورتونه وایې چې هغه یې واوري او لوستل یې شروع کړي. دلته د تلقین نه همدغه مراد دی. علماؤ لیکلي دي چې مریض ته یې واوروی خو دا حکم ورته مه کوی چې ته یې هم ووایه. داسې نه چې هغه پریشانه شي او انکار ونه کړي. د مرګ نه وروسته په قبر باندې د تلقین مسئله را روانه ده. دلته خو د قریب الموت سړي بیان دی. دا تلقین مستحب دی. د احنافو په نزد تلقین القبور د راجح قول مطابق نه دی. په ظاهر الروایة کې همدغه دي چې تلقین قبور دې ونه کړی شي.

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۳۳/۲ رقم الحديث :۶-۹۱۹، وأبوداود في السنن ۴۸۶/۳، رقم الحديث: ۳۱۱۵، والترمذي في السنن ۳۰۷/۳ رقم الحديث:۹۷۷.

## د قريب المرګ مخې ته د خير کلمات لوستل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا حَضَرْتُمُ الْمَرِيضَ |
| او ام سلمه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "کله چې تاسو لاړ شي د يو مريض خوا ته |
| أَوِ الْمَيِّتَ فَقُولُوا خَيْرًا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ |
| يا د قريب المرګ خوا ته نو د خولې نه د خير کلمات وباسئ ځکه ستاسو د ژبې نه چې څه وځي (هغه که د |
| عَلَى مَا تَقُولُونَ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1] |
| خير دعا وي او يا د شر دعا وي) نو فرښتې پرې آمين وايي. |

**توضيح: اوالميت:** د مريض نه وروسته د مړي ذکر شوی دی. د دې نه به حقيقي مرګ مراد اخستل بهتر وي يعنې که په تاسو کې يو سړی مريض يا د مړي خوا کې حاضر شي نو. (المرقات ۴/۸۴).

**فقولوا:** يعني ښه کلمات وايي چې ستاسو او ستاسو د مريض او دغه شان د مړي لپاره يو شان فايده ورکونکي وي. او هغه داسې چې د ځان لپاره د خير او مريض لپاره د شفاء او د مړي لپاره د مغفرت دعا غوښتل په کار ده. دا د دريواړو لپاره د خير دعاء ده. او څنګه چې د دې حديث تعليم دی چې فرښتې په هغه ښو کلماتو او دعا باندې آمين وايي او د فرښتو آمين والا دعا قبليږي او همدغه لوي نعمت او دولت دی. (المرقات ۴/۸۴).

## په مصيبت باندې د "انالله وانا اليه راجعون" د ويلو لوی اثر

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ تُصِيبُهُ مُصِيبَةٌ |
| ام سلمه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې هم يو مسلمان راګير شي په يو (وړوکی |
| فَيَقُولُ مَا أَمَرَهُ اللهُ بِهِ : (إِنَّا لِلّٰهِ وَ إِنَّا إِلَيْهِ |
| يا لوی) مصيبت کې او د الله تعالى د حکم مطابق دا الفاظ ووايي (ترجمه) مونږ د خدای يو او د هغه طرف |
| رَاجِعُونَ ) اللّٰهُمَّ أْجُرْنِي فِي مُصِيبَتِي |
| ته به بيرته ځو. ای الله! زما په مصيبت باندې ماله ثواب راکړي او (په دې مصيبت کې) کوم شی زما د |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۳۳ رقم الحديث :۶-۹۱۹، وأبوداود في السنن ۳/۴۸۶، رقم الحديث: ۴۱۱۵، والترمذي في السنن ۳/۳۰۷ رقم الحديث:۹۷۷.

| |
|---|
| وَاخْلُفْ لِيْ خَيْرًا مِنْهَا إِلَّا أَخْلَفَ اللهُ لَهُ خَيْرًا مِنْهَا ". |
| لاس نه تلی دی د هغې نعم البدل را کړي نو الله تعالی د هغه شي نه بهترینه بدله ورکوي. ام سلمه رضي الله عنها |
| فَلَمَّا مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ |
| وايي چې کله ابو سلمه رضي الله عنه (يعنې زما اولنی ميړه) مړشو نو ما وويل چې "د ابو سلمه رضي الله عنه نه به |
| قُلْتُ: أَيُّ الْمُسْلِمِينَ خَيْرٌ مِنْ أَبِي سَلَمَةَ ؟ |
| بهتر کوم مسلمان وي هغه ابو سلمه رضي الله عنه چاچې د ټولو نه اول د خپلې ښځې او بچو سره د نبي کريم |
| أَوَّلُ بَيْتٍ هَاجَرَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ثُمَّ إِنِّي قُلْتُهَا |
| صلى الله عليه وسلم طرف ته هجرت وکړو او بيا ما دا پاس ذکر شوي کلمات ولوستل. نو الله تعالی د ابو سلمه |
| فَأَخْلَفَ اللهُ لِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ.[1] |
| رضي الله عنه په بدل کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم راکړو (يعنې زه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په نکاح کې شوم). |

**توضيح: أم سلمه:** حضرت ام سلمه رضي الله عنها د امهات المؤمنينو نه وه. د حديثونو په بيانولو کې د دې مقام د حضرت عائشه رضي الله عنها ته نزدې نزدې دی. هغې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه دا حديث مخکې اوريدلی ؤو چې د مصيبت په وخت کې مسلمان ته "انا لله وانا اليه راجعون" ويل په کار دي. او ورسره ورسره دا کلمات هم لوستل په کار دي چې د ورک شوی شي په بدل دې الله تعالی ښه بدله راکړي. د حضرت ام سلمه رضي الله عنها ميړه دا چې د شان والا صحابي ؤو. په اخلاص سره يې هجرت کړی ؤو او بيا مړ شو. د حضرت ام سلمه رضي الله عنها په خيال کې هغه د ډير لوي خوبيانو والا ؤو. نو ځکه هغه په تشويش کې شوه چې د دې نه څوک بهتر کيدلی شي خو دا چې د شريعت حکم ؤو. نو ځکه ام سلمه رضي الله عنها د ابو سلمه رضي الله عنه په مرګ باندې دا کلمات ادا کړل چې د هغې اثر دا وشو چې د الله تعالی د طرف نه حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته په کروړونو درجې بهتر خاوند سيد الاولين والآخرين (نبي کريم صلى الله عليه وسلم) نصيب شو. (المرقات ۸۵-۴/۸۶).

**وأخلف:** دا د باب افعال نه دی او دا باب په هغه امورو کې مستعمليږي چې د حاصلولو توقع يې وي لکه: مال، اولاد، ښځه وغيره او د کومو شيانو حاصلول چې ممکن نه وي په هغې کې خلف د باب

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۳۱/۲ رقم الحديث: ۳-۹۱۸، وأبوداود في السنن ۴۸۸/۳، رقم الحديث: ۳۱۱۹.

**تفعیل** نه استعمالیږي . (المرقات۴/۸۶).

**ای المسلمین** : دا استفهام د استبعاد د پاره دی ، ام سلمه رضی الله عنها تعجب وکړو چې چې د ابو سلمه نه بهتر به څوک کیدی شي . (المرقات۴/۸۶).

**انا لله** : ددې مقصد دادی چې د مصیبت په وخت کې مصیبت زده انسان ووایي چې دا مصیبت خو راغی خو مونږ او زمونږ اولاد او زمونږ نفسونه او مال ټول د الله تعالی لپاره دي. او آخر کې د هغې طرف ته تلل دي. دا دعا د مسلمانانو لپاره یو لوي نعمت او راحت دی. چې د لوي مصیبت غم زغمل هم اسانه شي او د کومو خلکو سره چې دا مرهم او اطمینان او دوا نشته دی د هغوی نه پوښتنه وکړی چې په هغوی باندې د غم څه اثر وي. نو هغه به درته ووایي چې د ناامیدۍ او بې حوصلې او ددر او غم نه بغیر بل هیڅ نه ملاویږي. علماؤ لیکلي دي چې کله هم یو سړي ته تیر شوی مصیبت رایاد شي نو هغې له په کار ده چې دا کلمات ووایي الله تعالی به نور ثواب ورکړي. (المرقات۴/۸۴،الکاشف۳/۳۵۳).

**آجرني**:دا کلمه "أءُجرنی" هم منقول ده یعني د همزه د جزم سره او د جیم پیش سره او د همزه مد او د جیم زیر سره هم منقول دی. همدغه مشهور دی. (المرقات۴/۸۴).

## د مړي د پاره د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دعاء

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَن أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : دَخَلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي سَلَمَة قَدْ شَقَّ |
| ام سلمه رضی الله عنها وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ابي سلمه رضی الله عنه خوا ته هغه وخت راغلو چې تیغې |
| بَصَرَهُ فَأَغْمَضَهُ ثُمَّ قَالَ : إِنَّ الرُّوحَ إِذَا قُبِضَ |
| شوې وې سترګې دده نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم دده سترګې بندې کړې او ووې فرمایل چې کله روح قبض |
| تَبِعَهُ الْبَصَرُ فَضَجَّ نَاسٌ مِنْ أَهْلِهِ |
| کړې نو دې سره دانسان نظرهم ځي دابو سلمه اهل بیت(چې داواوریدل نو پوهه شو چې ابو سلمه رضی الله عنه |
| فَقَالَ : لَا تَدْعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِلَّا بِخَيرٍ |
| مړشوی دی نو هغوی)ټول په ژړا شول.نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل :بچې د خپل نفسونو باره کې |
| فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤمِنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ |
| د خیر دعا کوی(یعني واویلا او بد دعا مه کوی)ځکه تاسو (بنه یا بد)چې د کومې دعا الفاظ راوباسۍ نو |

| |
|---|
| ثُمَّ قَالَ : اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِأَبِي سَلَمَةَ وَ ارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّينَ |
| فرښتي په هغې آمين وايي. بيا نبي كريم ﷺ دا دعا وكړه اى الله! ابو سلمه وبخښي او دده مرتبه |
| وَاخْلُفْهُ فِي عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِينَ |
| اوچته كړي په هغه خلكو كې هغوى ته نيغه لاربنودلى شوي ده او دده پسماندګان چې هغه په خلكو كې |
| وَ اغْفِرْ لَنَا وَ لَهُ يَا رَبَّ الْعَالَمِينَ وَ أَفْسِحْ لَهُ فِي قَبْرِهِ |
| پاتې دي، ته يې كارساز جوړشه او اى د دواړه جهانو پروردګاره! مونږ او دا وبخښي او د ده قبر پراخه |
| وَ نَوِّرْ لَهُ فِيهِ .(۱) |
| كړي او دده قبر رڼا كړي آمين. |

**توضيح: شق بصر:** چې كله سترګې تيغې پاتې شي نو دې ته **شق بصر** وايي، يعنې سترګې يې كولاوي پاتې شوي. (المرقات۴/۸۶).

**اغمضه:** يعنې نبي كريم ﷺ د ابو سلمه رضي الله عنه سترګې بندي كړلي او د سترګو د كولاؤ پاتې كيدلو وجه يې بيان كړه. چې كله روح وځي نو نظر هغې پسې وروسته لاړ شي. ګويا كې سترګې ګورې چې روح څنګه وځي. كله چې روح وځي نو نظر هم لاړ شي او د سترګو حركت هم ختم شي او سترګې همدغه شان كولاوي پاتې شي. ځكه نبي كريم ﷺ امت ته تعليم وركړو چې د مړي سترګې بندوي ځكه په كولاو پريخوستلو كې اوس د كتلو فايده نشته دى. او د مړي شكل بنه نخكاري. دا د اسلام خوبيانو كې ده چې د انسان د بښايست خيال د مرګ نه وروسته هم كوي. (المرقات۴/۸۶).

**فضج ناس:** ضبح يضبح د ضرب يضرب نه د زړيدلو او د چغو وهلو په معنى كې دى(المرقات۴/۸۷). نبي كريم ﷺ چې دا وفرمايل چې روح كله وځي نو سترګې كولاوي پاتې كيږي. په دې سره كور والاؤ ته اندازه بلكي يقين وشو چې ابو سلمه رضي الله عنه مړ شوى دى. نو ځكه يې په چغو ژړل شروع كړل. نو ځكه نبي كريم ﷺ هغوى ته لاربنود نه وكړه چې ژاړئ مه او د ژبې نه بدي كلمي ويستل په كار نه دي. ځكه فرښتي آمين وايي. بيا نبي كريم ﷺ د ابو سلمه رضي الله عنه او د هغې د پسماندګانو لپاره يوه جامع دعا وكړه چې فقط د ابو سلمه رضي الله عنه سره خاص نه وه بلكي د امت د ټولو نفرو لپاره هم عامه ده. (المرقات۴/۸۷).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۳۱ رقم الحديث :۷-۹۲۰، وأبوداود في السنن ۳/۴۸۷، رقم الحديث: ۳۱۱۸.

## د مرګ نه وروسته په نبي کريم ﷺ باندې خور شوي څادر

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَ سُجِّيَ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې کله نبي کريم ﷺ مړ شونو خور کړې شو د نبي کريم ﷺ (په |
| بِبُرْدِ حِبَرَةٍ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| جسد اطهر) باندې د يمن واله څادر. |

**توضيح : سجى**: تسجية نه د مجهول صيغه مراد ده د خورولو په معنى کې دى. (المرقات ۴/۸۷).

**بردة**: وړوکي څادر ته وايي. (المرقات ۸۷-۴/۸۸).

**حبرة**: چې په کوم څادر کې ښايسته کرخي وي هغې ته "حبرة" ته وايي. دا د يمن جوړ شوي څادر ته ويل شوي دي. مطلب دا چې د نبي کريم ﷺ د مرګ نه وروسته په نبي کريم ﷺ باندې نقش کړى شوى د يمن جوړ شوى څادر اچولى شوى ؤو. د دنيا ټول مذهوبونو والو له په کار دې چې اسلام څومره ژوندى او تابنده مذهب دى او د دې خدوخال څومره محفوظ دي. اسلام دا ضمانت هم ورکوي چې د مسلمانانو پيغمبر د وفات نه وروسته په کوم حال کې ؤو. يو يو حالت دا سي ؤو او يوه يوه لمحه څنګه تيره شوه او څنګه محفوظه ده. (المرقات ۸۷-۴/۸۸).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په کلمه طيبه سره مړ کيدونکى انسان جنتي دى

| |
|---|
| ﴿۶﴾ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ آخِرُ كَلَامِهِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ |
| معاذ ابن جبل رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: د کوم سړي آخري کلام چې لا اله الا الله |
| دَخَلَ الْجَنَّةَ.[2] |
| وي نو هغه به جنت ته داخليږي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۴/۳، رقم الحديث :۱۲۴۱، ومسلم في صحيحه ۶۵۱/۲ رقم الحديث :۴۸-۹۴۲، وأبوداود في السنن ۴۸۹/۳، رقم الحديث: ۳۱۲۰.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۴۸۶/۳، رقم الحديث : ۳۱۱۶.

## قريب الموت ته د سورة يس ويلو حکم

﴿۷﴾ وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسلم: اقرؤوا سُورَةَ (يٰس) عَلَى مَوْتَاكُمْ(۱)

حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ووايي سورة ياسين خپلو مړو ته.

**توضيح: موتاكم**: مخکې ويل شوي دي چې د موتیٰ نه مراد قريب المرګ خلک دي. د سورة يٰسين خوبي دا ده چې په هغې سره د نفس تکليف الله تعالى آسانه وي. ځکه د قرآن کريم په ټولو سورتونو کې دا سورة داسې دی چې الله تعالى په عجيبه انداز کې قيامت ثابت کړی دی مثلاً د الله تعالى د ذکر پوره نقشه ده. د دفن شوي سړي د احوالو ذکر دی. د قيامت د احوالو ذکر دی. د جهنم د پاسه د تيريدو او د نورو واقعاتو ذکر دی. او په عجيبه دلائلو سره د حشر او نشر اثبات دی. دا چې سورت ياسين د امهات په اصولو باندې مشتمل دی بالخصوص د حشر نشر واقعات په دې کې ډير په تفصيل سره بيان شوی دی. دا ساه وتلو په وخت کې هم مفيد دی. د مړي خوا کې لوستل هم د مړي لپاره فايده مند دی او په کور کې د دې لوستل هم فايده مند دي. خلک د دغه حديث په وجه د مړو لپاره سورة ياسين خاص کړی دی. ځينې وهمي خلک د سورة ياسين د لوستلو نه د تختيدلو نه کوشش کوي. (المرقات ۴/۸۹).

**لطيفه**: حضرت تهانوي رحمه الله په خپل ملفوظاتو کې ليکلي دي چې په هندوستان کې يو سړی ؤو. هغه به د سورة ياسين د نوم نه ويريدلو او خلکو ته به يې ويل چې په کومه ورځ حافظ سورت ياسين وايي ددې نه مخکې ماته ووايي چې زه په هغه ورځ په تراويح کې شرکت نه کوم ځکه دا د مړو سورت دی چې څوک يې اورې نو هغه به مړ کيږي. نو هغه به انتظار کولو خو چا هغه ته ونه ويل او سورت ياسين ولوستل شو څه ورځې وروسته هغه پوښتنه وکړه چې اوس سورت ياسين رانغلو. نو چا ورته وويل چې هغه خو تير شوی دی هغه وويل چې آيا زه په هغه شپه ؤم او ما واوريدلو. جواب ورکونکي وويل چې او ته حاضر وي او تا واوريدلو ددې په اوريدو سره هغه سړی وويريدو او په ريږيدو ريږيدو مړ شو.

## د مسلمان مړی ښکلول جائز دي

﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبَّلَ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُونٍ وَهُوَ مَيِّتٌ

عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم عثمان ابن مظعون رضي الله عنه د وفات نه وروسته هغه ښکل

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۴۸۹/۳، رقم الحديث: ۳۱۲۱، وأحمد في المسند ۲۶/۵.

| وَ هُوَ يَبْكِي حَتّٰى سَالَ دُمُوعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلٰى |
|---|
| (مچي) کړو او په مړي يې وژړل تر دې چې وبهيدې (راتوي شوي) اوښکې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په |
| وَجْهِ عُثْمَانَ. (۱) |
| مخ د حضرت عثمان رضي الله عنه باندې. |

**توضيح : عثمان بن مظعون:** دي صحابي سره د نبي كريم صلى الله عليه وسلم ډيره مينه وه نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه ته ورور ويلي ؤ په مهاجرينو کې دا اول انسان ؤ چې په مدينه منوره کې مړ شو. او دا هغه اولنى انسان دى چې دده په وجه د جنت البقيع بنياد کيخودلی شو. د ټولو نه اول په بقيع کې هغه خښبنں کړی شو او نبي كريم صلى الله عليه وسلم يو غټ كاڼي د هغې په قبر باندې خښ کړو او وي فرمايل چې په دې سره به زما د ورور قبر معلوميږي او زما ښځه او بچې به دې سره نزدې خښښ شي.

نن صبا د هغه د قبر پته نه لګي بلکې د ټولو اکابرو حتى چې د حضرت عائشه رضي الله عنها او د حضرت عباس رضي الله عنه د قبر هم صحيح اندازه نه نشته دی. پرون په ۱۲ د رمضان ۱۴۲۴ھ کې بنده عاجز د مازيګر نه وروسته جنت البقيع ته تلی ؤ د هيڅ يو قبر پته نه لګيده پوليس والو خلک هم اودريدو ته نه پريخودل د هغوی خيال دی چې ټول مشرکان دي. (المرقات۴/۹۰).

بهرحال زه په دغه وخت کې د بحث لاندې حديث د تشريح او توضيح په مسجد نبوی کې ناست يم او ليکم. مخي ته ګنبد خضراء ښکاري "والحمد لله حمدا كثيرا كثيرا" د بحث د لاندې کې يوه دا خبره ثابته شوه چې مسلمان مړی ښکولول جائز دي په عامه توګه نه دی ښکل کيږي. د دې حديث نه دويمه دا خبره ثابته شوه چې په يو مړي باندې ژړل او اوښکي تويول جائز دي چيغي سوري وهل، ژړا فرياد کول جائز نه دې. د دې حديث نه دا خبره هم معلومه شوه چې د قبر معلومو لپاره يوه نښه ايخودل جائز دي. د دې حديث نه دا خبره هم معلومه شوه چې د خپل خاندان نزدې نزدې په يوه خطه کې خښول جائز دي.

| ﴿۹﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : إِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې ابوبكرصديق رضي الله عنه ښکل کړو د نبي كريم صلى الله عليه وسلم جسد اطهر مبارک د |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵۱۳/۳، رقم الحديث : ۳۱۶۳ ، والترمذي في السنن ۳۱۴/۳ رقم الحديث :۹۸۹ ، وابن ماجه ۴۶۸/۱ رقم الحديث :۱۴۵۶ ، وأحمد في المسند ۴۳/۶.

وَ هُوَ مَيِّتٌ.[۱]

مرګ نه وروسته.

## په كفن دفن كې جلتي كول په كار ده

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ وَحْوَحٍ أَنَّ طَلْحَةَ بْنَ الْبَرَاءِ مَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حصين رضي الله عنه ابن وحوح وايي چې طلحه رضي الله عنه ابن براء مريض شو نو راغلو نبي كريم صلى الله عليه وسلم دده

يَعُودُهُ فَقَالَ : إِنِّي لَا أَرَى طَلْحَةَ إِلَّا قَدْ حَدَثَ بِهِ الْمَوْتُ

بيمار پرسۍ دپاره او (دده اهل بيت ته) يې وفرمايل چې زما خيال دى چې طلحه رضي الله عنه ته مرګ راغلو

فَآذِنُونِي بِهِ

يعنې په طلحه رضي الله عنه باندې د مرګ علامات ظاهر شو لهذا كله چې هغه مړشي نو ما په جلتۍ سره خبر كړئ

وَ عَجِّلُوا فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِجِيفَةِ مُسْلِمٍ

چې دده د مونځ كولو دپاره راشم او تاسو په كفن دفن كې جلتي وكړئ ځكه د مسلمان مړي دپاره مناسب نه

أَنْ تُحْبَسَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ أَهْلِهِ.[۲]

ده چې هغه د خلكو په مينځ كې پروت وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَقِّنُوا

عبد الله ابن جعفر رضي الله عنه راوي دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: تاسو تلقين كوئ قريب المرګ ته

مَوْتَاكُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ سُبْحَانَ اللهِ

د دې كلمې تلقين (ترجمه) د الله نه بغير بل څوك معبود نشته دى چې بردبار و بزرګ دى. پاک دى الله

رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ

چې د عرش عظيم مالک دى. ټول تعريفونه د الله لپاره دي چې د دواړه جهانونو پروردګار دى. صحابو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳ رقم الحديث : ۱۲۴۲، والترمذي ۳۱۵/۳ رقم الحديث : ۹۸۹.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵۱۰/۳، رقم الحديث . ۳۱۵۹

قَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ ! كَيْفَ لِلْأَحْيَاءِ ؟ قَالَ : أَجْوَدُ وَ أَجْوَدُ .(۱)

عرض وکړو چې یارسول الله! د ژوندو لپاره دا کلمه څنګه ده؟نبي علیه السلام و فرمایل: ډیره بهتره ده.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : الْمَيِّتُ

ابو هريره رضی الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل "چې کوم قريب المرګ وي نو ده ته

تَحْضُرُهُ الْمَلَائِكَةُ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَالِحًا قَالُوا : اخْرُجِي أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ

فرښتې راځي او که هغه نيک او صالح وي نو (د هغه روح ته د رحمت) فرښتې وايي چې: اې پاکه روحه

كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ اخْرُجِي حَمِيدَةً

چې په پاک بدن کې وې په داسې حال کې (د بدن نه) وځه چې د خدای او د مخلوق په نزد ستا تعريف شوی

وَ أَبْشِرِي بِرَوْحٍ وَ رَيْحَانٍ وَ رَبٍّ

دی او تا لره دې زيرې وي (دائمي) راحت او سکون وي، د جنت د پاک رزق او د خدای د ملاقات چې (په تا

غَيْرِ غَضْبَانَ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذٰلِكَ حَتّٰى تَخْرُجَ

باندې) غضب ناک نه دی. د قريب المرګ مخې ته فرښتې همدغه وايي تردې چې روح (په خوشالۍ) وځي

ثُمَّ يُعْرَجُ بِهَا إِلَى السَّمَاءِ فَيُفْتَحُ لَهَا فَيُقَالُ :

او بيا فرښتې هغه د آسمان طرف ته وېسي د آسمان دروازه ځکه کولاؤ کړی شي د آسمان څوکيداران پوښتنه

مَنْ هٰذَا ؟ فَيَقُولُونَ : فُلَانٌ

کوي چې دا څوک دی؟ هغه بوتلونکي فرښتې (د هغه نوم او نسب) ورته و وايي چې دا د فلانی سړی (روح)

فَيُقَالُ : مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الطَّيِّبَةِ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ

دی پس وبه ويل شي چې آفرين دې وي دې پاک روح له چې په پاک بدن کې وُاو (اې پاکه روحه په آسمان

ادْخُلِي حَمِيدَةً وَ أَبْشِرِي بِرَوْحٍ وَ رَيْحَانٍ

کې) داخل شه په داسې حال کې چې ستا تعريف شوی دی او خوشخبري دې وي تا لره د راحت، د پاک رزق

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/٤٦٥ رقم الحديث : ١٤٤٦.

وَ رَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذٰلِكَ حَتّٰى

او دپروردګار د ملاقات چې غضبناکه نه دی. دې روح ته به همدغه ضخبره ویل کېږي تردې چې هغه روح

تَنْتَهِيَ إِلَى السَّمَاءِ الَّتِي فِيهَا اللهُ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ السُّوءُ

هغه آسمان (يعني عرش) ته ورسيږي چرته چې د الله رب العزت رحمت خاص نظاره ده او که هغه بد (يعني

قَالَ : اخْرُجِي أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْخَبِيثَةُ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الْخَبِيثِ اخْرُجِي

کافر) وي نو ملک الموت وايي چې: ای خبيث روحه په خبيث بدن کې وې په داسې حال کې د بدن نه وُځه

ذَمِيمَةً وَ أَبْشِرِي بِحَمِيمٍ وَ غَسَّاقٍ وَ آخَرَ مِنْ شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ

چې ستا بد بيان شوی دی او دا خبره واوره چې ګرمې اوبه، پيپ او ددې نه بغير نور عذابونه ستا په انتظار دي

فَمَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذٰلِكَ حَتّٰى تَخْرُجَ

دې بدبخته قريب المرګ ته بيا بيا همدغه ويل کېږي تردې چې د هغه روح (خدای نخواسته) باهر وځي.

ثُمَّ يُعْرَجُ إِلَى السَّمَاءِ

بيا هغه د آسمان طرف ته بوتللی شي (د دې لپاره چې په هغې باندې ذلت او خواري ظاهره کړی شي)

فَيُفْتَحُ لَهَا فَيُقَالُ : مَنْ هٰذَا ؟

کله چې د آسمان دروازې کولاؤ کړی شي. نو د څوکيدارانو له طرف پوښتنه وکړل شي چې دا څوک دی؟

فَيُقَالُ : فُلَانٌ فَيُقَالُ : لَا مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الْخَبِيثَةِ

جواب به ورکړی شي چې فلانی سړی پس وبه ويل شي چې: په خير راغلې دې نه وې دې خبيث روح ته

كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الْخَبِيثِ ارْجِعِي ذَمِيمَةً

چې په خبيث بدن کې وُ او (ای خبيث روحه) بيرته لاړ شه په داسې حال کې چې ستا بدې بيان شوې ده او

فَإِنَّهَا لَا تُفْتَحُ لَكِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ فَتُرْسَلُ مِنَ السَّمَاءِ ثُمَّ تَصِيرُ إِلَى الْقَبْرِ ".[1]

ستا لپاره به د اسمان دروازې کولاؤنه کړی شي نو د ادآسمان نه راګوزار کړی شي او د قبر طرف ته راشي.

[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۴۲۳/۲ رقم الحديث : ۴۲۶۲ ، وأحمد في المسند ۱۶۴/۲

**توضیح : حمیدة:** یعنې د الله تعالی او د خدای د مخلوق په نزد ته محمود او تعریف کړې شوې یې. (المرقات ۴/۹۴).

**روح:** دائمي راحت او سکون ته وايي.

**وریحان:** دلته د دې لفظ نه د جنت پاک خوراک مراد دی. (المرقات ۴/۹۴).

**الی السماء:** معلومه شوه چې د جنت ټول انتظام په آسمانونو کې دی او هملته علیین دی چې په هغې کې د مؤمنانو روحونه راجمعه کیږي.

**غیر غضبان:** یعنې د داسې رب ملاقات دې تا لره بشارت وي چې په ده باندې به کله هم غضبناک نه وي. (المرقات ۴/۹۵).

**فیها الله:** یعنې چې په کوم اسمان کې الله تعالی دی. دا کلمه د متشابهاتو نه ده. په دې زمونږ ایمان دی. په تفصیل کې تلل منع دي **"ای ما یلیق بشانه"**. (المرقات ۴/۹۵).

**حمیم:** خوټکیدلي اوبه مراد دي. (المرقات ۴/۹۶). **وغساق:** پیپ او د بدن تونو ته وايي.

**من شکله ازواج:** یعنې د دې په شان نور مختلف قسمه عذابونو خوشخبري هم واوره.

**فترسل من السماء:** د علیین په مقابله کې سجین دی چې په اسفل سافلین کې دی. داسې معلومیږي چې د دوزخ ټول نظام د زمکې د لاندې دی. ځینو روایاتو کې تر عرش پورې د روحونو وړلو ذکر راغلی دی. ځینو کې تر قبرونو پورې د روحونو د پاتې کیدلو ذکر دی. نو تطبیق دا دی چې ځینې روحونه تر عرش پورې ځي. ځینې د قبرونو سره وي او عام په علیین کې وي. (المرقات ۴/۹۶).

## د مؤمن او کافر د روح قبض کولو بیان

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِذَا خَرَجَتْ رُوحُ الْمُؤْمِنِ |
| ابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې د مؤمن روح (د ده د بدن نه) وځي نو |
| تَلَقَّاهَا مَلَكَانِ يُصْعِدَانِهَا . قَالَ حَمَّادٌ : |
| هغه دوه فرښتې آسمان ته ویسي حماد (چې دا حدیث دابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي وایي) چې د هغې |
| فَذَكَرَ مِنْ طِيبِ رِيحِهَا وَ ذَكَرَ الْمِسْكَ |
| نه وروسته نبي کریم صلی الله علیه وسلم یا ابو هریره رضي الله عنه د هغه روح د خوشبوا او د مشک ذکر وکړو یعنې د هغه |
| د روح نه د مشک خوشبوي راځي (دا الفاظ حماد رحمه الله ځکه وویل چې هغه ته دا الفاظ بعینه یاد نه وو |

قَالَ :

کوم چې ده اوريدلي ؤ) بيا نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (کله چې فرښتې د مؤمن روح آسمان ته ورسوي)

" وَ يَقُولُ أَهْلُ السَّمَاءِ : رُوحٌ طَيِّبَةٌ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْأَرْضِ

نو د آسمان والا وايي چې پاک روح د زمکي نه راغلی دی. بيا هغه روح مخاطب کړي او داسي ورته وايي

صَلَّى اللهُ عَلَيْكِ وَ عَلَى جَسَدٍ كُنْتِ تُعَمِّرِينَهُ فَيُنْطَلَقُ بِهِ إِلَى رَبِّهِ

الله تعالی رحمت وکړو په تا او ستا په بدن باندې چې تا به آباد ساتلو بيا فرښتې داويسي پروردگار ته

ثُمَّ يَقُولُ : انْطَلِقُوا بِهِ إِلَى آخِرِ الْأَجَلِ ".

(يعني عرش) ته او پروردگار دا حکم وکړي چې: داويسئ او ترقيامته پورې ده ته مهلت ورکړئ، ابوهريره

قَالَ: وَ إِنَّ الْكَافِرَ إِذَا خَرَجَتْ رُوحُهُ

رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې د دې نه وروسته نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کله د کافر روح د بدن نه بهر راځي.

قَالَ حَمَّادٌ : وَ ذَكَرَ مِنْ نَتْنِهَا .

حماد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د دې نه وروسته ذکر وکړو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يا ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه بدبوې

وَ ذَكَرَ لَعْنًا.

او د لعنت ذکر يې وکړو. بيا نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کله د کافر روح آسمان ته ورسيږي. نو د

" وَ يَقُولُ أَهْلُ السَّمَاءِ : رُوحٌ خَبِيثَةٌ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْأَرْضِ

اسمان والا وايي چې يو ناپاکه روح د زمکي نه راغلی دی بيا (د هغه ناپاکه روح باره کې) دا فيصله وا ورولی

فَيُقَالُ : انْطَلِقُوا بِهِ إِلَى آخِرِ الْأَجَلِ " قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ : فَرَدَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

شي چې دا ويسئ او ترقيامته پورې مهلت ورکړئ. ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي د هغې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَام

رَيْطَةً كَانَتْ عَلَيْهِ عَلَى أَنْفِهِ هٰكَذَا.[1]

د خپل څادر لمن (چې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بدن مبارک باندې ؤ) په خپله پوزه يې داسې کيخوده.

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٤/٢٢٠٢ رقم الحديث :٧٥-٢٨٧٢.

**توضيح**: **تعمرينه**: د اسمان د فرښتو له طرف د مؤمن هغه روح او د بدن لپاره دا نيکه دعا ده. تعمرينه مطلب همدغه دی چې الله تعالی په تا باندې او ستا په بدن باندې رحمت نازل کړي چې کوم بدن ته اباد ساتلو تعمير د عمارت او عمر نه دی د آباد ساتلو په معنی دی. (المرقات ۴/۹۸، الکاشف ۳/۳۵۹).

**نتن**: بدبو ته وايي ځکه کله کله په دنيا کې د تدفين نه مخکې د مؤمن او د منافق او د کافر په بدنونو کې دا منظرونه ښکاره شي. د کافر روح دومره شديده بوبو وي چې په هغې سره د هغې پوره بدن هم بدبوداره شي. (المرقات ۴/۹۸).

**ريطة**: په فتحې د را سره ټادر ته وايي. مطلب دا چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کشف او د معجزې په توګه واقعي د کافر د روح بدبويې محسوسه کړه چې د کوم نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيان کولو. او دا هم امکان لري چې دا فقط يو تمثيل او تشبيه وه چې هغه بدبويې څوک محسوسه کړي نو ټادر لمن په پوزه باندې کيخودلو نه بغير کار نه کېږي. ګوياکې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقط د هغه وخت کيفيت طرف ته اشاره وکړه. دواړه مفهومه کيدی شي. (المرقات ۴/۹۹).

## عالم برزخ کې خلک د نوي ورتلونکې روح نه د دنيا حالات پوښتي

|  |
|---|
| ﴿١٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا حُضِرَ الْمُؤْمِنُ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کله د مؤمن د مرګ وخت راشي نو د |
| أَتَتْ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ بِحَرِيرَةٍ بَيْضَاءَ فَيَقُولُونَ : اخْرُجِي |
| رحمت فرښتې د ريښمو يوه سپينه ټوټه راوړي او روح ته وايي چې ته (د جسد نه) راوزه په داسې حال کې چې |
| رَاضِيَةً مَرْضِيًّا عَنْكِ إِلَى رَوْحِ اللهِ وَ رَيْحَانٍ وَ رَبٍّ |
| ته د الله نه راضي يې او الله ستا نه خوشحاله وي او د الله تعالی د رحمت او د مهرباني بهترين رزق او د پروردګار |
| غَيْرِ غَضْبَانَ فَتَخْرُجُ كَأَطْيَبِ رِيحِ الْمِسْكِ |
| د طرفه چې په تا باندې غضبناکه نه دی وځه نو روح د مشک د بهترين خوشبوي په شان (د بدن) نه وځي او |
| حَتَّى إِنَّهُ لَيُنَاوِلُهُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا حَتَّى يَأْتُوا بِهِ أَبْوَابَ السَّمَاءِ |
| فرښتې هغه ته (د تعظيم په توګه) لاس په لاس بوځي ترديي چې هغه د اسمانونو د دروازو پورې ويسي. |
| فَيَقُولُونَ : مَا أَطْيَبَ هٰذِهِ الرِّيحَ الَّتِي جَاءَتْكُمْ مِنَ الْأَرْضِ |
| ملته فرښتې په خپل مينځ کې وايي چې: څومره ښه ده دا خوشبو چې تاته د زمکې نه راروانه ده. ياهغه د |

فَيَأْتُونَ بِهِ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِيْنَ

مؤمنانو روحونو راولي (په عليين، يا په جنت کې يا د جنت په دروازو يا د عرش د لاندې) چرته چې د مؤمنانو

فَلَهُمْ أَشَدُّ فَرَحًا بِهِ

روحونه په مرتبو او درجاتو کې اوسيږي) نو هغه روحونه د دې روح په راتللو باندې داسې خوشحاله شي

مِنْ أَحَدِكُمْ بِغَائِبِهِ يَقْدُمُ عَلَيْهِ

لکه څنګه چې په تاسو کې يو کس هغه وخت خوشحاله شي لکه چې د هغه ورک شوی شی راشي. بيا تپول

فَيَسْأَلُوْنَهُ : مَا ذَا فَعَلَ فُلَانٌ مَا ذَا فَعَلَ فُلَانٌ ؟

روحونه دده نه پوښتنه کوي چې "فلانی څه کوي او فلانی څه کوي؟ مګر بيا روحونه (خپله) په خپلو کې

فَيَقُوْلُوْنَ : دَعُوْهُ فَإِنَّهُ كَانَ فِيْ غَمِّ الدُّنْيَا .

وايي چې: دا روح پريږدی (اوس تري نه پوښتني مه کوی ځکه) دا د دنيا په غم او مصيبتونو کې ؤ (کله چې

فَيَقُوْلُ :

ده ته لږ راحت ملاؤ شي نو پوښتني وکړی) نو هغه روح (چې کله په آرام شي نو خپله وايي) چې فلانی سړی

قَدْ مَاتَ أَمَا أَتَاكُمْ ؟

(چې بد کاره ؤ او چې د کوم باره کې تاسو پوښتنه کوله) مړ شو. آيا هغه ستاسو خوا ته نه دی راغلی؟ نو

فَيَقُوْلُوْنَ : قَدْ ذُهِبَ بِهِ إِلَى أُمِّهِ الْهَاوِيَةِ .. وَ إِنَّ الْكَافِرَ

هغه روحونه به ده ته ووايي چې هغه خو هغه طرف ته چې د دوزخ اور دی ويوړلی شو او کله چې د کافر د

إِذَا احْتُضِرَ أَتَتْهُ مَلَائِكَةُ الْعَذَابِ بِمِسْحٍ فَيَقُوْلُوْنَ :

روح وخت راشي نو د عذاب فرښتي هغه ته د ټاټ فرش راوړي او د هغه روح ته وايي چې ای کافره روح!

أُخْرُجِيْ سَاخِطَةً مَسْخُوْطًا عَلَيْكِ إِلَى عَذَابِ اللهِ عَزَّ وَ جَلَّ .

د الله تعالی طرف ته وځه په داسې حال کې چې الله تعالی تا نه ناراضه دی او په تا باندې نارضګی ده.

فَتَخْرُجُ كَأَنْتَنِ رِيْحِ جِيْفَةٍ حَتَّى يَأْتُوْنَ بِهِ إِلَى بَابِ الْأَرْضِ

نو هغه روح (د کافر د بدن نه) د مرداري د بد بويي په شان وځي بيا فرښتي هغه د آسمانو نو د دروازو طرف ته

فَيَقُولُونَ : مَا أَطْيَبَ هٰذِهِ الرِّيحَ حَتَّى يَأْتُونَ بِهِ أَرْوَاحَ الْكُفَّارِ ".[1]

بو ځي. هلته فرښتي وايي چې: څومره بده ده دا بدبويي بيا وروسته هغه د کافرانو روحونو ته بوتللی شي.

**توضیح**: **بعضهم بعضاً**: دا د هغه مؤمن د روح اعزاز دی چې فرښتي د هغې اوچتول او وړل پيټمي نه محسوسوي بلکې د اعزاز په توګه يو بل ته اخلي او روکوي. جنازي له اوږه ورکولو او په بدلولو کې هم د هغه راز پټ دی. (المرقات ۴/۹۹).

**ماذا فعل فلان**: يعنې په عالم برزخ کې د مؤمنينو روحونه د دې نوي روح نه د خپل پيژنګلو خلکو باره کې پوښتنه کوي چې فلانې څه وکړل او فلانی څنګه ؤو. يعنې که هغه نيک وي نو مونږ به خوشحاله شو او که بد وي نو خفه به شي. (المرقات ۴/۱۰۰، الکاشف ۳/۳۶۰).

**دعوة**: يعنې ځينې خلک وايي چې د دې نوي روح نه دومره زر پوښتني مه کوئ ځکه دا لا تر اوسه پورې ستړی دی د دنيا مصيبتونو او د نزع حالت او داسي نورو پريشانۍ يې تيري کړي دي. د لږ ارام کولو نه وروسته ترې نه پوښتنه وکړئ. د دې حديث نه معلوميږي چې عالم برزخ يو مستقل ژوند دی او هلته روحونو ته يو قسم بدن ورکول کيږي او هغوی ژوند تيروي. **باب عذاب القبر** د توضيحات په اول جلد کې په دې مسئله او په سماع موتی باندې پوره کلام شوی دی. (المرقات ۴/۱۰۰).

**ذهب به**: يعنې دا نوی روح د يو چا باره کې دا وايي چې هغه خو زما نه مخکې د دنيا نه راغلی دی. آيا هغه نه دی رارسيدلی. په دې باندې پوښتنه کونکي وايي چې هائی افسوس هغه د وزخ طرف ته بوتلی شوی دی.

**بمسح**: د دې نه ټاټ مراد دی. د مؤمن روح د اعزاز په توګه د ريښمو په سپينه ټوټه کې کيخودلی کيږي. مګر د کافر روح د ټاټ په شان يوه ګنده ټوټه کې راتاؤ کړی شي او بوتللی شي. (المرقات ۱۰۰-۴/۱۰۱).

**الی باب الارض**: "ای الی باب سماء الارض" يعنې د زمکې دروازه مراد نه ده بلکې د زمکې والا د اسمان دروازه مراد ده. لکه څنګه چې په مخکني حديث کې ذکر د ې چې د اسمان د دروازو نه د کافرانو روحونه د سجين طرف ته ورګوزار کړی شي. (المرقات ۴/۱۰۱، الکاشف ۳/۳۶۱).

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۸/٤ رقم الحديث : ۱۸۳۳.

## د مؤمن روح په آسانۍ سره وځي

﴿۱۵﴾وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ

براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يو ځل مونږ) د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د يو انصاري جنازې ته لاړو مونږ

فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ وَ لَمَّا يُلْحَدْ فَجَلَسَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

قبر ته ورسيدو (د قبر نه تيار يدو په وجه) لا جنازه خاوروته نه ده سپارل شوې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يو ځاې

وَ جَلَسْنَا حَوْلَهُ كَأَنَّ عَلَى رُؤُسِنَا الطَّيْرَ

کې کيناستو مونږ ترې نه ګير چاپيره (داسې) کيناستو ګويا کې زمونږ په سرو باندې مرغان دي (يعنې مونږ

وَ فِي يَدِهِ عُودٌ

بالکل خاموشه سرټيټي کيناستو) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس کې يوه لخته وه چې په هغې باندې يې

يَنْكُتُ بِهِ فِي الْأَرْضِ فَرَفَعَ رَأْسَهُ

زمکه کنستله (لکه يو سړی چې ډير په فکر او د استغراق په حالت کې وي) بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام سر را اوچت

فَقَالَ : اسْتَعِيذُوا بِاللهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا

کړو او (مونږ ته مخاطب شو) وې فرمايل چې: د عذاب قبر نه د الله پناه غواړئ نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا دوه يا درې ځل

ثُمَّ قَالَ : إِنَّ الْعَبْدَ الْمُؤْمِنَ إِذَا كَانَ فِي انْقِطَاعٍ مِنَ الدُّنْيَا وَ إِقْبَالٍ مِنَ الْآخِرَةِ

وفرمايل او بيا يې وفرمايل کله چې مؤمن بنده د دې دنيا نه تعلق ختمونکی وي او آخرت ته متوجه شي

نَزَلَ إِلَيْهِ مِنَ السَّمَاءِ مَلَائِكَةٌ بِيضُ الْوُجُوهِ

(يعنې مرګ ته نزدې شي) نو د ده خوا ته د آسمان نه ډيرې د پړق وهونکي مخ والا فرښتې راشي (چې د

كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الشَّمْسُ مَعَهُمْ كَفَنٌ مِنْ أَكْفَانِ الْجَنَّةِ وَ حَنُوطٌ مِنْ حَنُوطِ الْجَنَّةِ

هغوی د مخ پړق داسې وي) ګويا کې د هغوی مخونه لمر دي. هغوی سره د جنت کفن او خوشبوئې وي

حَتَّى يَجْلِسُوا مِنْهُ مَدَّ الْبَصَرِ ثُمَّ يَجِيءُ مَلَكُ الْمَوْتِ

او هغوی د دې مخې ته دومره دلرې نه چې تر کوم ځاې پورې نظر رسيږي، کيني. بيا ملک الموت راشي

حَتَّى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَيَقُولُ : أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ اخْرُجِي إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنَ اللهِ وَ رِضْوَان

او ده ته نزدې کيني او وايي چې ای پاکه روحه! راوځه د الله مغفرت او بخښش او د ده د رضا طرف ته درسيدو

قَالَ : فَتَخْرُجُ تَسِيلُ

دپاره نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې (داواوري) ددې مؤمن بنده روح راوځي (دده دبدن نه) داسې

كَمَا تَسِيلُ الْقَطْرَةُ مِنَ السِّقَاءِ فَيَأْخُذُهَا

(په آسانۍ او سهولت سره) سره لکه د مشک نه چې د اوبو څاڅکې بهيږي نو ملک الموت هغه واخلي.

فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوهَا فِي يَدِهِ طَرْفَةَ عَيْنٍ

کله چې ملک الموت هغه واخلي نو نورې فرښتې دا روح د ملک الموت په لاس کې د سترګو درپ قدرې هم نه

حَتَّى يَأْخُذُوهَا

پريږدي يعنې د ډير شوق په بنا باندې زر هغه روح د ملک الموت د لاسونو نه (په خپل لاس کې) واخلي

فَيَجْعَلُوهَا فِي ذٰلِكَ الْكَفَنِ وَ فِي ذٰلِكَ الْحَنُوطِ وَ يَخْرُجُ مِنْهَا

او دا په هغه کفن او هغه خوشبو کې (چې د ځان سره يې راوړي وي) کيږدي او دده د روح نه هغه بهترينه

كَأَطْيَبِ نَفْحَةِ مِسْكٍ وُجِدَتْ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ قَالَ :

خوشبوئې چې په مخ د زمکه د مشک د بهترين خوشبو په شان وي". نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې

فَيَصْعَدُونَ بِهَا فَلَا يَمُرُّونَ يَعْنِي بِهَا

بيا فرښتې هغه روح د آسمان طرف ته بوسي نو کله چې هغه فرښتې (هغه روح د زمکې او د آسمان په مينځ کې

عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوا : مَا هٰذِهِ الرُّوحُ الطَّيِّبُ

موجودوي) د فرښتو د هر جماعت په خوا تيريږي نو هغه جماعت ترې پوښتنه کوي چې دا پاک روح د چا دی؟

فَيَقُولُونَ : فُلَانُ ابْنُ فُلَانٍ

هغه فرښتې چې دا روح يې روان کړې وي وايي چې دا فلانی سړی د فلاني ځوی (يعنې د هغه روح) دی او

بِأَحْسَنِ أَسْمَائِهِ الَّتِي كَانُوا يُسَمُّونَهُ بِهَا فِي الدُّنْيَا

هغه فرښتې دده بهترين نوم او لقب (او ښه اوصاف) بيانوي چې د هغې په ذريعه د دنيا خلک ذکر کوي

حَتَّى يَنْتَهُوا بِهَا إِلَى سَمَاءِ الدُّنْيَا

(همدغه شان پوښتنه او جواب کيږي) تر دې چې هغه فرښتې هغه د دنيا اسمان (يعنې اولنی اسمان) پورې

فَيَسْتَفْتِحُوْنَ لَهُ فَيُفْتَحُ لَهُ

ورسوي او د آسمان دروازه کولاو کړي چې د هغوی د پاره کولاو شي (یعني د غه شان د هر اسمان دروازه د

فَيُشَيِّعُهُ مِنْ كُلِّ سَمَاءٍ مُقَرَّبُوهَا إِلَى السَّمَاءِ الَّتِي تَلِيهَا حَتَّى يُنْتَهٰى بِهِ إِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ

هغوی لپاره کولاو یږي) او د هر آسمان مقرب فرښتې تر بل آسمان پورې ورسره ځي تر دې چې هغه تر اوو ه

فَيَقُوْلُ اللهُ عَزَّ وَ جَلَّ :

واړه اسمانونو پورې (همد غه اعزاز سره) ورسول شي پس الله تعالی (فرښتو ته) فرمایي چې د دې بنده

اكْتُبُوا كِتَابَ عَبْدِي فِي عِلِّيِّينَ وَ أَعِيدُوهُ إِلَى الْأَرْضِ

اعمال نامه په علیین کې کیږدی. او د اروح د زمکي طرف ته (یعني د هغه په بدن چې په زمکه کې خښ دی)

فَإِنِّي مِنْهَا خَلَقْتُهُمْ

بیرته ویسی. (چې دا قبر ته ورسیږي او د قبر د پوښتنو او جواب د پاره تیار وي) ځکه ما د زمکي نه بدنونه پیدا

وَ فِيهَا أُعِيدُهُمْ وَ مِنْهَا أُخْرِجُهُمْ تَارَةً أُخْرَى

کړي او زمکي ته د دوی (بدنونه او روح) بیرته لیږم. او بیا د همدې زمکي نه هغوی بیرته راوباسم. نبي کریم

قَالَ : " فَتُعَادُ رُوْحُهُ فِيْ جَسَدِهٖ فَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د هغې نه وروسته هغه روح بیرته بدن ته ورسولی شي. بیا دې روح ته دوه فرښتې

فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولُونَ لَهُ : مَنْ رَبُّكَ ؟

(منکر نکیر) راشي چې هغوی دا کینوي او بیا پوښتنې ترې کوي چې ستا رب څوک دی؟ مؤمن بنده ورته

فَيَقُوْلُ : رَبِّيَ اللهُ فَيَقُولَانِ لَهُ : مَا دِيْنُكَ ؟ فَيَقُوْلُ : دِيْنِيَ

وایي زما رب الله تعالی دی بیا ترې پوښتنه کوي چې ستا دین کوم یو دی؟ بنده ورته وایي چې زما دین

الْإِسْلَامُ فَيَقُولَانِ لَهُ : مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِيْ بُعِثَ فِيكُمْ ؟

اسلام دی بیا ترې پوښتنه کوي دا (یعني رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) څوک دی؟ چې تاسو ته در لیږل شوی ؤ؟

فَيَقُوْلُ : هُوَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَيَقُولَانِ لَهُ : وَمَا عِلْمُكَ ؟

هغه جواب ورکوی چې د الله رسول دی. بیا پوښتنه کوي چې تا څنګه وپیژندلو چې دا د الله رسول دی؟

فَيَقُوْلُ : قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَ صَدَّقْتُ

هغه په جواب کښې وايي چې: ما د خدای کتاب ویلی، په هغې مې ایمان راوړو. او د زړه نه مې دا ریښتني

فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ

ومنلو (چې د ده په وجه ما ته هغه د نبي کریم ﷺ معلوم شو) بیا یو اواز کوونکی د اسمان نه اواز کړي

أَنْ صَدَقَ عَبْدِيْ فَأَفْرِشُوْهُ مِنَ الْجَنَّةِ

(یعني د خدای د طرفه اعلان وشي) چې زما بنده ریښتني دی. نو د جنت بستره ورته خوره کړي، د جنت

وَ أَلْبِسُوْهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَ افْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ قَالَ :

جامه ورته واغوندی او هغې ته د جنت دروازه پرانیزی. نبي کریم ﷺ وفرمایل: نو ده ته د جنت

فَيَأْتِيْهِ مِنْ رَوْحِهَا وَ طِيْبِهَا فَيُفْسَحُ لَهُ فِيْ قَبْرِهِ مَدَّ بَصَرِهِ

دروازه کولاؤ کړی شي چې د هغې نه د جنت هوا او خوشبو ځي راځي. بیا د هغې قبر د نظر لګیدلو پورې

قَالَ : " وَ يَأْتِيْهِ رَجُلٌ أَحْسَنُ الْوَجْهِ حَسَنُ الثِّيَابِ طَيِّبُ الرِّيْحِ

فراخه شي. نبي کریم ﷺ وفرمایل د هغې نه ورسته یو ښایسته سړی چې ښې جامې او خوشبو

فَيَقُوْلُ : أَبْشِرْ بِالَّذِيْ يَسُرُّكَ هٰذَا

یې لګولي وي او هغې ته وايي چې "زیری دې وي تا لره د هغه شي چې تا لره خوشالونکی دی (یعني

ستا لپاره هغه نعمتونه تیار دی چې نه کومو سترګو لیدلي دی او نه کوم غوږونو اوریدلي دي) نن هغه

يَوْمُكَ الَّذِيْ كُنْتَ تُوْعَدُ فَيَقُوْلُ لَهُ : مَنْ أَنْتَ ؟

ورځ ده چې د هغې (په دنیا کې) ستا سره وعده شوي وه مؤمن بنده د هغې نه پوښتنه کوي چې ته څوک یې؟

فَوَجْهُكَ الْوَجْه يَجِيْءُ بِالْخَيْرِ فَيَقُوْلُ :

ستا مخ په حسن او جمال کې کامل دی او تا خیر راوړی دی او د هغې خوشخبري اوروي هغه کس ورته جواب

أَنَا عَمَلُكَ الصَّالِحُ فَيَقُوْلُ :

ورکوي چې "زه ستا نیک عمل یم (چې په دغه شکل و صورت کې راغلی یم) مؤمن بنده (چې دا واوري

رَبِّ أَقِمِ السَّاعَةَ رَبِّ أَقِمِ السَّاعَةَ حَتّٰى

نو) وايي ای زما پروردګاره! قیامت قائم کړي او ای زما پروردګاره قیامت قائم کړي چې زه خپل اهل و

أَرْجِعَ إِلَى أَهْلِي وَ مَالِي قَالَ : وَ إِنَّ الْعَبْدَ الْكَافِرَ إِذَا كَانَ فِي انْقِطَاعٍ مِنَ الدُّنْيَا وَ

عیال ته لاړ شم. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: او کله چې کافر بنده خپل تعلق د دنیا سره ختم کړي او د

إِقْبَالٍ مِنَ الْآخِرَةِ نَزَلَ إِلَيْهِ مِنَ السَّمَاءِ

آخرت طرف ته تلونکی وي (یعنې دده د مرګ وخت رانزدې شي) نو دده خواته د آسمان نه (د عذاب) تورمخ

مَلَائِكَةٌ سُودُ الْوُجُوهِ مَعَهُمُ الْمُسُوحُ فَيَجْلِسُونَ مِنْهُ مَدَّ الْبَصَرِ

والا فرښتې راشي د هغوی سره ټاټ وي او د ومره لرې ترې کیني کوم ځای پورې چې د سترګو نظر رسي.

ثُمَّ يَجِيءُ مَلَكُ الْمَوْتِ حَتَّى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَيَقُولُ : أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْخَبِيثَةُ اخْرُجِي

بیا ملک الموت راشي او د هغه سره نزدې کیني او ورته وایې چې "ای خبیثه روحه! را او ځه د خدای د طرفه

إِلَى سَخَطٍ مِنَ اللهِ " قَالَ :

په عذاب کې اخته کیدلو د پاره نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (چې د کافر روح دا واوري) نو د هغه په

" فَتُفَرَّقُ فِي جَسَدِهِ فَيَنْتَزِعُهَا كَمَا

بدن کې خپور شي. نو ملک الموت هغه روح ډیر په سختۍ او زور سره راوباسي. لکه څنګه چې د وړې

يُنْزَعُ السَّفُّودُ مِنَ الصُّوفِ الْمَبْلُولِ فَيَأْخُذُهَا

نه غنې ډیر په ګرانه سره رابنکلی کیږي (یعنې څنګه چې لمدې وړۍ نه غنې ډیر په سختۍ او مشکل باندې

رابنکل کیږي او په سختۍ سره د رابنکلو په وجه د وړۍ څه اجزاء چې د دې غنې سره نښتي وي بهر راوځي)

دغه شان چې کله د کافر روح په سختۍ او قوت سره رابنکل کیږي نو حال دا وي لکه څنګه چې د روح د رګونو

فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوهَا فِي

سره لګیدلي اجزاء بهر راوتلي وي) چې ملک الموت هغه روح ونیسي نو نورې فرښتې نه پریږدي دا روح

يَدِهِ طَرْفَةَ عَيْنٍ حَتَّى يَجْعَلُوهَا فِي تِلْكَ الْمُسُوحِ

د ملک الموت په لاس کې د سترګو د رپ په اندازه. بلکې هغه واخلي او په ټاټ کې یې راتاؤ کړي. د هغه

وَ تَخْرُجُ مِنْهَا كَأَنْتَنِ رِيحِ جِيفَةٍ وُجِدَتْ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ

روح نه داسې (د خوسا) مرداري بدبويي راوځي چې په مخ د زمکه د شته بدبویانو نه هغه ډیره بدبویه وي

فَيَصْعَدُونَ بِهَا فَلَا يَمُرُّونَ بِهَا عَلَى مَلَأٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوا :

هغه فرښتي هغه آسمان ته ویسي نو دا چې د فرښتو په یو جماعت باندې تېرېږي نو هغه جماعت پوښتنه کوي

مَا هٰذَا الرِّيحُ الْخَبِيثُ ؟ فَيَقُولُونَ : فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ

چې دا ناپاکه روح د چا دی؟ هغه فرښتي چې دا يې روان کړې وي جواب ورکړي چې دا د فلانې سړي ځوی دی

بِأَقْبَحِ أَسْمَائِهِ الَّتِي كَانَ يُسَمّٰى بِهَا فِي الدُّنْيَا

(یعني د فلانې سړي روح دی) او په بدو نومونو او اوصافو سره د هغې ذکر کوي. چې په کومو نومونو او

حَتّٰى يَنْتَهِيَ بِهَا إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيُسْتَفْتَحُ

اوصافو سره هغه را بلل کیدو ترڅو چې هغه د دنيا اسمان ته ورسوي او د ه د پاره د آسمان دروازه خلاصولو

لَهُ فَلَا يُفْتَحُ لَهُ " ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

د پاره وویل شي نو ده د پاره دروازه نه پرانیستلی کېږي بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د استدلال په توګه) دا

﴿ لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتّٰى

آیت ولوستلو: دې (کافرانو) د پاره به د جنت دروازې نه پرانستلی کېږي او نه به جنت ته داخلېږي ترڅو

يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ﴾ فَيَقُولُ اللهُ عَزَّ وَ جَلَّ :

چې اوښ د ستنې په سوري کې داخل شي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل بیا الله تعالی فرمایي: د دې

اُكْتُبُوا كِتَابَهُ فِي سِجِّينٍ فِي الْأَرْضِ السُّفْلٰى فَتُطْرَحُ رُوحُهُ طَرْحًا ثُمَّ

اعمال نامه په سجين کې ولیکئ چې د ټولو نه لاندې ده نو د کافر روح لاندې را ګوزار کړی شي بیا نبي کریم

قَرَأَ : ﴿ وَ مَنْ يُشْرِكْ بِاللهِ فَكَأَنَّمَا

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د استدلال په توګه) دا آیت ولوستلو چا چې د الله سره شرک وکړو نو هغه داسې دی لکه

خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ ﴾

د آسمان نه چې را وغورځيد و نو مارغان هغه اوچت کړي (هلاک شي) یا هوا هغه والوځوي او لرې یې ګوزار

فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ وَ يَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ

کړي بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د هغه روح بدن ته راشي او هغه ته دوه فرښتي راشي او هغه کینوي

فَيَقُولَانِ لَهُ : مَنْ رَبُّكَ : فَيَقُولُ : هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ لَهُ :

او پوښتني ترې نه کوي چې ستا رب څوک دی؟ هغه وايي چې هاه هاه زه خو يې نه پېژنم بيا فرښتي دده

مَا دِينُكَ ؟ فَيَقُولُ : هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ لَهُ :

نه پوښتنه کوي چې ستا دين څه دی؟هغه وايې چې هاه هاه زه يې نه پېژنم. بيا فرښتي دده نه پوښتنه کوي

مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ ؟ فَيَقُولُ : هَاهْ هَاهْ

چې دا سړی (يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) چې تاسو ته در ليږلی شوی ؤ څوک دی؟ هغه وايي هاه هاه زه

لَا أَدْرِي فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ أَنْ كَذَبَ عَبْدِي

يې نه پېژنم (ددې پوښتنو او جوابونو نه وروسته) او از کونکی د آسمان نه او از وکړي چې دا دروغ جن دی.

فَأَفْرِشُوهُ مِنَ النَّارِ وَ افْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى النَّارِ

لهذا ده او ربستره ورته خوره کړی او ده ته د دوزخ دروازه پرانيزئ نو (دده د پاره د دوزخ دروازه خلاصه شي)

فَيَأْتِيهِ حَرُّهَا وَ سَمُومُهَا وَ يُضَيَّقُ عَلَيْهِ قَبْرُهُ

چې د هغې نه هغې ته د دوزخ ګرمي او د هغې ګرمه هوا څې راځې او دده د پاره قبر دومره تنګ شي (چې

حَتّٰى تَخْتَلِفَ فِيهِ أَضْلَاعُهُ وَ يَأْتِيهِ رَجُلٌ قَبِيحُ الْوَجْهِ

ددواړو څنډو په يو ځاې کيدو سره) دده پوښتي. يوه په بل کې ننوځي بيا هغه ته يو بد شکله راشي چې بدې

قَبِيحُ الثِّيَابِ مُنْتِنُ الرِّيحِ فَيَقُولُ أَبْشِرْ بِالَّذِي يَسُوؤُكَ

جامې يې اغوستلې وي او د هغه نه بدبوې څې راځې او هغه ورته وايي چې ته بد خبر واوره چې تا به په غم

هٰذَا يَوْمُكَ الَّذِي كُنْتَ تُوعَدُ فَيَقُولُ : مَنْ أَنْتَ ؟

اخته کړي نن هغه ورځ ده چې د هغې تا سره دنيا کې وعده شوې وه هغه ترې نه پوښتنه کوي چې ته څوک يې؟

فَوَجْهُكَ الْوَجْهُ يَجِيءُ بِالشَّرِّ فَيَقُولُ : أَنَا عَمَلُكَ الْخَبِيثُ

ستا مخ خو ډير بد رنګ دی چې بدې درا وړي ۵ هغه کس ورته وايي چې زه ستا بد عمل يم (چې دا او ري)

فَيَقُولُ : رَبِّ لَا تُقِمِ السَّاعَةَ وَ فِي رِوَايَةٍ نَحْوُهُ وَ زَادَ فِيهِ :

هغه مړی وايي چې ای زما ربه! ته قيامت نه کړي په يو روايت کې دا سې منقول دې خو په هغې کې دا الفاظ

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | خَرَجَ | رُوحُهُ | صَلَّى | عَلَيْهِ | كُلُّ | مَلَكٍ | بَيْنَ | السَّمَاءِ | وَ | الْأَرْضِ |
| هم دې چې كله د مؤمن بنده روح (د ده د بدن نه وځي نو هره هغه فرښته چې د زمكې او د آسمان په مينځ كې | | | | | | | | | | |
| وَ كُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ وَ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَابٍ إِلَّا وَ هُمْ | | | | | | | | | | |
| ده په دې باندې رحمت راليږي نو ځكه د اسمان دروازې پرنيستل كېږې او د هر اسمان د هرې دروازې والا | | | | | | | | | | |
| يَدْعُونَ | اللهَ | أَنْ | يُعْرَجَ | بِرُوحِهِ | مِنْ | قِبَلِهِمْ . | | | | |
| والا فرښته الله تعالى ته دا خواست كوي چې د دې مؤمن روح سره دوي اسمان ته لاړشي (چې د هغه مؤمن | | | | | | | | | | |
| وَ | تُنْزَعُ | نَفْسُهُ | يَعْنِي | الْكَافِرَ | مَعَ | الْعُرُوقِ | | | | |
| د روح سره د تللو شرف حاصل كړي) او د كافر روح د رګونو سره ويستلى كېږې نو د آسمان ټولې فرښتې او هغه | | | | | | | | | | |
| فَيَلْعَنُهُ كُلُّ مَلَكٍ بَيْنَ السَّمَاءِ وَ الْأَرْضِ وَ كُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ وَ تُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ | | | | | | | | | | |
| فرښتې چې (په اولني اسمانكې) دي په ده باندې لعنت راليږي نو ځكه د ده لپاره د اسمان دروازې بندې | | | | | | | | | | |
| لَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَابٍ إِلَّا وَ هُمْ يَدْعُونَ اللهَ أَنْ لَا يُعْرِجَ رُوحَهُ مِنْ قبلهم " .[1] | | | | | | | | | | |
| كړې شي او د اولني اسمان ټولو دروازو والا الله تعالى ته خواست كوي چې د دې كافر روح پاس لاړ نه شي | | | | | | | | | | |

**توضيح**: عود: لختي او امساء ته عود ويل شوي دي. (المرقات ۴/۱۰۲).

**ينكت**: لختي باندې زمكه كنلو ته وايي. (المرقات ۴/۱۰۲).

**حنوط**: د مخلوط مشك او عنبرو خوشبو ته حنوط وايي. (المرقات ۴/۱۰۴).

**تسيل**: يعني د مؤمن روح دومره په اسانۍ سره د بدن وځي لكه د اوبو د مشكيزې نه چې اوبه په اسانۍ سره غورځيږي. (المرقات ۴/۱۰۳).

**سوال**: په نورو روايتونو كې راغلي دي چې د مؤمن روح هم د ويستلو په وخت كې كرب او مصيبت برداشت كوي. دلته دا ويل كېږې چې هيڅ تكليف نه وي دا تعارض دی. (المرقات ۴/۱۰۳).

**جواب**: په دواړه رواياتو كې دا تطبيق دی چې د مؤمن د روح مرحله كله شروع كېږې هغه وخت هغه د جنت نعمتونه وويني نو ډير په اسانۍ سره يې روح وځي خو مشاهده د آخرت نه مخكې او عمل د خروج د شروع كيدلو نه مخكې او تكليف وي. نو د تكليف او د راحت وختونه مختلف وي لهذا تعارض نشته.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱۱۴/۵، رقم الحديث ۴۷۵۳، وأحمد في المسند ۲۸۷/۴.

**وما علمك:** يعني تا ته څنګه معلومه شوه چې الله ستا رب دى او محمد ﷺ د الله رسول دى. هغه جواب ورکوي چې دا تهول د قرآن نه معلوم شوي دي. د دې حديث نه معلومه شوه چې په قبر کې فقط درې پوښتني نه دې بلکې نورې هم پوښتنې کيدلى شي. لکه څنګه چې دلته پوښتنه شوې ده. (المرقات ۴/۱۰٦).

**مناد:** يعني د الله تعالى د طرف نه مقرر شوي فرښته اواز کوي او د خوشحالۍ اعلان کوي.

**الى اهلى ومالي:** د دې نه مراد يا خو د جنت اهل و عيال دې چې په هغې به حور او غلمان وي. دا خو اهل هم دى او مال هم دى. دويم مطلب دا هم کيدى شي چې اهلى نه مراد د خپل کور والا دي. او د مالي نه مراد حور او غلمان دى. په اول صورت کې که ما موصله واخستلى شي نو معنى به دا وي چې څه زما لپاره مقرر شوي نو مال مراد نه دى.

**افترق في جسده:** يعني د ويرې په وجه به د کافر روح په بدن کې د پټيدلو لپاره په بدن رګونو کې خور شي او دننه به شي. اوس چې څنګه خور شوى او پټ شوى دى همدغه شان به رايستلى کېږي. نو سخت تکليف به ورته وي. او بدن غوښه به ذره ذره شي. دغه شان که د انسان روح د دنيا په کومه دهنډے کې راګير شوى دى نو د هلته به هم رايستل شي نو دوه چنده تکليف به وي، د جائداد به راوځي. د دکانونو، کورونو، ښځو، بچو، کارخانو او تجارت ځايونو او منصبونه نه راوځي نو تکليف به وي. (المرقات ۴/۱۰۸، الکاشف ۳٦۳-۳/۳٦۴).

**هاه هاه لا ادري:** دا جمله کافر وايي يعني هائې افسوس چې زه يې نه پيژنم. ما ته هيڅ پته نشته. چې خپل خالق او مالک يې په دنيا کې نه پيژندلو نو په قبر کې به يې څه وپيژنم. (المرقات ۴/۱۱۰).

**تختلف اضلاعه:** يعني قبر چې کله کافر له زور ورکړي نو د هغې پوښتى به په يو بل کې ننوځي او بدن به يې ميده کړى شي. (المرقات ۴/۱۱۱).

**سمومها:** د دوزخ ګرمي هوا ته سموم ويل شوي دې او حر مطلق ګرمى ته وايي. (المرقات ۴/۱۱۱).

## ام بشر رضي الله عنها په برزخ کې خپلو خپلوانو ته سلام ليږي

﴿۱٦﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ : لَمَّا حَضَرَتْ

عبد الرحمن ابن کعب د خپل پلار (حضرت کعب رضي الله عنه) په باره کې روايت کوي چې کله رانژدې شو

كَعْبًا الْوَفَاةُ أَتَتْهُ أُمُّ بِشْرٍ بِنْتُ الْبَرَاءِ بْنِ مَعْرُورٍ فَقَالَتْ :

کعب رضي الله عنه ته د مرګ وخت نو د براء ابن معرور رضي الله عنه لور ام بشر رضي الله عنها ده ته راغله او وې ويل چې

يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ إِنْ لَقِيتَ فُلَانًا فَاقْرَأْ عَلَيْهِ مِنِّي السَّلَامَ . فَقَالَ :

ای ابوعبدالرحمن! که د فلاني کس سره ملاؤ شوي نو زما سلام ورته وایه. کعب رضي الله عنه جواب ورکړو

غَفَرَ اللّٰهُ لَكِ يَا أُمَّ بِشْرٍ نَحْنُ أَشْغَلُ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالَتْ :

ام بشر رضي الله عنها! الله دې تا وبخښي هلته به زموږ مشغولیت د دې نه ډیر وي. ام بشر رضي الله عنها وویل چې

يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَمَا سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُوْلُ :

ای ابوعبدالرحمن! آیا تا د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا نه دي اوریدلي چې فرمایل یې (په عالم برزخ کې) به

إِنَّ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِينَ فِيْ طَيْرٍ خُضْرٍ تَعْلُقُ بِشَجَرِ الْجَنَّةِ ؟ قَالَ :

دمؤمنانو روحونه د شنه مرغانو په قالبونو کې وي او د جنت د میوؤنه خوراک کوي کعب رضي الله عنه ورته وویل

بَلٰى . قَالَتْ : فَهُوَ ذَاكَ . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ كِتَابِ الْبَعْثِ والنشور [1]

چې آو ما دا اوریدلی ام بشر رضي الله عنها ورته وویل دا (هغه کرامت) دی (چې په دې کې ستا د ستا یلو امید دی)

**توضیح**: حضرت عبد الرحمن بن کعب ډیر جلیل القدر تابعی دی دده د پلار نوم حضرت کعب رضي الله عنه دی چې د لوي شان والا صحابی دی. ام بشر رضي الله عنها د لوي شان والا صحابیه ده. چې د براء بن معرور رضي الله عنه د یو جلیل القدر صحابی لور ده. ام بشر رضي الله عنها د حضرت کعب رضي الله عنه د مرګ په وخت کې د خپل پلار د براء بن معرور رضي الله عنه ته یا خپل ځوي بشر رضي الله عنه ته سلام وایه چې هغه مړه شوي ؤو. د ام بشر رضي الله عنها خیال ؤ چې کعب رضي الله عنه بس اوس وس د نیا نه سفر کونکی دی او صحابی دی. نجات یې یقیني دی. لهذا د هغې په لاس د خپل خپلوانو په نوم سلام لیږلو. ام بشر رضي الله عنها به نوم اخستي وي خو راوي د نوم په ځای د فلاني لفظ استعمال کړی دی. (المرقات ۴/۱۱۳).

**نحن اشغل**: حضرت کعب رضي الله عنه جواب ورکړو چې الله تعالی دې تا وبخښي مونږ سره به د سلام وخت چرته وي، سفر ډیر لوي دی. حساب کتاب دی. مونږ به په خپل مشغولو کې راګیر یو. خپل فکر به کؤو. څوک به د چا پوښتنه کوي. ام بشر رضي الله عنها د مؤمن شان او په جنت کې د هغوی د روحونو د ارام او د کامیابۍ ذکر وکړو او اشاره یې وکړه چې تا ته به هیڅ پریشاني نه وي. ستا شان ډیر لوي دی چې ته به هم پریشانه یې. د دې حدیث نه هم معلومیږي چې د عالم برزخ ژوند یو حقیقت دی. دا فقط د خوب ژوند نه دی. ګویا کې روح ته یو قسم جسم ورکول کیږي. چې پرې هغه ژوند تیروي او دا هم امکان لري چې روح

(۱) أخرجه ابن ماجه ۱/٤٦٦ رقم الحديث : ١٤٤٩.

ته جسم ورکولو نه بغیر په هغې کې داسې حیثیت پیدا کېږي چې د هغې په ذریعې سره هغه د اقوالو او د افعالو قابل شي. (المرقات ۴/۱۱۳).

## د تناسخ عقیده باطله ده

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ : |
| عبد الرحمن بن کعب رضي الله عنه خپل پلار نه نقل کوي چې هغه (یعنې د عبد الرحمن پلار کعب رضي الله عنه) د |
| أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِنَّمَا نَسَمَةُ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ |
| نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه دا ارشاد نقل کوي چې (په عالم برزخ کې) د مؤمن روح د مارغه په قالب کې د |
| تَعْلُقُ فِي شَجَرِ الْجَنَّةِ حَتَّى يُرْجِعَهُ اللهُ |
| جنت د بوټو نه مېوې خوري تر دې هغه الله تعالى په هغه ورځ چې هغه را وچتوي (د قیامت په ورځ) هغه د |
| فِي جَسَدِهِ يَوْمَ يَبْعَثُهُ.[1] |
| هغې بدن ته بیرته ولېږي. |

**توضیح : انما نسمة المؤمن طیر** : علامه نووي رحمه الله لیکلي دي چې نسمه د انسان بدن ته هم وايي او نسمه روح ته هم وايي. دلته روح مراد دی چې د جسد خاکي نه دا روح وځي او طير خضر يعنې په شين مارغه کې ننوځي. ګویا کې مرغان د دې روحونو لپاره تیار کالي دي. (المرقات ۴/۱۱۴).

**سوال**: که څوک دا اشکال وکړي چې انسان او بیا د مؤمن روح په یو څاروې کې لاړ شي آیا دا د هغې تذلیل او تحقیر نه دی؟

**جواب**: د دې سوال جواب دا دی چې دا تعلق داسې نه دی چې روح په څاروې کې ننوځي او څاروې په دې باندې تصرف شروع کړي. بلکې دا تعلق د ظرف او مظروف په شان دی. د روح لپاره طير خضر بمنزله ظرف دی لکه د جواهرتو لپاره اعلی صندوقچه ظروف وي. دا نه چې صندوقچه په هغې باندې تصرف کوي يا لکه د جهاز منځ ته د شیشي په محل کې دوه درې کسان په خوند سره الوځوي. دا جهاز د انسان د تعظیم او د تکریم لپاره ده دا نه چې انسان په جهاز کې حلول وکړو. نو دلته په حدیث کې چې د کومې مرغۍ ذکر دی امکان لري چې د دې نه یو قسمه سورلۍ مراد ده لکه جهاز ،دا دویم جواب دی.

**دويم جواب**: دا دی چې قاضي عیاض رحمه الله او علامه قرطبي رحمه الله وايي چې دا روحونه خپله متشکل شي او مارغان جوړ شي. ځان له یو مارغه هم نه وي. د دې حضراتو په دې قول باندې د بحث لاندې

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱۰۸/٤ رقم الحديث : ۲۰۷۳، وابن ماجه ۱٤۲۸/۲ رقم الحديث : ٤۲۷۱.

حدیث په واضحه توګه دلالت کوي انما نسمة المو من طیرا دا روایت نسائ او موطا مالک هم نقل کړی دی. دا حضراتو دې روایت ته ترجیح ورکوي. او په نورو روایاتو کې تاویل کوي. د هغې نه انکار کوي. مګر ملا علی قاري رَحِمَهُ اللَّهُ په دواړو روایاتو کې داسي تطبیق کړی دی چې د مؤمنانو روحونه به خپله په جنت کې مارغان شي او د شهیدانو روحونه به په طیر خضر کې داخل شي او په انهار جنت او باغونو کې د سورلی په ذریعه ګرځي راګرځي. (المرقات ۴/۱۱۵).

**سوال**: یوه ګمراه فرقه د تناسخ قائل شوه او هغې د دې قسمه حدیثونو نه په تناسخ باندې استدلال کړی دی. مثلاً په دنیا کې یې روح عمل خراب کړو نو هغې ته به خراب بدن ورکړی کېږي. مثلاً د سپي یا پشو او د خر په بدن کې به حلول کوي خلک به هغه ځاروې وهي. همدغه د هغوی لپاره سزه ده او که روح ښه وي هغه ښه کار کړی وي نو دا روح به د ښه بادشاه په بدن کې داخل شي او هلته به د عیش او ارام ژوند تېروي. همدغه د هغوی لپاره جنت دی. آیا د دې خلکو دا عقیده صحیح ده؟

**جواب**: د تناسخ عقیده باطله ده ځکه د دنیا خبري کوي چې دلته تناسخ کېږي. د هغه خلک بیخي د حشر قائل نه دې او دلته په حدیث کې د آخرت بیان دی چې د دنیا د تناسخ سره یې واسطه نشته. نو بیا د دې حدیث نه د تناسخ والاځنګه استدلال کوي؟ او اهل تناسخ والا دین اسلام نه مني. بیا د حدیث نه خپل باطله عقیده باندې استدلال ولې کوي؟. او دغه شان په تناسخ کې خو روح یو نوي ځان له بدن کې ننوځي. لکه ځنګه چې د اهل تناسخ والو عقیده ده او په حشر کې روحونه په خپل زوړ بدن کې داخلیږي. نو د هغوی استدلال د حدیث نه صحیح نه دی. دا مسئله اول په باب عذاب قبر کې په تفصیل سره لیکل شوي ده. دلته مې بیا ولیکله. (المرقات ۱۱۵-۴/۱۱۶).

## نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته زما سلام وایه

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ وَهُوَ يَمُوتُ |
|---|
| محمد ابن منکدر رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې زه د جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې هغه وخت حاضر شوم چې ده ته مرګ نزدې |
| فَقُلْتُ: اقْرَأْ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّلَامَ.[1] |
| ؤ نو ما ده ته عرض وکړو چې ته (عالم برزخ ته) ورسیدې نو نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته زما سلام ووایه. |

**توضیح**: **اقراء**: د دې حدیث نه هم په واضحه توګه معلومېږي چې مسلمانانو ته د برزخ ژوند ورکولی کېږي هغه یو حقیقت دی هلته ملاقاتونه کېږي. (المرقات ۴/۱۱۶).

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۴٦٦ رقم الحديث: ۱٤٥٠.

**د روح حیققت** :روحونو ته د یو خاص کیفیت سره ژوند ورکول کېږي. چې په هغې هغوی کلام کوي. دا څه لري خبره نه ده چې هغوی د یو خاص روح سره مجسم شي او ژوند ورکړی شي. په دې خبره هم پوهه شی. چې د روح په حقیقت کې څېنې ګمراه فلسفیان وایي چې د دې څه حقیقت نشته دی. هغه خلک کله هم ساه ته روح وایي. کله وینې ته روح وایي. خو اهل اسلام په انساني بدن کې روح په جدا حقیقت سره مني. او د دې مثال داسې دی لکه یوه کارخانه کې چې ټوله مشینرۍ لګېدلې ده خو په هغې کې حرکت نشته دی چې په هغې کې بجلي پریخودلی شي نو ټوله کارخانه په حرکت کې شي. روح هم په حقیت کې د انساني بدن د کارخانې دپاره د بجلي په شان دی چې انسانې بدن بالکل د یو تیارې مشینرۍ په شان دی مګر بې حسه او بې حرکته دی نو کله چې په کې روح راشي نو دا ټوله مشینري په حرکت کې راشي همدغه یو آسان تعبیر دی چې مونږ ترې نه د روحونو حقیقت پیژندلی شو. ورنه د قرآن کریم اعلان دی : ﴿ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ (سورة بني اسرائیل آیت: ۸۵).

دا خبره هم د زده کولو قابل ده چې روح د آسمان نه راغلی دی او د بدن تعلق د زمکې سره دی. چې کله روح جوړ شي نو دا روح دا بدن پاس آسمانونو ته رسوي. خو که روح خراب وي نو دا انسانې بدن په زمکه کې دننه خښ کړي او هغه قعر مذلت د لاندې **تحت الثرى** پورې راګوزار کړي.

دلته دا هم پیژندل ضروري دې چې روح کله دننه خراب شي نو هغه دننه هم د بدن بهرني حصه هم متأثره کوي او ظاهري بدن مسخ کیږي.

مثال یې داسې دی لکه د هګۍ زیړ او سپین که دننه صحیح وي نو د هګۍ باهر والا برخه صفا وي خو کله چې هګۍ دننه خرابه شي نو د هغې د وجې هګۍ باهر والا برخه زیړه شي. خلکو ته هوښیارېدل په کار دې چې خرابي دننه پیدا کیږي روح برابرولو کوشش کول په کار دی.

د روح باره کې انتهائي علمي او حکیمي انداز کې حضرت شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمد عثماني رَحِمَهُ اللهُ په سورة بني اسرائیل کې ښه ډیرې خبرې کړې دي ، هلته یې وګوره.



# باب غسل الميت وتكفينه

## د مړي د لمبولو او د کفن بيان

**قال الله تعالى:** ﴿وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ﴾ (سورت ق آيت: ۱۹)

په دې باب کې به هغه حديثونه بيانيږي چې د مړي لمبول، خښول او د هغې د آداب و علم ترې نه حاصليږي. د ټولو علماؤ په نزد مړي ته غسل ورکول فرض کفايه دي او دا د مړي حق دی. که څه خلکو دا حق ادا کړو نو د نورو خلکو ذمه واري به ساقط شي. خو که ټولو پريخود له نو ټول به ګناه ګار وي.

مړي ته د غسل ورکول څه سبب دی؟ په دې کې دوه اقوال دي. اول دا چې د غسل ورکولو سبب دا دی چې د مرګ په وجه د مړي په ټول بدن کې نجاست خور شي. ځکه غسل ورکول ضروري دې چې ټول بدن پاک شي. دويم قول دا دی چې مرګ سره استرخاء مفاصل راځي. او په استرخاء سره اودس ماتيږي. لهٰذا اودس کول ضروري دي. مګر په ژوند کې د تنکسيا په وجه د ځلور اندامونو وينځل کافي ګڼل شوي دې او د مرګ نه وروسته دا چې حرج نشته دی او په اصل باندې عمل وکړی شو او اصل دا دی چې د ټول بدن أودس وکړی شي او هغه به په غسل سره کيږي. د دې قول مطابق مړي ته غسل ورکول د نجاست په وجه نه دی. د اول قول مطابق غسل ورکول د نجاست په وجه دی.

### حضرت زينب رضي الله عنها ته د غسل ورکولو واقعه

﴿۱﴾ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ : دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ام عطيه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم زمونږ خوا ته راغلو او مونږ غسل ورکولو د نبي کريم

وَ نَحْنُ نُغَسِّلُ ابْنَتَهُ فَقَالَ : اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ

صلی الله عليه وسلم لور (حضرت زينب رضي الله عنها) ته نبي عليه السلام وفرمايل تاسو درې ځله يا پنځه ځله او يا که

أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكِ إِنْ رَأَيْتُنَّ ذٰلِكَ بِمَاءٍ وَ سِدْرٍ

مناسبه وي نو د دې نه هم په ډيرو اوبو او ډيرې پاڼو (د بيري پاڼو کې اوبه وخوټ کوی په هغه اوبو سره)

وَ اجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ

يې ولمبوی (ځکه د بيري په پاڼو کې خوټ کيدلو اوبو سره ډير زيات پاکوالی راځي) او په آخري ځل يې

كَافُورًا أَوْ شَيْئًا مِنْ كَافُورٍ فَإِذَا فَرَغْتُنَّ

په کافور باندې يا يې وفرمايل چې څه برخه په کې کافور واچوی او کله چې تاسو (د غسل نه) فارغ شی.

| |
|---|
| فَآذِنَّنِي فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ فَأَلْقَى إِلَيْنَا حَقْوَهُ |
| ما خبر كړئ، نو مونږ چې كله فارغ شو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مو خبر كړو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل تهبند مونږ ته راكړو |
| فَقَالَ : أَشْعِرْنَهَا إِيَّاهُ |
| اووي فرمايل چې دا تهبند ددې د بدن سره ولګوئ (يعني دا تهبند ددې د كفن لاندې كېږدئ. چې د زينب |
| وَ فِيْ رِوَايَةٍ : |
| رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د بدن سره لګيدلى وي) او په يو بل روايت كې دا الفاظ دي (چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل) |
| اغْسِلْنَهَا وِتْرًا : ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ سَبْعًا وَ ابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا وَ مَوَاضِعِ الْوُضُوْءِ مِنْهَا . |
| دا طاق يعني درې ځله يا پنځه ځله يا اوه ځله ولمبوئ او غسل ددې د ښي اړخ نه او ددې د اندامونو نه او د س |
| وَ قَالَتْ فَضَفَّرْنَا شَعَرَهَا ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ فَأَلْقَيْنَاهَا خَلْفَهَا.[1] |
| شروع كړئ. ام عطيه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وايي چې: مونږ د هغې ويختان چوټئي كړل او شاته مو ورته واړول. |

**توضيح :ابنته:** واضحه او راجح قول دا دى چې د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا لور حضرت زينب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وه چې د حضرت ابو العاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نكاح كې وه د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دويمې لور نوم حضرت رقيه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وُ د دريمې نوم ام كلثوم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وُ دا دواړه پرلپسې د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نكاح كې راغلي وي. او د څلورمي لور نوم حضرت فاطمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وُ چې د حضرت على رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نكاح كې وه. شيعه شنيعه او رافضه مرفوضه د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يوې لور نه ډير انكار كوي (المرقات ۴/۱۱۷)

**اغسلنها ثلاثا او خمسا:** لفظ او فقط د ترتيب لپاره دى. د تخيير لپاره نه دى. دلته اصل مدار په پاكيدلو باندې دى. علماؤ ليكلي دي چې كه پاكوالي په يو يا دوه ځل د اوبو په لمبولو باندې وشو نو بيا درې ځل اوبه اچول مستحب دي. ډيري ځله مكروه دي. او كه په درې ځله اوبه سره پاكوالى وشو نو بيا پنځه ځل پورې اوبه اچول او غسل وركول مستحب دي. ددې نه زياتي مكروه دي. او كه په پنځه ځل وينځلو سره پاكوالى وشو نو په اوم (۷) ځل اوبه استعمالول مستحب دي. زياتې مكروه دي. د اووه ځلو نه ډيري منقول نه دي. (المرقات ۴/۱۱۷).

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳/۱۳۰، رقم الحديث ۱۲۵٤، ومسلم في الصحيح ۲ ٦٤٦ رقم الحديث ۳٦-۹۳۹، وأبو داود ۳ ۵۰۳ رقم الحديث ۳٦٤۲، والنسائي ٤ ۲۸، رقم الحديث ۱۸۸۱، والترمذي ۳ ۳۱۵ رقم الحديث ۹۹۰، وابن ماجة ۱/٤٦۸، رقم الحديث ۱٤۵۸. أخرجه أحمد في المسند ۵ ۸٤

**بماء وسدر**: د بيري پاڼو ته سدر ويل شوي دي. په دې کې ترتيب دا دی چې په پاکو اوبه کې د بيري پاڼې واچولی شي او وخوټ کولی شي او بيا په مناسب تودو اوبو سره مړي ته غسل ورکړی شي. بيا په دريم ځل باندې په کې کافور واچولی شي او غسل ورکول په کار دی.

د بيري د پاڼو يوه فايده دا ده چې په دې باندې ښه پاکوالی کېږي. دويمه فايده دا ده چې د دې په استعمال سره حشرات الارض د مړي خوا ته نږدې نه راځي. دريمه فايده دا ده چې د دې په استعمال سره مړي زر نه خرابيږي. (المرقات ۴/۱۱۷).

د کافور ملاوولو مطلب دا دی چې په اوبو کې ملاو کړی شي يا د مړي په بدن باندې وشيندل شي.

**حقوة**: ازار بند ته حقه ويل شوي دي. په ملا باندې هم د حقوة اطلاق کېږي. په تهبند هم ملا تړل کېږي.

اشعرنها: يعنې تهبند د کفن د نورو ټوټو نه لاندې د هغې د بدن سره ولګوی، او ورواغوندی، چې برکت راشي. (المرقات ۴/۱۱۸).

د دينه د برکت ثبوت ملاؤ شو چې د بزرګانو په مستعمل شي برکت وي. خو برکت ورکونکی د الله تعالی ذات دی. امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ د برکاتو او تبرکاتو لپاره په بخاری شريف کې مستقل بابونه ايخي دي مثلاً **باب برکة النخلة**. البته د بزرګانو جامې يا د تبرکات په کفن کې شامل کړی شي او واغوستلی شي. د کفن نه زياتې ټوټه يا بل شی د بدن سره ايخودل جائز نه دي. (المرقات ۴/۱۱۸).

**وابدء بميامنها**: يعنې د مړی لمبا د هغې د ښی ښېو او د ښی اړخ نه شروع کړی. علماؤ د غسل ترتيب داسې ليکلی دی چې سړی اول د خپلو لاسونو ته د ټوټې دستانې واغوندي. او په تيارو اوبو سره د مړي د اودس اندامونه وينځل شي. د مړي د ستر په ځای باندې ټوټه واچولی شي او ټول اودس ورله وکړی شي. د اندامونو نه مراد هغه اندامونه دې چې د هغې وينځل فرض دي. لهذا په خله او پوزه کې اوبه اچول په کار نه دي. البته په سر باندې مسح کول په کار ده. (المرقات ۴/۱۱۸).

**فضفرنا شعرها**: يعنې مونږ د هغې د سر ويختان په درې منډيو کې تقسيم کړو. مطلب دا چې درې چوټۍ مو ورته وکړې او د ملا شاته مو ورته واړولې. (المرقات: ۱۱۸/۴)

د شوافعو مسلک همدغه دی. خو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې دا ر زينت دنيا ده چې د هغې تعلق د ژوند سره دی او د مرګ نه وروسته "دارالبلی" دی. هلته زينت نه ورستيدل دي. لهذا ترک زينت اولی دی. د بحث لاندې کې چې ويختانو سره کومه معامله شوې ده دا د صحابياتو اجتهادي عمل ؤ.

لهذا ويختان په دوه برخو کې تقسيمول او په سينه باندې اچول په کار دي. د فقهاؤ دا فيصله د دواړو اړخ نه په اجتهاد باندې منحصر ده. دا د عدم جواز مسئله نه ده بلکې د اولی او غير اولی مسئله ده. (المرقات ۱۱۹-۴/۱۱۸).

## د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كفن

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ يَمَانِيَةٍ بِيضٍ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په دريو ټوټو كې كفن وركړى شو. چې سپينه يماني |
| سَحُولِيَّةٍ مِنْ كُرْسُفٍ لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ .[1] |
| او د سحول نه د جوړ شوي مالوچو وه چې نه په هغې كې (گنډلى شوي) قميص وو او نه پټكى ؤ. |

**توضيح** :سحولية:په دې كلمه كې په سين باندې فتحه هم ويل شوي ده او ضمه پرې هم ويل شوي ده ابن همام رَحِمَهُ اللهُ او امام نووي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې فتحه ډيره مشهوره ده(الكاشف ۳/۳٦۸،المرقات ۴/۱۱۹)

د لغت په كتاب فائق كې ليكلى شوي دي چې كه په سين باندې فتحه وويل شي نو دا **سحول** طرف ته منسوب كېږي چې يو دوبي ؤ. او دغه شان جامې به يې وينځلې. همدغه شان دا يو كلي طرف ته هم منسوب كيدى شي. **سحول** د يمن د يو كلي نوم دى دا ټوټې به هلته جوړېدې.

او كه لفظ **سحول** باندې ضمه وويل شي نو دا به د **سحل** جمع وي چې خالص سپينې ټوټې ته وايي.

بهرحال ډيره ظاهره ده چې **سحول** يا **سحولى** په يمن كې د يو ځاې نوم دى او هغه ځاى ته دا ټوټه منسوب ده. (المرقات: ۴/۱۱۹)

**من كرسف**: سپين مالوچ ته **كرسف** وايي ، مطلب دا دى چې دا سپينه ټوټه خالص د سپين كاټن وه. (المرقات ۴/۱۱۹).

**ليس فيها قميص**:د دې جملې دوه مفهومه اخستل كيدلى شي. او دا چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د كفن درې ټوټې وې په هغې كې عمامه او قميص نه ؤ بلكې فقط درې ټوټې وې. ځېنو دا مفهوم اخستى دى چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د كفن په دې درې ټوټو كې عمامه او قميص نه ؤ. بلكې هغه د دريو ټوټو نه بغيرؤ. لهذا د مړي په كفن پنځه ټوټې په كار دي. د مفهوم په دې اختلاف كې د فقهاؤ هم لږ شان اختلاف راغلى دى. (المرقات: ۴/۱۱۹).

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په كفن كې درې لفافې وې يعنې درې څادره وې چې په هغې كې مړى راتاوول كېږي په دې كې د قميص او د عمامې گنجائش

---

(۱) أخرجه البخاري۳/۱۳۵،رقم الحديث: ۱۲٦٤،ومسلم۲/٦٤۹رقم الحديث ٤٥-۹٤۱،وأبوداؤد ۳/٥۰٦ رقم الحديث ۳۱٥۱، والنسائي ٤/۳٥،رقم الحديث: ۱۸۹۸،والترمذي۳/۳۲۱ رقم الحديث ۹۹٦ ، وابن ماجة ۱ ٤۷۲، رقم الحديث:۱٤٦۹،أخرجه مسند أحمد ٦/۹۳.

نښته دی. د احنافو ائمه وايي چې په کفن کې درې ټوټې په کار دي ۱: اراز يعني لنګی. ۲: قميص يعني کفني ۳: لفافه يعني څادر. دا اختلاف فقط په تعبير کې دی ګيني په څادرونو کې هيڅ فرق نه وي. فقط د قميص يو شکل شانته وي. کولاؤ څادر نه وي. په حديث کې چې د قميص کومه نفي شوي ده هغه د ګنډل شوي څادر نفي ده. د احنافو په نزد چې کوم قميص دی هغه کفني دی. هغه عمومي قميص نه دی. البته د قميص په شکل کې وي. (المرقات ۴/۱۱۹).

## مړي ته ښه کفن ورکول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا كَفَّنَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په تاسو کې څوک خپل يو ورور ته کفن ورکوي |
| فَلْيُحْسِنْ كَفَنَهُ. (۱) |
| نو هغه ته په کار ده چې ښه کفن ورکړي. |

**توضيح :فليحسن كفنه:** د ښه کفن نه مراد دا دی چې د کفن ټوټه پوره وي کفن سپين وي د هغې نه بغير ورسره نوره ټوټه وي که هغه نوي وي يا وينځل شوي وي. علامه توريشتي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په اسراف کونکو کې چې کومه طريقه رائج ده هغه دا ده چې ډير قيمتي کفن استعمالوي. چې په شرعي اعتبار سره منع دی ځکه په هغې سره مال ضايع کيږي. بهرحال د ښه کفن نه مراد اعلی او قيمتي ټوټه نه ده چې د دنيادارو په نزد د تکبر او رياکارۍ او شهرت په توګه رائج دی. (المرقات: ۴/۱۲۰)

## د محرم د کفن مسئله

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ رَجُلًا كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَقَصَتْهُ |
| عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو کس (د سفر په دوران کې) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ؤ ،نو دا ګوزار |
| نَاقَتُهُ وَ هُوَ مُحْرِمٌ |
| کړو خپلې اوښې او څټ يې مات شو او دا سړي محرم (يعني د حج په نيت يې احرام تړلی ؤ) ؤ په هماغه |
| فَمَاتَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اغْسِلُوهُ بِمَاءٍ وَ سِدْرٍ |
| ځای کې دا کس مړ شو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې "دا په اوبو او د بيري په پاڼو سره ولمبوئ |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۶۵۱/۲ رقم الحديث: ۴۹-۹۴۳، وأبو داود ۵۰۵/۳ رقم الحديث: ۳۱۴۸، والنسائي ۳۳/۴، رقم الحديث: ۱۸۹۵، والترمذي ۳۲۰/۳ رقم الحديث: ۹۹۵، وابن ماجة ۴۷۳/۱، رقم الحديث ۱۴۷۴. أخرجه أحمد في المسند ۲۹۵/۳.

| وَ كَفِّنُوهُ فِي ثَوْبَيْهِ وَلَا تَمَسُّوهُ بِطِيبٍ وَلَا تُخَمِّرُوا رَأْسَهُ فَإِنَّهُ |
|---|
| دغه د همدغي په دوارو ټوټو کې کفن کړئ او خوشبوي ورته مه لګوئ او مه ورله سر پټوئ ځکه دا به |
| يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا[1] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ خَبَّابٍ: قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ فِي بَابِ جَامِعِ الْمَنَاقِبِ إِنْ شَاءَ اللهُ |
| د قيامت په ورځ په لبيک ويلو سره راپاځولی کېږي. |

**توضيح: وقصته:** وقص څټ ماتيدلو ته وايي. مطلب دا چې د احرام په حالت د حج د سفر په دوران کې دا سړی خپلې اوښې راګوزار کړو نو د هغې څټ مات شو. (المرقات ۴/۱۲۱، الکاشف ۴/۳۶۹).

**كفنوه في ثوبيه:** د هغه سړي د مرګ نه وروسته هم دغه شان معامله وشوه چې د يو محرم سره په ژوند کې کېږي چې خوشبوې ورته مه لګوئ، مه ورله سر پټوئ بلکې د احرام په ټوټو کې يې خښ کړئ. د دې حديث په ظاهري نظر باندې د علماؤ په مينځ کې اختلاف پيدا شوی دی. (المرقات ۴/۱۲۱).

**د فقهاؤ اختلاف:** امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې حديث د ظاهري الفاظو مطابق د هغه سړي سره همغه شان معامله کېږي. نه به ورته خوشبوې لګولې کېږي او نه به ورته سر پټوی. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او دار الهجرة د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد په کفن او خښولو کې محرم او غير محرم مساوي دي هيڅ فرق په کې نشته دی.

**جواب:** احناف او مالکيه د بحث د لاندې حديث دا جواب ورکوي چې هغه سړي سره چې کومه معامله شوې ده دا د هغې خصوصيت دی. لهذا نور مړي دې په دې باندې قياس نه کړی شي. او دا هم امکان لري چې د کفن کولو لپاره جلا ټوټه نه وه نو همدغه شان ته يې په احرام کې خښ کړو.

بهرحال د خصوصيت دا خبره ډيره ارجحه ده ځکه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په عهد کې د هغه سړي نه بغير د بل چا سره داسې معامله نه وه شوې او نه وروسته صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ضابطه جوړه کړې وه او نه يې پرې عمل کولو. (المرقات ۴/۱۲۱).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د کفن د پاره سپينه ټوټه بهتره ده

| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْبَسُوا مِنْ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ |
|---|
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: تاسو سپينې جامې اغوندئ |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۳۷/۳، رقم الحديث ۱۲۶۷، ومسلم في الصحيح ۸۶۵/۲ رقم الحديث ۹۳-۱۲۰۶

| فَإِنَّهَا مِنْ خَيْرِ ثِيَابِكُمْ وَ كَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ وَ مِنْ خَيْرِ أَكْحَالِكُمُ الْإِثْمِدُ |
|---|
| هغه ستاسو د پاره بهترینې جامې دي او خپل مړي په سپینه توګه کې خښوئ ستاسو د پاره بهترین رانجه |
| فَإِنَّهُ يُنْبِتُ الشَّعْرَ وَ يَجْلُوا الْبَصَرَ .[1] |
| اثمد دي ځکه هغه ستاسو د سترګو بانه غټوي او د سترګو نظر ډیروي. |

**توضیح**: د مړو لپاره سپین کفن د استحباب په توګه دی. د ښځو لپاره هم مستحب دی او په دې حدیث کې د کفن په معامله کې نارینه او زنانه یو شان ګڼلی شوي دي. البته که د سپین کفن په ځای سرو ته رنګا رنګ توتې نه کفن جوړ کړی شي یا بله کومه رنګینه توته وي چې هغې به په ژوند کې استعمالوله نو هغه هم جائز ده او د ښځو لپاره د هغوی د رنګ مطابق توته استعمالول جائز ده. (المرقات ۴/۱۲۳).

**اثمد**: دا یو کانی دی چې مېده کړی شي او رانجه ترې نه جوړېږي او بیا استعمالېږي. د نظر لپاره ډېر فایده مند دی. د شپې وخت کې رانجه مطلقاً د نظر لپاره ګټور دي. (المرقات ۴/۱۲۳).

## د کفن د پاره د قیمتي کپړې ممانعت

| ﴿٦﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا تَغَالَوْا فِي الْكَفَنِ |
|---|
| حضرت علي رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کفن کې ډېره ارزښنا که توته مه لګوئ. |
| فَإِنَّهُ يُسْلَبُ سَلْبًا سَرِيعًا .[2] |
| ځکه چې هغه زر اخیستلی کېږي. |

## په قیامت کې به مړی په کوم حال پاسیږي؟

| ﴿٧﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّهُ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ دَعَا |
|---|
| دابو سعید خدري رضي الله عنه په باره کې منقول دي چې کله د هغوي د مرګ وخت را نزدې شو نو ده راوغوښتې |
| بِثِيَابٍ جُدُدٍ فَلَبِسَهَا ثُمَّ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| نوې جامې او هغه یې واغوستلې بیا یې وویل چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اورېدلي دي چې |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ٤/٣٣٢ رقم الحديث : ٤٠٦١ ، وأخرجه الترمذي في السنن ٣/٣١٩، رقم الحديث :٩٩٤، وأخرجه ابن ماجه في سننه ١/٤٧٣ رقم الحديث: ١٤٧٢.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ٣/٥٠٨ رقم الحديث : ٣١٥٤

| يَقُولُ : الْمَيِّتُ يُبْعَثُ فِي ثِيَابِهِ الَّتِي يَمُوتُ فِيهَا.[1] |
|---|
| فرمايل يې: مړی په همغه جامه کې راپاڅول کېږي چې په کوم کې دا مړ کېږي. |

**توضيح:** **جدد:** يعني بالکل نوي جامې يې واغوستلې. (المرقات ۴/۱۲۴، الکاشف ۳/۳۷۱).

**فانه يبعث:** د دې بعثت او راپاسولو نه مراد د قبورونو راپاسول دي ځکه په ميدان حشر کې خو به په بدن باندې جامه نه وي بلکې بربنډ به وي. لهٰذا د دې حديث به د نورو حديثونو سره تعارض نه وي.

دويمه توجيه دا ده چې د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه په کلام کې چې کوم د **ثياب** لفظ راغلی دی د هغې نه مراد اعمال اخستل کيدلی شي. ذکر خو يې د ثواب وکړو مګر مراد ترې نه نيک اعمال دې او په عربۍ کې نيک اعمالو ته ثواب هم وايي لکه ويل شوي دي چې: (المرقات ۴/۱۲۴).

**و اني بحمدا لله لا ثوب فاجر ۞ لبست ولا عن عذرا تقنع**

همدغه شان په ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ کې ځينو مفسرينو اعمال مراد اخستي دي.

بهرحال کله چې حضرت ابو سعيد رضي الله عنه د دنيا نه رخصتيدو نو حضرت ابو سعيد رضي الله عنه فقط د پاکۍ لپاره نوي جامې راوغوښتلې او بيا د هغې په ذهن کې دا حديث راغلو نو د نبي کريم صلی الله عليه وسلم حديث يې بيان کړو. د دې مطلب دا نه دی چې حضرت ابو سعيد رضي الله عنه د دليل په توګه دا حديث په خپلې دعوی باندې وړاندې کولو چې سړی به په قيامت کې او حشرو نشر کې د همدغه جامو سره راپاڅېږي په کوم چې هغه مړ شوي وي. (المرقات ۴/۱۲۶).

## بهترين کفن او بهترينه قرباني کومه يوه ده

| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
|---|
| حضرت عباده ابن صامت رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل |
| خَيْرُ الْكَفَنِ الْحُلَّةُ وَخَيْرُ الْأُضْحِيَةِ الْكَبْشُ الْأَقْرَنُ.[2] |
| بهترين کفن حله دی او بهترينه قرباني د ښکرور ګډ ده. |

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۸۵/۳ رقم الحديث: ۳۱۱۴

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۵۰۹/۳ رقم الحديث ۳۱۵۶، وأخرجه الترمذي في السنن ۸۳/۴، رقم الحديث ۱۵۱۷، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۴۷۳، رقم الحديث: ۱۴۷۳.

**توضيح: حله:** د يو رنګ دوه ټوټو ته حله او سوټ وايي. ښکاره خبره ده چې بهتره کفن هغه وي چې په يو رنګ کې وي. لفافه هم سپينه وي، قميص او پرتوګ هم سپين وي. په دې حديث کې دې خبرې طرف ته هم اشاره شوې ده چې بهتره کفن هغه دی چې په هغې کې دوه ټوټې استعمال شي چې د کفن ادنی درجه د سنت دی. ددې نه ټوټه کمه نه وي يعنې يوه ټوټه نه وي نو د اعلی درجې درې ټوټې سنت دي. ادنی درجه کمال دوه ټوټې دې ددې نه کم نه دې بلکې هغه کفن ضرورت دی. د مړي د پاره د کفن ضرورت يوه ټوټه ده د ښځې د پاره د کفن ضرورت دوه ټوټې دي. (المرقات ۴/۱۲۶).

## شهيدان په خپلو جامو کې ښخ کړی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِقَتْلَى أُحُدٍ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د جنګ احد د شهيدانو باره کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړ چې د دوي |
| أَنْ يُنْزَعَ عَنْهُمُ الْحَدِيْدُ وَ الْجُلُودُ |
| د بدن نه اوباسې او سپني (اسلحه، زغري) او څرمنو (سامان يعنې پوستين او هغه شيان په وينو کې ککړ |
| وَ أَنْ يُدْفَنُوا بِدِمَائِهِمْ وَ ثِيَابِهِمْ. (۱) |
| نه وي) بيا دوي په همدغه (وينه کې ککړو) جامو او د ويني سره خښ کړی. |

**توضيح: الحديد:** د وسپني نه مراد اسلح ده چې د شهيد د بدن نه اسلحه راکوزه کړي او د ويني سره يې خښ کړی. (المرقات ۴/۱۲۷).

**والجلود:** ددې نه مراد په بدن باندې اضافي ټوټه ده مثلاً قورتی، واسکټ يا پوستين چې څرمن په کې استعماله شوي وي. (المرقات ۴/۱۲۷).

**بدمائهم:** يعنې د غسل ورکول نه بغير په وينه کې ککړ خښ کړی چې د الله تعالی خوا ته په همدغه حالت کې راشي. (المرقات ۴/۱۲۷).

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۳ ۲۹۷ رقم الحديث . ۳۱۳۴ ، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱ ۴۸۵ رقم الحديث. ۱۵۱۵

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم شان

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ |
| سعد ابن ابراهيم رضي الله عنه د خپل پلار (حضرت ابراهیم) نه نقل کوي چې عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه ته |
| أُتِيَ بِطَعَامٍ وَ كَانَ صَائِمًا فَقَالَ : قُتِلَ مُصْعَبُ |
| چې دده روژه وه (دروژه ماتې لپاره) یې ورته خوراک راوړو نو ده وفرمایل چې: شهید کړې شو مصعب |
| بْنُ عُمَيْرٍ وَ هُوَ خَيْرٌ مِنِّي كُفِّنَ فِي بُرْدَةٍ |
| بن عمیر رضي الله عنه زمانه غوره دی مګر هغه فقط په یو کفن کې خښ کړی شوی ؤ (چې هغه دومره وړوکی ؤ) |
| إِنْ غُطِّيَ رَأْسُهُ بَدَتْ رِجْلَاهُ وَ إِنْ غُطِّيَ رِجْلَاهُ |
| که دده سر به یې پټ کړونو خپې به یې ښکاره شوي او که خپې به یې ورته پټې کړي نو سر به یې ښکاره شو |
| بَدَا رَأْسُهُ |
| (آخر سر یې په هغه څادر باندې پټ کړی شو او په خپو یې ورله د اذخر واښه واچول لکه په باب جامع |
| وَ أُرَاهُ قَالَ : |
| المناقب کې په حدیث کې تفصیل سره دي) ابراهیم د حدیث (راوي) وایي چې زما ګمان دی چې عبد الرحمن |
| وَ قُتِلَ حَمْزَةُ وَ هُوَ خَيْرٌ مِنِّي |
| بن عوف دا هم وویل چې حضرت حمزه رضي الله عنه چې شهید کړی شوی ؤ زمانه بهتر دی (او دهغه هم دغه |
| شان کفن نصیب شوی ؤ لکه څنګه چې د مصعب بن عمیر رضي الله عنه ؤ او کله چې د مسلمانانو د تنګدستۍ |
| ثُمَّ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا بُسِطَ |
| او پریشانۍ دا دور د الله تعالی په فضل او کرم سره ختم شو نو) بیا مونږ ته دنیا دومره پراخه شوه چې څه ظاهر |
| أَوْ قَالَ : أُعْطِينَا مِنَ الدُّنْيَا مَا أُعْطِينَا |
| دي یا یې وویل چې په دنیا کې مونږ ته دومره راکړی شوه لکه څومره چې راکړی شوی ده مونږ په دې خبره |

| وَ لَقَدْ خَشِينَا أَنْ تَكُونَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا |
|---|
| وير ېږو چې داسې نه چې زمونږ د نيكيو بدله مونږ ته زر (يعني په دنيا كې) نه وي را كړې شوې بيا عبد الرحمن |
| ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِي حَتَّى تَرَكَ الطَّعَامَ .[1] |
| رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (د دغه ويرې نه) په ژړا شو ترديې چې هغه خواړه يې پريخودل. |

**توضيح** :حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شان والاصحابي دی. دعشرة مبشره نه دی. ټوله ورځ يې روژه نيولې وه او چې د روژه ماتي په وخت كې ورله خواړه راوړلی شو نو چې هغه خواړه وليدل او د دنيا فراختيا نه يې زړه ډک شو او د خپلو تير شوي فقيران ملګري ورته راياد شول نو په ژړا شو او د ډير احتياج باوجود يې هم هغه خواړه پريخودل چې داسې نه چې د دنيا دا ښه معياري خواړه او خوندونه زمونږ د آخرت درجاتو ته نقصان ونه رسوي. هغې د حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شهادت او هغې ته د كفن د نه ملاويدلو ذكر وكړو او د حضرت مصعب بن عمير د تيرشوي د ناز او تنعم ژوند ذكر يې هم وكړو او بيا يې دې نه وروسته د فقر او فاقي نقشه بيان كړه او بيا يې خواړه پريخودل. دا د صحابؤ عظيم شان ؤو. (المرقات ۴/۱۲۸).

## د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښه سلوک د رئيس المنافقين سره

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أُبَيٍّ بَعْدَمَا أُدْخِلَ حُفْرَتَهُ |
|---|
| جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عبد الله بن ابي خواته لاړو او هغه خپل قبر ته كوز كړې شوی |
| فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ فَوَضَعَهُ عَلَى رُكْبَتَيْهِ |
| ؤنبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه (د قبرنه د رايستلو) حكم وكړو چې هغه راويستلی شو نو په خپلو ګونډو يې |
| فَنَفَثَ فِيهِ مِنْ رِيقِهِ وَ أَلْبَسَهُ قَمِيصَهُ |
| كيخودو او د خپلې خولې مباركې لاړې يې د هغې په خله كې واچولې او خپله قورتۍ يې ورته واغوسته |
| قَالَ : وَ كَانَ كَسَا عَبَّاسًا قَمِيصًا .[2] |
| حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې : عبد الله بن ابي حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته خپله قورتۍ اغوستې وه. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۳/۷ رقم الحديث ۴۰۴۵.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۶۶/۱۰،رقم الحديث ۵۷۹۵، ومسلم في الصحيح ۲۱۴۵/۴ رقم الحديث:۲-۲۷۷۳،والنسائي ۳۷/۴، رقم الحديث. ۱۹۰۱، أخرجه أحمد في المسند ۳۸۱/۳.

**توضيح**: عبد الله بن ابی ابن سلول رئيس المنافقين ؤو. نبي کريم ﷺ د هغې د مرګ نه وروسته هغې سره عجيبه حسن سلوک وکړو. هغه يې دقبر نه رايستلو او په خپلو ګونډو يې واچولو او د خپلې خولې لاړې د هغې په خله يا سترګو کې واچولې او خپله قورتۍ ورته واغوستله او د هغې د جنازې مونځ يې وکړو او د هغه د پاره يې ښه ډېر استغفار وکړو.

د دې وجه دا وه چې کله په بدر کې حضرت عباس رضي الله عنه جنګي بندي شو نو د هغې په بدن باندې قرتۍ نه وه. د هغې قد ډېر لوړ ؤ. فقط د عبد الله بن ابي قورتۍ پرې برابره شوه نو حضرت عباس رضي الله عنه ته يې واغوستله. نبي کريم ﷺ غوښتل چې عبد الله بن ابي ته د هغې د احسان بدله ورکړي.

دويمه وجه دا وه چې د عبد الله بن ابی يو ځوي ؤو. د هغې نوم هم عبد الله ؤو هغه ډېر نيک او مخلص صحابي ؤ.

نبي کريم ﷺ غوښتل چې د هغه زړه ساتنه وکړي. نو دغه د زړه پراخوالی او بخښنه چې کله خلکو وليده نو منقول دي چې په دغه ورځ ډېرو منافقينو اسلام قبول کړو. (المرقات ۱۲۹-۴/۱۳۰).



**نفسي الفداء لمن اخلاقه شهدت ❁ بأنه خير مولود من البشر**

❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁ ❁

# باب المشي بالجنازة

# د جنازي دوړلو بیان

**قال الله تعالی: ﴿فَأَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ﴾** (سورت عبس آیت: ۲۱)

په دې باب کې ټول ۱۴۵ حدیثونه ذکر دي، په دې حدیثونو کې دا ذکر دي چې جنازه په آرام سره وړی، په دیکو دیکو چې نه وي، مړی زر خښ کړی، کور کې یې دیر مه حیصاروی، جنازې سره تر قبرستان پورې لاړ شی، حادثه ګڼلو سره اودریږي او که نه، د جنازې د مونځ طریقه څه ده، جنازه په جنازه ګاه کې غوره ده او که په جومات کې، امام د جنازې کوم اړخ ته ودریږي، په جنازه کې خلکو شریک کیدل او د مړي تعرف ځنګه دی، د کوم عمر ماشوم جنازه کیږي، د جنازې د دعا طریقه څه ده او دغه شان نور مسائل او فضائل به راځي.

په دې باب کې دا بیان هم دی چې د جنازې سره پیدل افضل دي خو په سورلۍ باندې تګ جائز دی. دغه شان د جنازې نه مخې وروسته تلل جائز دي مګر غوره دا ده چې شاته پسې روان اوسی. د جنازې مونځ فرض کفایه دي. چې ځېنو وکړو نو د نورو ذمه واري به ختمه شي.

د جنازې په مونځ کې یو څو شرائط دي: ۱- د مړي مسلمان کیدل شرط دې، ۲- پاکوالې شرط دی، ۳-جنازه مخی ته ایخودل شرط دی. لهذا د غائب جنازه صحیح نه ده په دې کې اختلاف را روان دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## جنازه زر وړل په کار دي

| ﴿۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَسْرِعُوْا بِالْجَنَازَةِ فَإِنْ تَكُ |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "جنازه زر وړی ځکه که چیرته دا جنازه د |
| صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُونَهَا إِلَيْهِ وَ إِنْ تَكُ |
| دنیک سړي وي نو (دهغه دپاره) خیر دی لهذا اهغه دنیکۍ او دخیر طرف ته (زر) ورسوی او که چیرته هغه |
| سِوَى ذَلِكَ فَشَرٌّ تَضَعُوْنَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ .[1] |
| داسې نه وي دا نو بد دی (زر تر زره یې) د خپلو څټونو نه کوز کړی. |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۸۲/۳، رقم الحديث: ۱۳۱۵، ومسلم في الصحيح ۶۵۱/۲ رقم الحديث: ۵۰-۹۴۴، والترمذي ۳۳۵/۳ رقم الحديث: ۱۰۱۵، وابن ماجة ۴۷۴/۱، رقم الحديث: ۱۴۷۷. أخرجه أحمد في المسند ۲۴۰/۲.

**توضیح**: جنازي د زر وړلو مطلب دا دی چې کله د کفن او د خښولو کار پوره شي نو بیا مړی په کور کې مه هیساروی بلکې زر یې قبرستان ته وړی چې زر خښ کړی شي ځکه هغه سړی نیک عمله دی نو هغه ولې د جنت د نعمتونو نه محروم ساتی. او که هغه سړی بد عمله دی نو د هغې بوجه ولې په خپلو اوږو باندې ګرځوی. خپله هم نیک مؤمن سړی مطالبه کوي چې ما زر ویسی. خو مونږ یې نه شو اوریدلی او بدعمله سړی هم شور کوي چې ما چرته وړی لکه په مخکې حدیث به راشي. اوس یو ځو میاشتې مخکې په کراچۍ کې یو مولا مړ شوی وو. د هغې وارثانو د جنازې نه وروسته د هغې په خخولو کې د یو خپلوان په وجه پنځه ساعته ناوخته کړو. هغه مولا یو عالم دین په خوب کې راغلو او وې فرمایل چې تاسو پنځه ساعته زما خوب او ارام خراب کړو. (المرقات ۴/۱۳۲).

## د نیک عمله او د بد عمله جنازه

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ |
| ابو سعید رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کله چې جنازه تیاره شي او خلک هغه په خپلو |
| فَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلَى أَعْنَاقِهِمْ فَإِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ: |
| څټونو باندې اوچتوي نو که دا جنازه د نیک بخته (سړي) وی نو هغه خپلو خلکو ته وایي چې (ما زما د منزل |
| قَدِّمُونِي وَإِنْ كَانَتْ غَيْرَ صَالِحَةٍ قَالَتْ لِأَهْلِهَا: يَا وَيْلَهَا أَيْنَ |
| طرف ته زر) ویسی. او که دا د بد بخته سړي جنازه وي نو هغه خپلو خلکو ته وایي چې هائی افسوس! ما چرته |
| تَذْهَبُونَ بِهَا؟ يَسْمَعُ صَوْتَهَا كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا الْإِنْسَانَ وَلَوْ سَمِعَ الْإِنْسَانُ |
| وړی؟ دده دا آواز د انسان نه بغیر بل هر شی اوریدی شي که انسان د هغه سړي اواز واوري نو بی هوشه |
| لَصَعِقَ". (۱) |
| به راو غورځیږي یا به مړ شي. |

## د جنازې لیدو سره د اودریدو حکم

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا |
| ابو سعید رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تاسو چې جنازه ووینئ نو اودریږئ او |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۱/۳ رقم الحديث: ۱۳۱۴، والنسائي في السنن ۴۱/۴، رقم الحديث: ۱۹۰۹، وأحمد في المسند ۴۱/۳.

فَمَنْ تَبِعَهَا فَلَا يَقْعُدْ حَتّٰى

کوم سړی چې د جنازي سره دی هغه دې تر هغه وخت پورې نه کیني تر څو پورې چې جنازه (د خلکو د اوږو

تُوضَعَ.[1]

نه زمکي یا قبر باندې) کینخودلی شي.

**توضیح** :**فقوموا**: د مړي جنازي لپاره او دریدل په ابتداء د اسلام کې ؤ بیا منسوخ شول مخکې د حضرت علي رضي الله عنه روایت نمبر ۳۵ را روان دی. د جمهور علماؤ په نزد هغه د دې حدیث لپاره ناسخ دی. (المرقات ۴/۱۳۲).

ځینې علماء احناف وایي چې که سړی د جنازي سره تلل غواړي یا اوږه ورکوي نو هغه دې ودرېږي کیني نه دې ودرېږي. او که دا مقصد یې نه وي نو ودریدل مکروه دي. ځینې علماء وایي چې سړي د قیام او عدم قیام د دواړو اختیار دی. بهرحال د دې باره کې مختلف روایات وارد دي. په ځینو کې د اودریدلو ذکر دی او په ځینو کې نشته دی. په ځینو کې د اودریدلو یوه وجه بیان شوي ده او په ځینو کې بله وجه بیان شوي ده.

او س خلاصه دا شوه چې که یو سړی د مرګ د حادثي د ویري او د سختي ډیرې په وجه ودرېږي یا د فرښتو د احترام په وجه ودرېږي یا د اوږي ورکول په غرض ودرېږي نو څه باک نه کوي. بغیر مقصده په ودریدل کې هیڅ فایده نشته دی.

په زیر بحث حدیث کې ادب هم بیان شوی دی چې که څوک د جنازي سره تلل غواړي نو چې تر څو پورې هغه جنازه په زمکه نه وي کیخودل شوي نو دا سړي مخکې نه شي کیناستلی امکان لري چې د جنازې په ښکته کولو یا کیخودلو کې د مرستي ضرورت شي. (المرقات ۴/۱۳۳).

﴿٤﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ : مَرَّتْ جَنَازَةٌ فَقَامَ لَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

جابر رضي الله عنه راوي دی چې یو ځل جنازه تېره شوه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم چې ولیده نو اودرید و مونږ هم

وَقُمْنَا مَعَهُ فَقُلْنَا : يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّهَا يَهُودِيَّةٌ

د نبي علیه السلام سره اودرید و بیا مو عرض وکړو چې یا رسول الله! دا خو دیو یهودي جنازه وه (د کوم مسلمان

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۸/۳ رقم الحديث ۱۳۱۰، ومسلم في صحيحه ۶۶۰/۲ رقم الحديث :۹۶۹/۷۷، وأبوداود في السنن ۵۱۸/۳ رقم الحديث ۳۱۷۳ والترمذي ۳۶۰/۳ رقم الحديث ۱۰۴۳، وابن ماجه ۴۹۲/۱ رقم الحديث : ۱۵۷۲.

فَقَالَ : إِنَّ الْمَوْتَ فَزَعٌ

جنازه خو نه وه چې د هغې د تعظیم دپاره اودریدې) نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل: مرګ د ويري شی دی

فَإِذَا رَأَيْتُمُ الْجِنَازَةَ فَقُومُوا .(۱)

کله چې تاسو جنازه ووینئ. (ګویا که هغه د کافر جنازه ولي نه وی نو) اودريږئ.

﴿۵﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : رَأَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَامَ

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې مونږ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدو جنازي ته په اودريدو باندې نو مونږ هم

فَقُمْنَا وَقَعَدَ فَقَعَدْنَا يَعْنِي فِي الْجَنَازَةِ. وَفِي رِوَايَةِ مَالِكٍ وَأَبِي دَاوُدَ: قَامَ فِي الْجَنَازَةِ ثُمَّ قَعَدَ بَعْدُ. (۲)

اودريدو کله چې نبي کريم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کيناستلو نو مونږ هم کيناستلو.

**توضيح :قام فقمنا:** ددې جملې دوه معنې دي: ۱-اولنی معنی دا چې د جنازي راتللو سره نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اودريدو نو مونږ هم اودريدو او کله چې جنازه لاړه غائبه شوه نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کيناستو نو مونږ هم کيناستو. ۲- دويمه معنی دا چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لږ ساعت د جنازي د وجې اودريدو نو مونږ هم اودريدو. بيا نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوردیل پريخودل. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د جنازي لپاره نه اودريدلو بلکې ناست به ؤ نو مونږ به هم ناست ؤو. دا دويمه معنی ډيره واضحه ده او په دې کې د جنازي لپاره د اودريدو د حکم د منسوخ کيدو طرف ته اشاره ده. (المرقات ۴/۱۳۵).

## د جنازې سره قبرستان ته د تللو دوچنده ثواب

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ

ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې لاړشي جنازې د مسلمان پسې

إِيمَانًا وَ اِحْتِسَابًا وَ كَانَ مَعَهُ

ايمانا (يعنې د شريعت په حکم باندې د عمل کولو په غرض سره) او د ثواب د ګټلو په خاطر او د جنازې سره وي

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۹۰۳ رقم الحديث ۱۳۱۱، ومسلم في صحيحه ۶۶۰/۲ رقم الحديث ۴۹۲/۷۸، وأبوداود في السنن ۵۱۹/۳ رقم الحديث ۳۱۷۴، وابن ماجه ۴۹۲/۱ رقم الحديث ۱۵۴۳، وأحمد في المسند ۳۱۹/۳

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۶۲/۲ رقم الحديث ۹۶۲/۸۴، وأبوداود في السنن ۵۲۰/۳ رقم الحديث ۳۱۷۵ والترمذي ۳۶۱/۳ رقم الحديث ۱۰۴۴، وابن ماجه ۴۹۲/۱ رقم الحديث ۱۰۴۴، ومالک في الموطأ ۲۳۲/۱، کتاب الجنائز.

| |
|---|
| حَتّٰی يُصَلّٰی عَلَيْهَا وَ يُفْرَغَ مِنْ دَفْنِهَا فَإِنَّهٗ يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيْرَاطَيْنِ |
| تر دې چې د جنازې مونځ يې وکړو او د هغه د ښخولو نه فارغ شو نو هغه کس دوه قيراطه ثواب ځان سره راوړي |
| كُلُّ قِيْرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ وَ مَنْ صَلّٰی عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ |
| چې په هغې کې هر قيراط دا حد د غر هومره دى او کوم سړى چې فقط جنازه وکړي او راشي او شريک نه شي |
| قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ فَإِنَّهٗ يَرْجِعُ بِقِيْرَاطٍ.[1] |
| په ښخولو کې يې نو هغه د يو قيراط ثواب وګټي او بيرته راشي. |

**توضيح :قيراط:** د يو معمولي مقدار سکي نوم دى چې د پنځو د جوارو د دانې برابر وي. د قيراط ذکر کله د تحقير او تقليل لپاره کېږي. او کله د تکثير لپاره کېږي. کله چې د تکثير لپاره کېږي نو يو قيراط د احد د غر برابر وي لکه دلته چې دى او کله چې د قليل لپاره وي نو د څلورانيز يا اتانيز په معنى کې وي لکه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قريشو د بيزو څرولو باندې د لږې معاوضې اړخ ته اشاره داسي کړې ده **كنت ارعى غنمًا لقريش على قراريط**، ما به د قريشو بيزې په څلورانيز يا اتانيز باندې څرولې. (المرقات ۴/۱۳۷).

## د غائبانه جنازې حکم

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ نَعَى لِلنَّاسِ النَّجَاشِيَّ |
| ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نجاشي د مرګ خبر خلکو ته په هغه ورځ ورسولو چې په |
| الْيَوْمَ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ وَ خَرَجَ بِهِمْ إِلَى الْمُصَلّٰی |
| کومه ورځ هغه مړ شوى ؤ بيا د صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ سره عيدګاه ته لاړو هلته يې د ټولو سره (د جنازې د |
| فَصَفَّ بِهِمْ وَ كَبَّرَ أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ.[2] |
| مونځ لپاره صفونه) جوړ کړل او څلور تکبيرونه يې وويل. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۶/۳ رقم الحديث ۱۳۲۵، ومسلم في صحيحه ۶۵۲/۲ رقم الحديث :۹۴۵/۵۲، وأبوداود في السنن ۵۱۵/۳ رقم الحديث ۳۱۶۸ ، وأحمد في المسند ۲/۲.

(۲) أخرجه البخاري ۲۹۷/۶ رقم الحديث ۳۲۰۴، ومسلم في صحيحه ۶۵۶/۲ رقم الحديث ۹۵۱/۶۲، وأبوداود في السنن ۵۴۱/۳ رقم الحديث ۳۲۰۴ والترمذي ۳۴۲/۳ رقم الحديث ۱۰۲۲، وابن ماجه ۴۶۰/۱ رقم الحديث ۱۵۳۴، وأحمد في المسند ۲۸۱/۲.

**توضیح**: نجاشي د حبشې د بادشاه لقب ؤو. لکه قیصر د روم د بادشاه او د کسری د فارس د بادشاه او فرعون د مصر د بادشاه او تبع د یمن د بادشاه او خاقان د ترکانو بادشاه او راجه د هندوستان د بادشاه لقب ؤ د نجاشي نوم "اصحمه" ؤ او دا مسلمان شوی ؤو. د هغې په مرګ باندې نبي کریم ﷺ د مدینې منورې په عیدګاه کې غائبانه جنازه وکړه. اوس غائبانه جنازې په جواز او عدم جواز کې د فقهاؤ اختلاف پیدا شوی دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د شوافعو او د غیر مقلدینو حضراتو په نز غائبانه جنازه کول جائز دي.

جمهور علماء وایي چې غائبانه جنازه جائز نه ده.

**دلائل**: د شوافعو د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی: جمهور علماء د تعامل صحابه او تعامل امت نه استدلال کوي چې خلفائی راشدینو کله هم غائبانه جنازه نه ده کړې.

جمهور علماء د دې نه هم استدلال کوي چې نبي کریم ﷺ په ټول ژوند کې د نجاشي او معاویه مزنی نه بغیر بل د هیڅ یو صحابي باندې غائبانه جنازه نه ده کړې. معلومه شوه چې جائز نه ده نو بیا د نجاشي او مزني جنازه یې چې کړې ده د هغې څه جواب دی.

**جواب**: جمهور علماء وایي چې نجاشي جنازې لپاره په حبشه کې څوک موجود نه ؤو او په معاویه مزني باندې د جنازې مونځ کول د نبي کریم ﷺ خصوصیت ؤو. د عام امت لپاره جائز نه ده. دغه شان د نجاشي او د مزني دواړو جنازې د نبي کریم ﷺ مخې ته راړولی شوې وې نو د نبي کریم ﷺ دا جنازې غائبانه نه وې کومې یې چې وکړې نو هغه د حاضرو جنازې وې ګویا کې نبي کریم ﷺ غائبانه جنازه کړې نه ده. کومه یې چې کړې ده هغه غائبانه نه وه بلکې حاضرانه وه. په دې باندې د دلیل کتنه هم وکړه. (المرقات ۴/۱۳۹).

ابن عبدالبر د عمران حصین نه یو روایت نقل کړی دی چې د هغې الفاظ دا دي: "**عن عمران حصین ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ان اخاکم النجاشی قدمات فصلوا علیه فقام فصففنا خلفه فکبروا اربعا وما نحسب الجنازة الابین یدیه**". (**التعلیق الصبیح**)

ځینو علماؤ لیکلي دي چې د الله تعالی د نبي کریم ﷺ د مخې نه ټول حجابات لرې کړل نو نبي کریم ﷺ د نجاشي جنازه لیدله او لوستله یې. لکه بیت المقدس د نبي کریم ﷺ مخې ته منقش شو او نبي کریم ﷺ د کفارو د پوښتنو جوابونه ورکړو. بهرحال د نجاشي جنازې ته غائبانه جنازه ویل صحیح نه دي. او چې دا خصوصیت پیغمبري ؤ نو دا په بل چا باندې قیاس کول هم جائز نه دي. لهذا غائبانه جنازه جائز نه ده خو څوک چې د سیاسي مقاصدو لپاره غائبانه جنازه کوي هغه خو سیاست دی شریعت نه دی. همدغه شان د احنافو په نزد متعدده جنازې کول هم جائز نه دي.

فقهاؤ ليکلي دي چې که د ولي د اجازت نه بغير د جنازي مونځ وکړی شو او هغه جنازه به بيرت ګرځولی شي. د دې مطلب دا دی چې اوله جنازه صحيح نه وه. لهذا دويمه يا دريمه جنازه به ادا کېږي. د هغې مطلب به دا وي چې اوله جنازه صحيح نه وه نو ځکه د جنازي اعاده وشوه. خو که د حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جنازه بار بار شوي ده نو هغه پيغمبري خصوصيت ؤو. (المرقات ۴/۱۳۹).

زير بحث حديث نه دا خبره هم ثابته شوه چې جنازه د جومات په ځای عيدګاه کې کول په کار ده. د دې نه مخکې راروان دي. د دې حديث نه دا خبره هم ثابته شوه چې د جنازي تکبيرونه څلور دي. (المرقات ۴/۱۳۹).

**نعى النجاشى:** د چا د مرګ خبر ته نعی وايي. نبي کريم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نجاشی د مرګ خبر خلکو ته ورکړی ؤو. (المرقات ۴/۱۳۸).

## د جنازې د مونځ تکبيرات

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ : كَانَ زَيْدُ بْنُ أَرْقَمَ يُكَبِّرُ عَلٰى جَنَائِزِنَا |
| عبدالرحمن ابن ابی ليلی وايي چې حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (صحابي) زمونږ په جنازو (مونځونو |
| أَرْبَعًا وَ أَنَّهُ كَبَّرَ عَلٰى جَنَازَةٍ خَمْسًا فَسَأَلْنَاهُ |
| کې) څلور تکبيرونه کول په يو جنازه کې هغه پنځه تکبيرونه وويل نو مونږ د هغه نه پوښتنه وکړه چې تاخو |
| فَقَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| به هميشه څلور تکبيرونه کول. نن دې پنځه تکبيرونه وويل؟ هغه وويل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به پنځه |
| يُكَبِّرُهَا . [1] |
| تکبيرونه کول. |

**توضيح:** اربعاً: ائمه اربعه په څلورو تکبيرونو باندې متفق دي. د څلورو نه ډير تکبيرونه متروک دي. ځکه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخري عمل په څلورو تکبيرونو باندې دی. او ټول روايتونه هم په دې باندې دي. البته په څېنو روايتونو کې پنځه يا د ډيرو ذکر راغلی دی خو معمول به څلور تکبيرات دي. او و د دې نه چې ډير چا وويله نو د کيدلی شي چې د شهيدانو د تکريم لپاره دا سي وي. د حضرت زيد بن

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۵۹/۲ رقم الحديث :۹۵۷/۷۲، وأبوداود في السنن ۵۳۷/۳ رقم الحديث ۳۱۹۷ والترمذي ۳۴۳/۳ رقم الحديث ۱۰۲۳، وابن ماجه ۴۸۲/۱ رقم الحديث : ۱۵۰۵، وأحمد في المسند ۱۶۷/۴.

ارقم رضي الله عنه بحث د لاندې حديث هم دغه دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم کله کله پنځه تکبيرونه کړي دي. يا يې دا مطلب چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به مخکې پنځه تکبيرونه کول. وروسته يې پريخودل. د صحابه کرامو رضي الله عنهم يا د عوامو د حضرت زيد بن ارقم په دې زياتي تکبيرونو باندې پوښته کول خپله د دې خبرې دليل دی چې د څلور تکبيرونه معمول به امر نه ؤو. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په څلورو رکعتو باندې امت راجمعه کړی ؤو. په تعليق الصبيح کې تفصيل موجود دی. (المرقات ۴/۱۴۰).

## د جنازې په مونځ کې د سورة فاتحې لوستلو مسئله

| ﴿۹﴾ وَ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ : صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عَبَّاسٍ عَلَى جَنَازَةٍ |
|---|
| او طلحه بن عبد الله بن عوف رضي الله عنه (تابعي) وايي چې ما ابن عباس رضي الله عنه پسې د جنازې مونځ وکړو |
| فَقَرَأَ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ فَقَالَ : |
| نوهغوي (دتکبيراولی نه وروسته) سورة فاتحه ولوستله او وي فرمايل چې: ماسورة فاتحه ځکه ولوستله |
| لِتَعْلَمُوا أَنَّهَا سُنَّةٌ .[1] |
| چې په دې پوهه شی چې دا سنت دي. |

**توضيح : فقرأ فاتحه الكتاب**: د جنازې په مونځ کې فاتحه ويل شته دی او که نه؟ په دې کې د علماو اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام شافعي رحمه الله او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد د اول تکبير نه وروسته فاتحه لوستل واجب دي. او په ورور ويل غوره دي. نن سبا د حرمين شريفينو ائمه کله فاتحه وايي مگر ډير رش په وخت کې نه وايي. (المرقات ۴/۱۴۱).

د امام مالک رحمه الله او د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد په جنازه کې فاتحه د قرأتِ قرآن په حيثيت لوستل جائز نه دي خو که د حمد او د ثناء په توګه يې څوک ويل غواړي هغه جدا خبره ده. (المرقات ۴/۱۴۱).

**دلائل** : شوافعو او حنابله د فاتحه لوستلو لپاره زير بحث حديث د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت نه استدلال کوي او د سنت الفاظ په واجب باندې حمل کوي. مطلب دا چې فاتحه لوستل واجب ده. مگر طريقه مسنون ثابت ده. شوافع حضرات د دې نه هم استدلال کوي چې جنازې ته صلوة وايي او کوم شی چې صلوة وي د هغې لپاره د **"لا صلوة الا بفاتحة الكتاب"** حکم دی. (المرقات ۴/۱۴۱).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۳/۳ رقم الحديث ۱۳۳۵، وأبوداود في السنن رقم الحديث ۳۱۹۸ والترمذي ۳۴۵/۳ رقم الحديث ۱۰۲۶، وابن ماجه ۴۷۹/۱ رقم الحديث : ۱۴۹۵.

احناف او مالکیه وايي چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه خپله د جنازي په مونځ کې فاتحه لوستل ثابت نه دي. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په دې روايت کې هغې فاتحې ته سنت ويلي دي. خو علماؤ ليکلي دي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه په عامه توګه په اجتهادي فعل او قول باندې د سنت اطلاق کوي. دلته هم هغې خپل اجتهاد ته سنت ويلي دي. همدغه وجه ده چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه فاتحه في صلوة الجنازة په معامله کې منفرد دی څوک هم وروسته ملګری شوی نه دی بلکې د پاسه پرې ډيرې پوښتنې شوې دي. په موطا امام مالک کې يو روايت دی چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د جنازې په مونځ کې سورة فاتحه نه ده لوستلې. (المرقات ۴/۱۴۱).

علماء احناف او مالکیه وايي چې جنازه خو دعا ده او د دعا په ادابو کې دا دي چې اول د الله تعالى حمد وي بيا په نبي کريم صلی الله علیه وسلم باندې درود وي او بيا د مړي او دا سيې نور مقصدونو لپاره دعا وکړی شي. په دې دعا کې د فاتحې څه مطلب؟ خو که د حمد او ثناء په توګه څوک فاتحه ووايي نو هغه جدا خبره ده. (کذا قال ابن همام)

احناف شوافعو ته د دې روايت نه دا جواب هم ورکوي چې د دې روايت نه د فاتحې وجوب ثابت نه دی حال دا چې هغه د وجوب قائل دی نو د دې نه استدلال څنګه؟

## د مړي د پاره د جنازې په مونځ کې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَنَازَةٍ فَحَفِظْتُ |
| عوف بن مالک رضي الله عنه وايي چې يو ځل نبي کريم صلی الله علیه وسلم يوه جنازه وکړه ما ياده کړه د نبي علیه السلام |
| مِنْ دُعَائِهِ وَ هُوَ يَقُولُ : اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ |
| دا دعاء چې نبي علیه السلام (د درې تکبيرونو نه وروسته) فرمايله (او هغه دا ده) ای الله! ده ګناه وبخښه |
| وَ ارْحَمْهُ وَ عَافِهِ وَاعْفُ عَنْهُ وَ أَكْرِمْ نُزُلَهُ |
| په ده رحم وکړه، دا په عافيت کې وساته، ده (لغزشونه) معاف کړه (په جنت کې) ده ښه ميلمستيا وکړه |
| وَ وَسِّعْ مُدْخَلَهُ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَ الثَّلْجِ وَ الْبَرَدِ وَ نَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْأَبْيَضَ |
| قبر ورته پراخه کړې، دا په او بو سره، په واورې سره او په ګلۍ سره پاک کړې لکه څنګه چې سپينه جامه د خيرې |
| مِنَ الدَّنَسِ وَ أَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهِ وَ أَهْلًا خَيْرًا مِنْ أَهْلِهِ |
| نه پاکېږي. ده ته د دې د کور نه (د آخرت) بهتره کور ورکړې، د دې د خادمانو نه ښه خادمان ورکړې، د دې |

| |
|---|
| وَ زَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ وَ أَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَ أَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ |
| د ښځې نه ښه ښځه ورکړي (بغير د عذاب نه په ابتداء کې) جنت ته داخل کړي او دا د قبر د عذاب نه يا يې |
| وَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ . وَ فِي رِوَايَةٍ : وَ قِهِ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَ عَذَابَ |
| وفرمايل چې د دوزخ د عذاب نه پناه ورکړي او په يو بل روايت کې دا الفاظ دي دا د قبر د فتنې نه او د عذاب |
| النَّارِ قَالَ |
| دا ورنه وساتې عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلې مبارکي نه د مړي لپاره دا دعاء |
| حَتَّى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ أَنَا ذَلِكَ الْمَيِّتَ.[1] |
| واوريدله نو زه ډېر خوشحاله شوم او بې اختياره مې په زړه کې دا ارمان پيدا شو چې کاش دا زما مړی وي |
| چې زما لپاره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا دعاء کړې وي. |

**توضيح** :زوجاً خيراً: يعني په جنت کې ديته د دې نه ښه ښځه ورکړي. د دې نه مراد د جنت حوري دي. علماء ليکي چې نيک عمله او مؤمنه ښځه به په جنت کې داسي حوره جوړه شي چې د جنت د حورو نه به غوره وي. (المرقات ۴/۱۴۳).

د چا د پاکوالي لپاره چې کومې او به استعمالېږي هغه د واورې وي يا د ګلو وي يا د چينو عامې او به وي. په دې حديث کې د ټول هغه قسمه ذکر وشو.

دا يوه عجيبه دعاء ده د احنافو علماؤ ته په کار دي چې دا دعاء په جنازو کې عام کړي يا د جنازې خپله جامع او مانع دعاء هم وايي مګر چې دا دعاء هم ورسره وي. د عربو علماء دا وايي. زمونږ د جنازې دعا ډېره مختصره ده. اوس اوس په مسجد نبوی کې د غرمې د مونځ نه وروسته د جنازې مونځ وشو. په اعلان کې وويل شو چې د ډېرو مړو جنازه ده. کله اعلان کېږي چې ښځه ده کله د ماشوم اعلان کېږي. د دې تصريح او تعيين ضرورت ځکه پيښېږي چې دا خلک مړي ته په دعاء کې ضمير راجع کوي. که چيرته يو وي نو مفرد ضمير دی او که ښځه وي نو مؤنث ضمير ورته استعمالوي .عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله دا عجيبه دعاء ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خُلې نه واوريدله نو ما وويل چې کاش!دا مړی زه وي نو د دعاء به ماته حاصله شوی وی ياد ساتی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله کله د تعليم په توګه په اوچت اواز سره او کله په ورور جنازه لوستلي ده.امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د جنازې چې څومره دعاګاني دی په هغې کې دا ذکر شوي دعا د ټولو نه صحيح او مستنده ده. (المرقات ۱۴۳/۴).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۶۲/۲ رقم الحديث :۹۶۳/۱۵، وابن ماجه ۴۸۱/۱ رقم الحديث : ۱۵۰۰.

## په جومات کې دننه د جنازې د مونځ کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ لَمَّا تُوُفِّيَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ |
| او ابی سلمه بن عبد الرحمن رضي الله عنه وايي چې كله سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه وفات شو (او د هغه جنازه |
| قَالَتْ : اُدْخُلُوْا بِهِ الْمَسْجِدَ حَتَّى أُصَلِّيَ عَلَيْهِ |
| دهغه دكورنه په بقيع كې دخښولو لپاره راوړى شوه) نو عائشه رضي الله عنها وفرمايل چې د دې جنازه جومات |
| فَأُنْكِرَ ذٰلِكَ عَلَيْهَا |
| ته راوړى چې زه يې هم جنازه وكړم خلكو انكار وكړو (چې په جومات كې جنازه ځنګه كيدې شي) عائشې |
| فَقَالَتْ : وَاللهِ لَقَدْ صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنَيْ بَيْضَاءَ |
| رضي الله عنها وويل چې په خداى قسم! نبي كريم صلى الله عليه وسلم د بيضاء دواړه ماشومان سهيل او د هغه دورور |
| فِي الْمَسْجِدِ : سُهَيْلٍ وَأَخِيهِ.(۱) |
| جنازې مونځ په جومات كې كړي دى. |

**توضيح : ادخلو به المسجد:** حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه فاتح عراق د نبي كريم صلى الله عليه وسلم ماما ؤو. حضرت عائشه رضي الله عنها د هغې د جنازې په مونځ كې د شريكيدلو لپاره جنازه جومات ته د راوړلو لپاره وويله چې خپله هم په جنازه كې شريكه شي. صحابؤ دا خبره خو بنه نه شوه. نو هغې د دليل په توګه د بيضاء د دواړه ځامنو جنازې پيش كړې چې د دواړو جنازه نبي كريم صلى الله عليه وسلم په مسجد نبوى كې كړې وې. بيضاء د هغه دواړه وروڼو د مور نوم دى. د يو وررور نوم سهيل رضي الله عنه دى او د دبل نوم دلته ذكر نه دى خو د هغې نوم سهل رضي الله عنه دى. (المرقات ۴/۱۴۴).

حضرت سعد بن ابن وقاص رضي الله عنه په وادى عقيق كې په خپل كور كې مړ شوى ؤو. هلته نه يې جنت البقيع ته راوړو او خخ كړى شو. په مدينه باندې د مروان حكومت ؤو او عام خلافت د معاويه رضي الله عنه ؤو. اوس په دې كې د فقهاؤ اختلاف دى چې د جنازې مونځ په جومات كې جائز دى او كه نه؟. (المرقات :۴/۱۳۸).

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام شافعي په نزد په جومات جنازه كول جائز دي. د احنافو په نزد كول مكروه دي. بيا د احنافو په يو قول د مكروه تحريمي دى خو د ابن همام رحمه الله كراهت تنزيهي دا ترجيح وركړې ده.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۶۹/۲ رقم الحديث :۹۷۳/۱۰۱، وأبوداود في السنن ۵۳۱/۳ رقم الحديث ۳۱۹۰.

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ زیربحث حدیث نه استدلال کړی دی چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي "ادخلوه" چې د دې جنازه دننه راوړی، چې زه هم په جنازه کې شریکه شمه. دغه شان د بیضاء د دوؤ ځامنو جنازي په جومات کې شوي دي. د دې نه هم شوافع استدلال کوي.

د احنافو دلیل په ابو داؤد کې د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی، الفاظ یې دا دي: **عن ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من صلى على جنازة في المسجد فلا شئ له او فلا اجر له.** (ج ۲ ص ۹۸)

احناف دا هم وایي چې جوماتونه د جنازو لپاره نه دې جوړ شوي. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دور مبارک کې جلا یو جومات جوړ شوی ؤو چې هلته به جنازي کیدي. او دغه شان د صحابؤ تعامل هم په دې خبره باندې دلالت کوي چې د جنازو مونځونه به جوماتونه باهر ؤو. لهذا د سخت عذر نه بغیر د جومات دننه جنازه کول مکروه ده. (المرقات ۴/۱۴۴).

**جواب**: د شوافعو د بحث دلاندې د دلیل جواب دا دی چې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دغه حکم عامو صحابؤ خوښ نه کړو بلکي د هغې نه یې انکار وکړو نو هله حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قسم وکړو او د دلیل په توګه یې د حضرت سهیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جنازې حواله ورکړه. د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جنازې نه صحابؤ انکار د دې حدیث نه د جواب ورکولو لپاره کافي دی. باقي به نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بیضاء د زامنو جنازه د څه مجبوری په وجه کړي وه؟ نو علماء لیکي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یا خو په اعتکاف کې ؤو یا د سخت باران په وجه داسي شوي ؤو. دا خو د عذر صورت ؤو. او د عذر به صورت کې د عامه احوالو قیاس صحیح نه دي. په یو روایت کې تصریح موجود ده چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اعتکاف کې ؤ ځکه یې جنازه دننه وکړه". (المرقات ۴/۱۴۴).

**په جوماتونو کې د جنازې د مونځ نه کولو وجه**: بیا د احنافو په نزد په جومات کې جنازي د مونځ نه کولو دوه علتونه دې د هر یو جدا جدا اثر دی.

یو علت دا دی د جوماتونو وضع او د هغې د تعمیر مقصد جنازه نه بلکي نور عباداتونو دي. د دې علت د نظر لاندې مطلقًا په جومات کې جنازه صحیح نه ده هغه که د جومات دننه وي یا بهر.

دویم علت د جومات تلویث دی یعني دا خطر دی چې جومات ته په دننه راوړلو سره په جومات کې د مړي د جسد نه وینه وغورزیږي چې په هغې سره به جومات ګنده شي. د دې علت د نظر لاندې که مړی د جومات نه باهر کیخودلی شوی وي او مونځ ګزار دننه وي نو جنازه جائز ده. (المرقات ۴/۱۴۴).

## د جنازې په مونځ کې به امام چرته اودرېږي

﴿۱۲﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: صَلَّيْتُ وَرَاءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى اِمْرَأَةٍ

سمره بن جندب رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلی الله علیه وسلم پسې د يوې د ښځې د جنازې مونځ وكړو چې د

مَاتَتْ فِيْ نِفَاسِهَا فَقَامَ وَسَطَهَا.[1]

نفاس په حالت كې مړه شوې وه نو نبي كريم صلی الله علیه وسلم د مونځ لپاره د جنازې په مينځ كې اودريدلی ؤ.

**توضيح :وسطها:** كه په دې لفظ باندې سين باندې فتحه وويل شي نو د دواړو اړخونه بالكل د مينځ نقطه مراد اخستل كېږي. او كه سين ساكن وويل شي نو د دواړه اړخونو د مينځ كه هره يوه برخه وي مراد اخيستل كيدلی شي. اوس اختلاف په دې كې دی چې د امام د جنازې په اړخونو كې كوم طرف ته اودرېږي. نو شوافع حضرات وايي چې كه مړی نارينه وي نو د هغه سر طرف ته به اودرېږي او كه ښځه وي نو شاتنۍ برخه يعنې د كوناټو او د ورنونو خوا سره دې اودرېږي. (المرقات ۴/۱۴۵).

د احنافو په نزد په نارينه او زنانه كې هيڅ فرق نشته دی. امام ته په كار ده چې هغه د مړي د سيني برابر اودرېږي.

د حديث ذكر شوی ظاهري الفاظ خو د احنافو په حق كې دي. ځكه سينه به مينځ (وسط) كې ده او پاس سر دوه لاسونه او اوږې دې او لاندې دوه ښپې او كوناټې او ورون دی. دا نيم نيم دې چې په مينځ كې دي. شوافعو دا لفظ په عجيز باندې حمل كړی دی يعنې د مقام مائل بجانب اسفل دی. بهر حال دا د اولی او د غير اولی مسئله ده هيڅ جهګړه نشته دی. (المرقات ۴/۱۴۵).

## د مړي د دفن كولو نه پس په قبر باندې جنازه كول څنګه دي؟

﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِقَبْرٍ

د ابن عباس رضي الله عنه روايت دی چې (يو ځل) رسول الله صلی الله علیه وسلم په داسې قبر باندې تېر شو چې په هغه

دُفِنَ لَيْلًا فَقَالَ: مَتٰى دُفِنَ هٰذَا؟

كې د شپې په وخت كې مړی خخ كړی شوی ؤ نبي كريم صلی الله علیه وسلم پوښتنه وكړه چې دا مړي كله خښ شوی

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۱/۳ رقم الحديث ۱۳۳۱، ومسلم في صحيحه ۶۶۴/۲ رقم الحديث ۹۶۴/۸۷، وأبوداود في السنن ۵۳۶/۳ رقم الحديث ۳۱۹۵ والترمذي ۳۵۳/۳ رقم الحديث ۱۰۳۵، وابن ماجه ۴۷۹/۱ رقم الحديث: ۱۴۹۳، وأحمد في المسند ۱۴/۵

قَالُوْا: اَلْبَارِحَةَ . قَالَ : أَفَلَا آذَنْتُمُوْنِي ؟ قَالُوْا :

دی؟صحابه کرامو جواب ورکړو چې نن شپه نبي کريم ﷺ وفرمايل چې تاسو ماته خبر ولې نه کړو ؟

دَفَنَّاهُ فِيْ ظُلْمَةِ اللَّيْلِ فَكَرِهْنَا أَنْ نُوقِظَكَ

صحابو عرض وکړو چې مونږ په توره شپه کې خښ کړی ؤ ستا ﷺ راپاڅول مونږ ته ښه معلوم نه

فَقَامَ فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ فَصَلَّى عَلَيْهِ .(۱)

شو بيا نبي کريم ﷺ اودريدو مونږ صفونه برابر کړل او نبي کريم ﷺ بيا د جنازې مونځ وکړو

**توضيح : فكرهنا ان لوقظك**: د دې حديث نه دا يوه خبره ثابته شوه چې نبي کريم ﷺ عالم الغيب نه ؤ و ګيني د پوښتني ضرورت به نه ؤ . او نه به د قبر د معلومول ضرورت ؤ . دويمه خبره د دې حديث نه دا معلومه شوه چې د صحابو رضي الله عنهم ټولنه دومره بې تکلفه وه چې کفن دفن لپاره دا دومره اوږدې قيصې او اعلانونه نه ؤ . دريمه خبره دا معلومه شوه چې لويي او معتبر خلک په تکلف کې بې ځايه اچول په کار نه دي . د دې حديث نه آخري خبره دا معلومه شوه چې د خښولو نه وروسته په قبر باندې جنازه کول جائز دي . نو په دې کې تفصيل دا دی چې که د مړي د جنازې نوبت رانغلو او هغه بغير د جنازې نه خښ کړی شو تو په درې ورځو دننه د هغې په قبر باندې جنازه کول په کار دي . د درې ورځو نه وروسته جائز نه ده او که جنازه مخکې شوي وي نو بيا په هيڅ صورت کې په قبر باندې جنازه کول جائز نه ده . دا د احنافو او د مالکيو مسلک دی . (المرقات ۴/۱۴۶) .

شوافع او حنابله وايي چې که جنازه شوي وي او که نه وي شوي په هر صورت کې په قبر باندې جنازه کول صحيح دي . هغوی د بحث د لاندې حديث نه استدلال کوي .

احناف او مالکيه جواب ورکوي چې دا د نبي کريم ﷺ خصوصيت ؤ . د نبي کريم ﷺ د دعا او د استغفار شان جدا ؤ . د نورو خلکو معامله داسې نه ده . بلکې ځينې علماء ليکي چې د نبي کريم ﷺ په دور مبارک کې د نبي کريم ﷺ په موجودوالي کې د نبي کريم ﷺ نه بغير د جنازې مونځ جائز نه ؤ . لهذا د نبي کريم ﷺ نه بغير چې کومه جنازه شوي وه ګويا کې هغه جنازه نه وه او په دې د ټولو اتفاق دی چې جنازه ونه شي نو د هغه مړي په قبر باندې د ورستيدلو نه مخکې مخکې جنازه کول ضروري ده . اوس دا تعين چې مړي تر څومره ورځو پورې محفوظ پاتې کيدی شي . د دې فيصله به د علاقې د موسمياتو او د حالاتو ماهرين کوي چې په دې علاقه کې او په

---

(۱) أخرجه البخاري ۱۱۷۱/۳ رقم الحديث ۱۲۴۷، مسلم ۶۵۸/۲ رقم الحديث :۶۹/۹۵۴، ابن ماجه ۴۹۰/۱ رقم الحديث : ۱۵۳۰ .

دې موسم کې به مړی تر څو مره ورځو پورې محفوظ پاتې کیدلی شي. احنافو د دریو ورځو قول په عامه توګه بیان کړی دی. (المرقات ۱۲۶/۴).

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ امْرَأَةً سَوْدَاءَ كَانَتْ تَقُمُّ الْمَسْجِدَ |
| ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یوه توره ښځه وه چې مسجد نبوي به یې جارو کولو یا راوي وایي چې یو ځوان |
| أَوْ شَابٌّ فَفَقَدَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَسَأَلَ عَنْهَا أَوْ عَنْهُ |
| ؤ چې جارو به یې وهله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (یوه ورځ) هغه ونه لیده نو د هغه ښځې یا د سړي باره کې یې |
| فَقَالُوا : مَاتَ . قَالَ : |
| وپوښتل چې هغه چرته ده؟ نو هغوی ورته وویل چې مړشوی یا مړه شوي ده نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| أَفَلَا كُنْتُمْ آذَنْتُمُونِي ؟ قَالَ : |
| چې ماته مو ولې نه ویل؟ (چې ماهم د هغه د جنازې مونځ کړې وي) ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې هغه خلکو |
| فَكَأَنَّهُمْ صَغَّرُوا أَمْرَهَا أَوْ أَمْرَهُ . فَقَالَ : دُلُّونِي عَلَى قَبْرِهِ |
| هغه ښځې یا سړي ته هیڅ اهمیت ورنه کړو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: ښا ماته د هغې قبر وښایئ چیرته دی؟ |
| فَدَلُّوهُ فَصَلَّى عَلَيْهَا. |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته یې د هغې قبر وخودلی شونو (نبي عَلَيْهِ السَّلَام هلته لاړو او) د هغې په قبر یې جنازه وکړه او بیا |
| قَالَ : إِنَّ هٰذِهِ الْقُبُورَ مَمْلُوءَةٌ ظُلْمَةً عَلَى أَهْلِهَا وَ إِنَّ اللهَ يُنَوِّرُهَا لَهُمْ بِصَلَاتِي |
| یې وفرمایل چې دا قبر د خپلو مړو لپاره د تورتمونو نه ډک وي په دې قبرونو باندې زما د مونځ د وجې الله |
| عَلَيْهِمْ . (۱) |
| تعالی دا روښانه کړي. |

**توضیح**: د دې حدیث مضمون او د دې نه د مخکې حدیث مضمون یو شان دی. البته دا نه شي ویل کیدی چې د دې دواړو حدیث مصداق یو سړی ؤ. ځکه د اولني حدیث د ضمائرو نه پته لګي چې څوک سړی ؤ او په دویم حدیث کې په واضحه توګه د ښځې او د سړي ذکر دی. بهرحال دا احتمال موجود دی چې دا د

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٣ ٢٠٤ رقم الحديث ١٣٣٧، ومسلم في صحيحه ٦٥٩/٢ رقم الحديث :٩٥٦/٧١، وابن ماجه ٤٩٠/١ رقم الحديث : ١٥٣٣، وأحمد في المسند ٢ ٣٨٨

یوي خادم قصه وي. راوي ته بیانولو کښې شک پیدا شوی چې دا یوه ښځه وه چې مسجد نبوي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به یې جارو کولو. د دې خوش قسمته ښځې قصه د بحث د لاندې حدیث کښې ده.

**تقم:** د **قم یقم نصر ینصر** نه دی. د **ازالة القمامة** په معنی کښې دی. یعنې په جارو باندې به یې د مسجد نبوي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ګند او خېرې پاکولو.

**بصلاتي علیهم:** یعنې زما په دعاء او د جنازې په مونځ باندې قبر روښانه کېږي. د دې نه معلومه شوه چې په قبر کښې د خښولو نه وروسته په قبر باندې جنازه کول د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصیت ؤو. اګر که جنازه مخکښې شوې وي او که نه. (المرقات ۴/۱۴۷).

## په جنازه کښې د څلویښتو کسانو د شریکیدو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ |
| د عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ آزاد شوی غلام کریب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ باره کښې نقل کوي چې کله په مقام |
| مَاتَ لَهُ ابْنٌ بِقُدَيْدٍ أَوْ بِعُسْفَانَ |
| قدید یا په مقام غسفان کښې (چې مکې سره نزدې ځایونه دي) د هغه ځوی مړه شو (او جنازه تیاره شوه) نو هغه |
| فَقَالَ : يَا كُرَيْبُ انْظُرْ مَا اجْتَمَعَ لَهُ مِنَ النَّاسِ . قَالَ : فَخَرَجْتُ |
| وویل چې: کریب لاړ شه چې د جنازې لپاره څو مره کسان راجمعه شوي دي؟ کریب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې ووتلم |
| فَإِذَا نَاسٌ قَدِ اجْتَمَعُوا لَهُ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ : |
| نو ما ولیدل چې ډېر زیات خلک جمعه شوي دي. زه بیرته راغلم او عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته مې وویل (چې ډېر |
| تَقُوْلُ : هُمْ أَرْبَعُونَ ؟ |
| زیات خلک راجمعه شوي دي) عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل چې ستا په خیال د دې خلکو شمیره به څلویښت وي؟ |
| قَالَ : نَعَمْ . قَالَ : أَخْرِجُوهُ فَإِنِّي سَمِعْتُ |
| ما وویل چې آؤ عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل چې نو بیا جنازه (د مونځ لپاره) بهر راوباسئ ځکه ما اوریدلي دي |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : مَا مِنْ رَجُلٍ مُسْلِمٍ يَمُوتُ فَيَقُومُ عَلَى جَنَازَتِهِ |
| د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چې فرمایل یې: کله یو مسلمان مړ شي او د ده په جنازه باندې او دریږي داسې |

| |
|---|
| أَرْبَعُونَ رَجُلًا لَا يُشْرِكُونَ بِاللهِ شَيْئًا إِلَّا شَفَّعَهُمُ اللهُ فِيهِ.[1] |
| څلويښت كسان چې د خداى سره څوک نه شريكوي نو الله تعالى به د مړي په حق كې د خلكو شفاعت قبلوي. |

## په جنازه کې د سلو (۱۰۰) کسانو د شريکيدو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : " مَا مِنْ مَيِّتٍ تُصَلِّي عَلَيْهِ أُمَّةٌ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي عليه الصلاة والسلام وفرمايل چې دكوم مړي جنازه د مسلمانانو يو داسې جماعت |
| مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَبْلُغُونَ مِائَةً كُلُّهُمْ |
| وكړي چې شمير يې سلو (۱۰۰) ته رسېږي او دا جماعت د مړي لپاره شفاعت وكړي (يعنې د مغفرت دعا |
| يَشْفَعُوْنَ لَهُ : إِلَّا شُفِّعُوْا فِيهِ ".[2] |
| وكړي) نو د دوي شفاعت قبلېږي (يعنې د مړي مغفرت وشي). |

**توضيح**: ددې نه مخكې په حديث كې د څلويښتو كسانو د شركت د فضيلت ذكر راغلى دى. او زير بحث حديث كې د سلو كسانو په شركت كولو باندې د دې فضيلت د حاصليدو ذكر شوى دى.

علماء وايي چې امكان لري چې اول الله تعالى د سلو كسانو په شركت باندې د دې د ثواب وعده كړې وه او بيا د الله تعالى كرم نور هم ډير شو او د سلو په ځاى كې د څلويښتو (۴۰) كسانو په شركت باندې د دې د ثواب د وركولو وعده كړې وي. يا دا عدد ونه او د دې ذكر د تعين او تحديد لپاره نه دى بلكې د تكثير په توګه دى. نو نه سل مراد دي او نه څلويښت مراد دي بلكې د ډيرو خلكو جماعت مراد دى. (المرقات ۴/۱۴۸).

## د مخلوق ژبه د الله تعالى نغاره ده

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : مَرُّوا بِجَنَازَةٍ فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا . |
| انس رضي الله عنه وايي چې صحابه كرام رضي الله عنهم په يوه جنازه باندې تېريدل نو د هغې تعريفونه يې شروع كړل |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : وَجَبَتْ |
| نبي كريم صلى الله عليه وسلم (چې د صحابو د خُلو نه د دې مړي تعريف واوريدو نو) وى فرمايل چې واجب شو |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۵۵ رقم الحديث :۹۴۸/۵۹، وابن ماجه ۱/۴۷۷ رقم الحديث : ۱۴۸۹، وأحمد في المسند ۱/۲۷۷.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۲۲۸ رقم الحديث ۱۳۶۷، ومسلم في صحيحه ۲/۶۵۵ رقم الحديث :۹۴۹/۶۰، والترمذي ۳/۳۷۳ رقم الحديث ۱۰۵۹،وأحمد في المسند ۳/۲۸۱.

| |
|---|
| ثُمَّ مَرُّوا بِأُخْرَى فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا شَرًّا . |
| دغه شان صحابه په یوې بلې جنازه باندې تیر شونو دهغې بدیې بیانول شروع کړل. نبي کریم ﷺ |
| فَقَالَ : وَجَبَتْ فَقَالَ عُمَرُ : |
| (چې دصحابوُ دخلې نه ددې مړي باره کې بدي واوریده نو) وي فرمایل چې واجب نو وویل عمر رضي الله عنه |
| مَا وَجَبَتْ ؟ فَقَالَ : هٰذَا أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ خَيْرًا .فَوَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ |
| چې څه واجب شو ؟نبي علیه السلام وفرمایل دکوم سړي چې تاسو تعریف بیان کړو دهغه دپاره جنت واجب شو |
| وَ هٰذَا أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ شَرًّا فَوَجَبَتْ لَهُ النَّارُ أَنْتُم |
| او د کوم سړي چې تاسو بدي بیان کړه نو د هغه د پاره دوزخ واجب شو او (بیا یې وفرمایل چې) تاسو په |
| شُهَدَاءُ اللهِ فِي الأَرْضِ . وَ فِي رِوَايَةٍ : الْمُؤْمِنُونَ |
| زمکه باندې د الله تعالی ګواهان وی. یو بل روایت کې دي چې نبي کریم ﷺ وایي: مؤمنان په |
| شُهَدَاءُ اللهِ فِي الأَرْضِ. (۱) |
| زمکه باندې د الله تعالی ګواهان دي. |

**توضیح : وجبت**: یعنې د هغه سړي لپاره جنت واجب شو. مطلب دا دی چې د کوم سړي تاسو تعریف بیانولو. کچرې ستاسو بیان صحیح دی او هغه سړي مرګ په هغه نیکۍ کې راغلی چې کوم تاسو بیانولو نو د هغې لپاره د جنت سعادت ثابت شو او چې د کوم سړي تاسو بدي بیانوله کچرې دا بیان صحیح وي او د هغه سړي مرګ په هغه بدۍ کې راغلی نو د هغې لپاره د دوزخ سزا ثابته شوه. (المرقات ۴/۱۴۹).

شیخ مظهر رحمه الله وایي چې د جنت او دوزخ دا حکم داسې نه دی چې د خلکو په ښو او بدو ویلو سره به په یقیني توګه هغه جنتي یا دوزخي وي. بلکې مطلب دا دی چې په خلکو کې د چا باره کې عام خیال او عام تأثر ښه نیک وي او خلک هغه ښکاره کوي هم نو د هغه سړي لپاره د جنت امید کیدلی شي. همدغه شان که د عامو خلکو تأثر د هغه سړي باره کې بد وي نو خطر شته چې هغه دوزخ ته لاړ شي. (المرقات ۴/۱۵۰).

زین العرب وایي چې د یو سړي باره کې د خلکو د شر او د بدۍ سره ذکر کول یا په خیر او په نیکۍ سره

---

(۱)البخاري۲/۹۷،رقم الحدیث:۱۳۶۷،کتاب الجنائز ، باب ثناء الناس علی المیت، مسلم في صحیحه ۳/۵۳، رقم الحدیث : ۲۲۴۳

ذکر کول هغه سړی جنت یا دوزخ ته نه وړي. بلکې د مخلوق ژبه د خدای نغاره ده. چې د هغه سړي د ښه او د بد علامت دی او نښانه ده. (المرقات ۴/۱۵۰).

دې اړخ ته په دې حدیث کې نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یوه اشاره کړې ده چې "انتم شهداء الله في الارض" تاسو د الله له اړخ نه په دې زمکه د خلکو لپاره ګواهان وی. بیا دلته په دې هم پوهیدل په کار دي چې که یو دنیاداره او فاسق او فاجر سړی څه د دنیوي غرضونو لپاره د یو بد او بد کرداره سړي تعریف او توصیف وکړي او د هغې باره کې لنډي او اوږدي قصیدي د ښه تأثراتو جوړي کړي یا دیو نیک او متقي سړي باره کې بد بیان کړي نو د دې ښه والي او د بد والي هیڅ اعتبار نشته دی او نه دا سړی د دې کار لپاره معیار دی. خلاصه دا چې ګواهي ورکول د یو معتدل او خدا ترس، انصاف پسند، متقي او د پرهیزګاره سړي کار دی. (المرقات ۴/۱۵۱).

| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَيُّمَا مُسْلِمٍ شَهِدَ لَهُ |
|---|
| عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل هر یو مسلمان چې ګواهي ورکړي دده دپاره |
| أَرْبَعَةٌ بِخَيْرٍ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ قُلْنَا : وَ ثَلَاثَةٌ ؟ |
| څلور کسان په خیر یاندې داخل به کړي الله تعالی دا جنت ته مونږ وویل او که درې کسان وي نبي عَلَیْهِ السَّلَام |
| قَالَ : وَ ثَلَاثَةٌ . قُلْنَا وَ اِثْنَانِ ؟ قَالَ : وَ |
| وفرمایل او که درې کسان هم ګواهي ورکړي مونږ وویل او که دوه کسان وي نبي عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل او که |
| اِثْنَانِ ثُمَّ لَمْ نَسْأَلْهُ عَنِ الْوَاحِدِ . (۱) |
| دوه کسان هم وي بیا دده نه وروسته مونږ د یو کس د حال پوښتنه نه ده کړې. |

## څوک چې مړ شي د هغه بدي مه بیانوئ

| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَسُبُّوا الْأَمْوَاتَ فَإِنَّهُمْ |
|---|
| عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل تاسو کنځلې مه کوئ مړو ته ځکه دوي |
| قَدْ أَفْضَوْا إِلَى مَا قَدَّمُوا . (۲) |
| رسیدلي هغه څه ته چې دوي مخکې لیږلي دي. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۲۲۹ رقم الحديث ۱۳۶۸، وأحمد في المسند ۱/۲۲.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۲۵۸ رقم الحديث ۱۳۹۳، وأحمد في المسند ۶/۱۸۰.

۳ جمادى الثاني ۱٤۱۰هـ

## د شهيد د جنازې مونځ به کيږي او که نه؟

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ فِي قَتْلَى أُحُدٍ |
| د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دوه کسان رانغښتل دا حد په شهيدانو کې |
| فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ ثُمَّ يَقُولُ : أَيُّهُمْ أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ ؟ فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدِهِمَا |
| په يوه جامه کې بيا به يې وويل کوم يو ته په دوې کې ډير قرآن زده دى نو کله چې به يو ته اشاره وشوه يو د دې |
| قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ وَ قَالَ : |
| دواړو ته نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه په لحد کې مخکې کيخودو او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هَؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . وَ أَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ |
| زه ګواه يم په دوې باندې په ورځ د قيامت او حکم يې وکړو په خښولو د دوې باندې سره د وينو د دوې نه |
| وَ لَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ وَ لَمْ يُغَسَّلُوا .(۱) |
| او د جنازې مونځ يې ونه کړو په دوې باندې او نه دوې ته غسل ورکړى شو. |

**توضيح : ولـم يصل عليهم**: په دې حديث کې يوه دا خبره ويل شوي ده چې داحد د شهيدانو لپاره اجتماعي قبرونه کنستل شوي وُو. ځکه د اوياؤ (۷۰) شهيدانو لپاره جلا جلا قبرونو ګران کار وُو. ځکه کوم صحابه چې ژوندي ؤ هغه زخمي زخمي ؤ. نو ځکه به چې يو قبر وکنستل شو نو بيا به په مخ د قبلي يو اوږد لحد جوړ کړى شو چې په هغې کې به دوه دوه يا درې درې يا څلور څلور کسان شاته ايخودل کيدل. په دې کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا حکم وکړو چې چاته قرآن ډير ياد وي يا د قرآن ډير قاري وي نو هغه د مخې اړخ ته کيدى. دا حکم نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرآن کريم د تعظيم او د هغې د اعزاز خودلو لپاره ويل غوښتل. چې قرآن په د معاشري په هره شعبه کې د رواج او د دُود (دستور) په توګه داخل شي. دلته يې په قبر کې د جامو نه بغير دوه دوه رايو ځاې نه کړل بلکې د جامو سره يې خخ کړلو. اوس په دې اتفاق دى چې ګوم سړى د الله تعالى په لاره کې شهيد شي د هغې جامې د هغې د بدن نه ويستلى کيږي بلکې په همغه جامو کې يې خښوي. په دې هم اتفاق دى چې شهيد تـه غسل نه ورکول کيږي. اوس په دې کې اختلاف دى چې د شهيد جنازه به کيږي او که نه؟(المرقات ۴/۱۵۳).

---

(۱) أخرجه البخاري ۲۱۲/۳ رقم الحديث ۱۳٤۷، والترمذي ۳٥٤/۳ رقم الحديث ۱۰۳٦، وابن ماجه ٤۸٥/۱ رقم الحديث : ۱۰۳٦.

**د فقهاوو اختلاف**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نز څنګه چې شهیدانو ته غسل نه ورکول کېږي دغه شان د شهید د جنازي مونځ به هم نه کېږي. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د شهید لپاره غسل فرض خو نه دی خو د حدیثونو په وجه به د شهید د جنازي مونځ کېږي.

**دلائل**: جمهور فقهاؤ د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی چې په هغې کې د "لم یصل علیهم" الفاظ راغلي دي. امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ، امام ابو داؤد رَحِمَهُ اللهُ او امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ټولو په دغه الفاظو سره په خپلو کتابونو کې رانقل کړي دي.

د جمهورو سره یو عقلي دلیل هم دی هغه دا چې د جنازي مونځ د مغفرت او شفاعت لپاره کېږي او شهید د مخکې بخښلی بخښلی دی. نو د هغې لپاره د صلوٰة جنازه ضرورت نشته دی او دغه شان الله تعالی شهیدانو ته د مړه ویلو نه هم منع کړې ده او د جنازي په مونځ کې هغې ته مړ ویل کېږي. لهذا د جنازي مونځ کول په کار نه دی.

د احنافو د ائمو اولني دلیل د حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې هغه امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ هم نقل کړی دی چې الفاظ یې دا دي: **"ان النبي صلی الله علیه وسلم خرج یوما فصلی علی اهل احد صلوته علی المیت"**. (بخاري ج۲ ص۵۸۵)

د دې حدیث نه په واضحه توګه ثابتېږي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ نه مخکې د احد په اولنو شهیدانو باندې څو کاله وروسته د جنازي مونځ د هغوی په قبر باندې په قبرستان کې کړی دی. چې دا ثابت دی نو دا څنګه ویل کیدلی شي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د دغه شهیدانو جنازه ترک کړې وي.

د احنافو دویم دلیل د سنن ابن ماجه روایت دی چې د احد شهیدان به د لسو لسو په شمیر کې راوړل کیدل. او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغوی جنازه کوله. حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به یې هر ځل شریک کولو. د حدیث الفاظ داسې دي **"اتی بهم رسول الله صلی الله علیه وسلم فجعل یصلی علی عشرة عشرة وحمزة هو کما هو یرفعون وهو کما هو موضوع"**. (ابن ماجه ص ۱۰۹)

د احد شهیدان به نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راوړل کیدل. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د لسو لسو (۱۰) جنازه کوله او حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د هر لسو کسانو سره ؤو.

د احنافو دریم دلیل په مراسیل کې د ابوداؤد یو روایت دی چې په هغې د احد د شهیدانو د جنازي د مونځ تفصیل موجود دی.

**جواب**: جمهور فقهاء کرام چې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت کوم استدلال کړی دی او چې په کوم کې

دی لـم یـصل علیهم الفاظ راغلي دي. د هغې يو جواب دا دی چې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د احد د شهیدانو بالکلیه نفي نه ده کړي بلکې د يو خاص صورت نفي يې کړي ده هغه دا چې څنګه په حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې بار بار د جنازې مونځ شوی دی هغه د نورو شهیدانو نه دی لوستلی شوی.

**دويم جواب**: دا دی چې په اکثر روایتونو کې د جنازې د مونځ اثبات شته دی. او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې نفي ده. او قاعده دا ده چې کله په نفي او اثبات کې تعارض راشي نو ترجیح اثبات ته ورکول کیږي.

**دريم جواب**: دا دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله نه دی کړی. ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زخمي ؤو. صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کړي دي.

**څلورم جواب**: دا دی چې د نفي او د اثبات وختونه مختلف دي. په ابتداء کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جنازه نه ده کړي او خلکو خپل شهیدان کورونو ته وړل شروع کړل نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وړلو نه منع کړل او بیرته یې راوغوښتل او د جنازې مونځ یې وکړو.

او د جمهورو د عقلي دليل جواب دا دی چې بیشکه "السيف محاء للذنوب" دی. ګناهونه په پوره توګه د تورې سره وینځل شو خو د جنازې مونځ خو د درجاتو د اوچتولو لپاره هم کیږي. لکه د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د جنازې مونځ کړی شوی دی او د ماشوم جنازه کیږي. دا ټول د درجاتو د اوچتولو لپاره دې ګیني د ګناه خو بيخي تصور نشته دی. باقي د جنازې په مونځ کې د مړي لفظ مه اختيار وی. د جنازې نوري دعاګاني هم ډیرې دي.

بهرحال دا مسئله په سرحدونو کې مشغول مجاهدینو ته ښه معلومه ده. دا د هغوی د میدان مسئله ده. په ځینې ماحول کې د جنازې د مونځ کولو امکان وي خو په ځینو وختونو کې بالکل امکان نه لري. د دښمن د طرف نه ډزې او بمباري شروع وي نو په کولاؤ میدان کې د جنازې مونځ امکان نه لري.

## د قبرستان نه واپس راتلل په سورلۍ باندې جائز دي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ : أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِفَرَسٍ مَعْرُورٍ |
| جابر ابن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بغير د زين نه اس راوستلی شو نو په دې |
| فَرَكِبَهُ حِينَ انْصَرَفَ مِنْ جَنَازَةِ ابْنِ الدَّحْدَاحِ وَ نَحْنُ نَمْشِيْ حَوْلَهُ.[1] |
| آس هغه وخت سپور شو چې د ابن د حداح د جنازې نه راواپس شو او مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه ګیر چاپیره روان ؤو |

(۱) أخرجه مسلم ۲ ٦٦٤ رقم الحديث ۹۸ ۹٦٥. أبوداود ۳ ٥٢١ رقم الحديث ۳۱۷۸ و ترمذي ۳ ۳۳٤ رقم الحديث ۱۰۱۳

**توضيح : فرس معرور:** معرور د عرى نه دى. د زين نه بغير خالي شاه آسپي ته ويل شوي دي. (المرقات ۴/۱۵۴).

**فركيه:** ددې نه دا خبره ثابته شوه چې د جنازي نه بيرته راتلونكي ته اختيار دى چې كه هغه پيدل راځي او كه سورلى باندې سپور راځي. البته د جنازي سره په تلو وخت كې سپوريدل څنګه دي. نو په راروان حديث نمبر ۲۲ كې د دې تفصيل راتلونكى دى چې سپور سړي ته په كار دې چې هغه جنازې پسې وروسته وروسته ځي، مخكې دې ترې نه ،نه ځي او پيدل تلونكي ته اختيار دى كه مخكې ترې نه ځي او كه ورپسې وروسته ځي. په حديث نمبر ۲۶ كې به يې تفصيل راشي ان شاء الله. (المرقات ۴/۱۵۴).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### د ناتمامه ماشوم جنازه به كيږي او كه نه؟

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : الرَّاكِبُ |
| د مغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې سپور سړى دې د |
| يَسِيرُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ وَ الْمَاشِيْ يَمْشِيْ خَلْفَهَا وَ أَمَامَهَا وَ عَنْ يَمِيْنِهَا وَ عَنْ يَسَارِهَا |
| جنازي نه ورسته ځي او پياده سړى دې د جنازې نه وروسته، مخكې، د دې ښي او چپ طرف او د دې سره |
| قَرِيْبًا مِنْهَا وَ السَّقْطُ يُصَلّٰى عَلَيْهِ وَ يُدْعَى لِوَالِدَيْهِ بِالْمَغْفِرَةِ |
| تزدې نزدې ځي او په ناقص ماشوم دې مونځ وكړى شي او دعا دې وغوښتلى شي دده د مور او پلار لپاره د |
| وَ الرَّحْمَةِ . [1] وَ فِي رِوَايَةِ أَحْمَدَ وَ التِّرْمِذِيِّ وَ النَّسَائِيِّ وَ ابْنِ مَاجَه قَالَ : الرَّاكِب |
| بخښش او د رحمت، او په روايت د احمد ،ترمذي، نسائي او ابن ماجه كې داسې دي چې وي فرمايل سپور |
| خَلْفَ الْجِنَازَةِ وَ الْمَاشِي حَيْثُ شَاءَ مِنْهَا وَ الطِّفْلُ |
| سړى دې جنازه پسې شاته لاړ شي او پياده سړى چې د جنازي كوم اړخ ته وغواړي تللى شي. او كه هلك |
| يُصَلّٰى عَلَيْهِ وَ فِي الْمَصَابِيْحِ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ زِيَادٍ . |
| مړ شي په هغه باندې د جنازي مونځ وكړى شي او په مصابيح كې دا روايت د مغيره بن زياد نه نقل دى |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳ ۵۲۲، رقم الحديث : ۳۱۸۰ ، والترمذي في السنن ۳ ۳۴۹ رقم الحديث ۱۰۳۱ . والنسائي ۴ ۵۵ رقم الحديث ۱۹۴۳، وابن ماجه ۱ ۴۷۵ رقم الحديث ۱۴۸۱ ، وأحمد في المسند ۴ ۲۴۷

**توضیح**: د دې حدیث خلاصه دا ده چې که څوک په سورلۍ باندې د جنازې سره روان وي نو هغې له په کار ده چې جنازې پسې شاته شاته لاړ شي او کوم سړي چې پیدل روان وي نو هغې ته اختیار دی چې که د جنازې نه مخکې ځي یا وړپسې شاته ځي او که ښۍ او چپ اړخ ته. په حدیث ۲۳ کې دا مسئله راروانه ده چې آیا د جنازې ته مخکې تلل بهتره دې او که شاته تلل بهتره دي.

**والسقط یصلی علیه**: سقط ناتمامه ماشوم ته وایي. او دې ته کچه بچی هم وایي. که د څلور میاشتو نه مخکې ماشوم ساقط شو نو بالاتفاق په هغې باندې د جنازې مونځ نشته دی. خو د دې مودې نه وروسته که ماشوم ساقط شو نو آیا په ده باندې به جنازه کېږي او که نه. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۴/۱۵۵).

**د فقهاؤ اختلاف**: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ، اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللهُ او ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ وایي چې په کچه بچي باندې به د جنازې مونځ کېږي اګر که هغه مړ شوی پیدا شوي وي.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ یعنې جمهور فقهاء وایي چې ترڅو پورې په ماشوم کې د ژوند آثار نه وي نو په هغې باندې د جنازې مونځ نه کېږي او که د ژوند معمولي آثار پیدا شي نو جنازه به یې کېږي. (المرقات ۴/۱۵۵).

**دلائل**: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ، اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللهُ او نور فقهاء د ذکر شوي روایت نه استدلال کوي چې ظاهري الفاظ یې دا دي چې د ساقط شوي ماشوم به جنازه کېږي. (المرقات ۴/۱۵۵).

جمهور فقهاؤ د دې باب د آخري حدیث ۴۴ نه استدلال کړی دی چې په هغې ښکاره الفاظ راغلي دي چې "**الطفل لا یصلی علیه ولا یرث ولا یورث حتی یستهل**"(المرقات ۴/۱۷۲).

د دې حضراتو دلیل د مستدرک حاکم یو روایت هم دی. الفاظ یې دا دي "**ان علیه السلام قال اذا استهل الصبی صلی علیه وورث رواه حاکم وقال اسناده صحیح**".

**جواب**: د زیر بحث حدیث جواب دا دی چې د دې ساقط شوي ماشوم نه مراد هغه ماشوم دی چې په هغې کې د پیدائش په وخت کې د ژوند موجود وي. دا مطلق به د نورو حدیثونو په وجه مقید بحیاة کول کېږي. ځکه کله چې په مقید او مطلق کې تعارض راشي نو مقید ته ترجیح ورکول کېږي. مطلب به دا وي "**ای والسقط الذي فیه آثار الحیاة صلی علیه**".

## د جنازې نه د مخکې تللو مسئله

| **﴿۲۳﴾ وَعَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** |
|---|
| زهری روایت کړی د سالم نه او سالم د خپل پلار عبد الله نه هغه وایي چې ما ولید ورسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

| وَ أَبَابَكْرٍ وَ عُمَرَ يَمْشُونَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ. (۱) |
|---|
| او ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د جنازې نه مخکې به تلل. |
| وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ وَ أَهْلُ الْحَدِيثِ كَأَنَّهُمْ يَرَوْنَهُ مُرْسَلًا. |
| او امام ترمذي او محدثينو ويلي دي چې ګويا کې دې حديث لره مرسل پيژني. |

**توضيح: يمشون امام الجنازة:** يعنې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د جنازې نه مخکې مخکې تلل. که ضرورت وي نو د جنازې نه مخکې تلل هم جائز دې او شاته تلل هم جائز دي. د مخکې تللو علت دا دی چې کوم خلک د جنازې سره وي دا د الله تعالی مخې ته شفعاء او سفارشيان دې او سفارشي مخکې مخکې ځي. او دغه شان د جنازې سره مرسته هم کولی شي. د شاته تللو علت دا دی چې هغه خلک به خپلې مخې ته جنازه ويني نو د هغې نه به عبرت اخلي. ځکه: (المرقات ۴/۱۵۷).

**و اذا حملت الى القبور جنازة ❁ فاعلم بانک بعدها محمول**

خو چې کوم طرف ته ضرورت نه وي نو بيا افضل څه دي آيا مخکې تلل افضل دې او که شاته تلل افضل دي؟. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف:** د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد مخکې تلل افضل دي. د احنافو په نزد شاته تلل افضل او بهتر دې.

**دلائل:** شوافعو او حنابلو د بحث د لاندې حديث نه کړی دی چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د جنازې نه مخکې مخکې تلل.

د احنافو ائمؤ د حضرت عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د راتلونکې روايت ۲۴ نه استدلال کړی دی چې په هغې کې د **الجنازة متبوعة** الفاظ دي. يعنې جنازې نه شاته تلل په کار دي. جنازه به ستا تابع نه وي چې ته به د هغې نه مخکې وې او هغه شاته وي او کوم سړی چې د جنازې نه مخکې لاړو نو هغې د ملګرتيا نه کولو ثواب ونه موندلو.

احناف د مصنف عبدالرزاق د روايت نه هم استدلال کړی دی چې د هغې الفاظ دا دي: **"عن معمر عن ابن طاؤس عن ابيه قال ما مشى رسول الله صلى الله عليه وسلم الا خلف الجنازة"**. (التعليق الصبيح)

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۵۲۲، رقم الحديث ۳۱۷۹، والترمذي في السنن ۳/۳۲۹ رقم الحديث ۱۰۰۷، والنسائي ۴/۵۶ رقم الحديث ۱۹۴۴، وابن ماجه ۱/۴۷۵ رقم الحديث ۱۴۸۲.

**جواب**: د بحث د لاندې حديث فعلي دی او د حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث قولي دی او په حديث قولي او فعلي کې چې کله تعارض راشي نو ترجيح حديث قولي ته ورکول کېږي. او د جنازې ته د مخکې مخکې تللو روايات نو د بيانِ جواز لپاره دي. او بهتره هم دغه ده چې د جنازې نه شا ته تلل وشي. بهرحال دا د اولی او غير اولی مسئله ده. دومره غټ اختلاف نه دی.

## د جنازې پسې وروسته تلل افضل دي

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْجَنَازَةُ مَتْبُوعَةٌ |
| عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې جنازه متبوع وي هغه |
| وَلَا تَتْبَعُ لَيْسَ مَعَهَا مَنْ تَقَدَّمَهَا.[1] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو ماجد الرّاوي رجل مَجْهُول. |
| څوک د دې سره نه دی چې هغه ترينه مخکې لاړشي امام ترمذي ويلي چې ابو ماجد راوي مجهول دی. |

## جنازې ته اوږه ورکول د مړي حق دی

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً |
| د ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي: کوم سړی چې د جنازې سره وي |
| وَحَمَلَهَا ثَلَاثَ مِرَارًا: فَقَدْ قَضَى مَا عَلَيْهِ مِنْ حَقِّهَا". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا |
| او هغه او چته کړي نو په تحقيق سره د هغه حق يې ادا کړو کوم چې په ده باندې ؤ. امام ترمذي ويلي چې دا |
| حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[2] وَقَدْ رَوَى فِي شَرْحِ السُّنَّةِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَمَلَ جَنَازَةَ |
| حديث غريب دی. د روايت تحقيق په شرح السنة کې شو چې نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او چته کړه جنازه د |
| سَعْدِ ابْنِ مُعَاذٍ بَيْنَ الْعَمُوْدَيْنِ. |
| سعد بن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دوه لرګو په مينځ کې. |

## سپرلی باندې جنازې سره تلونکي ته د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تنبيه

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ فَرَأَى نَاسًا |
| د ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يوې جنازې لپاره ووتلو نو وي ليدل څه خلک |

---

(۱) أخرجه أبوداود ۳/۲۵۲د، رقم الحديث ۳۱۸٤، والترمذي في السنن ۳ ۳۳۲ رقم الحديث ۱۰۱۱، وأحمد في المسند ۱/٤١٥

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳ ۳۵۹ رقم الحديث ۱۰٤۱

رُكْبَانًا فَقَالَ: أَلَا تَسْتَحْيُونَ ؟ إِنَّ مَلَائِكَةَ اللهِ عَلَى أَقْدَامِهِمْ وَ أَنْتُمْ عَلَى ظُهُورِ

سپاره نووې فرمايل آيا تاسو د فرښتو نه حيا نه كوئ چې هغوې په خپلو خپو رواني دې او تاسو په شاهګانو

الدَّوَابِّ.(۱) وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: وَقَدْ رَوى عَنْ ثَوْبَانَ مَوْقُوفًا

د څاروؤ باندې ياست.

﴿۲۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ(۲).

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جنازه باندې سورة فاتحه ولوستله

﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى

دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كوم وخت چې تاسو مونځ كوئ په

الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ.(۳)

مړې باندې نو خالص كړئ د هغه لپاره دعاء.

## د جنازې جامع دعاء

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى عَلَى الْجَنَازَةِ قَالَ:

دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې كله د جنازې مونځ كولو نو فرمايل به يې:

اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَ مَيِّتِنَا وَ شَاهِدِنَا وَ غَائِبِنَا وَ صَغِيرِنَا وَ كَبِيرِنَا

اى الله! بخښنه وكړه زمونږ ژوندو، زمونږ مړو، زمونږ حاضرو، زمونږ غائبو، زمونږ وړو، زمونږ غټو، زمونږ

وَ ذَكَرِنَا وَ أُنْثَانَا. اَللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ

سړو او زمونږ ښځو ته. اى الله! ته چې په مونږ كې څوک ژوندى ساتي نو هغه په اسلام باندې ژوندى وساته

وَ مَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِيمَانِ. اَللَّهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ

او زمونږ نه چې څوک وژني نو هغه په ايمان باندې ووژه. اى الله! مونږ د ده د ثواب نه مه محروم كوه او د ده

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵۲۱/۳، رقم الحديث: ۳۱۷۷، والترمذي في السنن ۳۲۳/۳ رقم الحديث ۱۰۱۲، وابن ماجه ۴۷۵/۱ رقم الحديث: ۱۴۸۰.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۴۵/۳ رقم الحديث: ۱۰۲۶، وابن ماجه ۴۷۹/۱ رقم الحديث: ۱۴۹۵.

(۳) أخرجه أبوداود في السنن ۵۳۸/۳، رقم الحديث: ۳۱۹۹، وابن ماجه ۴۸۰/۱ رقم الحديث: ۱۴۹۷.

وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهُ . وَ رَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ إِبْرَاهِيمَ الْأَشْهَلِيِّ عَنْ أَبِيهِ

نه وروسته مونږ په فتنه کې مه اچوه. او نسائي دابراهيم اشهلي نه روایت کړی ده دخپل پلار نه نقل کړې

وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ عِنْدَ قَوْلِهِ : وَ أُنْثَانَا . وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ : فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِيمَانِ

دي او دهغه روایت په واُنثانا باندې پوره شوا و دابوداؤد دروایت کې دي ژوندی وساته هغه په ایمان باندې

وَ تَوَفَّهُ عَلَى الْإِسْلَامِ . وَ فِي آخِرِهِ : وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهُ.[1]

او وفات کړې هغه په اسلام باندې او ددې حدیث په آخر کې داسې دي چې مونږ دده نه وروسته مه گمراه کوه.

**توضیح**: دا د جنازې ډیره ښه او جامع دعا ده. په دې ژوندو، مړو، حاضرینو، غائبینو، ښځو، ماشومانو او د غټو ټولو لپاره یو شان دعاء ده. په دې کې دا هم نشته دی چې مخې ته مړی څوک او څومره دي، سړی دی که ښځه که ماشوم او یا بوډه دی. او په نورو دعاگانو کې ضمائر دي. په هغې کې د مفرد او د جمعه ضمائر او مذکر او د مؤنث ضمائر دي فرق کول په کې ضروري وي. همدغه وجه ده چې په حرمینو کې کله د جنازې لپاره اعلان کېږي نو دا هم ورته واضحه کوي چې مړي سړی دی او که ښځه، یو دی که ډیر دي. (المرقات: ۱۶۱/۴).

د احنافو د عوامو او د خواصو په نزد په ټولو جنازو کې همدغه دعا لوستل کېږي. اګر که آخري دوه جملې چاته یادې نه دې "اللهم لاتحرمنا اجره ولا تفتنا بعده" بهرحال احنافو علماؤ ته په کار دې چې د عربو په شان هغه دعاګانې هم وواېي چې په حدیثونو کې ذکر دي هغه ډیرې ښې دعاګانې دي. (المرقات ۴/۱۶۲).

## دیو مړي دپاره د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاص دعاء

﴿۳۰﴾ وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ

د واثله بن اسقع رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته مونځ وکړو د مسلمانانو په یو

فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ : اللَّهُمَّ إِنَّ فُلَانَ بْنَ

مړي باندې ما دنبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي چې فرمایل به یې: ای الله! په تحقیق سره د فلانی ځوی

فُلَانٍ فِي ذِمَّتِكَ وَ حَبْلِ جِوَارِكَ فَقِهِ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَ عَذَابِ النَّارِ وَ أَنْتَ أَهْلُ

د فلانې ستا په امان کې دی او ستا په پناه کې دی نو دا د قبر د فتنې نه وساته او د اور د عذاب نه او ته خاوند

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۴۴ رقم الحديث :۱۰۲۴ ،وابن ماجه ۱/۴۸۰ رقم الحديث :۱۴۹۸ ، وأحمد في المسند ۲/۳۶۸.

| الْوَفَاءِ وَالْحَقِّ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه (۱) |
|---|
| د وفا او د حق مالک يې اى الله! ده ته بخښنه وكړه او په ده رحم وكړه په تحقيق سره ته بخښونكى مهربان يې |

**توضيح** : **حبل جوارك**: حبل پړي ته وايي او جوار د ګاونډي په معنى كې دى. د دې جملې ډېرې معنې دي. مګر ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د دې جملې د ټولو نه ښه معنى دا ده چې د حبل نه قرآن كريم مراد واخستلى شي

﴿**واعتصموا بحبل الله**﴾ كې هم د **حبل** نه مراد قرآن كريم دى او د **جوار** نه مراد امان او حفاظت دى او دلته اضافت بيان دى. اصل مقصود **جوار** دى. حاصل د معنى داسې شو چې دا سړى قرآن عظيم په كلكوالي سره نيونكى دى هغه چې د امن او د سلامتۍ سبب او ذريعه ده.

**قه**: دا د امر صيغه ده معنى دا چې هغوى بچ كړه، زه پوهيږم چې د "**حبل جوارك**" آسان مطلب دا دى چې **حبل** د پړي او د قابو او نيولو په معنى كې دى. او د جوار معنى ګاونډي دى. مطلب دا شو چې دا سړى ستا د ګاونډ په كلكه رسۍ كې راغلى دى نو ځكه مونږ سفارش كوو. (المرقات ۴/۱۶۴).

| ﴿۳۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ |
|---|
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو د خپلو مړو د نيكيو ذكر كوئ. |
| وَ كُفُّوا عَنْ مُسَاوِيهِمْ .(۲) |
| او د هغوي د بدو د ذكر كولو نه ځان وساتئ. |

**توضيح** : **محاسن موتاكم**: يعنې د مړه شوي خلكو نيكۍ او خيرونه بيانوئ. خو د هغوى بدى د هغوى د مرګ نه وروسته مه بيانوئ. مثلاً يو سړى مړى لمبوي او هغې په مړي كې يو كرامت وليدلو يا د لمبولو نه بغير د مړي مخ پرق وو هلو يا يې خوشبو وكړه يا يې د لمبولو نه بغير بله خوشبويې وليدله نو هغه عوامو ته بيانول مستحب دي. خو كه په دې دوران كې د مړي نه بد بويې راووتله يا يې مخ تور شو او هغې وليدلو نو هغه عوامو ته ويل حرام دي. علماؤ ليكلي دى چې د مړو غيبت كول د ژوندو د غيبت كولو نه هم ډير قابل نفرت دى. (المرقات ۴/۱۶۴).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳ ۵٤۰، رقم الحديث ۳۲۰۲ ، وابن ماجه ۱ ٤۸۰ رقم الحديث ۱٤۹۹

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳ ۵۲۳، رقم الحديث ۳۱۹٤ ، والترمذي في السنن ۳ ۳۵۲ رقم الحديث : ۱۰۳٤ ، وابن ماجه ٤۷۹/۱ ، رقم الحديث ۱٤۹۱ .

## د جنازې په مونځ کې د امام د اودريدو ځاې

﴿۳۲﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ أَبِي غَالِبٍ قَالَ : صَلَّيْتُ مَعَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَلَى جَنَازَةِ رَجُلٍ

نافع رَحِمَهُ اللّٰهُ چې د هغې کنيت غالب دی وايي چې ما د انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د يوې جنازې مونځ (يعني د عبد الله

فَقَامَ حِيَالَ رَأْسِهِ ثُمَّ

ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جنازه) وکړه. انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (چې امام ؤ) د مړي سر ته اودريدو (او مونځ يې وکړو) بيا

جَاؤُوْا بِجَنَازَةِ امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَقَالُوا : يَا أَبَا حَمْزَةَ

خلکو د قريشو د يوې ښځې جنازه راوړله او وويل چې ای ابو حمزه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (دا د انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ کنيت دی)

صَلِّ عَلَيْهَا فَقَامَ حِيَالَ وَسَطِ السَّرِيرِ

د دې جنازه وکړه. نو انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د تخت (چې جنازه پرې پرته وه) د مينځنۍ برخې مخې ته اودريدو

فَقَالَ لَهُ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ : هٰكَذَا رَأَيْتَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

(او مونځ يې وکړو، دا چې وليدل شو) علاء ابن زياد وويل چې "آيا تا نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (جنازې

قَامَ عَلَى الْجِنَازَة مَقَامَكَ مِنْهَا ؟ وَ مِنَ الرَّجُلِ مَقَامَكَ

مونځ کې) داسې اودريدو باندې ليدلی دی لکه څنګه چې ته د دې ښځې د جنازې په مينځ او د سړي د جنازې

مِنْهُ؟ قَالَ : نَعَمْ . وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ نَحْوُهُ مَعَ زِيَادَةٍ وَفِيهِ: فَقَامَ عِنْدَ عجيزة الْمَرْأَةِ[1]

د سر مخې ته اودريدلي وې؟ حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې "آو".

**توضيح**: حديث ۱۲ کې په دې حديث کې بيان شوي مسئلې توضيح او تشريح شوې ده. دا حديث د شوافعو دليل دی.

**عجيزة**: وروستنۍ برخې ته عجيزه وايي چې د هغې ترجمه په کوناټو سره کېږي.

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/ ۵۳۳، رقم الحديث ۳۱۹۴، والترمذي في السنن ۳/ ۳۵۲ رقم الحديث ۱۰۳۴، وابن ماجه ۱/ ۴۷۹ رقم الحديث ۱۴۹۴.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## جنازې ته د اودريدو مسئله

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ : كَانَ سَهْلُ ابْن حُنَيْفٍ وَ قَيْس ابْن سَعْدٍ |
| عبد الرحمن ابن ابی ليلى رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يوه ورځ سهل ابن حنف او حضرت قيس ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په |
| قَاعِدَيْنِ بِالْقَادِسِيَّةِ فَمَرَّ عَلَيْهِمَا بِجَنَازَةٍ |
| قادسيه کې يو ځاې کې ناست وُ چې دهغوی مخې ته يوه جنازه تيره شوه چې په ليدلو سره يې دا دواړه |
| فَقَامَا فَقِيلَ لَهمَا : إِنَّهَا مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ أَيْ مِنْ أَهْلِ الذِّمَّةِ فَقَالَا : |
| اودريدل دوي ته وويل شو چې دا جنازه دزمکې والا يعنې دذمي ده؟ دواړو وويل چې (دغه شان يوه ورځ) |
| إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَرَّتْ بِهِ جَنَازَةٌ فَقَامَ فَقِيلَ لَهُ: |
| دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته يوه جنازه تيره شوه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د جنازې په ليدو سره اودريدو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| إِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ . فَقَالَ : أَلَيْسَتْ نَفْسًا ؟ .[1] |
| ته وويل شو چې دا خو ديهودي جنازه ده نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې (نو څه وشو) آيا دا زنده سرى نه دى؟ |

**توضيح : قادسيه:** د کوفې نه ۱۵ ميله وړاندې په عراق کې د يو ځاې نوم قادسيه دى. چرته چې د اسلام په دور کې د مجوسيانو سره صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ يو تاريخي جنګ کړى وُو او فتح يې موندلې وه. مشري د حضرت سعد بن ابن وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس کې وه. (المرقات ۴/۱۶۶).

**فقاما:** دا دوړه حضرات د جنازې لپاره ځکه اودريدل چې هغوى ته د هغه حکم د موقوف او د منسوخ علم نه وُو شوى. د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قول مطابق دا قول منسوخ شوى دى. (المرقات ۴/۱۶۷).

**من اهل الارض:** زمکې والا ذمي خلکو ته وايي ځکه دې خلکو به د مسلمانانو په زمکو کې کارونه کول او هغه به يې سنبالول يا دوې ته اهل الارض ځکه ويل کېږي چې دا خلک ذميان وُو. بې اختياره وُو ګويا کې په ذلت او رسوائى کې دا خلک منډل شوي وُو. نو ځکه ورته د زمکې والا وويل شو. جنازې سره د ودريدلو يا نه ودريدلو مسئله مخکې تيره شوې ده. (المرقات ۴/۱۶۶).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۱۴/۳ رقم الحديث : ۱۳۱۲.

## د يهوديانو مخالفت په هر شي کې کول په کار دى

﴿۳٤﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَبِعَ جَنَازَةً لَمْ

عباده ابن صامت رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به کله د جنازې سره تللو نو تره هغه وخت به نه

يَقْعُدْ حَتَّى تُوضَعَ فِي اللَّحْدِ فَعَرَضَ لَهُ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُودِ

کيناستو ترڅو چې به مړي به قبر کې نه ؤو کيخودل شوى (يوځل) يو يهودي عالم د نبي عليه السلام مخې ته

فَقَالَ لَهُ: إِنَّا هٰكَذَا نَصْنَعُ يَا مُحَمَّدُ

راغلو او عرض يې وکړو چې: اى محمد صلی الله علیه وسلم! مونږ هم داسې کؤو (ترڅو چې مړي په قبر کې نه وي

قَالَ: فَجَلَسَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کيخودل شوى مونږ ولاړيو) عباده رضي الله عنه وايي چې (ددې نه وروسته به) ناست ؤ نبي کريم صلی الله علیه وسلم

وَقَالَ: خَالِفُوهُمْ

(او دمړي ترخښولو پورې نه اودريدو) او دغه شان نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې تاسو مخالفت

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَبِشْرُ بْنُ رَافِعٍ الرَّاوِي لَيْسَ بِالْقَوِيِّ[1]

کوي د يهودو. امام ترمذي رحمه الله وايي چې دا حديث غريب دى او بشر ابن رافع راوي قوي نه دى.

**توضيح: فجلس:** يعنې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د يهوديانو په مخالفت کې د اودريدو په ځاې به بيا کيناستو ګوياکې د جنازې لپاره قيام نبي کريم صلی الله علیه وسلم ترک کړو چې يهودي سره په دې عمل کې مشابهت رانشي بلکې په هر شي کې د هغې سره مخالفت وي. نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم امت ته حکم وکړو "فخالفوهم" يعنې په دې عمل کې د يهودو مخالفت وکړى. (المرقات ۴/۱٦۷).

## د جنازې په ليدلو سره مه اودريږئ

﴿۳۵﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَنَا بِالْقِيَامِ فِي الْجَنَازَةِ

حضرت علي رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم مونږ ته حکم کولو د جنازې په ليدو سره د اودريدو

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۵۲۰، رقم الحديث: ۳۱۷٦، والترمذي في السنن ۳/۳٤۰ رقم الحديث: ۱۰۲۰، وابن ماجه ۱/٤۹۳ رقم الحديث: ۱۵٤۵.

| ثُمَّ جَلَسَ بَعْدَ ذٰلِكَ وَ أَمَرَنَا بِالْجُلُوسِ .[۱] |
|---|
| بيا (وروسته) به نبي كريم ﷺ كيناستلو او مونږ ته به يې هم د كيناستو د پاره ويل. |

## د جنازې د پاره اودريدل منسوخ دي

| ﴿۳۶﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ : إِنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِالْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ |
|---|
| محمد ابن سيرين رَحِمَهُ الله وايي چې يو ځل د حسن ابن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخې ته جنازه تيره |
| فَقَامَ الْحَسَنُ وَ لَمْ يَقُمِ ابْنُ عَبَّاسٍ |
| شوه نو حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (چې وليده نو) ودريدلو. مګر حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ونه دريدلو. |
| فَقَالَ الْحَسَنُ : أَلَيْسَ |
| حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (چې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا عمل وليدلو نو) هغې ته يې وفرمايل چې "آيا نه ؤ |
| قَدْ قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَهُودِيٍّ ؟ قَالَ : نَعَمْ |
| اودريدلي نبي كريم ﷺ د يو يهودي د جنازې په ليدو سره؟ ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب وركړو چې آؤ |
| ثُمَّ جَلَسَ.[۲] |
| (بيشكه نبي عَلَيْهِ السَّلَام ودريدلى ؤ) مګر وروسته به نبي عَلَيْهِ السَّلَام (د جنازې په ليدو سره) كيناستلو. |

**توضيح**: حضرت حسن بصري رَحِمَهُ الله په اول فعل باندې عمل كول غوښتل او د دليل په توګه يې همدغه عمل وړاندې كړو. حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې بيشكه نبي كريم ﷺ به په ابتداء كې د يهودي او غير يهودي د هرې جنازې لپاره ودريدلو. بيا وروسته نبي كريم ﷺ به نه اودريدو. د "**ثم جلس**" همدغه مطلب دى چې دا عمل بيا متروك شو. (المرقات ۴/۱۶۸).

## د يهودي د جنازې د پاره نبي كريم ﷺ ولې اودريدو

| ﴿۳۷﴾ وَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ |
|---|
| جعفر ابن محمد رَحِمَهُ الله (يعنې جعفر صادق رَحِمَهُ الله) د خپل پلار (محمد باقر رَحِمَهُ الله) نه روايت كوي چې |

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۸۲/۲.

(۲) يخرجه النسائي في السنن ۴۶/۴ رقم الحديث ۱۹۲۴.

| كَانَ | جَالِسًا | فَمُرَّ | عَلَيْهِ | بِجَنَازَةٍ |
|---|---|---|---|---|
| (يو ځل) حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (يو ځای) کې ناست ؤو. چې په مخه يې جنازه وړلی کيدله. هغه (چې | | | | |
| فَقَامَ | النَّاسُ | حَتّٰى | | |
| ددې مسئلې د منسوخې علم ورته نه ؤ نو جنازه ليدو سره) اودريدلي ؤ او تر هغه وخت پورې ولاړ ؤ چې | | | | |
| جَاوَزَتِ | الْجَنَازَةُ | فَقَالَ | الْحَسَنُ : | إِنَّمَا مُرَّ بِجَنَازَةٍ |
| تر څو دا جنازه تيره شوي نه وه حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی ته وويل چې: اصل خبره دا ده چې کله وړل کيده جنازه | | | | |
| يَهُودِيٍّ وَ كَانَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى طَرِيقِهَا جَالِسًا وَ كَرِهَ | | | | |
| ديو يهودي نو هغه وخت نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاره کې ناست ؤ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا خوښه نه کړه | | | | |
| أَن تَعْلُوَا رَأْسَهُ | جَنَازَةَ | يَهُودِيٍّ | فَقَامَ.[1] | |
| چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک نه پاس وي لهذا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اودريدو. | | | | |

**توضيح**: **فقال الحسن**: خلاصه دا چې په مدينه منوره کې يوه جنازه د خلکو په خوا تيريدله. خلک د جنازي لپاره اودريدل. حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ هم موجود ؤو خو ونه دريدلو بلکې په خلکو يې اعتراض وکړو چې تاسو ولې اودريدلی. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو ځکه ودريدلی ؤو چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاره کې ناستی ؤو او د يو يهودي جنازه وړلی کيدله نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مناسبه ونه ګڼله چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک د پاسه د يهودي جنازه تيره شي نو ځکه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ودريدلو. لهذا تاسو د ودريدلو کوشش مه کوی. (المرقات ۴/۱۶۸).

**سوال**: دلته دا سوال پيدا کيږي چې حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ ددې نه مخکې په حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې اعتراض کړی ؤ چې ته ولې اودريدلی لکه څنګه چې د دې حديث نه مخکې حديث کې واقعه تيره شوه. نو دلته په ودريدلو باندې ولې اعتراض کوي؟

**جواب**: حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ ته چې تر څو پورې د دې حکم د منسوخ کيدلو علم نه ؤو نو په دې باندې به يې عمل کولو خو کله چې ورته علم وشو او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل نو بيا حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ خپله منع شو. لکه څنګه چې دلته منع شو. دا خبره مخکې ليکلی شوي ده چې د جنازي لپاره د ودريدلو وجوهات مختلف دي. کله د حادثې فاجعې په وجه ودريدل په کار دي، کله د ملائکو د تعظيم او د اکرام

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ٤/ ٤٧، رقم الحديث ١٩٢٧.

په وجه کبري او کله د دې علت له وجې شوې دی چې په دې حدیث کې ذکر دی. نو که د څه وجوهاتو له وجې د قیام حکم موقوف شو نو بیا د نورو وجوهاتو په وجه هم باقي کیدلی شي. (المرقات: ۱۶۹/۴).

## د فرښتو په اکرام کې او دریږي

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾ وَ عَنْ أَبِي مُوسَى أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : إِذَا مَرَّتْ بِكَ |
| د ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: کله چې تیریږي ستاسو مخې ته |
| جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ أَوْ نَصْرَانِيٍّ أَوْ مُسْلِمٍ فَقُومُوا لَهَا فَلَسْتُمْ لَهَا |
| جنازه د یو یهودي او یا نصراني او یا د یو مسلمان نو د دې په لیدلو سره او دریږئ او تاسو د جنازې (د |
| تَقُومُونَ إِنَّمَا تَقُومُونَ لِمَنْ مَعَهَا مِنَ الْمَلَائِكَةِ .[1] |
| ادب او احترام) لپاره نه دریږئ بلکې تاسو د فرښتو (د تعظیم) لپاره ودریږئ چې د جنازې سره وي. |
| ﴿۳۹﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِرَسُولِ اللهِ فَقَامَ فَقِيلَ : |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یوه جنازه تیره شوه نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (چې ولیده) او درید و. صحابؤ وویل |
| إِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ |
| چې یا رسول الله! دا خو د یو یهودي جنازه ده (د دې په لیدو سره او درېدلو باندې یو هه نه شو) نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| فَقَالَ : إِنَّمَا قُمْتُ لِلْمَلَائِكَةِ .[2] |
| وفرمایل چې زه (د جنازې په احترام کې نه ؤم او درید لی بلکې زه) او دریدم د هغه ملائکو د تعظیم د پاره |
| (چې د جنازې سره وي) |

## جنازه کې کم نه کم درې صفونه جوړول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَعَنْ مَالِكِ بْنِ هُبَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَا مِنْ مُسْلِمٍ |
| مالک ابن هبیره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي چې فرمایل یې: کله |
| يَمُوتُ فَيُصَلِّي عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ صُفُوفٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا أَوْجَبَ . |
| چې یو مسلمان مړ شي او په هغه باندې د مسلمانانو د درې صفونو جنازه وکړي نو الله تعالی د ده د پاره |

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳۹۱/۴.

(۲) أخرجه النسائي ۱ /۴۴۷، رقم الحديث : ۲۰۵۵.

| |
|---|
| فَكَانَ مَالِكٌ إِذَا اسْتَقَلَّ أَهْلَ الْجَنَازَةِ |
| جنت او مغفرت واجب كړي. نو ځكه مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به چې (د جنازي په مونځ كې) لږ كسان (هم) وليدل نو |
| جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ صُفُوفٍ لِهٰذَا الْحَدِيثِ. وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ: قَالَ كَانَ مَالِكُ بْنُ هُبَيْرَةَ |
| د حديث په وجه به يې هغه په درې صفونو كې تقسيم كړل. د ترمذي په روايت كې دي چې مالك ابن هبيره |
| إِذَا صَلَّى عَلَى الْجَنَازَةِ |
| رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به كله د جنازي مونځ كولو (يعنې د جنازي د مونځ كولو اراده به يې كوله) او خلكو شمير به يې |
| فَتَقَالَّ النَّاسَ عَلَيْهَا جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ ثُمَّ قَالَ: |
| كم وليدل نو هغوى به يې په درې صفونو كې تقسيم كړل او ويل به يې چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه اوريدلي دي |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ صَلَّى عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ صُفُوفٍ أَوْجَبَ. |
| چې د كوم سړي د جنازي د مونځ درې صفونه وكړي شي نو الله تعالى د هغې لپاره جنت واجب كړي. |
| و روى ابن ماجه نحوه (١) |
| ابن ماجه هم دا روايت داسي نقل كړي دي. |

**توضيح**: **الاوجب**: اسلامي عقائدو كې دا خبره ذكر ده چې په الله تعالى باندې د چا حكم واجب نه دى، نه الله تعالى چاته جواب وركولو مسئول دى، نه د څه وجي نه مجبور دى. هغه احكم الحاكمين دى. په هغې باندې د چا حكم واجب نه دى. او ... چې په دې حديث كې د درې صفونو باره كې فضيلت ويل شوى دى چې په الله تعالى باندې د هغه سړي مغفرت واجب شي. د دې مطلب دا دى چې دا احسانًا او اكرامًا خپله الله تعالى پخپله ذمه وارى كې اخستى دى. خپله يې وعده كړي ده او د وعدې - پوره كولو يې هم وعده كړي ده. لهذا د بل چا د طرفه لازم كړى شوي نه ده بلكې د رحمت او د شفقت په توګه يې خپله په خپل ځان لازم كړي ده. د اوجب او وجب همدغه مطلب دى. (المرقات: ۷۰/۴).

علامه كرماني رَحِمَهُ اللهُ ليكلي دي چې په جنازې كې د ټولو نه افضل هغه صف دى چې د ټولو په آخر كې وي ځكه اسلام په پوره توحيد قائم دى. مسلمان چې نيت وترې اګر كه د مړي لپاره دعا كوي خو د مړي جسد مخي ته پروت وي. لهذا د جنازي په ابتدائى صفونو كې د دې وجه نقص راغلو. كه كوم كافر دا

---

(١) أخرجه أبوداود في السنن ٥١٤/٣، رقم الحديث ٣١٦٦، والترمذي في السنن ٣٤٧/٣ رقم الحديث: ١٠٢٨، وابن ماجه ٤٧٨/١ رقم الحديث: ١٤٩٠.

ووینې نو ضرور به دا خیال کوي چې دا خلک د خپلو مړو عبادت کوي. د دې تشبیه په وجه د اول صف درجه کمه شوه. (المرقات ۴/۱۷۰).

﴿۴۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ :

ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د جنازې په مونځ

" اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبُّهَا وَ أَنْتَ خَلَقْتَهَا وَ أَنْتَ هَدَيْتَهَا إِلَى الْإِسْلَامِ

کې دا دعاء کوله: ای الله! ته د دې پروردګار یې. تا پیدا کړې دی او تا دې ته د اسلام هدایت کړی دی او

وَ أَنْتَ قَبَضْتَ رُوحَهَا وَ أَنْتَ أَعْلَمُ بِسِرِّهَا

اوس تا دده روح قبض کړی دی (ای رب العالمین) نو دده په باطن باندې دټولو نه ډیر پوهیدونکی یې او

وَ عَلَانِيَتِهَا جِئْنَا شُفَعَاءَ فَاغْفِرْ لَهُ.[1]

دده په ظاهر باندې هم (ای الله) مونږ د دې بنده د شفاعت لپاره حاضر شوي یو ته دا وبخښې.

﴿۴۲﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ: صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَبِي هُرَيْرَةَ عَلَى صَبِيٍّ لَمْ يَعْمَلْ خَطِيئَةً

سعید ابن مسیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (یو ځل) ما ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې د یو داسې هلک جنازه وکړه چې

قَطُّ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ : اللَّهُمَّ

دهغه نه کله هم ګناه نه وه شوي. نو د ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه (په مونځ کې) دا دعا واوریدله چې "ای الله!

أَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.[2]

دې ماشوم ته د قبر د عذاب نه پناه ورکړې.

**توضیح : خطیئة قط:** ښکاره خبره ده چې د ماشوم ګناه نه وي او هغه مرفوع القلم وي. لهذا دا ویل چې هغې کله هم ګناه نه وه کړې هم دغه مطلب دی چې که هغه ګناه هم وکړي نو د هغه ګناه معاف ده. (المرقات ۴/۱۷۱).

**فسمعته:** د تعلیم لپاره حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زوره دعا غوښتلې ده. (المرقات ۴/۱۷۱).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵۳۷/۳، رقم الحدیث ۳۲۰۰، وأحمد في المسند ۴۵۸/۲

(۲) أخرجه مالک في الموطأ ۲۲۸/۱ رقم الحدیث ۱۸ من کتاب الجنائز.

**من عذاب القبر**: د دې مطلب دا دی چې په قبر کې چې کوم وحشت ناکه منظر وي، يو اځې والې وي، غم او خفګان وي د هغې نه دې ماشوم حفاظت وکړي او د قبر د عذاب د ورکولو نه يې وساتي.
د ماشوم نه به په قبر کې پوښتنې کېږي او که نه؟ نو راجحه همدغه ده چې پوښتنې به ترې نه، نه کېږي. ځينې علما، د دې قائل دي چې پوښتنې به ترې کېږي. والله اعلم.

## د ماشوم د جنازې دعاء

﴿۴۳﴾ وَ عَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ د تعليق په طريقه (يعنې بخاري د ترجمة الباب کې بغير د سند نه دا حديث) نقل کړی

قَالَ : يَقْرَأُ الْحَسَنُ عَلَى الطِّفْلِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَ يَقُولُ :

دی چې "حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ د ماشوم په جنازه کې د تکبير اولی نه وروسته د (سبحانک اللهم

اللَّهُمَّ

الخ په ځای) سورة فاتحه لوستله. او (د دريم تکبير نه وروسته به يې) دا دعا کوله چې ای الله دا ماشوم

اجْعَلْهُ لَنَا سَلَفًا وَ فَرَطًا وَ ذُخْرًا وَ أَجْرًا.(۱)

(د قيامت په ورځ) زمونږ پيشوا، خزانه او زمونږ لپاره د ثواب ذخيره کړې.

**توضيح**: د ماشوم د جنازې په مونځ کې دعا ويل کېږي "**اللهم اجعله لنا فرطا واجعله لنا اجرا وذخرا واجعله لنا شافعا و مشفعا**". زير بحث حديث کې لفظ د **سلف** راغلی دی او **سلف** د معنې په اعتبار سره نزدې نزدې دی. **سلف** هغه مال ته وايي چې د ضرورت په مطابق مخکې منزل ته وليږل شي چې هلته په کار شي او **فرط** هغه دستې ته وايي چې د فوجي قافلې نه مخکې ليږل کېږي چې هغه لاره هواره کړي.
مراد د ماشوم شفاعت دی چې دا زمونږ لپاره شفيع جوړ شي. (المرقات ۴/۱۷۲).

## د ناتمامه ماشوم جنازه نشته دی

﴿۴۴﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : الطِّفْلُ لَا يُصَلَّى عَلَيْهِ

جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل په (ناتمامه) ماشوم خودې نه مونځ و کړی شي

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۳/۳ تعليق باب قراءة الفاتحة من كتاب الجنائز.

وَلَا يَرِثُ وَلَا يُوَرَّثُ حَتّٰى

اونه دي دهغه وارث وتا کل شي اونه دې دده څوک وارث شي په دې شرط چې بهرته دراوتو په وخت کې

يَسْتَهِلَّ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ : وَلَا يُورث(١)

ترې آواز ونه وځي (يعني په هغه وخت کې دده دژوند آثار ونه موندلی شي چې تفصيل يې تير شوی دی)

## د جنازې په مونځ کې به هم امام او مقتدي برابر ولاړ وي

﴿٢٥﴾ وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقُومَ الْإِمَامُ

ابن مسعود انصاري رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ددې خبرې نه منع کړې ده چې اودرېږي امام

فَوْقَ شَيْءٍ وَ النَّاسُ خَلْفَهُ يَعْنِي أَسْفَلَ مِنْهُ .(٢)

(يوائې) د يو څيز د پاسه او مقتدي د هغې شاته (د امام نه لاندې) ولاړ وي.

**توضيح : فوق شيء:** لکه څنګه چې په فرائضو کې ضروري ده چې د امام او د مقتدي د ودريدلو ځای يو شان وي نو همدغه شان د جنازې په مونځ کې هم ضروري دي چې امام د خپلو مقتديانو په ډير اوچت ځای باندې نه وي او نه ډير خکته وي. (المرقات ۴/۱۷۳).

**خلفه:** ددې نه فقط شاته اودريدل مراد نه دي بلکې مطلب دا دی چې قوم د خپل امام نه ډير لاندې نه وي. دا حکم فقط د جنازې سره خاص نه دی بلکې د اتحاد او مکان دا مسئله د ټولو فرائضو لپاره هم ده چې ددې نه مخکې په تفصيل سره ليکلی شوي ده.

صاحب مشکوة د امام او متقدي د **مساوات في المکان** دا مسئله په **کتاب الجنائز** کې نقل کړې ده. په دې سره هغه دا اشاره کول غواړي چې څنګه چې دا مسئله په **کتاب الصلوة** کې د مونځونو په باره کې راغلي ده. همدغه شان دا مسئله د جنازو لپاره هم ده د مونځونو سره خاص نه ده.

الحمدلله نن د چهارشنبي په ورځ ۱۷ د رمضان ۱۴۲۴ه کې دا ليکل په مدينه منوره کې په مسجد نبوي کې پوره شو.

**(حضرت مولانا) فضل محمد يوسف زئی نزيل المدينة المنورة.**

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٣/٣٥٠ رقم الحديث :١٠٣٢ ،وابن ماجه ١/٤٨٣ رقم الحديث :١٠٣٢.

(٢) أخرجه أبوداود في السنن ٢/٣٩٩، رقم الحديث : ٥٩٧ .

٤ جمادي الثاني ١٤١٠هـ

# باب دفن الميت
## د تدفين بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ . ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنشَرَهُ﴾ (سورة عبس آيت: ۲۱-۲۲)

اسلام اولاد آدم او انسان ته د عزت مقام ورکوي. کله چې انسان مړ شي او د انسان ويلو مستحق هم نه وي بلکې د مړي په نوم سره د هغې پيژند نه کېږي. اسلام هغه وخت هم ديته د عزت مقام ورکوي. که يو انسان کافر هم وي بيا هم د هغې جسد خاکې د مارغانو د خوړلو او درنده ګانو د ماتولو نه بچ کړی او هغه په هغه خاوره کې خښ کړی د کومې خاوري نه چې دده خميره جوړه شوي وه او په کوم باندې په ژوند کې دا انسان مغروره کيدو. د دې برعکس هندوانو د غلط سوچ د لاندې انسان اور ته وسپارلو. حال دا چې همدغه انسان به بهانې جوړولي او خپل ځان به د اور او په هغې کې سوځيدلو نه ساتلو. اوس چې هغه داسې بې وسه شو نو ټول نزدې خپلوان راشي او هغه يې په اور کې وسځولو. که هندوان په مسلمانانو دا اعتراض کوي چې تاسو په خپلو لاسونو باندې خپل نزدې خپلوان د زمکې د لاندې خخ کړو او په هغې غټ غټ کاڼي کيخودل نو دا څنګه احترام دی؟

د دې جواب دا دی چې کله انسان خپله ژوندی وي نو د دغه خاوري، لرګي او د کاڼو له به يې د خپل وسيدلو ليپاره کورونه جوړول او په هغې کې به وسيدلو. قبر هم بالکل د کور په شان دی چې د هغې دننه د پريوتلو ګنجائش شته دی. خو اوس مړي ته د تللو راتللو او پاسيدلو او کيناستلو ضرورت نشته او نه د هغې په اوس کې شته دی. لهذا د هغې د ضرورت مطابق دا کور باکل مناسب دی. اګر که نفس يې په کې تنګ دی. خو که د انسان ايمان وي او اعمال يې ښه وي نو همدغه تنګ کور به تاحد نظر د دې ليپاره فراخه کړی شی. بهرحال اسلام د رحمت دين دی او د دې ټول احکامات د فطرت مطابق دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ
### لحد جوړول افضل دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ فِي مَرَضِهِ الَّذِيْ |
| عامربن سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه روايت کوي چې سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه په خپل هغه بيماری کې |
| هَلَكَ فِيهِ: أَلْحِدُوا لِي لَحْدًا وَانْصِبُوا عَلَى اللَّبِنِ نَصْبًا |
| چې په کومه کې دامړ شوی ؤويل چې زما دښخولو ليپاره لحد جوړ کړي او په ما باندې کچه خښتې ودروئ |

| كَمَا صُنِعَ بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ. [1] |
| --- |
| لکه څنګه چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم لپاره شوي ؤ. |

**توضیح : لحدا:** قبر د جوړولو دوه طریقې دي یو لحد دی چې د بغلي قبر په نوم مشهور دی او دویم شق او د صندوق قبر په نوم مشهور دی. (المرقات ۴/۱۷۴).

لحد او د بغلي قبر دا طریقه وي چې اول په زمکه کې تر یو حده پورې یو کنده ویستلی شي او بیا د قبلې اړخ ته لحد، سوری، غار او طاقچه جوړه کړي. په دې طاقچه کې مړی کیخودل کېږي. او مخې ته پرې کاڼې کیخودل شي او بند کړی شي او بیا چې کومه کنده ویستلی شوې وه چې په خاورو ډکه کړي. د زمکې نه لیشت برابر او چت دا د اوښ د کوهان په شان جوړ کړي. د لحد د بره د کاڼو سل د کیخودلو ضرورت نشته دی.

او د شق طریقه دا وي چې په زمکه کې تر یو حد پورې کنده ویستلی شي. او د هغې دننه په غاړو کې دیوالونه جوړېږي او که ضرورت وي نو په مینځ کې مړی کېږدي او د کاڼو غټې غټې تختې ایخودل کېږي. د زمکې نه یې د یو لیشت په برابر اوچت کړي او د اوښ د کوف په شان یې جوړ کړي.

دا دواړه طریقې په اسلام کې جائز دی. خو که زمکه مضبوطه وي او لحد جوړولو کې تکلیف نه وي نو د شق نه لحد افضل دی. حدیث ۱۹ د دې په فضیلت باندې واضحه دلیل دی.

نبي کریم صلی الله علیه وسلم د قبر باره کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم په رائی کې اختلاف شوی ؤ. چې لحد جوړ کړی شي یا شق جوړ کړی شي. بیا مشوره په دې باندې وشوه چې که ابو طلحه چې به لحد جوړولو کې ماهر ؤ اول راغلی نو لحد به جوړېږي او که ابو عبیده بن الجراح رضي الله عنه چې د شق په جوړولو کې ماهر ؤ او راغلی نو شق به جوړېږي. نو ابو طلحه رضي الله عنه اول راغلی او هغې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم لپاره لحد تیار کړو او نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې په لحد کې خخ کړو او د لحد خله یې په کچه خختو سره بنده کړه. مخکې په حدیث ۸ کې دا قصه راروانه ده.

**حضرت سعد بن ابی وقاص** رضي الله عنه هم دغه وصیت کوي چې زما قبر جوړ کړی او بیا یې په کچه خختو سره بند کړی. (المرقات ۴/۱۷۴).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲|۶۶۵ رقم الحديث : ۹۰-۹۶۶، والنسائي ۴|۸۰ رقم الحديث :۲۰۰۷ ، وابن ماجه ۱|۴۹۶ رقم الحديث : ۱۵۵۶.

## په قبر کې کپړه يا بل څه خورول منع دي

| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : جُعِلَ فِي قَبْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطِيفَةٌ حَمْرَاء .(۱) |
|---|
| او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبر کې يو سره پيړ (ځادر) اچولی شوی ؤ. |

**توضيح** : **قطيفة حمراء**: د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو خادم ؤ چې د هغې نوم شقران ؤ. هغې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو څادر په پټه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبر کې ايخودی ؤ چې دا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څادر دی چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته يې څوک استعمال نه کړي خو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ډير سخت ورته لو چې دا کار دې ولي وکړو. ځينو علماؤ ليکلي دې چې کيدلی شي چې دا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيت ؤ خو علامه ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللهُ په استيعاب کې ليکلي دې چې دغه څادر په قبر باندې د خاورې اچولو نه مخکې مخکې رايستلی شوی ؤ. نو د اصحاب الجرح والتعديل د علماؤ دا شعر دی. (المرقات ۴/۱۷۵).

حافظ عراقي په خپل کتاب الفيه کې ليکي:

و فرشت في قبره قطيفة ۞ و قيل اخرجت و هذا اثبت

علماء ليکي چې په قبر کې د مړي د لاندې څادر او بل شی ايخودل يا خورول مکروه تحريمي دې ځکه په هغې کې بې ځايه مال ضايع کېږي.

## قبر د اوښ د کوب په شان جوړول افضل دي

| ﴿۲﴾ وَعَنْ سُفْيَانَ التَّمَّارِ : أَنَّهُ رَأَى قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مُسَنَّمًا .(۲) |
|---|
| د سفيان تمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې ده د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر وليدو چې د اوښ د کوهان په شان ؤ |

**توضيح**: **مسنما**: دا د سنام نه دی د کوف په معنی کې دی يعنې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر مبارک د کوف په شان ؤ. د امام مالک، امام احمد او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ مسلک همدغه شان دی چې د قبر مسنم کيدل يعنې د اوښ د کوف په شان جوړول افضل دي. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې قبر د مسطح افضل دی. جمهور فقهاؤ د بحث د لاندې حديث نه بغير د نورو ډيرو رواياتونو نه استدلال کړی دی. (المرقات ۴/۱۷۵).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۶۵ رقم الحديث :۹۱/۹۶۷، والترمذي ۳/۳۶۵ رقم الحديث ۱۰۴۸، وأحمد في المسند ۱/۳۵۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۰۰ رقم الحديث ۱۳۹۰

# قبرونه اوچت جوړول منع دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَبِي الْهَيَّاجِ الْأَسَدِيِّ قَالَ : قَالَ لِي عَلِيٌّ : أَلَا أَبْعَثُكَ |
| ابو الهیاج اسدی (تابعی) وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماته وویل چې آیا زه تا په هغه کار مامور نه کړم |
| عَلَى مَا بَعَثَنِي عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا |
| چې په کوم کار باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه مامور کړی ؤم؟ او هغه کار دا چې ته کوم تصویر ووینې |
| إِلَّا طَمَسْتَهُ وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ .[1] |
| نو هغه مه پرېږده بلکې هغه وران کړه او چې کوم قبر اوچت ووینې نو هغه برابر کړه. |

**توضیح** : **تمثال**: بت او تصویر ته **تمثال** وایي د خپل ذي روح شي تصویر ساتل حرام دی او د ذي روح تصویر لرې کول واجب دي. البته که تصویر دومره نری وي چې په زمکه باندې د ولاړ سړی د اندامونو سره تمیز امکان نه لري نو هغه تصویر د وعید نه مستثنی دی. او که د بند مهمې برخي په تصویر کې شامل نه وي نو هغه تصویر هم د وعید نه خارج دی. د مهمو برخو مطلب دا دی چې د هغې نه بغیر انسان ژوندی نه شي پاتې کیدلی. لکه سر او د سینې لاندې برخه.(المرقات ۴/۱۷۷).

**مشرفا**: اشراف د اوچتوالي او ورښکاره کیدلو په معنی کې دی. دلته اوچت جوړ شوي قبرونه مراد دي چې هغه دومره راګوزار کړه چې برابر شي. فقط د قبر نښانه پاتې شي چې د یو لیشت برابر وي او هم دومره اوچت والی مسنون دی. (المرقات ۴/۱۷۷).

یو کتاب دی چې د هغې نوم "ازهار" دی. د فقهې معتمد کتاب دی. په هغې کې لیکل شوي دي چې تر د یو لیشت په مقدار باندې قبر جوړول مستحب دي. د دینه زیات مکروه دي. هغه اوچته برخه راګوزارول مستحب دي. خو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر مبارک ګنبد د دینه مستثنی دی ځکه هلته کوم تعمیر وروسته نه دی جوړ شوی بلکې د اسلام حکم ؤ چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چرته مړ شو نو هملته د هغې خخول ضروري دي. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرګ د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حجره کې شوی ؤ او هم هتله ښخ کړی شو او د کور دننه دی په هغه باندې خلکو ته قیاس کول جائز نه دي. (المرقات ۴/۱۷۷).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۶۶ رقم الحديث :۹۳/۹۶۹، وأبوداود في السنن ۳/۵۴۸ رقم الحديث :۳۲۱۸ ، والترمذي ۳/۳۶۶ رقم الحديث ۱۰۴۹، وأحمد في المسند ۶/۲۹۹.

## پاخه قبرونه جوړول منع دي

| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده په قبر باندې د ګچ لګولو او په قبر د تعمير جوړولو |
| وَ أَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ. (۱) |
| او په قبر باندې د کيناستلو نه. |

**توضيح**: فقهاؤ ليکلي دي چې پوخ قبر جوړول، په هغې کې ګچ يا سيمنټ استعمالول ناجائز او مکروه تحريمي دي. دغه شان په قبر باندې ګنبد او قبې يا نور څه شي ودرول جائز نه دی. بلکې په مسلمانانو باندې د هغې راګوزارول واجب دي. اګر که قبر د جوماتد پاسه ولی نه وي جوړ شوی خو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر دد دې نه مستثنی دی. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيت دی يعنې د خصوصيت وجه داده چې شرعي قاعده ده چې نبي چرته مړ شي نو هم هلته ښخول کېږي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حجره کې مړ شوی ؤ. لهذا قبر يې د کور دننه دی. (المرقات ۴/۱۷۷).

علامه تورپشتي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د قبرونو د پاسه تعمير د جوړولو څه فايده هم نشته دی. او جاهليت د خلکو سره مشابهت دی چې حرام دی. د جاهيلت د دور خلکو به تر لسو (۱۰) ورځو پورې د مړي په قبر باندې سوری کولو. قبرونو باندې د تعمير په شان خيمه لګول هم ناجائز دي.

دغه شان په قبرونو باندې په ټولو صورتونو کې د کيناستلو ممانعت دی او نه د قبرونو اړخ ته مونځ کول جائز دي. اهل بدعت د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حکم مخالف دي. (المرقات ۴/۱۷۷).

يو چا ريښتيا ويلي دي:

زندگی اس کی ہے ملت کے لئے پیغام موت ✿ کر رہا ہو جو بجائی کعبہ قبروں کا طواف

## په قبرونو مه کينئ او نه د قبر مخې ته مونځ کوئ يو څو مسائل

| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ وَلَا |
|---|
| ابو مرثد غنوي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په قبرونو باندې مه کيني او مه د |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٦٦٧/٢ رقم الحديث ٩٧٠/٩٤، والترمذي ٣٦٨/٣ رقم الحديث ١٠٥٢، وابن ماجه ٤٩٨/١ رقم الحديث: ١٥٦٢، وأحمد في المسند ٢٩٩/٦.

| تُصَلُّوا إِلَيْهَا .(۱) |
|---|
| قبرونو طرف ته مونځ کوی. |

**توضیح** : **لاتجلسوا**: محقق ابن همام رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په قبرونو باندې کيناستل يا هغه ورانول ټول منع دي او مکروه تحريمي دي. د ښنو طريقه دا ده چې د هغه د خپلو خپلوانو قبرونو ته د رسيدلو لپاره بغير د تکلف نه د ښپو سره ورانوي. دا ډير غلط کار دی. (المرقات ۴/۱۷۸).

البته د ضرورت صورتونه دې نه مستثنى دي مثلاً د قبر د کنلو يا د مړي د ښخولو مجبوري وي نو هغه جدا خبره ده. قبر د تکيه په توګه استعمالول هم ناجائز دي. قبرستان کې استنجاء کول منع دي. قبرستان کې په ولاړه د دعا غوښتلو طريقه دا ده. ماثور دا دعا هم ده: "**السلام عليکم دار قوم مؤمنين وانا ان شاء الله بکم لا حقون**". لاندې ذکر شوي دعا او سلام هم ثابت دی: "**السلام عليکم يا اهل القبور يغفر الله لنا ولکم انتم سلفنا ونحن بالاثر وانا ان شاء الله بکم للاحقون**".

**ولا تصلوا اليها**: علماؤ ليکلي دي چې که يو سړی د قبر او د صاحب قبر د تعظيم په خاطر د قبر اړخ ته مونځ کوي نو دا صريح کفر دی او که د صاحب قبر يا د قبر عظمت يې منظور نه وي نو بيا د قبرونو اړخ ته مونځ کول مکروه تحريمي دی. دغه شان قبرونه خکولول او د هغې نه ګير چاپيره طواف کول منع دي.

*زندگی اس کی ہے ملت کے لئے پیغام موت ✿ کر رہا ہو جو بجائی کعبہ قبروں کا طواف*

## په قبر باندې کيناستونکي د پاره سخت وعيد

| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَأَنْ يَجْلِسَ أَحَدُكُمْ عَلَى جَمْرَةٍ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل که څوک په تاسو کې انګار باندې کيني |
| فَتُحْرِقَ ثِيَابَهُ فَتَخْلُصَ إِلَى جِلْدِهِ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَجْلِسَ عَلَى قَبْرٍ .(۲) |
| او انګار دده جامې وسوځوي او د هغې بدن ته ورسېږي نو دا دده نه بهتر دې چې هغه د قبر د پاسه کيني. |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۶۸ رقم الحديث: ۹۷/۹۷۲، وأبوداود في السنن ۳/۵۵٤ رقم الحديث ۳۲۲۹ والترمذي ۳/۳٦۷ رقم الحديث: ۱۰۵۰.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۶۷ رقم الحديث: ۹۶/۹۷۱، وأبوداود في السنن ۳/۵۵۳ رقم الحديث: ۳۲۲۸، وابن ماجه ۱/٤۹۹ رقم الحديث: ۱۵۶۶.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر لحدؤ

﴿۸﴾ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ : كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا

عروه بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې په مدينه كې دوه كسان ؤو (چې قبرونه به يې كنستل) په هغې كې يو كس

يَلْحَدُ وَ الْآخَرُ

(ابو طلحه انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) چې بغلي قبرونه به يې ويستل او دويم كس (ابو عبيده بن الجراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

لَا يَلْحَدُ .

ؤ) چې بغلي قبرونه به يې نه كنستل (بلكې صندوقي قبر به يې ويستلو) نو كله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفات شونو

فَقَالُوا : أَيُّهُمَا جَاءَ أَوَّلًا عَمِلَ عَمَلَهُ .

صحابه كرامو (په متفقه توګه) دا وويل چې په دې دواړو كې چې كوم اول راغلى نو همغه قبر به كني

(يعنې كه ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اول راغى نو بغلي قبر به كني او كه ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اول راغى نو صندوقي قبر

فَجَاءَ الَّذِيْ يَلْحَدُ فَلَحَدَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ .(۱)

به كني) آخر دا چې د بغلي قبرو الا كس اول راغې او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره يې بغلي قبرو كنستلو.

## د لحد فضيلت

﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اللَّحْدُ لَنَا

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل لحد (بغلي قبر) زمونږ د پاره دی

وَ الشَّقُّ لِغَيْرِنَا .(۲)

او شق (يعنې صندوقي قبر) د نورو د پاره دی.

**توضيح :** د دې حديث ډېر مطلبونه دي: اول مطلب دا دی چې لحد د امت محمدی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره دی او شق د مخكنيو امتونو د پاره ؤو. يعنې د هغوی شق ډېر خوښ ؤ او زمونږ لحد ډېر خوښ دی. دويم

(۱) أخرجه البغوي في شرح السنة ۳۸۸/۵ رقم الحديث :۱۵۱۰.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵۴۴/۳، رقم الحديث : ۳۲۰۸ ، والترمذي في السنن ۳۶۳/۳ رقم الحديث :۱۰۴۵ ، والنسائي ۸۰/۴ رقم الحديث :۲۰۰۹، وابن ماجه ۴۹۶/۱ رقم الحديث :۱۵۵۴ .

مطلب دا دی چې لحد زمونږ لپاره دی يعني د انبياء کرامو لپاره لحد دی او شق د غير انبياؤ لپاره دی. دريم مطلب دا دی چې لحد زمونږ لپاره دی يعني د مديني د خلکو لپاره دی ځکه د هغه ځای زمکه د لحد لپاره مناسبه ده او شق د مديني نه بغير د مسلمانانو لپاره دی ځکه د هغه ځای زمکه د لحد لپاره مناسبه نه ده بلکي د شق لپاره مناسبه ده. بهرحال لحد افضل دی چې د هغې نوم بغلي قبر هم دی. د دې په مقابله کې شق دی چې هغې ته صندوق هم وايي.(المرقات ۴/۱۸۱).

## د قبر د ژور والي (ډوب والي) مقدار به څومره وي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ يَوْمَ أُحُدٍ : احْفُرُوا |
| هشام ابن عامر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د غزوۀ احد په ورځ وفرمايل چې: قبرونه وکنئ او |
| وَ أَوْسِعُوا وَ أَعْمِقُوا وَ أَحْسِنُوا |
| قبرونه پراخه او ژور وکنئ او هغه ښه جوړ کړئ (يعني قبرونه هوار جوړ کړئ او د دننه نه نور شيان را پاک |
| وَ ادْفِنُوا الِاثْنَيْنِ وَ الثَّلَاثَةَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ وَ قَدِّمُوا |
| کړئ) او په يو قبر کې دوه دوه، درې درې خخ کړئ او په دې کې مخې ته هغه (يعني د قبلې طرف ته) کښږدئ |
| أَكْثَرَهُمْ قُرْآنًا . وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ إِلَى قَوْلِهِ وأحسنوا[1] |
| چې هغې ته قرآن ډير ښه ياد وي. |

**توضيح : يوم احد:** د يوم احد نه مراد جنګ احد دی. په دې غزوه کې ۷۰ صحابه کرام رضي الله عنهم شهيدان شوي ؤ او اکثر صحابه کرام رضي الله عنهم زخمي ؤ. ګرمي سخته وه او په سخته زمکه کې قبرونه جوړول ؤ. نو ځکه ديو لحد په طاقچه کې دوه دوه يا درې درې شهيدان خخ کړی شول او د اعزاز په توګه نبي کريم صلى الله عليه وسلم د قرآن حافظان او عالمان د نورو نه مخې د قبلې اړخ ته کيخودلو حکم وکړو. په دې باندې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم مقصد د قرآنِ عظيم تعظيم او د هغې اعزاز ؤ چې خلک ډير ډير قرآن ياد کړي.(المرقات ۴/۱۸۱).

**واعمقوا:** يعني قبرونه جوړ وکنئ. د دينه معلومه شوه چې ډوب او ژور قبر کنستل مسنون دي. په دې سره مړی د درندګانو او نورو افتونو نه محفوظ وي. (المرقات ۴/۱۸۱).

شيخ مظهر ويلي دي چې قبر دومره ژور کنستل په کار دې چې که يو سړي ديته کوز شي او په قبر کې

---

(۱) أخرجه أبوداو في السنن ۵۴۷/۳، رقم الحديث : ۳۲۱۵ ، والترمذي في السنن ۱۸۵/۴ رقم الحديث :۱۷۱۳ .

او دريږي او دواړه لاسونه پاس اوچت کړي نو د هغې د لاس ګوتي د قبر غاړو ته را ورسيږي. (المرقات ۴/۱۸۱).

## مړی د يو ځاي نه بل ځاي ته انتقالول څنګه دي؟

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ جَاءَتْ عَمَّتِي بِأَبِي لِتَدْفِنَهُ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې کله غزوۀ احد وشو نو زما ترور زما پلار (د هغې جسد) راوړو چې هغه ښخ کړي |
| فِي مَقَابِرِنَا فَنَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : رُدُّوا الْقَتْلَى |
| په هديره کې خودنبي کريم صلى الله عليه وسلم د طرف نه يوا وازکونکي اوازوکړو چې شهيدان ددوی دشهادت |
| إِلَى مَضَاجِعِهِمْ . (۱) |
| ځايونو ته ورسوی. |

**توضيح** : ردوا القتلى: يعنې نبي کريم صلى الله عليه وسلم حکم وکړو چې شهيدان هلته بيرته راوړی چرته چې هغوی شهيدان شوی ؤو. په جنګ احد کې ۷۰ صحابه کرام رضي الله عنه شهيدان شوي ؤو. د نا ارامی حالت ؤو. اول خو دا مشکله وه چې چا خپل خپلوان نه شو پيژندلی ځکه کفارو د هغوی شکلونه مبارک خراب کړي ؤو.(المرقات ۴/۱۸۳).

اوس چې چا هم خپل خپلوان وپيژندل نو هغوی زر اوچتول او قبرستان ته يې د وړلو کوشش شروع کړو. نو د يو څو شهيدانو جنازي چې کله اوچتي شوي نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم خبر شو نو د وړلو نه يې منع کړل او حکم يې وکړو چې وړل شوي شهيدان بيرته راوړی.

اوس دلته دا مسئله پيدا کيږي چې مړي د يو ځاي نه بل ځاي ته وړل جائز دي يا نا. څيني علماء وايي چې څنګه چې په دې حديث نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مړي د يو ځاي نه او د يو ښار نه بل ځاي ته د وړلو نه منع کړي ده. نو دې ممانعت د نظره د مړي انتقالول منع دي چا لره د مړي انتقالول په کار نه دي. د حضرت عائشه رضي الله عنها په حديث نمبر ۲۵ کې هم راغلي دي چې عبد الرحمن بن ابی بکر رضي الله عنه خلکو د مکې د چاپيريال نه مکې ته انتقال کړی ؤو. نو حضرت عائشه رضي الله عنه وفرمايل چې که زه خپل هلته وی نو ما به انتقالولو ته پريخي نه ؤو. (المرقات ۴/۱۸۳).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵۱۴/۳، رقم الحديث : ۳۱۶۵ ، والترمذي في السنن ۱۸۷/۴۰ رقم الحديث :۱۷۱۷ ، والنسائي ۷۹/۴ رقم الحديث :۲۰۰۴، وابن ماجه ۴۸۶/۱ رقم الحديث :۱۵۱۶.

کتاب ازهار چې د کفن دفن او موتی قبور متعلق یو مستند کتاب دی. په هغې کې لیکل شوي دي چې د مړي د یو ځای نه بل ځای ته د نه انتقالول باندې د بحث لاندې حدیث دلیل دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د انتقالولو نه منع کړې ده. (المرقات ۴/۱۸۲).

علامه یحیی رَحِمَهُ اللهُ وایي چې که د یو واقعي شرعي عذر او که معقوله مجبوري وي نو مړي د یو ځای نه بل ځای ته منتقل کولی شي. د دینه بغیر جائز نه دی. (المرقات ۴/۱۸۳).

محقق ابن همام رَحِمَهُ اللهُ وایي چې که په دوه میله فاصله باندې لرې مړی دی نو په دومره فاصله کې د مړي انتقالولو جائز دي. معلومه شوه چې په ډیره فاصله کې مړي انتقالول جائز نه دی. په همدغه سلسله کې دا مسئله ده چې مړی د ښخولو نه ورسته راایستل یا قبر کنستل جائز نه دي. مګر که څه شرعي مجبوري وی هغه جدا خبره ده. (المرقات ۴/۱۸۵).

صاحب هدایه د هدایه نه بغیر په بل کتاب کې لیکلي دي چې که یو سړی په ښار کې مړ شي نو هغه د هغه ښار نه بل ښار ته انتقالول مکروه دي ځکه دا یو بې فایده محنت او مشقت دی بلکې علماؤ لیکلي دي چې که د غسل او جنازي نه بغیر ریو مسلمان خخ کړی شوی نو بیا هم هغه د قبر نه راایستل جائز نه دي. (المرقات ۴/۱۸۴).

## مړی به قبر ته څنګه ور کوزولې شي

﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: سُلَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ.[1]

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (قبر ته د کوزولو وخت کې) د سر د طرف نه کوز کړی شو

**توضیح**: سل: قبر ته د مړي ختکولو دوه طریقې دي. یوه طریقه دا ده چې مړی د قبر چپ اړخ کې کیخودلی شي او بیا یې د مړې سر دې د قبر سر ته راوستلی شي او بیا په قبر کې کیخودلی شي. دې طریقې ته "سَلّ" وایي. انسلال د راخکلو په معنی کې دی. (المرقات ۴/۱۸۵). امرأ القیس وایي:

فأن کنت قد ساءتک مني خلیقة ❁ فسل ثیابي من ثیابک تنسل

قبر ته د کوزولو دویمه طریقه دا ده چې مړی د قبر هغه غاړې ته کیخودلی شي چې د قبلې اړخ ته وي او بیا د قبلې د اړخ نه هغه قبر ته کوز کړی شي. دواړه طریقې جائز دي. البته په دې کې لړ شان اختلاف دی چې کومه یوه طریقه بهتره ده.

**د فقهاؤ اختلاف**: شوافعو سل غوره ګڼلی دی او احنافو د قبلې د طرف نه مړی قبر ته کوزول غوره ګڼلی.

---

(۱) البیهقي في السنن والشافعي في مسنده ص ۳۶۰.

**دلائـل**: شوافعو حضراتو زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سل په ذریعه قبر ته خکته کړی شوی دی.
د احنافو دلیل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لاندنی روایت دی چې په هغې کې په واضحه توګه ذکر دي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو صحابي د قبلې د طرف نه ښخ کړی ؤ د سل طریقه یې نه وه کړي. (المرقات ۱۸۵-۴/۱۸۶).

**جواب**: د شوافعو د دلیل جواب احناف دا ورکوي چې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کټ د دیوال سره لګیدلی ؤ. کله چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مړ شو نو قبر هم هلته وکنستل شو. لهذا د قبلې د طرف نه ښخول ممکن نه ؤ نو هغه د یو عذر او د مجبورۍ صورت ؤ. او هغه د صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ یو عمل دی. او احنافو چې د کوم روایت نه استدلال کړی دی هغه د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل عمل او خپله طریقه وه. (المرقات ۱۸۵-۴/۱۸۶).

دریمه خبره دا ده چې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خخولو او په قبر کې کوزولو متعلق حدیثونو کې اضطراب دی. د ابو داؤد په یو روایت کې په واضحه توګه موجود دي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سل په ذریعه نه بلکې د قبلې د اړخ نه یې قبر ته کوز کړی ؤ. ابن ماجه هم داسې نقل کړي دي.
بهرحال که سل وي او د قبلې اړخ نه وي دواړه طریقې جائز دي. اختلاف په اولی او غیر اولی کې دی. په جواز او عدم جواز کې نه دی. په دې باب کې حدیث ۲۶ راروان دی چې د امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ مضبوط دلیل دی چې په هغې کې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو صحابي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خخولو کې د سل عمل اختیار کړی ؤ. (المرقات ۱۸۵-۴/۱۸۶).

## قبر ته د مړي کوزول د قبلې طرف نه ثابت دي

| ﴿۱۳﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ دَخَلَ قَبْرًا لَيْلًا |
|---|
| ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې یو ځل په شپه کې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د مړي ایخودلو لپاره) قبر ته کوز شو |
| فَأُسْرِجَ لَهُ بِسِرَاجٍ فَأَخَذَ مِنْ قِبَلِ الْقِبْلَةِ |
| نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره د یو ه بله کړی شوه نو نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مړی د قبلې د طرف نه ونیولو (او هغه |
| وَ قَالَ : رَحِمَكَ اللّٰهُ إِنْ |
| یې په قبر کې کیخودلو) او دا یې وفرمایل چې: الله دې په تا باندې رحم وکړي ته (د خدای په ویره) ډیر |

كُنْتَ لَأَوَّاهًا تَلَّاءً لِلْقُرْآنِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ فِي شرح السنة: إِسْنَاده ضَعِيف[1]

ژړېدونکی وې او د قرآن به ډېر لوستونکی وې (او دې دواړو په وجه ته د مغفرت مستحق یې).

**توضیح: اواها:** د خدای نه ډېر وریدونکي ته "اواه" وايي (المرقات ۱۸۶-۱۸۷/۴).

او "تلاء" تلاوت نه د مبالغي صیغه ده. ډېر تلاوت کونکي ته وايي. (المرقات ۱۸۶-۱۸۷/۴).

نبي کریم ﷺ د دې صحابي رضي الله عنه د دوه خوبیانو ذکر وکړو. یو دا چې دا سړي د خدای د ویرې نه ډېر ژړېدونکی ؤو. دویم دا چې دې صحابي رضي الله عنه د قرآن کریم د ډېر تلاوت کولو ذکر وکړو.

په دې حدیث کې په واضحه توګه باندې ذکر دي. چې "**فاخذ من قبل القبلة**" ددې نه د احنافو ائمؤ مسلک ثابتېږي چې په خخولو کې د سل د عمل په ځای د قبلي د اړخ نه ښخول افضل دي. اګر که دواړه طریقي جائز دي. احناف وايي چې چرته د سل د طریقي په حدیثونو کې ذکر دی نو هغه خو یا د ځای تنګی د وجې نه شوی دی لکه خپله د نبي کریم ﷺ په خخولو کې حائل واقع شوی وؤ، او یا د بیانِ جواز لپاره شوي ده چې د قبلي طرف ته اګر که غوره ده خو سل هم جائز ده. (المرقات ۱۸۷/۴).

## قبر ته د مړي د کوزولو په وخت کې دعاء

﴿۱٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتَ الْقَبْرَ قَالَ:

ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کریم ﷺ به مړي قبر ته کوزولونو دا به یې فرمایل (دا مړی مونږ)

بِسْمِ اللهِ وَ بِاللهِ وَ عَلَى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ . وَ فِي

د الله په نوم سره د الله د حکم مطابق او د رسول الله ﷺ په شریعت باندې (قبر ته کوزؤ) او په یو

رِوَايَةٍ : "وَ عَلَى سُنَّةِ

روایت کې دوعلی ملة رسول الله په ځای وعلی سنة رسول الله دی (یعني دلته خو د رسول الله ﷺ

رَسُوْلِ اللهِ.[2]

په شریت باندې منقول دی او په یو بل روایت کې د دې په ځای د رسول الله ﷺ سنت باندې نقل شوی

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۷۳/۳ رقم الحديث : ۱۰۵۷، والبغوي في شرح السنن ۳۹۸/۵ رقم الحديث : ۱۵۱٤.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵٤٦/۳، رقم الحديث : ۳۲۱۳ ، والترمذي في السنن ۳٦٤/۳ رقم الحديث : ۱۰٤٦ ، وابن ماجه ٤۹٤/۱ رقم الحديث : ۱۵۵۰ ، وأحمد في المسند ۲۷/۲.

## په قبر باندې خاوره اچول او اوبه شیندل سنت دي

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِیهِ مُرْسَلًا

امام جعفربن صادق رَحِمَهُ اللهُ : خپل پلار (حضرت امام باقر رَحِمَهُ اللهُ) نه دارسال په طریقه باندې نقل کوي چې

أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَثَّى عَلَى الْمَيِّتِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ بِيَدَيْهِ جَمِيعًا

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپلو دواړو لاسونو باندې درې ډک موټې په مړي باندې واچولې نو دغه شان يې

وَ أَنَّهُ رَشَّ عَلَى قَبْرِ ابْنِهِ إِبْرَاهِيمَ وَ وَضَعَ عَلَيْهِ حَصْبَاءَ.[1]

د خپل زوې (ابراهیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قبر د پاسه اوبه وشیندلې او د علامت لپاره) يې قبر باندې واړه کاڼي کیخودل

**توضیح :حثیات**: د ډک موټي خاوري اچولو لپاره د **حثیات** لفظ استعمال شوی دی. **حثیات** د ډکو لپو خاوره اچولو ته وایي. په مسلمانانو باندې لازم دې چې د ښخولو عمل پوره وکړي او د پوره کولو دا برخه ده چې په قبر باندې خاوره واچولی شي. اګر که کاریګر او مزدوران په بیلچو باندې خاوره اچوي. خو په عامو مسلمانانو باندې د مړي د احسان په توګه دا حق دی چې دده په قبر باندې یو موټی خاوره واچوي. د مسند احمد په یو ضعیف روایت کې راغلي دې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په قبرباندې خاوره اچولو وخت کې داسې عمل کولو چې کله به يې اولنی ډک موټی خاوره واچوله نو ﴿مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ﴾ به يې لوستلو او کله به يې دویم ډک موټی د خاورې واچولو نو ﴿وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ﴾ به يې ویل او په دریم ځل ﴿وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى﴾ به يې فرمایل. چې خاوره به پوره شي او قبر د اوښ د کوهان په شان جوړ شي. نو بیا مسنونه طریقه دا ده چې په قبرباندې اوبه وشیندل شي چې ګرد (دوړه) کیني او خاوره کلکه شي. خاوره اچول هم مسنون دې او اوبه شیندل هم مسنون دي.

**ابنه ابراهیم**: د مصر مقوقس بادشاه چې کله د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خط ولوستلو نو ډیر خوشحاله شو او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې یوه مصرۍ آسپه د تحفې په توګه باندې راولیګله. او یوه وینزه يې هم روانه کړه چې د هغې نوم ماریه قبطیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وه. دا د بریره خور وه. د ماریه قبطیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه حضرت ابراهیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پیدا شو او تر اولس (۱۷) میاشتو پورې ژوندی و بیا وفات شو. نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده په مرګ باندې ډیر وژړل. خپله يې هم وژړل او نورو يې هم وژړول او د هغه په قبر يې سره کاڼي کیخودل دا مسنون عمل اوس هم ژوندی دی.

---

(۱) أخرجه البغوي في شرح السنة ۴۰۱/۵ رقم الحديث :۱۵۱۵.

## قبرونه کنستل او لیکل پرې کول منع دي

| ﴿۱٦﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَن يُجَصَّصَ الْقُبُور وَ أَن |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې خبرې نه منع کړې ده چې په قبرونه گچ کړى شي او په |
| يُكْتَبَ عَلَيْهَا وَ أَن تُوْطَأَ. (۱) |
| هغې ليکل و کړى شي او و کنستلى شي. |

**توضيح : وان يجصص:** جص د گچ کولو يعنې قبر په سيمټ او يا په بل شي باندې د اخيړولو په معنى کې دي. د دې اخيړولو نه د ممانعت وجه دا ده چې قبرستان دار البلى او دار عبرت دى. هلته زينت او تکلف د اسراف سره سره بې فائدى هم دى. او اصل خبره دا ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده. که بله وجه وي او که نه وي، د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کول د ټولو نه غټه وجه ده. ځينې علماء د ختې اخيړولو ته جائز وايي خو علماؤ ته په کار ده چې د دې اجازت ورنه کړي. ګينې عوام به مخکې شي او نور څه عمل په کې شروع کړي. (المرقات ۴/۱۹۰).

**وان يكتب:** يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبرونو باندې د الله او د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نومونه او نو کتبې او شعرونه يا بل څه ليکل منع کړي دي. ځکه د الله او د هغې د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نومونو د بې احترامۍ خطر دى لکه سپي متيازي کوي. همدغه شان د قرآن آيتونه ليکل هم منع دي. علماؤ دا هم مکروه ليکلي دي چې د قبر پاسه کتبه ولګول شي او په هغې د مړي نوم يا نور څه وليکل شي. (المرقات ۴/۱۹۰).

بعضې علماء وايي چې که قبر نه لګ وړاندې مسافت کې د مړي متعلق په تخته باندې څه وليکل شي نو دا به جائز وي. بهرحال دا ټولي آنې بهانې دي دي. عوامو او خواصو ته په کار دي چې په قبرونو او دې په خوا او شا کې د ليکلو نه منع شي. نن سبا په دې اکتفا نه کوي بلکې چيرته چې په قبرونو باندې تعميرونه جوړوي، پکې هم ورسره لګوي او ځينو په قبرونو باندې ائير کنډيشن هم لګولى دى. "إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ".

**حکايت:** سعدي بابا رَحِمَهُ اللهُ په ګلستان کې د يوې غريبې جينې او د يو غريب هلک مناظره نقل کړې ده قصه داسې بيېنه شوه چې د غريبې جينې غريب پلار وفات شو او د مالداره هلک مالداره پلار هم مړ شو، غريبې جينۍ د خپل پلار قبر په ساده خاورې سره جوړ کړو او پرې يې ښودو، ليکن د مالداره سړي

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳٦۸ رقم الحديث: ۱۰۵۲.

زوي د مال په نشه کې د پلار په قبر باندې ډیره زیاته خرچه وکړه او د سنګ مرمر ولګولو سره یې په دې باندې کتبې هم ولګولې، او د قبر په غاړو باندې یې آیات او حدیث ولیکل او په مزیدارو کانړو سره یې د پلار قبر ښائسته کړو او بیا یې په طور د فخر سره دې غریبې جینې ته وویل چې ستا د پلار په قبر باندې د خاورو د یو څو ډیرو نه په غیر نور څه اینبي دي زما پلار قبر ته وګوره چې څنګه ښائسته مې جوړ کړې دی، دې غریبې جینۍ ورته وویل چې ستا د پلار په قبر باندې قرآني آیتونه لیکل شوي دي د دې بې احترامي او بې عزتي به وي په دې باندې به باران وریږي او په دې باندې به سپي متیازې کوي **واسګان بروشاشند**.

او چې کله د قیامت په ورځ خلک د قبرونو نه راپورته کیږي نو زما پلار به جنت ته رسیدلې وي او ستا پلار به لاتر دې وخته پورې د غټو غټو کانړو لاندې پروت وي.

## د مړي د ښخولو په وخت کې په قبر باندې د خاورې د اچولو د پاره اوبه شیندل

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَن جَابِر قَالَ: رُشَّ قَبْرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ كَانَ الَّذِي |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وایي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبر باندې اوبه وشیندلی شوي او هغه سړی |
| رَشَّ الْمَاءَ عَلَى قَبْرِهِ بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ بِقِرْبَةٍ بَدَأَ |
| چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبر یې اوبه شیندلي وي بلال بن رباح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وُ ده مشک راوړو او شروع |
| مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ حَتَّى انْتَهَى إِلَى رِجْلَيْهِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ[1] |
| یې کړل اوبه شیندل د سر د طرف نه په (قبر باندې) تر ښپو پورې یې (اوبه شیندلي او) لاړو. |

## د نښې د پاره په قبر باندې کانړي ایښودل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ أَبِي وَدَاعَةَ قَالَ: لَمَّا مَاتَ عُثْمَانُ ابْنُ مَظْعُونٍ أُخْرِجَ بِجَنَازَتِهِ فَدُفِنَ |
| مطلب بن ابی وداعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې کله عثمان ابن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مړ شو نو جنازه یې بهر راوړې شوه |
| أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَجُلًا |
| او ښخ کړی شو (کله چې د ښخولو نه فارغ شونو) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو کس ته حکم وکړو چې (یو غټ) |
| أَنْ يَأْتِيَهُ بِحَجَرٍ فَلَمْ يَسْتَطِعْ حَمْلَهَا |
| کانړي راوړه (چې په دې قبر باندې د علامت لپاره کیښودلې شي) هغه سړي هغه کانړي رااوچت نه کړی شو |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴۳۰۳، رقم الحديث ۳۲۰۶

| فَقَامَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ حَسَرَ عَنْ ذِرَاعَيْهِ . |
|---|
| نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د او چتولو لپاره خپله راپاڅيدو او خپل دواړو لاسونو لستوڼي يې راونغښتل |
| قَالَ الْمُطَّلِبُ : قَالَ الَّذِي يُخْبِرُنِيْ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| د حديث راوي حضرت مطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کوم سړي ماته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حديث بيانولو |
| كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِ ذِرَاعَيْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| هغه ويل چې ګوياکې او س ورخت کې هم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د مبارک لاسونو سپينوالي زما په نظر کې ګرځي چې |
| حِيْنَ حَسَرَ عَنْهُمَا ثُمَّ حَمَلَهَا |
| کله نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه پرانيستي ؤ بهرحال نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه کاڼي را او چت کړو او هغه يې د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د |
| فَوَضَعَهَا عِنْدَ رَأْسِهِ وَ قَالَ : أُعْلِمُ بِهَا قَبْرَ أَخِي |
| قبر سر ته کيخودو او وې فرمايل چې ددې په ذريعې سره مې د خپل ورور قبر معلوم وکړو. او س چې زما |
| وَ أُدْفِنُ إِلَيْهِ مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِي. [1] |
| په کور والو کې څوک مړ کيږي نو زه به هغه د دې سره ښخوم. |

**توضيح:** يو عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی چې امير المؤمنين او خليفه ثالث او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځوم ؤ. دويم عثمان بن طلحه حجبی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ؤ چې د صلح حديبيه په موقعه باندې کافر ؤ او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې د عمرة القضاء په موقع باندې د بيت الله د چابيانو ورکولو نه انکار کولو او بيا د مکې د فتحې په موقع باندې د هغې نه په زوره چابيانې واخستل شوې. او بيا ورته د الله په حکم سره بيرته ورکړل شوې او تر اوسه پورې د هغې د خاندان سره چابيانې دي، دا عثمان هم مسلمان شوی ؤ. دريم عثمان بن مظعون دی دا د هجرت نه مخکې ديارلسم (۱۳) انسان دی اسلام يې قبول کړی ؤ. او بيا مدينې منورې ته د هجرت نه پس په مدينه منوره کې مړ شو. دا په مهاجرينو کې اولني صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی چې په مدينه منوره کې مړ شو. او په جنت البقيع کې د ښخ کړی شوؤ نه اولنی انسان دی. دا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعي ورور ؤ او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورسره د زړه نه مينه وه په بدر کې شريک شوی ؤ.

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳ / ۵۴۳ رقم الحديث ۳۲۰۶

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د سر كېږدې د ورو ستنه مشكل كړى ؤ او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوښكې د هغې په مخ بهيدلې وې. د دې خوش قسمته په قبر باندې چې كوم كانړى د نبي د لاسه ايخودل شوى ؤ هغه په خپله نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ را اوچت كړى ؤ او را اوړى يې ؤ. د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوږ حضرت ابراهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فاميل اولنى سړى شو دى چې د عثمان بن مظعون خوا كې خخ كړى شو. (المرقات ۱۹۱-۱۹۲/۴).

**فلم يستطع**: يعني نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې د كوم كانړي د راوړو حكم وركړې ؤ هغه صحابي اوچت نه كړې شو نو بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لستوڼي را بډوهل او د كانړي يې په خپله را اوچت كړو چې د دې نه معلوميږي چې الله تعالى نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ډير طاقت وركړې وو دى د دې كانړي د ايخودو دوجهې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيان كړې دي يو دا چې د دې كانړي په لګولو سره د دې قبر پيژندګلو باقي پاتې كيږي، د دې نه معلوميږي چې د علامې او نښې په طور باندې كانړي ايښودل مستحب دي د دې د پاره چې د قبر نښه باقي پاتې شي. البته د غه نښې شركيا تو ته رسول جائز نه دي ليكن په طور د علامت او نښې د دې نه انكار كول هم غلط دي. د حرمين شريفين په دواړو هديرو كې نن سبا په حكومتي سطحه باندې د دې ځاى حكمرانانو د دې علامو د ختمولو پسې دي. د تركيانو په زمانه كې د كانړو دا نښانات يې ختم كړې دي خو د شاهي خاندان د كسانو د قبرونو حفاظت په سركاري اعزاز سره كوي ليكن د مشرانو صحابه كرامو په جنت البقيع كې د قبرونو هغه حال ته رسولې دي چې هغې ته په كتلو سره ژړا راځي .(المرقات ۱۹۱-۱۹۲/۴).

## د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قبرونه

﴿۱۹﴾ وَ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ : دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ

قاسم بن محمد رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) وايي چې زه د ام المؤمنين حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت كې حاضر

فَقُلْتُ : يَا أُمَّاهُ اكْشِفِي لِي عَنْ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ صَاحِبَيْهِ

شوم ما ورته وويل چې اى زما مورې! ما ته د زيارت كولو لپاره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د د دواړه ملګرو

فَكَشَفَتْ لِيْ عَنْ ثَلَاثَةِ قُبُورٍ لَا مُشْرِفَةٍ وَلَا لَاطِئَةٍ

قبرونه پرانيزدنو هغې درې واړه قبرونه پرانستل نو هغه درې واړه قبرونه نه ډير اوچت وو او نه بالكل د زمكې

مَبْطُوحَةٍ بِبَطْحَاءِ

سره لګيدلي ؤ (بلكې د زمكې نه بڅه اوچت ؤ) او په دې باندې (د مدينې منورې د نهر) كېږچ پيره كوم

| الْعَرْصَةِ الْحَمْرَاءِ.[1] |
| --- |
| میدان دی دديِ میدان سره کانړي خواره شوي ؤ. |

**توضیح**: حضرت قاسم بن محمد بن ابي بکر رَحِمَهُ اللهُ د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وراره دی. د مدینې د فقهاء سبعه نه دی. (المرقات ۴/۱۹۳).

**لامشرفة**: دا د اشراف نه دی او چت ترې نه مراد دی یعني دا قبرونه اوچت نه ؤو. (المرقات ۴/۱۹۳).

**لاطئة**: زمکې سره د نختي یا د یوشان والي په معنی کې دی. یعني بیخي د زمکې سره نه ؤو لګیدلي بلکې یو لیش ترینه اوچت ؤو. نن سبا چې کوم خلک قبرونه اوچت جوړوي هغوی ته شرم په کار دی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر متابعت نه کوي. (المرقات ۴/۱۹۳).

**مبطوحة**: د بطح نه دی. بطحاء وړو کاڼو ته وایي. العرصة: د څه خاص ځای نوم نه دی بلکې د مدینې کولاؤ میدان ته ویل شوی دی. (المرقات ۴/۱۹۳).

**الحمراء**: دا د **بطحاء** صفت دی یعني هغه کاڼي سر رنګي ؤو. دا طریقه هم په کلیوالو قبرونو کې کېږي. چې د ولي سره ښایسته رنګ په رنګ واړه کاڼي راجمع کړي او په نوي قبرونو یې کېږدی. (المرقات ۱۹۳-۴/۱۹۴).

د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر سره چې کوم دوه شعرونه لیکل شوي دې هغه دا دي:

**یا خیر من دفنت بالقاع اعظمه ❁ فطاب من طیبهن القاع و الاکم**

**ترجمه**: ای د ټولو نه بهترین انسان چې جسد مبارک یې په کولاؤ میدان کې خخ شوی دی چې د هغې د خوشبو نه د ټولي غونډۍ او میدان معطر شول.

**نفسي الفداء لقبر انت ساکنه ❁ فیه العفاف و فیه الجود و الکرم**

په دې قبر قربان شم چې په کوم کې ته ارام کوي. په حقیقت کې په دې قبر کې سخاوت او شرافت او عفت ښخ دی.

**افاطم ان جزعت فذاک عذر ❁ و ان لم تجزعي ذاک السبیل**

ای فاطمې!! که جزع فزع وکړي نو ته معذوره یې او که صبر وکړي نو خو ښه لار همدغه ده.

**فقبر ابیک سید کل قبر ❁ و فیه سید الناس الرسول**

---

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۵۴۹/۳، رقم الحدیث : ۳۲۲۰ .

ستا د پلار قبر په ټولو قبرونو کې سردار دی او په هغې کې د ټولو رسولانو سردار خښ دی.

## د جنازې لیدو سره چپ کیدل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ |
| براءبن عازب رضي الله عنه وايي چې مونږ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره لاړو د جنازې د يو سړي ته د انصارو نه |
| فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ وَلَمَّا يُلْحَدْ بَعْدُ فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ وَ |
| مونږ چې هديرې ته ورسيدونو قبر لا تيار شوی نه ؤ نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم قبلې طرف ته مخ کړو او مونږ |
| جَلَسْنَا مَعَهُ . وَ زَادَ |
| هم د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره (يعنې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم گير چاپيره) کيناستلو. او زيات کړې دي |
| فِي آخِرِهِ : كَأَنَّ عَلَى رُؤُسِنَا الطَّيْرَ.[1] |
| ابن ماجه د دې روايت په آخر کې دا الفاظ هم چې گويا کې زمونږ په سرونو باندې مارغان ناست دي يعنې |
| يعنې ډير چپ چاپ مو سرونه خکته کړي ناست ؤو. |

و اذا رأيت جنازةً محمولة ❁ فاعلم بانک هکذا محمول

## د مړي ځيرل منع دي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : كَسْرُ عَظْمِ الْمَيِّتِ |
| عائشه رضي الله عنها راويه ده چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل د مړي هډوکي ماتول (د گناه په اعتبار سره) |
| كَكَسْرِهِ حَيًّا .[1] |
| د ژوندي کس د هډوکي د ماتولو په شان دي. |

**توضیح : ککسره حیا:** يعنې څنګه چې د ژوندي سړي په ځيرلو سره هغې ته تکليف وي نو دغه شان د مړي په ځيرلو سره هم هغې ته تکليف وي. د ژوندي تحقير چې څنګه ممنوع دی همدغه شان د مړي هم ممنوع دی. يو ژوندي هډوکي ماتول چې څنګه منع دې همدغه شان د مړي هډوکي ماتول هم منع دي. په حديث باندې د نن سبا د فرنګيانو په جوړ شوي طبي نظام باندې سخته نفي او ترديد کيږي. نن سبا

---

(۱) أخرجه أبوداود ۵٤٦/۳، رقم الحديث ۳۲۱۲، نسائي ۷۸/٤ رقم الحديث ۲۰۰۱، ابن ماجه ٤٩٤/١ رقم الحديث: ۱۵٤٩، مسند أحمد ۲۸۷/٤.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵٤۳/۳، رقم الحديث ۳۲۰۷، وابن ماجه ۵۱٦/١ رقم الحديث: ۱٦۱٦، وأحمد في المسند ۱٦٨/٦.

په روغتونو کې حکه متونو د پخواني دور په شان د کفن غلا نه ستلي دي. هغه داسې چې کله به په قبرستان کې نوی مړی خخ کړی شو نو د شپې په وخت کې به دا ظالمان تلل او قبرونه به يې راوکنستل او مړي به يې روغتون ته وي وړل او بيا به يې په انساني مړو باندې تجربې کولې او د طبي مدرسو درندګانو به هغه مړي څيرل. او په دې طريقه به ډاکټران شول. (المرقات ۴/۱۹۵).

الله تعالی انسان عزتمند پيدا کړی دی ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ﴾ (سورة اسراء آيت ۷۰) د قرآن حکم دی. ځکه د شريعت ضابطه ده چې د هيڅ يو انسان د هغې د مرګ نه وروسته د هغې د جسم بې حرمتي ونه شي. هغه که کافر او که مسلمان. مثله کول يې حرام دي. خو په روغتونونو کې ورسره هغه لوبې کېږي چې د الله پناه. که څوک يې پوهه کوي نو زړ وايي چې مونږ د انسانانو خدمت کوو او دا ضروري دي. حال دا چې حقيقت دا دی چې دا يو تجارت دی او د دنيا د ګټلو يوه لويه ذريعه ده. خدمت نوم فقط د خدمت بدنامولو لپاره دی. که په حقيقت نظر واچولی شي نو څومره چې ډاکټران ډيرېږي هغه هومره مريضتياګاني هم ډيرېږي. نو د دغه کسب څه ضرورت دی چې په ابتدار کې يې د شريعت مخالفت کېږي او په انتهاء کې يې د صحت مخالفت کېږي.

په نتائجو باندې خبرې کوم د وقتي فايدو نه انکار نه کوم. د شريعت او د شرافت قرباني په ورکولو سره په عارضي فايده باندې ټپونه وهل د عقل مندو خلکو کار نه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د حضرت ام کلثوم رضي الله عنها د ښخولو واقعه

﴿۲۲﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : شَهِدْنَا بِنْتَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

انس رضي الله عنه وايي چې زه هغه وخت موجود وُم کله چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم لور (د عثمان رضي الله عنه بي بي

تُدْفَنُ وَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ جَالِسٌ عَلَى الْقَبْرِ

ام کلثوم رضي الله عنها) خاورو ته سپارل کېدله او نبي کريم صلى الله عليه وسلم د قبر سره ناست وُ. ما وليدل چې د

فَرَأَيْتُ عَيْنَيْهِ تَدْمَعَانِ فَقَالَ :

نبي عليه السلام سترګو او ښکې تويولې بهرحال (هغه وخت) نبي عليه السلام (صحابه کرامو) ته وفرمايل چې په

هَلْ فِيكُمْ مَنْ أَحَدٍ لَمْ يُقَارِفِ اللَّيْلَةَ ؟ . فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ :

تاسو کې يو داسې سړی شته چې نن شپه يې د خپلې ښځې سره همبستري نه وي کړې؟ ابو طلحه رضي الله عنه وويل

| أَنَا . قَالَ : فَانْزِلْ فِيْ قَبْرِهَا |
|---|
| چې زه یم. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (مړې په قبر کې د کیخودلو لپاره) هم ته قبر ته کوز شه نو دا |
| فَنَزَلَ فِيْ قَبْرِهَا .[1] |
| قبر ته کوز شو. |

**توضیح : بنت رسول الله**: د دینه مراد د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لور حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ده چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زوجه محترمه وه او د حضرت رقیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د مرګ نه وروسته د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نکاح کې شوه. (المرقات ۴/۱۹۵).

**تدمعان**: یعني نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر په غاړه ناست ؤ او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سترګو نه اوښکي رواني وي. معلومه شوه چې په اوښکو سره ژړل منع نه دي بلکي جائز دي. (المرقات ۴/۱۹۳).

**لم یقارف اللیلة**: یعني کوم سړي چې نن شپه د خپلي ښځې سره جماع نه وي کړي هغه مخکې راشي او ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قبر ته کوزه کړي. د **مقارفه** متعارفه معنی د جماع ده. اګر که د ګناه کار لپاره هم دا لفظ استعمالیږي. دلته اکثر علماء تاویلات کوي مګر واضحه معنی جماع ده. (المرقات ۴/۱۹۵).
اوس سوال دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا پته شعبه ولي وچیړله، د دینه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مقصد څه ؤ؟
د دې جواب دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وحي په ذریعي سره معلومه شوه چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نن شپه د خپلي وینزه سره همبستري کړي ده. کیدلی شي چې دا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ناخوښه وه چې یو اړخ ته زما لور مړه کیدله او په هغه شپه کې مړه هم شوله او بل اړخ ته په دې ماحول کې عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خدمت په ځاې د وینزه سره په هم بستری کې مشغول کیدل نامناسب ؤ. ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ډیر باریک انداز باندې په حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې طنز وکړو که نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په واضحه ملامت کولی یا یې سزا ورکولی نو کیدلی شي چې هغه د حیاء د وجې نه مړ شوی وی. نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پټې اشاري سره تنبیه وکړه. دلته علماء حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ معذور ګڼي ځکه حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ډیري مودې نه په مریضتیا کې اخته وه او په همغه شپه هم په خپل عادت باندې وه، د ډیر تکلیف څه خبر تیا نه وه. نو ځکه حضرت

(۱) أخرجه البخاري ۷۹/۲ ، رقم الحديث . ۱۲۸۵

عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپلي وینزي سره هم بستري وکړه. (المرقات ۴/۱۹۵).

اوس دلته یو بل اعتراض دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله موجود ؤو نو ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لپاره نااشنا ؤو نو هغې ولي ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قبر ته خکته کړه؟ د دې جواب دا دی چې کله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته د کوزولو حکم وکړو نو د هغې ته شرعي جواز ورکړی شو او کیدلی شي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه عذر ؤو چې ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یې خپله قبر ته کوزه نه کړه. بعضې علماؤ دا جواب ورکړی چې دا عمل د حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خصوصیاتو نه دی بعضې علماء دا جواب ورکوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بیان جواز لپاره داسې وکړل. (المرقات ۴/۱۹۵).

بهرحال علماؤ لیکلي دي چې ښځه به قبر ته سړی کوزوي. البته د سړي د محارم نه کیدل ضروري دي ګیني مجبوري ده.

## د حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصیت

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ لِابْنِهِ وَ هُوَ فِيْ سِيَاقِ الْمَوْتِ : |
| د عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې مروي دي چې ده په حالت د نزع کې خپل زوي (عبد الله) ته دا وصیت وکړو |
| إِذَا أَنَا مُتُّ فَلَا تَصْحَبْنِي نَائِحَةٌ وَلَا نَارٌ فَإِذَا دَفَنْتُمُوْنِي |
| چې کله زه مړ شم نو زما (جنازي) سره دې هیڅ یو نوحه کونکي نه وي او نه اور وي او کله چې ما ښخوی، |
| فَشُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ شَنًّا ثُمَّ أَقِيمُوا حَوْلَ قَبْرِي |
| نو په ما باندې خاوره په ورو ورو (لږه لږه) واچوی بیا (د ښخولو نه وروسته) او درېږي زما د قبر سره (د |
| قَدْرَ مَا يُنْحَرُ جَزُوْرٌ وَ |
| استقامت دعاء او مغفرت او ایصال ثواب لپاره) دومره وخت چې څومره وخت دا وښ په ذبح کیدو او |
| يُقَسَّمُ لَحْمُهَا حَتَّى أَسْتَأْنِسَ بِكُمْ وَ أَعْلَمَ |
| او تقسیمولو کې لګېږي تر دې چې زه په تاسو آرام و مومم او (بغیر د څه وحشت او د ویري نه) پوه شم چې |
| مَاذَا أُرَاجِعُ بِهِ رُسُلَ رَبِّيْ.[1] |
| زه د خپل پروردګار فرښتو ته څه جواب ورکوم. |

**توضیح: نائحة:** د جاهلیت په زمانه کې به په مړي باندې د ژړیدلو لپاره په کرایه باندې نوحه کونکي (په

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۱۲/۱ رقم الحديث: ۱۹۲-۱۲۱.

زوره زوره چیغې او فریاد کونکې) ښځې را وستلی کیدلي. هغې به د مړي سم او کاږه تعریفونه کول او خپله به یې هم ژړل او نور به یې هم ژړول. ددې نه اسلام منع کړې ده. (المرقات ۱۹۶/۴).

**ولا نار:** د جاهلیت په زمانه کې به د فخر او تکبر په توګه او رسم و رواج په توګه به د مړي سره اور وړل کیدلو او په هغې کې به خوشبوې او یا نور څه اچول کیدل او خلکو ته به یې خودل. اسلام دا منع کړل. بلکې اور خو بد تفاول دی. دا خو د خصوصیت اسلام نه منع کړی شوی دی. حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د دې دوه منکراتو نه د بچ کیدلو په غرض وصیت کولو. (المرقات ۱۹۶/۴).

**حول قبري:** یعنې د یو اوښ د ذبح کیدلو او د هغې د تقسیمدلو د وخت پورې زما د قبر سره ودریږئ او زما لپاره د ایصالِ ثواب په توګه دعا او تلاوت کوئ او استغفار وایئ. د دعا، استغفار په برکت سره به زما لپاره په قبر کې د فرښتو د پوښتنې او جوابونه اسان شي او زه بغیر د څه وحشت او د ویرې نه فرښتو ته جواب ورکړم او ماته به اندازه وشي چې زه په کومه طریقه باندې جواب ورکوم. د ابوداؤد په یو حدیث کې راغلي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به کله د یو صحابي رضي الله عنه د خښولو نه فارغه شو نو د هغې قبر سره به اودریدو او صحابؤ رضي الله عنهم ته به یې وویل چې د خپل ورور لپاره استغفار و وایئ او استقامت ورله اوغواړئ. ځکه دا وخت د دینه په قبر کې پوښتنې کېږي. حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د همدغه حدیث مضمون اړه ته اشاره کوي. (المرقات ۱۹۶-۱۹۷/۴).

## د سورة بقرې په ابتدائی او آخري رکوع باندې تلقين کول سنت دي

﴿۲۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ

عبد الله ابن عمر رضي الله عنه وایي چې ما دنبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي چې کله تاسو کې یو کس مړ

فَلَا تَحْبِسُوهُ وَ أَسْرِعُوا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ

شي نو هغه مه بندوئ، بلکې د هغې قبر ته هغه زر ورسوئ او داهم په کار ده چې (په قبر باندې او دریږئ)

وَ لْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ فَاتِحَةُ الْبَقَرَةِ.

د هغې سر ته نزدې د سورة بقره ابتدائی آیتونه (یعنې د شروع نه تر **مفلحون** پورې) او ښپو ته نزدې د

وَ عِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ. [1] وَقَالَ: وَالصَّحِيحُ أَنَّه مَوْقُوفٌ عَلَيْهِ.

سورة بقره آخري آیتونه (یعنې د **آمن الرسول** نه تر آخري آیتونو پورې) ولولئ.

---

[1] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۱٦/۷، رقم الحديث ۹۲۹٤

**توضيح : فلا تحبسوه:** يعني د ضرورت نه مړی په کورو او يخ ځايونو کې مه ساتی. په تجهيز او تکفين کې تاخير مه کوی ځکه که مړی نيک وي نو فرښتې انتظار کوي او که بد وي نو د کور نه زر زر د هغې بدي لرې کړی. (المرقات ۴/۱۹۷).

**واسرعوا به:** دا جمله د مخکنی جملې لپاره د تاکيد په توګه ده. ځکه د لا تحبسو د مطلب خپله هم د غه شدی چې زر يې ويسی. (المرقات ۴/۱۹۷).

**وليقراء:** د دې جملې نه تلقين على القبور په واضحه توګه معلومېږي. په دې حديث کې چې د کوم تلقين ذکر دی هغه دا دی چې د مړي د قبر سر ته د سورة بقره ابتدائی رکوع يو سړی په ولاړه باندې په اوچت اواز سره ولولي او د ښپو د اړخ نه بل سړی د سورة بقره آخري رکوع ولولي. په دې تلقين کې د هيچا اختلاف نشته دی. د دينه بغير يو بل مروجه تلقين کېږي. چې د قبر په مينځ باندې ګوته کېږدي او د مړي ته څه لارښود نه کېږي چې اوس به فرښتې راځي او هغه به داسي پوښتنې کوي او داسي جوابونه ورکوه. که په دې تلقين کې غلطه عقيده شامله شي او بې کاره خبري په کې راشي نو د دې په ناجائزه کيدلو کې هيڅ شک نشته دی. خو که غلطه عقيده نه وي او غلط فرمائشونه په کې نه وي نو د شوافعو په نزد جائز دی. حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهی رَحِمَهُ اللهُ په فتاوی رشيديه کې د دې تلقين باره کې ليکلي دي چې د دې مدار د مړو په اوريدلو يا د نه اوريدلو په مسئله باندې دی. د کومو خلکو چې عقيده ده چې مړي اوري نو هغه د دې تلقين قائل دې او خخولو نه وروسته قبر باندې تلقين کوي. د کومو خلکو چې عقيده ده چې مړي نه اوري. نو هغه د دغه قسمه تلقين نه انکار کوي. بهرحال زير بحث حديث کې چې د کوم تلقين ذکر دی د هغې په کولو کې د هيچا اختلاف نشته دی. (المرقات ۴/۱۹۷).

**د ايصالِ ثواب فايده:** حضرت امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کله تاسو قبرستان ته لاړ شی نو هلته سورة فاتحه او معوذتين او سورة اخلاص ووايي او د هغې ثواب د قبرستان والو ته وبخښي. نو هغه ثواب هغه مړو ته رسيږي. (المرقات ۴/۱۹۸).

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کوم سړی قبرستان ته لاړ شي او هغه يولس (۱۱) ځله سورة فاتحه ولولي او د هغې ثواب قبرستان والو ته وبخښي. نو د الله تعالى له اړخ نه هغه سړي ته په قبرستان کې خخ شوؤ مړو د شمير برابر ثواب ملاوېږي. (المرقات ۴/۱۹۸).

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دی چې کوم کس قبرستان ته لاړ شي او **سورة فاتحه** او **قل هو الله احد** او **سورة کوثر** ووايي او الله ته عرض وکړي چې ای الله ما ستا کلام لوستلی دی. ما چې دا وخت څه لوستلي دې د دې ثواب په دې قبرستان کې خخ شوؤ مؤمنانو (سړو) او مؤمناتو (ښځو) ته ورکړي. نو په قبرستان کې چې څومره مړي دې نو هغه د الله تعالى په دربار کې د هغه

سړي لپاره شفاعت کوونکي جوړ شي. (المرقات ۴/۱۹۸).

د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کوم سړی قبرستان ته لاړ شي او (هلته د ایصال ثواب په غرض) سورة یاسین تلاوت کړي نو د قبرستان والو باندې عذاب کم شي او هغه سړي ته په هدیره کې د ښخ شو سړو د شمیر په مقدار نیکۍ ورکړی کیږي. (المرقات ۴/۱۹۸).

بهرحال هدیره د لوبو ټوقو ځای نه دی بلکې د عبرت اخستلو ځای دی. څومره لوي لوي برجونه مرګ راګوزار کړل او په زمکه یې ښخ کړل. او د لوي برجونه د قبر خاوري څنګه وخوړل. هر مسلمان لپاره د دې وخت لپاره تیاری کول په کار دی. چا ویلي دي:

خیرے کن اے فلاں وغنیمت شمار عمر ۞ زاں پیشتر کہ بانگ برآید فلاں نماند

آں پیر لاشہ سپردند زیر خاک ۞ خاکش چناں بخورد کہ نام ونشان نماند

ای فلانی سړیه! نیکی کوه او عمر غنیمت وګڼه، هغه وخت نه مخکې مخکې چې په لاؤډ سپیکر باندې اعلان وشي چې فلانی مړ شو (وخو ګوره) د دې بوډه کمزوری جسد چې کله په زمکه کې ښخ شو نو د قبر خاوري هغه داسې وخوړلو چې د هغې نوم او نښان پاتې نشو.

## حضرت عائشه رضی الله عنها د خپل ورور په قبر باندې

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ: لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ بِالْحُبْشِيِّ وَهُوَ مَوْضِعٌ |
| ابن ابي ملیکه رضی الله عنها وایي چې کله حضرت عبد الرحمن بن ابو بکر رضی الله عنه په حبشه کې یو مقام دی مړ شو |
| فَحُمِلَ إِلٰى مَكَّةَ فَدُفِنَ بِهَا فَلَمَّا قَدِمَتْ عَائِشَةُ |
| او دده جسد مکې ته راوړی شو او دلته خښ کړی شو نو کله چې راغله حضرت عائشه رضی الله عنها (د حج لپاره) |
| أَتَتْ قَبْرَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ فَقَالَتْ: |
| مکې ته نو (د خپل ورور) عبد الرحمن رضی الله عنه قبر ته هم لاړله او هلته یې دا شعر وویل: |

| | |
|---|---|
| وَ كُنَّا كَنَدْمَانَيْ جَذِيْمَةَ حِقْبَةً | مِنَ الدَّهْرِ حَتّٰى قِيْلَ لَنْ يَتَصَدَّعَا |
| یعنې مونږ دواړه د جزیمه د دوه ملګرو په شان چې جدا به نه شو | تر یو ډیرې مودې پورې تردې چې وویل شو چې دا دواړه به کله هم جدا نه شي |
| فَلَمَّا تَفَرَّقْنَا كَأَنِّيْ وَ مَالِكًا | لِطُوْلِ اجْتِمَاعٍ لَمْ نَبِتْ لَيْلَةً مَعًا |
| خو چې کله مونږ دواړه یعنې زه او مالک دواړه دیو بل نه جدا شو | نو تر ډیرې مودې پورې دیو بل سره د اوسیدو باوجود هم دیو شپې دپاره هم سره یو ځای نه شو |

| |
|---|
| ثُمَّ قَالَتْ : وَ اللهِ لَوْ حَضَرْتُكَ مَا دُفِنْتَ |
| ددې نه وروسته عائشې رضي الله عنها وويل په الله قسم که د مرګ په وخت کې زه موجوده وې نو ته به هلته ښخ کړې |
| إِلَّا حَيْثُ مُتَّ |
| شوې وې چيرته چې ته مړشوې وې (ځکه مړې د هغه ځاې نه چيرته چې مړ شوې وي بل ځاې ته نه وړل |
| وَ لَوْ شَهِدْتُكَ |
| سنت او افضل دي او که چيرته زه ستا د مرګ په وخت کې ستا په خواکې موجوده وې نو هغه وخت به زه |
| مَا زُرْتُكَ. (۱) |
| ستا قبر ته نه راتللې. |

**توضيح** : **حُبشي**: حا باندې **پيش** دی **با** ساکن دی او **شين** باندې کسره ده. ددې نه وروسته يا باندې شد دی. نُعلِیّ په وزن باندې دی. د مکي مکرمي په خکتني علاقو کې د نعمان اراک سره د يو غر نوم دی. چې د مکي مکرمي په اطرافو کې يو اړخ ته واقع ده. احابيش قريش همدې طرف ته منسوب دی. ځينې علماء ليکي چې د مکي نه د يو منزل په فاصله باندې دا ځاې واقع دی. ځينو د شپږ ميله مسافت ليکلي ده. دلته د حضرت عائشه رضي الله عنها ورور عبد الرحمن ابن ابي بکر رضي الله عنه مړ شوی ؤ او د هلته نه خلکو مکي مکرمي ته راوړلو او په جنت المعلاة کې يې ښخ کړو. حضرت عائشه رضي الله عنها د ښخيدلو نه وورسته د خپل ورور قبر ته راغله او په عجيبه اندازسره يې د رفاقت او د محبت اظهار وکړو. او بيا يې دوه شعرونه وويل. چې ددې او ددې دورور د حال ډير مناسب حال ؤ معجم البلدان ج ۲ ص ۲۱۴ باندې تفصيل موجود دی. دا دوه شعرونه په حقيقت کې د يو شاعر ؤو چې د هغې نوم تميم بن نويره ؤو. د هغې د وورور نوم مالک بن نويره ؤو. چې حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه د جنګ يمايمه په دوران کې مړ کړی ؤو. قصه دا وه چې د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه په زمانه کې د مرتدينو خلاف غټې جنګونه وشول. د بنو تميم خلاف کاروائي وشوه او بيا په يمامه کې سخت جنګونه وشول.

مالک بن نويره د خپل قوم مشر ؤو. دا سړی د مسلمانانو په قبضه کې شو. حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه ورسره خبري وکړي چې د هغې نه ورته اندازه وشوه چې دا واقعي مرتد دی. او اوس هم په ارتداد باندې قائم دی. لهذا هغې حکم وکړو چې دا مړ کړې. نو د هغې په حکم سره دا مړ کړی شو. ځينو ليکلي دې چې دا سړی د کوم مسلمان په لاس ګير شوی ؤو په غلطۍ سره د چا د لاسه مړ شو.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۷۱ رقم الحديث : ۱۰۵۵.

بهرحال چې ښنګه هم مړ کړی شو مګر د هغې وررور تميم بن نويره چې ډير ښه شاعر ؤ. هغې يو طوفان جوړ کړو چې زما وررور مسلمان ؤو. حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه هغه قصداً مړ کړو. دا مقدمه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په دربار کې راغله. حضرت ابوبکر رضي الله عنه خو حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه بري کړو خو د بيت المال نه يې د هغې وررور ته ديت ورکړو. (المرقات ۱۹۹-۴/۲۰۰).

حضرت عائشه رضي الله عنها د غه شعرونه د خپل وررور لپاره ووېل او اشاره يې وکړه چې زمونږ تعلق او د خپل وررور سره محبت داسې ؤ چې خلکو دا ګڼله چې دا دواړه به کله هم جدا نه شي. د دې اوږد رفاقت او محبت نه وروسته چې يې کله وررور مړ شو نو اوس داسې محسوسېږي چې ګوياکې مونږ کله هم نه ؤو يو ځاې شوي. تميم بن نويره په دې دوه شعرونو کې ځان او خپل وررور د جذيمه د دوه ملګرو سره مشابه کړو چې د هغوی د اوږد رفاقت او محبت او د اوږد تعلق داسې ؤو چې خلکو دا ګڼله چې دا دواړه به کله هم جلا نه شي.

دلته دا خبره ضروري ده چې جذيمه وپيژندل شي او د هغې دوه هم نشين وپيژندلی شي چې په دې دوه شعرونو باندې په ښه توګه پوهه شی. او د دې حديث ټول منظر مو په ذهن کې راشي.

**د جذيمه ابرش دوه ملګري** : جذيمه ابرش د عراق او د جزيرهٔ عرب په يوه زمانه کې مشهور زمانه کې بادشاه تير شوی دی. هغه يوې ښځې "زبا" وژلی ؤو. چې يوه ملکه ښځه وه. قصه داسې پيښه شوي وه چې جذيمه ابرش په خپله زمانه کې په يو بادشاه باندې حمله وکړه او هغه يې مړ کړو. د هغه بادشاه لور د هغې حکومت سنبال کړو. دا ښځه ډيره ښايسته وه. د هغې دومره اوږده ويختان ؤو چې خپل ځان به يې په هغې پټولو. دا بې واده وه. او واده يې نه کولو. د غټو غټو بادشاهانو د نکاح پيغامونه به يې ردول. چې د هغې پلار مړ کړی شو نو جذيمه ابرش هغې ته د نکاح پيغام ورولیږلو. هغې پيغام قبول کړو او په زړه کې يې قسم وخوړلو چې د خپل پلار په بدل کې به ابرش مړ کوم.

نو د واده وخت وټاکل شو او جذيمه ابرش د خپل لښکر سره د "زبا" اړخ ته واده زلمي جوړيدلو لپاره روان شو. د جذيمه يو وزير ؤو چې د هغې نوم "قصير" ؤو. هغه ډير هوښيار ؤو. هغې ډير کوشش وکړو چې بادشاه سلامت دهوکه ونه خوري. د مړ شوي د وارثانو د زړه نه کله هم د وژونکي د د انتقام بدل نه ختم کيږي. جذيمه وويل چې خپله د واده اظهار کړی دی ته هځې شک کوي.

بهرحال کله چې ابرش زبا ته ورسيدلو نو زبا هغه قابو کړلو او ډير په بې دردۍ سره يې د چت نه راځوړند کړو او په بدن کې يې ورله نشتر زنې وکړه او مړی يې کړو. او د خپل پلار د قبر سره يې خخ کړو او دا يې پرې وليکل چې ما د خپل پلار په بدل کې بادشاه مړ کړی دی. بيا د جذيمه وزير قصير ډيرې حيلې وکړې او زبا ته راورسيدو او ډير په هوښيار توب سره يې زبا قابو کړه مګر د مړ کولو نه مخکې هغې زهر وخوړل او وې ويل چې زه د خپل لاس نه مړه کيږم. د قصير د لاس نه مړه کيږم. دا يو جلا اوږد داستان

دي. چې ابن جوزي رحمه الله په لطائف الاذكياء كې ذكر كړې دى او په غصه غصبه كې د قصه ډېر په خوندور انداز سره ذكر ده.

اوس راشى چې جذيمه ابرش دوه هم نشين څوک ؤو. دا هم يو عجيبه اتفاق دى چې د جذيمه ابرش په دربار كې دوه هم نشين په خپلو كې ورونه ؤو. د يو نوم مالک ؤو او د بل نوم عقيل ؤو. څلويښت ورځې (۴۰) دا د جذيمه ابرش په دربار كې داسې يو ځاى ؤو چې د چا خيال هم نه ؤو چې د دوى به كله جلا شي او عربو به د دوي رفاقت د مثال په توگه پيش كولو. خو يو وخت داسې هم راغلو چې هغه دواړه په مرگ داسې جدا شول چې د چا خيال هم نه ؤو چې دا دواړه كله يو ځاى ؤو. تميم بن نويره او حضرت عائشه رضي الله عنها دواړو د خپلو ورونو رفاقت او بيا بيلتون به دې پس منظر كې وړاندې كړې دى.

ما داوېد پس منظر ځکه وړاندې كړو چې په دې سره حديث په صحيح باندې په صحيح طريقې سره پوهه شئ.

**ما دفنت:** حضرت عائشه رضي الله عنها د دوه خبرو اظهار وكړو او خپل خواهش او ارمان يې ښكاره كړو. يوه دا چې د خپل ورور د رفاقت په وخت كې زه هلته وى چرته چې يې ورور مړ شوى ؤو. نو ما به د مكې په قبرستان كې د ځخولو لپاره د انتقالولو اجازت نه وى وركړى ځکه مړي انتقالول خلاف شرع كار دى. او كه ما د ورور د مرگ نه وروسته د هغې زيارت كړى وى نو زه به نن د هغې د قبر د زيارت كولو لپاره قبرستان ته نه وى راغلى ځکه د ښځو قبرستان ته تلل صحيح نه دي. (المرقات ۴/۲۰۰).

## په ښخولو كې د "سل" طريقه هم ثابته ده

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَ عَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ : سَلَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَعْدًا |
| رافع رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د سعد رضي الله عنه په جنازه كې د سر د طرف نه راوايستلو (يعني |
| وَ رَشَّ عَلَى قَبْرِهِ مَاءً .(۱) |
| هغه يې د سر د طرف نه په قبر كې كوز كړو) او د هغه په قبر باندې يې اوبه وشيندلې. |

## د سر د طرف نه د خاورې د اچولو شروع كول په كار دي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ ثُمَّ أَتَى الْقَبْرَ |
| حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم په جنازه باندې مونځ وكړو بيا دې قبر ته راغلو |

---

(۱) اخرجه ابن ماجه في السنن ۱ ۴۹۵ رقم الحديث . ۱۵۵۱

| فَحَثَا عَلَيْهِ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ ثَلَاثًا.[1] |
|---|
| او د سر د طرفه يې په قبر باندې درې موټې خاوره واچوله. |

## په قبر باندې کيناستل يا تکيه وهل منع دي

| ﴿۲۸﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ قَالَ : رَآنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مُتَّكِئًا عَلَى قَبْرٍ |
|---|
| عمر بن حزم رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم زه ديو قبر په سهاره (ملاست يا ناسته باندې) وليدلم |
| فَقَالَ: لَا تُؤْذِ صَاحِبَ هَذَا الْقَبْرِ أَوْ لَا تُؤْذِهِ. (رَوَاهُ أَحْمد). |
| وې فرمايل چې "ته دې قبر والا ته تکليف مه ورکوه يا يې دا وفرمايل چې ديته تکليف مه ورکوه". |

**توضيح** : د مړي تدفين او قبر ته کوزولو د کيفيت ټول تفصيلات به په دې حديثونو کې راغلل. مخکې به په مړي باندې ژړلو او د دعا بيان راروان دى.

چې مې د قبر خواته راشي ديدن به ❁ نه وي لاس به پورته کړي مئينه

يعنې کله چې زما د قبر خوا ته راشي نو زيارت او ملاقات خو به نه کېږي بس د دعاء لپاره لاسونه اوچت کړه.



(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱ ۴۹۹ رقم الحديث ۱۵۶۵

۵ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# باب البكاء على الميت
# په مړي د ژړا کولو بيان

قال الله تعالى: ﴿وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ . الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ (سورة البقرة آيت : ١٥٦).

د خپلوانو او دوستانو په مرګ سره انسان ته د غم او د درد لاحق کيدل يو فطري او طبعي امر دی. د زړه او د مازغو د دې غم په وجه د سترګو نه اوښکې توېدل هم يو طبعي او غير اختياري عمل دی. دين اسلام دا چې يو کامل او پوره بلکې اکمل مذهب دی نو ځکه د انسان د ژوند په هبره شعبه کې هغې ته لارښود نه کوي. ځکه د غم او خوشحالۍ په هره موقع باندې د اسلام قانون او طريقې شته دی.

همدغه سلسله کې د نظر د لاندې باب کې اسلام د چا په مرګ باندې د ژړيدلو په سلسله کې د اعتدال لاره خودلې ده. اسلام په طبعي جذباتو باندې پابندي نه ده لګولې. لهذا د اجازت د ژړا اجازت يې ورکړی دی. خو د اعتدال نه ډېرو اوړيدلو باندې پابندي ده يعنې جزع فزع او چغې وهل او د ژبې نه نامناسبه کلام باندې پابندي ده. د غم طبعي اثرات ډېر تر درې ورځو پورې وي. نو ځکه تر درې ورځو پورې د غم کولو اجازت شته دی.

د غمرازي مطلب دا دی چې زيب او زينت پريخودل او د غم او مصيبت په حالت کې پاتې کيدل. د درې ورځو نه ډير په مړي باندې د غم کولو اجازت نشته دی. خو ښځه خپل ميړه باندې تر څلور مياشتې او لس ورځو پورې غمرازي کولی شي. ځکه د هغې غم ډير لويي وي. د هغې ټول کور وران شوی وي. د درې ورځو نه ډير د غم په وجه اوښکې تويولو اجازت شته دی. کله چې دا غم را ياد شي نو د ژړلو ممانعت نشته دی. په ژړا کې شريعت اعتدال ښودلی دی. چغې وهل حرام دي او مړي باندې بې ځايه قصيدې ويل او د بې ځايه تعريفونو پُل تړل جائز نه دي.

د خپلوانو په مرګ باندې تعزيت کول مسنون دي د تعزيت مطلب دا دی چې په غم کې د مړي پسماندګانو ته صبر و ثبات او سنجيدګۍ او د وقار تلقين وکړی شي. او د آخرت د اجر او ثواب تذکره ورته وکړی شي. نبي کريم ﷺ د حضرت جعفر او حضرت زيد او د عبد الله بن رواحه رضي الله عنهم په شهادت کې په مسجد نبوی کې کيناستو او صحابه کرام رضي الله عنهم را غلل او تعزيت يې کړی ؤو. لهذا په جوماتو کې کيناستل ډير بهتر دي. د تعزيت وخت فقط درې ورځې دی. د دينه ډير مکروه دی. خو که غم ځپلی في الحال موجود نه وي نو کله چې ملاقات وشي نو هغه وخت تعزيت وکړی. د مړي د ښخولو نه وروسته تعزيت کول د مړي د ښخولو نه مخکې بهتر دي. د مړي کور والو ته خوراک ليږل هم د تعزيت

برخه ده. د تعزیت په وخت کې دا الفاظ ادا کول په کار دي: **"ان لله ما اخذ و له ما اعطی و کل شيء عنده باجل مسمی "انا لله و انا الیه راجعون"**.

او دا الفاظ هم ویلي شي: **عظم اجرک وغفر مصابک.**

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### دزوي په مرګ باندې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : دَخَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى أَبِي سَيْفٍ الْقَيْنِ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ابو سيف آهنګر کورته لاړو چې د (نبي |
| وَ كَانَ ظِئْرًا لِإِبْرَاهِيمَ فَأَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِبْرَاهِيمَ |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ د زوي) د ابراهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دايه خاوند ؤ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ابراهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په (غيږه کې) واخستو |
| فَقَبَّلَهُ وَ شَمَّهُ |
| او ښکل يې کړو او بوي يې کړو (يعني خپله خوله او پوزه يې په ده داسې کېخوده لکه څوک چې خوشبو بويوي) |
| ثُمَّ دَخَلْنَا عَلَيْهِ بَعْدَ ذٰلِكَ وَ إِبْرَاهِيمُ يَجُودُ بِنَفْسِهِ |
| ددې واقعې نه يو څو ورځې وروسته مونږ بيا د ابو سيف کره لاړو چې ابراهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نزع په حالت کې ؤ |
| فَجَعَلَتْ عَيْنَا رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ تَذْرِفَانِ . فَقَالَ لَهُ |
| نو (دده په دې حالت ليدو سره) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سترګو نه اوښکې رواني شوي نو ورته يې وويل |
| عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ : وَ أَنْتَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ فَقَالَ : يَا ابْنَ عَوْفٍ |
| عبدالرحمن بن عوف چې يا رسول الله! ته ژاړې؟ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل اى د عوف زويه! (د اوښکو |
| إِنَّهَا رَحْمَةٌ ثُمَّ أَتْبَعَهَا بِأُخْرٰى فَقَالَ : |
| تويدل) رحمت دى د دې نه وروسته د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سترګو اوښکي تويدل شروع کړې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| إِنَّ الْعَيْنَ تَدْمَعُ وَ الْقَلْبَ يَحْزَنُ وَلَا نَقُولُ |
| سترګې اوښکې تويه وي او زړه غمجن دى. مګر د دې باوجود هم زمونږ په ژبه دا الفاظ دي چې په هغې |

| إِلَّا مَا يُرْضِي رَبَّنَا وَ إِنَّا بِفِرَاقِكَ يَا إِبْرَاهِيمُ لَمَحْزُونُونَ.[1] |
|---|
| زمونږ پروردګار راضي دی: ای ابراهیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! بیشکه مونږ ستا په بیلتون باندې غمجن یو. |

**توضيح**: **ابي سيف**: دابوسیف نوم براءؤ دده د ښځې نوم خوله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ؤ چې د حضرت ابراهیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دایه وه. (المرقات ۴/۲۰۲).

**القين**: یعنې ابوسیف په ذاتي کسب لوهار ؤ. حضرت ابراهیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ماریه نه پیدا شوی ؤ. شپاړس اولس میاشتو په عمر کې مړ شو. (المرقات ۴/۲۰۲).

**وكان ظئرا**: یعنې ابوسیف د ابراهیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دایه میړه ؤو. د میړه کیدلو په نسبت سره هغې ته هم ظئر یعنې دایه وویل شو. (المرقات ۴/۲۰۲).

**يجود بنفسه**: د روح سخاوت یې کولو یعنې د نزع په حالت کې ؤو. دهغه ساه وتله. (المرقات ۴/۲۰۲).

**وانت يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**: حضرت عبدالرحمن بن عوف دا خیال ؤو چې مرګ خو د تقدیر الهٰی په حکم راځي. عام خلک خو په داسې موقع باندې ژاړي خو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژړا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شان او د عظمت او د کمال معرفت په وجه حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نا اشنا او عجیبه یې وګڼله چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هم ژاړې؟ (المرقات ۴/۲۰۳).
نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې ژړا رحمت دی یعنې زما سترګې د بې صبرۍ او د جزع فزع په وجه اوښکې نه تویوي بلکې د شفقت او د رحمت نتیجه ده. ځکه کوم سړي چې په سینه کې کانړه نه بلکې زړه لري نو د شفقت او د رحمت په وجه یې د سترګو نه اوښکې روانېږي. د دې فرمان نه وروسته د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سترګو نه اوښکې نورې هم رواني شوې او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې زړه غم جن دی. په دې کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشاره وکړه چې به داسې موقعو کې د سترګو نه اوښکې نه څې نو په حقیقت کې یې په زړه کې درځې دونکې زړه نه بلکې د کاڼي یوه ټوټه ده. په داسې احوالو کې غم جن کیدل د اهل کمالو په نزد د کامل کیدلو نښه ده. او چې لخت جګر د سترګو مخامخ ساه ورکوي نو د سړي په مخ باندې تازه والی او خنده وي نو دا کمال نه بلکې د نقص او د زوال علامت دی. (المرقات ۴/۲۰۳).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۲/۳ رقم الحديث ۱۲۰۳، ومسلم في صحيحه ٤ ۱۸۰۷ رقم الحديث ۲۳۱۵،٦۲۰، وأبوداود في السنن ۲۹۳/۳ رقم الحديث ۳۱۲٦، وابن ماجه ۵۵٦/۱ رقم الحديث ۱۵۸۹، وأحمد في المسند ۳ ۱۹٤

## د نوسي په مرګ باندې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژړا

﴿۲﴾ وَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ : أَرْسَلَتِ ابْنَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَيْهِ :

اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې پیغام را ولیږلو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لور (زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته

إِنَّ ابْنًا لِي قُبِضَ فَأْتِنَا . فَأَرْسَلَ

د چا په واسطه چې زما زوی ساه ورکوي نو ځکه زر ما ته راشه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (دې ته په جواب کې) ورولیږل

يُقْرِءُ السَّلَامَ وَ يَقُولُ : إِنَّ لِلّٰهِ مَا أَخَذَ وَ لَهُ مَا

د سلام نه وروسته چې کوم شی (اولاد وغیره) خدای واخستل هغه هم دده ؤو او د الله تعالی دي هغه شیان

أَعْطَى

چې کوم یې ورکړی وي (لهذا دده په مرګ باندې جزع فزع کول په کار نه دي ځکه د هغه امانت ؤ چې بیرته

وَ كُلٌّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِأَجَلٍ مُسَمًّى

یې واخیستو) او د الله تعالی په نزد د هر یو شي یو وخت مقرر دی (ستا د زوي ژوند د همدومره ورځو د پاره

فَلْتَصْبِرْ وَ لْتَحْتَسِبْ .

لیکل شوی ؤ چې څومره ورځې هغه ژوندی ؤ) پس ته صبر وکړه او د خدای نه د صبر طلب ګاره شه زینب

فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ تُقْسِمُ عَلَيْهِ لَيَأْتِيَنَّهَا

رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بیا سړي را ولیږلو او دا ځل هغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته قسم ورکړو چې خامخا راشه نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

فَقَامَ وَ مَعَهُ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَ زَيْدُ ابْنُ ثَابِتٍ وَ رِجَالٌ

پاسیدلو سعد بن عباده، معاذ بن جبل، ابی بن کعب، زید بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او څه نور صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

فَرُفِعَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الصَّبِيُّ

کله چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلې لور ته ورسیدو نو ماشوم یې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په غیږه کې کیخودو چې

وَ نَفْسُهُ تَتَقَعْقَعُ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ . فَقَالَ سَعْدٌ :

د ساه وتلو په حالت کې ؤ د دې په لیدو سره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د سترګو نه اوښکې روانې شوې سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل

يَا رَسُولَ اللهِ مَا هٰذَا ؟ فَقَالَ : هٰذِهِ رَحْمَةٌ جَعَلَهَا اللهُ فِي قُلُوبِ عِبَادِهِ .

چې یا رسول الله! دا څه دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل دا رحمت دی چې الله پیدا کړي د خپلو بندګانو په زړونو

| فَإِنَّمَا يَرْحَمُ اللهُ مِنْ عِبَادِهِ الرُّحَمَا .[1] |
|---|
| کې (بنه يې واوره) الله په خپلو بندګانو کې فقط په هغه چا رحم او مهرباني کوي په چا کې چې د رحم جذبه وي |

**توضیح: ابنـة النبي** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ترې نه مراد ده چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مشره لور وه چې د ابو العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نکاح کې وه. د هم هغې د زوي واقعه ده. (المرقات ۴/۲۰۳).

**قبض:** یعنې د زنکدن په حالت کې دی. اوس اوس مړ کیدونکی دی. ګویا کې مړ شوی دی. دا تاویل ځکه ضروري دی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د راتګ پورې ماشوم ژوندی ؤ. (المرقات ۴/۲۰۳).

**تتقعقع:** د ساه و تلو په حالت کې چې کله ساه بې ربطه او خکته بره کېږي او اټکي شروع شي هغه حالت په دې لفظ کې بیان شوی دی. (المرقات ۲۰۳-۴/۲۰۴).

**تقسم علیه:** یعنې حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته قسم ورکوي چې ته ضرور راشه. معلومه شوه چې نورو له قسم ورکول د عربو په معاشره کې ؤو او زمونږ په معاشره کې هم شته دی. اګر که دا قسم په بل باندې لازم نه دی.

## په مړي باندې ژړا منع نه ده خو چغې وهل منع دي

| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: اشْتَكَى سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ شَكْوَى لَهُ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي یو ځل سعد بن عباده بیمار شو نو لاړو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ده بیمار پرسی. |
| يَعُودُهُ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ وَسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ وَعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ فَلَمَّا |
| ته لاړو او عبد الرحمن بن عوف، سعد بن ابی وقاص او عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ورسره ؤو کله چې |
| دَخَلَ عَلَيْهِ وَجَدَهُ فِي غَاشِيَةٍ فَقَالَ: (قَدْ قُضِيَ ؟ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورسیدو نو هغه بې هوشه ؤ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ پو بنتنه وکړه چې آیا د امړ شوی دی؟ صحابؤ |
| قَالُوا: لَا يَا رَسُولَ اللهِ فَبَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وویل چې یا رسول الله! نه" نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (چې د سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حالت ولیدلو) نو په ژړا شو. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵۱/۳ رقم الحديث ۱۲۸٤، ومسلم في صحيحه ۶۳۵/۲ رقم الحديث ۹۲۳/۱۱، وأبوداود في السنن ٤۹۲/۳ رقم الحديث ۳۱۲۵، وأحمد في المسند ۲۰٤/۵.

| |
|---|
| فَلَمَّا رَأَى الْقَوْمُ بُكَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَكَوْا فَقَالَ : أَلَا تَسْمَعُونَ ؟ |
| چې صحابوٌ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ژړا وليدو نو هغوی هم په ژړا شو. بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: نه يې واورې! |
| أَنَّ اللّٰهَ لَا يُعَذِّبُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ وَلَا بِحُزْنِ الْقَلْبِ |
| الله تعالى د سترګو په اوښکو توېولو باندې او د زړه په غمجن کيدو باندې عذاب نه ورکوي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| وَ لَكِنْ يُعَذِّبُ بِهٰذَا وَ أَشَارَ إِلَى لِسَانِهِ أَوْ يَرْحَمُ |
| ژبې ته په اشارې کولو سره وفرمايل چې البته الله تعالى د دې په وجه عذاب هم ورکوي او رحم هم. او دغه |
| وَ إِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ.(۱) |
| شان مړي ته د خپل کور والو د ژړا په وجه عذاب ورکوي. |

**توضيح**: حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د انصارو د يوې قبيلې سردار ؤ يو ځل بيمار شونو نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې بيمار پرسۍ ته لاړو. نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د هغه عزتمند ملګري حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او سعد بن ابى وقاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورسره ؤو. حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يو جليل القدر صحابي ؤ. کله چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې کور ته ورسيدو نو حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د بې هوشۍ په حالت کې ؤ. نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړه چې آيا دا مړ شوی دی. هغوی ورته وويل چې نه. بيا نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ملګري په حالت باندې په ژړا شو. د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژړا چې کله هلته شته خلکو وليدلو نو ټول په ژړا شول. نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته مسئله په خودله سره وفرمايل چې فقط په غمجن کيدلو او په ژړا باندې الله تعالى سزا نه ورکوي. خو که په چغو، جزع فزع کولو او د جاهليت په نعرو وهلو سره عذاب ورکوي. بيا نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ضابطه بيان کړه چې "وان ألعبد يعذب ببكاء اهله عليه" يعنې په چغو وهلو او په نوحه کولو باندې مړي ته عذاب ورکول کېږي. (المرقات ۲۰۶-۴/۲۰۷).

**د ژوندو په ژړا باندې مړي ته عذاب ولې ورکول کيږي؟** نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې ارشاد د لاندې يوې قاعدې طرف ته اشاره وکړه چې د توضيح او تشريح قابل ده.

**سوال**: دلته د حديث دا برخه په ظاهر کې د قرآن عظيم د يو آيت سره معارض معلومېږي. آيت دا دی چې د الله فرمان دی ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ يعنې هر سړی د خپل فعل او عمل ذمه وار دی. د خپل فعل

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۵/۳ رقم الحديث ۱۳۰۴، ومسلم في صحيحه ۶۳۶/۲ رقم الحديث :۹۲٤/۱۲.

او قول بوجه په خپله او چتوي. هيڅ يو کس د بل کس بوجه نه اوچتوي. د آيت مفهوم او مضمون خو دا دی چې په مړي باندې کله د هغې اهل وعيال او خپلوان او عزيزان ژاړي نو د هغوی د ژاړه وبال به په مړي نه وي. بلکي د هغې ذمه واران خپله د ژړا والادي. خو د بحث لاندې حديث په واضحه توګه وايي چې د پسماندګانو په ژړا باندې مړي ته عذاب ورکول کېږي دا ښکاره تعارض دی د دې څه جواب دی؟

**جواب:** دا حديث دا چې په ډېرو طريقو سره ثابت دی. او صحيح دی. لهذا علماء کرامو د آيت او د حديث په مينځ کې د تعارض لري کولو دپاره ډېر توجيهات کړي دي او حديث يې مؤل ګڼلو باندې تاويلونه کړيدي.

۱: ام المؤمنين حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا دا توجيه کړي ده چې د دې حديث تعلق د يو جزئی واقعی سره ده. هغه دا چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ځل د يهودنی ښځې په قبر باندې تيريدلو. هلته خلکو د هغې په قبر باندې ژړل نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې په قبر کې دې يهودنې ښځې ته عذاب ورکول کېږي او خلک په دې باندې ژاړي يعنې خلک په هغه مړه شوي ښځې پسې ژاړي. حال دا چې د کفر په وجه ملعونه ده او په سخت عذاب کې اخته ده. په راروان حديث ۲ کې د حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا کلام موجود دی. (المرقات ۲۰۷-۴/۲۰۸).

د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا خيال دا دی چې حديث په خپل ځای باندې صحيح او ثابت دی د هغې نه انکار نه دی. خو د دې حديث چې کوم مفهوم حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ګڼلی دی هغه صحيح نه دی. ځکه ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يوه جزئی واقعه د کليه او د ضابطې په توګه وړاندې کړې ده چې پرې آيت او حديث کې تعارض پيدا شو. د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه په دې کې خطا شوي ده. هغې د دروغ ويولو اراده نه ده کړي فقط په مفهوم کې د هغې نه غلطي شوي ده ګويا کې حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د "**ان الميت يعذب ببكاء اهله عليه**" الفاظ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د طرف نه ګڼي. ټول بحث د دې باب په فصل ثانی کې د حديث ۲۱ په متن کې ذکر دی.

د حديثونو شارحين وايي چې دا حديث د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه منقول نه دی بلکي نور ډېرو صحابؤ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ نه هم دا الفاظ رانقل کړي دي. مثلاً په دې باب کې راتلونکی حديث ۲۱ کې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپله دا الفاظ نقل کوي "**اتبكى علی و قد قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الميت ليعذب ببعض بكاء اهله عليه**".

دا الفاظ د عامه قاعدې طرف ته اشاره کوي جزئی واقعه نه ده. دغه شان د بحث د لاندې حديث کې هيڅ يو جزئی واقعي طرف ته اشاره نشته دی. لهذا عام صحابؤ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ او شارحينو د حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا دا تاويل نه دی قبول کړی.

بهرحال د حضرت عائشه رضي الله عنها د توجيه خلاصه دا ده چې د حديث تعلق د يهودني ښځې سره دى چې د كفر په وجه ورته په قبر كې عذاب وركول كېږي. د اهل او عيال د ژړا په وجه نه وركول كېږي. دغه شان د ﴿ولا تزرو وازرة وزرا اخرى﴾ نه د دې حديث تعلق پاتې شو او نه تعارض. (المرقات ۴/۲۰۸).

۲: نورو علماؤ او شارحينو د دې حديث توجيه داسي كړې ده چې مړي ته د هغې د اهل و عيال په ژړا باندې عذاب وي چې مړى په خپل ژوند كې دا وصيت وكړى چې كله زه مړ شم نو په ما باندې ښه وژاړئ نو خپله د مړي ګناه ده. لكه د جاهليت په زمانه كې به خلكو وصيت كولو. (المرقات ۴/۲۰۸).

طرفه بن العبد داسي وصيت كوي:

اذا مت فانعيني بما انا اهله ❁ و شقي على الجيب يا ابنة معبد

يو بل شاعر د ټول كال د ژړا نه وروسته قبر ته مخاطب شو او وايي چې ما په تا باندې د ژړا حق پوره كړو اوس زه معذور وه يم.

الى الحول ثم اسم السلام عليكم ❁ و من يبك حولا كاملا فقد اعتذر

۳: ځينو علماؤ دا تاويل كړى دى چې دا عذاب هغه وخت وي چې مړي په خپل ژوند كې ښه معلوم وي چې په كور والو كې د ماتم كولو او د چغو وهلو دود دى او د دې باوجود هم چپ پاتې شو او د نه ژړلو تاكيد يې ونه كړو نو دا هم د دى سړي خپل جرم او خپله ګناه ده. لهذا د آيت سره هيڅ تعارض نشته دى. (المرقات ۴/۲۰۸).

۴: يوه توجيه دا هم ده چې د دې عذاب نه مراد هغه عذاب دی چې په قبر كې مړي ته هغه وخت كې وركوي كله چې د مړي وارثان بې ځايه تعريفونه كوي او د مړي نيكئ داسې بيانوي. "واجبلاه" نو فرښتې په قبر كې مړى وهي چې وايه ته غروي. لكه په حديث ۲۴ د دې ذكر موجود دى.

## د شيعه ګانو په شان سينه وهل او ځېرل حرام دي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ مِنَّا مَنْ |
| عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه روايت دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: نه دې زمونږ د جملې نه هغه |
| ضَرَبَ الْخُدُودَ وَ شَقَّ الْجُيُوبَ وَ دَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ.[1] |
| څوك چې مخونه وهي، ګريوان شلوي او جاهليت د وخت ښان اواز اوچت كړي. |

**توضيح**: **ليس منا**: بار بار ليكل شوي دې چې **ليس منا** زمونږ نه نه دى مطلب دا دى چې دا سړى د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۶۳/۳ رقم الحديث ۱۲۹۴، ومسلم في صحيحه ۹۹/۱ رقم الحديث ۱۰۳/۱۶۵.

هغه خاص شعبې او په خاص فعل کې زمونږ د مسلمانانو په طريقه نه دى. نور په اسلام باندې قائم دى. خو په دې مسئله کې زمونږ نه نه دى. د دې دا مطلب نه دى چې د دې جرم کول باندې دا سړى كافر شو.

ځکه د اهل سنتو په نزد د ګناه کبيره په ارتکاب سره سړى د اسلام نه نه خارجيږي. **خلافاً للخوارج والمعتزله**. د مخ وهلو، سينه وهلو او ويختانو شکولو هم دا يو حکم دى چې دا حرام دي.

او د جاهليت دا نعره ده چې هغه د اسلام خلاف او د اسلام د اصولو خلاف كلام وكړي او چغې وهل شروع كړي، د جاهليت نعرى ولګوي او نوحه وكړي. كه دا چا نه وى ليدلي نو د شيعه ګانو ماتمونه او جلوسونه وګورى چې د ديارلس سوه (۱۳۰۰) زرو شهيدانو باندې بين (په زوره چيغې سوري وهل) كوي او په صحابؤ باندې تبر اندازي كوي. دا حديث په هغه بدبختو باندې ډير سخت رد كوي. (المرقات ۴/۲۰۸).

## مړي ته په چغو ژړل او ځان وهل منع دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ : أُغْمِيَ عَلَى أَبِي مُوسٰى فَأَقْبَلَتِ |
| ابن برده رضي الله عنه راوي دى وايي چې يوځل ابو موسى رضي الله عنه بې هوشه شو او په چغو چغو ژړا شروع كړه |
| امْرَأَتُهُ أُمُّ عَبْدِ اللهِ تَصِيحُ بِرَنَّةٍ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ : أَلَمْ |
| ښځې دده ام عبد الله رضي الله عنها. كله چې موسى رضي الله عنه په هوش كې شو نو ورته يې وويل چې آيا تا ته نه ده |
| تَعْلَمِي ؟ وَ كَانَ يُحَدِّثُهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ |
| معلومه چې چيغې وهل څومره بد دې نو راوي چې) بيا ابو موسى رضي الله عنه دا حديث بيان كړو چې نبي كريم |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : أَنَا بَرِيءٌ مِمَّنْ حَلَقَ |
| صلى الله عليه وسلم فرمايلي چې زه د هغه كس نه بيزاره يم چې د مصيبت او حادثى په وخت كې ويختان واړه كړي |
| وَ صَلَقَ وَ خَرَقَ . وَلَفظه لمُسلم .[1] |
| په چغو چغو وژاړى او خپلي جامې وشلوي. |

**توضيح : حلق**: ويختان واړه كولو ته حلق وايي. مراد ترې نه ويختان راښكل دي يا په يوه علاقه كې د حادثي په وخت كې د ماتم په توګه ويختان واړه كول كېږي نو هغه مراد دى. (المرقات ۴/۲۰۹).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۶۵/۳ رقم الحديث ۱۲۹۶، ومسلم في صحيحه ۱۰۰/۱ رقم الحديث :۱۶۷/ ۱۰۴،وابن ماجه ۵۰۵/۱ رقم الحديث : ۱۵۸۶.

**صلق**: مړي باندې چغې وهل او بین (نوحه) کولو ته صلق وايي. (المرقات ۴/۲۰۹).

**خرق**: د جامو شکولو او ګریوان راخکلو نه کنایه ده چې په عامه توګه يې خلک په غم کې کوي. په حدیث کې هم په شیعه شنعه باندې زبردست رد کېږي. (المرقات ۴/۲۰۹).

## دا امت څلور بد خصلتونه نه پرېږدي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْبَعٌ فِي أُمَّتِي |
| ابو مالک اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل څلور خبرې داسې دي زما په امت |
| مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ لَا يَتْرُكُونَهُنَّ: الْفَخْرُ فِي الْأَحْسَابِ وَ الطَّعْنُ فِي الْأَنْسَابِ |
| کې د جاهلیت د زمانې چې دا به زما د امت څه خلک پرې نه ږدي ۱: حسب باندې فخر کول ۲: نسب باندې طعن |
| وَ الِاسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ وَ النِّيَاحَةُ". وَ قَالَ: النَّائِحَةُ |
| کول ۳: دستورو په ذریعه او به غوښتل ۴: نوحه کول او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا هم وفرمايل: که نوحه کونکې ښځې |
| إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ مَوْتِهَا تُقَامُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ عَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ |
| د مرګ نه مخکې توبه ونه کړه نو هغه به قیامت کې په داسې حال کې او دریږي چې د هغې په بدن باندې به د |
| وَ دِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ.[1] |
| ګوګړ او د خارښ قرتۍ وي. |

**توضیح: الاحساب**: حسب ښه صفاتو ته وايي چې په انسان کې موجود وي او د هغې په وجه به هغه خپل ځان د نورو نه افضل او بهتر ګڼي. لکه فصاحت او بلاغت او د جرأت او د شجاعت صفات دي. دلته د حسب نه همدغه صفات مراد دي. اګرچه حسب اصل کې د انسان د مور د طرف نه سلسله نسب ته وايي. لکه څنګه چې نسب د پلار د طرف نه سلسله نسب د پاره ویل کېږي. په نسب باندې د طعن کولو مطلب دا دی چې دا سړی د بل سړي په پلار نیکه باندې نیوکه کوي چې د هغوی په فامیل او نسب کې عیب لټونه وکړي، په هغې کې چینجې راوباسي او د هغې د پلار نیکه درجې د بد ویلو په ذریعې سره د کمولو کوشش کوي. اسلام دا دواړه شیان منع کړل چې په دې سره خپل لویوالی او د بل مسلمان تحقیر کېږي. خو که د کفر په مقابل کې یو مسلمان خپلې نیکۍ بیانوي نو دا جائز ده. (المرقات ۴/۲۱۰).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۴۴/۲ رقم الحديث: ۹۳۴/۲۹، وأحمد في المسند ۳۴۲/۵

**الاستسقاء بالنجوم**: د دې مطلب دا دی چې باران الله وروي او يو سړی د يو ستوري طرف ته اشاره کوي مثلاً وايي بچې دا باران د نيچهتر ستوري يا د سهيل ستوري وکړو يا د هغې د راتللو په وجه دا باران وشو نو دا د شرک برخه ده ځکه منع ده. (المرقات ۴/۲۱۰).

**النیاحه**: پخوا زمانه کې به د غم په موقع باندې د بازار نه په کرايه باندې د ژړا د پاره ښځې راوستلې کيدلې او هغې به مړي بې ځايه محاسن بيانول. خپله به يې هم ژړل او نور به يې هم ژړول او په مړي باندې ښه نوحه خواني او بين وکړو او روپۍ به يې اخستلې. د دغې ممانعت په دې حديث کې دی. نن سبا هم د نياحه مختلف شکلونه موجود دي. ځينې ځل د تعزيت په جلسو کې نوحه ټول منظر مخې ته راځي. (المرقات ۴/۲۱۰).

**قطران**: د يو بوټي نوم دی چې نوم يې ابهل دی. د دينه يوه توره ماده راوځي چې ډيره بدبوداره وي. او په هغې کې د ګرمۍ حرارت وي او هغه ډير زر اور اخلي. (المرقات ۴/۲۱۱).
دغه ماده د دوا په طور په اوښانو باندې مګل کېږي. چې په هغې سره خارښ سوځي. او ډير تکليف وي. د "تارکول" په شان يو شی دی. د نرم تارکول په شان وي. پښتو کې ورته "رنزړه" وايي. د دې بوټي په کوهستان او د کشمير په لري او چتو ځنګلونو کې دي. د دې لرګي د تيل په شان سوځي.
د حديث مطلب دا شو چې نوحه کونکي ښځه که توبه ونه باسي نو د قيامت په ورځ به هغې ته د قطران جامه اغوستلې کېږي. د دې طريقه به دا وي چې اول به د هغې په بدن سخت خارښ شروع شي بيا به ورته د دينه جوړ شوی جامه واغوستلې شي. چې بدن به يې پرې وسوځي او اور به ورته ولګي "**ولباسهم من قطران وتغشی وجوههم النار**".

## د غم په اول باندې صبر کول معتبر دی

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ځل نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يوې ښځې په خوا تېريدو چې د يو قبر خوا کې يې په |
| بِامْرَأَةٍ تَبْكِي عِنْدَ قَبْرٍ فَقَالَ : اتَّقِي اللهَ |
| چغو چغو ژړل نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمايل د خدای د عذاب نه ويرېږه (يعنې نوحه مه کوه ګينی په عذاب کې |
| وَ اصْبِرِي |
| به اخته شي) او صبر وکړه. هغه ښځې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ونه پيژندو (نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خبره اوريدو سره يې) |

| |
|---|
| قَالَتْ : إِلَيْكَ عَنِّي فَإِنَّكَ لَمْ تُصَبْ بِمُصِيبَتِي |
| وويل چې زما نه لرې شه (ته زما په غم څه پوهېږې) ځکه ته زما په مصيبت کې نه يې راګير شوی (کله چې |
| وَ لَمْ تَعْرِفْهُ فَقِيلَ لَهَا : إِنَّهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه ځای نه لاړو نو) هغې ته وويل شو چې دا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤ (بيا څه ؤ) چې هغه (په منډه) |
| فَأَتَتْ بَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَمْ تَجِدْ عِنْدَهُ بَوَّابِينَ |
| د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په دربار کې حاضره شوه هغې ته په دروازه باندې څوک دربان او څوکيدار ملاؤ نه شو (لکه |
| فَقَالَتْ : |
| څنګه چې د بادشاهانو او د اميرانو په دروازو باندې دربان او څوکيداران وي) بيا يې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وويل |
| لَمْ أَعْرِفْكَ . فَقَالَ : إِنَّمَا الصَّبْرُ |
| چې زما ګستاخي معاف کړه) ما ته نه وي پيژندلی نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې صبر خو همدې ته ويل کېږي |
| عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى. (۱) |
| چې د مصيبت په ابتداء کې وي. |

**توضيح : عند الصدمة الاولى:** دا څوک ښځه وه. د ډېر غم په حالت کې د يو عزيز په قبر باندې يې فرياد کولو او ژړل يې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه لار تيريدلو نو هغې ته يې نصيحت وکړو چې د خدای نه ويرېږه او د صبر نه کار واخله. هغې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ونه پيژندلو او وي ويل "اليک عنی" يعنې زما نه لرې شه. تا ته هغه مصيبت نه دی در رسيدلی کوم چې ما ته را رسيدلی دی. دا جمله ډېر سخته وه خو هغې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پيژندلی نه ؤ. کله چې ورته معلومه شوه نو په منډه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کور ته د معافی د پاره راغلله او شايد چې دا يې هم ورته وويل چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوس به زه صبر کوم. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د صبر اعتبار هغه وخت وي کله چې غم نوی نوی راشي او سړی صبر وکړي. وروسته د صبر کولو څه فايده. هغه صبر خو هر سړی کوي ځکه په ورور ورو چې کله سړي شي نو د صبر نه بغير د هغې سره بل څه وي. د پاس ذکر شوي حديث نه معلومه شوه چې په اسلام کې نوحه حرامه ده. مسلمانانو له او خاص کر ښځو ته په کار دی چې هغه د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴۸/۳ رقم الحديث ۱۲۸۳، ومسلم في صحيحه ۶۳۷/۲ رقم الحديث :۹۲۶/۱۵، وأبوداود في السنن ۴۹۱/۳ رقم الحديث ۳۱۲۴ والترمذي ۳۱۳/۳ رقم الحديث ۹۸۷، وابن ماجه ۵۰۹/۱ رقم الحديث : ۱۵۹۶، وأحمد في المسند ۱۳۰/۳.

شریعت خیال وساتي. د خپلوانو خیال ونه ساتي. (المرقات ۴/۲۱۲).

## د یو مسلمان چې درې نابالغه ماشومان مړه شي نو هغه باندې دوزخ حرام دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: لَا يَمُوتُ لِمُسْلِمٍ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل دکوم مسلمان چې درې بچي الله تعالی واخلي |
| فَيَلِجُ النَّارَ إِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ.(۱) |
| هغه به دوزخ ته نه ځي خو د قسم پوره کولو دپاره به ځي. |

**توضیح: الا تحلة القسم**: یعني که د یو مسلمان درې هلکان یا جینکۍ د بلوغت نه مخکې د هغه سرې په ژوند کې مړې شي. نو الله به هغې له جنت ورکوي او په هغې باندې به د دوزخ اور حرام کړي. خو د قسم پوره کولو دپاره به دوزخ ته ځي. د دې جملې مطلب دا دی چې الله قسم خوړلی دی چې د ټولو انسانانو په دوزخ باندې تیریدل لازم دي. ﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾.
ددې قسم پوره کولو دپاره به دوزخ ته تګ وی د دې مطلب دا دی چې په دوزخ باندې به یو پُل کیخودلی شي چې د هغې نوم پل صراط دی. په دې باندې مؤمنانو او کافران ټول تیریږي. مؤمنان به ترینه تیر شي او کافران به ترینه لاندې ګوزار شي. نو دغه شان په تیریدلو سره به قسم پوره شي. د "الا تحلة القسم" همدغه مطلب دی. (المرقات ۴/۲۱۳).

## د دوه بچیانو په مرګ باندې صبر کونکي مور ته جنت ملاویږي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ: |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د انصارو ښځو ته وویل چې په تاسو کې دکومې ښځې |
| " لَا يَمُوتُ لِإِحْدَاكُنَّ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ فَتَحْتَسِبُهُ إِلَّا دَخَلَتِ الْجَنَّةَ. |
| درې بچي مړه شي او هغه ښځه د ثواب طلبګاره وي نو هغه به جنت ته ځي (ددې په اورېدو سره) په دوي کې |
| فَقَالَ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ: أَوِ اثْنَانِ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ |
| یوې ښځې وویل چې که دوه بچې وي (یعني دا زیږي د دوه ماشومانو سره مه خاص کوه بلکې دا هم وفرمایه |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۱/۱۱ رقم الحديث ۶۶۵۶، ومسلم في صحيحه ۲۰۲۸/۴ رقم الحديث: ۱۵۰ ۲۶۳۲، والترمذي ۳۷۴/۳ رقم الحديث ۱۰۶۰، وابن ماجه ۱/ ۵۱۲ رقم الحديث: ۱۶۰۳، وأحمد في المسند ۲۳۹/۲.

قَالَ : أَوْ اثْنَانِ ".[1]

چې که درې مړه شي یا دوه) نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل آؤ چې دوه هم مړه شي نو دا زیري دی.

وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُمَا : ثَلَاثَةٌ

او د مسلم په یو بل روایت کې دي چې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ دا هم وفرمایل چې داسې درې ماشومان مړه شي چې

لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ.

حد بلوغت ته نه وي رسیدلي (دا زیري دی).

**توضیح**: په دې حدیث کې د دخول جنت دپاره د درې بچو په ځای د دوؤ ذکر دی. خو په دې حدیث کې دوه شرطونه ایخودل شوي دي. یو شرط دا چې هغه مور د ثواب نیت وکړي او صبر وکړي. دویم شرط دا بچې دا ماشومان بالغه نه وي بلکي نابالغه وي. د دې وجه دا معلومېږي چې د ښځو او د مور او پلار دواړو د بچو سره ډېر محبت وي او د هغوی په مرګ باندې په طبعی توګه بچي باندې رحم راشي. چې مرګ د دې معصوم بچي په بدن کې څنګه پنجې خخې کړي. او د غه معصومه مرغۍ یې څنګه ازیبخله. دا تصویر شاید چې اضافي غم وي. ځکه د قبل البلوغ قید لګول شوی دی. والله اعلم.

## د عزیز او محبوب په مرګ باندې هم ثواب ملاوېږي

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَقُولُ اللهُ: مَا لِعَبْدِي الْمُؤْمِنِ

ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل الله تعالی فرمایي چې زه کله دیو بنده عزیز

عِنْدِي جَزَاءٌ إِذَا قَبَضْتُ صَفِيَّهُ مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا ثُمَّ احْتَسَبَهُ

او محبوب چې په دې دنیا کې وي او چت کړو او بنده په هغې باندې د ثواب طلبګار وي (یعنې صبر کوي)

إِلَّا الْجَنَّةَ ".[2]

نو زما سره د هغې دپاره د جنت نه بله بهتره جزا نشته دی.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۸۸/۳ رقم الحديث ۱۳۸۱، ومسلم في صحيحه ۲۰۲۸/۴ رقم الحديث :۱۵۱-۲۶۳۲، والترمذي ۳۷۳/۳ رقم الحديث ۱۰۵۹، وابن ماجه ۵۱۲/۱ رقم الحديث ۱۶۰۴، وأحمد في المسند ۵۱۰/۲.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲٤۱/۱۱ رقم الحديث :٦٤٢٢، وأحمد في المسند ٤۱۷/۲.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## چيغې سورې وهل او اوريدل دواړه د لعنت سبب دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ: لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّائِحَةَ |
| ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لعنت كړی دی په نوحه كوونكي ښځه او نوحه |
| وَ الْمُسْتَمِعَةَ. (۱) |
| اوريدونكي ښځې دواړو باندې. |

**توضيح:** نوحه او بين كول دا دې چې د مړې مجاسن يو يو يادول كېږي او په چغو چغو ماتم كوي دا خود ژړا والانائحه ده.

**والمستمعة:** يعنې د ژړيدونكي نائحه ژړا په غور سره اوريدونكي ښځې باندې هم لعنت كېږي. په غور سره اوريدلو كې دا هم دې چې د هغې په او زړه باندې واه واه آه آه كوي نو دا هم د هغې سره شريكه ده. (المرقات ۴/۲۱۶).

## د صابر او شاكر مؤمن هره لمحه قيمتي ده

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَجَبٌ لِلْمُؤْمِنِ: |
| سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د مؤمن (كامل) عجب حال دا دی چې |
| إِنْ أَصَابَهُ خَيْرٌ حَمِدَ اللهَ وَ شَكَرَ وَ إِنْ أَصَابَتْهُ مُصِيبَةٌ |
| هغې ته ډير راحت او خير ورسي نو د الله حمد او ثناء او د هغې شكر ادا كوي او كه هغې څه مصيبت ورسېږي |
| حَمِدَ اللهَ وَ صَبَرَ فَالْمُؤْمِنُ يُؤْجَرُ فِي كُلِّ أَمْرِهِ |
| نو بيا هم هغه د الله حمد كوي او دصبر لاره اختيار كړي. لهذا مؤمن ته د هغې په هر كار كې ثواب ملاوېږي |
| حَتَّى فِي اللُّقْمَةِ يَرْفَعُهَا إِلَى فِيْ امْرَأَتِهِ. (۲) |
| تردې چې هغه يوه لقمه اوچته كړي او د خپلي ښځې خله كې وركوي (په هغې هم ورته ثواب ملاوېږي). |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴۹۴/۳، رقم الحديث . ۳۱۲۸ ، وأحمد في المسند ۱۶۵.۳

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۱۸۲/۱ والبيهقي في شعب الايمان ۱۸۹/۹ رقم الحديث . ۹۹۵۱.

## د مؤمن په مرګ باندې ځمکه او آسمان ژاړي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ مُؤْمِنٍ إِلَّا وَله بَابَانِ: بَاب |
| انس رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل د مسلمان د پاره دوه دروازې دي يوه دروازه هغه |
| يَصْعَدُ مِنْهُ عَمَلُهُ وَ بَابٌ يَنْزِلُ مِنْهُ رِزْقُهُ. |
| ده چې په هغې باندې د هغې نيک اعمال پاس ځي او دويمه دروازه هغه ده چې په هغې باندې د هغې رزق |
| فَإِذَا مَاتَ بَكَيَا عَلَيْهِ فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى : |
| لاندې راځي نو کله چې مؤمن مړ شي نو د هغه د پاره دواړه دروازې ژاړي په دې خبر باندې د الله تعالى دارشاد |
| ﴿ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاء وَ الْأَرْض ﴾. (۱) |
| نه پوهه اخستل کيدی شي چې (ترجمه) يعني د غه (کافرانو) د پاره نه اسمان وژړل او نه ځمکې. |

**توضيح**: مؤمن چې کله د اطاعت ژوند تيروي نو د ځمکي نه د هغې نيک اعمال د اسمان په يوه دروازه پاس لاړ شي. او په بله دروازه باندې د هغې رزق لاندې راکوځيږي. کله چې مؤمن مړ شي نو د نيک اعمالو سلسله بنده شي. نو دا دروازه هم بنده شي. او د غه شان د رزق راتللو سلسله هم بند شي نو هغه دروازه هم بنده شي. نو ځکه د مؤمن مرګ سره دا دواړه دروازې بندې شي. دلته په ځمکه باندې چې دې مؤمن کوم نيک کارونه کړي دي. مونځ يې کړی دی. تلاوت يې کړی دی. هغه ټول ځايونه د دې په بيلتون باندې ژاړي. همدغه مطلب دی. د قرآن د آيت چې د فرعون او د هغې د لخکر په غرق کيدلو باندې نه اسمان وژړل او نه ځمکي وژړل. معلومه شوه چې د مؤمن د پاره هر شی ژاړه کوي.

## مړ شوې وړوکی اولاد د آخرت ذخيره ده

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ كَانَ لَهُ فَرَطَانِ |
| ابن عباس رضي الله عنهما راوي دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل زما په امت کې د کوم سړي دوه بچي دبالغ |
| مِنْ أُمَّتِي أَدْخَلَهُ اللهُ بِهِمَا الْجَنَّةَ . |
| کيدو نه مخکې مړه شي نو الله تعالى به د هغه دوه بچو په وجه هغه جنت ته داخل کړي (د دې په اوريدو سره) |

(۱) خرجه الترمذي في السنن ٥ ٣٥٤ رقم الحديث ٣٢٥٥

| |
|---|
| فَقَالَتْ عَائِشَةُ : فَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ مَنْ أُمَّتِكَ ؟ قَالَ : |
| عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا تپوس وکړو چې او که ستا په امت کې د چا يو بچی مړ شوی وي؟ نبي عَلَيهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| وَ مَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ يَا مُوَفَّقَةُ . فَقَالَتْ : |
| ای موفقه! چې د چا يو بچی مړ شوی وي نو د هغې د پاره هم دا بشارت دی". عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا بيا وپوښتل |
| فَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ فَرَطٌ مِنْ أُمَّتِكَ ؟ |
| چې بنه ستا په امت کې د چا يو بچی هم نه وي مړ شوی؟(نو د هغه د پاره څه بشارت دی) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ : فَأَنَا فَرَطُ أُمَّتِي لَنْ يُصَابُوا |
| وفرمايل "بيا خو زه د خپل امت د منزل مشر زه يم. ځکه زما د (مرګ) مصيبت په شان په بل کوم مصيبت |
| بِمِثْلِي . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1] |
| باندې اخته نه شي. |

**توضيح : فرطان: فراط** هغه سړي ته وايي چې د قافلي نه مخکې خپل منزل ته ورسېږي او د قافلي د خوارو او د ځای تياری او پړاؤ اچولو انتظار کوي. په دې حديث کې د فرط نه مراد هغه نابالغه ماشوم دی چې د بلوغ نه يې مخکې الله واخلي هغې ته فرط ويل شوي دي. ځکه هغه د مور او پلار نه مخکې لاړ شي او هلته هغوی له په جنت کې ځای جوړوي. او د جنت د نعمتونو په تيارولو کې مشغول شي. ميدانِ حشر او په عالم برزخ کې هم ممکن او ضروري انتظامات کوي او د مور او پلار شفاعت وکړي او جنت ته يې بوځي لکه په راتلونکي حديث کې راروان دي. (المرقات ۴/۲۱۹).

د ماشوم په جنازه کې هم دا لفظ داسې موجود دی: **"اللهم اجعله لنا فرطا واجعله لنا اجرا وذخرا واجعله لنا شافعا و مشفعا"**.

**يا موفقة:** حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وپوښتل چې که د دوؤ په ځای د چا يو بچی مړ شوی وی نو آيا دا فضيلت به هغې ته حاصل وي. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا پوښتنه د فهم او تدبر يو لويې شان والا وګڼلو او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته يې يو عظيم لقب ورکړو چې د ټولو کمالاتو او خوبيانو مجموعه ده. او هغه لقب د "ياموفقه" خطاب دی. يعنې ای نېکې چې الله تعالی چا ته هر خير

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۷۶ رقم الحديث : ۱۰۶۲ ، وأحمد في المسند ۱/۳۳۴

او هر هوښیارتوب او هر کسال ورکړی وي او هغې له د داسي شیانو د کولو توفیق ورکړی وی او هغې ته یې لاربنود نه کړي وي. ګویا کې د هغې هري فیصلي سره د الله تعالی توفیق شامل حال وي.
حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د دینه هم مخکې یوه پوښتنه وکړه چې د کومو خلکو یو ماشوم هم نه وي مړ شوی نو د هغوی دپاره خو به بچی نه وي. دا چې خپله هم د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اولاد نه ؤو نو ځکه دا پوښتنه د نورو سره سره د ځان دپاره هم وه. نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته فرمایل چې د چا کوم بچی نه وي نو د هغوی دپاره زه بچی یم. ځکه زما د مرګ غم د زما د امت دپاره داسي یو غم دی چې د هغې څه مثال نشته دی. (المرقات ۴/۲۱۹).

## دوړوکي ماشوم په مرګ باندې جنت کې ماڼۍ ور کول کېږي

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِي قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا مَاتَ وَلَدُ الْعَبْدِ

ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کله چې د (مؤمن) بنده یو ماشوم مړ

قَالَ اللهُ تَعَالَى لِمَلَائِكَتِهِ : قَبَضْتُمْ وَلَدَ عَبْدِي؟

شي نو الله تعالی خپلو فرښتو ته (یعنې ملک الموت او د هغې معاون فرښتو) ته وایي چې تاسو زما د بنده

فَيَقُولُونَ : نَعَمْ . فَيَقُولُ : قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهِ ؟

د بچي روح قبض کړی هغوی وایي چې آؤ الله تعالی فرمایي چې تاسو د هغه د زړه میوه واخیسته هغوی

فَيَقُولُونَ : نَعَمْ . فَيَقُولُ : مَاذَا قَالَ عَبْدِي ؟ فَيَقُولُونَ :

وایي آؤ بیا الله تعالی هغوی ته وایي چې (په دې حادثه باندې) زما بنده څه وویل؟ هغوی عرض کوي

حَمِدَكَ وَ اسْتَرْجَعَ . فَيَقُولُ اللهُ :

چې هغې ستا تعریف وکړو او انا لله وانا الیه راجعون وویل. د هغې نه وروسته الله تعالی فرمایي چې

ابْنُوا لِعَبْدِي بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَ سَمُّوهُ بَيْتَ الْحَمْدِ ".[1]

زما د بنده دپاره په جنت کې غټ کور جوړ کړی او د هغه نوم "بیت الحمد" کېږدی.

**توضیح : بیت الحمد:** یعنې کله چې د چا ماشوم مړ شي نو الله تعالی فرښتو ته د پوښتنو او جوابونو نه وروسته فرمایي چې دې سړي د خپل لخت جګر په مرګ باندې زما تعریف کړی دی او صبر یې کړی دی.

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳ ۳۴۱ رقم الحديث ۱۰۲ ، وأحمد في المسند ۴ ۴۱۵

نو ځکه په جنت کې يو محل تيار کړی او د هغې نوم بيت الحمد کېږدی چې د بچي په مرګ دې سړي د الله تعالى کوم تعريف کړی دی د هغه حمد بدله هغه ته د بيت الحمد په صورت کې ملاو شوه. (المرقات ۴/۲۱۹).

## مصيبت زده ته د اطمينان ورکولو ثواب

| |
|---|
| ﴿١٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ عَزَّى |
| عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کوم سړی چې اطمينان ورکوي |
| مُصَابًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ.[1] |
| مصيبت زده سړي ته نو هغه ته هم په مصيبت کې د راګير شوی سړي هومره ثواب ملاوېږي. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَلِيِّ بْنِ عَاصِمٍ الرَّاوِي |
| امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا حديث غريب دی مونږ دا روايت د علي بن عاصم نه بغير په بله کومه د ويمه |
| وَ قَالَ: وَ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوْقَةَ |
| ذريعې سره نه دی موندلی او امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ دا هم وايي چې ځينو محدثينو دا روايت د محمد ابن سوقه |
| بِهٰذَا الْإِسْنَادِ مَوْقُوْفًا. |
| نه په هغه سند سره په ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (باندې) موقوف نقل کړی دی. |

**توضيح**: **عزّى**: د باب **تفعيل** د **تعزيت**، د صبر تلقين او مصيبت زده ته د اطمينان ورکول په معنی دی. (المرقات ۴/۲۲۱).

**مصابًا**: يعنې په چا چې حادثه راغلې ده او هغه په مصيبت کې راګير دی. (المرقات ۴/۲۲۱).

د حديث مطلب دا دی چې که يو کس په مصيبت دزه سړي تعزيت کوي مثلاً يو داسې سړي ته اطمينان ورکوي چې د هغې په خپلوانو کې څوک مړ شوی وي او هغې له اطمينان ورکوي او د هغې حوصله لوړه وي او هغې له د سنجيدګۍ، د وقار او سکون او د استقامت درس ورکوي او هغه سړی د هغې نصيحت قبول کړي او سکون ومومي. صبر حوصله هغې ته ملاؤ شي او د هغې ذهن ګيرنه وشي. نو هغه تعزيت کونکي ته د مصيبت کې راګيرېدونکي هومره ثواب ملاوېږي. ځکه هغې ورته لاربنود نه وکړه نو

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۸۵ رقم الحديث ۱۰۷۳

"الدال على الخير كفاعله" د ارشاد مطابق هغه ته د مصيبت زده هو مره ثواب ورکول کېږي. (المرقات ۴/۲۲۱).

## مصيبت زده ښځې ته د اطمينان ورکولو فضيلت

| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَبِي بَرْزَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ عَزَّى |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل كوم سړى چې هغه ښځې ته اطمينان وركړي |
| ثَكْلَى كُسِيَ بُرْدًا فِي الْجَنَّةِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1] |
| چې د هغې بچې مړ شوى وي. نو هغې ته به په جنت كې ډيره ښه جامه اغوستلى كېږي. |

**توضيح : ثكل**: هغه ښځې ته وايي چې د هغې ځوي ورك شوي وي يا مړ شوى وي.

**بردا**: څادر ته وايي. يعني په جنت كې به هغه تعزيت كونكي ته ممتاز څادر اغوستلى كېږي. دا څادر په خپل ځاى صحيح خو په دې حديث كې دا ډيره لويه خوشخبري ده چې هغه سړى د جنت مستحق شو او په جنت كې به ورته څادر اغوستلى كېږي. (المرقات ۴/۲۲۲).

## د مړي كور ته خوراك لېږل مسنون دي

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ : لَمَّا جَاءَ نَعْيُ جَعْفَرٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : |
|---|
| عبد الله بن جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې كله د جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مرگ خبر راغلو نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (اهل |
| اِصْنَعُوْا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَقَدْ أَتَاهُمْ |
| بيت ته) وفرمايل چې "د جعفر د اهل و عيال والو دپاره خواړه تيار كوئ ځكه هغوى ته يو داسې پېښه |
| مَا يَشْغَلُهُمْ ) . [2] |
| راغلې ده چې د خواړو پخولو نه هغوى لرې ساتي. |

**توضيح : اصنعوا**: يعنې د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د كور والو دپاره خواړه تيار كړئ او وروي لېږئ. ځكه د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبر هغوى ته ور رسيدلى دى. چې هغوى به د خواړه د پخولو نه په بل څه كې مشغول كړي. د دې حديث نه امت ته دا تعليم وركړى شوى چې كله په يو كور كې مړى وشي نو د چم

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳ ۳۸۸ رقم الحديث ۱۰۷۶

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳ ۴۹۷، رقم الحديث . ۳۱۳۲ ، والترمذي في السنن ۳ ۳۲۳ رقم الحديث ۹۹۸

ګاونډ مسلمانانو دپاره لازم دي چې د هغوی کور خواړه ورولیږي. ځینې علماء وایي چې کم نه کم دومره خواړه ور ولیږل شي چې د کور والو دپاره بښه کافي وي. ځینې حضرات وایي چې تر درې ورځو پورې دا خواړه ورلیږل مستحب دي ځکه د تعزیت درې ورځې وي. (المرقات ۴/۲۲۲).

**د تعزیت خوراک نور خلک خوړلی شي او که نه** ؟د علماؤ په دې کې کافي اختلاف دی او کافي اقوال په دې کې دي. چې کوم خواړه د محله د عزیز او خپلوانو د طرف نه د مړي کور والو ته راځي نو د هغه کور د نفرو نه بغیر نور خلک دا خواړه خوړلی شي یا نه.

ځینې علماء د عدم جواز قائل دي او ځینې وایي چې د تجهیز او تکفین او په نورو کارنو کې مشغول خلک هم دا خوړلی شي. د نوحه کونکو ښځو دپاره د مړي په کور کې خواړه تیارول او بیا هلته خلک راجمعه کول او طعام خوړل بدعت او مکروه دي. د اهل الله دا جمله ده "**طعام المیت یمیت القلب**" حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې مونږ دا میلمستیا د نوحه په شان حرام ګڼله. (المرقات ۲۲۲-۴/۲۲۳).

ددې نه معلومه چې د صوبه سرحد په ځینو ځایونو کې د مړي سره سره چې کوم دیګونه پخېږي. او چارچاپیره خلک بغیر څه د سختي مجبوری نه راشي او هغه خوري او د هغې نوم "شُومَه" کېږدي دا حرام دي.

ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې که د مړي په کور که یتیم ماشومان وي یا یې یو وارث غائب وي نو په داسې صورت کې خواړه خوړل او خواړه ورکول دواړه حرام دي. "**طعام المیت یمیت القلب**".

اے طائر لاہوتی رزق سے موت اچھی ✿ جس رزق سے آتی ہو پرواز میں کوتاہی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## مړي ته د نوحې (ژړا) په وجه عذاب وي

| |
|---|
| **﴿۱۹﴾ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: مَنْ نِيحَ عَلَيْهِ** |
| مغیره ابن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي چې د کوم مړي دپاره نوحه کېږي |
| فَإِنَّهُ يُعَذَّبُ بِمَا نِيحَ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1] |
| هغې ته به د نوحه کونکو په وجه سره قیامت کې عذاب ورکول کېږي. |

(۱) أخرجه البخاري في صحیحه ۳/۱۶۰ رقم الحدیث ۱۲۹۱، ومسلم في صحیحه ۲ ۶۴۳ رقم الحدیث :۲۸ ۹۳۳، والترمذي ۳ ۳۲۴ رقم الحدیث ۱۰۰۰، وأحمد في المسند ۲/۶۱

## د حضرت عائشې رضی الله عنها او د ابن عمر رضی الله عنه اختلاف

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهَا قَالَتْ : سَمِعْتُ عَائِشَةَ |
| حضرت عمره بنت عبد الرحمن رضی الله عنها وايي چې هغه وخت حضرت عائشه رضی الله عنها ته دا وويل شو چې |
| وَ ذُكِرَ لَهَا أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ يَقُولُ : إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ الْحَيِّ عَلَيْهِ تَقُولُ : |
| عبد الله ابن عمر رضی الله عنه وايي چې "مړو ته د هغې د ژوندو په وجه عذاب ورکول کېږي" نو ما د عائشه |
| يَغْفِرُ اللهُ لِأَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ |
| نه دا واوريدل چې "الله دې او بخښي ابو عبد الرحمن رضی الله عنه (دا د عبد الله ابن عمر رضی الله عنه کنيت دی)! |
| أَمَا إِنَّهُ لَمْ يَكْذِبْ وَ لَكِنَّهُ نَسِيَ أَوْ أَخْطَأَ إِنَّمَا |
| پوهه شي چې عبد الله ابن عمر رضی الله عنه (خدا نخواسته) دروغ نه دې ويلي بلکې هغه نه هېر شوي دي حقيقت |
| مَرَّ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى يَهُودِيَّةٍ |
| خو دا دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم يو ځل د يو يهودي په قبر تېر شو نو (کوري چې) هلته په قبر باندې خلک |
| يُبْكَى عَلَيْهَا فَقَالَ : إِنَّهُمْ لَيَبْكُونَ عَلَيْهَا |
| ژړا کوي (د دې په ليد و سره) نبي علیه السلام وفرمايل چې د دې خپل خپلوان په دې ژاړي او هغه (ښځه) په قبر |
| وَ إِنَّهَا لَتُعَذَّبُ فِي قَبْرِهَا .(۱) |
| کې دننه په عذاب کې اخته ده. |

**توضيح** : د دغه قسمه حديثونو توضيح او تشريح ټول تفصيل او ټول اختلافات د دې باب د حديث ۳ د لاندې ليکلی شوي دي. هلته کتل ضروري دي دويم ځل باندې ليکل ډېر ګران دي. په حرم شريف کې ډېر رش وي. د روژه ماتي وخت دی. مانښام دی او زما سخت زکام دی. مخې ته د لمر آخر مراحلو کې روښانه دی او سيور کې بيت الحرام دی نن ۲۳ رمضان دی او هر طرف ته د نعمتونو جام دی.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۱۵۲ رقم الحديث ۱۲۸۹، مسلم ۲ ۶۴۳ رقم الحديث ۲۷ ۹۳۲، وأبوداود في السنن ۳/۱۹٤ رقم الحديث ۳۱۲۹ ، والترمذي ۳/۳۲۸ رقم الحديث ۱۰۰۶، وابن ماجه ۱/۵۰۸ رقم الحديث ۱۵۹۵، وأحمد في المسند ۲/۳۸

## د امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شهادت واقعه

﴿۲۱﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ : تُوُفِّيَتْ بِنْتٌ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ بِمَكَّةَ

عبد الله بن ملیکه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لور په مکه کې مړه شوه. نو مونږ خلک (هغې ته)

فَجِئْنَا لِنَشْهَدَهَا وَ حَضَرَهَا ابْنُ عُمَرَ وَ ابْنُ عَبَّاسٍ

راغلو چې د جنازې په مونځ او خخولو کې شریک شو. ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم هلته راغلل.

فَإِنِّي لَجَالِسٌ بَيْنَهُمَا فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ عُمَرَ

زه د هغې دواړو په مینځ کې کیناستم. په دې وخت کې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمر بن عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چې د هغې

لِعَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ وَ هُوَ مُوَاجِهُهُ :أَلَا تَنْهَى عَنِ الْبُكَاءِ ؟ فَإِنَّ

طرف ته متوجې ناست ؤ وویل چې ته (ته د خپل کور والو اواز او د نوحه) ژړلو نه ولې نه منع کوې؟ ځکه

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ .

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې: "مړی د خپل کور والو د ژړا په وجه په عذاب کې اخته کېږي

فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : قَدْ كَانَ عُمَرُ يَقُولُ بَعْضَ ذَلِكَ .

عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د هغې په جواب کې) وویل چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په دې کې ډیر څه ویل (یعنې

دنبي عَلَيْهِ السَّلَام د دې ارشاد مبارک نه په مړي باندې په عامه توګه د ژړا ممانعت معلومېږي خو حضرت عمر

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غه ممانعت فقط د قریب المرسره په اواز او نوحه کولو سره ژړا باندې محمول کولو) نو

ثُمَّ حَدَّثَ فَقَالَ : صَدَرْتُ مَعَ عُمَرَ مِنْ مَكَّةَ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَاءِ

هغوی دا واقعه بیان کړه چې کله زه د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د مکې نه بیرته راغلم او مونږ مقام بیداء ته ورسیدو

فَإِذَا هُوَ بِرَكْبٍ تَحْتَ ظِلِّ سَمُرَةٍ

(چې د مکې او مدینې په مینځ کې یو موضع ده) نو ناڅاپه عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کیکر د بوټې دلاندې یوه قافله

فَقَالَ : اذْهَبْ فَانْظُرْ مَنْ هَؤُلَاءِ الرَّكْبُ ؟ فَنَظَرْتُ

ولیده هغې ماته وفرمایل چې ته لاړ شه هلته وګوره چې په قافله کې څوک دي؟ زه چې لاړم او ومې کتل

فَإِذَا هُوَ صُهَيْبٌ . قَالَ :

نو معلومه شوه چې صهیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (او د هغې سره څه خلک) دي. ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې زه راغلم

فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ : ادْعُهُ فَرَجَعْتُ إِلٰى صُهَيْبٍ

او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مې و ویل عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې هغوی راوغواړه زه بیا صهیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلم او

فَقُلْتُ : ارْتَحِلْ فَالْحَقْ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ فَلَمَّا أَنْ

هغې ته مې و ویل چې "راځه امیر المؤمنین عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاؤ شه". د هغې نه وروسته کله چې

أُصِيبَ عُمَرُ دَخَلَ صُهَيْبٌ يَبْكِي

(مدینه کې) عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زخمي کړی شو نو صهیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا د هغې خوا ته راغلو او دا به

يَقُوْلُ : وَا أُخَاهُ وا صَاحِبَاهُ . فَقَالَ عُمَرُ :

یې ویل چې ای زما وروره ای زما آقا (دا څه وشو؟) عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په همدې حالت کې صهیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل

يَا صُهَيْبُ أَتَبْكِي عَلَيَّ وَ قَدْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

چې صهیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته زما په خوا کې (اواز او د بین سره) ژاړې. او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دی

إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبَعْضِ بُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ ؟

چې مړی ته د خپل کوروالو د ژړې په وجه عذاب ورکول کېږي (یعنې د داسې ژړا په وجه چې هغه د آواز

فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : فَلَمَّا مَاتَ عُمَرُ

او د نوحه سره وي) ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې کله حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مړ شو نو ما دده دا قول

ذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِعَائِشَةَ فَقَالَتْ :

د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کې پیش کړو نو په اورېدو سره دې و ویل چې "الله دې په عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې

يَرْحَمُ اللهُ عُمَرَ لَا وَ اللهِ مَا حَدَّثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّ الْمَيِّتَ

رحم وکړي، په خدای قسم دا خبره نه ده او نه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا فرمایلي دي چې مړي ته د خپل

لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ وَ لٰكِنْ : إِنَّ اللهَ يَزِيدُ الْكَافِرَ عَذَابًا بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ .

کوروالو د ژړا په وجه عذاب ورکول کېږي) خو البته د کافر په عذاب کې دده د کوروالو د ژړا په وجه زیاتېږي

وَ قَالَتْ عَائِشَةُ :

بیا عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل چې (د دې په ثبوت کې) ستاسو د پاره د قرآن فیصله کافي ده چې هیڅ یو

حَسْبُكُمُ الْقُرْآنُ : ﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى ﴾ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عِنْدَ ذٰلِكَ :

کس د بل په وجه نه اوچتوي. ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل چې دد دې آيت د مضمون مفهوم هم تقريبا داغه دى

وَ اللّٰهُ هُوَ أَضْحَكَ وَ أَبْكٰى . قَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ :

چې الله خندول کوي او الله ژړول کوي". ابن ابی ملیکه رضي الله عنه وايي چې عمر رضي الله عنه دا واوريدل نو

فَمَا قَالَ ابْنُ عُمَرَ شَيْئًا.[1]

حضرت رضي الله عنه هیڅ و نه ویل.

**توضيح : توفيت بنت:** يعني د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه لور په مکه کې مړه شوه. د دې پيښې په موقع باندې يو څو معتبر صحابه کرام رضي الله عنهم راجمعه شول. چې په هغې کې حضرت ابن عمر رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنه معتبر ؤو. د حضرت عثمان رضي الله عنه ځوي عمرو بن عثمان رضي الله عنه هم په دغه موقع باندې موجود ؤو. د دې پيښې په وجه کور کې څه خلکو ژړل. نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه حضرت عثمان بن عمر رضي الله عنه ته وويل چې دوې د ژړا نه ولې نه منع کوې. حال دا چې د خلکو د ژړا په وجه مړي ته عذاب ورکول کيږي. په دې خبره حضرت ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل چې ستا پلار به هم داسې څه خبره کوله. حضرت ابن عباس رضي الله عنه د سفر يوه واقعه ورته واوروله چې په هغې (حضرت ابن عباس رضي الله عنه) دا ويل غوښتل چې حضرت صهيب رومی رضي الله عنه او د حضرت عمر رضي الله عنه په خپل مينځ کې ډير جور تعلقات ؤو. حضرت عمر رضي الله عنه هغه د سفر په دوران کې هغه ورا وغوښتلو او نه عزت يې ولره وکړو. دا قصه د ختمولو نه وروسته حضرت ابن عباس رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه د زخمي کيدلو او بيا د شهيد کيدلو ذکر وکړو او د صهيب رومی رضي الله عنه د ژړا ذکر يې وکړو. خو دا ژړا هغه وخت وه کله چې حضرت عمر رضي الله عنه په زخمي حالت کې ؤو. تر اوسه لا مړ شوی نه ؤو. حضرت عمر رضي الله عنه حضرت صهيب رضي الله عنه ته وويل چې ته هم ژاړې حال دا چې مړي ته د ځينې ژړا په وجه عذاب ورکول کيږي. خير دا قصه هم ختمه شوه.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې ما د حضرت عمر رضي الله عنه د مرګ نه وروسته دغه حديث حضرت عائشه رضي الله عنها ته بيان کړو چې د ابن عمر رضي الله عنه خيال خو دا دی چې مړي ته د خلکو د ژړا په وجه عذاب ورکول کيږي. حضرت عائشه رضي الله عنها وفرمايل چې په ابن عمر رضي الله عنه باندې دې الله رحم وکړي. د نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا حديث داسې نه دی. بلکې هغه حديث داسې دی چې د مړي په عذاب

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳ / ۱۵۱ ، ومسلم في الصحيح ۳ / ٦٤١ رقم الحديث ۲۳ - ۹۲۷

کې د خلکو په ژړا سره ډیروالی کېږي. بیا حضرت عائشه رضي الله عنها وفرمایل چې ستاسو دپاره قرآن کافي دی چې په هغې کې ﴿ولا تزر وازرة وزر اخرى﴾ موجود دی. چې مطلب یې دا دی چې هر سړی به خپل بوجه اوچتوي. د نورو بوجه به نه اوچتوي. لهذا د نورو په وجه به هیڅ ته عذاب نه وي.

حضرت عائشه رضي الله عنها د دې رائی سره حصرت ابن عباس رضي الله عنه هم موافقت وکړو او بیا یې وفرمایل چې خندونکي او ژړونکي فقط الله دی.

بهرحال د دغه قسمه حدیثونو توضیح او تشریح تفصیل سره د دې باب د حدیث ۳ د لاندې تیره شوې ده.

حضرت عائشه رضي الله عنها د حدیث نه انکار نه کوي بلکې د حدیث په مفهوم متعین کولو کې د هغې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه سره اختلاف دی. د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په نزد د حدیث مطلب دا دی چې د کور والو په ژړا سره مړي ته عذاب ورکول کېږي. حضرت عائشه رضي الله عنها تعجب کوي چې دا سې نه ده بلکې خلک ژاړي او مړي ته په قبر کې ځکه عذاب ورکول کېږي چې هغه کافر دی. د کفر په وجه عذاب دی نه چې د ژړا په وجه. (المرقات ۲۲۵– ۴/۲۲۸).

## حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندې ابو لؤلؤ مجوسی کله حمله کړې وه؟

الولولؤ مجوسي د حضرت مغیره بن شعبه رضي الله عنه یو غلام ؤو. حضرت عمر رضي الله عنه عام فرمان جاري کړو چې په مدینه کې هیڅ یو کافر مه پرېږدی. حضرت مغیره رضي الله عنه سفارش وکړو او خپل غلام یې په مدینه کې پرېښودلو. بیا د هغې خپل غلام سره څه لانجه وشوه.

حضرت عمر رضي الله عنه ته چې کله د هغې واقعه وړاندې کړی شوه نو هغې د غلام نه د هغې د هنر او رضاعت باره کې وپوښتل. هغې ورته وویل. نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته وفرمایل چې مغیره بن شعبه رضي الله عنه چې کوم محصول په تا باندې ډیروي هغه صحیح دی. ځکه ستا سره خو ډیر هنرونه دې او ما اوریدلي دې چې ته ډیري ښې میچنې جوړوي. یو میچن زما دپاره هم جوړ کړه. په دې باندې ابو لولؤ غصه شو او وې ویل چې زه به تاله داسې میچن جوړ کړم دنیا به یې یاد ساتي.

حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل "هددني العبد" دې غلام ماله د مرګ اختار راکړو. بیا دا ملعون په حضرت عمر رضي الله عنه د ګوزار کولو په لټه کې ؤو چې ۲۶ یا ۲۷ د ذوالحجه ۲۳ھ د چهار شنبې په ورځ د سحر مونځ په وخت کې په مسجد نبوی کې عین په محراب کې دې په حضرت عمر رضي الله عنه باندې حمله وکړه او شپږ (۶) ګوزاره یې ووهلو او یو څو نور صحابه کرام رضي الله عنهم یې هم شهیدان کړل او بیا یې خپله هم ځان ووهلو. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه یو څو ورځې په زخمي حالت کې ؤو. او اول د محرم الحرام ۲۳ھ کې مړ شو.

# په مړي باندې ژړیدونکي منع کول په کار دي

﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: لَمَّا جَاءَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتْلُ ابْنِ حَارِثَةَ وَجَعْفَرٍ وَابْنِ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي کله چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو خبرد شهادت دزيدبن حارثه، جعفراودابن

رَوَاحَةَ جَلَسَ

رواحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (په غزوۀ تبوک کې)نونبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (په مسجد نبوي کې)کيناستو دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

يُعْرَفُ فِيهِ الْحُزْنُ وَ أَنَا أَنْظُرُ مِنْ صَائِرِ الْبَابِ تَعْنِي شَقَّ الْبَابِ

په مخ مبارک باندې دخفګان او دغم آثار ښکاريدل او ماکتل (دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کيفيت ته) په سيورې د دروازې

فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ : إِنَّ نِسَاءَ جَعْفَرٍ

کې چې په دې وخت کې يو سړي دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خواته راغې او وې ويل چې د جعفر د کور ښځې داسې کوي

وَ ذَكَرَ بُكَاءَهُنَّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَنْهَاهُنَّ

يعنې ددوی د ژړا ذکر وکړو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې سړي ته حکم وکړو چې لاړ شه او هغوی منع کړه.

فَذَهَبَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ لَمْ يُطِعْنَهُ

هغوی چېغې وهلې او (لګ ساعت وروسته) په دويم ځل بيا راغلو او وې ويل چې ښځې نه منع کېږي.

فَقَالَ : انْهَهُنَّ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا هغې ته وويل چې لاړ شه او هغوی منع کړه (هغه لاړو او منع يې کړل او لږ ساعت

فَأَتَاهُ الثَّالِثَةَ قَالَ : وَ اللهِ غَلَبْنَنَا يَا رَسُولَ اللهِ

وروسته بيا راغلو) بيا په دريم ځل راغلو او وې ويل چې "يا رسول الله! په خدای قسم هغه ښځې غالبه

فَزَعَمَتْ أَنَّهُ

شوي دي په مونږ باندې (يعنې هغه ښځې زمونږ خبره نه مني) د عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ګمان دی چې (کله نبي

قَالَ : فَاحْثُ فِي أَفْوَاهِهِنَّ التُّرَابَ . فَقُلْتُ :

عَلَيْهِ السَّلَامُ دا خبرې واوريدې نو) وې فرمايل چې ددوی په خولو کې خاورې واچوئ عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي

أَرْغَمَ اللهُ أَنْفَكَ لَمْ تَفْعَلْ مَا أَمَرَكَ

چې ما (دې سړي ته په خپله توګه) وويل چې: خدای دې پوزه په خاورو ککړه کړه تا ته چې کوم حکم کړې

| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ تَتْرُكْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْعَنَاءِ .[1] |
|---|
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په هغې عمل نه شي کولی او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د تکليف ور کولو نه هم نه منع کېږي |
| (يعنې بيا بيا شکايت راوړي). |

**توضيح** :**غزوه موته**: کې حضرت زيد بن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد شو. او د هغې نه وروسته حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او بيا حضرت عبد الله بن رواحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد شو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ موته نقشه او ميدان د مسجد نبوی نه ليدلو او غم جن کيدلو. بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تعزيت د پاره کيناستلو. (المرقات ۴/۲۲۹).

**صائر الباب**: دروازه کې کله سوری وي او کله درز وي. هغې ته صائر الباب وايي. دلته د دواړو احتمال دی. په حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې چې کومو ښځو ژړل نو هغوی اوازونه او چتول او د ژړا يې د شرعي حد نه ډيريدله. نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د منع کولو د پاره يو کس ورواليګلو. خو هغه بيا بيا تلو راتلو او هم دا يې ويل چې ښځې نه منع کېږي. چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وليدل چې د دې سړي په وجه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته تکليف دی نو د ځان سره يې وويل "**ارغم الله انفك**" يعنې پوزه دې په خاورو ککړه شه يا خو ښځې د ژړا نه منع کړه او که داسي نشي کولی نو ولې بيا بيا راځې او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې وی چې ښځې نه منع کېږي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرې تکليف ورکوي. يا يې منع کړه يا شکايت مه کوه. (المرقات ۴/۲۳۰).

## په مړي باندې په چغو ژړا سره شيطان خوشحاله کېږي

| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : لَمَّا مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ قُلْتُ غَرِيبٌ |
|---|
| ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې کله زما اولني خاوند ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مړ شو نو ما وويل چې ابو سلمه مسافر ؤ |
| وَ فِي أَرْضِ غُرْبَةٍ لَأَبْكِيَنَّهُ بُكَاءً يُتَحَدَّثُ عَنْهُ |
| او د مسافرۍ په حالت کې مړ شو نو داسي به وژارم چې زما ژړا به بيانولی کېږي (يعنې په خلکو کې به |
| فَكُنْتُ قَدْ تَهَيَّأْتُ لِلْبُكَاءِ عَلَيْهِ |
| مشهوره وي چې ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ومره وژړل چې دومره چا هم نه دي ژړلي) نو زه د ژړا په تياری کې مصروفه |

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ١٦٦/٣ رقم الحديث. ١٢٩٩، ومسلم في صحيحه ٢ ٦٤٤ رقم الحديث ٣٠ ٩٣٥.

| |
|---|
| إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ تُرِيدُ أَنْ تُسْعِدَنِي |
| ؤم چې ناڅاپه یوه ښځه راغله چې (په ژړاکې) يې د ما سره د شریک کیدو اراده لرله. نو په دغه وخت کې |
| فَاسْتَقْبَلَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : أَتُرِيدِينَ أَنْ تُدْخِلِي الشَّيْطَانَ بَيْتًا |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخي ته راغلو او وي فرمايل چې ستا اراده داده چې شيطان دې كورته راداخل |
| أَخْرَجَهُ اللهُ مِنْهُ ؟ مَرَّتَيْنِ وَ كَفَفْتُ عَنِ الْبُكَاءِ |
| كړې چې د كوم كورنه الله دوه ځله ويستلى (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې خبرې اوريدو سره) زما ژړا ودريدله او |
| فَلَمْ أَبْكِ.[1] |
| بيا ما (داسې) نه دي ژړلي (چې د كوم شريعت ممانعت كړى دى). |

**توضيح : غريب:** مسافر ته وايي. دا چې مهاجرينو حضراتو مكي نه راغلي ؤ نو گويا كې مسافر ؤ. ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ۴هـ كې مدينه كې مړ شوى ؤ. (المرقات ۴/۲۳۱).

**يتحدث عنه:** يعنې په داسې ژړا به ژاړم چې دنيا به يې ياد ساتي. او د دې تذكرې به كوي. دلته نه يوه انصارى ښځه هم زما سره د مرستې دپاره راتله چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدل نو وي فرمايل چې د كوم كورنه الله شيطان دوه ځله ويستلى دى ته بيا هغه شيطان كورته رادننه كوي. يعنې ځل خو شيطان الله هغه وخت ويستلو چې ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شو او بيا يې هغه وخت ويستلو چې كله د ايمان سره كامياب شو او ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دنيا نه لاړو. ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په څلورمه هجرى كې په مدينه كې مړ شوى ؤ. (المرقات ۲۳۱-۴/۲۳۲).

## نوحه كولو او بې ځايه تعريف باندې فرښتې مړي رټي

| |
|---|
| ﴿٢٤﴾ وَ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ : أُغْمِيَ عَلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ رَوَاحَةَ |
| نعمان ابن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يو ځل) عبد الله بن رواحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (دومره سخت مريض شو چې مرګ ته |
| فَجَعَلَتْ أُخْتُهُ عَمْرَةُ تَبْكِي : وَا جَبَلَاه |
| نزدې شو او) بيهوشې ورباندې راغله. نو د هغې خور ژړا او دا ويل شروع كړل چې اى غره افسوس دى |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٢/٦٣٥ رقم الحديث ١٠ ٩٢٢

وَا كَذَا وَا كَذَا تُعَدِّدُ عَلَيْهِ فَقَالَ حِيْنَ أَفَاقَ :

او هغسي او داسې يعنې دهغه خوبيانې يې شميرلې او بيانولې. کله چې عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هوش کې شو

مَا قُلْتِ شَيْئًا إِلَّا قِيلَ لِيْ :

نو (خور ته يې) وويل چې څه چې تا ويلي دي ماته د تنبيه په توګه ويل شوي دي چې داسې يې (مثلاً چې

أَنْتَ كَذَلِكَ ؟

تا وويل چې اى غره افسوس دى نو ماته وويل شو چې ته ولې غرېې چې خلک ستا پناه غواړي) او په يو

زَادَ فِيْ رِوَايَةٍ فَلَمَّا مَاتَ

بل روايت کې دا الفاظ هم دي چې "کله عبد الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مړ شو (يعنې په غزوه موته کې شهيد شو)

لَمْ تَبْكِ عَلَيْهِ .[1]

نو د هغې خور په هغې باندې ونه ژړل.

﴿۲۵﴾ وَ عَنْ أَبِيْ مُوسٰى قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُوْلُ :

ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي چې (کله يو سړى مړ کيږي او دده په

" مَا مِنْ مَيِّتٍ يَمُوْتُ فَيَقُوْمُ بَاكِيهِمْ فَيَقُوْلُ : وَا جَبَلَاه وَا سَيِّدَاه وَ نَحْوَ ذٰلِكَ

خپلوانو کې) يو ژړا والا داسې ووايي چې اى غره! اى سرداره او داسې نور نور لګى وي نو مقرري کړې

إِلَّا وَكَّلَ اللهُ بِهِ مَلَكَيْنِ يَلْهَزَانِهِ وَ يَقُوْلَانِ :

الله تعالى په دې مړي باندې دوه فرښتې چې ده ته په سينه کې سوکان ورکوي او پوښتنه ترې کوي چې

أَهٰكَذَا كُنْتَ ؟ " . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ[2]

آيا ته داسې وې؟.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۶/۷ رقم الحديث ۴۲۶۷

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۲۶/۳ رقم الحديث ۱۰۰۳

## د چيغو وهلو نه په غير ژړل منع نه دي

﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: مَاتَ مَيِّتٌ مِنْ آلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې كله به د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په اولاد كې څوک مړه شو (يعني د زينب رضي الله عنها

فَاجْتَمَعَ النِّسَاءُ يَبْكِينَ عَلَيْهِ

په شان چې په مخكني روايت كې پرې تصريح شوې ده) نو ښځې به را جمعه شوې او په هغې به يې ژړل

فَقَامَ عُمَرُ يَنْهَاهُنَّ وَ

(ددوي په ليد وسره) عمر فاروق رضي الله عنه اودريدو او (خپلوان خوييې د) ژړا نه منع كړل او (نااشنا) يې په

يَطْرُدُهُنَّ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

وهلو وهلو په منډو كړل. نبي كريم صلى الله عليه وسلم (چې وكتل نو) وې فرمايل چې عمره! نه (دوي په خپل

دَعْهُنَّ فَإِنَّ الْعَيْنَ دَامِعَةٌ وَالْقَلْبَ مُصَابٌ وَالْعَهْدَ قَرِيبٌ.[1]

حال پرېږده ځكه سترګې ژاړي او زړه په مصيبت كې دى او د مرګ وخت هم نزدې دى.

﴿۲۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مَاتَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَكَتِ النِّسَاء

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې كله د نبي كريم صلى الله عليه وسلم لور زينب رضي الله عنها مړه شوه نو ښځې په ژړا شوې

فَجعل عُمَرُ يَضْرِبُهُنَّ بِسَوْطِهِ

عمر رضي الله عنه (د اخبره كله برداشت كولى شوه هغه) په خپل چابق باندې د هغوى وهل شروع كړل نبي كريم

فَأَخَّرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ وَقَالَ: مَهْلًا يَا عُمَرُ

صلى الله عليه وسلم عمر رضي الله عنه خپل لاس جدا كړو او وې فرمايل چې عمره! نرمي اختيار كړه بيا يې ښځو ته وويل

ثُمَّ قَالَ: إِيَّاكُنَّ وَنَعِيقَ الشَّيْطَانِ

چې تاسو ځانونه د شيطان د اواز نه لرې وساتئ. (يعني په چغو چغو او په بيان كولو سره هر ګز مه ژاړئ)

ثُمَّ قَالَ: إِنَّهُ مَهْمَا كَانَ مِنَ الْعَيْنِ وَمِنَ الْقَلْبِ

بيا يې وفرمايل چې "د كومو سترګو نه (يعني اوښكي) او د زړه نه (يعني پريشاني او غم) ظاهره شي

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱۹/۴ رقم الحديث ۱۸۵۹، وابن ماجه ۱ ۵۰۵ رقم الحديث ۱۵۸۷، وأحمد في المسند ۴۴۴/۲.

| |
|---|
| فَمِنَ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ مِنَ الرَّحْمَةِ وَمَا كَانَ مِنَ الْيَدِ |
| نو دا د خدای د طرف نه دي او د رحمت سبب دی (یعنې دا شیان د خدای خوښ شیان دي) او څه چې د ژبې |
| وَ مِنَ اللِّسَانِ فَمِنَ الشَّيْطَانِ.[1] |
| او خلې نه ظاهر شي نو هغه د شیطان د طرف نه وي. |

## په ژړا او غم کولو سره مړی بیرته نه راځي

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَ عَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ : لَمَّا مَاتَ الْحَسَنُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ |
| امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د تعلیق په طریقه (یعنې د سند سره) ذکر کوي چې کله مړ شو حسن بن حسن بن علي |
| ضَرَبَتِ امْرَأَتُهُ الْقُبَّةَ عَلَى قَبْرِهِ سَنَةً |
| رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نو دده ښځې د هغې په قبر باندې تر یو کال پورې خیمه ښخه کړې وه بیا چې کله دا راویستله نو |
| ثُمَّ رَفَعَتْ فَسَمِعَتْ صَائِحًا يَقُولُ : أَلَا هَلْ وَجَدُوا مَا فَقَدُوا ؟ |
| یو غیبي اواز یې واوریدل چې د خیمې په اودرولو سره دې ورک شوی څیزو موندلو؟ بیا د دې جواب د |
| فَأَجَابَهُ آخَرُ : بَلْ يَئِسُوا فَانْقَلَبُوا.[2] |
| بل غیبي اواز په اوریدلو سره وشو چې نا امیده شوه او خیمه یې ویستله. |

**توضیح**: د عربو عام عادت ؤو چې هغوی به د خپل مړي په قبر باندې تر یو کال پورې ژړل. د عربو د قصیدو او د شعرونو نه دا شی بالکل واضحه کېږي. نو یو شاعر وایي:

الى الحول ثم اسم السلام عليكما ❁ و من يبك حولا كاملا فقد اعتذر

یعنې تر یو کال پورې ما په تا وژړل او اوس سلام کوم او روان یم. ځکه چې تر یو کال پورې چا وژړل هغه معذور وه دی چې بیرته لاړ شي. د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې په هغې باندې د هغې ښځې خیمه خخه کړې وه. دا د مشهور حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوي دی. د هغې ښځې د یو خاص ضرورت د لاندې داسي وکړل او کله چې کور ته راغلله نو هاتف غیبي اواز ورکړو چې دې ښځې ډیر وخت تیر کړو. اوس روانه ده نو څه په لاس درغلل او تش لاس روانه یې. د بل هاتف غیبی نه جواب ورکړی شو چې هیڅه ملاؤ نشو بلکې نا امیده بیرته لاړله. د دینه په واضحه توګه معلومه شوه چې په مړي باندې ژړل او فریاد

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳۳۵/۱

(۲) أخرجه البخاري ۸۸/۲، رقم الحديث ۱۳۲۹

کولو سره نه ژوندی کېږي او نه بيرته راځي ځو ک چې لاړو نو بس لاړو. (المرقات۴/۲۳۸).

## څادر راتاوول د شرافت نښه ده

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ وَأَبِي بَرْزَةَ قَالَا : خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عمران بن حصين او ابي برزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دواړه روايت کوي چې يو ورځ مونږ لاړو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فِي جَنَازَةٍ فَرَأَى قَوْمًا قَدْ طَرَحُوا أَرْدِيَتَهُمْ |
| سره يوې جنازې ته نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه داسې خلک وليدل چې خپلې څادرې يې اخوا کړې وې او |
| يَمْشُونَ فِي قُمُصٍ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| په قرتي ګانو کې روان ؤ. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (چې دوي په دې حال وليدل نو) وې فرمايل چې تاسو د |
| أَبِفِعْلِ الْجَاهِلِيَّةِ تَأْخُذُونَ ؟ أَوْ بِصَنِيعِ الْجَاهِلِيَّةِ تَشَبَّهُونَ ؟ |
| جاهليت په فعل باندې عمل کوئ يا د جاهليت په کارونو کې مشابهت اختيار وئ بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَدْعُوَ عَلَيْكُمْ دَعْوَةً |
| (ستاسو په دې ناخوښه حالت ليدو سره) زما خودا اراده وه چې تاسو ته يو داسې ښيره وکړم چې تاسو خپلو |
| تَرْجِعُونَ فِي غَيْرِ صُوَرِكُمْ قَالَ : |
| کورونو ته په نورو شکلونو کې (يعنې د شادو يا د خنزير په شکل کې) واپس شئ. راوي وايي چې (د دې په |
| فَأَخَذُوا أَرْدِيَتَهُمْ وَ لَمْ يَعُودُوا لِذَلِكَ. (۱) |
| اوريدو سره) هغه خلکو (زر زر خپلې څادرې په ځانو را تاؤ کړې او بيا يې دوباره داسې کله هم ونه کړل. |

**توضيح**: د عربو دود ؤ چې د قميص سره به يې څادر هم اچولو. لکه څنګه چې د صوبه سرحد د خلکو عادت دی چې په سخته ګرمۍ کې يې هم په اوږو باندې څادر وي او څادر ساتل د شرافت او عظمت نښانه ګڼي. بيا په يوه جنازه کې څه صحابو د اوږو نه څادرې کوزې کړې وې چې د پريشانۍ او د بدحالۍ او غم ښه اظهار وشي. نو په دې باندې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير سخت خفګان اظهار وکړو او خلک يې د دې حرکت نه منع کړل. معلومه شوه چې په هغه وخت کې په عربو کې څادر تاوهل يا ساتل د شرافت علامت ؤ او س عرب دا نه پيژني. علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په دومره معمولي خبره باندې

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۴۷۶ رقم الحديث ۱۴۸۵

نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دومره خفګان اظهار کړی ؤ نو د هغه خلکو به څه حال وي چې په غم او ماتم کې د دې نه غټ رسمونه کوي. (المرقات۲۳۸-۴/۲۳۹).

## د جنازې سره دې هيڅ خلاف شرع کار نه وي

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُتْبَعَ جَنَازَةٌ مَعَهَا |
| او ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې: نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه جنازې سره د تللو منع کړې ده چې په هغې |
| رَانَّةٌ .(۱) |
| نوحه کونکي وي. |

## مړ شوې وړوکي ماشوم به د مور او پلار د پاره شفاعت کوي

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لَهُ : |
| دابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باره کې مروي دی چې (يو دوړخ) د هغه سره يو سړی مخ شوا و وي ويل چې زما (وړوکی) |
| مَاتَ ابْنٌ لِي فَوَجَدْتُ عَلَيْهِ هَلْ سَمِعْتَ مِنْ خَلِيلِكَ |
| بچی مړ شوی دی چې د هغه په وجه ډير غمجن يم آياتا اوريدلي ده د خپل ملګري يعنې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه |
| صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِ شَيْئًا يَطِيبُ بِأَنْفُسِنَا عَنْ مَوْتَانَا ؟ |
| کومه داسې خبره چې زمونږ د مړ شوي بچي باره کې زمونږ زړونه خوشحاله کړي (يعنې چې د هغې نه دا |
| معلومه شي چې زمونږ واړه ماشومان مړه شوي هغه به په آخرت کې زمونږ څه په کار شي) ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ |
| قَالَ : نَعَمْ سَمِعْتُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : صِغَارُهُمْ |
| ورته وويل چې آؤ ما د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي چې د مسلمانانو واړه ماشومان به په شان د |
| دَعَامِيصُ الْجَنَّةِ يَلْقَى أَحَدُهُمْ أَبَاهُ فَيَأْخُذُ بِنَاحِيَةِ ثَوْبِهِ |
| درياب د ښارؤوي په جنت کې چې په هغوی کوم د خپل پلار سره ملاؤ شي نو هغه به د خپل پلار د جامو ګوټ |
| فَلَا يُفَارِقُهُ حَتَّى يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ . رَوَاهُ مُسلم وَأحمد وَاللَّفظ لَهُ.(۲) |
| ونيسي او تر هغه وخت پورې به يې نه پريږدي چې تر څو پورې هغه پلار جنت ته داخل نه کړي. |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱ ۵۰٤ رقم الحديث ۱۵۸۳

(۲) أخرجه مسلم ٤ ۲۰۲۹، رقم الحديث ۱۵٤ ۲۶۳۵، وأحمد في المسند ۲/ ٤۸۸.

**توضیح**: **دعامیص**: دا د دعموص جمعه ده. دعموص د اوبو دننه یو قسم تور چینجی دی هغې ته وایي. دا چینجی کله وچې ته هم راځي. ځینې خلک دا جولا ګڼي. (المرقات۲۴۰/۴).

**دعموص**: د دې دویم مفهوم دا دی چې هغه کس ته وایي. چې په د امراؤ او سلاطینو په نزد ډیر دخیل وي. او مسلسل د هغوی خوا له ځې راځي. بلکې دا سړی د بادشاهانو قوت، د هغوی په فکرونو او د هغوی په زړه مازغو باندې مسلط شي.

اوس دلته دې وړوکو مړه شوؤ بچو ته د دعموص سره تشبیه ځکه ورکړې شوې ده چې دا ماشومان به هر ځای کې داسې ځې راځي او تفریح به کوي چې چرته به هم د دوی نه پرده او حجاب نه کېږي. لکه څنګه چې دعموص په اوبو کې ګرځي راګرځي. یا سلاطینو سره اختلاط ساتونکی سړی هر ځای ته ځي راځي. دا چې دویم مفهوم دی نو د دعموص د مصداق دپاره ډیر ښه مناسب دی. ګویا کې دا واړه ماشومان مقرب بارګاه الهی شي او بیا د خپل مور او پلار شفاعت کوي. (المرقات۲۴۰/۴).

**اباه**: یعنې په میدان حشر او قیامت کې به وړوکی بچی خپل پلار و مومې نو د هغې لمن به ونیسي او نیغ به یې جنت ته بوځي. ګویا کې هغوی ته د سفارش دا اعزاز حاصل وي. (المرقات۲۴۰/۴).

دلته د پلار ذکر په خاصه توګه ځکه شوی دی چې کیدلی شي تذکره دلته د پلار روانه وه ګینې دا حکم د مور او د پلار دواړو دپاره دی. دغه قسمه نور حدیثونه هم راروان دي.

## عهد نبوي د ښځو د مدرسې یوه نمونه

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: |
| ابو سعید رضی الله عنه وایي چې یوه ورځ یوه ښځه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضره شوه او وې ویل |
| يَا رَسُولَ اللهِ ذَهَبَ الرِّجَالُ بِحَدِيثِكَ فَاجْعَلْ لَنَا مِنْ نَفْسِكَ يَوْمًا |
| چې یا رسول الله! نارینؤ خو ستاد ارشاداتو نه استفاده وکړه او س یوه ورځ زمونږ دپاره هم مقرره کړه چې |
| نَأْتِيكَ فِيهِ تُعَلِّمُنَا مِمَّا عَلَّمَكَ اللهُ. |
| مونږ هم ستا په خدمت کې حاضر یږو او مونږ ته هغه خبرې وکړې کومې چې تا ته خدای کوي؟ نبي کریم |
| فَقَالَ: اجْتَمِعْنَ فِي يَوْمِ كَذَا وَ كَذَا فِي مَكَانِ |
| صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ښه تاسو زنانه راجمع کیږئ په فلانۍ ورځ. فلانې وخت، فلانې کور کې (یعنې |
| كَذَا وَ كَذَا |
| په جومات کې یا په بل کوم کور کې) او فلاني ځای (یعنې جومات یا د کور مخکښې یا وروستنۍ برخه |

| |
|---|
| فَاجْتَمَعْنَ فَأَتَاهُنَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| كې) نو (كله چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ارشاد مطابق) ښځې راجمعه شوي نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته راغلو |
| فَعَلَّمَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَهُ اللهُ ثُمَّ قَالَ : |
| او نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوي ته هغه خبري وخودلي كومې چې الله تعالى نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ښودلي |
| مَا مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تُقَدِّمُ بَيْنَ يَدَيْهَا مِنْ وَلَدِهَا ثَلَاثَةً |
| وي بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ داهم وفرمايل چې په تاسو كې چا د خپل اولاد نه (دري هلكان يا جينكۍ) مخكې وليږي |
| إِلَّا كَانَ لَهَا حِجَابًا مِنَ النَّارِ فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ : |
| (يعنې د هغې درې بچي مړه شو) نو هغه ماشومان به د ده د پاره د اورنه پرده شي (يعنې هغه به د دوزخ تللو ته |
| يَا رَسُولَ اللهِ أَوِ اثْنَيْنِ ؟ فَأَعَادَتْهَا مَرَّتَيْنِ . ثُمَّ قَالَ : وَ اثْنَيْنِ |
| نه پرېږدي) په دې كې يوې ښځې دا الفاظ دوه ځل ووېل نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې د كومې ښځې دوه بچي |
| وَ اثْنَيْنِ وَ اثْنَيْنِ .[1] |
| مړه شوي وي يا دوه يا دوه (يعنې د كومې ښځې چې درې بچي مړه شوي وي نو د هغې دپاره هم دا ثواب |
| دى او د كومې ښځې چې دوه بچي مړه شوي وي نو د هغې دپاره هم دا بشارت دى). |

**توضيح : فأتاهن:** خلاصه دا چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دور مبارك كې ښځو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا خواست وكړو چې سړي هر وخت د ستا (نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په مجلس كې كيني. نو ځكه هغوى د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نصيحتونه او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديثونه راټول كړل او مونږ محرومه شو. لهذا زمونږ دپاره هم په اونۍ كې يوه ورځ ته صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مقرره كړه چې مونږ هم د ستا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مجلس نه فايده واخستلى شو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوى ته حكم وكړو چې په فلانۍ ورځ په فلاني كور كې راجمعه شئ. نو هغوى بيا راجمعه شولې. بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوى ته راغلو او نصيحت يې ورته وكړو. (المرقات ۴/۲۴۱).

**سوال:** ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ او نور شارحينو د دې تپوس پوښتنه كړي ده او هغه دا ده چې د علم د حصول

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱ ۱۹۵ رقم الحديث ۱۰۱، ومسلم في صحيحه ٤ ۲۰۲۸ رقم الحديث ۱۵۲-۲۶۳۳، وأحمد في المسند ۳ ۷۲

باره کې دا الفاظ مستند دي چې "العلم يُؤْتَى وَلَا يَأْتِيْ" يعنې ته تګ راتګ کېږي. علم چ له نه ځي. د دې قاعده مسلمه به رو سره دا پو ښتنه ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د علم خزانه وه. هغې د غه ښځو خوا له تشريف ولې ويوړو. دا معامله خو سرچپه شوه چې عالم د محاصل خوا له ځي.

**جواب:** د دې جواب علماؤ دا کړي دی چې دلته اصل کې د يوې مدرسي صورت جوړ شوی ؤو. ځکه د محلت ښځې د چم ګاونډ نه راغلي او په يو کور کې کيناستلي. نو دا کور د ښځو دپاره مدرسه جوړه شوه او د مدرسې طرف ته د عالم تلل را تلل معروف او مشهور دي. د دې حديث نه دا خبره معلومه شوه چې په دور نبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې په اجمالي توګه د ښځو درسګاه او د هغوی د تعليم دپاره د يوې مدرسې صورت جوړ شوی ؤو. اګر که د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په دور کې او په نبوی دور کې د دې تسلسل پاتې نشو. د دې حديث نه ځينو خلکو د ښځو تبليغ ته وتلو استدلال کړی دی. حال دا چې دا په مدينه منوره کې په يو محله کې دننه په يو کور کې د راجمعه کيدلو ذکر دی. چې يوه وقتي خبره وه او کوم اوس هم په عامه توګه د علماؤ او صلحاؤ د نصيحت او د وعظ اوريدلو دپاره راجمعه کېږي. په دې باندې په تبليغ کې د وتلو او اوږده اوږده سفرونه د امريکه. افريقه. لندن. هالينډ او بنکاک په دورو باندې قياس کول صحيح نه دي. د سلف صالحينو په زمانه کې د تبليغ دپاره وتل ثابت نه دي. او کوم کار چې سلفو صاليحينو نه وي کړی نو په هغې کې د خير د غالب کيدلو امکان نشته دی. ځکه ښځو ته تبليغ د وتلو سره سره ډير نقصانونه هم کېږي. چې ورونه خلک يې پېژني. (المرقات ۴/۲۴۲).

## ناتمامه بچې به هم مور جنت ته بوځي

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ |
| معاذ ابن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د کوم دوؤ مسلمانانو (مور او پلار) |
| يُتَوَفَّى لَهُمَا ثَلَاثَةٌ إِلَّا أَدْخَلَهُمَا اللهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ إِيَّاهُمَا. |
| درې ماشومان مړه شي نو الله تعالى به په خپل فضل او کرم سره د هغه دواړو يعنې مور او پلار جنت ته داخل |
| فَقَالُوا: يَا رَسُوْلَ اللهِ أَوِ اثْنَانِ ؟ |
| کړي. صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل چې يارسول الله! دا هم ووايه چې يا د چا دوه بچې مړه شوي وي (د هغوی |
| قَالَ: أَوِ اثْنَانِ . قَالُوْا: |
| دپاره هم دا بشارت دی) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې آو د چا چې دوه بچي هم مړه شوي وي صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ يا |
| أَوْ وَاحِدٌ ؟ قَالَ: أَوْ وَاحِدٌ . |
| وويل چې يا رسول الله! دا هم ووايه چې يا يو وي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل آو! يو بچې (که هم مړ شوی وي |

| ثُمَّ قَالَ : وَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ |
| --- |
| نو دده د مور او پلار د پاره هم دا زيرې دی) بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل قسم په هغه ذات باندې چې د چا په قبضه |
| إِنَّ السِّقْطَ لَيَجُرُّ أُمَّهُ |
| کې زما ژوند دی که ديوي ښځې کچه حمل هم وغورځيږي نو هغه به خپله مور د ماشوم په ذريعه د جنت طرف |
| بِسَرَرِهٖ إِلَى الْجَنَّةِ إِذَا احْتَسَبَتْهُ . وَرَوَى ابْنُ مَاجَةَ مِنْ قَوْلِهٖ : وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ .[1] |
| ته راکاږي خو په دې شرط چې د هغې مور صبر وکړي او ددې مرګ (په خپل حق کې) ثواب شمير کړي. |

**توضيح: السقط**: ناتمامه ماشوم چې د وخت نه مخکې د مور د خيټې نه وغورزيږي. هغې ته سقط وايي. (المرقات۴/۲۴۲).

**بفضل رحمته**: يعني هغه ماشوم ته اختيار نشته دی چې په خپل حکم سره مور جنت ته بوځي. جنت ته د داخليدلو د پاره د الله د رحمت اصل او بنياد دی. البته د دې ماشوم په مرګ باندې الله تعالى دا اعزاز ورکوي چې هغه خپله مور د خپل ماشوم په ذريعې سره جنت ته بوځي. انونال د نوم سره تاړوي چې د زيږيدلو په وخت کې بچه دانی د ځرمن نه غوڅ شي او د نوم سره ځوړند شي. ډاکټران دا زيږيدلو په وخت کې د پاکوالي په توګه د نوم نه غوڅ کړي. چې وروسته ترينه بيا ماشوم ته ډير تکليف وي. او نوم خراب شي. د دې برعکس په کليوالو علاقو کې دا نظام دی چې دغه تار تريو څو ورځو پورې ځوړند پريږدي او په تار باندې يې وتړي نو دا خپله غوڅ شي چې بيا نوم صحيح سالم وي. (المرقات۴/۲۴۲).

**احتسبته**: په يو غم باندې صبر کولو او د ثواب اميد ساتلو ته احتساب وايي. (المرقات۴/۲۴۳).

## دوړو بچو مرګ د مور او پلار د پاره د اور نه محفوظه قلعه ده

| ﴿۳۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " مَنْ قَدَّمَ |
| --- |
| عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل " کوم سړي مخکې ليږلي وي |
| ثَلَاثَةً مِنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ : كَانُوا لَهُ حِصْنًا حَصِيْنًا مِنَ النَّارِ" |
| په خپل اولاد کې درې بچي چې حد بلوغت ته نه وي رسيدلي نو هغه به دده د پاره د اور نه مضبوطه پناه وي. |

(۱) أخرجه ابن ماجه ۵۱۲/۱ رقم الحديث : ۱۶۰۵، وأحمد في المسند ۲۴۱/۵.

فَقَالَ أَبُو ذَرٍّ قَدَّمْتُ اثْنَيْنِ . قَالَ : وَاثْنَيْنِ .

(چې دا يې واوريدل) نو ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې ما خو دوه ليږلي دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل او دوه هم.

قَالَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ أَبُو الْمُنْذِرِ سَيِّدُ الْقُرَّاءِ :

ابی بن كعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د هغې كنيت ابو المنذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی او د قاريانو سردار دی وي ويل چې "ما

قَدَّمْتُ وَاحِدًا . قَالَ : وَوَاحِدًا . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1]

خو يو ليږلي دی؟نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل يو هم (او ړناه به وي).

## ديو صحابي د خپل بچي سره مينه او د بچي مرګ

﴿۳۵﴾ وَعَنْ قُرَّةَ الْمُزَنِيِّ : أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ ابْنٌ لَهُ .

قرة مزنی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې يو سړي د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به راتللو او د ه سره به يې زوي هم ؤ (يو

فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَتُحِبُّهُ ؟

ورځ) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته وويل چې "آيا دا تاته (ډير) ګران دی (چې هر وخت ستا سره وي)

فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبَّكَ اللهُ

هغه وويل چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! (زه د دې سره د خپل محبت څه ووايم بس) الله تعالى دې تا سره

كَمَا أُحِبُّهُ .

همدغه شان محبت وكړي لكه څنګه چې زه د خپل بچي سره كوم (لږه موده وروسته) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ماشوم

فَفَقَدَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : مَا فَعَلَ ابْنُ فُلَانٍ ؟ قَالُوا :

(د خپل پلار سره) ونه ليدو نو تپوس يې ترې وكړو چې "د فلاني سړي د زوي څه وشو؟ صحابؤ وويل

يَا رَسُولَ اللهِ مَاتَ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

چې يا رسول الله ! د دې سړي زوي مړ شو (كله چې دا سړی حاضر شو نو ده ته) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې :

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۷۵/۳ رقم الحديث : ۱۰۶۱ ،وابن ماجه ۵۱۲/۱ رقم الحديث ۵۱۲/۱ رقم الحديث : ۱۶۰۶، مسند أحمد ۳۷۵/۱.

| أَمَا تُحِبُّ أَنْ لَا تَأْتِيَ بَابًا مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ |
|---|
| آيا ستا دا خوښه نه ده چې سبا د قيامت په ورځ ته د جنت په کومه دروازه هم ځې او خپل ماشوم په خپل |
| إِلَّا وَجَدْتَهُ يَنْتَظِرُكَ ؟ |
| انتظار کې مومې (چې هغه ستا سفارش وکړي او تا دځان سره جنت ته بوځي) يو سړي وويل چې يا رسول |
| فَقَالَ رَجُلٌ : يَا رَسُولَ اللهِ لَهُ خَاصَّةً أَمْ لِكُلِّنَا ؟ |
| الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! دا بشارت په خاصه توګه د دې دپاره دی او که د ټولو دپاره ؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ : بَلْ لِكُلِّكُمْ.[1] |
| وفرمايل ستاسو ټولو دپاره دی. |

**توضيح** : **کما احبه** : يعنې څنګه چې زما د خپل ځوي سره دومره ډير زيات محبت دی يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! الله دې تاسره هم داسې محبت وکړي. دا د هغه سړي د خپل بچي سره په انتهائي جذباتي انداز سره د محبت اظهار دی. د قدرت نظام وګوره چې همدغه ماشوم يو څو ورځې پس مړ شو. چې د کوم باره کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وپوښتل او بيا يې د هغې پلار له بشارت ورکړو چې د جنت په کومه دروازه ته ځې نو ستا بچې به ستا انتظار کوي او تا به دننه را وغواړي. بيا دا فضيلت نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ټول امت دپاره عام وويله. (المرقات ۴/۲۴۴).

## ناتمامه بچې به په جنګ باندې مور او پلار جنت ته بوځي

| ﴿۳۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ السِّقْطَ |
|---|
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "کله چې الله د سقط (يعنې ناتمامه |
| لَيُرَاغِمُ رَبَّهُ |
| ماشوم چې د مورد خيټې نه د وخت نه مخکې لويدلی وي) نو دا ماشوم به د خپل پروردګار سره جنګ کوي |
| إِذَا أُدْخِلَ أَبَوَيْهِ النَّارَ فَيُقَالُ : أَيُّهَا السِّقْطُ |
| کله چې يې د مور او پلار دوزخ ته داخلولو اراده وکړي نو ده ته به وويل شي چې ای ناتمامه ماشومه ! د |

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳۵/۵

| الْمُرَاغِمُ | رَبَّهُ | أَدْخِلْ | أَبَوَيْكَ | الْجَنَّةَ |
|---|---|---|---|---|
| پروردګار سره جنګ کونکیه! خپل مور او پلار جنت ته بوځه لهذا دا ناتمامه ماشوم به خپل مور او پلار | | | | |
| فَيَجُرُّهُمَا | بِسَرَرِهِ | حَتَّى | يُدْخِلَهُمَا | الْجَنَّةَ. (۱) |
| د خپل ماشوم په ذریعې سره راکاږي تردې چې هغوی به جنت ته داخل کړي. | | | | |

**توضیح** : **لیراغم ربه**: مراغمه په خاورو کې ککړ او د غصه او غضبناکه کیدلو په معنی کې دی. دلته مراد دا دی چې کله د ناتمامه ماشوم مور او پلار الله د هغوی د ګناهونو په وجه دوزخ ته داخلولو وغواړي نو دا ناتمامه ماشوم به د الله سره جنګ کوي چې د هغې مور او پلار دوزخ ته مه بوزه. الله تعالی به د دغه ناتمامه ماشوم خبره ومني او هغې ته به وویل شي چې ای جنګ کونکی غضبناکه ماشومه د خپل انو نال په ذریعې سره خپل مور او پلار جنت ته بوځه. نو هغه د خپل د نوم تار باندې خپل مور او پلار جنت ته داخل کړي. (المرقات۴/۲۴۵).

## په حادثه فاجعه باندې د صبر کونکي بدله جنت دی

| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : " يَقُولُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى : |
|---|
| ابو امامه رضی الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې الله تعالی (انسان مخاطب کړي) وایي چې ای |
| يَا ابْنَ آدَمَ إِنْ صَبَرْتَ وَ احْتَسَبْتَ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى |
| ابن آدم! که چیرې ته (دیو مصیبت په وخت کې) صبرو کړې او دغم په اوله برخه کې دثواب طلبګارې یې نو |
| لَمْ أَرْضَ لَكَ ثَوَابًا دُونَ الْجَنَّةِ ". (۲) |
| زه به ستا دپاره دجنت نه کم په هیڅ یو اجر او ثواب باندې نه راضي کېږم (یعنې زه به تا دې په بدل کې جنت ته داخل کړم). |

## هر ځل استرجاع لوستلو باندې نوي ثواب

| ﴿۳۸﴾ وَعَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا مِنْ مُسْلِمٍ وَلَا مُسْلِمَةٍ |
|---|
| حسین بن علي رضی الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل "چې کوم مسلمان سړی یا ښځې ته |

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۵۰۹ رقم الحديث ۱۵۹۷

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۵۱۳ رقم الحديث ۱۶۰۸.

| |
|---|
| يُصَابُ بِمُصِيبَةٍ فَيَذْكُرُهَا وَ إِنْ طَالَ عَهْدُهَا فَيُحْدِثُ لِذٰلِكَ اسْتِرْجَاعًا |
| يو مصيبت ورسېږي او د غه مصيبت ځو مره ډېر وخت پس ورياد شي او هغه وخت انا لله وانا اليه راجعون |
| إِلَّا جَدَّدَ اللهُ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى لَهُ عِنْدَ ذٰلِكَ فَأَعْطَاهُ مِثْلَ أَجْرِهَا يَوْمَ |
| ووايي نو الله تعالى د ده دپاره ثواب ثابت کړي نو الله هغې همغه اجر او ثواب ورکوي چې کوم يې په هغه |
| أُصِيبَ بِهَا . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان [1] |
| ورځ ورکړی ؤ چې کله ورته هغه مصيبت رارسيدلي ؤ (او په هغې يې صبر کړی ؤ). |

**توضيح**: يعنې سړی چې په اول ځل په مصيبت باندې "انا لله وانا اليه راجعون" ووايي. نو هغې ته د استرجاع ثواب ملا وېږي خو که هغه سړي ته وروسته د هغه پېښې احساس وشي او استرجاع وکړي نو الله هر ځل هغې ته نوی نوی ثواب ورکوي. او په هغې کې هيڅ کمی نه کېږي. دا ثواب هم هغه هومره وي څومره چې په ابتداء کې ؤو.

## په معمولي تکليف باندې هم استرجاع کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ أَحَدِكُمْ |
| ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې کله په تاسو کې د چا د بوټ مزی وشلېږي نو |
| فَلْيَسْتَرْجِعْ فَإِنَّهُ مِنَ الْمَصَائِبِ. [2] |
| هغه استرجاع وکړي، ځکه دا هم يو مصيبت دی. |

## په نعمت باندې شکر او مصيبت باندې صبر د دې امت شعار دی

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَ عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ: سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُولُ: سَمِعْتُ |
| ام درداء رضي الله عنها وايي چې ما د ابو درداء رضي الله عنه نه دا اوريدلي دي چې ويل يې ما اوريدلي دي د نبي |
| أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى قَالَ: يَا عِيسَى إِنِّي |
| کريم صلى الله عليه وسلم نه چې فرمايل يې الله عيسى عليه السلام ته فرمايلي ؤ چې ای عيسى عليه السلام! زه به ستا نه |

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲۰۱/۱

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۹ ۱۹۰ رقم الحديث ۹۹۵۳.

بَاعِثٌ مِنْ بَعْدِكَ أُمَّةً إِذَا أَصَابَهُمْ مَا يُحِبُّونَ

وروسته یو امت پیدا کړم چې هغوی ته د خوښې شی (یعني نعمت او راحت) ملاؤ شي نو هغوی به د الله

حَمِدُوا اللّٰهَ وَ إِنْ أَصَابَهُمْ مَا يَكْرَهُونَ احْتَسَبُوا وَ صَبَرُوْا

شکر ادا کوي او چې کله ورته ناخوښه شي (تکلیف او مصیبت) ور رسېږي نو د ثواب امید به کوي او صبر به

وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ . فَقَالَ : يَا رَبِّ كَيْفَ يَكُونُ هٰذَا

کوي په داسې حال کې چې نه به عقل وي او نه برداشت عیسی عَلَیْهِ السَّلَام وویل چې ای زما ربه داسې به ولې وي

لَهُمْ وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ ؟ قَالَ : أُعْطِيهِمْ مِنْ حِلْمِي وَ عِلْمِي ".(١)

حال دا چې نه به عقل وي او نه برداشت الله تعالی وفرمایل: زه به هغوی ته د خپل صبر او عقل نه ور کړه و کړم

**توضیح : ولا حلم ولا عقل:** حلم بردباري او وقار او سکون ته وایي. د امت مرحومه امت محمدیه صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د خاص کسانو به دا کیفیت وي که د ډیرې سختۍ د وجې نه به عقل او صبر کار نه کوي. بیا هم دا خلک د حلم او د علم او د عقل او دانش د لاسه نه ورکوي او د قضاء قدرت به شکوه نه خکته ساتي. (المرقات۴/۲۴۷).

د دغه حیرت ناک صورت په اورېدو سره حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَام پوښتنه وکړه چې ای الله! چې عقل او دانش هم نه وي او علم او حلم هم نه وي نو دا خلک به ښه کار او د الله تعریف څنګه کوي. الله تعالی د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَام د پوښتنې په جواب کې وفرمایل چې زه به هغوی ته د خپل طرف نه علم او دانش او صبر او سکون ورکوم.

الحمد لله نن تاریخ ۲۵ د رمضان د پنجشنبې (جمعرات) ورځ نومبر ۲۰۰۳ د جنائز دا تحریرات پاؤ باندې یولس بجې د کعبې مخې ته پوره شو.

"و الحمد لله علی نعمائه و الشکر علی آلائه"



(١) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ٢٧٤/٦، رقم الحديث ١١٦٥

٦ جمادى الثاني ١٤١٠هـ

# باب زيارة القبور

## د قبرونو د زيارت کولو بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ ، ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنْشَرَهُ﴾ (سورة العبس آيت :٢١-٢٢).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د قبرونو زيارت کول مستحب دي

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ |
| بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (اول خو) ما تاسو د قبرونو د زيارات نه منع کړي |
| فَزُوْرُوْهَا وَ نَهَيْتُكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْأَضَاحِيْ فَوْقَ ثَلَاثٍ |
| وې خو (اوس) تاسو د قبرونو زيارت کوي همدغه شان ما د قربانۍ غوښه د درې ورځونه ډير (د ساتلو او) |
| فَأَمْسِكُوْا مَا بَدَا لَكُمْ وَ نَهَيْتُكُمْ عَنِ النَّبِيْذِ |
| د خوړلو نه منع کړي وې او اوس چې تاسو ترڅو پورې غواړې نو خورې همدغه شان ما نبيد بغير د مشک |
| إِلَّا فِيْ سِقَاءٍ فَاشْرَبُوْا فِي الْأَسْقِيَةِ كُلِّهَا |
| نه (په نورو لوخو کې د څکولو نه) منع کړي وې اوس تاسو (چې په کوم لوخي کې وغواړې په) ټولو کې |
| وَلَا تَشْرَبُوْا مُسْكِرًا.[1] |
| څکې خو د نشئ هيڅ شی (کله هم مه څکې). |

**توضيح** : نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ابتداء د زيارت قبور نه مطلقًا منع کړې وه. ځکه زمانه جاهليت ته نزدې وه. قبرونو ته تللو باندې د شرک کيدلو امکان ؤو. ځکه شرک د قبرونو د لارې نه راځي. او د بې ځايه محبت د وجې نه راځي. کله چې په مسلمانانو کې د توحيد عقيده راسخه شوه او د اسلام طريقه د جاهليت نه ممتازه شوه او په شرک کې د اخته کيدلو خطر پاتې نشو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زيارت

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ٦٧٢/٢ رقم الحديث : ١٠٦-٩٧٧، وأبوداود في السنن ٩٨/٤ رقم الحديث: ٣٦٩٨ ، وأحمد في المسند ١٤٥/١.

قبور اجازت ورکړو. چې زیر بحث حدیث د "فزورها" د الفاظ نه په واضحه توګه معلومیږي. او س مسئله دا پاتې شوه چې د قبرونو د زیارت د عمومي ممانعت نه وروسته چې کوم اجازت ورکړی شو. هغه په کومه درجه کې دی. آیا د نارینو سره د ښځو لپاره هم دا اجازت عام دی یا دا اجازت فقط تر نارینو پورې محدود دی. په دې کې د علماؤ لږ شان اختلاف دی.

د علماؤ د یوې ډلې دا خیال دی چې د زیارتونو د عمومي ممانعت نه وروسته د اجازت دا حکم عام دی. لهذا ښځې هم د قبرونو د زیارت لپاره تللی شي. د حضرت عائشې رضي الله عنها د قبر د زیارت لپاره تګ ثابت دی او هغې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه د غه شان طریقه هم زده کړې ده. هم د غه شان د مستدرک حاکم په یو روایت کې راغلي دي چې حضرت فاطمه رضي الله عنها هم د خپلې ترور د قبر زیارت لپاره د پنچشنبې په ورځ تلله. د دې علماؤ خیال دی چې د زیارت قبور دا ممانعت وقتي ؤو. چې وروسته بیا منسوخ شو. لهذا د ښځو قبرونو ته تګ جائز دی.

خو د علماؤ یوه لویه ډله هغې اړخ ته تلې ده چې ښځو له د زیارت قبور لپاره تګ اوس هم منع دی. دا حضرات د هغه حدیثونو نه استدلال کوي چې په هغې کې راغلي دي چې "**ان رسول الله صلى الله عليه وسلم لعن زوارات القبور**". (**رواه ترمذی**)

دا حدیث صاحب مشکوة په فصل ثالث کې رانقل کړی دی چې حدیث ۹ دی. په دې کې د امام ترمذی رائې هم رانقل کړی شوې ده چې ځینې علماء قبرونو ته د ښځو تګ منع کوي او ځینې ورته جائز وايي. (المرقات: ۴/۲۴۸).

محققینو علماؤ دلته یوه ښه لاره اختیاره کړې ده. هغوی فرمایي چې د ډیر عمر والا ښځې چې د قبرونو د زیارتونو د آدابو نه خبرې وي. هغوی د زیارت لپاره تللی شي. لکه د حضرت عائشې رضي الله عنها نه ثابت دي خو کومې ښځې چې پیغلې وي یا بوډۍ وي خو د زیارت قبور د آدابو نه واقف نه دي مثلاً قبر ته لاړې شي او د قبر نه استمداد کوي. جزع فزع کوي. قبرونو نه خاوره راوچته کړي او د تبرک په توګه یې کور ته راوړي. نو د داسې ښځو تګ قطعًا منع دی. واضحه دې وي چې ذکر شوي شرطونه نن سبا ختم دي.

علماؤ په آدابِ قبور کې دا هم لیکلي دي چې سړی قبر ته ټیټ نه شي، نه دې قبر ته سجده کوي، نه د هغې نه خاوره رااوچتوي، نه د خپل بدن کومه برخه د قبر سره ومګي، نه دې قبر ښکل کړي، نه دې د قبر طواف کوي، نه دې په قبرونو باندې ګلان شیندي او نه دې پرې غلافونه خوروي بلکې په ولاړه دې بغیر د لاسونو د اوچتولو نه دعا او غواړي او لاړ دې شي.

د ځینې علماؤ خیال دی چې په دعا کې لاس اوچتولی شي. ځینې وايي چې که لاس اوچتوي نو بیا د قبر په ځای د قبلې اړخ ته مخ کړه. نن سبا زمانه کې د هر قسمه ښځو قبرونو ته تګ د خطرو نه خالي نه دی.

احتياط په همدغي کې دی چې ښځې قبرستان ته لاړې نه شي.
شاه محمد اسحاق رَحِمَهُ اللهُ وايي چې معتمد قول دا دی چې د ښځو قبرونو ته تګ مکروه تحريمي دی.
خو د فقه کتاب مستملی کې ليکل شوي دي چې د قبرونو زيارت د سړو لپاره مستحب دی خو د ښځو لپاره مکروه دی. مجالس واعظيه يو کتاب دی. په هغې کې ليکل شوي دي چې د ښځو لپاره حلال نه دي چې هغوی قبرونو ته لاړې شي ځکه د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث دي چې "**انه عليه السلام لعن زوارات القبور**". (المرقات: ۴/۲۴۸).
نصاب الاحتساب يو معتمد کتاب دی. په هغې کې ليکل شوي دي چې قاضي ابو زيد رَحِمَهُ اللهُ نه چا وپوښتل چې د قبرونو ته د ښځو تګ جائز دی يا نا؟ نو هغې جواب ورکړو چې د جواز او د عدم جواز پوښتنه مه کوه بلکې دا پوښتنه وکړه چې قبرستان ته تلونکو ښځو باندې څومره لعنت ورېږي. په يو روايت کې راغلي دي چې کومه ښځه مقبري ته ځي. د اووه (۷) واړو زمکو او د اووه واړو اسمانونو فرښتي په هغې باندې لعنت راليږيدا خبره ياد ساتل ضروري دي چې د ښځو لپاره قبرونو ته د تګ دا مسئله د عام قبرونو باره کې ده او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر او د هغې زيارت د دينه مستثنیٰ دی. نو ځکه هغه خلفًا سلفًا تاحال جاري دی.
**دزيارت قبور قسمونه**: ۱: اول فقط د مرګ د يادولو په غرض تلل او د انسان بې وسي د هغې په زړه او مازغو کې د کينولو په غرض سره تلل. که مقصد همدغه وي نو د هيڅ يو مسلمان قبر ته په تللو باندې دا مقصد حاصليدلی شي. ۲: د ايصالِ ثواب په غرض قبر ته تلل دي. د دې مقصد د حصول لپاره د هر مسلمان قبر ته تلل جائز دي. البته د ښځو مسئله جلا ده. چې کومه د دې نه مخکې ليکل شوي ده.
۳: دريم د حصول برکت او د سعادت لپاره تلل دي. د دې مقصد د حصول لپاره د اولياء الله او د دين د بزرګانو قبرونو او د قبرونو زيارت کېږي. د دې تللو مطلب دا نه دی چې هلته په تللو سره د اولياء الله نه مرسته غوښتل شروع کړي. او خپل حاجتونه هغوی ته وړاندې کړي. بلکې مقصد دا دی چې د هغوی قبرونه د برکتونو مرکزونه دي. هغې ته په تللو سره برکت حاصلېږي. برکت ورکونکی فقط الله دی. د قبر والا فقط د دې برکت لپاره مظهر او ذريعه جوړېږي. علماؤ همدغه شان ليکلي دي. زما خپله د دې زيارت ډېره تجربه نشته دی. ۴: څلورم د عزيز او اقارب او د مور پلار او د يار دوست قبرونو باندې د دعائي مغفرت او يا دولو په غرض سره تلل.
۵: پنځم اولياؤ قبرونو او مزارونو له تلل او هلته منتونه کول او مرسته غوښتل او د هغوی نه حاجتونه غوښتل. د دې مقصد لپاره نن سبا خلک ځي. دا خالص بدعت او په ځينو صورتونو کې خالص شرک دی. چې د هغې نه احتراز کول د هر مسلمان د ايمان ذمه واري ده.

**لحوم الاضاحي:** په ابتداء د اسلام کې د تنګ دستی په وجه نبي کریم ﷺ حکم کړی ؤ چې د درې ورځو نه زیات به په کور کې د قرباني غوښه نه ساتی. د دې نه د نبي کریم ﷺ مقصد دا ؤ چې خلک د قرباني په غریبانانو باندې تقسیم کړې او د هغوی مرسته وکړې او ذخیره یې نه کړې.
بیا چې کله په معاشره کې فراخي راغله نو عامو خلکو هم قرباني شروع کړه نو دا حکم موقوف شو. (المرقات: ۴/۲۴۹).

**النبیذ:** نبیذ د کجورو او نور میوؤ د خاصي شیرې نوم دی. د نبیذ پوره تفصیل په کتاب الطهارت کې شوی دی. د اسلام په ابتداء کې چې کله د شرابو د حرمت حکم وشو نو د نفرت کولو لپاره نبي کریم ﷺ د شراب د لوخو د ماتولو حکم وکړو. وروسته چې کله د شرابو حرمت د مسلمانان په زړو کې راسخ شو. نو بیا د نبیذ ساتلو او د تیارولو عامه پابندي ختمه شوه. اول دا نبیذ فقط په مشکیزه کې ایخودلو اجازت ؤو. بیا په ټولو لوخو کې د ایخودلو اجازت ملاؤ شو. چې د هغې ذکر په دې حدیث کې دی. (المرقات: ۲۵۰-۴/۲۴۹).

## د نبي کریم ﷺ د خپلې مور په قبر باندې ژړا

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: زَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَبْرَ أُمِّهِ |
| ابو هریره رضی الله عنه وایي چې کله نبي کریم ﷺ د خپلې مور قبر ته لاړو نو نبي کریم ﷺ |
| فَبَكَى وَ أَبْكَى مَنْ حَوْلَهُ فَقَالَ: |
| وژړل او هغه خلک یې هم وژړول چې د نبي کریم ﷺ سره ؤو بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل |
| اسْتَأْذَنْتُ رَبِّي فِي أَنْ أَسْتَغْفِر لَهَا |
| چې ما د خپل پرودګار نه د دې خبرې اجازت غوښتی ؤ چې د خپلې مور لپاره بخښنه وغواړم ماته د دې |
| فَلَمْ يُؤْذَنْ لِيْ وَ اسْتَأْذَنْتُهُ فِي أَنْ أَزُورَ قَبْرَهَا |
| اجازت رانه کړی شو. بیا ما د خپل پروردګار نه د دې خبرې اجازت وغوښتو چې د خپلې مور قبر ته حاضر |
| فَأُذِنَ لِيْ فَزُورُوا الْقُبُورَ فَإِنَّهَا تُذَكِّرُ الْمَوْتَ. (۱) |
| شم نو ماته د دې اجازت راکړی شو. لهذا قبر ته ځئ قبرونو ته تګ مرګ یادوي. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۷۱ رقم الحديث ۱۰۸ ۹۷۶، وأبوداود في السنن ۳/۵۵۷ رقم الحديث ۳۲۳۴، وابن ماجه ۱/۵۰۱ رقم الحديث ۱۵۷۲، وأحمد في المسند ۲/۴۴۱

**توضيح: قبر امه:** د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مور نوم بي بي آمنه وه. او د پلار نوم يې عبد الله ؤ. آمنه د مکې او مدينې په مينځ کې په يو مقام کې مړه شوه چې د هغه ځاي نوم ابواء دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلې مور قبر ته راغلو او تر ډير ساعت پورې ولاړ ؤ. خپله يې هم وژړل او نور يې هم وژړول او بيا يې وفرمايل چې کوم په دې حديث کې دي. اوس بحث دا روان دی چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مور او پلار باره کې څه موقف اختيار کړی شي. (المرقات: ۴/۲۵۰).

د سلفو علماؤ دا خيال دی چې د هغوی مرګ په حالت کفر کې شوی ؤو. د ظاهري حديث نه هم دا معلومېږي. خو متأخرين علماء وايي چې د يو څو وجوهاتو په بناء د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مور او پلار اسلام ثابت دی. (المرقات: ۴/۲۵۰).

۱: يا خو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مور او پلار په ملت ابراهيمي باندې ؤو. ملت شرکيه باندې نه ؤو.

۲: يا دا چې هغوی په زمانه فترت کې مړه شوي او هغوی ته د اسلام هيڅ دعوت نه ؤو رسيدلی. نو په اصل باندې ؤو په کفر باندې نه ؤو.

۳: د ځينو متأخرينو خيال دی چې د معجزې په توګه هغوی ژوندې کړی شوي ؤو او ايمان يې قبول کړو او بيرته مړه کړی شول. په دې سلسله کې متاخرين يو حديث هم وړاندې کوي. علامه سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په دې باندې يوه رساله هم ليکلې ده چې د هغې نوم غالبًا "**مسالك حنفاء في اسلام والدي المصطفى**" ايخی دی. (المرقات: ۴/۲۵۱).

بهرحال عام علماء وايي چې په حساسه مسئله کې بهتر دا دی چې سړی په دې کې سکوت اختيار کړي.

## قبرستان ته د داخليدو دعاء:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُهُمْ إِذَا خَرَجُوا إِلَى الْمَقَابِرِ: |
| بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مسلمانانو ته ښودل کله چې هغوی قبرستان ته لاړ شي |
| السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَ الْمُسْلِمِينَ وَ إِنَّا |
| او هلته دا و وايي: ترجمه: سلامتي دې وي په تاسو باندې ای د مؤمنينو او د مسلمينو د کورو الو، يقينًا مونږ |
| إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَلَاحِقُونَ نَسْأَلُ اللهَ لَنَا وَ لَكُمُ الْعَافِيَةَ.[1] |
| هم که الله وغواړي تاسو سره به ضرور ملاو پږو. مونږ دالله نه د ځان لپاره او د ستاسو لپاره عافيت غواړو |
| (يعنې د مکروهاتو نه نجات در ته غواړو). |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۷۱/۲ رقم الحديث ۱۰۴-۹۵۷، وابن ماجه ۴۹۴/۱ رقم الحديث ۱۵۴۷، وأحمد في المسند ۵ ۳۵۳

**توضيح** : مقبره او قبرستان کې قبرونو ته د سلام نه وروسته څه دعائيه کلمې هم په حديثونو کې ثابت دي. خو په هغې کې تحديد او تعيين نشته دی بلکې په الفاظو کې څه تغاير موجود ده. نو دلته د نظر لاندې دعا موجود ده. او په عامو رواياتو کې هغه دعا ده چې د دې حديث نه وروسته په ۴ کې راروانه ده. په دې کې چې کوم سړي هم کومه يوه دعا ووېله نو د زيارت مسنون طريقه به پوره شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِقُبُورٍ بِالْمَدِيْنَةِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې (يو ځل) د مديني په قبرستان باندې تېريدو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د |
| فَأَقْبَلَ عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهِ فَقَالَ : السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ |
| قبرونو طرف ته وږل او ورته متوجه شو او ووې فرمايل چې ای د قبرو الوستاسو په خدمت کې سلام وړاندې |
| يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَ لَكُمْ أَنْتُمْ سَلَفُنَا |
| کؤو او الله دې ستاسو او زمونږ مغفرت وکړي. تاسو زمونږ نه مخکې رسيدلي يې او مونږ ستاسو نه |
| وَ نَحْنُ بِالْأَثَرِ. (۱) |
| وروسته درروان يو. |

**توضيح** : **فاقبل عليهم بوجهه**: په دې حديث کې دا واضح الفاظ دې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبرونو طرف ته متوجه شو او هغوی ته يې دعا او سلام وکړو. دا مسنون طريقه ده او ټول فقهاؤ او مجتهدين همدغه اختيې ده او د ټولو مسلمانانو په دې باندې عمل دی. يوائې ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په دې مسئله کې اختلاف کړی دی دا وايي چې د دعا په وخت کې د قبر طرف ته مه مخ کوي بلکې د قبلې طرف ته مخ کول په کار دي. (المرقات: ۴/۲۵۳).

شيخ مظهر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د مړو زيارت د ژوندو د زيارت په شان دی. چې د خلې او د مخ د طرف نه کېږي. الغرض په ژوند کې چې د ملاقات څه آداب دې نو په قبر باندې دې هم د هغې خيال وساتل شي. البته قبر طرف ته توجه د دعا غوښتلو په وخت کې لاس اوچتول مناسب نه دي. ځکه بيا به عوام همدغه خيال کوي چې سړی يې د همدغه مړي نه غواړي. د دې فتنې د خطر په وجه د ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ قول باندې به عمل ډير بهتره عمل وي. خو د لاس اوچتول نه بغير په دعا او سلام کې قبر اړخ ته متوجې کېدل

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۹۶۹، رقم الحديث : ۱۰۵۳.

بهتر دې. چې کوم عام معمول دی. اګر که د هندوستان د علماؤ باره کې مې اوريدلي دې چې هغوی د قبرانو ته متوجي شی او دعا کوي. (المرقات: ۴/۲۵۳).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د شپې په وخت کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه عجيبه دعاء وغوښته

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّمَا كَانَ لَيْلَتُهَا مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې په کومه شپه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوبت زما سره وُ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د |
| يَخْرُجُ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ إِلَى الْبَقِيعِ فَيَقُولُ : السَّلَامُ عَلَيْكُمْ |
| شپې په آخر کې پاڅيدو (د مديني قبرستان) بقيع ته به لاړو او هلته به يې ويل سلامتي دې وي په تاسو باندې |
| دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ وَ أَتَاكُمْ مَا تُوعَدُونَ |
| ای د مؤمنانو قوم! تاسو ته هغه شی راغلی دی چې تاسو سره يې وعده شوې وه (يعني د ثواب او د عذاب) |
| غَدًا مُؤَجَّلُونَ وَ إِنَّا إِنْ |
| سبا به (يعني د قيامت په ورځ به) تاسو (تر معلومې مودې پورې) مهلت درکړی شوی دی او مونږ هم که |
| شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَاحِقُونَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لأهل بَقِيعِ الْغَرْقَدِ.[1] |
| الله وغښتل نو تاسو سره ملاويدونکي يو. ای الله! د بقيع غرقد وال وبخښې. |

**توضيح**: په مدينه منوره کې يو قبرستان دی چې په هغې کې صحابه او د مديني خلک ښخ دي. د همغه قبرستان نوم بقيع دی. هغې ته بقيع غرقد هم وايي او نن سبا به ورته عوام الناس جنت البقيع وايي. هغه وخت د مسجد نبوی دالان دې قبرستان ته رسيدلی دی. په هغې کې فقط د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قبر ښکاره او معروف دی. د نورو د قبرونو آثار او نښاني د يوي منصوبي د لاندې وران کړی شوي دی. (المرقات: ۴/۲۵۴).

**غدامؤجلون**: کې د غدا نه مراد قيامت ورځ ده او د مؤجل معنی د مؤخر کولو ده. يعني تاسو ته چې کوم ثواب ملاويدونکی دی هغه به د قيامت په ورځ تاسو ته ملاويږي. تر هغه وخت پورې مهلت در کړی شوی دی. (المرقات: ۴/۲۵۴).

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲ ۶۶۹ رقم الحديث ۱۰۲ ۹۷۴، والنسائي في السنن ۴ ۹۳ رقم الحديث ۲۰۳۹

## په قبرستان کې غوښتلې شوې یوه بله دعاء

﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَيْفَ أَقُولُ يَا رَسُولَ اللهِ؟ تَعْنِي فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ

عائشه رضی الله عنها وایي چې ما عرض وکړو چې یا رسول الله! زه څه ووایم؟ یعنې د زیارت قبور په وخت کې څه

قَالَ: " قُولِي: السَّلَامُ عَلَى أَهْلِ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَ الْمُسْلِمِينَ

ووایم؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې داوایه: سلامتي دې وي د مؤمنانو او د مسلمانانو په کورو الاو

وَ يَرْحَمُ اللهُ الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنَّا

باندې الله دې په دوی هم رحم وکړي چې کوم زمونږ نه مخکې ؤ او په هغوی باندې دې هم د رحمت سیوری

وَ الْمُسْتَأْخِرِينَ وَ إِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَلَاحِقُونَ". (١)

وکړي چې کوم زمونږ نه وروسته راتلونکي دي یقیناً مونږ هم که الله وغوښتل تاسو سره ملاوېدونکي یو.

## د مور او پلار قبر ته په هره جمعه کې د تللو فضیلت

﴿٧﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ النُّعْمَانِ يَرْفَعُ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

محمد بن نعمان صلی الله علیه وسلم د احدیث تر نبي کریم صلی الله علیه وسلم پورې رسوي چې نبي علیه السلام وفرمایل

مَنْ زَارَ قَبْرَ أَبَوَيْهِ أَوْ أَحَدِهِمَا فِي كُلِّ جُمُعَةٍ

کوم سړی چې د هرې جمعې په ورځ (یا په اونۍ کې یوه ورځ) د مور او پلار یا په هغوی کې یو قبر ته لاړ شي

غُفِرَ لَهُ

(او هلته د هغوی لپاره د مغفرت دعاء او ایصالِ ثواب وکړي) نو د هغې مغفرت کېږي. او دا د خپل مور

وَ كُتِبَ بَرًّا. (٢)

او پلار سره نیکي کونکي لیکل کېږي.

**توضیح: وکتب برًا:** د دې مطلب دا دی چې کوم سړی هره جمعه د مور او پلار د قبر زیارت ته ځي او هلته فاتحه ووایي او ثواب یې هغوی ته وبخښي نو د هغې ټول ګناهونه اوبخښل شي او دا ځوي منونکی ولیکل شي. د دې آخري جملې نه دا مفهوم هم اخستل کېدلی شي چې که په مور او پلار کې یو

---

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ٦٦٩/٢ رقم الحديث ١٠٣ . ٩٧٤، والنسائي في السنن ٩٣/٤ رقم الحديث : ٢٠٣٨.

(٢) أخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث: ٩٢٩٦

يا دواړه د دې ځوي نه ناراضه وي او ځوي عاق وي نو د هغوی د زيارت په برکت سره به منونکی وليکل شي. د اولاد لپاره دا يو نااشنا نعمت او آسانه غنيمت دی. (المرقات: ۴/۲۵۶).

## قبرستان ته تللو سره د ترک دنيا او د ياد عقبی درس ملاويږي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ |
| ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ما اول تاسو د قبرونو د تګ نه منع کړي |
| فَزُوْرُوهَا فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا وَ تُذَكِّرُ الْآخِرَةَ.[1] |
| وې، خو اوس تاسو قبرونو ته ځې ځکه قبرونو ته تګ تاسو کې د دنيا بې رغبتي پيدا کوي او آخرت در ياد وي |

**توضيح: فانها تزهد:** د دنيا پرېښودل او د دنيا د ساز او سامان نه بې رغبتي او صرف نظر کيدو نوم تزهيد دی. په دې حديث کې قبرونو ته د تللو فايدو او د نتائجو په سلسله کې دوه فايدې ذکر کړې دي. اولنۍ فايده او اولنۍ علت دا ويل شوی دی چې قبرونو ته په تګ کولو سره د زړه؛ و مازغو نه د دنيا محبت او د خپل رياست او د قيادت او سيادت او د سياست تکبر او غرور لاړ شي او د انسان په زړه او مازغو کې دا نقشه کيني چې:

جګه جي لګانے کي دنيا نہيں ہے ۞ يه عبرت کي جا ہے تماشا نہيں ہے

انسان چې کله وګوري چې سبا دا د تاج والا بادشاه نن په ځو مره بې وسۍ او د تنهائۍ په حالت کې پروت دی. چې د هغې په قبر باندې هوا ګانې خاورې بادوي او هغه په لويو محلونو کې په صوفو کې او ګدو په ځای په تش فرش باندې د بالخت نه بغير په تنګ او تورتم کور کې پروت دی چې د ده بدلول هم په کې مشکل دي. دا منظر په ليدلو سره زيارت کونکي په مازغو باندې دا نقشه راشي:

الا يا ساکن القصر المعلى ۞ ستدفن عن قريب في التراب

له ملک ينادي کل يوم ۞ لدوا للموت و بنوا للخراب

قبرونو ته پللو کې دويمه فايده دا بيان کړی شوي ده چې کله د دنيا کمزورې او لاچارې په مازغو کې کيني نو په دې سره د آخرت بقاء او دوام نقشه په ذهن کې راشي. چې بيا انسان سوچ کول شروع کړي چې کوم ملک هغه په دنيا کې جوړوي خو هغه ختميدونکي ده. چې لاکهونه نمونې يې په قبرستان کې موجودې دي. لهذا اوس د داسې وطن د جوړولو او ترقي سوچ کول په کار دی چې نه ختميدونکی وي بلکې هميشنې ژوند وي او د همغې نوم آخرت دی.

---

(۱) أخرجه ابن ماجه ۱/۵۰۱ رقم الحديث ۱۵۷۱.

## قبرونو ته د ښځو تګ سخت منع دي

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ زَوَّارَاتِ الْقُبُورِ. (۱)

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر ته تلونکو ښځو باندې لعنت ويلی دی.

وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَ قَالَ: قَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ

او امام ترمذي رَحِمَهُ الله وايي چې دا حديث حسن دی او دا يې هم ويلي دي چې د ځينې علماؤ خيال دا دی

أَنَّ هٰذَا كَانَ قَبْلَ أَنْ يُرَخِّصَ النَّبِيُّ فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ

چې دا (يعنې قبر ته تلونکو ښځو باندې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام لعنت ويل) هغه وخت ؤ کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام قبر ته

فَلَمَّا رَخَّصَ دَخَلَ فِي رُخْصَتِهِ الرِّجَالُ وَ

د تللو اجازت نه ؤ کړی خو کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام قبر ته د تللو اجازت وکړو نو په هغه اجازت کې نارينه او

النِّسَاءُ. وَ قَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّمَا كُرِهَ زِيَارَةُ الْقُبُورِ لِلنِّسَاءِ لِقِلَّةِ صَبْرِهِنَّ

او زنانه دواړه شامل شو د دې خلاف د نورو علماؤ تحقيق دا دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په ښځو کې د صبر او تحمل

وَ كَثْرَةِ جَزَعِهِنَّ.

د مادې کمي او د جزع او فزع (يعنې دژړا او وير) د زياتي په وجه د هغوی قبرونو ته تګ ناخوښه کړی دی.

تَمَّ كَلَامه.

(لهذا د ښځو لپاره ممانعت اوس هم باقي دی) د ترمذی خبره پوره ده.

**توضيح**: د دې حديث نه مخکې د زيارت قبور د حديثنو توضيح او تشريح باندې پوره کلام شوی دی. دلته په دې حديث باندې امام ترمذي رَحِمَهُ الله هم بحث کړی دی چې قبرونو ته تګ فقط د نارينؤ لپاره اجازت دی يا په دې اجازت کې زنانه هم شاملي دي. بهرحال په ظاهري حديث کې ډير سخت وعيد دی. لهٰذا ښځو له پکار ده چې هغه د يو مستحب عمل لپاره په سخت ترين وعيد کې د راګيري دلو نه ځان وساتي. زيات تر ليدلی شوي دي چې ښځې د تفريحاتو په توګه مزارونو له ځي. او هلته کې بې پردګي کيږي او شرکيه عملونه کيږي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳۷۱ رقم الحديث ۱۰۵۶، والنسائي ۴/۹۴ رقم الحديث ۲۰۴۳، وابن ماجه ۱/۵۰۲ رقم الحديث ۱۵۷۵، واحمد في المسند ۲/۳۳۷

## ښځو ته د قبرستان د سړو نه حيا کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِيَ الَّذِي فِيهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې کله به زه هغه حجري ته تلم چې په کوم کې دفن شوي ؤ نبي کريم صلى الله عليه وسلم |
| وَ إِنِّي وَاضِعٌ ثَوْبِي وَ أَقُولُ : |
| (او حضرت ابو بکر رضي الله عنه) نو ما (د خپل بدن نه) ټوټه (څادر) لري کولو او (په زړه کې) به مې ويل چې |
| إِنَّمَا هُوَ زَوْجِي وَ أَبِي فَلَمَّا |
| دلته زما ميړه (نبي کريم صلى الله عليه وسلم او زما پلار (ابوبکر صديق رضي الله عنه) خخ دي (او دا دواړه زما د پاره |
| دُفِنَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَعَهُمْ |
| پردي نه دي نو بيا حجاب ولي؟) خو کله چې (په دې حجره کې) د دوي سره عمر فاروق رضي الله عنه ښخ کړې |
| فَوَ اللهِ مَا دَخَلْتُهُ إِلَّا وَ أَنَا مَشْدُودَةٌ عَلَيَّ ثِيَابِي |
| شو نو په خدای قسم! دې حجري ته بله چې زه کله هم داخليدلم نو په خپل بدن به مې څادر تاؤ کړی ؤ |
| حَيَاءً مِنْ عُمَرَ . [1] |
| دوجې د حياء د حضرت عمر رضي الله عنه نه (چې پردی ؤ). |

**توضيح : ادخل بيتي:** نبي کريم صلى الله عليه وسلم د حضرت عائشې رضي الله عنها په حجره کې مړ شوی ؤ. لهذا نبي کريم صلى الله عليه وسلم هملته ښخ کړی شو دا ځای داد حضرت عائشه رضي الله عنها کور ؤ نو د حضرت عائشې رضي الله عنها لپاره تنګ لري نه ؤ. بيا د هغې نه وروسته حضرت ابوبکر رضي الله عنه هم دلته ښخ کړی شو بيا حضرت عمر رضي الله عنه خواست وکړو چې که عائشه رضي الله عنها اجازت وکړي نو ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم او حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره خوا کې ښخ کړی. حضرت عائشې رضي الله عنها اجازت ورکړو. حضرت عمر رضي الله عنه هم هلته خخ کړی شو. په هغه حجره کې اوريدل شوي دي چې يو بل ځای پاتې دی چې هلته به حضرت عيسى عليه السلام ښخيږي. حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه نه ؤ ښخ کړی شوی نو زه بې تکلفه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم او د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د قبر زيارت لپاره تللم خو کله چې حضرت عمر رضي الله عنه هلته ښخ کړی شو. نو بيا به بې تکلفه د زيارت لپاره نه تلم بلکې ښه په تکليف

[1] مسند أحمد ۲۰۲/۶، رقم الحديث ۲۵۷۰۱

سره به مې ځادر د ځان نه راتاؤ کړو او د زیارت لپاره به تلم. دا د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د حیا په وجه ؤ ځکه هغه زما د محارمو نه،نه ؤ. دا حدیث ډیر وضاحت سره تعلیم ورکوي چې د مرګ نه وروسته د هغوی د قبرونو سره همغه معامله کول په کار دي کوم چې په ژوند کې کېږي. یعنې د ادب، حیا او د احترام د ټول شعبو خیال ساتل پکار دي. (المرقات: ۴/۲۵۷).

د حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ارشاد منقول دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې که زه په اور لاړ شم یا په تیره توره باندې لاړ شم چې زما ښپې پرې وسوځوي یا غوځې شي. دا زما ډیر خوښ دې د دینه چې زه د چا په قبر باندې لاړ شم. بیا یې وفرمایل چې زما په نزد په قبرونو باندې متیازې کول او په ډک بازار کې د خلکو په مخ کې متیازې کول برابر دي. دغه شان (المرقات: ۴/۲۵۷).

د سلیم بن عفیره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې مشهور دې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو کس په جواب کې وفرمایل په خدای قسم! زه د مړو نه دغه شان حیا کوم لکه څنګه چې د ژوندو نه حیا کوم. (المرقات ۴/۲۵۷).

دلته د دې حدیث د لاندې شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ د مړو نه د مدد غوښتلو خبره کړې ده او دغه شان د امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ طرف ته دا جمله منسوب ده چې **من كانه يستمد في حياته يستمد بعد موته** د دغه شان بهترینو اقوالو توجیه شاه عبدالعزیز رَحِمَهُ اللهُ داسې کړې ده چې په مزارونو کې د زړه نرم والی کیفیت غالب کېږي. چې په هغې سره د الله برکتونه رانازلېږي. په حقیقت کې دا مراقبه او مکاشفه د ژوندې سړي خپل محنت دی. مړي هیڅ مرسته نه ده کړې. مړي فقط واسطه شوی دی. مطلب دا شو چې په ژوند کې که د یو ژوندې سړي نه استفاده کیدلی شي نو د مرګ نه وروسته هم دغه د الله والا په دې نیکۍ کې معاون ثابت کیدلی شي. او د تعاون صورت همدغه دی چې هغه په دې کار کې د ذریعه او واسطه جوړه شي. ګینې عمل خو د مړي نه دی. محنت او مشقت خو د خپله د هغه ژوندې سړي دی. او د هغې اعتبار دی. د دې مثال د پرنالي (ناوې) دی چې د هغې په ذریعې سره د چت نه اوبه راغورزېږي که یو سړی پرناله د اوبو لپاره مؤثر بالذات ګڼي نو دا غلطه ده خو که پرناله فقط واسطه او ذریعه وي او اوبه مظهر وي نو په دې کې څه باک نشته دی. الحمد لله ۲۸ د رمضان د یک شنبې په ورځ د توضیحات د مسودې تحریر د ابتداء نه د جنائز د اختتام پورې پوره شو. څه نورې صفحې لیکنه هم ده خو وطن ته بیرته لاړ شم نو د پوره کولو اراده ده. زه د خپل پروردګار ډیر ډیر شکر ګزار یمه چې هغه رب ما ته توفیق راکړو چې زه د خپل توضیحاتو دریم جلد د دنیا د ټولو نه په مقدسه زمکه د مکې مکرمې بیت الله مخې ته پوره کړو. الله دې شرح ته په خپل قدرت کامله سره قبولیت عامه او خاصه ورکړي.

**آمین یا رب العالمین وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد و علی آله و صحبه اجمعین**

**فضل محمد یوسف زئی استاذ جامعه علوم اسلامیه علامه محمد یوسف بنوري ټاؤن کراچی ۵**

**حال نزیل مکة المکرمه ۲۳ نومبر ۲۰۰۳**

۷ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# كتاب الزكوٰة
# دزكوة بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلاَةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَمَا تُقَدِّمُوا لأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللهِ﴾ (سورة بقرة آيت:۱۱۰)

وقال الله تعالیٰ: ﴿وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ (سورة التوبة آيت:۳٤).

زکوة د اسلام په بنيادي ارکانو کې دریم رکن دی زکوة په لغوي اعتبار سره د طهارت، برکت او زیاتیدو په معنی دی او د دې اصطلاحي تعریف دا دی: **"الزكوٰة هي تمليك المال بغير عوض من فقير مسلم غير هاشمي ولا مولاه بشروط قطع المنفعة من الملك"**

یعنې د خپل معین مقدار چې شریعت مقرر کړی دی ثوک مستحق د خپل مال مالک کول. زکوة ته صدقه هم وایي. ځکه صدقه د زکوة ورکونکي مسلمان د ایمان په صداقت باندې دلالت کوي. د راجح قول مطابق د مکي نه د مدیني طرف ته د هجرت نه دوه کاله وروسته په ۲هـ هجرۍ کې زکوة فرض شو. په مخکنیو امتونو باندې هم زکوة فرض ؤو. خو د زکوة مقدار او د هغې د ورکولو طريقه مختلفه ده. انبياء کرامو باندې زکوة نه فرض کېږي. قرآن کریم کې الله زکوة د مونځ سره تقريبًا په ۳۲ مواقع کې ذکر کړی دی او چې کوم یې انفراداً ذکر کړی دی هغه ددې نه بغیر دي.

الله تعالیٰ زکوة ورکونکو سره د جنت وعده کړي ده او نه ورکونکو ته یې سخت وعید اورولی دی. نو ځکه زکوة د اسلام په بنيادي پنځه ارکانو کې دریم غټ رکن دی. ددې نه انکارکونکی کافر دی او نه ورکونکی سخت ګناه ګار، فاسق او فاجر دی. د زکوة جدا کولو وخت کې نیت کول کافي نه دی. خو دا نیت ضروري دی. زکوة هر عاقل، بالغ او په ازاد مسلمان باندې فرض دی خو په دې شرط چې هغه صاحب نصاب وي او په هغه نصاب باندې یو کال تیر شي او دا نصاب د اصلي ضرورت نه فارغ شوی وي او په صاحب نصاب باندې داسي قرض هم نه وي چې د هغې مطالبه د ب نه دی ګانو له طرف نه وي او هغه قرض د هغې په مال باندې غالبه وي. د کال په سر کې او په آخر کې د نصاب برقرار کیدل ضروري دي. که د کال په مینځ کې د نصاب وجود نه وي نو هغه د زکوة د فرضیت لپاره ترینه خلاصون نشته دی. د نصاب زکوة چې کوم مال دی په هغې کې د درې صفاتو موجودیدل ضروري دي. ۱: مال

نقد وي ۲: که څاروي وي نو د هغې سائمه کیدل ضروري دي یعني د کال په ډیره برخه کې تش په څریدلو گوزاره کوي. ۳: د تجارت مال وي.

**نصاب**: د مال د هغه مقدار نوم نصاب دی چې په هغې باندې شریعت زکوة مقرر کړی وي چې بیان یې مخکې راروان دی.

د نصاب دوه قسمه دي: اول نصاب نامی دی. یعنې په کوم مال کې د حقیقي ډیریدلو صلاحیت موجود وي لکه د سائمه مالونو اوبن. غوا. بیزه او د تجارت مالونه سره زر او سپین زر دي. په دې کې د ډیریدو صلاحیت موجود دی. اگر که په کور کې ایخودل شوی دی.

دویم نصاب غیر نامی دی. یعنې نه ډیریدونکی مال وي لکه کور دی، د کار کسب مشنري ده او د کور اسباب او سامان دي. په دې باندې زکوة نشته دی. خو د دې په گټو باندې زکوة شته دی.

، ضرورت اصلیه مطلب دا دی چې د هغې سره د سړی ځان او مال او عزت او آبرو د حفاظت تعلق وي ا. که خوراک څښاک، او د اغوستلو سامان او د وسیدلو لپاره کور، د خدمت لپاره سورلی او غلام او د تعمالول لپاره اسلح او داسي نور شیان. د صاحب نصاب مالک باندې فرض دې چې که هغه د خپل ـ نه زکوة ورکړي او خپله د چا زکوة وانخلي او نصاب غیر نامی والا باندې زکوة فرض نه دی خو د ې لپاره حرام دې چې هغه د چا نه زکوة نه واخلي او وي خوري.

**پ : کوة او ټیکس کې فرق**: د اسلام معاندین او ملحدین په نظام زکوة باندې اعترض کوي او وایي چې دا ټیکس دی هیڅ عبادت نه دی. د هغوی د دې اعتراض باندې رد کولو لپاره ضروري ده چې زکوة و: ټیکس په مینځ کې فرق واضح کړی شي. یو څو وجوهاتو سره د دغه فرق کتنه وکړو:

۱: زکوة د یو مسلمان لپاره عبادت دی. ټیکس عبادت نه دی.

۲: زکوة د الله له طرف نه په مسلمانانو باندې مقرر دی. ټیکس د انسانانو له طرف نه مقرر دی.

۳: زکوة د مسلمانانو مالدارو نه اخستل کېږي او غریب مسلمانانو ته ورکول کېږي. او ټیکس د غریبانانو نه اخستل کېږي او مالدارانو ته ورکول کېږي.

۴: زکوة مقدار د شریعت د طرف نه متعین کېږي. چې په ټوله دنیا کې یو شان وي خو ټیکس کې هیڅ داسي تعین نشته دی چې د ټولو انسانانو لپاره یو شان وي.

۵: زکوة هله فرض کېږي چې کله سړی صاحب حیثیت او صاحب نصاب وي خو په ټیکس کې د نصاب او د حیثیت هیڅ اعتبار نشته دی.

۶: د زکوة اصول او قواعد په انصاف باندې بناء دي. خو د ټیکس قواعد په ظلم بناء دي.

۷: د زکوة په مقدار کې انسان کمی او زیاتی نه شي کولی خو د ټیکس په مقدار کې انسان کمی او زیاتی کوي.

۸: د زکوة فرض کیدو نه وروسته هیڅ یو سړی نه معاف کېږي خو ټیکس معاف کیدلی شي.

۹: د زکوة په نظام سره د ورکونکې او اخيستونکې په مينځ کې مينه پيدا کېږي. او حال دا دی چې د ټيکس په نظام سره نفرت او دښمني پيدا کېږي.
د زکوة په ادا کولو سره په مال کې برکت راځي خو په ټيکس کې دا شی نشته دی.

**د زکوة فائدې**: د اسلامي معاشره په تشکيل کې او د دولت په تقسيم کې د زکوة ډير اهميت دی. د يو څو فايدو طرف ته اشاره کافي ده.

۱: د زکوة په ورکولو سره د مالداره او د غريب په مينځ کې د نفرت ديوال غورزېږي. او کميونزم او سوشلزم د انقلاب لاري بندېږي. ځکه غريب پوهېږي چې د مالداره په مال کې زما هم برخه ده. څومره چې د مالداره مال ډيرېږي هغه هومره برخه به ماته ملاوېږي. لهذا غريب خلک د مالدارو دښمن نه بلکې دوستان شي. ۲: د مالدارو په زړه کې د غريبانانو سره خواخوږي او مينه پيدا کېږي. ځکه کوم سړی چې چا باندې مصرف کوي او د هغې د هر خير لپاره فکر کوي.
۳: زکوة سره د سرمايه دارانه نظام ختم شي او د منصفانه تقسيم بنياد جوړ شي.
۴: د اسلامي معاشري لوي اقتصادي مسائل د زکوة په ادا کولو سره حل کېږي. او د ملک خزانه مستحکمه شي. ۵: زکوة په ورکولو سره مال کې برکت راځي. او په آخرت کې د الله رضا حاصلېږي. خو دا خبره د يادولو وړ ده چې زکوة عبادت دی او د عبادت خپل اصول دي. نن سبا چې پاکستان د زکوة د وصولولو کوم اصول جوړ کړي دي هغه اکثر غلط دي چې د هغې په وجه د زکوة فايدي نه تر لاسه کېږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### زکوة دې د مالداره نه واخستلې شي او غريب ته دې ورکړې شي

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ
ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم کله معاذ رضي الله عنه يمن امير (د قاضي په حيث) وليږلو نو

فَقَالَ : إِنَّكَ تَأْتِيْ قَوْمًا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ .
هغه ته يې وويل چې په اهلِ کتاب کې ديو قوم (يهود او نصارى) ته روان يې لهذا (اول خو ته) هغوی ته د دې

فَادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَ أَنَّ مُحَمَّدًا
خبرې گواهي ورکولو دعوت ورکړه چې د الله تعالى نه بغير څوک معبود نشته او بيشکه محمد صلى الله عليه وسلم

رَسُولُ اللهِ . فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوْا لِذَلِكَ . فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ
د الله رسول دی که هغوی دا خبره قبوله کړي نو (بيا) ته هغوی ته وو ايه چې الله فرض کړي دي په دوی باندې

خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَ اللَّيْلَةِ . فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذَلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ

پنځه مونځونه په شپه او ورځ کې. که هغوی دا ومني نو بيا (د هغې نه وروسته) هغوی خبر کړه چې الله په

أَنَّ اللهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ

دوي باندې زكوة فرض كړې دی چې اخيستلې كيږي به د دوی د مالدارانو نه(يعني د هغه خلكو نه چې صاحب

فَتُرَدُّ فِي فُقَرَائِهِمْ . فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذَلِكَ.

نصاب وي)او هغه به غريبانانو ته وركول كيږي كه هغوی دا ومني نو ته (دا خبره ياد وساته چې د هغوی

فَإِيَّاكَ وَ كَرَائِمَ أَمْوَالِهِمْ

نه په زكوة كې)د ښه مال اخستلو نه پرهيزو كړه (يعني په چاړترې نه ښه مال مه اخله بلكې د هغوی مال

په درې برخو كې تقسيم كړه،ښه،بد ،ميانه.لهذا په زكوة كې ميانه مال مه اخله)او ته(په زكوة اخيستلو كې

غير قانوني سختي مه كوه ياد داسې شيانو مطالبه په هغوی باندې واجب نه وي يا هغوی ته په ژبه يالاس

وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهَا وَ بَيْنَ اللهِ

باندې تكليف وركړې)د هغوی خيرې مه اخله ځكه د مظلوم دعا او د الله د طرف نه د هغې د قبوليت په مينځ

حِجَابٌ .(۱)

کې هيڅ پرده نشته دی.

**توضيح : اهل كتاب:** د اهل كتاب نه مراد يهود او نصارى دي اگر كه په يمن كې نور مشركان او كفار هم وُو. خو دا چې يهود او نصارى ډير وُو. نو ځكه د هغوی ذكر كړی شوی دی. (المرقات :۴/۲۵۸).

**فادعهم** :ابن ملك رَحِمَهُ اللهُ وايي چې كفارو ته د جنگ او د جهاد نه مخكې د اسلام دعوت وركول هغه وخت واجب دي. چې كله هغوی ته دعوت نه وي رسيدلی. كه دعوت ورته رسيدلی وي نو بيا دعوت وركول مستحب دی. د فقهاء احنافو موقف هم دغه دی. (المرقات ۴/۲۵۹).

**فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا:** د دې حديث نه معلومه شوه چې كفار د اسلام د فروعاتو مخالف نه بلكې اول د توحيد

---

(۱) أخرجه البخاري ۳۵۷/۳، رقم الحديث ۱۴۹۶، ومسلم في صحيحه ۵۰/۱ رقم الحديث :۲۹-۱۹، وأبوداود في السنن ۲۴۲/۲، رقم الحديث: ۱۵۸۴، والترمذي في السنن ۲۱/۳ رقم الحديث:۶۲۵، وابن ماجه ۵۶۸/۱ رقم الحديث : ۱۷۸۳، وأحمد في المسند ۲۳۳/۱.

او ایمان مخاطب دي. چې ایمان نه وي نو مونځ، روژه او د زکوة اعتبار نشته د احنافو د ائمؤ هم دغه موقف دی. د شوافعو او د نور حضراتو په نزد کفار مخاطب بالفروعات دي. بیا په هغوی باندې هم یو اعتراض دی چې د اسلام د قبولو نه مخکې خو مونځ صحیح نه دی او د اسلام د قبولولو نه وروسته مونځ او د نورو شیانو قضاء نشته نو بیا مخاطب بالفروعاتو څه مطلب دی. شوافعو ته جواب ورکول په کار دی.

## د زکوة په مانعینو باندې د عذاب تفصیل

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَا مِنْ صَاحِبِ |
| ابو هریره رضي الله عنه او یی دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل کوم سړی چې مالک وي (د شرعي : صاب) |
| ذَهَبٍ وَلَا فِضَّةٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ صُفِّحَتْ لَهُ |
| د سرو او د سپینو زرو او د هغوی حق (یعنې زکوة) ورنه کړي نو د قیامت په ورځ به د دوی د پاره جوړې کړې |
| صَفَائِحُ مِنْ نَارٍ |
| شي د اور تختې (یعنې تختې به سرو او د سپینو زرو وي خو په اور کې به دومره تو دې کړې شي چې ګویا کې |
| فَأُحْمِيَ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ |
| هغه د اور تختې دي ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل چې) هغه تختې به د دوزخ په اور کې تو دې کړې شي |
| فَيُكْوَى بِهَا جَنْبُهُ وَ جَبِينُهُ وَ ظَهْرُهُ |
| او په هغه تختو سره به د ده ډډې، تندی او شاه به داغ کولی کېږي. بیا به دغه تختې (د ده د بدن نه) جدا کړی |
| كُلَّمَا رُدَّتْ |
| شي او په اور کې به تو دې کړې او بیا به راوړې شي (یعنې دغه تختې به ګرمې کړې شي نو هغه به بیا د تو دولو |
| أُعِيدَتْ لَهُ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ |
| لپاره په اور کې واچولی شي او را ایستلی به شي او د ده بدن به پرې داغول کېږي) او د دې ورځې مقدار چې |
| خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ |
| په دې کې به دغه سلسله روانه وي د پنځوس زره (۵۰۰۰۰) کاله به وي تر دې چې د بنده ګانو حساب به ختم شي |
| فَيُرَى سَبِيلُهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَ إِمَّا إِلَى النَّارِ قِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ |
| او هغه سړی به د جنت یا د دوزخ طرف ته لاره ووینې صحابه کرامو وویل یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! (دا |

فَالْإِبِلُ ؟

عذاب خو به دنغدويعنې دسرو او دسپينو زروباره کې وي) د اوښ (د زکوة په نه ورکولو) باندې څه حشر

قَالَ : وَلَا صَاحِبُ إِبِلٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا

وي؟نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړی چې داوښ مالک وي او دده حق (يعنې زکوة) ورنه کړي او

وَ مِنْ حَقِّهَا حَلْبُهَا يَوْمَ وِرْدِهَا إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ

داوښانو يو حق دا هم دی چې په کومه ورځ هغه ته اوبه ورکړی شي دده شوده ولشل شي نو دقيامت په ورځ

بُطِحَ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ أَوْفَرَ

به هغه سړی داوښ مخې ته په هوار ميدان کې پړمخې به واچولی شي او دده ټول اوښان په شميرا و ځورب

مَا كَانَتْ لَا يَفْقِدُ مِنْهَا فَصِيلًا وَاحِدًا

والي کې پوره وي مالک په هغې کې يو بچی هم ورک نه مومي (يعنې د هغه سړي به ټول اوښان هلته موجود

وي تردې ددې اوښانو ټول بچي به هم دده سره وي ددې دپاره چې خپل مالک دخپولاندې کولو په وخت

تَطَأُهُ بِأَخْفَافِهَا وَ تَعَضُّهُ بِأَفْوَاهِهَا

کې ورته ښه تکليف ورسوي) نو هغه اوښ به هغه سړي په خپلو خپو باندې ومړي او په غاښونو باندې به يې

كُلَّمَا مَرَّ عَلَيْه أُولَاهَا رُدَّ عَلَيْهِ أُخْرَاهَا

وچيچي چې دهغه ارښانو دا ډله (دخپولاندې) لاړه شي نو بله ډله به راشي (يعنې د دې اوښانو قطار به د

خپولاندې کولو سره تير شي نو هغې پسې به بله ډله راشي او دغه شان به دا اسلسله روانه وي) او چې په کومه

فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ

ورځ به دا کيږي دهغه ورځې مقدار به دپنځوس زره کالو وي تردې چې د بنده ګانو حساب به ختم شي او

فَيُرَى سَبِيلُهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَ إِمَّا إِلَى النَّارِ قِيلَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ

هغه سړی به د جنت يا دوزخ طرف ته خپل لاره ووينې. صحابه کرامو ووېل: يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! د

فَالْبَقَرُ وَ الْغَنَمُ ؟ قَالَ : وَلَا صَاحِبُ بَقَرٍ وَلَا غَنَمٍ

غواګانو او بيزو د مالک به څه حال وي؟نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل کوم سړی چې دغواګانو او بيزو مالک وي

لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ بُطِحَ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ

او ددې حق (يعنې زكوة) ادا نه كړي نو د قيامت په ورځ به هغه په هوار ميدان كې پر مخې راګوزار كړى شي

لَا يَفْقِدُ مِنْهَا شَيْئًا

او دده غوا ګانې او بيزې به (هلته راوغونډلې شي چې) په هغې كې به هيڅ څه كم نه وي په هغې كې به نه د

لَيْسَ فِيهَا عَقْصَاءُ وَلَا جَلْحَاءُ وَلَا عَضْبَاءُ

غوا او بيزې خكرتاؤ وي او نه به مات وي او نه به هغه منډي (يعنې بغير د ښكرو نه وي (يعنې د هغې په سرونو

باندې به ښكرې وي او ماتې به نه وي بلكې پوره به وي تردې چې په خپلو ښكرو نو به يې وو هي نو هغه

تَنْطِحُهُ بِقُرُونِهَا

غوا ګانې او بيزې به په خپلو ښكرو باندې خپل مالك وهي او په خپلو ښكرو نو باندې يې چيت كړي او چې دا

وَ تَطَأُهُ بِأَظْلَافِهَا كُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ أُولَاهَا رُدَّ عَلَيْهِ أُخْرَاهَا

يو قطار دا چيت كړي او) لاړې شي نو بل قطار به راشي (او خپل كار به شروع كړوي او دا سلسله به روانه وي)

فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ

او چې په كومه ورځ به دا كاروي نو د هغه ورځ مقدار به پنځوس زره كاله وي تردې چې د بنده ګانو حساب

فَيُرَى سَبِيلُهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَ إِمَّا إِلَى النَّارِ . قِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ

وشي نو دا به جنت يا دوزخ ته خپله لار ووينې. صحابه كرامو وويل چې يا رسول الله ﷺ! د

فَالْخَيْلُ ؟ قَالَ : " الْخَيْلُ ثَلَاثَةٌ :

اسونو باره كې څه حكم دى؟ نبي عليه السلام وفرمايل د اسپو درې قسمه دي يو خو هغه اسپې دې چې د سړي

هِيَ لِرَجُلٍ وِزْرٌ وَ هِيَ لِرَجُلٍ سِتْرٌ وَ هِيَ لِرَجُلٍ

دپاره د ګناه سبب وي دويم هغه اسپې دې چې د سړي لپاره پرده وي او دريم هغه اسپې دې چې د سړي لپاره

أَجْرٌ . فَأَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ وِزْرٌ

د ثواب سبب او ذريعه جوړېږي نو هغه اسپه چې د ګناه سبب جوړېږي د هغه سړي اسپې دې چې هغه به خپل

فَرَجُلٌ رَبَطَهَا رِيَاءً وَ فَخْرًا وَ نِوَاءً عَلَى أَهْلِ الْإِسْلَامِ

مالك د فخر او د غرور او د مالدارۍ او د ريا لپاره او د مسلمانانو سره د دښمنۍ لپاره تړلي وي نو د غه اسپې

فَهِيَ لَهُ وِزْرٌ . وَ أَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ سِتْرٌ فَرَجُلٌ

به د مالک لپاره د ګناه سبب وي او هغه اسپي چې د مالک لپاره پرده وي هغه اسپي دې چې مالک یې د

رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ لَمْ يَنْسَ حَقَّ اللهِ فِي ظُهُورِهَا وَلَا رِقَابِهَا

خدای په لاره کې (د کار اخستلو لپاره) وتړلی او ددې شا او د څټ باره کې د خدای حق هیر نه کړو نو دغه

فَهِيَ لَهُ سِتْرٌ . وَ أَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ أَجْرٌ

اسپي به د مالک لپاره پرده وي او هغه اسپي چې د مالک لپاره د ثواب سبب جوړیږي د هغه سړي اسپي دي

فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ

چې مالک یې داد خدای په لاره کې (د جنګ لپاره) د مسلمانانو لپاره وتړي او هغه یې په څارن ځای او

فِيْ مرج أَو رَوْضَة فَمَا أَكَلَتْ مِنْ ذَلِكَ الْمَرْجِ أَوِ الرَّوْضَةِ مِنْ شَيْءٍ

په شینکي کې وساتي. نو چې کله هغه اسپي راشي او د څارن ځای او شینکي نه چې څه خوري نو څه چې

إِلَّا كُتِبَ لَهُ عَدَدَ مَا أَكَلَتْ حَسَنَاتٌ

دې وخوړل (یعني دوابنو یادنو روشیانو د شمیر په قدر به دده د پاره نیکۍ لیکل کیږي تردي چې د هغه

وَ كُتِبَ لَهُ عَدَدَ أَرْوَاثِهَا وَ أَبْوَالِهَا

اسپو خراشنه او دمتیازو په قدر به هم د هغوی لپاره نیکۍ لیکل کیږي (ځکه لید او میتازي به هم د اسپي

حَسَنَاتٌ وَلَا تَقْطَعُ طِوَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا أَوْ شَرَفَيْنِ

د روند سبب دي) او کومې اسپي چې پړی وشکوي او په میدان کې یو یا دوه ځل منډه ووهي نو الله به ددوی

إِلَّا كَتَبَ اللهُ لَهُ عَدَدَ آثَارِهَا

د قدمو نو نښانو او ددې خراشنو (چې اسپي یې د منډې په حالت کې کوي) د شمیر په برابر به ددې سړي لپاره

وَ أَرْوَاثُهَا حَسَنَاتٍ وَلَا مَرَّ بِهَا صَاحِبُهَا عَلَى نَهْرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ

نیکۍ لیکل کیږي او کله چې هغه سړی هغه اسپي نهر ته د اوبو څکلو لپاره بوځي او اسپي د نهر نه اوبه څکي.

وَلَا يُرِيدُ أَنْ يَسْقِيَهَا إِلَّا كَتَبَ اللهُ لَهُ عَدَدَ مَا شَرِبَتْ حَسَنَاتٍ "

اګر که ددې مالک د اوبو د څکولو اراده نه وي نو دده لپاره د اوبو د څکلو برابر نیکۍ هم لیکي صحابۂ

قِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ فَالْحُمُرُ ؟ قَالَ :

وويل: يا رسول الله! بنا د خرو باره کې څه حکم دی؟" نبي عَلَيْهِ‌الصَّلَاةُ‌وَالسَّلَامُ وفرمايل "د خرو باره کې ماته

" مَا أُنْزِلَ عَلَيَّ فِي الْحُمُرِ شَيْءٌ إِلَّا هٰذِهِ الْآيَةُ الْفَاذَّةُ الْجَامِعَةُ

هيڅ حکم نه دی نازل شوی خو دنيکيو او داعمالو باره کې دا آيت جامع دی

﴿ فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَ مَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا

(ترجمه) چاچې نيک عمل وکړو په اندازه د يوې ذرې دا به به ويني او چا چې وکړو بد عمل په اندازه د

يَرَهُ ﴾.[1]

يوې ذرې دا به ويني (يعني مثلاً يعني که يو سړی بل سړي ته د يو نيک کار ته د تللو لپاره خپله خره

ورکړي نو هغې ته به ثواب ورکول کېږي او که د بد کار لپاره يې ورکوي نو ګناهګار به وي.

**توضيح : منها حقها**: دلته د مؤنث ضمير د مالونو په تاويل راوړی شوی دی يا د مؤنث ضمير "فضة" د کلمې طرف ته ده او د حق نه مراد زکوة دی چې فرض دی. (المرقات: ۴/۲۶۱).

**صفحت صفائح**: دا د صفيحة جمعه ده تختي ته وايي. يعني د سرو او سپينو زرو تختې نه به د اور تختې جوړې شي او د زکوة نه ورکونکو ته به پرې داغونه ورکول کېږي. (المرقات: ۴/۲۶۱).

**احمي**: يعني هغه تختې به بنې تو دي (ګرمولی کړی شي. (المرقات: ۴/۲۶۲).

**جنبه وجبنيه**: دلته داغ ورکولو لپاره درې مقامات ذکر کړی شوي دې اول طرف، دويم ت نه دی او دريم شا. د دې تخصيص وجه دا کيدلی شي چې د زکوة ورکونکي په تندي باندې د زکوة د مطالبي په وخت کې کوت (ګونجي) راځي. نو ځکه به ورله ت نه دی داغول کېږي. کله صاحب مال د زکوة نه ورکول لپاره په يو طرف واوړي او کله شا واړوي او لاړ شي. نو ځکه به ورله دا ځايونه داغول کېږي. (المرقات: ۴/۲۶۲).

**کلمات ردت اعيدت**: يعني د سرو او سپينو زرو هغه تختې سړې شي نو دوباره به تو دولو لپاره ويوړلی شي او بيا به د داغ ورکول لپاره راوړلی شي. (المرقات: ۴/۲۶۲).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴۰۲/۳، رقم الحديث ۱۴۹۶، ومسلم في صحيحه ۶۸۰/۲ رقم الحديث: ۲۴-۹۸۷، وأبوداود في السنن ۳۰۲/۲، رقم الحديث: ۱۶۵۸، وأحمد في المسند ۴۸۹/۲.

**مقدارهٔ خمسين الف سنة:** د قيامت ورځ به د کفارو لپاره د سختو احوالو په وجه د پنځوس زره کالو په مقدار اوږده معلومېږي. د مؤمن لپاره به د دوه رکعتونو يا د څلورو رکعتونو مونځ په مقدار محسوسېږي. او د نورو مسلمانانو لپاره به د هغوی د اعمالو په حساب لنډه يا اوږده وي. لهذا په دې کې څه تعارض نشته دی. (المرقات ۴/۲۶۲).

**ومن حقها حلبها يوم وردها:** اوښ د اوبو ورکونکو دا قاعده وي چې هغوی اوښانو ته په دويمه يا په دريمه ورځ په وقفې سره د اوبو ځای ته بوځي او د اوبو څکولو نه وروسته اوښان لوشي او بيا يې هلته په راجمعه شوي فقيرانو او مسکينانو باندې تقيسم کړي. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د همدغې حق ذکر کړی دی دا د زکوٰة د حق نه جدا دی خو دا حق فرض او واجب نه دی بلکې مستحب دی. البته د همدردۍ او د احسان په نظر نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې ډېر سخت تاکيد کړی دی. (المرقات ۴/۲۶۳).

**بطح لها:** پر مخې راګوزارلو ته بطح وايي. (المرقات: ۴/۲۶۳).

**بقاع:** کولاؤ او هوار ميدان ته وايي. (المرقات: ۴/۲۶۴).

**قرقر:** دا د قاع د صفت لپاره مؤکده دی. هوار او کولاؤ ميدان ته وايي. اوفر: دا د ابل نه حال واقع دی. مراد دا دی چې لوي او واړه اوښان به موجود وي. هيڅ يو اوښ به غائب نه وي. دويم مطلب دا دی چې دا اوښ به داسې حال کې وي چې ښه چاغ به وي. هيڅ يو به په هغې کې کمزوری نه وي د دې لپاره چې خپل مالک ته درونده عذاب ورکړي. (المرقات: ۴/۲۶۴).
د ټول عبارت ترجمه به داسې وي چې په يو کولاؤ او هوار ميدان کې به د چاغو اوښانو مخې دا سړی پر مخې راګوزار کړي شي او اوښان پرې ښه وګرځي.

**اخراها:** يعنې د يوې ګردې دائرې په شکل کې به دا اوښ د هغه سړي د پاسه ګرځي. چې کله د اوښانو د قطار آخري اوښ د دې سړي د پاسه وګرځي او لاړ شي نو د دغې قطار اولنی اوښ به بيا د ګرځيدلو لپاره راورسېږي. په مسلم شريف کې د دې مطلب مطابق د حديث الفاظ داسې هم دي **"کلما جازت اخراها ردت عليه اولاها":** خو دلته چې کوم روايت دی. د هغې مطلب به دا واخستلی شي چې په دې سړي به په مختلفو قطارونو کې اوښ راځي. کله چې يو قطار لاړ شي نو بل قطار به د چيتولو لپاره راورسېږي.
خو علامه طيبي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د بحث لاندې حديث کې مناسب دې چې په تقديم او تاخير باندې دې عمل وشي يعنې دا داسې واخستلی شي **"کلما مر عليه اخراها ردت عليه اولاها"** نو په دې طريقه به د روايتونو اختلاف ختم شي او مطلب به واضح شي چې په هم يو قطار کې به د دائرې په شکل کې دغه سړی د ښپو لاندې کوي. (المرقات: ۴/۲۶۴ والکاشف: ۴/۸).

**ليس فيها عقصاء**: د باب سمع يسمع نه دى. هغه غوا او بيزي ته وايي چې ښكرونه يې تاؤ شوي وي چې په وهلو سره سړي ته لږ تكليف ور رسيږي. مطلب دا چې ټول به د نيغ او تېرو ښكرو والا څاروي وي. (المرقات: ۴/۲۶۵).

**ولا جلحاً**: هغه غوا او بيزه چې ښكر يې مات شوى وي. (المرقات: ۴/۲۶۵).

**ولا عضباً**: هغه غوا او بيزه چې بيخي يې ښكر نه وي. مطلب دا دى چې د هغه څاروُ ښكران به ښه نيغ، اوږده او تيز وي چې په ښكر وهلو سره به يې ښه تكليف محسوسيږي. (المرقات: ۴/۲۶۵).

**تنطحه**: نطح په ښكرونو باندې وهلو ته وايي. (المرقات: ۴/۲۶۵).

**قال الخيل ثلاثة**: صحابوُ وپوښتل چې يا رسول الله ﷺ د اسپي څه حكم دى. نبي كريم ﷺ وفرمايل چې اسپي په درې قسمه دي. (المرقات: ۴/۲۶۵).

**سوال**: دلته دا سوال دى چې د نبي كريم ﷺ نه صحابوُ د اسپو د زكوة او د حقوق الله باره كې پوښتنه كړې وه. نبي كريم ﷺ د هغې جواب ولې ور نه كړو؟

**جواب**: شوافع حضرات وايي چې نبي كريم ﷺ د اسلوب حكيم په توګه جواب وركړى دى. هغه داسې چې د اسپو باره كې پوښتنه مه كوئ ځكه په هغې كې زكوة نشته دى بلكې دا پوښتنه كوئ چې د اسپو په ساتلو كې څه فايدې او نقصانونه دي. نو واورئ، اسپي (اسونه) په درې قسمه دي.

احناف وايي چې نبي كريم ﷺ د اسلوب حكيم په توګه دا جواب وركړى دى چې په اسپو كې فقط د زكوة باره كې پوښتنه مه كوئ هغه خو واجب دى. خو د دې سره سره چې د اسپو د مالك لپاره څه فايدې او نقصانونه دې د هغې باره كې هم پوښتنه كوئ. نو واورئ چې د اسپو درې قسمونه دي. اول هغه قسمه اسپي دې چې د خپل مالك لپاره د ګناه او بوجه سبب جوړيږي. هغه داسې چې د هغې هغه اسپي د ځان خودنې، د فخر كولو او د مسلمانانو سره د جنګ او د دښمنۍ لپاره ساتلي دي.

"لواء" جنګ او د دښمنۍ ته وايي. دويم قسم هغه اسونه دي چې د خپل مالك لپاره پرده وي دد دې وضاحت داسې دى چې مالك اسونه د اسلام د دين د خدمت او خپل ضرورت لپاره ساتلي وي كله چې د هغه په نيكو كارونو كې ضرورت پيښيږي نو په هغې كې استعمالوي، يا ديو غريب فقير مسكين په خدمت كې وركوي او دا په استعمال كې راولي د غه شان د هريو نيك كار د پاره هغه د غه اسونه تيار ساتلي وي د بل چا نه د غو ختلو ضرورت نه پيښيږي. دلته په حديث كې چې د في سبيل الله كوم لفظ راغلي دې دې نه مراد جهاد نه دې بلكه مطلق دين مراد دې ځكه چې د جهاد خبره په راتلونكي كلام كې ذكر ده. (المرقات ۲۶۶-۴/۲۶۵).

**قوله :ولا رقابها:** دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد په دې سره داسونو دزکوة ادا کولو طرف ته اشاره ده اختلاف وړاندې راځي. (المرقات ۴/۲۶۷).

دریم قسم هغه اسونه دی چې دهغې مالک داجر او ثواب دپاره دالله تعالی په لار کې وقف کړی وی. دلته دسبیل الله نه جهاد مراد دې.

**في مرج:** دې نه مراد کولاو او فراخ دځرن ځائي ددې. په کوم کې چې جهادی اسونه ساتلې شي. اوس ددغه جهادی اسونه هر څیز او هر نقل او حرکت دهغې دمالک دپاره داجر او ثواب سبب دې. (المرقات ۴/۲۶۷).

**فاستنت:** توندې منډې ته استنان وايي.

**شرفا:** اوچت ځاې ته شرف وايي. مراد دا دی چې په یو یا دوه اوچتې غونډو باندې یا په اوچتو ځایونو باندې منډه کړي. نو په دغه اختیاري او غیر اختیاري حرکاتو او سکناتو باندې هم مالک ته ثواب ورکول کېږي. دا د جهادي د اسپي شان دی نو خپله به د مجاهد څه شان وي. (المرقات ۴/۲۶۷).

## که مال کې زکوة ورنه کړی شي ګنجی مار به ترې نه جوړ شي او ټکونه به لګوي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :" مَنْ آتَاهُ اللهُ مَالًا |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کوم سړي ته چې الله مال اوزرور کړی وي |
| فَلَمْ يُؤَدِّ زَكَاتَهُ مُثِّلَ لَهُ مَالُهُ شُجَاعًا أَقْرَعَ |
| اوده زکوة ادانه کړونو دقیامت په ورځ به دده مال دګنجې مار په شکل بدل کړی شي چې د هغې په سترګو |
| لَهُ زَبِيبَتَانِ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَمْ يَأْخُذ بِلِهْزِمَتَيْهِ - يَعْنِي |
| باندې به دوه تورټاکي وي بیا به هغه مار ددې سړي په غاړه کې دامیل په توګه واچولی شي او هغه مار دده |
| شِدْقَيْهِ يَقُولُ : أَنَا مَالُكَ أَنَا كَنْزُكَ " ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ : |
| دواړه جامې ونیسي او وايي به چې زه ستا مال یم، زه ستا خزانه یم ددې نه ورسته نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا آیت ولوستو |
| ﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ﴾ إِلَى آخر الْآيَةِ.(۱) |
| هغه خلک چې بخل کوي دا ګمان مه کوی په هغه مال کې چې الله تعالی ورکړي (تر آخر د آیت پورې). |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳، رقم الحديث ۱۴۰۳

**توضیح : شجاعا**: شجاع شین باندې پیش او کسره په دواړو طریقو باندې ویل کېږي. دا مذکر مار ته وایي. (المرقات: ۴/۲۶۹).

**اقرع**: دا هغه ګنجي مار ته وایي چې د هغې په سر باندې د ډېر زهرو له وجې یا د ډېر عمر په وجې ویختان نه وي چې د سخت خباثت او شدت نښانه ده.

**زبیبتان: هما النکتتان السوداوان فوق عینیه**. د مار د سترګو د پاسه دوه تور ټکي وي هغې ته زبیبتان وایي. په مارانو کې د غه قسم مار خبیث ترین مار وي. (المرقات: ۴/۲۶۹).

**لهزمتیه**: د زکوة نه ورکونکي سړي دواړه جامې مراد دي. ای **شدقیه**. (المرقات: ۴/۲۶۹).

﴿٤﴾ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُونُ لَهُ إِبِلٌ

ابو ذر غفاري رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبي علیه السلام و فرمایل کوم سړي سره چې اوښ

أَوْ بَقَرٌ أَوْ غَنَمٌ لَا يُؤَدِّي حَقَّهَا إِلَّا أُتِيَ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ

یا غوا یا بیزه وي او دا د دې حق (یعنې زکوة) ورنه کړي نو سبا به د قیامت په ورځ هغه څاروي په داسې حال

أَعْظَمَ مَا تَكُونُ وَ أَسْمَنَهُ تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا

کې راوستلی شي چې هغه به ډېر لوي لوي او چاغ وي او بیا به غه سړی د خپلو خپولاندې و مړي او چیت به یې

وَ تَنْطِحُهُ بِقُرُونِهَا كُلَّمَا جَازَتْ أُخْرَاهَا رُدَّتْ عَلَيْهِ أُولَاهَا

کړي او په خپلو ښکرو نو به یې وهي چې هغه (چیت کړي او) آخری ډله لاړه شي نو بیا به اولنۍ ډله راوستلی

شي (یعنې دغه شان به ټول څاروي بیا راشي او دا به وهي دا سلسله به تر هغه وخت پورې روانه وي چې)

حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ.[1]

تر څو پورې د خلکو حساب او کتاب وشي او د هغوی فیصله ونه کړی شي.

## د زکوة ټاټلین خوشحاله واپس ولیږئ

﴿٥﴾ وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا

جریر ابن عبد الله رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل کله چې (د وخت د امام د طرف نه) د

---

(۱) أخرجه البخاري ٣/ ٢٠٢، رقم الحديث ١٤٦٠، ومسلم في صحيحه ٢/ ٦٨٦ رقم الحديث ٣٠-٩٩٠، وأحمد في المسند ٣/ ٣٢١.

| أَتَاكُمُ الْمُصَدِّقُ |
|---|
| زکوة وصولونکی(چې د شریعت په اصطلاح کې ورته ساعی او عامل وايي)راشي نو چې هغه(زکوة |
| فَلْيَصْدُرْ عَنْكُمْ وَ هُوَ عَنْكُمْ رَاضٍ.[1] |
| وصول کړي او) ستاسو د خوا نه په داسي حال کې لاړ شي چې ستاسو نه راضي وي. |

**توضيح : المصدق**: زکوة وصولولو لپاره مقرر شوي کارکن ته "**مصدق**" وايي. او د زکوة ورکونکي مالک ته "**متصدق**" وايي. (المرقات : ۴/۲۷۰). (**کذافي اشعة اللمعات**)

د حديث مطلب دا دی چې کله د وخت بادشاه يا د اسلامي ادارو له طرف نه زکوة وصولونکی راشي نو د هغوی سره د احترام او د اکرام معامله کول په کار ده. بهترين انداز سره هغوی ته پوره زکوة سپارل په کار دي. او هغه په هر حال کې خوشحاله ساتل په کار دي. د اسلام دا حکيمانه او عادلانه مزاج دی چې هغه سړي ته د هغې د ذمه وارۍ احساس ورکوي. مالک ته د هغې د ذمه وارۍ دومره احساس ورکوي چې هغه په هر حال کې زکوة وصولونکی خوشحاله وساتي. هغه که هر څومره ظلم وکړي. دلته عامل او د زکوة وصولونکي ته د هغوی د ذمه وارۍ دا احساس ورکوي چې هغوی په هيڅ صورت کې په هغې ظلم ونه کړي. د هغې د مال نه ښه مال وانښلي او نه ترينه د رمې بيزه واخلي بلکې په زکوة کې ميانه مال ترينه واخلي. دا د دې لپاره چې مالک خفه نه شي. دغه شان د اسلام په قواعدو او ضوابطو کې د مالک د اجر او ثواب په ښکاره الفاظو کې بيان شوی دی. چې هغې په زکوة ورکول کې څه بوجه محسوس نه کړي. او دغه شان يې د زکوة وصولونکي اجر او ثواب يې بيان کړو چې هغې ته فقط د وظيفي او د مزدورۍ احساس نه وي بلکې د عبادت احساس ورته وي.

## د زکوة د عامل د پاره د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعاء

| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَاهُ قَوْمٌ بِصَدَقَتِهِمْ |
|---|
| عبد الله ابن ابی اوفی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې کله به يو جماعت نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته زکوة راوړو(چې نبي |
| قَالَ : اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ فُلَانٍ. |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ يې په مستحيقينو تقسيم کړي)نو فرمايل به يې چې ای الله! د فلاني سړي په خاندان رحمت نازل |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۸۶/۲ رقم الحديث :۲۹ ۹۸۹، والترمذي في السنن ۳۹/۳ رقم الحديث:۶۴۷، وابن ماجه ۵۷۶/۱ رقم الحديث : ۱۸۰۲، وأحمد في المسند ۳۶۵/۴.

فَأَتَاهُ أَبِي بِصَدَقَتِهِ فَقَالَ : اَللّٰهُمَّ صَلِّ

کړي نوزما پلار نبي علیه السلام ته خپل زکوة راوړونو نبي علیه السلام وفرمايل چې اې الله! رحمت نازل کړې د

عَلَى آلِ أَبِي أَوْفَى . وَ فِي رِوَايَةٍ : " إِذَا أَتَى الرَّجُلُ النَّبِيَّ

ابو اوفی رضی الله عنه په خاندان باندې، او په يو بل روايت کې دا الفاظ دې چې :کله به يو سړی راغلو نبي

بِصَدَقَتِهِ قَالَ : اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ .[1]

علیه السلام ته د خپل زکوة سره نو نبي علیه السلام به فرمايل چې اې الله! رحمت نازل کړې په دې سړي باندې.

**توضیح : اللهم صل:** د نبي نه بغير په غير نبي باندې په مستقله توګه درود ويل منع دی. خو بالتبع جائز دی دا حکم د امتي باره کې دی. خپله که نبي کريم صلی الله علیه وسلم د چا لپاره د صلوة لفظ استعمال کړي نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم د دې حکم نه مستثنی دی. دا د نبي کريم صلی الله علیه وسلم خصوصيت دی لکه څنګه چې دلته نبي کريم صلی الله علیه وسلم د صلوة لفظ استعمال کړی دی.
بهرحال صدقه اخستونکي ته په کار دې چې صدقه ورکونکي ته نبي دعاګاني وکړي چې د هغې زړه مطمئن او خوشحاله شي. او هغې ته دا احساس نه وي چې زما مال زما په زوره واخستلی شو.

## د مال په موجودتيا کې زکوة نه ورکول کفران نعمت دی

﴿٧﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ . قَالَ : بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عُمَرَ عَلَى الصَّدَقَةِ .

ابو هريره رضی الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم حضرت عمر رضی الله عنه (زکوة وصولولو لپاره) مقرر کړو.

فَقِيلَ : مَنَعَ ابْنُ جَمِيلٍ وَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ وَ الْعَبَّاسُ .

يو سړي خبر راوړو چې ابن جميل رضی الله عنه، خالد ابن وليد رضی الله عنه او حضرت عباس رضی الله عنه زکوة ورنه کړو

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَا يَنْقِمُ ابْنُ جَمِيلٍ إِلَّا أَنَّهُ كَانَ

(ددې په اوريدو سره) نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې ابن جميل خو د زکوة ورکولو نه څکه انکار وکړو

فَقِيرًا فَأَغْنَاهُ اللهُ وَ رَسُولُهُ . وَ أَمَّا خَالِدٌ

چې هغه مخکې مفلس ؤ او اوس الله او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم دولتمند کړی دی د خالد ابن وليد رضی الله عنه

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٢٦٨٣/٢، رقم الحديث: ١٤٩٧، ومسلم في صحيحه ٧٥٦/٢ رقم الحديث :١٧٦-١٠٧٨، وأبوداود في السنن ٢٤٦/٢، رقم الحديث: ١٥٩٠، وأحمد في المسند ٣٥٥/٤.

| |
|---|
| فَإِنَّكُمْ تَظْلِمُونَ خَالِدًا . قَدِ |
| خبره دا ده چې تاسو په هغې ظلم کوی، هغه دا اصل کې په هغې زکوة واجب نه دی. خو تاسو د هغه نه د |
| احْتَبَسَ أَدْرَاعَهُ |
| زکوة وصولولو هڅه کوی. ځکه هغې خو خپلې زغرې او سامان جنګ (یعنې اسلحه، څاروي او دجنګ |
| وَ أَعْتُدَهُ فِي سَبِيلِ اللهِ . |
| نور سامان) د خدای په لاره کې (یعنې د جهاد لپاره) وقف کړی دی (لهذا تاسو د هغې مال او اسباب د |
| وَ أَمَّا الْعَبَّاسُ فَهِيَ عَلَيَّ . |
| تجارت مال ګڼی (دا غلطه ده) او کومه چې د حضرت عباس رضي الله عنه خبره ده نو د هغې زکوة په ما باندې |
| وَ مِثْلُهَا مَعَهَا . ثُمَّ قَالَ : يَا عُمَرُ أَمَا |
| دی او نه فقط په دې کال کې بلکې دې په مثل نور (بل کال کې) هم بیایې وفرمایل چې ای عمره! آیا ته |
| شَعَرْتَ أَنَّ عَمَّ الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ ؟ .(۱) |
| پوهېږې چې د يو چا تره د هغه دپلار په شان وي (لهذا ته عباس رضي الله عنه زما د پلار په شان وګڼله. د هغه |
| تعظيم او عزت کوه او هغه ته هېڅ پرېشاني او تکليف مه ورکوه). |

**توضيح : ما يقم ابن جميل:** نقم د سخت کراهت او د ناخوښوالي په معنی کې دی چې په حقيقت کې دلته د انکار لپاره استعمال شوی دی. ابن جميل رضي الله عنه يو منافق سړی ؤو. بيا څه لږ ښه شوی ؤو. خو ډير مفلس سړی ؤو. په نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندې يې د مال او دولت لپاره دعا وکړه. نبي کريم صلى الله عليه وسلم دعا وکړه او الله ورله ډير مال ورکړو. خو هغې ناشکري وکړه او زکوة يې ورنه کړو. نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا کلمات وفرمايل چې دې سړي څنګه کفرانِ نعمت وکړو. (المرقات : ۴/۲۷۱)

**احتبس ادراعه:** ادراع د درع جمعه ده. زغري ته وايي. (المرقات : ۴/۲۷۲).

**اعتد:** د عتاد جمعه ده. اسباب او د جنګ سامان مراد دی. يعنې تاسو په خالد رضي الله عنه باندې ظلم کوی. هغه غريب سړی دی. هميشه په جهاد کې وي. خپلې زغري او د جنګ سامان يې ټول د الله په

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۳۱، رقم الحديث ۱۴۶۸، ومسلم في صحيحه ۲/۶۷۶ رقم الحديث :۱۱-۹۸۳، وأبوداود في السنن ۲/۲۷۳، رقم الحديث: ۱۶۲۳، وأحمد في المسند ۲/۳۲۲

لاره کې په جهاد کې وقف کړې دی. په دې زکوة چرته دی. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې کلام کې اشاره ده چې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به همیشه په جهاد کې وي نو همدغه شان وشه چې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همیشه په جهاد کې ؤو. (المرقات: ۴/۲۷۲).

**ومثلها معها:** مطلب دا دی چې د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کوم زکوة دی هغه به زه ادا کړم بلکې بل کال ته به هم ورکوم ویل کېږي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوه کالو زکوة د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وصول کړې ؤ یا مطلب دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شکایت باندې خفگان ښکاره کړو او وي فرمایل چې د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د طرف نه به زه زکوة ورکړو بلکې ډېر به ادا کړو ځکه کېدی شي چې د هغه څه عذر وي نو د هغه شکایت په کار نه دی هغه زما تره دی او تره خو د پلار په شان وي دا مطلب ډېر واضح دی او د حدیث آخرنې برخه د دې تائید کوي. (المرقات ۴/۲۷۲).

**صنوابيه:** د يو بوټي د بيخ نه چې کله دوه ښاخې بوټي جوړ شي نو هر يو صنو وايي. صنوان مشابه ته وايي يعنې تره د پلار په ځاي وي. (المرقات ۴/۲۷۲).

**۸ جمادی الثاني ۱۴۱۰ھ**

## سرکاري سړی د خپل ذات د پاره تحفه نه شي قبلولې

| |
|---|
| ﴿۸﴾ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيّ : اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَجُلًا مِنَ الْأَزْدِ |
| ابو حميد ساعدی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې مقرر کړو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبیله ازد نه یو کس |
| يُقَالُ لَهُ اِبْنُ اللُّتْبِيَّةَ عَلَى الصَّدَقَةِ فَلَمَّا قَدِمَ |
| چې نوم یې ابن لتیبه ؤ د زکوة وصولولو لپاره کله چې دغه سړی (د زکوة وصولولو نه وروسته) مدینې ته |
| قَالَ : هٰذَا لَكُمْ |
| (بیرته راغلو) نو مسلمانانو ته یې وویل چې دو مره مال حو ستاسو دی (یعنې دا مال په زکوة کې وصول |
| وَ هٰذَا أُهْدِيَ لِي فَخَطَبَ النَّبِيُّ |
| شوی دی د دې تاسو مستحق وی.) او دا دو مره مال ما ته په تحفه کې راکړی شوی نو خطبه وویله نبي کریم |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَحَمِدَ اللهَ وَ أَثْنٰى عَلَيْهِ وَ |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلکو مخې ته چې په هغې کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اول د خدای حمد او ثناء بیان کړه او |

قَالَ : " أَمَّا بَعْدُ ! فَإِنِّي أَسْتَعْمِلُ رِجَالًا مِنْكُمْ عَلَى أُمُور

دهغې نه وروسته یې وفرمایل چې وروسته د دینه! زه په تاسو کې یو څو کسان د دې کار لپاره ماموران

مِمَّا وَلَّانِيَ اللهُ فَيَأْتِي أَحَدُهُمْ فَيَقُوْل : هٰذَا لَكُمْ

کوم چې دهغوی لپاره الله زه حاکم کړی یم نو په تاسو کې یو کس وایي (ما د زکوة وصولولو لپاره مقرر کړی

وَ هٰذَا هَدِيَّةٌ أُهْدِيَتْ لِي

دی خپل کار یې وکړو) اوراغلو نو چې دا ستاسو مال دی او دا مال ماته په تحفه کې راکړی شوی دی هغه

فَهَلَّا جَلَسَ فِي بَيْتِ أَبِيهِ أَوْ بَيْتِ أُمِّهِ فَيَنْظُرُ أَيُهْدَى لَهُ

کس د خپل پلار یا د مور په کور کې ولې نه کیناستو نو هلته به یې کتلي وی چې ده ته تحفې رالیږلی کیږي

أَمْ لَا ؟ وَ الَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ

او که نه؟ په هغه ذات قسم دی چې د چا په لاس کې زما ژوند دی (یاد وساتی) چې په تاسو کې هر یو کس

لَا يَأْخُذُ أَحَدٌ مِنْهُ شَيْئًا إِلَّا جَاءَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَحْمِلُهُ عَلَى رَقَبَتِهِ

هیڅ شی اخلي نو هغه به د قیامت په ورځ (د ذلالت په توګه) هغه په خپل څټ باندې اوچت کړی وي او وړي

إِنْ كَانَ بَعِيرًا لَهُ رُغَاءٌ أَوْ بَقَرًا

به یې. که هغه اوښ وي (چې هغې هغه بغیر د حق نه اخستی وي) نو د هغې اواز به وي، که هغه غوایا

لَهُ خُوَارٌ أَوْ شَاةً تَيْعَر "

وي نو د هغې اواز به وي او که هغه بیزه وي او د هغې اواز به وي (یعنې هغه چې په دنیا کې هر یو شی بغیر د

ثُمَّ

حق نه اخلي هغه به د قیامت په ورځ د ده په څټ باندې سپور وي او خبرې به کوي) د دې نه وروسته نبي

رفع يَدَيْهِ حَتَّى رَأَيْنَا

کریم صلی الله علیه وسلم خپل دواړه لاسونه مبارک (دومره اوچت) کړل چې مونږ ولیدو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم

عُفْرَةَ إِبْطَيْهِ ثُمَّ قَالَ : اللَّهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ

ترخونو سپین والی ولیدلو بیا یې وفرمایل "ای پروردګاره! (تا چې څه ویلې وُ) ما خلکو ته ورسول،

اللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ..[1]

ای پروردګاره! ما خلکو ته ورسول.

قَالَ الْخَطَّابِيُّ: وَفِي قَوْلِهِ: هَلَّا جَلَسَ فِي بَيْتِ أُمِّهِ أَوْ أَبِيهِ فَيَنْظُرُ أَيُهْدَى إِلَيْهِ أَمْ لَا؟ دَلِيلٌ عَلَى أَنَّ كُلَّ أَمْرٍ يُتَذَرَّعُ بِهِ إِلَى مَحْظُورٍ فَهُوَ مَحْظُورٌ وَكُلُّ دخيل فِي الْعُقُودِ يُنْظَرُ هَلْ يَكُونُ حُكْمُهُ عِنْدَ الِانْفِرَادِ كَحُكْمِهِ عِنْدَ الِاقْتِرَانِ أَمْ لَا؟ هٰكَذَا فِي شرح السنة

**توضیح** :ابن اللتبية: لام باندې پیش دی فتحه لوستل هم صحیح ده تا ساکنه ده او په فتحه باندې لوستل یې هم صحیح دي. بأ باندې کسره ده. ی باندې شد دی: لتبية د هغه سړي د مور نوم دی چې د عرب مشهوري قبیلې لتب ته منسوبه ده. ددې سړي نوم عبدالله ؤ. ده د زکوة مالونه راجمعه کړل او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ته یې وړاندې کړل خو ورسره سره یې دا وویل چې ما ته خلکو په ذاتي حیثیت باندې څه مال د تحفې په توګه راکړی دی. لهذا هغه زما ذاتي مال دی. په دې خبره باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډیر سخت ناراضه شو او وي فرمایل .(المرقات :۴/۲۷۳).

**فهلا جلس**: یعني دا سړي به د خپل مور یا پلار په کور کې کیناستو سره انتظار کولو او کتل یې چې په ناسته ناسته دې ته خلک تحفې ورکوي او که نه؟ که نه یې ورکوي نو د صدقو راغونډولو په وخت هغې ته د تحفو د اخستلو حق هم نشته دی. (المرقات :۴/۲۷۴).

**رغا**: د اوښ د بړیدلو اواز ته وایي خوار: د غوا د رمباړی اواز ته وایي. (المرقات :۴/۲۷۴).

**تیعر**: د بیزي د می می اواز ته وایي. یعني ناجائزه اوښان به د هغې په اوږو باندې سپور وي او بړېږی به، غوایان به رمباړي وهي او بیزي به می می کوي. (المرقات :۴/۲۷۴).

**دوه استنباطي مسئلې** :

**قال الخطابي**: علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ د ذکر شوي حدیث د مضمون نه دوه اجتهادي مسئلې راایستلې دي:

۱: **کل امر يتذرع**: یعني که هر جائز کار د یو ناجائزه کار لپاره د واحد ذریعه او وسیله جوړیږي نو هغه وسیله هم ناجائز شي. یا که په نورو الفاظ کې وویل چې وسیله هم حرامه ده. د مثلا په توګه چې یو کس بل کس ته روپۍ په قرضو ورکړي دا جائز او د ثواب کار دی. خو په همدغه قرض باندې بل سړی سود

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۲۲۰، رقم الحديث :۲۵۹۷، ومسلم في صحيحه ۳/۱۴۶۳ رقم الحديث :۲۶-۱۸۳۲، وأبوداود في السنن ۳/۳۵۴، رقم الحديث: ۲۹۴۶، وأحمد في المسند ۵/۴۲۳.

اخلي او دا د سود وسيله جوړيږي نو دا قرض ورکول هم حرام دی. دغه شان د گرو په معامله کې که د گرو اخستونکی د گر شوي شي نه استفاده کوي. نو اوس جائز گرو هم ناجائز شو. همدغه شان دلته خو ابن لتبیه اصل کار خو جائز ؤو. چې صدقي راغونډول ؤو خو دا کار د حرام ذریعه جوړه شوه. ځکه دا جائز کار د هغې په حق کې حرام شو. خلاصه دا چې وسيله د حلال حلال ده او وسيله د حرام حرام ده. (المرقات ۴/۲۷۵).

**وكل دخيل ينظر**: يعنې هر شراکت او اجتماعيت او يو عقد د بل عقد سره د شريکولو په وخت کې به کتل کېږي. چې د دې معاملاتو د جدا کيدلو په وخت کې څه حکم دی او د دواړو عقدونو د يو ځاې کولو د وخت څه حکم دی. که د جدا کولو د وخت حکم جائز دی نو د يو ځاې کولو حکم به هم جائز وي. خو که د انفرادي حکم جدا دی او د اجتماعي حکم جدا دی نو بيا دغه شان يو ځاې کول جائز نه دي. مثلاً د بحث لاندې حديث په مسئله کې ابن التبيه په يو منصب او عهده باندې ؤو. اوس که ابن لتبيه ته د دې عهدي نه بغير خلکو تحفه ورکوله نو دا تحفه هغه وخت هم قبلول جائز ؤو او که د عهدي او منصب نه بغير ابن التبيه ته سړي تحفه نه ورکوله نو اوس دا تحفه د هغې لپاره جائز نه وه. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د همدغي طرف ته اشاره کړي ده. چې د دې منصب نه بغير په کور کې کينه او ؤو دې کتلی شي چې د يته څوک تحفه ورکوي يا نه.

د علامه خطابی رَحِمَهُ اللهُ د دې استنباط د لاندې د مدرسو مهتميمن حضرات هم راځي او د سرکاري عهدو لوي افسران او حکام او قضاة او جج حضرات هم راځي. او د ديني او د جهادي تنظيمنو د عهدو والا هم راځي. ټولو سوچ کول په کار دي او قومي امانتونه دی د مالِ غنيمت په نوم نه خوري.

د علامه خطابی رَحِمَهُ اللهُ دا اجتهادي مسئله امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ همدغه شان قبوله کړي ده. البته د احنافو او د شوافعو په نزد دې کې څه تامل او څه تفصيل شته دی. (المرقات ۴/۲۷۵).

| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عُمَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ مِنْكُم |
|---|
| عدی ابن عميره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې مونږ مقرر کړو په تاسو کې يو کس |
| عَلَى عَمَلٍ فَكَتَمَنَا مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ |
| ديو کار (د زکوة او د نورو شيانو وصولولو لپاره) او هغه سړی مونږ سره د ستنې په برابر يا لړ او ديريو شي پټ |

كَانَ غُلُوْلًا يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1]

كړي نو دا به په خيانت کې شمير کېږي چې هغه به يې د قيامت په ورځ (رسوا کوي او) را به يې وړي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د زکوة مانعينو ته د قرآن تنبيه

﴿۱۰﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ ﴿وَ الَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَ الْفِضَّةَ﴾

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې کله دا آيت کريمه (ترجمه) او کوم خلک چې سره او سپين زر جمعه کوي نازل شو

كَبُرَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ . فَقَالَ عُمَرُ

نو صحابه کرام رضي الله عنهم ډير په فکر کې شو (د دوی حالت په ليدو سره) حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وويل

أَنَا أُفَرِّجُ عَنْكُمْ فَانْطَلَقَ . فَقَالَ :

چې زه ستاسو دا فکر (اوس) لرې کوم نو دوی د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او وي ويل

يَا نَبِيَّ اللهِ إِنَّهُ كَبُرَ عَلَى أَصْحَابِكَ هٰذِهِ الْآيَةُ . فَقَالَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

چې ای د الله نبي! دا آيت خو ستا په صحابو رضي الله عنهم باندې لوی بوج شو؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل

إِنَّ اللهَ لَمْ يَفْرِضِ الزَّكَاةَ إِلَّا لِيُطَيِّبَ مَا بَقِيَ مِنْ أَمْوَالِكُمْ وَ إِنَّمَا فَرَضَ الْمَوَارِيثَ

الله زکوة ځکه فرض کړې دی چې هغه ستاسو نور مال پاک کړي. او دغه شان الله ميراث هم مقرر کړی دی

وَ ذَكَرَ كَلِمَةً لِتَكُوْنَ لِمَنْ بَعْدَكُمْ

او د دې نه وروسته نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو د کلمه ذکر کړه د دې لپاره چې ستاسو نه وروسته پاتې شي او

قَالَ فَكَبَّرَ عُمَرُ . ثُمَّ

هغه د هغوی حق شي حضرت عباس رضي الله عنه وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه الله اکبر وويل د دې نه وروسته

قَالَ لَهُ : أَلَا أُخْبِرُكَ بِخَيْرِ مَا

نبي کريم صلى الله عليه وسلم حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمايل چې آيا زه تا ته دا سې بهترين شی ونه وايم چې

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۶۵/۳ رقم الحديث ۳۰ ۱۸۳۲، وأبوداود في السنن ۳ ۳۵۳، رقم الحديث ۲۹۴۳، وأحمد في المسند ۱۹۲/۴.

| يَكْنِزُ الْمَرْءُ الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ إِذَا نَظَرَ إِلَيْهَا |
|---|
| انسان يې د خپل ځان سره ذخيره کړي هغه نيک بخته ښځه ده چې کله د ې طرف ته خاوند وګوري نو د دې |
| سَرَّتْهُ وَ إِذَا أَمَرَهَا أَطَاعَتْهُ |
| طبيعت خوشحاله وي هغه چې هغې ته څه حکم وکړي نو دهغې اطاعت وکړي او چې هغه په کور کې نه وي |
| وَإِذَا غَابَ عَنْهَا حَفِظَتْهُ.[1] |
| نو د هغې د بچو حفاظت وکړي. |

**توضيح: لما نزلت**: يعنې د زکوة متعلق چې کله په قرآن کريم کې سخت وعيد والا آيت نازل شو نو صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډير پريشانه شول. ځکه په دې آيت کې د مال د جمعه کولو او د ذخيره کولو وعيد واورولی شو. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه يې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه کوم. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د صحابو د پريشانۍ ذکر وشو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جواب کې وفرمايل چې الله زکوة ځکه فرض کړی دی چې د دې په ذريعي سره د مسلمانانو پاتې مال پاک کړي. لهذا د کوم مال چې زکوة ادا کړی شو نو هغه پاک شو او س د دې مال ساتل او جمعه کول منع نه دي. قرآن کريم کې د مال په جمعه کولو باندې کوم وعيد اورول شوی دی. هغه د هغه مال باره کې دی چې د هغې زکوة نه وي ادا کړی شوی. د دې په اوريدو سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تکبير نعره وکړه او د خوشحالۍ اظهار يې وکړو. (المرقات ۴/۲۷۷).

**وذکر کلمة**: يعنې د مواريث د ذکر کولو نه وروسته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه کلمه وفرمايله خو هغه زما نه هيره شوي ده. د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې لفظ نه هر سړي ته اندازه کېږي چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حديث بيانولو کې څومره احتياط کولو او د لفظ بالمعنى په ځاي د اصلي لفظ څومره اهتمام کولو. (المرقات ۴/۲۷۸).

## د زکوة عاملين خوشحاله ساتې

| ﴿۱۱﴾ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : سَيَأْتِيكُمْ رُكَيْبٌ |
|---|
| جابر بن عتيک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تاسو ته به يوه قافله راشي (يعنې |
| په طبعي توګه به خلک د هغې نه متنفر شي ځکه هغه به د هغوی مال اخستلو د پاره راځي) لهذا کله |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۰۵، رقم الحديث : ۱۶۶٤.

| مُبَغَّضُونَ فَإِذَا جَاؤُكُمْ فَرَحِّبُوا بِهِمْ |
|---|
| چې تاسو ته هغه قافله راشي نو تاسو هغې ته مرحبا (پخير راغلي) ووايي او (هغوي ته د زکوة مال ورکوی. |
| وَ خَلُّوا بَيْنَهُمْ |
| گويا) د هغوی او د هغوی د طلب کړی شوي شي يعنې د زکوة په مينځ کې څه شی مانع مه ساتی لهذا هغوی |
| وَ بَيْنَ مَا يَبْتَغُونَ فَإِنْ عَدَلُوا فَلِأَنْفُسِهِمْ وَ إِنْ ظَلَمُوا فَعَلَيْهِمْ |
| چې د زکوة باره کې د عدل نه کار اخلي (چې د عدل ثواب و مومي) او که د ظلم معامله کوي نو په هغوی |
| وَ أَرْضُوهُمْ فَإِنَّ تَمَامَ زَكَاتِكُمْ |
| باندې به د هغې گناه وي تاسو د زکوة وصولونکي خوشحاله کړی او (پوهه شئ) ستاسو له طرف پوره |
| رِضَاهُمْ وَلْيَدْعُوا لَكُمْ.(۱) |
| زکوة ورکول د هغوی رضا ده او د غه شان عامل ته په کار ده چې هغه ستاسو د پاره دعاء وکړي. |

**توضيح** : رکيب: دا د رکب تصغير دی. زکوة د عاملينو وړه قافله مراد ده. (المرقات: ۴/۲۷۹).

**مبغضون**: د اسم مفعول صيغه ده. د مبغوض او ناخوابنې په معنی دی. يعنې وصولونکي به تاسو ته راشي او دا چې مال د ورکولو دی نو ځکه به په طبعي توگه ستاسو دا خلک نه خوښوېږي خو تاسو د هغوی ته په خوشحالۍ پخير راغلي ووايي. (المرقات: ۴/۲۷۹).

**وان ظلموا**: يعنې هغوی به قطعًا په تاسو باندې ظلم نه کوي. خو فرض کړه که ستاسو خيال وي چې دا خلک هم ظلم کوي نو بيا هم دوئ خوشحاله ساتی او هغه مه ناراضه کوی. د دې ترغيب دا مطلب نه دی چې د هغوی ظلم جائز دی بلکې مطلب دا دی چې تاسو هغوی په هرحال کې خوشحاله ساتی. ځکه د اسلام عادلانه نظام په همدغې باندې قائم دی چې د جانبينو خلک په دې باندې اماده کړی شي چې هغوی يو بل وزغمي. يو طرف ته د زکوة عاملينو ته اسلام په سختۍ سره د انصاف کولو تلقين کوي. او بل طرف ته د مالونو مالکان د هر حکم د زغملو ترغيب ورکوي. سبحان الله څه د شان دين دی. (المرقات: ۴/۲۷۹).

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۲۴۵، رقم الحديث ۱۵۸۸

﴿۱۲﴾ وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: جَاءَ نَاسٌ يَعْنِي مِنَ الْأَعْرَابِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

جرير بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې ځه خلک د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شول

فَقَالُوا : إِنَّ نَاسًا مِنَ الْمُصَدِّقِينَ يَأْتُونَا فَيَظْلِمُونَا فَقَالَ :

اووي ويل چې د زکوة وصولونکي ځه خلک مونږ ته راځي او مونږ سره ظلم کوي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ وَ إِنْ ظَلَمُونَا

هغه زکوة وصولونکي راضي کړه هغوي وويل چې يا رسول الله! اګر که هغوي په مونږ ظلم ولي ونه کړي

قَالَ أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ وَ إِنْ ظُلِمْتُمْ .[1]

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل تاسو د زکوة وصولونکي رضا کړي اګر که تاسو سره د ظلم معامله وکړي.

## د زکوة ځه برخه پټول منع دي

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ بَشِيرِ بْنِ الْخَصَاصِيَّةِ قَالَ : قُلْنَا : أَنَّ أَهْلَ الصَّدَقَةِ

بشير بن خصاصية رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې مونږ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وويل چې زکوة اخستونکي ظلم کوي

يَعْتَدُونَ عَلَيْنَا أَفَنَكْتُمُ مِنْ أَمْوَالِنَا

په مونږ باندې (يعني په زکوة کې د واجب مقدار کې ډير مال اخلي) نو مونږ په هغې کې هغه برخه پټه کړو

بِقَدْرِ مَا يَعْتَدُونَ ؟ قَالَ : لَا .[2]

څومره چې هغوي زمونږ نه ډير اخلي؟ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نه.

**توضيح** : **افنكتم**: يعنې فرض کړه چې عامل په زکوة اخستلو کې په مونږ ظلم کوي نو مونږ داسې کولی شو چې د مالونو نه ځه برخه پټه کړو. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړل. په دې حديث باندې د پوهيدلو لپاره په دې خبره باندې هم پوهيدل په کار دي چې د اسلامي خلافت حق دی چې هغه د خلکو د ښکاره مالونو يعنې څارؤ او د عشر او د داسې نورو مالونو زکوة خپله وصول کړي. په دې مالو کې د مال مالک اختيار مند نه دی چې هغه خپله خوښه باندې غريب ته ورکړي. بلکې د هغوی ذمه واري ده

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲ ٦٨٥ رقم الحديث ۲۹ ۹۸۹، وأبوداود في السنن ۲ ۲٤٦، رقم الحديث ۱۵۸۹ ، والنسائي ۳۱/۵ رقم الحديث ۲٤٦۰، وأحمد في المسند ٤ ۳٦۲

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲٤٤ رقم الحديث ۱۵۸٦

چې هغوی هغه مال بيت المال کې جمعه کړي. د همدغي متعلق دا حکم دی چې د هغه مال څه برخه پټول او د هغې صدقه نه ورکول ناجائز دي. خو اموالِ باطنه يعني د روپو معامله جدا ده. هغه د مال مالِک د خپل استطاعت مطابق فقيرانو ته ورکولی شي. بهرحال د اسلامي حکومت نه د هغوی حق پټول منع دي. (المرقات :۴/۲۸۱).

## زکوٰة اخيستونکو ته اجر

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْعَامِلُ عَلَى الصَّدَقَةِ بِالْحَقِّ |
| رافع ابن خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل حق سره زکوة وصولونکی عامل، |
| كَالْغَازِي فِي سَبِيلِ اللهِ حَتّٰى يَرْجِعَ إِلَى بَيْتِهِ.[1] |
| د خدای په لاره کې (د جهاد کونکي) غازي په شان دی تر څو چې هغه خپل کور ته بيرته راشي. |

**توضيح**: **كالغازي**: يعنې د زکوة وصولونکي د ثواب په اعتبار سره او يو مجاهد او غازي په شان دی ځکه هغه د اسلامي خلافت او د دين اسلام د يو حکم خدمت کوي. اګر که هغه ماش هم اخلي خو بيا هم هغې ته لوي ثواب ورکول کېږي. اسلام مسلمانانو ته د نيکيو او عبادتونو او د آخرت طرف ته متوجي کوي. نو ځکه د زکوة مامورين فقط د يو مزدور د حد پورې ونه ساتلو بلکې هغوی له يې د اجر او د ثواب او د عبادت تصور هم ورکړی دی. اوس به هغوی په دې کار کې عبادت د نظر لاندې ساتي نو کار به ديانت او امانت سره کوي. د هغوی به شوق او رغبت پيدا شي نو په کار کې به ترقي کېږي. د دې برعکس نن سبا حکمرانانو مسلمانان د دين په پابندې د لګولو سره هم بې دينه کړي دي. ځکه هغوی دوې له فقط د وظيفي او د مزدورۍ تصور ورکوي. لکه د پاکستان فوج دی. هغوی له فقط د وظيفي تصور ورکول کېږي. حال دا چې يو فوجي مجاهد وي. او د مجاهد څومره لويه درجه وي. چې د عبادت تصور نه وي نو نه به هغوی کې د امانت او ديانت تصور وي او به يې شوق او ميلان وي. فقط مزدوري ده او وظيفه ده. (المرقات ۴/۲۸۱).

## د جَلَب او جَنَب مطلب

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عمرو ابن شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار او هغه د خپل نيکه نه او هغه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې |

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳ ۳٤۸، رقم الحديث ۲۹۳٦ . والترمذي في السنن ۳ ۳۷ رقم الحديث ٦٤٥ ،وابن ماجه ۱ ۵۷۸ رقم الحديث :۱۸۰۹ ، وأحمد في المسند ٤ ۱٤۳.

| قَالَ : لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ |
|---|
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: زكوة وصولونكى دې (دزكوة لپاره) څاروي نه په راخكلو باندې نه راغواړي او نه |
| وَلَا تُؤْخَذُ صَدَقَاتُهُمْ إِلَّا فِي دُورِهِمْ.(1) |
| دې د څاروُ مالک لرې ځي او د څاروُ زكوة د هغې په كور كې واخستلى شي. |

**توضيح : لاجلب**: جلب راخكلو او په راخكلو باندې راوړلو په معنى كې دي. د دې لفظ تعلق د زكوة د وصولونكي ساعي سره دى او دا نهي ده. مطلب دا چې ساعي يو لري ځاې ته لاړ او هتله كيني او خلكو ته حكم وكړي چې دلته ناست يم او تاسو د صدقي مال دلته راوړسوى. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع كړى ده ځكه په دې كې په زكوة وركونكو باندې بې ځايه مشقت دى. (المرقات ۴/۲۸۲).

**ولا جنب**: جلب د لرې والي او د جدا كيدلو په معنى كې دى. دا هم نهي ده. د دې تعلق د زكوة وركولو د مالک سره دى. مطلب دا چې د مال مالک د ورانى په توګه د ساعي په راتللو سره خپل مال او څاروې د خپل كور نه لري بوتلل او خپله هم لري لاړلو. او ساعي ته يې وويل چې دلته راشه او زكوة واخله. په دې كې په ساعي باندې بې ځايه مشقت دى. ځكه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع كړي ده. (المرقات ۴/۲۸۲).

**الا في دورهم**: دور د دار جمعه ده. كور ته وايي. دا جمله د دې نه د مخكينى دواړو جملو لپاره تاكيد دى. مطلب دا چې زكوة په كور كې واخستلى شي او وركړى شي چې هيڅ يو كس ته تكليف نه وي. (المرقات :۴/۲۸۴).

**جلب او جنب**: كه د دې كلمات د زكوة په بابونو كې راشي نو هم دغه مطلبونه به يې وي چې پاس بيان شوي دي. خو كه دا كلمات د كتاب الجهاد په د اسپو د منډو په او سباق په باب كې راشي نو هلته د دې مطلب بدل شي. هلته د جلب اطلاق په هغه باندې كيږي چې سرى اسپي پسې شي او زوره زوره ورپسې چغې وهي او هغه په منډ كوي چې هغه د خپلي مقابلې اسپي نه مخكې ورسيږي. او د اسپي په منډه كې مطلب دا دى چې يوه اسپه په منډه وهلو سره سسته شوه او د هغوى خوا كې تشه اسپه ده. او هغه شاه سهوار په هغې باندې ورودانګل او برابره يې كړه او مقابله يې شروع كړه. د اسپو په منډه وهلو كې دا عمل ځكه منع كړى شوى دى چې په جهادي تړيننګ كې د هري اسپي د قوت او طاقت او د ترتيب او د مهارت پته ولږيږي چې په دې كومه اسپه تربيت شوي ده او كومه يوه نه ده. خو په دې عمل سره دا مقصد فوت كيږي نو ځكه منع كړى شو.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۵۰، رقم الحديث ۱۵۹۱، وأحمد في المسند ۲/۲۱۵

**جلب:** د جلب لفظ په بيو عاتو کې هم استعمالېږي. هلته د دې مطلب دا دی چې دا د ښار لوي تاجر د ښار ته د راتلونکي قافلي نه ټول مال اخلي او د خپلي په نرخ باندې د ښار په خلکو باندې خرڅوي دا **تلقي الجلب** دی چې منع دی. (المرقات: ۴/۲۸۲).

## د مال مستفاد د زکوة مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ اسْتَفَادَ مَالًا فَلَا زَكَاةَ فِيهِ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د چا سره چې مال وي نو زکاة پرې نه دي واجب |
| حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ. (۱) |
| ترڅو چې يو کال پرې نه وي تير شوې. |
| وَ ذَكَرَ جَمَاعَةٌ أَنَّهُمْ وَقَفُوهُ عَلَى ابْنِ عُمَرَ. |
| او ديوې ډلې باره کې يې ويلي دي چې هغوی دا حديث په حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا باندې موقوف کړی |
| دی (يعني د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد نه دی بلکي خپله د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دی) |

**توضيح: من استفاد مالاً:** مال استفاد شې ته وايي چې د اصل مال سره څه نور مال هم حاصل شي. (المرقات ۴/۲۸۳).

د نصاب د پوره کيدلو نه وروسته چې انسان ته د کال په مينځ کې کوم مال حاصل شي نو د هغې درې صورتونه دي. دوه اتفاقي دې او په يو کې اختلاف دی:

**۱: اولنی صورت دا دی** چې د کال په مينځ کې چې کوم مال راغلی دی هغه د اصل نصاب د جنس نه نه دی مثلاً د دوه او ښانو نصاب موجود دی. د کال په مينځ کې بيزي راغلي. په دې کې د ائمو اتفاق دی چې د دې بيزو لپاره جدا د کال تيريدل ضروري دی. دا د او ښانو تابع نه دی.

**۲: دويم صورت دا دی** چې نصاب موجود دی مثلاً ۱۳۵ او ښان دې يا دوه سوه (۲۰۰) درهم دي. خو د کال په مينځ کې د او ښانو بچي پيدا شول يا د تجارت په مال کې گټه وشوه. ديته انتاج او ارباح وايي. د فقهاؤ په دې کې هم اتفاق دی چې حاصل شوی مال د اصل نصاب تابع دی. د بېل کال تيريدلو ضرورت نشته دی.

**۳: دريم صورت دا دی** چې نوی حاصل شوی مال د مستفاذ د اصل نصاب نه دی خو د هغې په انتاج او

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۱۶ رقم الحديث ۶۳۲

رباح کې نه دی یعنې د دې نه قطعًا نه دی حاصل شوی بلکې په جدا ذریعې سره حاصل شوی دی. مثلاً اول د اوښ نصاب ؤ. بیا یې نور واخستلو یا یې په کوم اوښ کې صدقه ورکړه یا په میراث کې راغلو. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات: ۴/۲۸۳).

**د فقهاو اختلاف**: دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ او اسحاق ابن راهویه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد د هغه مال مستفاد لپاره **حولان حول** ضروري دی دا جدا مال دی. د اولني نصاب تابع نه دی. (المرقات ۴/۲۸۳).

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد دا مال د اصل نصاب تابع دی. نو ځکه د کال تیرېدل یا نصاب ته رسیدل شرط نه دی. (المرقات ۴/۲۸۳).

**دلائل**: د شوافعو او حنابلو دلیل د بحث لاندې حدیث دی چې په دې کې په واضحه توګه باندې ذکر دې چې د مال مستفاذ لپاره حولان حول شرط دی. احناف ائمه او مالکیه هم په خپل مدعا باندې د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کوي. خو هغوی د دې حدیث مفهوم هغه نه اخلي کوم چې شوافعو او حنبلو اخستی دی بلکې هغه وایي چې د **من استفاد مالاً** د مطلب دا دی چې که سړي په اول سر کې په ابتدائی توګه مال حاصل شوی وي نو چې تر څو په هغې باندې کال نه وي تیر شوی نو په هغې کې زکوٰة نشته دی. د احنافو دویم دلیل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه آثار دي چې په هغې کې د مال مستفاد لپاره هغه حضرات د کال تېرېدل شرط نه ګڼوي. **دا آثار نصب الرایه** رانقل کړي دي. د احنافو او د مالکیو دریم عقلي دلیل دی هغوی وایي چې د کال په اوږدې موده کې نوی مال ځي او راځي کله مال ډیرېږي او کله کمېږي. نو که د هر نوي مال لپاره د حولان حول شرط ولګولی شو نو په دې کې ډیره لویه تنګسیا ده. چې د انسان د طاقت نه باهر ده. **والحرج مدفوع في الشرع**. (المرقات ۴/۲۸۵).

**جواب**: دا حدیث د مال مستفاذ د هغه صورتونو باندې محمول دی چې په هغې کې د فقهاؤ اتفاق دی.

**دویم جواب**: دا دی چې د دې حدیث مطلب او مفهوم هغه نه دی چې کوم شوافعو اخستی دی بلکې دا د نوي حاصل شوي مالونو متعلق دی. چې د هغې د حولان حول ټول قائل دي.

## د نصاب مالک د کال د پوره کیدو نه مخکې زکوٰة ورکولې شي

| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ: أَنَّ الْعَبَّاسَ سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِيْ تَعْجِيلِ |
|---|
| حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تپوس وکړو د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په ورکولو |

| صَدَقَتَهُ قَبْلَ أَنْ تَحِلَّ : فَرَخَّصَ لَهُ فِيْ ذٰلِكَ .[1] |
|---|
| د زكوة كې مخكې د پوره كيدو د كال نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته د هغې اجازت وركړو. |

**توضيح : فرخص له:** يعنې تر اوس پورې لا كال نه ؤو پوره شوى. خو يو سړي د مالونو نه زكوة ويستل غوارې نو دا داحنافو په نزد سره د اكثرو ائمؤ جائز دي خو د دې لپاره يو شرط دى چې زكوة ويستونكى د شرعي نصاب مالك وي نه دا چې فقير وي. (المرقات :۴/۲۸۵).

## د نابالغه ماشوم په مال كې د زكوة مسئله

| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
|---|
| عمرو بن شعيب د خپل پلار (شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه او هغه د خپل نيكه (عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه نقل كوي چې |
| أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ خَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ : أَلَا مَنْ وَلِيَ يَتِيمًا لَهُ |
| يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلكو مخكې په خطبه كې وفرمايل: خبردار! كوم سړى چې پالونكې د |
| مَالٌ فَلْيَتَّجِرْ |
| يو يتيم وي او هغه يتيم (د نصاب په قدر) د مال مالک وي نو دې پالونكې ته په كار دى چې تجارت وكړي |
| فِيهِ وَلَا يَتْرُكْهُ حَتَّى تَأْكُلَهُ الصَّدَقَةُ .[1] |
| د دې يتيم په مال باندې او نه دې پرېږدي تر دې چې زكوة وخوري (په زكوة وركولو سره ټول مال پاک شي) |
| وَ قَالَ : فِيْ إِسْنَادِهِ مقَالٌ: |
| امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د دې روايت په اسنادو كې كلام شوى دى. ځكه د روايت يو راوي |
| لِأَن الْمثنى بن الصَّباح ضَعِيف. |
| مثنى بن صباح ضعيف دى. |

**توضيح : حتى تأكله الصدقة:** يعنې د يتيم په مال كې تجارت جاري ساتې چې داسې نه چې په زكوة وركولو وركولو سره دا مال ختم شي. د دې جملې نه معلومه شوه چې د نابالغه ماشوم په مال كې زكوة

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/ ۲۷۵، رقم الحديث ۱۶۲۴، والترمذي في السنن ۳/ ۶۳ رقم الحديث ۶۷۸، وابن ماجه ۱/ ۵۷۲ رقم الحديث ۱۷۹۵، وأحمد في مسنده ۱/ ۱۰۴.

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/ ۳۲ رقم الحديث ۶۴۱.

شته دی. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات :۴/۲۸٦).

**د فقهاؤ اختلاف** : د جمهورو فقهاؤ په نزد که ماشوم صاحب نصاب شي نو د هغه په مال کې زکوة فرض دی. د ماشوم مثر یا پالونکی دې د هغې د مال نه زکوة ورکړي. په صحابؤ کې هم د یوې ډلي همدغه مسلک ؤ. (المرقات :۴/۲۸٦).

د ائمه احناف، سفیان ثوری رَحِمَهُ اللّٰهُ او د ابراهیم نخعی رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد د ماشوم په مال کې زکوة نشته دی. په صحابه کرامو کې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم دغه مسلک ؤو. (المرقات :۴/۲۸٦).

**دلائل** : جمهورو فقهاؤ د زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی.

د احنافو ائمه د هغه ټول نصوصو نه استدلال کوي چې د هغې نه معلومیږي چې ماشوم مکلف نه دی. **رفع القلم عن ثلاثة** کې ماشوم مرفوع القلم ګڼل شوی دی. (المرقات :۴/۲۸٦).

**کتاب الآثار** کې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د اثر موجود دی "**انه سئل عن مال الیتیم فقال احصن ماله ولا تزکیه**". یعنې د هغې د مال ساتنه کوی او د هغې نه زکوة مه ورکوی.

• حسن بصري رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي: "**لیس فی مال الیتیم زکوٰة وقال علیه اجماع الصحابة**". (ازجاجة **المصابیح ج۱ ص۱۴۹۰**)

په یو روایت کې دي : "**عن ابن عباس قال ال یجب علی مال الصغیر زکوٰة حتی تجب علیه الصلٰوة**". **(راواه دار قطنی)**

په دې روایت کې هغه قاعدې او ضارطې طرف ته اشاره ده چې ماشوم غیر مکلف دی. چې هغه د مونځ مکلف نه بدی، روزه او حج بلکې د ایمان مکلف نه دی نو د زکوة به څنګه مکلف وي؟

دلته په حقیقت کې دا اختلاف په بل اختلاف باندې متفرع دی. هغه اختلاف دا دی چې آیا زکوة عبادت محضه دی یا مؤنه مالي دی. نو د احنافو په نزد زکوة عبادت محضه دی. ماشوم غیر مکلف دی. په دې باندې عبادت نشته دی. لهذا زکوة پرې هم نشته دی.

د جمهور فقهاؤ په نزد زکوة مؤنة مالی دی. یعنې داسي بوج دی چې تعلق یې د مال سره دی. لهذا اګر چې ماشوم غیر مکلف دی. خو مال نه به یې زکوة ویستلی کېږي.

**جواب**: جمهور فقهاؤ چې د کوم حدیث نه استدلال کړی دی. د هغې جواب دا دی چې دا حدیث امام ترمذي رَحِمَهُ اللّٰهُ او نورو محدیثینو ضعیف ګرځولی دی.

**دویم جواب**: دا دی چې د بحث لاندې حدیث کې د صدقې لفظ راغلی دی. د دې نه مراد زکوة نه دی بلکې نور مصارف او اخراجات مراد دي. چې خپله د یتیم مصارف دي. د دې د پالونکي مصرف دی. د

ماشوم نورو ضرورتونو مصارف دي. په داسې مصارفو باندې مال ختمېږي. د زکوة په ورکولو باندې مال نه ختمېږي. ځکه د نصاب نه چې کم شي نو بیا به په هغې کې زکوة نه کېږي. حال دا چې په حدیث کې دا دي چې په صدقې سره دا کمېږي. معلومه شوه چې صدقه مراد ده. زکوة مراد نه دی. نور ضرورتونه مراد دي او د صدقې اطلاق په نورو ضرورتونو باندې اکثر کېږي. (المرقات: ۴/۲۸۶).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د زکوة د مانعینو خلاف جنګ وکړو

﴿۱۹﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: لَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اسْتُخْلِفَ أَبُوبَكْرٍ

ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي کله چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو او ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلیفه شو. نو

وَ كَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ

د عربو په خلکو کې چې کوم کافر شو (یعنې د زکوة نه منکر شول نو ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دوي خلاف

قَالَ عُمَرُ: يَا أَبَا بَكْرٍ

د جنګ فیصله وکړه) حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې (دا فیصله واوریدله نو) ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ وَ قَدْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ:

ته یې وویل چې ته د خلکو سره (یعنې د ایمان والو سره) جنګ ولې کوې حال دا چې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُوْلُوْا: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

دا ارشاد دی چې ماته حکم شوی دی چې زه د خلکو سره تر هغه وخت پورې جنګ وکړم چې هغوی لا اله الا الله

فَمَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ عَصَمَ

ونه وايي (یعنې اسلام قبول کړي) لهذا چا چې لا اله الا الله وویل او اسلام یې قبول کړو نو دوي وساتلو خپل

مِنِّي مَالَهُ وَ نَفْسَهُ إِلَّا بِحَقِّهِ وَ حِسَابُهُ عَلَى اللهِ. قَالَ أَبُوبَكْرٍ:

ژوند او مال بغیر د اسلام د حق او د دوی د (باطن د حساب الله ذمه وار دی) ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل

وَ اللهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلَاةِ وَ الزَّكَاةِ

چې په خدای قسم! زه د به د هغه چا سره ضرور جنګ کوم څوک چې د مونځ او په زکوة کې فرق کوي

| |
|---|
| فَإِنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ الْمَالِ وَ اللهِ لَوْ |
| ځکه (څنګه چې د ژوند حق مونځ دی همدغه شان) بیشکه د مال حق زکوة دی. په الله قسم! که هغوی |
| مَنَعُونِي عَنَاقًا كَانُوا يُؤَدُّونَهَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| (چې منکر پرې) ما ته د بیزې بچې هم رانه کړي چې کوم به هغوی نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورکولو نو زه |
| لَقَاتَلْتُهُمْ عَلَى مَنْعِهَا . قَالَ عُمَرُ : فَوَ اللهِ |
| ددوی ددې انکار په وجه ددوی سره جنګ کوم عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (چې دا اوریدل نو) وې ویل په خدای قسم! |
| مَا هُوَ إِلَّا أَنْ رَأَيْتُ أَنَّ اللهَ شَرَحَ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ لِلْقِتَالِ |
| ددې نه بغیر بله هیڅ خبر نه ده زه پوهه شوم چې الله پرانیزلو زړه د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جنګ لپاره (د الهام په |
| فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ .[1] |
| ذریعه) لهذا زما هم یقین شو چې اوس همدغه (یعني د منکرینو زکوة سره جنګ حق او صحیح دی). |

**توضیح: عناقا:** د بیزې وړکي بچي ته عناق وایي. دا یې د مبالغي په توګه وفرمایل. ګیني نه د بیزې بچي په زکوة کې اخستلی کېږي او نه په داسي بچو باندې زکوة کېږي. په ځېنو روایتونو کې د عقال لفظ راغلی دی. چې د پړي په معنی کې دی. هغه د مبالغي په توګه دی. (المرقات: ۴/۲۸۹).

**ددې حدیث پس منظر:** کله چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې دنیا نه لاړو او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلیفه شو. نو هغه وخت په جزیرهٔ عرب کې د ارتداد فتنه جوړه شوه. تقریبًا ۷۰ سلیز خلک د ارتداد ښکار شو. خو د هغه مرتدینو احوال جدا جدا ؤو. ځېنې هغه خلک ؤو چې د دروغو د نبوت دعوی یې وکړه او ښه ډیر خلک ورسره شول. ځېنې هغه خلک ؤو چې هغوی بیخي اسلام پریخوستلو او د جاهلیت اولی طرف ته لاړل. ځېنې هغه خلک ؤو چې هغوی بالکل د زکوة نه انکار وکړو او ځېنې هغه خلک ؤو هغوی خو د زکوة نه انکار نه ؤو کړی خو حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې د ورکولو نه انکار کړی ؤو چې اوس به مونږ زکوة په بیت المال کې جمعه کؤو. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې ټولو خلکو سره د جنګ کولو اراده وکړه ځوک چې مرتد شوي ؤو. نو د ارتداد او د کفر په وجه یې ورسره جهاد وکړو او کوم خلک چې د مونځ او روژو پابند ؤو. کلمه به یې لوستله خو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې زکوة نه ورکولو. نو د هغوی سره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اسلام د شعائرو د ساتنې او د فتنې د ختمولو په

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۲۶۲، رقم الحديث ۱۳۹۹. وأبوداود في السنن ۳ ۱۹۸، رقم الحديث ۱۵۵۶، وأحمد في المسند ۱ ۱۹

بنیاد جنګ وکړو. حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کوم ... شک کړی ؤو. هغه د دغه قسمه خلکو باره کې ؤو چې دا خلک خو کلمه وايي. نو ته (حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) د هغوی خلاف جنګ څنګه کوي. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې کوم خلک په مونځ او زکوة کې فرق کوي هغه مسلمان نه شي پاتې کیدلی. زه به د هغوی سره جنګ ضرور کوم او بیا يې وفرمایل: "تم الدین وانقطع الوحي اینقص الدین وانا حی" (المرقات: ۴/۲۸۹).

بیا يې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې وویل "اجبار في الجاهلية وخوار في الاسلام".

د دې مکالمي نه وروسته حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې الله د دې کار لپاره زما سینه فراخه کړه چې د کوم لپاره د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فراخ شوي وه. بهرحال د مرتدینو خلاف پوره تریو کال پورې په جزیرۀ عرب کې جهاد وشو او اسلام بیا په هغه ځایونو کې قائم شو چې په کوم باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پریخودلی ؤو.

## کوم مال کې چې زکوة ورنه کړې شي نو اژدها به ترې جوړه شي او څکونه به لګوي

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَكُونُ كَنْزُ أَحَدِكُمْ يَوْمَ |
| ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ستاسو خزانه به د قیامت په ورځ د |
| الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ يَفِرُّ مِنْهُ صَاحِبُهُ وَ هُوَ يَطْلُبُهُ حَتَّى |
| مار په شکل کې وي. مالک به يې د دې نه تختي او د دې پسې به ګرځي او بیرته به راشي تردې چې هغه مار |
| يُلْقِمَهُ أَصَابِعه.[1] |
| به مالک ته لاړ شي او د هغې ګوتې به مړې کړي. |

**توضیح: کنز:** د خزانې نه مراد هغه مال دی چې د هغې زکوة نه وي ادا کړی شوی. د دغه شان هر هغه مال چې په حرامه طریقې سره جمعه کړی شوی وي هغه هم د دې کنز په حکم کې دی. (المرقات: ۴/۲۹۰).

**حتی یلقمه:** د دې جملې دوه مفهومه دي. اول مفهوم دا دی چې ګنجی مار به د غه مالک پسې ګرځي تردې چې هغه به کیر کړي او بیا لکه د مړي په شان تیر کړي. دویم مفهوم دا دی چې ګنجی مار به زکوة نه ورکونکي پسې ګرځي او هغه به ترینه تختي خو تختیدلی به ترینه نشي. نو مجبوراً به خپل لاس او

[1] أخرجه أحمد في المسند ۲ ۵۳۰

ګوتي خپله د هغه مار په خله کې ورکړي. لکه څنګه چې په دنیا کې هم وي چې د مجبورۍ په صورت سرې خپله د لوي مصیبت په ځای د وړوکي مصیبت تیارولو لپاره تیار شي. (المرقات: ۴۰۲۹۰).

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: مَا مِنْ رَجُلٍ |
| ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "کوم سړی |
| لَا يُؤَدِّي زَكَاةَ مَالِهِ إِلَّا جَعَلَ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي عُنُقِهِ شُجَاعًا |
| چې د خپل مال نه زکوة نه ورکوي د قیامت په ورځ به الله د هغې په څټ کې یو مار راخوړند کړي. بیا نبي |
| ثُمَّ قَرَأَ عَلَيْنَا مِصْدَاقَهُ مِنْ كِتَابِ اللهِ: ﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ دا آیت ولوستلو او ګمان دې نه کوي هغه خلک چې بخل کوي په هغه مال کې چې ورکړې دی |
| اللهُ مِنْ فَضْلِهِ ﴾. الْآيَةَ.[1] |
| الله تعالی دوي ته په خپل فضل سره. |

## د زکوة په نه ورکولو باندې مال تباه کیږي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَا |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وایي چې ما نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي چې فرمایل یې په کوم مال کې چې |
| خَالَطَتِ الزَّكَاةُ مَالًا قَطُّ إِلَّا أَهْلَكَتْهُ . رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَ الْبُخَارِيُّ فِي تَارِيخِهِ وَ الْحُمَيْدِيُّ |
| ګډه وډه شي زکوة نو هغه مال ضایع کوي، حمیدی دا نور نقل کړي (یعنې د حدیث وضاحت یې بیان کړی) |
| وَ زَادَ قَالَ: يَكُونُ قَدْ وَجَبَ عَلَيْكَ صَدَقَةٌ فَلَا تُخْرِجُهَا |
| چې بخاری رَحِمَهُ اللهُ وویل چې کله په تاسو باندې زکوة واجب شي او تاسو زکوة نه ورکوی (نو زکوة په |
| فَيُهْلِكُ الْحَرَامُ الْحَلَالَ . وَ قَدِ احْتَجَّ بِهِ مَنْ يَرَى تَعَلُّقَ |
| مال کې ګډه وډه شي) لهذا حرام مال حلال مال ضایع کوي کوم خلک چې دد دې خبرې قائل دي چې متعلق |
| الزَّكَاةِ بِالْعَيْنِ هَكَذَا فِي الْمُنْتَقَى[2] |
| دي زکاة د عین مال سره نه دا چې په ذمه باندې نو هغه همدغه حدیث د (بخاري دپاس وضاحت سره) خپل |

---

(۱) أخرجه الترمذي ۲۱٦/۵ رقم الحديث: ۳۰۱۲، والنسائي ۱۱/۵ رقم الحديث: ۲٤٤۱، وابن ماجه ۵٦۸/۱ رقم الحديث: ۱۷۸٤.

(۲) أخرجه الشافعي في مسنده ص ۹۹.

| |
|---|
| وَ رَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ بِإِسْنَادِهِ إِلَى عَائِشَةَ. |
| دليل ګڼلی دی. بیهقی په شعب الایمان کې دا روایت د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ تر عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا |
| وَ قَالَ أَحْمَدُ فِي خَالَطَتْ : |
| پورې د سلسله سند سره نقل کړی نو امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ د حدیث د لفظ خالطت (په معنی یاد هغې د تاویل) |
| تَفْسِيرُهُ أَنَّ الرَّجُلَ يَأْخُذُ الزَّكَاةَ وَ هُوَ مُوسِرٌ أَوْ غَنِيٌّ |
| په سلسله کې دا وضاحت کړی چې (مثلاً) يو سړی مالداره او غني دی خو د هغې باوجود هم زکوة اخلي |
| وَ إِنَّمَا هِيَ لِلْفُقَرَاء. |
| حال دا چې زکوة خو فقط د فقيرانو (او د مستحقينو) لپاره جائز دی. |

**توضیح : ماخالطت الزکوٰة**: اختلاط د ملاویدو او ګډوډ کیدلو په معنی دی دلته د زکوة د ګډ وډ کیدل مراد دي. د یو سړي د مال د زکوة د ګډ وډ کیدلو دوه مقصده دي : اول مطلب دا دی چې یو سړی صاحب نصاب مالداره دی خو هغه د خپل مال نه زکوة نه ادا کوي نو زکوة د هغې د مال سره ګډ وډ پاتې شي. نو که زر وي او که په قلاره وي زکوة د هغه سړي مال تباه کړي. هغه مال بي فایدي او بي برکته پاتې شي. یا بالکل ښکاره شي. د حدیث پاسنی مطلب امام بخاری رَحِمَهُ اللّٰهُ بیان کړی دی. او راتلونکی دویم مطلب امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ بیان کړی دی. (المرقات :۴/۲۹۱).

د دې جملي دویم مطلب چې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ بیان کړی دی هغه دا دی چې یو سړی خپله مالداره دی خو د خلکو نه زکوة اخلي او د خپلو مالونو سره ګډ وډ کړي. نو په دې اختلاط سره هم د هغه سړی مال تباه کېږي. د نورو حرامو مالونو حال هم دغه شان دی.

**واحتج من یری**: یعني د دې حدیث نه هغه خلکو استدلال کړی دی. چې د هغوی رائی دا ده چې د زکوة تعلق د مال د عین سره دی، د ذمې سره نه دی.

صاحب مشکوة د دې جملي نه د فقهاؤ یو اختلاف طرف ته اشاره کړي ده. هغه اختلاف دا سي دی چې آیا د زکوة تعلق د عین مال سره دی یا د دې تعلق د مالداره سړي سره دی. که د زکوة تعلق د عین مال سره وي نو د کوم سره چې د دې تعلق شو نو د هغه مال نه به زکوة ورکول کېږي. هیڅ نرخ یا نور څه ادا کول به جائز نه وي. او که د زکوة تعلق د ذمه سره دی نو د هغه مال په بدل کې د نورو مالونو نه د هغې نرخ ادا کول جائز کېږي. (المرقات :۴/۲۹۱).

بل اسان تعبیر دا سي دی چې آیا په زکوة کې دفع القیم جائز دی یا نه؟ په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** : امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې دفع القیم جائز دی.

د احنافو انسه وايي چې په زكوة كې دفع القيم جائز دى. لكه مثلا اوښ واجب ۀ مالک د هغې نرخ زكړو او اوښ يې ... خپل ځان ... ده ساتلو.

**دلائل:** امام مالک رَحِمَهُ اَللَّهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اَللَّهُ د زير بحث حديث نه استدلال كړى دى. مخكې معلومه شوې ده چې د دې حديث دوه مطلبه دي. دې حضراتو د حديث په اولني مطلب په بنياد باندې استدلال كړى دى چې د خالطت مطلب دا شو چې زكوة د عين مال سره مخلوط شو. او س د دې وركول ضروري دي بدل نه شي وركولى ځكه زكوة د مال سره يو ځاى شوى دى.

د احنافو دلائل ډير مضبوط دي. امام بخاري رَحِمَهُ اَللَّهُ هم په بخارى كې ډير دلائل د احنافو د ... ذكر كړي دي په كومو كې چې د ... وړاندې كړى شوي نظر د لاندې كړى دې چې دفع القيم جائز دى. دلته په مشكوة كې هم "**باب ما يجب فيه الزكوٰة**" كې ډير حديثونه په دفع القيم كې ذكر دي. د حضرت انس رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ په حديث ۳ كې په واضحه توگه موجود دې چې كه په يو سړي باندې بنت لبون واجب وي خو د هغې سره هغه نه وي بلكې بنت مخاض وي نو ساعي به د هغې بنت مخاض واخلي او شل (۲۰) درهم يا دوه بيزى نه هم واخلي. دلته چې مالک كوم درهم ور ... دي. دا هم دغه د زكوة نرخ دى؟ لهذا په زكوة كې دفع القيم جائز دى. او نور چې د بحث د لاندې حديث نه كومو حضراتو استدلال كړى دى. د هغې جواب دا دى چې د دې حديث تشريح په دوه ډوله شوې ده. شوافع د دې نه هله استدلال كولى شي چې د اختلاط اولنى مفهوم او د هغې شرح معلومه وي. حال دا چې داسې نه ده. لهذا استدلال صحيح نه دى. مونږ د دې حديث دوه شرح اخلو چې كومې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اَللَّهُ كړي دي. او دغه شان په دفع القيم كې د فقيرانو لپاره ډير سهولت دى او دغه شان په دفع القيم اكثر وخت تنگسيا كيږي.

**والحرج مدفوع في الشرع** :نن سبا په سعودي عرب كې د كوچني اختر په موقع باندې د صدقه فطر د وركول لپاره په سركونو باندې په بوجو كې د بندو وريجو ډيرې پراته وي. يو دوكاندار مثلاً دوه كلو وريجې په پنځه ريال باندې خرڅوي. خو غريب يا مسكين چې كله هغه وريجې همغه دوكاندار ته وركوي. نو دوكاندار په دوه ريال باندې اخستلو ته هم تيار نه وي. كه چيرې د دفع القيم قاعده عملي كړى شوې وى نو په سركونو باندې به دغه بې خوندي هم نه وى او په نغد ريالو باندې مسكينانو ته به فايده هم شوې وې.



# باب ما يجب فيه الزكوٰة

## په كومو شيانو كې چې زكوة واجبيږي د هغې بيان

قال الله تعالىٰ: ﴿وَآتُواْ حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ﴾ (سورة انعام آيت:١٤١).

وقال الله تعالىٰ: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الأَرْضِ﴾ (سورة البقرة آيت:٢٦٧).

شريعت اسلام چې په كومو مالونو باندې زكوة واجب كړې دى هغه څلور قسمه مالونه دي :١: د كال اكثر برخه كې څريدونكي څاروي. ٢: سره زر او سپين زر. ٣: تجارتي مالونه. ۴: د ځمكې او د بوټو پيداوار. چې تفصيلات او د فقهاؤ اختلافات يې په خپل خپل ځاى كې راروان دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## دزكوة د نصاب تفصيل

| |
|---|
| ﴿١﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَيْسَ |
| حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه روايت دى وايي چې : نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايل : نه دى واجب |
| فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنَ التَّمْرِ صَدَقَةٌ وَ لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ مِنَ الْوَرِقِ صَدَقَةٌ |
| زكوة د پنځه وسق نه كم كهجورو باندې ، او د پنځه اوقيه نه كم سپينو زرو باندې زكوة واجب نه دى او د |
| وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ ذَوْدٍ مِنَ الْإِبِلِ صَدَقَةٌ .(١) |
| پنځه راس نه كم اوښانو باندې زكوة واجب نه دى. |

**توضيح : خمسة اوسق:** په دې حديث كې د هر قسمه مال د نصاب ذكر شوى دى. او د نصاب نه د كم مال نفي شوې ده. نو په وسق كې د زكوة د نفي ذكر دى. يو وسق د اته (٨) صاع برابر وي او يو صاع ٢٧٠ تولو برابر وي. (المرقات :۴/٢٩٢). يو شاعر ويلي دي:

**صاع كوفى هست اے مردے سليم** ۞ **دو صد و هفتاد توله مستقيم**

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٣ ٣٢٣، رقم الحديث ١٤٥٩، ومسلم في صحيحه ٢ ٦٧٣ رقم الحديث ١ ٩٧٩، وأبوداود في السنن ٢٠٨/٢، رقم الحديث ١٥٥٨، والترمذي في السنن ٣ ٢٢ رقم الحديث ٦٢٦، وابن ماجه ١ ٥٧١ رقم الحديث ١٧٩٣، وأحمد في المسند ٦٠/٣.

د مد په اعتبار سره يو صاع د څلور مد برابر وي. او مد د دوه رطل برابر وي. په دې حساب سره يو صاع اته رطل دی. د احنافو د ائمؤ د رائې مطابق دی.

**خمسة اواق:** دا د اوقيه جمعه ده. يو اوقيه د څلويښتو درهم برابر وي. د غه شان پنځه اوقيه د دوه سوه (۲۰۰) درهمو برابر شول او دوسوه درهم د دوه پنځوس نيم (۵،۵۲) تولو برابر دې او همدغه د سپينو زرو نصاب دی. د دې نه په کم کې زکوة نشته دی. د دوه پنځوس نيم تولو د سپينو زرو د مارکيټ نرخ د پاکستاني روپو نه به زکوة ورکول کېږي. په هر څلويښتو روپو کې يوه روپۍ د زکوة ده. د سرو زرو نصاب ۲۰ مثقال دی. چې د اوونيمو (۷.۵) تولو برابر دی. د دې نه په کمو سرو زرو کې زکوة نشته دی. اووه نيمي تولي د مارکيټ د نرخ په اعتبار سره د پاکستاني روپو نه به زکوة ادا کېږي. که د يو سړي سره څه سره زر دې او څه سپين زر دې مثلاً پاؤ باندې شپږويشت تولي سره دې او پاؤ باندې شپږويشت تولي د سپينو زرو د نرخ برابر سره زر دې نو دا د دوه پنځوس نيمي تولي د سپينو زرو نصاب دی. په دې کې به زکوة واجب وي. (المرقات : ۴/۲۹۳).

**ذود:** دا لفظ د **ذال** فتحې سره دی. د خپلي مادې نه د دې مفرد نشته دی. د دوؤ نه تر اوه اوښانو ډلې ته ذود وايي. ځينو ويلي دي چې د درېو نه تر لسو اوښانو پورې د دې اطلاق کېږي. بهر حال د پنځه نه په کمو اوښانو کې زکوة نشته دی. په دې حديث کې د زکوة د درې نصابونو ذکر شوی دی. ۱: کهجوري ۲: سپين زر ۳: اوښ. د آخري دوه ذکر شوي نصابونو تفصيل او تشريح واضحه هم ده. او په دې کې د ذکر کولو قابل اختلاف هم نشته دی. البته په اول کې د ذکر شوي نصاب په تشريح او تفصيل کې اختلاف شوی دی چې هغې ته نصاب عشر وايي. (المرقات : ۴/۲۹۴).

**د عشر نصاب:** د زرعي حاصل نه چې کوم عشر وصولېږي. آيا د هغې لپاره څه متعين مقدار دی يا ورله څه تعين او حد نشته دی. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف:** جمهور و فقهاؤ او د صاحبينو په نزد د عشر نصاب مقرر او متعين دی. پنځه وسق غله کې زکوة دی. د دې نه په کم کې نشته دی. د غلې نه مراد هغه غله ده چې تر کال پورې ايخودلو سره نه خرابېږي. او که خرابېږي نو په هغې کې عشر نشته دی. اګر که هغه د پنځه وسق نه ډيره وي. لکه سبزي جات او داسې نور شيان. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د زرعي حاصل لپاره هيڅ نصاب نشته دی. لږ وي او ډير، بنه وي او که نابنه وي، په ټولو کې عشر واجب دی. (المرقات : ۴/۲۹۳).

**دلائل:** جمهور فقهاؤ د بحث د لاندې حديث نه استدلال کړی دی چې په خپل مقصود باندې واضح دليل دی. او د غه شان جمهور فقهاؤ د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث نه هم استدلال کړی دی چې **"ان عليه السلام قال ليس في الخضروات صدقة"**.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ د قرآن کریم د آیت ﴿وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ﴾ (سورة انعام آیت: ۱۴۱) نه استدلال کړی دی چې د فصل ریبلو په ورځ د هغې حق ادا کوي. د حق نه مراد عشر دی. امام صاحب د قرآن کریم د آیت ﴿وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم﴾ نه استدلال کړی دی. او وایي چې د دې آیت نه زرعي پیداوار مراد دی او همدغه د دې عشر دی. (المرقات: ۴/۲۹۴).

د امام صاحب دویم دلیل د مشکوة ص ۱۵۹ باندې د حضرت بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث ۴ دی چې الفاظ یې داسې دي "**عن عبدالله بن عمر عن النبي صلی الله علیه وسلم قال فیما سقت السماء والعیون اوکان عثریا العشر وما سقی بالنضح نصف العشر**". (بخاری)

په دې حدیث کې ماسقت السماء عام دی. چې او به هیڅ یو شی خړوب کړي هغه که لږ وي یا ډیر وي نو په هغې کې عشر دی. په نصب الرایه کې د حضرت عمر بن عبدالعزیز رَحِمَهُ اللهُ دا فرمان هم ذکر دی. هغوی حکم وکړو:

"**ان یاخذو العشر من کل قلیل وکثیر فلم یعترض علیه احد**".

د امت د فقیرانو لپاره مصلحت هم په دې کې دې چې په هر لږ او ډیر شي کې عشر وي. د دې لپاره چې د مستحقینو زکوة لپاره اسانی او فایده وي.

**جواب**: د بحث د لاندې حدیث جواب چې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ له نه دا ورکړی شوی دی. چې د دې حدیث تعلق د تجارتي مالونو سره دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نصاب اړخ ته اشاره کړې ده. ځکه پنځه وسق غله به هغه وخت د دوه سوه درهمو برابره وه. نو په حدیث کې د صدقې نه مراد عشر نه بلکې زکوة دی. (**کذافی صاحب الهدایه والعینی**)

بهرحال دا خو د لائلو خبر وه خو په دې مسئله کې نن سبا پاکستان کې حکومت د جمهورو فقهاؤ د قول مطابق د عشر حکم جاري کړی دی چې د پنځه وسق په حساب سره به عشر واخستلی شي. په لږو کې دې وانخستلی شي.

## د غلام او د آسونو د زکوة مسئله

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (نه دی واجب) په هیڅ یو مسلمان باندې |
| صَدَقَةٌ فِي عَبْدِهِ وَلَا فِي فَرَسِهِ . وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ : لَيْسَ |
| زکوة دده په غلام او اسپو کې دیو بل روایت الفاظ دي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمایل: نه دی (واجب) |

| فِيْ | عَبْدِهٖ | صَدَقَةٌ | إِلَّا | صَدَقَةَ | الْفِطْرِ .(١) |
|---|---|---|---|---|---|
| په هيڅ مسلمان باندې زكوة ده په غلام كې خو د وړوكي اختر صدقه پرې (واجب) ده. | | | | | |

**توضيح : فى عبده**: د دې نه د خدمت غلام مراد دى. ځكه كه غلام د تجارت لپاره وي نو په هغې كې زكوة فرض دى. او د خدمت په غلامانو كې د هيچا په نزد زكوة نشته دى. (المرقات :٤/٢٩٥).

**ولا في فرسه**: اسپي په درې قسمه دي: اول د سورلۍ لپاره، دويم د تجارت لپاره، دريم د نسل زياتولو لپ ره. په اول قسم كې د هيچا په نزد زكوة نشته دى. په دويم قسم كې د ټولو په نزد زكوة فرض دى. په دريم قسم كې د فقهاؤ اختلاف دى. (المرقات :٤/٢٩٥).

**د فقهاؤ اختلاف**: جمهور فقهاء سره د صاحبينو په اسپو كې د زكوة قائل نه دي.

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد كه اسپي سائمه فقط ذُكور وي نو د اصح قول مطابق په دې كې زكوة نشته دى. او كه هغه فقط اُناث وي نو د اصح قول مطابق په هغې كې زكوة واجب دى. او كه مخلوط وي يعنې اس او اسپي ګډ وډ وي او د كال اكثره برخه د ځنګل په وښو باندې ګوزاره كوي. نو په هغې كې يقيناً زكوة دي. د دې اقوالو وجه دا ده چې فقط په ذكورو كې احتمال د نسل نشته دى. نو ډيروالى هم نشته دى، نو زكوة هم نشته دى. او كه فقط اناث وي يا مخلوط وي نو احتمال د نسل شته نو ډيروالى يې شته دى، نو زكوة يې شته دى. (المرقات :٤/٢٩٥).

**دلائل**: جمهورو فقهاؤ او صاحبينو د بحث د لاندې حديث نه استدلال كړى دى. چې په خپل مقصود باندې واضح تر دليل دى. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يوې فيصلې نه استيدلال كړى دى. قصه داسې شوې وه چې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور كې اسپي هم ډيرې شوې او قيمتې هم شوې نو يو كس يوه اسپه د سلو (١٠٠) اسپو په بدل كې خرڅه كړه او بيا هم خوشحاله نه ؤ. په هغه زمانه كې د شام د علاقې نه خلك راغلل او د اسپو د زكوة باره يې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د مسئلې پوښتنه وكړه. حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صحابؤ شورى راوغوښتله. په هغې كې ټولو صحابؤ د اسپو د زكوة مشوره وركړه. حتى دا چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم مشوره وركړه نو هله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اسپو د زكوة وركولو حكم وركړو. د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د اسپو د زكوة د دې روايت تخريج ډيرو محدثينو كړى دى. په مسند احمد طبراني طحاوي دار قطني او په مستدرك حاكم كې دا

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٣ ٣٢٧، رقم الحديث ١٤٦٤، ومسلم في صحيحه ٢ ٦٧٥ رقم الحديث ٨ ٩٨٢، وأبوداود في السنن ٢ ٢٥١، رقم الحديث ١٥٩٥، والترمذي في السنن ٣ ٢٣ رقم الحديث ٦٢٨، وابن ماجه ١ ٥٧٩ رقم الحديث ١٨١٢، وأحمد في المسند ٢ ٢٤٢

اثر د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حوالي سره ذکر دی.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ د دې او رد حدیث نه هم استدلال کړی دی چې په هغې کې د **"ثم لم ینس حق الله في ظهورها ولا رقابها"** الفاظ راغلي دي. (المرقات: ۴/۲۹۵).

**جواب**: د زیر بحث حدیث جواب دا دی چې ددې نه د غازي اسپه یا د خدمت اسپه مراد ده. لکه څنګه چې د غلام د خدمت نه غلام مراد دی. بهرحال فتاویه قاضی خان او فتاوی عالمګیري کې لیکل شوي دي چې په دې مسئله کې فتوی د صاحبینو او د جمهورو په قول باندې ده.

## د اوښانو د زکوة تفصیل

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ أَبَا بكر رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَتَبَ لَهُ هٰذَا الْكِتَابَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْبَحْرِينِ: |
| دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولیکلو دا خط چې کله یې دا بحرین ته لیږلو |
| بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ هٰذِهِ فَرِيضَةُ الصَّدَقَةِ الَّتِي |
| د الله د نوم نه شروع چې رحمن او رحیم دی. دا (هدایت نامه) د هغه صدقۀ فرض (زکوة) باره کې ده چې |
| فَرَضَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ وَالَّتِي أَمَرَ اللهُ عَزَّ وَ جل بِهَا |
| چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د (الله په حکم سره) په مسلمانانو باندې فرض کړه او الله حکم وکړو د دې (د |
| رَسُوله فَمن سُئِلَهَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى وَجْهِهَا |
| نافذولو) باره کې خپل رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته لهذا کوم سړي نه چې د قاعدې مطابق مطالبه وکړی شي |
| فَلْيُعْطِهَا وَ مَنْ سُئِلَ فَوْقَهَا |
| نو هغه دې ادا کړي او د کوم سړي نه (چې د شرعي مقدار نه) ډیره مطالبه وشي. هغه (زیاتې مطالبه به) |
| فَلَا يُعْطِ : فِي أَرْبَعٍ وَ عِشْرِينَ مِنَ الْإِبِلِ فَمَا دونهَا مِنَ الْغَنَمِ |
| نه اداکول کېږي (د زکوة نصاب دا دی چې) څلورویشت (۲۴) یا ددې نه د لږ اوښانو په زکوة کې بیزې دي |
| مِنْ كُلِّ خَمْسٍ شَاةٌ . |
| د غه شان په هر پنځه اوښانو باندې یوه بیزه ده (یعنې د پنځه نه په کم باندې زکوة نشته دی او د پنځو نه |
| تر نهو (۹) پورې یوه بیزه. لس نه تر څوارلس پورې دوه بیزې، پنځلس نه تر نورلس پورې درې بیزې او |
| فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَ عِشْرِينَ إِلَى خَمْسٍ وَ ثَلَاثِينَ |
| شلو نه تر څلور یشت پورې څلور بیزې واجبېږي) کله چې په شمیر د پنځویشو نه تر پنځه دیرشو پورې شر |

فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ أُنْثَى فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًا وَ ثَلَاثِينَ إِلَى خَمْسٍ وَ أَرْبَعِيْنَ فَفِيهَا

نو په دې کې يوه داسې اوښه وې چې يو کلنه وي، شپږ ديرشتو نه تر پنځه څلويښت پورې کې يوه داسې

بِنْتِ لَبُون أُنْثَى . فَإِذا بَلَغَتْ سِتَّة وَ أَرْبَعين إِلَى سِتِّينَ فَفِيهَا حِقَّةٌ

اوښه وي چې د دوه کالو وي، د شپږ څلويښتو ته تر شپيتو پورې يوه داسې اوښه چې د څلورو کالو وي او

طَرُوقَةُ الْجَمَلِ فَإِذَا بَلَغَتْ وَاحِدَةً وَ سِتِّينَ فَفِيهَا جَذَعَة .

داوښ نه جفتى قابل وي يو شپيتو نه ترپنځه اويا ؤپورې کې يوه داسې اوښه چې څلور کاله يې پوره شوي وي

فَإِذا بَلَغَتْ سِتًا وَ سَبْعِيْنَ إِلَى تِسْعِيْنَ فَفِيهَا بِنْتَا لَبُونٍ .

او په پنځم کال کې داخله شوي وي او د ۷۶ نه ۹۰ پورې کې دوه داسې اوښې چې د درې درې کلونو وي

فَإِذَا بَلَغَتْ إِحْدَى وَ تِسْعِيْنَ إِلَى عِشْرِيْنَ وَ مِائَةٍ فَفِيْهَا حِقَّتَانِ طَرُوقَتَا الْجَمَلِ .

او داوښ نه د جفتى قابل وي او كله چې شمير ديوسلوشلو (۱۲۰) نه ډير وي نو د هغې طريقه به دا وي چې

فَإِذَا زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَ مِائَةٍ فَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ وَ فِي كُلِّ خَمْسِينَ

په هر زياتې اوښو کې د ۴۰ په زياتې باندې د دوه کالو اوښې او د هر ۵۰ زياتې باندې پوره د درې کالو

حِقَّةٌ . وَ مَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ إِلَّا أَرْبَعٌ مِنَ الْإِبِلِ فَلَيْسَ فِيهَا صَدَقَةٌ

اوښې باندې واجب کېږي او چا سره چې فقط څلور اوښان وي نو په هغې باندې زكوة واجب نه دى. خو

إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا . فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا فَفِيهَا

که دا سړي وغواړي نو د نفل صدقې په توګه دې څه ورکړي. كله چې پنځه اوښان وي نو په دې باندې به

شَاةٌ وَ مَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ مِنَ الْإِبِلِ صَدَقَةَ الْجَذَعَةِ

د زكوة په توګه يوه بيزه واجبېږي او كوم سړي سره چې دومره اوښان وي چې په هغې کې د زكوة په توګه

وَ لَيْسَتْ عِنْدَه جَذَعَة وَ عِنْدَه حِقَّةٌ

داسې اوښه واجب شي چې څلور كاله يې پوره كړي وي او په پنځم كال کې لږېدلې وي (يعنې د يو شپيتو

نه تر پنځه اوياؤ په شمير کې) او د هغې سره د څلور كالو اوښ نه وي (هغه يې د زكوة په توګه وركړي)

فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ الْحِقَّةُ

بلكې درې كلنه اوښه موجوده وي. نو د هغې همغه درې كلنه اوښه په زكوة کې قبليدلى شي. خو كه د

وَ يُجْعَلُ مَعَهَا شَاتَيْنِ إِنِ اسْتَيْسَرَتَا لَهُ أَوْ

زکوة ورکونکی د دي درې کلني اوښې سره که د هغې سره موجود وي نو دوه بیزي ګیني په نورو صورتونو

عِشْرِينَ دِرْهَمًا . وَ مَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةَ الْحِقَّةِ

کې دې شل درهم ادا کړي او که د چا سره اوښونو شمیر وي چې په هغې کې درې کلنه اوښه واجب کېږي

وَ لَيْسَتْ عِنْدَهُ الْحِقَّةُ

(یعنې د شپږ ځلو ینښتو نه تر شپیتو په شمیر کې) او هغه درې کلنه هیڅ یوه اوښه (په زکوة کې ورکولو لپاره)

وَ عِنْدَهُ الْجَذَعَةُ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ الْجَذَعَةُ وَ يُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ

نه وي بلکې څلور کلنه اوښه وي نو د هغې نه دې همغه څلور کلنه اوښه واخستلې شي. خو زکوة وصول

عِشْرِينَ دِرْهَمًا أَوْ شَاتَيْنِ . وَ مَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةَ

کونکی دې هغې ته دوه بیزې یا شل (۲۰) دراهم بیرته ورکړي. او که د چا سره د اوښانو داسې شمیر وي

الْحِقَّةِ وَ لَيْسَت إِلَّا عِنْده بِنْتُ لَبُونٍ

چې په هغې درې کلنه اوښه واجب کېږي او هغې سره درې کلنه هیڅ یوه اوښه نه وي بلکې دوه کلنه اوښه

فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ ، بِنْتُ لَبُونٍ وَ يُعْطِي مَعَهَا شَاتَيْنِ أَوْ عِشْرِينَ دِرْهَمًا.

وي نو د هغې نه دې همغه دوه کلنه اوښه واخستلې شي. البته زکوة ورکونکی دې دوه بیزې یا شل دراهم

وَ مَنْ بَلَغَتْ صَدَقَتُهُ بِنْتَ لَبُوْن

(هم د هغې سره) ورکړي. او که د چا سره په دومره شمیر کې اوښان وي چې په هغې کې دوه کلنه اوښه

واجب کېږي (لکه د شپږ دیرشتو نه تر پنځه څلوېښتو په شمیر کې) او د هغې سره (د دوه کلنې اوښې په

وَ عِنْده حِقَّةٌ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ الْحِقَّةُ وَ يُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ

ځای) درې کلنه اوښه وي. نو د هغې نه دې درې کلنه اوښه واخستلې شي. خو زکوة وصول کونکی دې

عِشْرِينَ دِرْهَمًا أَوْ شَاتَيْنِ . وَ مَنْ بَلَغَتْ صَدَقَتُهُ

هغې ته شل دراهم یا دوه بیزې بیرته ورکړي. او که د چا سره په دومره شمیر کې اوښان وي چې په هغې

بِنْتَ لِبُوْنٍ وَ لَيْسَتْ عِنْدَهُ وَ عِنْدَهُ بِنْتُ مَخَاضٍ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ بِنْتُ مَخَاضٍ

دوه کلنه اوښه واجبېږي او هغه د هغې سره نه وي بلکې یوه کلنه اوښه وي. نو د هغې نه همغه یوه کلنه

وَ يُعْطِي مَعَهَا عِشْرِينَ دِرْهَمًا أَوْ شَاتَيْنِ.

اوښه واخستلی شي او هغه زکوة ورکونکی دې د هغې سره شل دراهم یا دوه بیزې هم ورکړي. او که د یو

وَ مَنْ بَلَغَتْ صَدَقَتُهُ بِنْتَ مَخَاضٍ

سړي سره په دومره شمیر کې اوښان وي چې په هغې یوه کلنه اوښه واجب کېږي (لکه د شلو نه تر پنځویش

وَ لَيْسَتْ عِنْدَهُ وَ عِنْدَهُ بِنْتُ لَبُونٍ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ

په شمیر کې) او یوه کلنه اوښه د هغې سره نه وي بلکې دوه کلنه ورسره وي. نو د هغې نه دې همغه دوه

مِنْهُ وَ يُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِينَ دِرْهَمًا أَوْ شَاتَيْنِ . فَإِنْ

کلنه اوښه واخستلی شي. خو د زکوة وصولونکی دې هغې دوه بیزې یا شل دراهم بیرته ورکړي. او که د

لَمْ تَكُنْ عِنْدَهُ بِنْتُ مَخَاضٍ عَلَى وَجْهِهَا وَ عِنْدَهُ ابْن لَبُونٍ

چا سره د ورکولو لپاره یوه کلنه اوښه نه وي (او نه ورسره دوه کلنه اوښه وي) بلکې دوه کلن اوښ وي نو

فَإِنَّهُ يُقْبَلُ مِنْهُ وَ لَيْسَ مَعَهُ شَيْءٌ

همغه اوښ دې ترینه واخستلی شي. خو په دې صورت کې بل هیڅ یو شی واجب نشته (یعنې نه خو به

وَ فِي صَدَقَةِ الْغَنَمِ فِي سَائِمَتِهَا

اخستونکی څه بیرته ورکوي او نه به زکوة ورکونکی څه ورکوي). او د څریدونکو بیزو نصاب دا دی

إِذَا كَانَتْ أَرْبَعِينَ فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى عِشْرِينَ وَ مِائَةٍ شَاة فَإِنْ

چې د بیزو شمیر د څلویښتو (۴۰) نه تر یو سلو شلو (۱۲۰) پورې وي. نو یوه بیزه واجب کېږي. او که د

زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَ مِائَةٍ إِلَى مِائَتَيْنِ فَفِيهَا شَاتَان فَإِن زَادَتْ عَلَى مِائَتَيْنِ

یو سلو شلو نه ډیري وي نو تر دوه سوه (۲۰۰) شمیر پورې دوه بیزې واجب کېږي. او چې دوه سوه نه

إِلَى ثَلَاثِمِائَةٍ فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ . فَإِذَا زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِمِائَةٍ

ډیري وي نو تر درې سوه (۳۰۰) پورې کې درې بیزې واجب کېږي او کله چې د درې سوه ډیري شي نو

فَفِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ . فَإِذَا زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِ مِائَةٍ فَفِيْ كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ فَإِذَا كَانَتْ سَائِمَةُ الرَّجُلِ

بیا به دا حساب وي چې په هر سلو (۱۰۰) بیزو کې به یوه بیزه واجب کېږي. کوم سړي سره چې د څرېدونکو

نَاقِصَةً مِنْ أَرْبَعِينَ شَاةً وَاحِدَةً فَلَيْسَ فِيهَا صَدَقَةٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا.

بیزو کې یوه هم کمه وي. نو په هغې به زکوة نه واجب کېږي. خو که د بیزو مالک وغواړي نو نفلي صدقې

په توګه څه ورکولی شي. (د دې خبرې دې خیال ساتلی شي چې) په زکوة کې (که اوښ که غوا وي او که

وَلَا تُخْرَجَ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ وَلَا ذَاتَ عَوَارٍ وَلَا تَيْسٌ إِلَّا

بیزه وي) بوډۍ، او عیب داره ورنه کړی شي او نه چیلي ورکړی شي خو که زکوة وصولونکی (دیو مصلحت

مَا شَاءَ الْمُصَدِّقُ . وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ

په خاطر) چیلي اخستل غواړي (نو صحیح ده) او بیلا بیل څاروي دې یو ځای نه کړی شي او نه دې د زکوة

وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيطَيْنِ

د ویرې نه څاروي جلا جلا کړی شي. او دغه شان که په کوم نصاب کې دوه سړي شریک وي. نو هغوی

فَإِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ . وَ فِي الرِّقَةِ رُبُعُ الْعُشْرِ

ته په کار ده چې هغه برابر تقسیم کړي او په سپینو زرو کې څلوېښتمه (۴۰) برخه د زکوة په توګه ورکول

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ إِلَّا تِسْعِينَ وَ مِائَةً

فرض دي. که د چا سره فقط یو سلو نوي (۱۹۰) دراهم وي (یعني د نصاب شرعي مالک نه وي) نو په ده

فَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا. (۱)

باندې هیڅ فرض نشته دی. خو که د صدقه نفل په توګه څه ورکول غواړي نو ورکولی شي.

**توضیح: بنت مخاض:** د اوښانو د عمرونو لپاره یو څو اصطلاحي الفاظو باندې ځان پوهول په کار دي.

**بنت مخاض:** دا هغه اوښه ده چې د یو کال وي او دویم کال یې شروع کړی وي. (المرقات: ۴/۲۹۷).

**بنت لبون:** دا هغه اوښه ده چې دوه کاله یې پوره شوي وي او په دریم کال یې شروع کړی وي. (المرقات: ۴/۲۹۸).

**حقه:** دا هغه اوښه چې درې کاله یې پوره شوي وي او څلورم کال یې شروع کړی وي. دې ته **طروقة الجمل** هم وایي. یعنې دا اوښه د اوښ د جفتې کیدلو قابله شوې ده. (المرقات: ۴/۲۹۸).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه، رقم الحديث ۱۴۹۶

**جذعه**: دا هغه اوښه ده چې څلور کاله یې پوره شوي وي او پنځم کال یې شروع کړی وي. (المرقات ۴/۲۹۸).

**د اوښانو د زکوة طریقه**: د اوښانو د نصاب پنځه عدد دي ددې نه په لږو کې زکوة نشته دی. پنځو نه تر څلورويشتو (۲۴) پورې یو بیزه ده.

د پنځویشتو (۲۵) نه تر پنځه دیرشتو (۳۵) پورې کې یو بنت مخاض دی.

د شپږ دیرشتو (۳۶) نه تر پنځه څلویښتو (۴۰) پورې کې یو بنت لبون دی.

د شپږ څلویښتو (۴۶) نه تر شپیتو (۶۰) پورې کې یوه حقه ده.

د یو شپیتو (۶۱) نه تر پنځه اویاؤ (۷۵) پورې کې یوه جذعه ده.

د شپږ اویاؤ (۷۶) نه تر نوي (۹۰) پورې کې دوه بنت لبون دي.

د یو نوي (۹۰) نه تر یو سلو شلو (۱۲۰) پورې کې دوه حقې دي.

تردې ځایه پورې حساب کې د هیچا اختلاف نشته دی. ددې نه وروسته په حساب کې د ائمه اربعو اختلاف دی. (المرقات: ۴/۲۹۸).

**د فقهاؤ اختلاف**: د ائمه ثلاثۀ په نزد د یو سلو شلو (۱۲۰) نه وروسته به استیناف نه کېږي. بلکې مدار به په اربعیناتو او خمسیناتو باندې کېږي. نو د شوافعو او د حنابلو په نزد یو سلو یویش (۱۲۱) او د مالکیو په نزد یو سلو یو دیرش (۱۳۱) نه اربعینات او خمسینات سلسله شروع کېږي. چې په هر څلویښتو (۴۰) کې به یو بنت لبون او په هرپنځوسو (۵۰) کې یو حقه ده. مثلاً په یو سلو یو دیرش (۱۳۱) کې درې اربعینات دي. نو درې بنت لبون واجب دي. په یو سلو دیرش کې دوه بنت لبون او یو حقه ده او په ۱۴۰ کې دوه حقې او یو بنت لبون دی.

د ائمه احنافو په نزد د یو سلو شلو نه وروسته استیناف یعنې د سر نه حساب شروع کېږي. چې په هر پنځه اوښانو کې یوه بیزه ده او ۲۵ باندې یو مخاض دی. دا استیناف اول دی. دا استیناف به تر یو سل پنځوس پورې ځي. کله چې اوښان یو سلو پنځوس شي نو درې حقې به واجب شي. په هر پنځوسو باندې یوه حقه ده دلته به استیناف اول ختم شي. د پنځوسو نه چې ډیر شي نو په هر پنځو باندې به یوه بیزه زیاتې شروع شي او ۲۵ باندې به بنت مخاض زیاتې شي.

**وقس علی هذا**: دې ته استیناف ثاني وایي. (المرقات: ۴/۲۹۵).

**دلائل**: جمهور فقهاء د زیر بحث حدیث نه استدلال کړی دی. په دې د اربعینات او خمسینات ذکر موجود دی. د احنافو ائمۀ د هغه حدیث نه استدلال کړی چې ابو داؤد په مراسیلو کې، اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل مسند کې او طحاوی په مشکل الآثار کې نقل کړی دی. چې په هغې کې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عمرو بن حزم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په صدقو باندې لیکل شوی یو فرمان جاري کړی دی الفاظ

يې دا دی: "فاذا كانت اكثر من عشرين ومائة يعاد الى اول فريضة الابل و ماكان اقل من خمس و عشرين ففيه الغنم في كل خمس شاة". (مراسيل ابوداؤد) (ص:۳۸۵)

د احنافو دويم دليل په مصنف بن ابی شيبه کې د حضرت علی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اثر دی. چې د مرفوع حديث حکم دی. الفاظ دا دي. "فاذا ازادت الابل على عشرين ومأة يستقبل بهَا الفريضة".

**جواب:** احناف وايي چې د بحث د لاندې د کوم حديث نه چې جهور فقهاؤ استدلال کړی دی. په دې باندې هم زمونږ عمل دی. خو د عمرو بن حزم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روايت کې چې کوم اضافه ده مونږ هغه هم منو. کله چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اضافي صدقي حکم ورکړی دی نو د دې حديث سره په دې حديث باندې هم عمل کوی په کار دي. مونږ چې څنګه په دواړو حديثونو باندې عمل کوو. جمهور فقهاؤ له هم داسې کول په کار دې او په دې کې د فقيرانو هم فايده ده. باقي د دې حديث ډير مقامات داسې دې چې په هغې کې د څارو په ځای د نرخ ورکولو ذکر دی. دا هم د ائمه احنافو لپاره د **دفع القيم** باندې مضبوط دليل دی. چې د کوم اختلاف تير شوی دی.

## د خلطة الشيوع او د خلطة الجوار مسئله

"ولا يجمعه بين متفرق ولا يفرق بين مجتمع خشية الصدقة"

په دې جملو د پوهيدو لپاره په خلطه باندې پوهيدل ضروري دي خلطه د اختلاط نه دی د اشتراک په معنی کې دی. د دې دوه قسمه دي: او قسم **خلطة الشيوع** دی. دويم قسم **خلطة الجوار** دی.

د **خلط الشيوع** مطلب دا دی چې د دوه کسانو مال د ملکيت په اعتبار سره شريک وي. ټول مال په دواړو کې مشاع وي. د **خلط الجوار** مطلب دا دی چې د دوه سړو مال د ملکيت په اعتبار سره جلا جلا وي. فقط يې د انتظامي سهولت د نظر په خاطر اشتراک کړی وي. اوس **خلطة الجوار** يا **خلطة الشيوع** په زکوة کې مؤثر دی يا نه. نو په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د احنافو په نزد د زکوة په ادا کولو کې فقط د مالک د ملکيت اعتبار دی. د هيڅ قسمه خلطه اعتبار نشته دی. د جمهور فقهاؤ په نزد د زکوة په ادا کولو کې د دواړه قسمه خلطو اعتبار دی.

خو د هغوی په نزد د خلطۀ جوار د اشتراک لپاره يو څو شرائط دي. چې لاندې ذکر دي.

۱: دواړه کسانو له په څارن ځای باندې اتحاد ضروري دی. ۲: په مبيت کې اتحاد وي. ۳: په فحل کې اتحاد وي ۴: په شپونکي باندې اتحاد وي ۵: په مشرب کې اتحاد وي ۶: په محلب کې اتحاد وي ۷: په حالب کې اتحاد وي ۸: په کلب الحراسه کې اتحاد وي ۹: د تلو راتلو په طريقو کې اتحاد وي.

د جمهور فقهاؤ په نزد چې کله په دې اختلاط باندې کال تیر شي نو دې دواړو ته خلیطین وایي. او د واړو مال یو شي. د بحث خلاصه دا چې د جمهورو په نزد د زکوة مدار د بیزو په رمي او اشتراک او اتحاد باندې دی. او د احنافو په نزد د زکوة مدار د مال په ملکیت باندې دی.

**دلائل**: د بحث د لاندې په دوه شیانو کې نهي وارد ده. یو د **جمعه بین المتفرق** نه او بله د **تفریق بین المجتمع** نه نهي وارد ده. د احنافو په نزد په دواړو شیانو کې نهي مالک لپاره هم ده. او ساعي هم ده. دوه صورتونه د جمعه کولو دي. او دوه د متفرق کولو دي. ټول څلور صورتونه دي. د احنافو د تشریح مطابق په څلورو واړو صورتونو کې مثالونه خدمت ته وړاندې کؤو. په دې کې په معمولي تأمل سره د جمهورو په تشریح باندې هم پوهه راتللی شي. او د **ولا یجمعه بین متفرق** د تشریح د مثالونو نه پوهه شي. (المرقات: ۴/۳۰۳).

مثال ۱: فرض که د دوه کسانو په شراکت باندې اتیا (۸۰) بیزي دي. د هر څلویښت څلویښت دي. چې په هغې کې په هر یو باندې یو یوه واجب کېږي. اوس دواړه مالکانو دا تدبیر وکړو چې دا دواړه برخې یو ځای کړي او یو نصاب یې جوړ کړو چې په هغې کې یوه بیزه واجب ده. نو په حدیث کې د داسې کولو ممانعت راغلو **"لا یجمعه بین متفرق خشیة زیادة الصدقة"** په دې جملي کې خطاب مالک ته دی.

مثال ۲: فرض کړه د دوه کسانو په ملکیت کې څلویښت بیزي دي. شل د یو او شل د بل. دا بیزي په جلا جلا وطن کې دي. په دې کې د نصاب نه کیدلو په وجه په مالک هم زکوة نشته دی. خو ساعي دا تدبیر وکړو چې جلا جلا ملیکت راغونډ کړی شي او یو کړلی شي. او د هغې نه یې د زکوة په توګه یوه بیزه وصول کړه. دا **جمعه بین المتفرق** ده. چې په دې کې ممانعت دی. چې **"ولا یجمعه الساعی بین متفرق خشیة فوت الصدقه"**. په دې جمله کې خطاب ساعي ته دی.

وس د جملي **"ولا یفرق بین مجتمع"** مثالونه د پوهیدلو لپاره فرض کړی.

مثال ۳: د یو سړي په ملکیت کې څلویښت بیزي دي. د اصولو مطابق یوه بیزه واجب ده. خو هغې دا تدبیر وکړو چې دا بیزي یې شل شل کړي او بیلي یې کړي او ساعي ته یې وویل چې دا د دوه سړو مال دی. لهذا په دې کې زکوة نشته دی. دا **"تفریق بین المجتمع"** دی چې د دینه ممانعت شوی دی. **"ای لا یفرق المالك بین مجتمع خشیة وجوب الصدقة"** په دې جمله کې هم خطاب مالک ته دی.

مثال ۴: فرض کړه د یو سړي په ملکیت کې اتیا (۸۰) بیزي وي. د اصولو مطابق په هغې کې فقط یوه بیزه واجب وه. خو ساعي هغه تنګ کړو چې وي ویل چې دا د دوه سړو مال دی. نو دوه بیزي په کې

واجب دي. دلته ساعي **تفريق بين المجتمع** وكړو. د دينه منع كړې شوې ده. "**اى ولا يفرق الساعى بين مجتمع خشية قلة الصدقة**". په دې جمله كې هم خطاب ساعي ته دى.

**خشية الصدقة**: د حديث دا جمله مفعول واقع ده. د دې تعلق د پاس ځلورو صورتونو سره دى. لكه څنګه چې په مثالونو كې واضح كړې شوې دى. (المرقات: ۴/۳۰۳).

"**وماكان من خليطين فإنهما يتراجعان بالسوية**" يعني كه دوه كسانو په مال كې اختلاط او شركت كړې وي او ساعي راغلو او د دغه مخلوط مال نه يې زكوة وصول كړو. نو د هر شريک به د بل شريک نه د خپل ملكيت د تناسب په مطابق په نرخ كې رجوع كوي. خلطه د بحث او شرائطو بيان تير شوې دى.

دلته د جمهورو په نزد دوه قسمه خلطه مراد دې خو د احنافو د ائمه په نزد دلته فقط **خلطة الشيوع** مراد دى. (المرقات: ۴/۳۰۳).

**بالسوية**: په دې **تراجع بالسوية** باندې د احنافو د ذوق مطابق داسې پوهيدل په كار دې چې مثلاً د دوه سړو په مينځ كې د **خلطة الشيوع** په توګه يو سلو شل (۱۲۰) بيزې مشتركه وي. په دې توګه باندې د يو شريک اتيا (۸۰) بيزې وي. او د بل څلويښت وي. په بيزو كې د جلا ملكيت هيڅ نښانې نه وه. ساعي راغلو او دوه بيزې يې په زكوة كې ويوړلې. اوس دا كتل دې چې د اتيا (۸۰) بيزو مالک باندې به د زكوة څومره برخه راځي. او د څلويښتو بيزو په مالک باندې به څومره برخه زكوة راځي. نو ښكاره خبره ده چې د دې بېزو مالک د دوه ثلثه مال والا باندې به د دوه ثلثو په اعتبار سره زكوة راځي. د دوه ثلثو د مال مالک دى، او د څلويښتو بېزو مالک د يو ثلث مال مالک دى. اوس د دواړو بېزو قيمت كولو باندې به د يو ثلث مال په حساب سره د ثلث د مالک نه به زكوة اخستلې كېږي. او زكوة به راځي. او په دې كې چې څه كمې پاتې شو چې د يو ثلث مال والا نه به زكوة كې ډيره برخه لاړه نو هغه به په دې كې د دوه ثلثو والا ته رجوع كوي، چې زما برخه پوره كړه نو هغه به ښه برابر پوره د ده برخه وركوي. داد **يتراجعان بالسوية** مطلب دى شارحينو دلته ډير څه ليكلي دي خو دا اسان صورت دى په دې باندې قناعت په كار دى. (المرقات: ۴/۳۰۳).

۱۱ جمادى الثاني ۱٤۱۰هـ

## په مكيل او موزون كې د عشر تفصيل

| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: فِيمَا سَقَتِ السَّمَاءُ وَالْعُيُونُ |
|---|
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل كوم شى چې آسمان يا چينې خړوب |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَوْ | كَانَ | عَثَرِيًّا | الْعُشْرُ . | وَمَا | |
| کړي یا خپله زمکه شنه وي نو په هغې کې لسمه برخه واجبږي او کومه زمکه چې د غوایانو یاد اوښانو په | | | | | |
| سُقِيَ | بِالنَّضْحِ | نِصْفُ | الْعُشْرِ .[1] | | |
| ذریعي سره د کوهي نه خړوب کړی شوي وي د هغې (په پیداوار) کې شلمه برخه واجب ده. | | | | | |

**توضیح** : **اوکان عثریا: عثري او عاثور** شنه او تازه زمکي ته وايي. مطلب دا دی چې کومه زمکه په باران یا په چینو او لختو په اوبو باندې خړوب شوي وي یا خپله شنه او تازه وي. نو په هغې کې مالک باندې بوج لږ وي. نو ځکه لسمه برخه د زکوة ده. او کومه زمکه چې رهټ یا په اوښ یا د نورو شیانو په ذریعي باندې خړوبول کېږي یا ټیوب ویل لګیدلی وي. نو په هغې کې په مالک باندې بوج ډیر راځي. لهذا شریعت د هغې په زکوة کې تخفیف کوي او په هغې باندې شلمه برخه فرض کړې ده. اوس لږ په دې تفصیل باندې پوه شي. چې "**ماخرج من الارض**" یا به د مکیلات قسم وي. د مکیلاتو د عشر لپاره د جمهور فقهاؤ په نزد پنځه وسق کیدل شرط دي چې تفصیل یې تیر شوی دی. او په موزوناتو کې اختلاف دی. (المرقات ۴/۳۰۶).

امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ وایي چې موزون اکثر کال پاتي وي. او د ادنی مکیل د پنځه وسق نرخ ته رسیدلی وي نو بیا هم په دې موزون کې عشر دی. ګیني نشته دی. مثلاً ادنی مکیل شعیر دی. یعني جوار دي. د دې د پنځه وسق نرخ پورې زعفران یا چائی که رسیدلی وي نو هغې کې عشر دی ګیني نشته دی.

امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کله موزون د خپلي آلي د پنځو امثالو ته ورسیدلو نو په دې کې عشر دی ګیني نشته دی. مثلاً زعفران موزوني دی. د دې آلي وزن یو پونډ دی. کله چې پنځه پونډه ته ورسېږي نو زکوة به واجب شي ګیني نشته دی. دغه شان د چائی یو پیټی آله موزون ده. کله چې پنځه پیټو ته ورسېږي نو عشر به پري وي ګیني نه به وي. د غه شان د مالوچو بنډل د هغې آله وزن ده. کله چې پنځه بنډله شي نو عشر شته ګیني نه به پري وي.

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د ما خرج من الارض لپاره دوه شرطونه لګولي دي. اول دا چې د مکیلاتو نه وي او دویم دا چې که په دې کې ذخیره کول کیدی شي نو که ما خرج من الارض کې ذخیره او اقتیات نه وي یا د مکیلاتو نه نه وي یا د پنځه وسق نه کمه وي نو په دې کې عشر نشته دی.

امام احمد رَحِمَهُ اللهُ فقط د پنځه وسق شرط لګوي. مکیل او موزون کیدلو ته نه ګوري.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۴۷، رقم الحديث ۱۴۸۳، وأبوداود في السنن ۳/۲۵۲، رقم الحديث:۱۵۹۶، والترمذي في السنن ۳/۳۱ رقم الحديث:۶۳۹، وابن ماجه ۱/۵۸۰ رقم الحديث : ۱۸۱۶.

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې **ما خرج من الارض** کې عشر دی. **قليلًا كان او كثيرًا مكيلًا او كان موزونًا يبقى اكثر السنة ام لا.**

په دې مسئله کې دلائل او جوابونو تفصيل د دې باب حديث نمبر:۱ کې تير شوې دی.

## د موټر او څاروي د نقصان مسئله

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْعَجْمَاءُ جُرْحُهَا جُبَارٌ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: که څاروي څوک زخمي کړونو معاف دی |
| وَ الْبِئْرُ . جُبَارٌ وَ الْمَعْدِنُ جُبَارٌ |
| که د کوهي په کنستلو کې څوک مړشي نو معاف دی. که معدن کنستلو کې څوک مړ شي نو معاف دی. |
| وَ فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ .[1] |
| او په کاريز کې پنځمه برخه واجب ده. |

**توضيح :العجماء جرحها جبار: العجماء**: د عجم تانيث دی. د **عجم** لغوي معنی د ګونګي ده. دلته ترې مراد څناور دی. ځکه هغه په خبرو قادر نه دی ګويا ګونګی دی. د عربو خلک عجمو ته هم د دې وجې نه عجم وايي چې د هغوی په نزد دا ګونګيان دي.

**جرح**: زخم(ټپ) ته وايي.

**جبار اى هدر**: يعني د څناور نقصان کول، چالره چقول، يا فصل خرابول تُوت (بی ځايه) دي. په مالک باندې هيڅ تاوان او ضمان نشته دی. خو دا حکم هغه وخت دی چې د څاروي سره نه راکب (سپور) وي او نه ورسره سائق(شړونکي) وي ، نه قائد وي. که په دوې کې يو کس هم د دې سره وي، او څناور د هغه د غفلت د وجې نه نقصان وکړو نو ضمان او تاوان به يې وي. اوس د څناور دا نقصان که د ورځې وي او که د شپې وي نو آيا د دې اثر به په ضمان او په تاوان باندې راځي؟(المرقات :۴/۳۰۷).

په دې کې د احنافو د ائمؤ په نزد هيڅ فرق نشته دی. اصل مدار د مالک په وجود او عدم باندې دی. ورځ او شپه پرې هيڅ فرق نه پرې باسي. د جمهور فقهاؤ په نزد که څاروي د ورځې نقصان کړی وي نو په مالک باندې تاوان نشته دی. ځکه د ورځې په وخت کې د هغې ساتنه د مالک خپله ذمه واري ده. د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۶۴، رقم الحديث ۱۴۹۹، ومسلم في صحيحه ۳/۱۳۳۴ رقم الحديث :۴۵-۱۷۱۰، وأبوداود في السنن ۴/۷۱۵، رقم الحديث ۴۵۹۲، والترمذي في السنن ۳/۳۱ رقم الحديث:۱۱۶۸

څاروي په مالک باندې نشته دی. او که نقصان يې د شپې کړی وي نو د څاروي په مالک به تاوان راځي. ځکه د دشپې په وخت کې څاروي حفاظت د هغې د مالک ذمه واري ده. هغې غفلت کړی دی. (المرقات: ۴/۳۰۷).

**دلائـل**: د بحث د لاندې حديث نه احنافو استدلال کړی دی چې د ځناور نقصان بې ځايه ده. جمهورو د ابوداؤد شريف د يو کمزوري روايت نه استدلال کړی دی. چې په هغې کې د ورځې او د شپې فرق کړی شوی دی. بهرحال ځينو علماؤ دا اختلاف د عرف اختلاف ګڼلی دی. ځکه په ځينو ځايو کې د شپې او ورځې د نقصان فرق کېږي او په ځينو ځايونو کې د نه کېږي. د ځناورو د تاوان د راتلو او د نه راتلو د قاعدې نه د نن سبا موجوده دور د ترافيکو و قانون لپاره او د موټر د ټکر او بيا تاوان لپاره يو جامع ضابطه ملاوېږي. (المرقات: ۴/۳۰۷).

**والبئر جبار**: يعنې د خپل ملکيت زمکه يا په غير آبادې زمکه کې يو سړي کوهي وکنستلو. په هغې کې يو کس وغورځيدو. نو په دې کې به د کوهي په مالک باندې تاوان نه وي خو په دې شرط چې د تيرېدلو په عامه لاره کې کوهي نه وي. دغه شان که يو سړي د کوهي کنستلو لپاره يو مزدور مقرر کړی وي. د کوهي کنستلو وخت کې د هغه لاندې خخ شو. نو په مالک باندې به تاوان نه وي دا دويم مفهوم حديث ته ډير نزدې دی. (المرقات: ۴/۳۰۷).

**والمعدن جبار**: معدن د معدنيات کان ته وايي يعنې که يو سړی د خپل ملکيت په غير اباده زمکه کې معدن کنستلی وي او کنده يې کنستلي وي. په هغې کې يو کس راوغورځيدلو او مړ شو. نو مالک باندې به په دې کې هيڅ ناوان نه راځي. دويم مفهوم دا دی چې د کان کستلو په وخت کې مزدور د ملبې لاندې شو او مړ شو. نو د هغې خون بې ځايه ده. په مالک باندې تاوان نشته دی. دا دويم مفهوم حديث ته ډير نزدې دی. دا شيان که چا په طريق المسلمين باندې وکنستل يا يې د بل په زمکه باندې وکنستل او بيا په هغې کې څوک مړ شو نو تاوان به په مالک باندې راځي. د هغې له اړخ نه به ديت عاقله ادا کېږي. (المرقات: ۴/۳۰۷).

**د رکاز حکم: وفي الرکاز الخمس**: که يو کَس ته د رکاز مال په لاس ورغلی نو په هغې کې پنځمه برخه د بيت المال ده. او څلور برخې د موندونکي دي.

**د رکاز** د لفظ تفسير او تعيين د مخکې د تمهيد په توګه په دې پوهيدل په کار دې چې دلته درې يو شان الفاظ دي. يعنې کوم مال چې راؤيستلی شي هغه په درې قسمه دی ۱: کنز ۲: معدن ۳: رکاز، کنز هغه مال او خزانه ده چې انسان خپله په زمکه کې خخه کړې وي. معدن هغه مال د چې الله د زمکې د پيدا کولو په وخت پيدا کړې وي چې هغې ته قدرتي معدن هم وايي. يعنې اول دفينه مخلوق دی او دويم

دفينه خالق دی. د ركاز د لفظ تفسير او تشريح او د دې په تعين كې د فقهاء كرامو اختلاف دی:

**د فقهاؤ اختلاف**: د شوافع حضراتو په نزد د كاريز(ركاز) مصداق كنز دی. كنز او ركاز دواړه مترادف دي. په دې كې خمس د او په معدنياتو كې خمس نشته دی.

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اَللَّهُ په نزد د ركاز لفظ د مګلو او د ثابتولو په معنی كې دی. دا لفظ په كنز او معدن دواړو كې شامل دی. كنز د مخلوق دفينه ده او معدن د خالق دفينه ده. لهذا د كنز پشان معدن كې هم خمس واجب دی. اصل اختلاف په معدنياتو كې دی. د احنافو په نزد په دې كې خمس دی او شوافع په نزد نشته دی. خو كه په معدنو كې سره يا سپين زر وموندلی شول نو د شوافعو په نزد په هغې كې زكوة واجب دی. يو قول كې حولان حول شرط دی. (المرقات: ۴/۳۰۷).

**دلائل**: د شوافع حضراتو دليل د بحث لاندې حديث د. ځكه دلته د ركاز په معدن باندې عطف شوی دی. چې تغاير غواړي. لهذا معدن جلا شی د او ركاز جلا شی دی.

د احنافو دلائل په دې مسئله كې ډير دي. امام محمد رَحِمَهُ اَللَّهُ په مؤطا محمد كې يو حديث نقل كړی دی:

۱: **قال محمد الحديث المعروف ان النبي صلى الله عليه وسلم قال و في الركاز الخمس قيل يا رسول الله! وما الركاز؟ قال المال الذى خلقه الله فى الارض يوم خلق السموات والارض فى هذه المعادن ففيها الخمس" (موطا محمد)**

۲: امام بهيقی رَحِمَهُ اَللَّهُ په خپل كتاب المعرفة كې د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو مرفوع حديث نقل كړی دی. يو څو الفاظ دا دي. "**الركاز الذى ينبت فى الارض**". (بهيقى)

۳: جوهر النقى كې ليكل شوي دي چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به فرمايل "**الركاز هو المعدن**".

۴: امام ابو يوسف رَحِمَهُ اَللَّهُ په خپل كتاب الخراج كې يو حديث نقل كړی دی چې د هغې الفاظ دا دي "**وفي الركاز الخمس فقيل ما الركاز يا رسول الله ! فقال الذهب والفضة الذي خلقه الله تعالى في الارض يوم خلقت". (كتاب الخراج).**

۵: د لغت په كتاب المغرب كې ليكل شوي دي: "**الركاز هو المعدن والكنز لان كلا منهما مركوز في الارض وان اختلف الراكز**".

د دې ټولو حوالو او د استدلاتو نه ثابته شوه چې ركاز په معدن كې هم شامل دي. لهذا په معدن كې هم خمس دي. بيا معدن په درې قسمه دي:

۱: **هغه معدنيات** چې ور سره ويلي كيږي. لكه سره زر، سپين زر، چونه، ګچ.

۲: هغه معدنيات چې په غرونو كې ياقوت او زمرد او عقيق او داسې نور قِسمه كانړي دي.
۳: هغه معدنيات چې مائع وي لكه تيل پټرول او داسې نور.
اوس د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد په دې درې واړو كې خمس واجب دی. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد فقط د سرو زرو او د سپينو زرو په كان كې خمس دی. نورو كې نشته دی. د احنافو په نزد فقط په اول قسم كې خمس دی. نورو دوؤ كې نشته دی. (المرقات: ۴/۳۰۸).

**جواب:** د دې حديث مصداق چې شوافعو بيان كړی دی ددې نه هغه مصداق ډير واضحه دی چې احنافو بيان كړی دی. لهذا دا حديث د احنافو دليل دی. نو د جواب ضرورت نشته دی. دغه شان د احنافو سره يو مرفوع حديث هم دی. چې د هغې په مقابل كې د شوافعو استدلال صحيح نه دی. او دغه شان په حديث كې د درې قِسمه شيانو ذكر دی. چې په هغې كې تاوان، ضمان او معاف دی. لهذا د معدن نه مراد تشه كنده اخستل ډير مناسب دی. چې تشه كنده مراد وي نو د **وفي الركاز** عطف هم صحيح شو. په دواړو كې مغايرت راغلو. ګويا كې په يوه جمله كې د ظرف د حكم ذكر وشو چې د معدن په نوم سره ياد كړی شوې ده چې په هغې كې هيڅ نشته دی او آخري جمله كې **وفي الركاز** كې د مظروف د حكم ذكر وشو چې د **ما خرج من المعدن** خزانه ده. چې په دې كې خمس دی. دا بيان ډير مناسب او ضروري دی. ځكه د عطف سره راوړی شوی دی.

۱۲ جمادی الثاني ۱۴۱۰هـ

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### د سرو زرو او سپينو زرو نصاب

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَدْ عَفَوْتُ عَنِ الْخَيْلِ |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "ما معاف كړې دی زكوة په اسپو او |
| وَ الرَّقِيقِ |
| غلامانو كې (يعني كه غلام د تجارت لپاره نه وي نو په هغې كې نشته دی او د اسپو د زكوة باره كې چې د |
| فَهَاتُوا صَدَقَةَ الرِّقَةِ : مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا |
| ائمؤ كوم اختلاف دی هغه بيان كړی شوی دی) تاسو وركړئ د سپينو زرو زكوة په هر څلويښت درهمو |
| دِرْهَمٌ وَ لَيْسَ فِي تِسْعِينَ وَ مِائَةٍ شَيْءٌ |
| كې يو درهم (دا سپين زر د نصاب په قدر يعني دوه سوه درهم وي ځكه) نه دي واجب زكوة په ۱۹۰ درهمو |

فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَتَيْنِ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ ".

(یعنې د دوه سوه درهمو نه کم) کې کله چې دوه سوه درهم وي نو په هغې کې پنځه درهم زکوة واجب دي

وَ فِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُد عَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ زُهَيْرٌ

ابو داؤد د حارث اعور نه د حضرت علي رضی الله عنه دا روایت نقل کړی چې زهیر رضی الله عنه (چې د حارث رضی الله عنه نه

أَحْسَبُهُ عَنِ النَّبِيِّ

روایت نقل کوي) وایي چې زما ګمان دی چې حارث رضی الله عنه دا وویل چې حضرت علي رضی الله عنه د نبي کریم

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ : " هَاتُوا رُبْعَ الْعُشْرِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ

کریم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړی دی چې :تاسو (هر کال) په څلوېښتو درهمو کې یو درهم ادا کړي

وَ لَيْسَ عَلَيْكُمْ شَيْءٌ حَتَّى تَتِمَّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ .

او په تاسو باندې تر هغه وخت پورې واجب نه دی چې تر څو پورې تاسو سره دوه سوه دراهم پوره نه وي

فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ . فَمَا

وي. چې دوه سوه دراهم پوره وي نو په دې کې (د زکوة) پنځه دراهم واجب وي. او کله چې د دوه سوه

زَادَ فَعَلَى حِسَابِ ذٰلِكَ . وَ فِي الْغَنَمِ فِي كُلِّ

دراهم نه زیات وي نو په هغې کې به په همغه حساب سره واجب کېږي. او د بیزو نصاب دا دی چې په هر

أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ إِلَى عِشْرِينَ وَ مِائَةٍ

څلوېښتو بیزو کې یوه بیزه واجبېږي (او دا یوه بیزه) تر یو سلو سلو (۱۲۰) پورې (د شمیر لپاره) ده. او

فَإِنْ زَادَتْ وَاحِدَةً فَشَاتَانِ إِلَى مِائَتَيْنِ.

کله چې د دې شمیر نه یوه بیزه هم زیاته شي نو تر دوه سوه بیزو کې دوه بیزې به واجب وي او چې د دوه

فَإِنْ زَادَتْ فَثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى ثَلَاثِمِائَةٍ فَإِذَا

سوه بیزو نه یوه هم زیاته شي نو تر درې سوه بیزو پورې کې به درې بیزې واجب وي. او کله چې د درې

زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِ مِائَةٍ فَفِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ . فَإِنْ

سوه نه زیاتې شي (یعنې څلور سوه شي) نو په هر سلو کې به یوه بیزه واجب شي او که تاسو سره د نصاب

| لَمْ تَكُنْ إِلَّا تِسْعٌ وَ ثَلَاثُوْنَ فَلَيْسَ عَلَيْكَ فِيهَا شَيْءٌ وَ |
|---|
| په قدر بيزي نه وي (يعني) نهه ديرش (۳۹) بيزي وي. نو بيا به په تاسو باندې هيڅ واجب نه وي او د |
| فِي الْبَقَرِ : فِي كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعٌ وَ فِي الْأَرْبَعِين مُسِنَّةٌ |
| غواؤ نصاب دا دی چې په هر ديرشو کې د يوه کال خوسکی او په څلويښتو کې به د دوه کالو يوه غوا |
| وَ لَيْسَ عَلَى الْعَوَامِلِ شَيْءٌ ". [1] |
| واجب ده. او دغه شان د کار کسب په څناورو کې هم هيڅ واجب نشته دی. |

**توضيح : صدقة الرقة:** سپينو زرو ته رقه وايي. (المرقات :۴/۳۰۸).

**فعلى حساب ذلك:** سرو او د سپينو زرو نصاب بغير د څه اختلاف نه متعين دی چې د سپينو زرو نصاب دوه سوه دراهم چې په هغې کې پنځه دراهم زكوة دی. په هر څلويښتو کې يو درهم واجب دی او د سرو زرو نصاب کې شل مثقال دي. چې په هغې کې نيم مثقال زكوة واجب دی. د تولو په حساب سره دوه پنځوس نيمې تولې سپين زر نصاب دی او اووه نيمې تولې د سرو زر نصاب دی. اوس که سرو او سپينو زرو نصاب د مقدار څه زيات شي نو د هغې څه حکم دی. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۴/۳۰۸).

**د فقهاؤ اختلاف** : جمهور فقهاء سره د صاحبين وايي چې که د نصاب يو درهم هم زيات شو نو د هغې به حساب کېږي او د هغې به څلويښتمه برخه به زكوة کې ادا کېږي. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ، سفيان ثوری رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعی رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په دې زياتي برخه باندې حساب نشته دی. خو که زياتې برخه د څلويښتو درهمو پورې ورسېږي نو بيا به زكوة واجب وي. هغې کې به يو درهم ورکول کېږي. همدغه شان د شلو مثقال نه د زياتي برخې حکم دی. (المرقات :۴/۳۰۹).

**دلائل** : د جمهور فقهاؤ دليل د بحث د لاندې حديث دی. چې په هغې کې د **"فمازاد فعلى حسابه"** واضح الفاظ موجود دي. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ، سفيان ثوري رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د بيهقي او د دارمي هغه روايت دی چې په هغې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عمرو بن حزم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نوم خط ليکلی ؤ. الفاظ يې دا دي **"ان فى كل خمس اواق من الورق خمسة دراهم فما زاد ففى كل اربعين درهما درهم"**

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲۳۲/۲، رقم الحديث. ۱۵۷۴، والترمذي في السنن ۱۶/۳ رقم الحديث ۶۲۰، وابن ماجه ۵۷۰/۱ رقم الحديث : ۱۷۹۰.

(كذافي زجاجة المصابيح ج۱ص ۵۱۰)

همدغه شان نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کسور نه د زکوة اخستلو نه منع کړې وه. او د کسور د زکوة په حساب لوي حرج دی. والحرج مدفوع في الشرع.

**جواب: فمازاد فبحسابه** نه چې جمهور فقهاؤ کوم استدلال کړی دی. احناف د دې دا جواب ورکوي چې په دې کې د زيات نه مراد تر څلويښتو پورې زيات دمراد دی. چې کله څلويښتو پورې زيات شي نو بيا زکوة دی. دا مطلب ترينه مراد اخستل ضروري نه دی چې په نورو حديثنو کې د څلويښتو عددو تصريح موجود ده. دې سره به ټولو حديثنو کې تطبيق هم راشي. (المرقات: ۴/۳۰۹).

## د غوا او غوايا نصاب

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ مُعَاذٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ |
| د معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله دا (د عامل په حيثيت) يمن ته وليږلو نو |
| أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنَ الْبَقَرَةِ : مِنْ كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعًا أَوْ تَبِيعَةً |
| هغې ته يې دا حکم وکړو چې د زکوة په توګه په ديرشو غواګانو کې يو کلن غوايا يا يو کلنه غوا واخله |
| وَ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ مُسِنَّةً .[1] |
| او په هر څلويښتو غواګانو کې دوه کلنه غوا (يا دوه کلن غوايا) وصول کړه. |

**توضيح: تبيع او تبيعة:** غوا او د غوايا د زکوة باره کې دې باندې اتفاق دی چې د دې نصاب ديرش دی ديرشو نه کم کې نشته. ديرشو باندې يو تبيع يا يوه تبيعه واجب ده. تبيع هغه خوسکي دی چې د يو کال يې شوي وي او دويم کال يې شروع شوی وي. (المرقات: ۴/۳۱۱).

کله چې غواګانې څلويښت شي نو په هغې کې يوه مسنه ده. مسنه هغه خوسکی يا خوسکۍ ده چې دوه کاله يې پوره کړي وي او دريم کال کې يې قدم ايخی وي. ددې نه وروسته به ترتيب هم دغه شان روان وي چې په هر ديرشو کې به يوه تبيعه او په هر څلويښتو کې به يوه مسنه وي. دې باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دی. البته اختلاف په دې کې دی چې ديرش او په ديرشو کې چې کوم زياتوالی دی په هغې څه واجب دی او يا نه؟ د صاحبينو په نزد دې کې هيڅ واجب نشته دی.. او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ نه په دې

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۲۲۶/۲، رقم الحديث ۱۵۷۸، والترمذي في السنن ۲۰/۳ رقم الحديث ۶۲۳، والنسائي ۲۶/۵ رقم الحديث ۲۴۵۰، وابن ماجه ۵۷۶/۱ رقم الحديث ۱۸۰۳.

کې مختلف روایتونه ذکر دي. مشهوره همدغه ده چې د هغې د شمیر په حساب سره زکوة ادا کول په کار دي. مثلاً په څلویښتو کې یوه غوا ده. که زیات دې نو یوه مسنه او د دویمي مسنه به څلویښتمه برخه ادا کوي.

﴿۸﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اَلْمُعْتَدِي فِي الصَّدَقَةِ

او حضرت انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل زياتي کوونکي د زکوة په

كَمَانِعِهَا . (۱)

اخستلو کې (د واجب مقدار نه) زکوة نه ورکونکي په شان دی (یعنې څنګه چې زکوة نه ورکول ګناه ده.

همدغه شان په زکوة کې د واجب مقدار نه زیات اخستل هم ګناه ده).

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : لَيْسَ فِي حَبٍّ وَلَا تَمْرٍ

ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل : نه دي واجب زکوة په غله او کهجورو

صَدَقَةٌ حَتَّى يَبْلُغَ خَمْسَةَ أَوْسُقٍ. (۲)

کې تر څو پورې چې د هغې مقدار پنځه وسق نه وي.

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ قَالَ : عِنْدَنَا كِتَابُ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ عَنِ النَّبِيِّ

موسی ابن طلحه رحمه الله (تابعی) وايي چې مونږ سره د معاذ رضي الله عنه هغه مکتوب شته دی کوم چې نبي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ : إِنَّمَا أَمَرَهُ

کريم صلی الله علیه وسلم ده ته ليږلی ؤ ، معاذ رضي الله عنه بيان کړو چې: نبي کريم صلی الله علیه وسلم ماته دا حکم کړی دی

أَنْ يَأْخُذَ الصَّدَقَةَ مِنَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ. (۳)

چې واخله زکوة په غنمو ، وربشو ، انګورو او کهجورو کې.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲۴۳/۲، رقم الحديث : ۱۵۸۵ ، والترمذي في السنن ۳۸/۳ رقم الحديث :۶۴۶ ، وابن ماجه ۵۷۸/۱ رقم الحديث :۱۸۰۸

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۷۴/۲ رقم الحديث :۹۷۹/۵ ، والنسائي في السنن ۴۰/۴، رقم الحديث . ۲۴۸۵ ، وأحمد في المسند ۵۰۲/۳.

(۳) أخرجه شرح السنة ۴۰/۶، باب زكاة الثمر و خرصها .

**توضيح: الحنطة:** په دې حديث کې د څلور شيانو کې د صدقه اخستلو چې حکم ورکړی شوی دی. دا د هغه علاقې د نظر په حساب سره ؤو. هلته هم دغه څلور قسمه غله وه. بله هيڅ يوه غله نه وه. د دې مطلب دا نه دی چې د دې څلور شيانو نه بغير به په نورو غلو کې زکوة نشته دی. دلته د امر واقعي بيان دی. د نورو شيانو د نفي بيان نه دی. (المرقات: ۴/۳۱۵).

## په بوټو کې د انګورو او کهجورو په اندازه کولو باندې د زکوة ورکولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عَتَّابِ بْنِ أَسِيدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ فِي زَكَاةِ الْكُرُومِ: |
| عتاب ابن اسيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د انګورو د زکوة باره کې وفرمايل چې د انګورو |
| إِنَّهَا تُخْرَصُ كَمَا تُخْرَصُ النَّخْلُ ثُمَّ تُؤَدَّى زَكَاتُهُ |
| دې هم دغه شان اندازه وکړی شي لکه څنګه چې د کهجورو اندازه کېږي بيا دې ورکړل شي زکوة په هغه |
| زَبِيبًا كَمَا تُؤَدَّى زَكَاةُ النَّخْلِ تَمْرًا. (۱) |
| وخت کې کله چې وچ شي لکه څنګه چې د کهجورو دوچيدو نه وروسته د دې زکوة ادا کېږي. |

**توضيح: الكروم:** دا د کرم جمعه ده. مراد ترې نه انګور دي.

**تخرص:** دا د خرص نه دی د اندازه کولو او د حساب لګولو په معنی کې دی. هغه وخت د اخرص ضرورت څکه راغلو چې د خيبر د يهودو نه کله د هغوی زمکې د مسلمانانو لاس ته راغلې نو يهودو په مزارعت باندې هغه زمکې په ابادولو شروع کړې. نيمه غله د هغوی او نيمه غله د مسلمانانو مقرر کړی شوه. خو د هغوی په زړونو کې دا خبره وه چې په حقيقت کې دا زمکه زمونږ ده. مسلمانانو په فتح کړه او زمونږ نه يې قبضه کړه. نو څکه به هغوی په ميوؤ کې خيانت جائز ګڼله او د ميوؤ د پخيدو نه مخکې د هغې د ضايع کيدو ويره پيدا شوه نو څکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خرص نظام قائم کړو نو څکه به هر هنر مند سړی باغ ته تللو او په بوټو کې به يې د کهجورو اندازه لګوله. او بيا به يې حکم ورکولو چې دا دومره من کهجورې دي. وچيدلو نه وروسته به په دې کې دومره زکوة دی. نوره ذمه واري د مضارع ده چې هغه د دې حفاظت کوی او که يې نه کوي. نو بيا به غله محفوظه شه. او س مسئله دا ده چې آيا د اندازه کولو او د خرص عمل په شرعي توګه حجت مُلزمه دی يا نه دی؟ (المرقات: ۴/۳۱۶).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ / ۲۵۷، والترمذي في السنن ۳ / ۳۶ رقم الحديث ۶۴۴، والنسائي ۵ / ۱۰۹ رقم الحديث ۲۶۱۸، وابن ماجه ۱ / ۵۸۲ رقم الحديث ۱۸۱۹

د احنفو ائمه د خرص د عمل به جائز کیدلو باندې قائل دي. خو دا حجت ملزمه نه مني چې په نورو باندې حسب قطعي حجت شي. خو د نورو فقهاؤ په نزد د خرص دا عمل حجت ملزمه دی. راتلونکو دوه حدیثونو کې هم د دې توضیح په رڼ کې پوهیدل په کار دي. بهرحال د شوافعو او صاحبینو په نزد اندازه شوي غله تر پنځه وسق پورې رسیدل په کار په کار دی. که د دینه کم وي نو عشر په کې نشته دی. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد که لږ وي او که ډیر وي خو عشر به کې شته دی.

## په زکوة کې د مالک د سهولت خیال ساتل په کار دي

| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ حَدَّثَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَقُولُ |
| --- |
| سهل بن ابن حثمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا حدیث بیانوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل: کله |
| إِذَا خَرَصْتُمْ فَخُذُوا وَ دَعُوا الثُّلُثَ |
| چې تاسو دانګورو او کهجورو اندازه وکړئ نو په هغې کې (دوه دریمې) واخلئ او دریمه برخه پرېږدئ. |
| فَإِنْ لَمْ تَدَعُوا الثُّلُثَ فَدَعُوا الرُّبُعَ. [1] |
| که دریمه برخه نه شئ پریخودلی نو څلورمه برخه خو پرېږدئ. |

**توضیح: اذا خرصتم:** دې حدیث کې اندازه کونکو له د مالکانو سره د نرمۍ کولو هدایت وکړی شوی دی. د دې حدیث په مفهوم باندې د پوهیدو د پاره د مخکني حدیث توضیح لوستل ضروري ده چې د حدیث ټول پس منظر اندازه درته وشي. (المرقات: ۴/۳۱۷).

**فدعوا الثلث:** د دې حدیث نه معلومېږي چې ساعي او خرص او اندازه کونکي د اندزاه کولو په دوران کې په زکوة او عشر کې څه تخفیف معاف کولی شي. امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ د دې ظاهري حدیث په وجه د تخفیف قائل دی. خو ائمه ثلاثه وايي چې خارص او ساعي لره دا حق نشته دی چې هغوی د زکوة څه برخه معاف کړي. ځکه عشر او زکوة د حقوق الله او د اسلام د فرائضو نه دې چې کسی یا زیاتی په کې جائز نه دی. لهذا جمهور د دې حدیث مفهوم داسې بیانوي چې دلته د زکوة د معاف کولو حکم نه دی بلکې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فرمان مطلب دا دی چې زکوة څه برخه دې د مالک سره پریخودلی شي چې هغه یې په خپلو خپلوانو باندې تقسیم کړي. نو دا به د ثلث یا ربع د مال مالک په خپل اختیار باندې تقسیم کړي. دا توجیه امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ کړې ده. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۲/۲۰۱۰، رقم الحديث ۱۶۰۵، والترمذي في السنن ۳/۳۵ رقم الحديث ۶۴۳، والنسائي ۵/۴۲ رقم الحديث ۲۴۹۱، وأحمد في المسند ۳/۴۴۸

وايي چې ساعي او اندازه کونکي ته په کار دي چې د حساب کولو په وخت کې د ميوو باندې د راتلونکي پېښې هم خيال وساتي چې ميوه غله کيدلی هم شي، ضايع کيدلی هم شي. څو غوښتونکي هم راتلی شي. نو څکه اندازه کونکي دې يو ثلث يا يو اربع د ميوو په اصل ميوه کې نه شميري د دې لپاره چې مالک يې د ضرورت په وخت کې مصرف کړي. (المرقات: ۴/۳۱۷).

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْعَثُ عَبْدَ اللهِ بْنِ رَوَاحَةَ إِلَى يَهُودٍ |
| او عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم عبد الله بن رواحه رضي الله عنه د (خيبر) يهودو ته ليږلو. |
| فَيَخْرُصُ النَّخْلَ حِينَ تَطِيبُ |
| هغه به هلته لاړو او د کهجورو د مقدار اندازه به يې هغه وخت کوله چې په هغې کې به خوګوالی پيدا شوی وو |
| قَبْلَ أَنْ يُؤْكَلَ مِنْهُ.[1] |
| خو د خوړلو قابل به نه وي. |

## په شهدو کې د عشر مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَسَلِ: فِي كُلِّ عَشْرَةِ أَزُقٍّ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د شاتو د زکوة باره کې وفرمايل چې "هر لسو مشکو |
| زِقٌّ.[2] وَقَالَ: فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ |
| کې يو مشک (د زکوة) واجب دی او امام ترمذي رحمه الله وايي چې د دې حديث په اسنادو کې کلام شوی |
| وَلَا يَصِحُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هٰذَا الْبَابِ كَثِيرُ شَيْءٍ. |
| دی. او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم اکثر حديثونه (چې را نقل کړې هغه) صحيح نه دي. |

**توضيح** : **في العسل**: که عشري زمکه کې شهد وشي نو آيا په هغې کې عشر شته دی او که نه؟ په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات: ۴/۳۱۸).

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام شافعي رحمه الله او د امام مالک رحمه الله په نزد په شاتو کې عشر نشته دی. د امام ابو حنيفه رحمه الله او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد شاتو کې عشر شته دی البته د احنافو په دې کې اختلاف دی. د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دې کې هيڅ نصاب نشته دی. لږ وي او که ډير وي عشر په

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲۶۰۰، رقم الحديث ۱۶۰۶، وابن ماجه ۱/۵۸۲ رقم الحديث ۱۸۲۰، وأحمد في المسند ۲/۲۴

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۴ رقم الحديث ۶۲۹

کې شته دی. د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد چې لس مشکیزو ته ورسیږي نو عشر په کې شته دی. لږو کې نشته دی. (المرقات: ۴/۳۱۸).

**دلائل**: د امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله سره څه مرفوع حدیث نشته دی. فقط د حضرت معاذ رضي الله عنه د یو قول نه استدلال کوي. هغه قول داسي دی "**اِنَّهُ سئل عن العسل فی الیمن فقال لم اومر فیه بشئ**". د احنافو او د حنابلو سره ډیر روایتونه دي. یو خو د بحث د لاندې حدیث دی چې په هغې کې په واضحه توګه د زکوة ذکر دی چې په هر لسو مشکیزو کې یوه مشکیزه ادا کړی شي. دا حدیث اګر که ضعیف دی خو د مسلک د تائید لپاره کافي دی.

"**وَعَنْ عبدالله بن عمرو عن النبي صلی الله علیه وسلم انه اخذ من العسل العشر**". (رواه ابن ماجه وابوداؤد)

ابو داؤد دا حدیث رانقل کړی دی او سکوت یې پرې اختیار کړی دی چې کم نه کم د حسن په حکم کې راغلو. امام ابو حنیفه رحمه الله د **ماسقت السماء الخ** او **ما اخرجت الارض ففیه العشر** نه هم استدلال کړی دی.

**جواب**: د امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله سره څه مرفوع حدیث نشته دی. فقط د قیاس نه استدلال کوي. چې د مرفوع حدیث په مقابل هیڅ شی نه دی. باقي د حضرت معاذ رضي الله عنه دا فرمایل چې مونږ ته حکم نه ؤو راکړی شوی. نو د عدم حکم نه عدم وجوب نه ثابتیږي. د بحث د لاندې روایت کې د ډیرو حدیثونو نفي ده. چې ترینه معلوه شوه چې د لږو حدیثونو وجود دی چې د لږو لپاره کافي دی.

## د ښځو په زیوراتو کې د زکوة حکم

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ قَالَتْ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه بي بي زینب رضي الله عنها وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته خطبه کې وفرمایل |
| يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ! تَصَدَّقْنَ وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ فَإِنَّكُنَّ |
| چې: ای د ښځو جماعته! تاسو د خپل مال نه زکوة ادا کوی اګر که دا زیور ولې نه وي، ځکه چې تاسو |
| أَكْثَرُ أَهْلِ جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. (۱) |
| اکثر په دوزخ کې وي د قیامت په ورځ. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۳۲۸، رقم الحديث ۱۴۶۶، والترمذي في السنن ۳ ۲۸ رقم الحديث ۶۳۵، وأحمد في المسند ۳ ۵۰۲.

**توضيح** : **ولو من حليکن**: د ښځو زيورات چې د هغوی په استعمال کې وي په هغې کې زکوة شته يا نا؟ د دې باره کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** : څه لږ د معمولي اختلاف سره د ائمه ثلاثو په نزد د ښځو د استعمال په زيور کې زکوة نشته. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد مطلقًا په زيوراتو کې زکوة واجب دی هغه که د استعمال وي او که نه. (المرقات : ۴/۳۱۹).

**دلائل** : جمهور فقهاؤ سره څه قوي مستند دليل نشته دی. فقط د احنافو د دلائلو د ضعيف کولو لپاره خپل دليل جوړي. د هغوی سره يو روايت دی چې په مصنف عبد الرازق کې د دې الفاظ سره منقول دی **"ليس في الحلی زکوٰة"**.

احنافو سره څو مرفوع روايتونه دې ، د بحث لاندې حديث نمبر ۱۵ هم دی. دويم حديث نمبر ۱۶ دی او دريم د ام سلمه رضی الله عنها حديث نمبر ۱۷ دی . دا ټول حديثونه خپله دعوی باندې ښکاره دلائل دي.

**جواب**: **ولا يصح فى هذا الباب** امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ د دې روايتونو د ضعيف کولو کوشش کړی دی. په دې باندې علامه منذري رَحِمَهُ اللهُ وايي **"لا يصح في هذا الباب مؤل والا فخطآء"** يعني يا به د امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ په قول کې تاويل کړي ګيني هغه به خطا ګڼل کېږي. ځکه په دې باب کې ډېر زيات روايتونه ثابت دي. محدثينو د امام ترمذی رَحِمَهُ اللهُ په دې قول باندې تعجب ښکاره کړی دی. ځکه په دې کې د ځينو حديثينو توثيق شوی دی. جمهور فقهاؤ چې د دنفي زکوة باندې چې د ځينو کوم روايتونو نه استدلال کړی دی نو هلته خو د زيوراتو نفي مقصود ده. سرو او په سپينو زرو کې د زکوة صريح حکم موجود دی. د حديث نمبر ۱۶ او حديث نمبر ۱۷ کتنه وکړی.

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ : أَنَّ امْرَأَتَيْنِ أَتَتَا |
| عمرو بن شعيب رَحِمَهُ اللهُ د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې (يو ځل) دوه ښځې حاضرې شوې |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ فِي أَيْدِيهِمَا سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ |
| د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې هغې دواړو په خپلو لاسونو کې د سرو زرو کړي اچولي وي. نبي |
| فَقَالَ لَهُمَا : تُؤَدِّيَانِ زَكَاتَهُ ؟ قَالَتَا : لَا . |
| کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د دې په ليدو سره) وفرمايل آيا تاسو د دې زکوة ادا کوی؟ هغو دواړو وويل چې نه. |
| فَقَالَ لَهُمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَتُحِبَّانِ أَنْ يُسَوِّرَكُمَا اللهُ بِسِوَارَيْنِ مِنْ نَارٍ ؟ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې آيا تاسو دا خبره خوښوی چې (د قيامت په ورځ) د اور کړی واچوي |

قَالَتَا : لَا . قَالَ : فَأَدِّيَا زَكَاتَهُ

تاسو ته الله تعالی ؟ هغوی وويل چې نه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل نو بيا د دې (سرو زرو) زکوة ادا کوئ.

رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَ قَالَ : هَذَا حَدِيث قد رَوَاهُ الْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ عَنْ عَمْرِو بْنِ

ترمذی رَحِمَهُ اللهُ دا روايت نقل کړی او ويلي يې دي چې دا حديث همدغه شان مثنی بن صباح د عمرو بن

شُعَيْبٍ نَحْوَ هٰذَا وَ الْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ وَ ابْنُ لَهِيعَةَ

شعيب نه نقل کړی او مثنی بن صباح او دغه شان ابن لهيعه (چې د دې حديث يو بل راوي دی) دواړه (د

يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ وَلَا يَصِحُّ فِي هَذَا الْبَابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ[1]

حديث روايت باره کې) ضعيف شميرلی او دداباره کې دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه هيڅ يو صحيح حديث منقول نه دی.

﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : كُنْتُ أَلْبَسُ أَوْضَاحًا مِنْ ذَهَبٍ فَقُلْتُ :

ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې ما به د سرو زرو وضح (چې د يو زرو نوم دی) اچولو. (يوه ورځ) ما وويل چې

يَا رَسُولَ اللهِ أَكَنْزٌ هُوَ ؟ فَقَالَ :

يا رسول الله! آيا د دې شمير په جمع کولو کې دی؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کوم شي په دومره

مَا بَلَغَ أَن تُؤَدَّى زَكَاتُهُ

مقدار کې وي چې د هغې زکوة ادا کړی شي (يعني حد نصاب ته رسيدلی وي) نو د زکوة دادا کولو نه

فَزُكِّيَ فَلَيْسَ بِكَنْزٍ .[2]

وروسته د دې شمار په جمعه کولو کې نه وي.

﴿۱۸﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُنَا

سمرة ابن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مونږ ته حکم کولو چې مونږ ورکړو زکوة د هغه

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۱۲، رقم الحديث ۱۵۶۳، والترمذي في السنن ۳ ۲۹ رقم الحديث ۶۳۷، والنسائي ۵ ۳۸ رقم الحديث ۲۴۷۹، وأحمد في المسند ۲ ۱۷۸

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۱۲، رقم الحديث ۱۵۶۳

| أَنْ نُخْرِجَ الصَّدَقَةَ مِنَ الَّذِي نُعِدُّ لِلْبَيْعِ. [۱] |
| --- |
| مال نه کوم چې مونږ تیار کړو د تجارت د پاره. |

## په کانونو کې د زکوة حکم

| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| --- |
| ربیعه ابن ابو عبد الرحمن رَحِمَهُ اللهُ (تابعی) وایي د ډیرو صحابو نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| أَقْطَعَ لِبِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ الْمُزَنِيِّ مَعَادِنِ الْقَبلية وَهِيَ مِنْ نَاحِيَةِ الْفُرْعِ فَتِلْكَ الْمَعَادِنُ |
| بلال ابن حرث مزنی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نواح فرع کې د قبل کانونه جاګیر په توګه ورکړي وو. نو په هغه کانونو |
| لَا تُؤْخَذُ مِنْهَا إِلَّا الزَّكَاةُ إِلَى الْيَوْمِ. [۲] |
| کې تر اوسه پورې زکوة اخستلی کېږي. |

**توضیح** : **اقطع**: د جدا کولو په معنی کې دی. (المرقات: ۴/۳۲۲).

**القبلة: قبلیه** د قَبَل طرف ته منسوب ده. چې د فرع په اطرافو کې د یو ځای نوم دی. مدیني او د مکې په مینځ کې یو معروف ځای دی. چې نوم یې فرع دی. معادن جمعه د معدن ده. معدن همغه خزانه ده چې تفصیل یې مخکې تیر شوی دی. (المرقات: ۴/۳۲۲).

دلته یو سوال دي چې د معدن د غه شان اقطاع جائز نه ده بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بلال ابن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څنګه جدا کړو.

نو دې جواب دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته تشه زمکه ورکړې وه. خزانه وروسته رابنکاره شوه.

دویم جواب دا دی چې دا معادن د عام مسلمانانو په کار نه راتلو. نو ځکه یې هغې له ورکړو.

ددې نه بغیر یو جواب دا هم دی چې هغه د خپل اختیار مطابق یو چاله په معادن کې څه ورکړي.

اوس پاتې ده مسئله چې په معادن کې زکوة واجب دی او که خمس واجب دی. نو شوافعو او مالکیو په نزد زکوة واجب دی. خمس نه دی. د احنافو په نزد معدن کې خمس واجب دی. تفصیل تیر شوی دی.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۲ ۲۱۱ ۲ . رقم الحديث ۱۵۶۲

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۳ ۴۴۳ . رقم الحديث ۳۰۶۱

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په ترکاریانو، تخنو او کهجورو کی زکوة نشته

| ﴿۲۰﴾ عَنْ عَلِيٍّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : لَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ صَدَقَةٌ |
|---|
| حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نه دي واجب زکوة په ترکاریانو کې |
| وَلَا فِي الْعَرَايَا صَدَقَةٌ وَلَا فِي أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ وَلَا فِي الْعَوَامِلِ صَدَقَةٌ |
| او نه د تحفو بوټو کې زکوة. او نه په کم د پنځه وسق کې زکوة. او نه د کار کسب په څناورو کې زکوة او |
| وَلَا فِي الْجَبْهَةِ صَدَقَةٌ . قَالَ الصَّقْرُ : الْجَبْهَةُ الْخَيلُ وَ الْبِغَالُ وَ الْعَبِيدُ.[1] |
| نه په جبهه کې زکوة واجب دی صقر رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې د جبهه نه اسپه، خچر او غلام مراد دی. |

**توضیح: عرایا:** د عرية جمعه ده. عریه د عطیې ته وایي. د دې تفصیل به انشاءالله په کتاب البیوع کې راځي.

**الخضروات:** سبزیانو او ترکاریانو ته وایي. د دې متعلق بحث تیر شوی دی چې د جمهورو په نزد دې کې عشر نشته دی. د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد دې کې عشر واجب دی. (المرقات: ۴/۳۲۳).

**عوامل:** د عاملة جمعه ده هغه څاروي ترې مراد دي چې د کار کسب لپاره ساتلی شوي وي. (المرقات ۴/۳۲۳).

**الجبهة:** اصل کې جبهه محاذ جنګ ته وایي. خو دلته چې راوي د کوم صقر نوم اخستی دی جبهه نه خچر، اسپه او غلام مراد اخستی دی. ځکه هغه په محاذ باندې جنګېږي. (المرقات: ۴/۳۲۴).

## په وقص څاروُ کې د زکوة حکم

| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ طَاوُسٍ أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ أَتَى بِوَقَصِ الْبَقَرِ |
|---|
| طاؤس رَحِمَهُ اللّٰهُ (تابعی) وایي چې حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د وقص غواګاني راوستلی شوي (چې |
| فَقَالَ : لَمْ يَأْمُرْنِي فِيهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دا ترې نه زکوة وصول کړي) خو هغوی وفرمایل چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته حکم نه دی کړی په دې |

(۱) أخرجه الدار قطني في السنن ۲ ۹۴، رقم الحديث ۱ من باب ليس في الخضروات صدقة.

| بِشَيْءٍ . |
| --- |
| کې د څه اخیستلو (یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دینه د زکوة په توګه د هیڅ نه دي واجب کړي) . او |
| وَ قَالَ : الْوَقَصُ مَا |
| امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې وقص هغه څارۀ ته وایي چې (په ابتدائي توګه یا د اول یا دویم نصاب نه |
| لَمْ يَبْلُغِ الْفَرِيضَةَ .[1] |
| وروسته) حد نصاب ته ونه رسېږي. |

**توضیح : بوَقص:** د وقص جمعه **اوقاص** دۀ. د نصاب نه کم شمیر مثلاً څلور اوښان یا دغه په دوؤ باندې هم د اوښانو اطلاق کېږي. او د **فریضة** په مینځ په اعدادو باندې هم د وقص اطلاق کېږي. دلته د دواړو نصاب په مینځ کې مثلاً د پنځو نه تر لسو په مینځ او د دیرشو نه د څلویښتو غواګانو په مینځنې اعداد باندې د وقص اطلاق کېږي. په دې عدد کې د صاحبینو په نزد هیڅ زکوة نشته دی. البته د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد د حساب سره زکوة شته دی. چې تفصیل یې مخکې تیر شوې دی. (المرقات : ۴/۳۲۴).



[1] أخرجه الدار قطني في السنن ۲ ۹۹ رقم الحديث ۲۱

# باب صدقة الفطر
# د صدقه فطر بيان

د صدقة الفطر دويم نوم صدقة الصوم دى. دريم نوم يې زكوٰة الصوم دى. څلورم نوم يې زكوٰة رمضان دى. پنځم نوم يې صدقة الروس دى. په دې كې اضافت الى السبب دى. وكيع بن جراح رَحِمَهُ اللهُ وايي چې صدقة الفطر مونځ كې د سجده سهو په شان ده. لهذا د روژو د نقصانانو د پوره كولو لپاره صدقه فضر ده.

## اوله مسئله : صدقة فطر فرض ده او كه واجب؟

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: فَرَضَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِنْ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې فرض كړې دې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زكوة فطر (صدقه فطر) يو صاع د |
| تَمْرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ عَلَى الْعَبْدِ وَالْحُرِّ وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى وَالصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ |
| كهجورو يا يو صاع د وربشو په غلام، آزاد نارينه، زنانه او وړوكي او غټ باندې په مسلمانانو كې او |
| وَ أَمَرَ بِهَا أَنْ تُؤَدَّى قَبْلَ |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صدقه فطر باره كې دا حكم هم كړى دى چې صدقه فطر دې وركړې شي مخكې د |
| خُرُوجِ النَّاسِ إِلَى الصَّلَاةِ.(۱) |
| وتلو د خلكو نه مونځ د وړوكي اختر ته. |

**توضيح : فرض**: صدقة الفطر فرض ده كه واجب ده يا سنت ده. په دې كې د فقهاؤ اختلاف دى.

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد صدقة الفطر واجب فرض ده. د امام مالك رَحِمَهُ اللهُ په نزد سنت ده. د ائمه احنافو په نزد صدقة الفطر واجب ده. (المرقات : ۴/۵۰).

**دلائل**: شوافعو او حنابلو د بحث دلاندې حديث د لفظ "**فرض**" نه استدلال كړى دى.

---

(۱) أخرجه البخاري ۳،۳۶۷،۲ رقم الحديث ۱۵۰۳، ومسلم في صحيحه ۲،۶۷۷ رقم الحديث ۱۲ - ۹۸۴، وأبوداود في السنن ۲ ۲۶۳، رقم الحديث ۱۶۱۲، والترمذي في السنن ۳ ۶۱ رقم الحديث ۶۷۶، وابن ماجه ۱ ۵۸۴ رقم الحديث ۱۸۲۶، وأحمد في المسند ۲ ۱۰۲.

د احنافو ائمو د حضرت عمرو بن شعیب رَحِمَهُ اللّٰهُ د حدیث ۵ نه استدلال کړی دی. چې په هغې کې د الا ان صدقة الفطر واجبة واضح الفاظ موجود دي. او د احنافو ائمه فرمايي چې د فرض لپاره د قطعي الثبوت او د قطعي الدلالة نص ضرورت دی.
دلته نهې نشته دی لهذا صدقه فرض نه ده بلکې واجب ده. چې عملاً د فرض په حکم کې ده. امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ خپله هم فرض د قَدَّرَ په معنی کې اخستی دی. خو هغوی قدر په سنت باندې حمل کړی دی. (المرقات: ۴/۳۲۵).
**جواب:** شوافعو او حنابلو چې د لفظ فرض نه استدلال کړی دی نو جواب يې دا دی چې دا خبر واحد دی. دې نه فرض نه شي ثابتیدی لهذا فرض به د قدر په معنی مقررغواړي يا شریعت دا تقدیر د واجب طرف ته منتقل کړو لکه په حدیثونو کې چې دي لهذا سنت پاتې نه شو نو مالکیه استدلال نه شي کولی.
په صدقه فطر کې ټولې څلورې مسئلې دي: ۱: **ماذا الحکم ۲: علی من تجب؟ ۳: ممن یجب ٤: کم تجب.** اوله مسئله **ماذا الحکم** پوره شوه. اوس دلته دویمه مسئله بیانیږي.
**دویمه مسئله : صدقه فطر په چا واجب ده :** یعنې صدقة فطر په چا باندې واجب کیږي. نو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد فقط د نصاب په مالک باندې واجب کیږي. یعنې صاحب یسار باندې واجب ده. په غریب باندې نه ده. غریب خو اخستونکی دی. دا صدقه د غربت ختمولو لپاره ده. د غریب ختمولو لپاره نه ده. د شوافعو په نزد صدقه فطر په هر هغه سړي باندې فرض ده چې د هغې سره د یوې ورځې نه زیات مصرف موجود وي. (المرقات: ۴/۳۲٦).
احنافو د "**لا صدقة الا عن ظهر غنی**" نه استدلال کړی دی. او شوافعو د عبد الله بن ثعلبه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حدیث نمبر ۵ نه استدلال کړی دی. په هغې کې لفظ دا دی "**اما فقیرکم فیرد الله علیه اکثر مم اعطاه**". (المرقات: ۴/۳۲٦).
**دریمه مسئله: صدقه فطر د چا د طرف نه ادا کیږي ؟:** یعنې صدقه فطر به د چا له اړخ نه ادا کیږي. په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. او د اختلاف بنیاد په حدیث کې د من المسلمین د لفظ دی. چې دا د چا متعلق دی.
**د فقهاؤ اختلاف:** د ائمه ثلاثو په نزد فقط د مسلمان مملوک له اړخ نه په مولی باندې صدقه واجب ده. د کافر د طرف نه . نه ده. د احنافو په نزد د هر قسم غلام د طرف نه په مولی باندې صدقه ورکول واجب ده. (المرقات: ۴/۳۲۷).

**دلائل**: جمهور فقهاؤ د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی. هغوی وايي چې دلته د **من المسلمين** جمله د **علی الحر والعبد** لپاره حال ده. چې د دې لپاره قید ده. لهذا د **حر** هم مسلمان کېدل شرط دي. او د **عبد** هم مسلمان کیدل شرط دي.

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دلیل د مصنف عبد الرزاق او دار قطني کې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی چې الفاظ یې دا دي "**يخرج زكوٰة الفطر عن كل مملوك وان كان يهوديا او نصرانيا**" د غه شان دا الفاظ هم منقول دي "**ادوا عن كل حر وعبد يهودي او نصراني او مجوسي**".

**جواب: من المسلمين**: د دې کلماتو تعلق د ائمه احنافو په نزد حر او د عبد سره نه دی بلکې د صدقې د ادا کونکي سره دی چې صدقه ادا کونکی مسلمان وي او س یې چې مسلمان د چا د طرف نه هم ادا کوي جائز ده هغه که مجوسي غلام وي یا هندو غلام وي یا که عیسائي وي. دلته غلام مطلق ذکر دی هغه که مسلمان وي او یا کافر وي دا مقید کول مناسب نه دي. او په نورو حدیثونو کې د دې تائید دی ځکه هلته د حال ذوالحال سره قید نه ازاد شوی او په حدیثونو کې د مطلق غلام ذکر راغلی دی. (المرقات ۴/۳۲۷).

## څلورمه مسئله : د صدقه فطر اندازه

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كُنَّا نُخْرِجُ زَكَاةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِنْ طَعَامٍ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ |
| ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ به ویستلو صدقهٔ فطر یو صاع د خوراک نه او یا یو صاع د وربشو |
| أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ أَقِطٍ أَوْ صَاعًا مِنْ زَبِيبٍ.[1] |
| او یا یو صاع د کهجور او یا یو صاع د پنیر او یا یو صاع د وچو انګورو (وڅکو). |

**توضيح : اوصاع من طعام** : صدقه فطر کې چې د څومره غلو ذکر شوی دی. په هغې کې د چا اختلاف نشته دی. په ټولو شیانو کې یو صاع صدقه فطر دی. فقط په غنمو کې اختلاف دی. چې آیا په دې نیم صاع دی او که یو صاع دی. (المرقات :۴/۳۲۸).

**د فقهاؤ اختلاف** :د ائمه ثلاثؤ په نزد چې څنګه په نورو شیانو کې یو صاع صدقه فطر دی همدغه شان په غنمو کې هم یو صاع واجب دی. د ائمه ثلاثؤ په نزد په غنمو کې نیم صاع صدقه فطر دی.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۳۷۱، رقم الحديث ۱۵۰۶، ومسلم في صحيحه ۲ ۶۷۸ رقم الحديث ۱۷-۹۸۵، وأبوداود في السنن ۲/۲۶۶، رقم الحديث ۱۶۱۴، والترمذي في السنن ۳/۵۹ رقم الحديث ۶۷۳، وابن ماجه ۱/۵۸۵ رقم الحديث : ۱۸۲۹.

**دلائل**: جمهور فقهاؤ د بحث د لاندې د حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی. چې په هغې کې د "**صاعاً من طعام**" الفاظ راغلي دي. او د طعام نه مراد غنم دي. ځکه د نورو شیانو ذکر د غنمو نه وروسته دی. چې په دې باندې عطف دي. لهذا تغایر ضروري دی.

ائمه احنافو د ډیرو حدیثونو نه استدلال کړی دی. مثلاً په فصل ثانی کې حدیث ۳ کې د "**او نقص صاع من قمح**" د الفاظو تصریح موجود ده. ځکه د قمح لفظ د غنمو لپاره خاص دی. همدغه شان په فصل ثانی کې د عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث ۵ کې د "**مدان من قمح**" الفاظ راغلي دي. چې په صراحت سره په غنمو باندې او بیا په نیم صاع باندې دلالت کوي. بیا یې د عطف په ذریعې سره طعام جلا کړی دی. همدغه شان په فصل ثانی کې د عبد الله بن ثعلبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث ۶ کې د "صاع من بر" صریح الفاظ راغلي دي د حدیثونو په نورو کتابونو کې هم په کثرت سره نیم صاع د غنمو ذکر موجود دی. (المرقات ۴/۳۲۹).

**اولني جواب**: جمهور فقهاؤ چې د بحث د لاندې د ابوسعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حدیث نه کوم استدلال کړی دی دا محتمل دی. ځکه د طعام لفظ د غنمو سره خاص نه دی بلکې په نورو غلو باندې د دې اطلاق کېږي. او خاص کر جوار مراد اخستل کېږي. د دې حدیث نه وروسته چې کوم عطف شوی دی. دا عطف د خاص علی العام د قبیل نه دی. بهرحال په لفظ طعام کې احتمالات دي. او لفظ "**قمح**" یا لفظ "**بر**" د غنمو سره خاص دی. لهذا د محتمل په ځای د متعین نه استدلال کول په کار دي. جوهری لیکلي دي چې د طعام اطلاق په هر ماکول باندې کېږي. د غنمو سره خاص نه دی. هسې هم عرب د غنمو سره نا اشنا ؤو. د هغوی په نزد د طعام اطلاق به په نورو غلو باندې ؤو.

**دویم جواب**: دا دی چې زه د څه وخت لپاره یې منو چې د طعام نه مراد غنم دي. او دلته همدا یو صاع غنم ورکړی شوي دي. خو مونږ وایو چې نیم صاع په صدقه فطر کې ورکړی شو او نیم صاع د تطوع او د تبرع په توګه ؤو. نو دا اوس هم جائز ده چې سړی ډیره صدقه اوکړي. خپله د حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الفاظو "**کنا نخرج**" نه معلومېږي چې دا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم نه ؤو. بلکې هغوی به خپله داسې کول.

**اقط**: دې ته قرط هم وایي پنیر ته وایي. د دې د جوړولو طریقه داسې ده چې تازه شوملې وخوټکولی شي. د هغې نه او به جدا شي او **اقط** (پنیر) شي. بیا هغه په توته کې وزبیخل شي چې وچ شي. په مظاهر حق جدید کې یې دا غلط لیکلی دی. (المرقات: ۴/۳۲۹).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## صدقه فطر کې نیم صاع غنم مترر دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : فِي آخِرِ رَمَضَانَ أَخْرِجُوْا صَدَقَةَ صَوْمِكُمْ . |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رمضان په آخري ورځو کې (خلکو ته) وويل چې : تاسو د خپلو روژو زکوة وباسئ. |
| فرض رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذِهِ الصَّدَقَةَ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيْرٍ |
| يعنې صدقه فطر اداکړئ، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرض کړې دی دا صدقه يو صاع د کجورو او يا د وربشو |
| أَوْ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ قَمْحٍ عَلَى كُلِّ حُرٍّ أَوْ مَمْلُوْكٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى صَغِيْرٍ أَوْ كَبِيْرٍ. (۱) |
| او يا نيم صاع د غنمو په هر (مسلمان) ازاد، غلام، وينځه، نارينه، زنانه او وړوکي او غټ باندې. |

## د صدقه فطر د وجوب وجه :

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: فَرَضَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ طُهْرَ الصِّيَامِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صدقه د فطر پاکول د روژې دي د بې ځايه خبرو |
| مِنَ اللَّغْوِ وَ الرَّفَثِ وَ طُعْمَةً لِلْمَسَاكِيْنِ . (۲) |
| او د فضول خبرو نه او همدارنګې مسکينانو باندې د خوراک کولو د پاره. |

**توضيح : طعمة للمساكين:** اسلام د عدل او برابرۍ يو لوي مذهب دی د وړوکي اختر په ورځ به مالدارد خوشحالۍ کوي او فقيران به ورته په کتلو کتلو سوځي او ورته به کړېږي. نو اسلام په مالدارانو باندې واجب کړه چې تاسو د کوچني اختر په ورځ صدقه کوئ چې غريبانان خلک هم ستاسو سره په خوشحالو کې شريک شي. همدغه وجه ده چې صدقه فطر د اختر د مونځ نه مخکې مخکې ادا کول په کار دي. او همدغه وجه ده چې صدقه فطر دومره عامه شوي ده چې په معمولي مالداره باندې هم واجب ده. او وړوکي، غټ، نارينه او زنانه. غلام او آزاد ټولو باندې واجب شوه. تردې د وړوکي اختر شپه د صبح صادق نه مخکې چې کوم بچې پيدا شي نو د هغه د طرف نه هم واجب ده. زيربحث حديث همدغې حکمت طرف ته پاس ذکر شوي الفاظ سره اشاره شوي ده. دويم حکمت دا چې په روژو کې چې کومې کمزورياني شوي دي نو د هغه ټول غلطو لپاره صدقه فطر مقرر شوي ده. د اختر د مونځ نه مخکې او

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۷۲، رقم الحديث ۱۶۲۲

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۶۲، رقم الحديث ۱۶۰۹ . وابن ماجه ۱ ۵۸۵ رقم الحديث ۱۸۲۷

وروسته دواړو وختونو كې صدقه فطر اداكول كېږي البته مخكې اداكول ډېر بهتر دي. د شيخ وكيع رَحِمَهُ اللَّهُ قول دى چې څنګه چې د مونځ د كمزوري لپاره سجده مقرر ده. دغه شان د روژو د نقصان لپاره صدقه فطر مقرر ده. (المرقات: ٤/٣٣٣).

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## صدقه صرف نيم صاع غنم دي:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُنَادِيًا فِي فِجَاجِ |
| عمروبن شعيب رَحِمَهُ اللَّهُ د خپل پلار او د نيكه نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آوازخوركړوېه كوڅو د |
| مَكَّةَ : أَلَا إِنَّ صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ |
| مكې كې چې واورئ! صدقه په هر مسلمان باندې واجب ده هغه كه نارينه وي يا زنانه، ازاد وي كه غلام. |
| صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ مُدَّانِ مِنْ قَمْحٍ أَوْ سِوَاهُ أَوْ صَاعٌ مِنْ طَعَامٍ.[1] |
| وړوكى وي يا غټ (او ددې مقدار د) دوه مده د غنمو او (د وربشو نه بغير په نورو) كې يو صاع د غلې دي. |
| ﴿٥﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ أَوْ ثَعْلَبَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي صُعَيْرٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ |
| عبدالله ابن ثعلبه يا ثعلبه ابن عبدالله ابن ابي صعير د خپل پلار نه نقل كوي وايي چې وفرمايل رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : صَاعٌ مِنْ بُرٍّ أَوْ قَمْحٍ عَنْ كُلِّ اثْنَيْنِ |
| صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (صدقه فطر واجب ده) وربشو كې يو صاع او يا د غنمو د دوه سړو د طرف نه (د هر سړي |
| صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى . أَمَّا غَنِيُّكُمْ |
| د طرف د نيم صاع) كه وړوكى وي يا غټ. ازاد وي كه غلام. نارينه وي او كه زنانه وي. د مالداره خبر دا ده |
| فَيُزَكِّيهِ اللهُ . وَ أَمَّا فَقِيرُكُمْ فَيَرُدُّ عَلَيْهِ أَكْثَرَ |
| چې دا پاك كړي الله (صدقه فطر د وركولو په وجه) او د فقيرانو معامله دا ده چې الله دوي ته ددې نه ډېره |
| مَا أَعْطَاهُ.[2] |
| وركوي څومره چې دوي (د صدقه فطر په طور) وركړي. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٣ ٦٠٣ رقم الحديث ٦٧٤. والدار قطني في السنن ٢ ١٤١ رقم الحديث ١٤ من باب زكاة الفطر

(٢) أخرجه أبوداود في السنن ٢ ٢٧٠، رقم الحديث ١٦١٩

# باب من لا تحل له الصدقة

## کومو خلکو لپاره چې صدقات حلال نه دي

۱: د تمهيد په توگه په دې پوهيدل په کار دي چې په دې باب کې هغه حديثونه نقل کړی شوي دي چې د هغې نه به معلوم شي چې کومو خلکو لپاره زکوة اخستل جائز دي او کومو خلکو لپاره نه جنړ دي.

مالداره خلکو لپاره صدقه اخستل جائز نه دي. مالدار په درې قسمه دي.

۱: مالداره هغه دی چې ده سره د مالي نامي نه نصاب موجود وي. په هغې باندې زکوة، صدقه فطر او قرباني کول واجب دي. او ده ته هر قسمه صدقه ورکول جائز نه ده.

۲: دويم مالدار هغه دی چې هغه سره د ضرورت اصليه نه زيات مال موجود وي. خو هغه مال نامي نه وي. او په هغې کې د تجارت نيت هم نه وي. داسې سړي باندې زکوة ورکول واجب خو نه دي خو قرباني او صدقه فطرپرې واجب ده. او د هغې لپاره هر قسمه زکوة او صدقې اخستل حرام دي.

۳: دريم هغه کس دی چې هغې سره د حاجت اصليه نه زياتي مال نه وي. نه غير نامي وي. يعنې د نصاب مالک نه وي خو د هغې ضرورت پوره کيږي. هيڅ يو ضرورت د هغې نيمگړی نه پاتې کيږي. په دې نه زکوة فرض دی، نه صدقه فطر، نه قربانې واجب ده. خو د هغې لپاره سوال کول جائز نه دي. خو که چا زکوة ورکړو نو هغه قبلولی شي.

۱: بهرحال کوم سړی چې صاحب نصاب وي، هغه خپل زکوة خپل فروع او اصولو کې نه شي ورکولی. د امام صاحب په نزد خاوند خپلې ښځې ته يا ښځه خپل خاوند ته زکوة نه شي ورکولی. خو صاحبين وايي چې ښځه يې خپل خاوند ته ورکولی شي.

۲: د زکوة مال خپل غلام، وينځې او داسې نورو ته نه شي ورکول کيدلی.

۳: په سخرگنی رشته کې زکوة ورکول صحيح دي چې اخيستونکی يې مستحق وي.

۴: د زکوة مال مالداره ته ورکول جائز نه دي. مالداره ترې نه مستثنی دي. تفصيل رارروان دی.

۵: هاشمي ته زکوة ورکول جائز نه دی. سيد ته هاشمي وايي.

۶: کافر ته زکوة ورکول جائز نه دی.

۷: جومات يا د مدرسې د جوړولو يا مرمت کولو يا د مړي د کفن دفن لپاره زکوة ورکول صحيح نه دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرَةٍ فِي الطَّرِيقِ |
|---|
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کهجورو په خوا تير شو چې په لاره کې پرتې وې |

| |
|---|
| فَقَالَ : لَوْلَا أَنِّي أَخَافُ أَنْ تَكُونَ مِنَ الصَّدَقَةِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام (چې وليدلي نو) وي فرمايل چې که ماته ويره نه وی چې دا کهجوري د زکوة دي نو ما به |
| لَأَكَلْتُهَا . (۱) |
| (د الله د نعمت د تعظيم په نظر) دا او چتي کړي وی او خوړلی به مې وی. |

## په مور او پلار باندې د بچو تربيت لازم دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : أَخَذَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ تَمْرَةً مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې (يو ځل) را واخيسته حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يوه کهجوره د زکوة د کهجورو |
| فَجَعَلَهَا فِي فِيهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : كِخْ كِخْ |
| نه او په خله کې يې و اچوله (د دې په ليدو سره) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې را و باسه. را و باسه (او |
| لِيَطْرَحَهَا ثُمَّ قَالَ : |
| داسي يې وفرمايل چې) هغه دا (د خلي نه را و باسي او) ګوزاره يې کړي. بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام ده ته وفرمايل |
| أَمَا شَعَرْتَ أَنَّا لَا نَأْكُلُ الصَّدَقَةَ. (۲) |
| چې آيا ته نه پوهېږې چې مونږ (بني هاشم د) صدقې مال نه شو خوړی. |

**توضيح** : کخ کخ: **کاف** باندې **فتحه** ده او **کسره** پرې هم جائز ده او **خا** باندې **سکون** دی. د يو بد او نامناسب کار نه د منع کولو لپاره دا لفظ استعمالېږي د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د ترجمة الباب نه معلومېږي چې دا لفظ د فارسي دی. عربی کې استعمالېږي. د دې حديث او د مخکني حديث نه يو څو فايدې تر لاسه کېږي. (المرقات : ۴/۳۳۴).

۱: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره د زکوة مال خوړل حرام ؤ.

۲: بنو هاشم لپاره صدقه اخستل حرام دې خو صدقه نافله خوړل جائز دي.

۳: لاره کې پروت شی او چتولی او خوړلې شي خو چې په لږ مقدار کې وي.

۴: کوم شي کې چې لږ شک هم وي نو د مؤمن لپاره هغې ته نزدې ورتلل مناسب نه دي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/ ٢٩٣٤، رقم الحديث ٢٠٥٥، ومسلم في صحيحه ٢/ ٧٥٢ رقم الحديث ١٦٤ ١٠٧١، وأبوداود في السنن ٢/ ٣٠٠، رقم الحديث ١٦٥٢، وأحمد في المسند ١/ ٢٠٠

(٢) أخرجه البخاري ٣/ ٣٥٤، رقم الحديث ١٤٩١، ومسلم في صحيحه ٢/ ٧٥١ رقم الحديث ١٦١ ١٠٦٩، وأحمد في المسند ١/ ٢٠٠.

۵: مور او پلار باندې فرض دې چې د خپل اولاد صحيح تربيت او کړي او د منکراتو نه اولاد وساتي. او په هيڅ منکر کې د هغوی مرسته اونکړي لکه ماشومانو ته د ريښمو جامې اغوستل يا د سرو او سپينو زرو زيوارت ورو هلکانو ته اغوستل ټول ناجائز دي.

## د بنو هاشم د پاره د زکوٰة خوړل حرام دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ رَبِيعَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ هٰذِهِ الصَّدَقَاتِ |
| عبد المطلب بن ربيعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دا صدقات يعنې زکوة خو د |
| إِنَّمَا هِيَ أَوْسَاخُ النَّاسِ وَ إِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِمُحَمَّدٍ وَلَا لِآلِ مُحَمَّدٍ.[1] |
| انسانانو ګند دی صدقه نه خو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لپاره حلاله ده او نه آل محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (بنو هاشم) لپاره. |

**توضيح** : **اوساخ**: دا د وسخ جمعه ده د ګند په معنی ده.

**انها لا تحل لمحمد ولا لآل محمد**: هاشمي يعنې سادات او آلِ رسول ته صدقي ورکول هم جائز نه دې او دوي ته اخستل هم جائز نه دي. زير بحث حديث کې په واضحه توګه دلالت کوي. دغه شان د سادات د غلامانو او وينځو لپاره هم صدقه اخستل جائز نه دي. ځکه زکوة د خلکو د مالونو ګند دی او د بنو هاشم بنياد پاک دی. داسي نه چرته هغوی پرې ګند د شي. نو ځکه به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صدقي نه قبلولي. او تحفي به يې قبلولي. ځکه په تحفه کې اکرام او اعزاز مقصود وي. صدقه کې د صدقه اخستونکي اکرام او اعزاز غرض نه وي. (المرقات: ۴/۳۳۴).

بهرحال د حديث همدغه فيصله ده. خو ځينې فقهاؤ په دې زمانه کې د سيد د پاره د صدقې د اخستلو د جواز خبره کړې ده. ځکه مخکې زمانه کې به د دې حضراتو لپاره د بيت المال نه خمس الخمس مقرر ؤو. اوس هغه نظام ختم شوی دی. نو آيا په سادات باندې زکوة هم بند او د مرګ سامان ورته اماده کړی شي؟ خو بيا هم په دې باندې د جواز فتوی نه شي ورکول کيدی. فتوی خو د ممانعت ده خو مسلمانانو ته په کار دي او د وخت په حکومت باندې لازم دي چې هغه يو داسې اداره قائمه کړي چې د سيدانو خبر اخلي.

**بنو هاشم کوم خلک دي**: د پنځه بزرګانو اولاد ته بنو هاشم وايي: ۱- د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولاد هغه که د فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه وي او که د بلې ښځې نه وي. ۲: د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولاد ۳: د حضرت عقيل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولاد ۴: د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولاد ۵: د حارث بن عبد المطلب اولاد.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۷۵۳ رقم الحديث ۱۶۷. ۱۰۷۲، وأحمد في المسند ۴/۱۶۶

﴿٤﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا أُتِيَ

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا معمول ؤ چې كله به راوړې شو نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته د

بِطَعَامٍ سَأَلَ عَنْهُ : أَهَدِيَّةٌ أَمْ صَدَقَةٌ ؟ فَإِنْ قِيلَ :

خوراک يو شي نو اول به نبي عَلَيْهِ السَّلَام د دې باره کې وپوښتل چې دا تحفه ده يا صدقه؟ که ورته وبه ويل شو

صَدَقَةٌ : قَالَ لِأَصْحَابِهِ : كُلُوا

چې دا صدقه ده نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به (د بنو هاشم نه بغير خپلو نورو) صحابؤ ته وفرمايل چې خورئ

وَ لَمْ يَأْكُلْ وَ إِنْ قِيلَ : هَدِيَّةٌ

خو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپله نه خوړل او که ورته وبه ويل شو چې دا تحفه ده نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ضَرَبَ بِيَدِهِ فَأَكَلَ مَعَهُمْ .(١)

به خپل لاس مبارک ور وړاندې کړو او د صحابؤ سره به يې وخوړله.

## د تمليک مسئله

﴿٥﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ فِي بَرِيرَةَ ثَلَاثُ سُنَنٍ : إِحْدَى السُّنَنِ أَنَّهَا عُتِقَتْ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې د بريرې متعلق درې احكامات مخې ته راغلل اول حكم خو دا چې كله دا آزاده شوه

فَخُيِّرَتْ فِي زَوْجِهَا وَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

نو دې ته د خپل خاوند باره کې اختيار ورکړې شو (دويم حكم دا چې) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې

الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ . وَ دَخَلَ رَسُولُ اللهِ

زما د ميراث حق د هغه سړي لپاره دې چا چې آزاده كړه (دريم حكم دا چې يوه ورځ) داخل شو رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْبُرْمَةُ تَفُورُ بِلَحْمٍ فَقُرِّبَ إِلَيْهِ خُبْزٌ وَأُدْمٌ مِنْ أُدْمِ الْبَيْتِ

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (كور ته) نو غوښه پخيده. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ډوډۍ او د كور تركاري راوړلې شوه.

فَقَالَ : أَلَمْ أَرَ بُرْمَةً فِيهَا لَحْمٌ ؟ قَالُوا :

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې آيا ما هغه ديگ ونه ليدو چې په هغې کې غوښه وه؟ (يعني چې غوښه

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٣، ٢٠٣، رقم الحديث ٢٥٧٦، ومسلم في صحيحه ٢، ٧٥٦ رقم الحديث ١٧٥. ١٠٧٧.

| |
|---|
| بَلٰى وَ لٰكِنَّ ذٰلِكَ لَحْمٌ |
| پخیده نو ماته ولي رانه کړی شوه) نو ورته وویل شو چې ولې نه (دیګ کې غوښه پخیده) خو هغه غوښه |
| تُصُدِّقَ بِهِ عَلٰى بَرِيرَةَ وَ أَنْتَ لَا تَأْكُلُ الصَّدَقَةَ قَالَ : هُوَ |
| بریرې ته د صدقې په توګه ورکړی شوې وه او تاسو خو صدقه نه خورې. نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: هغه |
| عَلَيْهَا صَدَقَةٌ وَ لَنَا هَدِيَّةٌ .[1] |
| غوښه د بریرې د پاره صدقه ده او زمونږ د پاره ډالئ ده. |

**توضیح** : **ثلاث سنن**: یعنې د بریره په وجه د اسلام درې مسئلې واضحه شوې: اول: **خیار عتق**. دویم **الولاء لمن اعتق** یعنې میراث به ازادونکي ته ورکول کېږي ،دریم: د لاس بدلولو سره **ملکیت** کې بدلون راځي چې دیو لپاره یو شی زکوة دی خو هغې چې بل ته ورکړو نو د هغې لپاره صدقه شوه. د فقهاؤ په اصطلاح کې دې ته تملیک وایي چې جائز ده. خو په دې شرط چې ناجائزه حیله نه وي. (المرقات : ۴/۳۳۷).

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُ الْهَدِيَّةَ ويثيب عَلَيْهَا.[2] |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به تحفه قبلوله او د هغې بدله به یې ورکوله. |
| ﴿٧﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَوْ دُعِيتُ إِلٰى كُرَاعٍ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې که زما کراع هم دعوت وکړی شي نو |
| لَأَجَبْتُ وَ لَوْ أُهْدِيَ إِلَيَّ ذِرَاعٌ لَقَبِلْتُ .[3] |
| زه به یې قبول کړم او ماته د تحفې په توګه یو لاس هم راولېږلی شي نو زه به یې قبول کړم. |

## اصل مسکین څوک دی؟

| |
|---|
| ﴿٨﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَيْسَ الْمِسْكِينُ الَّذِي |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل مسکین هغه سړی نه دی چې د خلکو نه |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۴۰۴، رقم الحديث ۵۲۷۹، ومسلم في صحيحه ۲ ۱۱۴۴ رقم الحديث ۱۴-۱۵۰۴

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۵، رقم الحديث ۲۵۸۵

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۵ ۱۹۹، رقم الحديث ۲۵۶۷، وأحمد في المسند ۲ ۴۲۴

| |
|---|
| يَطُوفُ عَلَى النَّاسِ تَرُدُّهُ اللُّقْمَةُ وَ اللُّقْمَتَانِ وَ التَّمْرَةُ وَ التَّمْرَتَانِ وَ لٰكِنَّ الْمِسْكِينَ |
| يې غواړي او خلک هغه ته يوه مړۍ يا دوه مړۍ او کهجوره يا دوه کهجورې ورکوي بلکې مسکين هغه |
| الَّذِيْ لَا يَجِدُ غِنًى يُغْنِيهِ |
| سړی دی چې هغه دومره هم نه لري چې د هغې په وجه مالداره شي او (د هغې د ظاهري حالاتو په وجه) |
| وَلَا يُفْطَنُ بِهِ فَيُتَصَدَّقَ عَلَيْهِ وَلَا يَقُومُ |
| خلک په دې هم نه خبرېږي چې هغه محتاج او ضرورت مند دی هغه ته صدقه ورکړي. او لرې نه وځي د |
| فَيَسْأَلَ النَّاس .[1] |
| کور نه خلکو ته د لاس نيولو لپاره. |

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۹﴾ عَنْ أَبِي رَافِعٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ عَلَى الصَّدَقَةِ |
| ابو رافع رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د بنی مخزوم يو کس د زکوة اخستلو لپاره ولېږلو. |
| فَقَالَ لِأَبِي رَافِعٍ : اصْحَبْنِي كَيْ مَا تُصِيبُ مِنْهَا . |
| هغه ابو رافع رضي الله عنه ته وويل چې ته هم ما سره لاړ شه چې تا ته هم په هغې کې څه برخه ملاؤ شي ابو رافع |
| فَقَالَ : لَا حَتَّى آتِيَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَسْأَلَهُ . |
| رضي الله عنه ورته وويل چې زه اوس تا سره نه ځم. اول د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه کوم (چې زه د دې |
| فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| سړي سره د زکوة اخستلو لپاره لاړ شم يا نه؟) نو هغه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو او |
| فَسَأَلَهُ فَقَالَ : إِنَّ الصَّدَقَةَ |
| نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه يې د تګ باره کې تپوس وکړو نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې صدقه زمونږ |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۴۱، رقم الحديث ۱۴۷۹، ومسلم في صحيحه ۲/۷۱۹ رقم الحديث ۱۰۱-۱۰۳۹، وأبوداود في السنن ۲/۲۸۳، رقم الحديث ۱۶۳۱، وأحمد في المسند ۱ ۳۸٤

لَا تَحِلُّ لَنَا وَ إِنَّ مَوَالِيَ الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ .[۱]

(بني هاشم) لپاره حلال نه ده او مولی (د ازاد شوي غلام په معامله کې) د هغه ازاد قوم په حکم کې دی.

## د مالداره د پاره صدقه اخیستل جائز نه ده

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ

عبد الله ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل نه دي جائز زکوة اخیستل د مالدار

وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ .[۲]

لپاره او نه تندرست لپاره (چې د محنت او مزدورۍ کولو قابل وي).

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ قَالَ أَخْبَرَنِي رَجُلَانِ أَنَّهُمَا أَتَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عبید الله بن عدی بن خیار وایي چې ماته دوه کسانو وویل چې هغه دواړه راغلل نبي کریم صلی الله علیه وسلم

وَ هُوَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَ هُوَ يُقَسِّمُ الصَّدَقَةَ

ته کله چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع په موقعه کې خلکو ته د زکوة مال تقسیمولو هغه دواړو هم

فَسَأَلَاهُ مِنْهَا

نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته په هغه مال کې د څه برخې اخستلو اظهار وکړو هغه دواړه وایي چې نبي علیه السلام

فَرَفَعَ فِينَا النَّظَرَ وَ خَفَضَهُ فَرَآنَا جَلْدَيْنِ

(زمونږ په طلب کولو سره) مونږ باندې د سر نه تر پښو پورې نظر واچولو مونږ یې چې تندرسته وموندلو نو

فَقَالَ : إِنْ شِئْتُمَا أَعْطَيْتُكُمَا وَلَا حَظَّ

وې فرمایل چې "که تاسو یې غواړئ نو زه به یې درکړم (خو یاد وساتئ) چې نشته څه برخه او حصه د

فِيهَا لِغَنِيٍّ وَلَا لِقَوِيٍّ مُكْتَسِبٍ .[۳]

صدقې او د زکوة په مال کې د مالداره د پاره او د هغه چا د پاره چې تندرست وي او د پیسو په ګټلو قادر وي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۹۸، رقم الحديث ۱۶۵۰ ، والترمذي في السنن ۳ ۴۶ رقم الحديث ۶۵۷ ، والنسائي ۵ ۱۰۷ رقم الحديث ۲۶۱۲، وأحمد في المسند ۶ ۱۰

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۸۵، رقم الحديث ۱۶۳۴ ، والترمذي في السنن ۳ ۴۲ رقم الحديث ۶۵۲ ، وأحمد في المسند ۲ ۳۸۹

(۳) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۲۸۵، رقم الحديث ۱۶۳۳ ، والنسائي ۵ ۹۹ رقم الحديث ۲۵۹۸

## په بعضې صورتونو کې مالداره هم زکوة اخیستلای شي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ مُرْسَلًا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ |
| د عطاء ابن یسار نه په طریقې د ارسال روایت دې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: نه دې حلال زکوة |
| لِغَنِيٍّ إِلَّا لِخَمْسَةٍ : لِغَازٍ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| د مالدار لپاره خو پنځه صورتونو کې (د مالداره لپاره هم د زکوة مال حلال وي) ۱: خدای په لاره کې جهاد |
| أَوْ لِعَامِلٍ عَلَيْهَا أَوْ لِغَارِمٍ |
| کونکي مالدار لپاره (چې د هغې سره د جهاد سامان نه وي) ۲: زکوة وصولونکي مالداره لپاره ۳: تاوان |
| أَوْ لِرَجُلٍ اشْتَرَاهَا |
| ورکونکي مالداره لپاره ۴: د زکوة مال د خپل مال په بدل کې اخستونکي مالداره لپاره (یعنې یو کس یو |
| مفلس ته د زکوة څه مال ورکړو بیا مالداره د ده مفلس نه زکوة مال واخلي او د دې په بدل کې څه ورکړي نو |
| بِمَالِهِ أَوْ لِرَجُلٍ كَانَ لَهُ جَارٌ مِسْكِينٌ |
| په دې صورت کې هغه مال د مالداره لپاره جائز وي ۵: د هغه مالداره لپاره چې په ګاونډ کې یې یو ملفس |
| فَتَصَدَّقَ عَلَى الْمِسْكِينِ فَأَهْدَى الْمِسْكِينُ لِلْغَنِيِّ. وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ: أَوابن السَّبِيل[1] |
| او سیږي او چاورته د زکوة مال ورکړو او دې مفلس خپل مالداره ګاونډي ته په دې کې څه برخه د تحفې په |
| توګه ور ولیږي (نو هغه به د مالداره لپاره جائز وي). |

**توضیح : لخمسة**: یعني پنځه مالداره داسي دې چې هغه زکوة اخیستلی شي :۱: اول غازي او مجاهد دی چې د هغې لپاره زکوة اخستل حلال دی. د دې تفصیل به ان شاء الله په کتاب الجهاد کې راشي.

۲: دویم **عامل** یعني د زکوة وصولونکی مامور د خپلي تنخواه او سفر د مصرف لپاره د زکوة د مالونو نه اخستلی شي.

۳: دریم **غارم** یعني تاوان ورکونکی اګر که مالداره دی خو په تاوان کې راګیر دی هغه زکوة اخستلی شي. د تاوان دوه صورتونه دي. اوله دا چې هغه مالداره سړي دا چا لپاره د دیت ضمانت کړی وي. د دې تاوان پوره کولو لپاره هغه زکوة اخستلی شي. د تاوان دویم صورت دا دی چې د دوو (۲) فریقینو مینځ

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/ ۲۸۶، رقم الحديث ۱۶۳۵، وابن ماجه ۱/ ۵۹۰ رقم الحديث ۱۸۴۱، وأحمد في المسند ۳/ ۵۶.

کې یې صلح کړې ده. هغې کې یې خپل ذاتي مال مصرف کړو. اوس دغه قرض د زکوة د مال نه پوره کولی شي. غازم عام قرضداري ته هم وایي. هغه هم فقر او فاقي په وجه د زکوة مستحق دی.

۴: څلورم د مشتري لپاره د زکوة مال د چانه اخستل جائز دي. یعنې چا یو غریب ته په زکوة کې څه شی ورکړې دی. هغه غریب د زکوة دغه مال په مالداره باندې خرڅ کړو. مالدار لپاره دغه شی اخستل جائز دی. ځکه چې د ملکیت بدلون راغلو.

۵: مسکین له چا زکوة ورکړو. اوس هغه یو مالداره له ورکوي. نو د مالداره لپاره جائز دی. په دې پنځه صورتونو باندې اتفاق دی. البته په غازي کې اختلاف دی چې احناف غازي ته زکوة ورکولو ته افضل وایي. د شوافعو په نزد جائز دی. (المرقات: ۴/۳۴۳).

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ زِيَادِ بْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَبَايَعْتُهُ

زیاد ابن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صدائی وایي چې زه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم او بیعت مې

فَذَكَرَ حَدِيثًا طَوِيلًا

وکړو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس. د دې نه وروسته زیاد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو اوږد حدیث بیان کړو او وي ویل چې

فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ: أَعْطِنِي مِنَ الصَّدَقَةِ. فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

یو کس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راغلو او وي ویل چې ما ته د زکوة مال راکړه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل

إِنَّ اللهَ لَمْ يَرْضَ بِحُكْمِ نَبِيٍّ وَلَا غَيْرِهِ فِي الصَّدَقَاتِ

چې الله تعالی نه راضي شوي د زکوة (تقسیم کولو) باره کې په حکم د هیڅ یو نبي او د نبي نه بغیر د بل چا

حَتَّى حَكَمَ فِيهَا

(یعنې علماء او مجتهدین) بلکې د هغې حق الله خپله فرمایلی دی (یعنې الله مستحیقینو ته د زکوة د

هُوَ فَجَزَّأَهَا

تعین ذمه واري نبي یا علماء مجتهدینو ته نه دی ورکړې بلکې د د تعین یې خپله کړی دی) نو الله د زکوة

ثَمَانِيَةَ أَجْزَاءٍ فَإِنْ كُنْتَ مِنْ تِلْكَ الْأَجْزَاءِ أَعْطَيْتُكَ. (۱)

اته (۸) مستحیقین ذکر کړي دي. که په هغه اتو (۸) کې یې نو زه به تا ته د زکوة مال درکړم.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲۸۱/۲، رقم الحديث ۱۶۳۰، والدار قطني ۲ ۱۳۷ رقم الحديث :۹ من باب الحث عن اخراج الصدقة.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ احتياط

| |
|---|
| ﴿١٤﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ قَالَ : شَرِبَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لَبَنًا |
| زيد بن اسلم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) امير المؤمنين حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ شوده وڅکل نو په |
| فَأَعْجَبَهُ فَسَأَلَ الَّذِي سَقَاهُ : مِنْ أَيْنَ هٰذَا اللَّبَنُ ؟ |
| هغې ډير ښه ولګيدل. چاچې پرلې شوده څکلي ؤ د هغې نه يې وپوښتل چې دا شوده د کوم ځاې دي ؟. |
| فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ وَرَدَ عَلَى مَاءٍ قَدْ سَمَّاهُ |
| هغه ورته وويل چې اوبو لپاره (يعنې د يو ځاې نوم يې واخستلو چې فلانې ځاې ته تلى ؤم) هلته تلى |
| فَإِذَا نَعَمٌ مِنْ نَعَمِ الصَّدَقَةِ وَ هُمْ يَسْقُونَ فَحَلَبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا |
| ؤم څه وينم چې دزكوة ډيرا ښانړ موجود دي اوهغوى ته اوبه وركول كېږي بيا دا وښانو دا وښ نه لږ شان |
| فَجَعَلْتُهُ فِي سِقَائِي فَهُوَ هٰذَا : |
| شوده راولوشل دهغې نه لږشان شوده ما (هم) په خپله مشكيزه كې واچول دا همغه شوده دي (ددې په |
| فَأَدْخَلَ عُمَرُ يَدَهُ فَاسْتَقَاءَ.[1] |
| اوريدو سره) حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپل لاس په خله كې وركړو او قئ يې وكړي. |



(١) أخرجه مالک في الموطأ ٢٦٩/١ رقم الحديث ٣١ من كتاب الزكاة، والبيهقي في سعب الايمان ٦٠/٥ رقم الحديث: ٥٧٧١

# باب من لا تحل له المسألة و من تحل له

## کومو خلکو ته سوال کول جائز او کوم خلکو ته ناجائز دي

اوس په دې باب کې د سوال کولو او د خلکو نه د غوښتلو متعلق ډیر حدیثونه ذکر شوي دي. ځکه علماء لیکي چې د کوم سړي د یوي ورځي لپاره خواړه نه وي او نه ورسره د ستر پټولو لپاره جامه وي او نه د ګټلو اوس لري. نو د داسي سړي لپاره د حاجت په قدر سوال کول جائز دي. او چې کوم کس د یوي ورځي د خوارو مالک وي او د ګټلو توان هم لري نو د هغې لپاره زکوة اخستل جائز خو دی خو سوال کول او خیر غوښتل جائز نه دي. بحرالرائق کې لیکل شوي دي چې د کوم کس سره د یوي ورځي یاد د شپې د ضرورت مطابق مال وي نو د هغې لپاره سوال کول جائز نه دی. د شوافعو د ځینو کتابونو نه معلومیږي چې د کوم سړي سره پنځوس درهم وي نو د هغې لپاره سوال کول حرام دی. ځینو څلویښت ذکر کړي دي. په حدیثونو کې هم د دې ذکر دی.

امام غزالي رحمه الله وایي چې کوم سړی اهل و عیال نه لري نو د هغې لپاره د یوي ورځي خواړه نصاب دی. او که د اهل و عیال والاوي نو بیا پنځوس درهم دي. د دې باب په ذکر شوي حدیثونو کې په ځینو کې دا حکم دی چې کله د قبیلې درې کسان ګواهي ورکړي چې فلاني فقیر او مسکین دی. نو هله سوال کول جائز دی ګیني په ځینو روایتونو کې داسي ذکر دې چې که د سحر او د ماښام خواړه وي نو سوال کول جائز نه دی. ځینو کې دې چې که غوښتل دې نو د وخت د بادشاه نه او غواړه. ځینو کې دې که غواړي نو د یو نیک سړي نه یې وغواړه. د دې ټولو روایتونو د تطبیق لپاره امام طحاوی رحمه الله فرمایي چې د خلکو مختلف صورتونه او مختلف حالات وي. د چا د حال مطابق به پنځوس درهم وي، د چا به د دینه ډیرو ته ضرورت وي، چاته به د دینه لږو ته ضرورت وي. د هر سړي د معروضي حالت د لاندې به د دې د سوال د جواز او د عدم جواز فیصله به کیږي.

## د کومو خلکو د پاره سوال کول جائز دی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ | قَبِيْصَةَ | بْنِ | مُخَارِقٍ | قَالَ | : تَحَمَّلْتُ | حَمَالَةً |
| قبیصه رضي الله عنه ابن مخارق وایي چې ما دیو داسي قرض ضمانت وکړو چې د دیت په وجه ؤ نو زه راغلم د | | | | | | |
| فَأَتَيْتُ رَسُوْلَ | اللهِ صَلَّى | اللهُ عَلَيْهِ | وَ سَلَّمَ | أَسْأَلُهُ | فِيهَا . | |
| رسول الله صلى الله عليه وسلم ته او د نبي کریم عليه السلام نه مې د قرض د ادا کولو لپاره (څه رقم یا مال) وغوښتلو | | | | | | |
| فَقَالَ | : أَقِمْ | حَتَّى | تَأْتِيَنَا | الصَّدَقَةُ | | |
| نبي عليه السلام وفرمایل چې (څه ورځې) حصار شه کله چې مونږ ته د زکوة مال راشي نو په هغې کې به یې | | | | | | |

فَنَأْمُرَ لَكَ بِهَا. قَالَ ثُمَّ قَالَ: يَا قَبِيصَةُ إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ إِلَّا لِأَحَدِ ثَلَاثَةٍ

تاته دد رکولو لپاره و وايو بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې قبيصه دد رې قسمه خلکو لپاره سوال کول جائز دی

رَجُلٍ تَحَمَّلَ حَمَالَةً فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ

فقط يو خو د هغه سړي لپاره چې د قرض ضامن شوی وي (خو په دې شرط چې په غوښتلو کې مبالغه نه کوي

حَتَّى يُصِيبَهَا ثُمَّ يُمْسِكُ

بلکې د همد غه اندازه مال يا درقم سوال وکړي) چې په هغې سره قرض ادا کړی شي او ددې نه وروسته منع

وَ رَجُلٍ أَصَابَتْهُ جَائِحَةٌ

شي دويم د هغه سړي لپاره چې په يو مصيبت او مشکل (مثلاً وچکالي او سيلاب وغيره) کې راګير شي.

اجْتَاحَتْ مَالَهُ فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ حَتَّى

او دده ټول مال ضايع شوی وي نو ددې کس لپاره فقط دومره جائز دي چې په دې سره يې ضرورت پوره شي

يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ أَوْ قَالَ سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ

د (خواړو او د جامو) يا يې وفرمايل چې (دومره وغواړي چې) دده احتياج ختم شي او دده د ژوند د پاره کافي

وَ رَجُلٍ أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ

شي دريم د هغه سړي لپاره چې (مالداروي خو) دده يو داسې سخت حاجت شو چې کلي والا هم پرې خبروي

(مثلاً د کور سامان او اسباب غلا شوی يا په بل يو مصيبت او پيښه کې راګير شوی او د هغې په وجه سخت

حَتَّى يَقُومَ ثَلَاثَةٌ مِنْ ذَوِي الْحِجَى مِنْ قَوْمِهِ.

ضرورت مند شو) او د قوم (محله او کلي) درې د عقل او د فراست والا خلک ددې خبرې ګواهي ورکړي

لَقَدْ أَصَابَتْ فُلَانًا فَاقَةٌ فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ حَتَّى

چې رېښتيا هم ډېر سخت حاجت ورته پيښ شوی دی. نو د هغې لپاره دومره غوښتل په کار دي چې په

يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ أَوْ قَالَ سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ

دې دده ضرورت پوره شي وي فرمايل چې په هغې د هغې محتاجي لرې شي او د هغې د ژوند لپاره کافي

فَمَا سِوَاهُنَّ مِنَ الْمَسْأَلَةِ يَا قَبِيصَةُ سُحْتٌ يَأْكُلُهَا صَاحِبُهَا

شي اې قبيصه دد رې نه بغير د بل چا لپاره سوال کول حرام دی (که دد رې مجبور يو نه بغير سوال کولو باندې

| سُحْتًا . (۱) |
|---|
| څه واخلي او وي خوري نو) هغه حرام خوري. |

**توضيح : حمالة**: بوج او چتولو ته وايي. د دې جملې نه هغه سړي مراد دی چې د چا ديت په خپله ذمه واری اخستی دی او قرضداری شو او ديواليه شو. نو تر ضرورت د حدی پورې سوال کولی شي. (المرقات :۴/۳۴۶).

**جائحة**: اسماني آفت او مصيبت ته جائحه وايي.

**اجتاحت**: د تباه او برباد کيدلو په معنی کې دی. (المرقات :۴/۳۴۷).

**ذوی الحجی**: يعنې د قبيلې درې عقل مند او د حيثيت والا کسان ګواهي ورکړي چې فلانی کس فقير او ديواليه شوی دی. (المرقات :۴/۳۴۷).

## د مال ډيرولو د پاره سوال کول حرام دی

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ سَأَلَ النَّاسَ |
|---|
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل کوم سړي چې سوال کوي د خلکو نه د دوي |
| أَمْوَالَهُمْ تَكَثُّرًا فَإِنَّمَا يَسْأَلُ جَمْرًا . فَلْيَسْتَقِلَّ أَوْ لِيَسْتَكْثِرْ . (۲) |
| مالونه د مال د ډيرولو په خاطر نو ګويا کې هغه داور سکروټه غواړي او س هغه که ډيره غواړي او که لږه. |

## د قيامت په ورځ د سوال کوونکي حشر

| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَسْأَلُ |
|---|
| عبد الله ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل کوم سړي چې لاس غوړوي |
| النَّاسَ حَتَّى يَأْتِيَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَيْسَ فِي وَجْهِهِ مُزْعَةُ لَحْمٍ . (۳) |
| خلکو ته نو هغه به د قيامت په ورځ په داسي حال کې وي چې د هغې په مخ به غوښې پوټی نه وي. |

---

(۱) أخرجه مسلم ۷۲۲/۲ رقم الحديث :۱۰۹-۱۰۴۴، وأبوداود في السنن ۲۹۰/۲، رقم الحديث: ۱۶۴۰، وأحمد في المسند ۴۷۷/۳.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۷۲۰/۲ رقم الحديث ۱۰۵ -۱۰۴۱، وابن ماجه ۵۸۹/۱ رقم الحديث : ۱۸۳۸.

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۸/۳، رقم الحديث ۱۴۷۴، ومسلم في صحيحه ۷۲۰/۲ رقم الحديث :۱۰۴-۱۰۴۰، وأحمد في المسند ۱۵/۲.

**توضيح**: **مزغة لحم**: **مزغة** پوټي ته وايي. **لحم** غوښي ته وايي. يعنې په دنيا کې ناجائزه سوال کونکی سړی به د قيامت په ورځ داسي ذليل او خوار وي چې د هغې په مخ به غوښه پاتې نشي. ګويا کې دا يو تعبير او کنايه ده د هغې سړي د ذلت او رسوائی نه. خو ځينو شارحينو دا په حقيقت باندې حمل کړی چې د قيامت په ورځ به د سوال کونکو په مخ باندې غوښه نه وي. چې د هغې په وجه به د هغه خلکو مخونه د هډوکو ډهانچي وي او د ميدان حشر والو لپاره به د عبرت نمونه وي. (المرقات ۴/۳۴۹ . الکاشف ۶۸/۴).

## په چا پورې اينختلو سره سوال کول جائز نه دي

|  |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا تُلْحِفُوا فِي الْمَسْأَلَةِ فَوَاللهِ |
| معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل په غوښتلو کې مبالغه مه کوی. په الله قسم! |
| لَا يَسْأَلُنِي أَحَدٌ مِنْكُمْ شَيْئًا فَتُخْرِجَ لَهُ مَسْأَلَتُهُ مِنِّي شَيْئًا |
| تاسو کې چې زمانه کوم يو کس (د مبالغې سره) څه وغواړي نوزه هغه ته په داسې حال کې څه ورکړم چې |
| وَ أَنَا لَهُ كَارِهٌ |
| زه يې هغه ته ورکول بد ګڼم او ظاهره ده چې په داسې صورت کې دا څنګه امکان لري چې کوم شی ما هغه |
| فَيُبَارَكَ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتُهُ . [1] |
| ته ورکړی وي په هغې کې به برکت وي. |

## محنت مزدوري کول خلکو ته د لاس وړاندې کولو نه بهتر دي

|  |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ |
| زبير بن عوام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل په تاسو کې چې يو کس يو رسۍ واخلي |
| فَيَأْتِيَ بِحُزْمَةِ حَطَبٍ عَلَى ظَهْرِهِ فَيَبِيعَهَا فَيَكُفَّ اللهُ بِهَا وَجْهَهُ |
| او دلرګو يو ګيډۍ (وتړي) او په ملا يې راوړي او خرڅ يې کړي او الله د ده په وجه د ده عزت او آبرو وساتي |
| خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَسْأَلَ النَّاسَ |
| (کوم چې په غوښتلو سره تللو) نو دا د ده لپاره د دې نه بهتر دي چې خلکو ته لاس وغوړوي او خلک يې |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۷۱۸/۲ رقم الحديث ۹۹ ۱۰۳۸. وأحمد في المسند ٤ ۹۸

أَعْطَوْهُ أَوْ مَنَعُوهُ.(۱)

ده ته ورکړي یا یې ورنه کړي.

**توضیح: حزمة حطب:** د لرګي ګیډۍ ته وایي مطلب دا چې په اوږه باندې د لرګو ګیډۍ خرڅول بهتر دي ددې نه چې د خلکو نه یې غواړي او د هر یو کس مخې ته لاس غوړوي څوک یې ورکړي او څوک یې ورنه کړي. اسلام یو مسلمان ته د عزت نفس او د محنت مزدورۍ درس ورکوي. دا د همدغې برخه ده. (المرقات: ۴/۳۵۰).

## ورکوونکي لاس د اخیستونکي لاس نه بهتر دی

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَ عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| حکیم ابن حزام رضي الله عنه وایي چې ما (یو ځل) د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه (څه) وغوښتل. نو نبي علیه السلام |
| فَأَعْطَانِي ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَأَعْطَانِي ثُمَّ قَالَ لِي: يَا حَكِيمُ! |
| راکړل ما بیا (په دویم ځل) وغوښتل نو نبي علیه السلام هغه وخت هم راکړل او بیا یې ماته وفرمایل چې حکیم! |
| إِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرٌ حُلْوٌ فَمَنْ |
| دا مال شین او خوږ دی (یعنې په نظر کې خوشحاله کونکی او زړه ته لذت ورکونکی دی) لهذا کوم سړی |
| أَخَذَهُ بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ بُورِكَ |
| چې مال بې پرواهۍ سره (یعنې د لاس دغوړولو نه او بغیر د طمع او حرص نه) حاصلوي نو برکت اچولې کیږي |
| لَهُ فِيهِ وَ مَنْ أَخَذَهُ بِإِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهُ فِيهِ. |
| ورته په دې مال کې او کوم سړی چې د نفس د طمع او د حرص سره حاصلوي نو په هغې کې برکت نه وي. |
| وَ كَانَ كَالَّذِي يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ وَ الْيَدُ الْعُلْيَا |
| او ددې حالت دهغه سړي په شان وي چې خواړه خوري خو خیټه یې نه ډکیږي او (یاد وساته چې) بره لاس |
| خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى. قَالَ حَكِيمٌ: |
| (یعنې بل ته ورکونکی لاس) دلاندې لاس نه (دنورو نه غوښتونکي والا) بهتر دی حکیم رضي الله عنه وایي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۵/۳، رقم الحديث ۱۴۷۱، وابن ماجه ۱ ۵۷۷ رقم الحديث ۱۸۳۶.

| فَقُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ وَ الَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ |
|---|
| چې (دې اوريد و سره) ما وويل چې يا رسول الله! قسم په هغه ذات چې ته يې د حق سره رالېږلی يې اوس به |
| لَا أَرْزَأُ أَحَدًا بَعْدَكَ شَيْئًا |
| زه تا دې نه وروسته نه پريشانه كوم (يعنې د نن غوښتني نه وروسته به بيا كله هم د چانه څه نه غوارم) |
| حَتَّى أُفَارِقَ الدُّنْيَا . (١) |
| تردې چې د دې دنيا نه جدا شم (يعنې مړ شم). |

**توضيح**: **سخاوة نفس**: دا دبې نيازۍ نه كنايه ده چې په زړه كې څه غرض نه لري. (المرقات: ۴/۳۵۰).

**اشراف نفس**: دا د حرص نه كنايه ده چې د سيني دننه گويا كې دا د زړه په كتلو كتلو سره حرص او لالچ لري. (المرقات: ۴/۳۵۱).

**لا ارزء**: رَزَءَ يَرْزَءَ فتح د يفتح نه دی. چاته تكليف وركول يا پريشانه كول او په سوال كولو باندې مال اخستل. (المرقات: ۴/۳۵۱).

| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ وَ هُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَذْكُرُ |
|---|
| عبد الله ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم په هغه موقع چې په ممبر ناست وُ او بيان |
| الصَّدَقَةَ وَ التَّعَفُّفَ عَنِ الْمَسْأَلَةِ : الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ |
| يې كولو د صدقې او د سوال نه بچ كيدلو په باره كې نو دا ارشاد يې وفرمايل چې "پاسنی لاس بهتر دی د |
| الْيَدِ السُّفْلَى وَ الْيَد الْعليا هِيَ الْمُنْفِقَةُ وَ الْيَد السُّفلى |
| لاندني لاس نه پاسنی لاس مصرف كونكی (او خلكو له وركونكی) او لاندنی لاس غوښتونكی (يعنې |
| هِيَ السَّائِلَةُ . (٢) |
| د سوال گر) لاس دی. |

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٣/٣٣٥، رقم الحديث ١٤٧٢، ومسلم في صحيحه ٢/٧١٧ رقم الحديث :٥٦-١٠٣٥، والترمذي في السنن ٤/٥٥٣ رقم الحديث ٢٤٦٣، ، وأحمد في المسند ٣/٤٣٤

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ٣/٢٩٤، رقم الحديث ١٤٢٩، ومسلم في صحيحه ٢/٧١٧ رقم الحديث .٩٤-١٠٣٣، وأبوداود في السنن ٢/٢٩٧، رقم الحديث. ١٦٤٨، وأحمد في المسند ٢/٦٧

# د سوال د نه کولو فضیلت

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: إِنَّ أُنَاسًا مِنَ الْأَنْصَارِ سَأَلُوا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو سعید خدري رضي الله عنه وايي چې يو ورځ دانصاريو څو کسانو د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه څه وغوښتل

فَأَعْطَاهُمْ ثُمَّ سَأَلُوهُ فَأَعْطَاهُمْ حَتَّى

نبي عليه السلام هغوی ته ورکړل. هغوی بيا وغوښتل نو نبي عليه السلام بيا هم ورکړل تردې چې د نبي عليه السلام

نَفِدَ مَا عِنْدَهُ . فَقَالَ : مَا يَكُونُ عِنْدِي مِنْ خَيْرٍ

سره څه وُو ټول ختم شول. د هغې نه وروسته نبي عليه السلام وفرمايل ما سره چې څه مال هم وي زه به هغه

فَلَنْ أَدَّخِرَهُ عَنْكُمْ وَ مَنْ يَسْتَعِفَّ يُعِفَّهُ اللهُ وَ مَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللهُ

ستاسو نه ساتم او نه ذخيره کوم (او يا د وساتی) چې که سړي د سوال کولو نه ځان ساتي الله هغه بچ ساتي

وَ مَنْ يَتَصَبَّرْ

او کوم سړي چې بې پرواهي کوي نو الله د هغې نه بې پرواه شي او کوم سړی چې د صبر طلب کونکی وي

يُصَبِّرْهُ اللهُ

نو الله هغې ته صبر ورکوي (يعنې کوم سړی چې د الله نه صبر غواړي نو الله هغې لپاره صبر کول آسان

وَمَا أُعْطِيَ أَحَدٌ عَطَاءً هُوَ خَيْرٌ وَ أَوْسَعُ مِنَ الصَّبْرِ.[1]

کړي او يا وساتی چې) د صبر نه ډير بهتر او پراخه بل هيڅ شی نه دی ورکړی شوی (يعنې د الله په ټولو

ورکړو او بخښش کې صبر د ټولو نه بهتره ورکړه ده).

﴿۹﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِينِي الْعَطَاءَ

عمر بن خطاب رضي الله عنه وايي چې (کله) نبي کريم صلى الله عليه وسلم ماته (د زکوة د وصولولو اجرت) راکولو نو

فَأَقُولُ : أَعْطِهِ أَفْقَرَ إِلَيْهِ مِنِّي . فَقَالَ :

ما به ويل چې دا هغه سړي ته ورکړه چې زمانه ډير محتاج دی نبي عليه السلام (به دې په جواب کې) وويل

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۳۵، رقم الحديث ۱۴۶۹، ومسلم في صحيحه ۲/۷۲۹ رقم الحديث : ۱۲۴-۱۰۵۳، وأبوداود في السنن ۲/۲۹۰، رقم الحديث: ۱۶۴۴، والترمذي في السنن ۴/۳۲۸ رقم الحديث: ۲۰۲۴، وأحمد في المسند ۳/۱۲

خُذْهُ فَتَمَوَّلْهُ

چې (كه ستا ضرورت او حاجت وي نو) دا په خپل مال كې شامل كړه او (كه د حاجت او ضرورت نه ډېر وي

وَ تَصَدَّقْ بِهِ فَمَا جَاءَكَ مِنْ هٰذَا الْمَالِ وَ أَنْتَ غَيْرُ مُشْرِفٍ

نو خپله يې د) خداى په لار كې خيرات كړه (او دا يې هم وويل چې) كوم شى تا ته حاصليږي بغير د طمع

وَلَا سَائِلٍ فَخُذْهُ . وَ مَا لَا

او لالچ او بغير د غوښتلو نه حاصليږي نو هغه قبلوه او كوم شي چې (بغير د طمع او لالچ او د سوال نه)

فَلَا تُتْبِعْهُ نَفْسَكَ .[1]

په لاس نه راځي نو هغې پسې مه كېږه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## كه خامخا سوال كوي نو د حاكم نه يې وكړه

﴿۱۰﴾ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْمَسَائِلُ كُدُوحٌ

سمره ابن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل سوال كول يو زخم دى چې د هغې په

يَكْدَحُ بِهَا الرَّجُلُ وَجْهَهُ

وجه انسان خپله خُله زخمي كوي (يعنې چا ته لاس غوړول خپل عزت او آبرو د خاورو سره خاوري كوي.

فَمَنْ شَاءَ أَبْقَى عَلَى وَجْهِهِ

لكه د خپلي خلي زخمي كولو مترادف دى) او كوم كس چې (خپله آبرو) ببخي ساتل نه غواړي نو هغه (خپل

وَ مَنْ شَاءَ تَرَكَهُ

لاس خلكو ته ونيسي او خپل عزت د خاورو سره خاوري كړي يعنې هغه) ونه ساتي (دا ګويا كې د سوال

إِلَّا أَنْ

كونكي لپاره تهديد او تنبيه ده چې د چا نه سوال كول په كار نه دى) خو (كه خامخا سوال كوي نو بيا د)

(۱) أخرجه البخاري ۳ ۳۳۷، رقم الحديث ۱۴۷۳، ومسلم في صحيحه ۲ ۷۲۳ رقم الحديث ۱۱۰ ۱۰۴۵، وأحمد في المسند ۱۷۱

| يَسْأَلَ الرَّجُلُ ذَا سُلْطَانٍ أَوْ فِي أَمْرٍ لَا يَجِدُ مِنْهُ بُدًّا.[1] |
|---|
| حاکم نه سوال وکړي په داسې صورت کې سوال وکړه چې د هغې لپاره واقعي څه ضرورت او مجبوري وي. |

**توضیح**: **كدوح**: د كدح يكدح فتح يفتح نه د مخ خارښت ته وايي. د خپل لاس په نوک نو باندې خپل مخ ګرولو سره مخ زخمي کولو مراد دی. (المرقات: ۴/۳۵۵).

**ذاسلطان**: د دې نه د ملک لوي حاکم هم مراد کيدی شي او د لوي حاکم واړه حکمرانان مثلاً ګورنر يا وزير يا قاضي هم مراد کيدلی شي. د حديث مطلب دا دی چې که ته خامخا سوال کوي نو بيا کم نه کم د داسې سړي نه يې وکړه چې په هغې ستا حق هم وي او هغه حاکم يا د هغې نائب وي. چې په واک کې يې بيت المال وي او په بيت المال کې د هر مسلمان حق دی که چيرې هغه تا مستحق وګڼي نو در به يې کړي حکمرانانو نه تحفو اخيستلو باره کې د دوه خبرو خيال وساتئ: اوله خبره دا چې که چيرې په بيت المال کې حرام وي نو د هغې نه غوښتل يا د هغې تحفه قبلول حرام دي او که حلال په کې ډير وي نو بيا قبلول جائز دي. دويمه خبره داده چې په تحفې سره د سړي مذهبي ازادي او د حق آوازپه او چتولو باندې اغيز مند نه وي.

**لايجد منه بدا**: يعني سخت حالت کې سوال کول جائز دي خو حاجت په اندازه. (المرقات: ۴/۳۵۵)..

## د مالداره سوال کوونکي د پاره سخت وعيد

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: من سَأَلَ النَّاسَ |
|---|
| عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کوم سړی چې سوال وکړي د |
| وَ لَهُ مَا يُغْنِيهِ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| خلکو نه د داسې شي په شتون کې چې هغه مالداره کونکی وي نو د قيامت په ورځ به د داسې حال کې پيش شي |
| وَ مَسْأَلَتُهُ فِي وَجْهِهِ خُمُوشٌ أَوْ خُدُوشٌ أَوْ كُدُوحٌ . قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا |
| چې د هغې په خله به د سوال د زخمي يا ګريدلی يا کدوح صورت وي و ويل شو چې يا رسول الله! مالداره |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲۸۹/۲، رقم الحديث ۱۶۳۹، والترمذي في السنن ۶۵/۳ رقم الحديث ۶۸۱، والنسائي ۱۰۰/۵ رقم الحديث ۲۵۹۹، وأحمد في المسند ۲۲/۵

يُغْنِيهِ ؟ قَالَ : خَمْسُونَ دِرْهَمًا أَوْ قِيمَتُهَا مِنَ الذَّهَبِ.(۱)

کونکی څه شی دی؟ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې پنځوس درهم د هغې د نرخ سره زر.

**توضيح : خموش:** بضم "خ" د خمش جمعه ده او **خدوش** بضم خ خدش جمعه ده او **كدوح** بضم الكاف د كدح جمعه ده. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ ليکي چې دا ټول الفاظ قريب المعني مترادف الفاظ دي. د ټولو معنی زخم ده نو امکان لري چې د راوي شک شوی وي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې درې الفاظو کې يو لفظ ويلی وُو. خو ځينو علماؤ په دې الفاظو کې داسې فرق بيان کړی دی چې د **خموش** معنی د لرګي نه پوستکی ويستل دي. او د **خدوش** معنی د نوکانو په ذريعې پوستکی ويستل دی او د **كدح** معنی په غاښونو باندې پوستکی ويستل دي. نو د قيامت په ورځ د سوال ګرو احوال د تفاوت په وجه د هغوی دا مختلف احوال وي.

**مايغنيه:** يعني کوم مال چې د دې لپاره کافي وي او سوال کول حرام وُو د دې مقدار څومره دی. نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې په تفسير کې پنځوس درهمه وفرمايل. د دې تفصيل د باب په ابتداء کې تير شوی دی.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ سَأَلَ وَعِنْدَهُ

سهل ابن حنظليه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړي سوال کوي او د ده سره دومره

مَا يُغْنِيهِ فَإِنَّمَا يَسْتَكْثِرُ مِنَ النَّارِ.

مال وي چې دا مالداره کړي خو د دې باوجود هم سوال کوي نو ګويا چې دا اور غواړي (کوم سړي چې بغير د ضرورت او حاجت نه په غوښتلو سره مال غواړي او جمعه کوي يې نو ګويا کې هغه د دوزخ اور جمعه کوي)

قَالَ النُّفَيْلِيُّ . وَ هُوَ أَحَدُ رُوَاتِهِ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ:

نفيلي رَحِمَهُ اللّٰهُ چې د دې حديث په راويانو کې يو دی يو بل ځای کې (يعني يو بل روايت کې) نقل کوي چې

وَمَا الْغِنَى الَّذِي

د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړی شوه چې د مالداره کيدو حد څه دی؟ چې د هغې په شتون کې د

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۲۷۷، رقم الحديث ۱۶۲۶، والترمذي في السنن ۳/۴۰ رقم الحديث: ۶۵۰، والنسائي ۵/۹۷ رقم الحديث ۲۵۹۲، وابن ماجه ۱/۵۸۹ رقم الحديث ۱۸۴۰

لَا يَنْبَغِي مَعَهُ الْمَسْأَلَةُ ؟ قَالَ : قَدْرُ مَا يُغَدِّيهِ وَ يُعَشِّيهِ . وَ قَالَ

خلکو نه غوښتل ممنوع دي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: د سحر او ماښام په قدر. نقل کړي دي نفيلي رَحِمَهُ اللهُ

فِي مَوْضِعٍ آخَرَ : أَنْ يَكُونَ لَهُ شِبَعُ يَوْمٍ أَوْ لَيْلَةٍ وَ يَوْمٍ.(١)

په يو بل ځای کې (يعنې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ جواب داسې) چې دده سره خواړه وي د يو شپې او يو ورځې

(راوي ته شک دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه ورځ فرمايلي ده او که يوه شپه يې فرمايلې ده).

**توضيح : مايغدّيه ويعشيه**: يعنې د سحر او د ماښام په قدر مال موجود وي نو سوال کول حرام دی لکه څنګه چې مخکې تير شوي دې چې د خلکو احوال مختلف کيدلو په وجه په حديثونو کې د مالداره او د فقير په بيان کې فرق راغلی دی. دا څه حقيقي تضاد يا تعارض نه دی. د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت کې د مالداره کيدلو لپاره د پنځوس درهمو ذکر دی. (المرقات :۴/۳۵۷).

امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ، عبد الله ابن مبارک رَحِمَهُ اللهُ او اسحاق بن راهوی رَحِمَهُ اللهُ په همدي روايت باندې عمل کړی دی. او همدغه يې خپل مسلک دی. اما ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د بحث د لاندې د سهل بن حنظلية رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت باندې خپل مسلک قائم کړی دی. ځينو علماؤ د عطاء بن يسار روايت معمول به جوړ کړی دی. چې په هغې کې څلويښت درهمه دي.

﴿١٣﴾ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي أَسَدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

عطاء بن يسار قبيله بن اسد د يو کس نه نقل کوي چې هغه وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو

مَنْ سَأَلَ مِنْكُمْ وَ لَهُ أُوقِيَّةٌ

کې چې يو کس ديو اوقيه (يعنې څلويښت درهمه) يا ددې نرخ (په حساب سره زرا و ديانور څه) مالک وي

أَوْ عَدْلُهَا فَقَدْ سَأَلَ إِلْحَافًا .(١)

او د هغې باوجود يې د خلکو نه غواړي نو هغې ګويا کې بطريق الحال سوال وکړو.

## په اضطراري حالت کې سوال کول جائز دی

﴿١٤﴾ وَعَنْ حُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ

حبشي بن جناده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل سوال کول جائز نه دي د مالداره

(١) أخرجه أبوداود في السنن ٢/٢٨٠، رقم الحديث ١٦٢٩ ، وأحمد في المسند ٤ /١٨٠

(٢) أخرجه أبوداود في السنن ٢/٢٧٨، رقم الحديث ١٦٢٧ ، والنسائي ٥/٩٨ رقم الحديث ٢٥٩٦، وأحمد في المسند ٥/٤٣٠.

| |
|---|
| لِغَنِيٍّ وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ إِلَّا لِذِي فَقْرٍ |
| دپاره اونه د تندرسته او د صحيح الاعضاء لپاره خو د فقير لپاره سوال کول حلال دی لکه (غربت او ولګي |
| مُدْقِعٍ أَوْ غُرْمٍ مُفْظِعٍ |
| په) زمکه راغورځولی دی، د غه شان د قرضداري لپاره هم سوال کول حلال دی چې د روند قرض پرې وي |
| وَ مَنْ سَأَلَ النَّاسَ لِيُثْرِيَ بِهِ مَالَهُ : كَانَ |
| (یاد وساتی) کوم سړی چې فقط د دې لپاره د خلکو نه سوال کوي چې مال او زر يې ډير شي نو وي به |
| خُمُوشًا فِي وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ رَضْفًا يَأْكُلُهُ مِنْ جَهَنَّمَ |
| داسوال په شان د زخم دده په مخ د قيامت په ورځ او د غه شان په دوزخ کې به ګرم کاڼړي دده خواړه جوړ شي |
| فَمَنْ شَاءَ فَلْيُقِلَّ وَ مَنْ شَاءَ فَلْيُكْثِرْ ".[1] |
| اوس که څوک لږ سوال کوي او که څوک ډير سوال کوي. |

**توضيح** : **مِرَّة**: قوت او طاقت ته وايي. مراد دا دی چې د بيماری نه خالي وي. (المرقات :۴/۳۵۸).

**سوی**: يعنې په اندامونو روغ وي. (المرقات :۴/۳۵۸).

**مدقع**: د باب **افعال** نه دی **دقعاء** خاوري ته وايي يعنې دومره ډير فقير وي چې غربت هغه په زمکه راغورځولی وي. (المرقات :۴/۳۵۸).

**غرم**: يعنې قرضداري وي. (المرقات :۴/۳۵۸).

**مفظع**: تباه کونکی قرض. (المرقات :۴/۳۵۸).

**يثری**: **ای ليکثر ماله** يعنې د ذخيره کولو او د مال د ډيرولو لپاره سوال کوي. (المرقات :۴/۳۵۸).

**رضفا**: را باندې **فتحه** ده **ض** ساکن دی. هغه کاڼړي چې ښه ډير ګرم کړی شوی وي يعنې ګرم کاڼړي به خوري. (المرقات :۴/۳۵۸).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۳، رقم الحديث ۶۵۳.

## په خپل لاس ګټونکي مال کې برکت دی

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) دانصارو نه يو كس دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضر شو او د

يَسْأَلُهُ فَقَالَ : أَمَا فِي بَيْتِكَ شَيْءٌ ؟ قَالَ

يو شي سوال يې وكړو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وويل چې آيا ستا په كور كې هيڅ نشته ؟ ده وويل چې

بَلَى حِلْسٌ نَلْبَسُ بَعْضَهُ وَ نَبْسُطُ بَعْضَهُ وَ قَعْبٌ

صرف يوه ډبله كمبله ده چې څه برخه يې په ځان خوروم او څه د ځان نه لاندې خوروم ددې نه بغير يوه پياله

نَشْرَبُ فِيهِ مِنَ الْمَاءِ . قَالَ : ائْتِنِي بِهِمَا قَالَ فَأَتَاهُ بِهِمَا

هم ده چې هغې كې او به څكم نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمايل هغه دواړه راوړه. دواړه شيان يې راوړل نبي

فَأَخَذَهُمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِيَدِهِ وَ قَالَ : مَنْ يَشْتَرِي هٰذَيْنِ ؟

عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام ته نبي عَلَيْهِ السَّلَام دواړه شيان لاس كې واخستل او وې فرمايل چې دا شيان به څوك واخلي؟

قَالَ رَجُلٌ أَنَا آخُذُهُمَا بِدِرْهَمٍ قَالَ :

يو كس وويل چې "زه دا دواړه شيان په يو درهم باندې اخستلو ته تيار يم. نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل دا شيان

مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ ؟ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا قَالَ رَجُلٌ أَنَا آخُذُهُمَا

به ديو درهم په ډيرو باندې اخستونكى څوك دى؟ دايې دوه درې ځل وويل يو كس وويل چې زه دا دواړه

بِدِرْهَمَيْنِ فَأَعْطَاهُمَا إِيَّاهُ وَ أَخَذَ الدِّرْهَمَيْنِ فَأَعْطَاهُمَا الْأَنْصَارِيَّ

شيان په دوه درهمو اخلم نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا دواړه شيان دې كس ته وركړل او وريې كړل دوه درهمه هغه انصاري

وَ قَالَ : اشْتَرِ بِأَحَدِهِمَا طَعَامًا فَانْبِذْهُ إِلَى أَهْلِكَ

ته او ورته وې وويل چې دې كې (يو درهم باندې د) خوراك (سامان) واخله او كور والا ته يې وركړه او

وَ اشْتَرِ بِالْآخَرِ قَدُومًا فَأْتِنِي بِهِ .

بل درهم باندې تبرګى واخله او ماته يې راوړه هغه كس تبرګى واخيستو او نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته يې راوړو. نبي

فَأَتَاهُ بِهِ فَشَدَّ فِيهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عُودًا بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ لَهُ

عَلَيْهِ السَّلَام په هغې باندې په خپل لاس مبارك سره مضبوط لرګى ولګولو او بيا يې ورته وويل چې (دا

اذْهَبْ فَاحْتَطِبْ وَ بِعْ وَلَا أُرَيَنَّكَ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا .

واخله او) لاړ شه لرګي (مات کړه او) جمع یې کړه او خرڅ یې کړه او زه دې ونه ګورم دلته د پنځلس ورځو

فَذَهَبَ الرَّجُلُ

پورې (یعني اوس دلته مه ایسارېږه خپل کار کې ځان مشغول کړه او خوارۍ کوه) نو هغه کس لاړو او

يَحْتَطِبُ وَ يَبِيعُ فجَاءَهُ

لرګي به یې جمع کول او خرڅول به یې (څه ورځي وروسته) کله چې هغه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خوا ته راغلو نو د

وَ قَدْ أَصَابَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فَاشْتَرَى بِبَعْضِهَا ثَوْبًا وَ بِبَعْضِهَا طَعَامًا

لس درهمو مالک ؤ نو هغه درهمو کې یې په څه باندې ټوټه واخستله او څه باندې یې غله واخستله. نبي

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : هٰذَا خَيْرٌ لَكَ مِنْ

عَلَيْهِ السَّلَامُ (دده حالت بدلیدو باندې) وفرمایل چې دا صورت حال ستا لپاره بهتر دی په نسبت د هغه شي

أَنْ تَجِيءَ الْمَسْأَلَةُ نُكْتَةً فِي وَجْهِكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

چې (سبا) د قیامت په ورځ ته په داسي حال کې راشي چې سوال ستا په مخ باندې بدي نښاني (یعني

إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَصْلُحُ إِلَّا لِثَلَاثَةٍ

زخم د) په صورت کې وي. او (دا خبره یاد ؤساته چې) فقط د درې قسمه خلکو سوال کول مناسب دی:

لِذِي فَقْرٍ مُدْقِعٍ أَوْ لِذِي غُرْمٍ

یو د هغه محتاج لپاره چې مفلسۍ هغه په زمکه راغور ځولی وي دویم د هغه قرضداري لپاره چې دروند او

مُفْظِعٍ أَوْ لِذِي دَمٍ مُوجِعٍ . وَرَوَى ابن ماجه إلى قوله: يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1]

ذلیلونکي قرض لاندې کړی وي او دریم د وینې خاوند ته چې کوم درد رسیدلی دی.

**توضیح**: حلس: ټاټ ته وایي دلته د بل څادر ته ویل شوی دی حا باندې کسره ده. (المرقات: ۴/۳۵۹).

**قعب**: پیالي ته وایي قاف باندې فتحه ده.

**من یشتري هذین**: بیع بالمزایدہ لپاره یعني د نیلام او بولۍ لپاره دا حدیث اصل دی. (المرقات

(۱) أخرجه أبو داود في [illegible] ۱۶۴۱ رقم [illegible] حديث ۲۱۹۸، وأحمد في المسند ۳/۱۱۴

(۴/۳۵۹).

**قدوما:** قاف باندې فتحه ده تبرکي او تيشي ته وايي. (المرقات: ۴/۳۵۹).

**نکتة:** ای علمة قبيحة بدښکاريدونکی او رسوا کونکی داغ به وي. (المرقات: ۴/۳۶۰).

**لذي غرم:** قرض ته هم وايي او د څه مشکل په وجه تاوان برداشت کولو ته هم وايي (المرقات ۴/۳۶۰)

**مفظع:** ای ثقيل قبيح يعنې تباه کونکی قرض.

**دم موجع:** يعنې چا مړی کړی وي. د هغې ديت يې په خپله غاړه اخستی وي او هغه نشي پوره کولی. چې د دې په وجه تکليف کې وي نو هغه سوال کولی شي چې د ديت روپۍ خلاصي کړي. **موجع** د وجع نه د درد په معنی کې دی.

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: مَنْ أَصَابَتْهُ |
| ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې: نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم کس چې راګير وي په ولګي |
| فَاقَةٌ فَأَنْزَلَهَا بِالنَّاسِ |
| (يعنې سخت حاجت) کې او د خلکو مخکې (د شکايت په توګه يې) بيان کړي او د خپل حاجت د پوره کولو |
| لَمْ تُسَدَّ فَاقَتُهُ. وَ مَنْ أَنْزَلَهَا بِاللهِ |
| خواهش وکړي نو د هغې حاجت به نه پوره کولی کېږي او کوم کس چې الله ته خپل حاجت بيان کړو نو الله به |
| أَوْشَكَ اللهُ لَهُ بِالْغِنٰى إِمَّا بِمَوْتٍ عَاجِلٍ |
| ورته زر فايده او اطمينان ورکړي په داسې صورت کې چې يا به ورته مرګ ورکړي (چې د دنيا د مشقتونو |
| أَوْ غِنًى آجِلٍ.[1] |
| او تکليفونو نه خلاص شي او د خدای رحمت و مومې) يا به يې د څه ورځو لپاره مالداره کړي (چې خپل |
| حاجت پوره کړي او اطمينان حاصل کړي). |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۲۹۶، رقم الحديث: ۱۶۴۵، والترمذي في السنن ۴/۴۸۷ رقم الحديث: ۲۳۲۶، وأحمد في المسند ۱/۴۰۷.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د مجبورۍ په وخت کې د صالحینو نه سوال کول

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ عَنِ ابْنِ الْفِرَاسِيِّ أَنَّ الْفِرَاسِيَّ قَالَ : قُلْتُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابن فراسی رَحِمَهُ الله وايي چې (زما پلار مکرم) فراس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو چې : |
| أَسْأَلُ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا |
| يارسول الله! آيازه د خلکو نه سوال کولې شم؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې نه (بلکې هر حاجت کې |
| وَ إِنْ كُنْتَ لَابُدَّ فَسَلِ الصَّالِحِيْنَ .[1] |
| په خداى يقين ساته) خو که (د ډير سخت حاجت په وجه يې) وغواړې نو بيا يې د نيک بختو نه وغواړه. |

**توضيح : الصالحين:** د دې نه نيک صالح او خيرخواه خلک مراد دي. چې که څوک مجبوره شوى وي نو د مجبورۍ په وجه د نيکانو خلکو نه او غواړه. دې کې فايده دا ده چې نيک سړي به دا سائل رسوا نه کړي او په حلال عايد به د دې سره مرسته وکړي. دويمه فاديه دا ده چې هغه به مسلسل د دې مجبورۍ د وسعت لپاره دعا کوي. ملاعلى قارى رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې د بغداد ټولو فقيرانو به د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله نه سوال کولو. د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله دا حالت ؤو چې د محتاجه خلکو لپاره به د هغوى د سهولت لپاره د هغوى د کورونو دروازو مخې ته اوده کيدلو. (المرقات : ۴/۳۶۲).

## په نيکۍ کولو باندې اجرت اخستل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ السَّاعِدِيِّ أَنَّهُ قَالَ : اِسْتَعْمَلَنِيْ عُمَرُ عَلَى الصَّدَقَةِ |
| ابن ساعدى وايي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زه د زکوة وصولولو لپاره مقرر کړم. نو کله چې زه فارغ |
| فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنْهَا وَ أَدَّيْتُهَا إِلَيْهِ أَمَرَ لِيْ |
| شوم د زکوة وصولولو نه او د زکوة مال مې عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راورسولو. نو ده حکم وکړو ماته د زکوة |
| بِعُمَالَةٍ فَقُلْتُ إِنَّمَا عَمِلْتُ لِلّٰهِ |
| د وصولولو د اجرت، ماورته وويل چې ما دا کار فقط د الله (د رضا او د خوشحالۍ) لپاره کړى دي لهذا زما |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۰۰، رقم الحديث ۱۶۴۶ ، والنسائي ۹۵/۵ رقم الحديث :۲۵۸۷، وأحمد في المسند ۳۳۴/۴.

| |
|---|
| وَ أَجْرِي عَلَى اللهِ قَالَ خُذْ مَا أُعْطِيتَ |
| لپاره د دې ثواب د الله په ذمه دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمایل چې قبلوه هغه شي کوم چې تاته درکول |
| فَإِنِّي قَدْ عَمِلْتُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| کېږي ځکه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې ما د زکوة د وصولولو کار وکړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته د |
| فَعَمَّلَنِي فَقُلْتُ مِثْلَ قَوْلِكَ فَقَالَ لِيْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا أُعْطِيتَ |
| هغې اجرت راکولونو ما هم دغه عرض کړی ؤ کوم او س چې ته کوی نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل چې درکړل |
| شَيْئًا مِنْ غَيْرِ أَنْ تَسْأَلَهُ فَكُلْ |
| شي یو شي تاته بغیر د طلب کولو (او بغیر د طمع) نه نو هغه واخله او وخوره او (کوم شي چې ستا د حاجت او |
| وَ تَصَدَّقْ.[1] |
| ضرورت نه زیات وي نو) هغه د خدای لاره کې خیرات کړه. |

## په مقدسو ځایونو کې سوال کول منع دي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ يَوْمَ عَرَفَةَ رَجُلًا يَسْأَلُ النَّاسَ |
| د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې ده د عرفې په ورځ یو کس د خلکو نه په سوال کولو باندې ولیدو |
| فَقَالَ : أَفِي هٰذَا الْيَوْمِ : وَ فِي هٰذَا الْمَكَانِ تَسْأَلُ مِنْ غَيْرِ اللهِ ؟ |
| نو هغه ته یې وویل چې (بد نصیبه) نن ورځ او په دې ځای کې ته د خدای نه بغیر د نورو خلکو نه سوال کوې |
| فَخَفَقَهُ بِالدِّرَّةِ.[2] |
| بیا یې هغه کس په کوړه باندې ووهلو. |

**توضیح : فخفقه بالدّرّة: خفق** وهلو ته وایي. **درة** کې دال باندې شد او کسره ده را باندې هم شد دی. کوړې ته وایي. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه کس ځکه په کوړه باندې ووهلو چې هغه بې همته په میدانِ عرفات کې د الله پر ځای د خلکو نه غوښتل شروع کړل.

د دې نه معلومه شوه چې حرمین شریفین او جوماتونو او مقدس ځایو کې فقط د الله نه سوال کول په کار

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۲۹۶، رقم الحديث . ۱٦٤٧

(۲) رواه رزين.

دي. د دعا د قبلیدو په وخت کې د غیر الله نه غوښتل څومره بده خبره ده. (المرقات: ۳۶۴/۴).

ملاعلي قاري رحمه الله وايي چې شيخ بهاؤ الدين نقشبندي رحمه الله حج ته لاړو. چا ترې نه پوښتنه وکړه چې د حج په سفر کې دې کومه عجيبه خبره وليده؟ ورته يې وويل چې ما په منی کې يو ځوان وليدو چې اخيستل او خرڅول يې کول خو مسلسل د الله په ياد او ذکر کې مشغول و، يوه لحظه د الله نه غافل نه و. بيا ما بيت الله کې د ملتزم سره پيوسته يو لوي عالم فاضل وليدو چې هلته يې د دنيا سوال کولو. (المرقات ۴/۳۶۴).

بنده يو قاري صاحب وليدو چې هر کال حج او عمري ته ځي. نوي مسلمان سړی دی هغه وايي چې ما يو ځل ملتزم د پاسه لاس کيخودو او د مجبوري په وجه مې د الله نه نسوار وغوښتل. نو ما وليده چې دوه پوني زما په دواړه لاسونو کې راوليدلي ما هغه استعمال کړي او څه مې بزرګانو ته ورکړي.

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : تَعَلَّمُنَّ أَيُّهَا النَّاسُ! |
| دعمر فاروق رضي الله عنه باره کې منقول دي چې (خلک يې مخاطب کړل او) وي ويل چې ای خلکو! پوهه شی. |
| أَنَّ الطَّمَعَ فَقْرٌ وَ أَنَّ الْإِيَاسَ غِنًى وَ أَنَّ الْمَرْءَ إِذَا يَئِسَ عَنْ شَيْءٍ اِسْتَغْنَى |
| طمع محتاجي ده او د سړو نا اميدي بې پرواهي ده انسان چې کله د يو شي نه نااميده شي نو بې پرو د شي |
| عَنْهُ . رواه رزين |
| ددې شي نه. |

## سوال نه کوونکو ته زيرې

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ يَكْفُلُ لِيْ |
| ثوبان رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم سړی چې ما سره په دې خبره وعده وکړي |
| أَنْ لَا يَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا فَأَتَكَفَّلَ لَهُ بِالْجَنَّةِ ؟ فَقَالَ ثَوْبَانُ : |
| چې خلکو ته به لاس نه غوړوي نو د قيامت په ورځ به د هغې د جنت ذمه وار يم (ثوبان رضي الله عنه وايي چې) |
| أَنَا فَكَانَ لَا يَسْأَلُ أَحَدًا شَيْئًا. [1] |
| ما وعده وکړه چې زه به (کله هم) چاته لاس نه غوړم نو ثوبان رضي الله عنه به چاته لاس نه غوړولو (اګر که څومره به هم په تنګدستی کې راګير شوم). |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۲۹۵، رقم الحديث ۱۶۴۳، وأحمد في المسند ۵/۲۷۵

| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: دَعَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَشْتَرِطُ عَلَيَّ: |
| --- |
| ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه واغوښتلم او دې خبره باندې راباندې اقرار وکړو چې |
| أَنْ لَا تَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: |
| (کله به هم) د چانه څه شی نه غواړم. نو ما د دې خبرې اقرار وکړو. بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| وَلَا سَوْطَكَ إِنْ سَقَطَ مِنْكَ |
| چې کچرې ستا کوړه ولوېږی نو د چانه یې مه غواړه (یعنې چاته یې دراواوچتولو لپاره مه وایه) بلکې په |
| حَتَّى تَنْزِلَ إِلَيْهِ فَتَأْخُذَهُ.[1] |
| خپله د سورلی نه کوز شه او هغه را اوچت کړه. |

**توضیح: وهو یشترط علی:** حالت اضطراري کې ژوند بچ کولو لپاره سوال کول او ژوند بچ کول ضروري دی. پاس دواړه حدیثونو کې چې د سوال نه کولو کومه خبره شوي ده دا د حال اضطراري نه بغیر صورت دی. حالت اضطراري کې خو **"الضرورات تُبِيحُ المحظورات"** باندې به عمل کېږي. او د ژوند بچ کولو حد پورې به غوښتنه کېږي. د ذخیره کولو لپاره به نه وي. (المرقات: ۴/۳۶۵).



(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱۸۱/۵.

# باب الانفاق و کراهیة الامساك

## د مصرف کولو او د بخل نه کولو بیان

قال الله تعالی: ﴿وَأَنفِقُوا مِن مَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَا أَخَّرْتَنِي إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ الصَّالِحِينَ﴾ (سورة المنافقون آیت: ۱۰).

اسلام انسان ته اعلی اخلاق ښائی. او هر مسلمان د اعلی معیار انسان جوړول غواړي. د همغه ښو اخلاقو نه دا دي چې یو باسوده انسان د بل غم زده انسان همدردي او مرسته وکړي او د وسعت او راحت په وخت کې خپل مصیبت زده ورور هیر نه کړي. د اسراف نه ځان وساتي او د حق په لاره کې د انصاف لمن د لاسه ورنه کړي. نه دا سي بخیل شي چې مخلوق ترې نه کرکه وکړي او نه دومره اسراف کونکی شي چې خالق ترې نه ناراضه شي.

دلته په خبره ښه ځان پوه کړی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د انفاق فی سبیل الله او خپل ځان باندې د مصرف کولو باره کې یو معیار د خپل ځان او د خپل اهل بیت لپاره جوړ کړی ؤ. او یو معیار یې د امت د عامو خلکو لپاره وضع کړی دی. هر مسلمان ته په کار ده چې همغه په دې کې فرق وکړي. کوم معیار چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ځان لپاره مقرر کړی دی په هغې کې د تللو کوشش و نه کړي بلکې د خپل معیار پابندي وکړي. تفصیل را روان دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَوْ كَانَ لِي مِثْلُ أُحُدٍ ذَهَبًا |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: که ما سره د احد په اندازه سره زر هم وی نو |
| لَسَرَّنِي أَنْ لَا يَمُرَّ عَلَيَّ ثَلَاثُ لَيَالٍ وَ عِنْدِي مِنْهُ شَيْءٌ إِلَّا شَيْءٌ |
| ما به دا نه وی خوښه کړې چې درې شپې تیرې شي او هغه ټول سره زر او یا د هغې څه برخه بغیر د قرض د ادا |
| أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ. (۱) |
| کولو لپاره زما سره موجود وي. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٥ ٥٥، رقم الحديث ٢٣٨٩، ومسلم في صحيحه ٢ ١٨٧ رقم الحديث ٣١ ٩٩١، وابن ماجه ٢ ١٣٨٢ رقم الحديث ٤١٣٢، وأحمد في المسند ٢ ٢٥٦

## د سخي د پاره د فرښتو دعاء او د بخيل د پاره د فرښتو بد دعاء

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هره ورځ د سهر په وخت کې دوه |
| إِلَّا مَلَكَانِ يَنْزِلَانِ فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا : اللَّهُمَّ أَعْطِ |
| فرښتې راکوزيږي هغې کې يوه فرښته نو (د سخي لپاره) دا دعا کوي چې الله دې مصرف کونکو ته بدله |
| ورکړي (يعنې کوم کس چې خپل مال مصرفوي هغې له دې ډيره بدله ورکړي چې په دنيا کې ورته د |
| مُنْفِقًا خَلَفًا وَ يَقُولُ الْآخَرُ : |
| مصرف کولو نه ډير مال ورکړي يا په آخرت کې ورله بدله ورکړي) او دويمه فرښته (د بخيل لپاره) دا خيره |
| اللَّهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا. (۱) |
| کوي چې اى الله! بخيل ته تلف (نقصان) ورکړي (يعنې کوم کس چې مال او دولت جمعه کوي او جائز |
| ځاي کې يې نه مصرفوي بلکې بې ځايه کې مصرفوي نو د هغې مال ضايع کړي). |

**توضيح: منفقا: "اى من محله في محله"** يعنې په صحيح طريقه يې وګټلو او صحيح ځاي کې يې مصرف کړو.

**خلفا: "اى عوضا في الدنيا و بدلا في العقبى"** يعنې په دنيا کې ورله بدله ورکړي او په آخرت کې د هغې ثواب ورکړي. (المرقات: ۴/۳۶۶).

**ممسكا: اى من خيرة لغيره.** يعنې په ظاهر تو ګه د هغه مال برباد کړي يا په معنوي باطني سره هلاک کړي. چې په دې کې هيڅ برکت پاتې نه شي. دا د فرښتو دعاء او ښيرې دي، نو هر انسان ته سوچ کول په کار دي. ښه په زور فکر سره دې سوچ وکړي چې هغه د کومې دعا مستحق جوړيږي. په دې حديث کې د قرآن کريم دې آيت ته اشاره ده: **(وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ) (سورة سبا: ۳۹)**.

**تَلَفًا: اى هلاک المال حسًا او معنًى.**

---

۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۰۴، رقم الحديث ۱۴۴۲، ومسلم في صحيحه ۲/۷۰۰ رقم الحديث ۵۷-۱۰۱۰، واحمد في المسند ۳/۲

## د سخاوت فائده

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَنْفِقِي وَلَا تُحْصِي |
| اسماء رضي الله عنها وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته وويل چې خپل مال مصرفوه او دامه شميره چې څومره |
| فَيُحْصِيَ اللهُ عَلَيْكِ |
| مصرف كړم او څه مصرف كړم ګيني الله به ستا باره كې شميرو كړي او كوم مال چې ستا د ضرورت نه ډيروي |
| وَلَا تُوعِي فَيُوعِيَ اللهُ عَلَيْكِ |
| هغه د حاجت مندو نه مه حصاروه كه نه وي الله به خپله وركړه ستا نه حصاره كړي. او چې څومره دې په |
| ارْضَخِي مَا اسْتَطَعْتِ. [1] |
| وس كې وي د الله په لاره كې مصرف كوه. |

**توضيح**: **ولاتحصي**: يعني د الله په رضا يې مصرف كړه او ځان سره يې د شميرولو لپاره مه پرېږده. ځكه الله به هم د شمير معامله درسره شروع كړي. د دې لفظ دويم مطلب دا دى چې د مصرف كولو په وخت كې شمير مه كوى، چې ما دومره مصرف كړل. ته به دا خيال كوي چې ما ډير مصرف وكړو خو بيا به د مصرف كولو نه منع شي. نو الله به هم خپله وركړه په تا باندې بنده كړي. دا معني د حديث د دواړو جملو لپاره ډيره مناسب ده. (المرقات: ۴/۳۶۶).

**ولا توعي**: دا د باب **افعال** نه دى. **ايعاء** د محفوظ كولو په معنى كې دى. چې هر يو شي په لوخي كې كيخودى شي چې محفوظ وي. يو حديث كې د "يُوكِي" الفاظ راغلي دي. يعني يوه بوجۍ كې يې كېږدي او پړې پسي وتړي ګيني الله به هم داسي درسره وكړي. مطلب دا چې د وسعت په مطابق مال د فقير نه مه منع كوى، ګيني الله به د نورې وركړې دروازه در باندې بنده كړي. (المرقات: ۴/۳۶۶).

**ارضخي**: **رضخ** ورې تحفې ته وايي يعني څومره چې دې په اوس كې وي نو مصرف كوه اګر كه معمولى شئ ولې نه وي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵ ۲۱۷، رقم الحديث ۲۵۹۱، ومسلم في صحيحه ۷۱۳/۲ رقم الحديث ۸۸-۱۰۲۹، وأحمد في المسند ۳۵۴/۶.

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَالَ اللهُ تَعَالَى: أَنْفِقْ يَا ابْنَ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې الله وايي: اى د آم ځويه ته مصرف |
| آدَمَ أُنْفِقْ عَلَيْكَ". [1] |
| کوه زه به په تا باندې مصرف کوم. |
| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا ابْنَ آدَمَ |
| ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اى دآدم اولاده! چې کوم مال ستاد |
| إِنْ تَبْذُلِ الْفَضْلَ خَيْرٌ لَكَ |
| ضرورت نه زيات وي هغه (د خداى د رضا لپاره) مصرف کړه. ستا لپاره (به دنيا او آخرت کې) بهتر وي. |
| وَ إِنْ تُمْسِكْهُ شَرٌّ لَكَ وَلَا |
| اودا منع کول (يعنې نه مصرفول) د الله په نزد هم او د بنده ګانو (په نزد هم) ستا لپاره بد ده او نشته هيڅ |
| تُلَامُ عَلَى كَفَافٍ |
| ملاميتا د کفايت په اندازه مال باندې او (کوم مال چې ستا د حاجت نه ډير وي د هغې د مصرفولو په |
| وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ. [1] |
| سلسله کې د) خپل اهل و عيال نه شروع کوه. |

**توضيح: ولا تلام على كفاف:** يعنې ژوند د بقاء لپاره د حاجت په قدر مال جمعه کولو باندې هيڅ ملامتيا نشته دى. مطلب دا دى چې د ژوند د بقاء څه جمعه کول منع نه دى. دې کې کتل دا دې چې د هر سړي حالت جلا وي نو ټول کسان به د خپل خپل احوالو مطابق د ژوند د بقاء لپاره مال ساتلو کې څه باک نشته دى. (المرقات: ۴/۳۶۸).

**وابدأ بمن تعول:** يعنې مصرف کولو کې هغه خلک مخکې کول په کار دې چې د چا په کفالت کې وي لکه ښځه او ماشومان. دا ښه خبره نه ده چې خپل اهل و عيال محتاجه او فقيران وي او دا سړى يې په

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٤٩٧/٩، رقم الحديث ٥٣٥٢، ومسلم في صحيحه ٦٩٠/٢ رقم الحديث ٣٦ ٩٩٣. وأحمد في المسند ٢٤٢/٢.

(١) أخرجه مسلم في صحيحه ٧١٨/٢ رقم الحديث ٩٧ ١٠٣٦

نورو باندې مصرفوي. (المرقات :۴/۳۶۸).

## د كنجوس او د سخي مثال

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَثَلُ الْبَخِيلِ وَالْمُتَصَدِّقِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: بخيل او د صدقه كونكي مثال د دا سي |
| كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُنَّتَانِ مِنْ حَدِيدٍ |
| دوه كسانو په شان دى چې د هغوى په بدن باندې د او سپنې زغري وي او (د هغه زغرو نه د تنگيدلو په |
| قَدِ اضْطُرَّتْ أَيْدِيهِمَا إِلَى ثُدِيِّهِمَا وَ تَرَاقِيهِمَا فَجَعَلَ الْمُتَصَدِّقُ |
| وجه) د دواړو لاسونه د سينې او څټ دا ړخ سره پيوسته وي نو صدقه كونكى چې د صدقې كولو اراده كوي |
| كُلَّمَا تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ اِنْبَسَطَتْ عَنْهُ وَ جَعَلَ الْبَخِيلُ كُلَّمَا هَمَّ بِصَدَقَةٍ قَلَصَتْ |
| نو د هغه زغره پرانيستلې شي او كله چې بخيل د صدقې كولو اراده كوي نو د هغه د زغري كړۍ نورې هم تنگې |
| وَ أَخَذَتْ كُلُّ حلقة بِمَكَانِهَا. [1] |
| شي. او خپل ځاې باندې د يو بل سره ملاؤ شي. |

**توضيح: مثل البخيل والمتصدق:** د دې حديث مطلب دا دى چې كله سخي سړى د الله د رضا لپاره د مال مصرفونو اراده وكړي نو د الله توفيق او مرسته هغې سره شامله شي. نو د هغې سينه د صدقې لپاره فراخه شي. نو بنه ډيره صدقه وركړي. گوياكې هغه د كنجوس د زغري كړۍ پرانيستلې او ازاد شو او صدقه يې وكړه. د دې برعكس چې كله يو كنجوس سړي د صدقې كولو اراده وكړي. نو دا چې د هغې په زړه كې جذبه رېښتني نه وي نو د صدقې اراده كولو سره د هغې سينه نوره هم تنگه شي. او د صدقه كولو نه يې لاس او د رېږي. نو ځكه هغه صدقه ورنه كړي. گوياكې د كنجوسي د زغري كړۍ دا كس ماتي نه كړى شوي. بلكې هغه كړي د هغې په بدن كې نور ورخخي شوي. او داس سړى د صدقې د خير نه محرومه شو.

**جنتان:** دا تثنيه ده د دې مفرد **جنة** دى زغري ته وايي په **جيم** باندې **ضمه** ده. (المرقات :۴/۳۶۸).

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۳ د ۳۰۵. رقم الحديث ۱۴۴۳، ومسلم في صحيحه ۲ ۷۰۸ رقم الحديث ۷۵۰ ۱۰۲۱، وأحمد في المسند ۲۸۹ ۱

## الله تعالى ظالم او کنجوس قومونه تباه کړي دي

﴿۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اتَّقُوا الظُّلْمَ فَإِنَّ الظُّلْمَ ظُلُمَاتٌ

جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "ظلم نه ځان وساتئ ځکه ظلم د اسبب د تيارو

يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ اتَّقُوا الشُّحَّ فَإِنَّ الشُّحَّ أَهْلَكَ

دی د قيامت په ورځ (چې ظالم به په کې سرګردانه ګرځي) او د بخل نه ځان وساتئ ځکه بخل هغه خلک هلاک

مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ: حَمَلَهُمْ عَلَى أَنْ سَفَكُوا دِمَاءَهُمْ وَاسْتَحَلُّوا مَحَارِمهمْ". [1]

کړي دي چې ستاسو نه مخکې تير شوي دي. د بخل په وجه يې مرګونه وکړل او حرام يې حلال کړل.

﴿۸﴾ وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَصَدَّقُوا

حارث ابن وهب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د خدای د رضا لپاره خپل مال مصرف

فَإِنَّهُ يَأْتِي عَلَيْكُمْ زَمَانٌ يَمْشِي الرَّجُلُ بِصَدَقَتِهِ

کړئ ځکه په ژوند کې به يو داسې زمانه هم راشي چې يو سړي د صدقې مال با هر را او باسي خو داسې کس

فَلَا يَجِدُ مَنْ يَقْبَلُهَا يَقُولُ الرَّجُلُ: لَوْ جِئْتَ بِهَا بِالْأَمْسِ

به ونه مومي چې د هغه صدقه قبوله کړي بلکې هر سړی به دا وايي چې که د صدقې دا مال دې پرون راوړی

لَقَبِلْتُهَا فَأَمَّا الْيَوْمَ فَلَا حَاجَةَ لِي بِهَا". [2]

وي نو ما به اخستی وی. نن خو زما ديته حاجت او ضرورت نشته دی.

**توضيح: تصدقوا:** يعنې د خدای شکر ادا کړي چې اوس صدقه اخستونکي شته دی. بهترين مصارفين موجود دي. په دې کې تاسو د الله رضا په خوشحالئ سره ترلاسه کولی شئ. هغه وخت به څه کوئ چې تاسو به د صدقې ورکولو کوشش کوئ خو موقع او محل به نوي. خلکو کې به يو کس هم صدقه نه قبلوي. د دې وجه به دا وي چې يا به ټول خلک مالداره شي يا به د زړه نه داسې مالداره شي چې د مال ميلان به يې په زړونو کې نه وي. علماو ليکلي دي چې د دې نه د حضرت مهدي رَحِمَهُ اللَّهُ د ظهور طرف ته اشاره ده. (المرقات: ۴/۳۷۰).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٤ ١٩٩٦ رقم الحديث ٥٦ ٢٥١١، وأحمد في المسند ٣ ٣٢٣

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ٣ ٢٨١، رقم الحديث ١٤١١، ومسلم في صحيحه ٢ ٧٠٠ رقم الحديث ٥٨ ١٠١١، وأحمد في المسند ٤ ٣٠٦

## د مرګ نه مخکې د صدقې ډير لوي اجر دی

| |
|---|
| ﴿٩﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَجُلٌ : يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الصَّدَقَةِ أَعْظَمُ أَجْرًا ؟ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې يو کس وويل چې يا رسول الله! د ثواب په اعتبار کومه يوه لويه صدقه ده؟ |
| قَالَ : " أَنْ تَصَدَّقَ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل (افضله صدقه هغه ده چې) ته د خدای په لاره کې هغه مال مصرف کړې |
| وَ أَنْتَ صَحِيحٌ شَحِيحٌ تَخْشَى الْفَقْرَ وَ تَأْمُلُ الْغِنَى |
| چې ته تندرسته يې او د مال د جمعه کولو حرص لرې فقر او ولګې نه ويرېږې او د دولت د حصول اميدوار |
| وَلَا تُمْهِلَ حَتَّى إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ قُلْتَ : |
| يې (يادساته د خيرات په معامله کې) تاخير مه کوه تر دې چې مرګ ستا تالو ته راورسېږي او ته داوېنا شروع |
| لِفُلَانٍ كَذَا وَ لِفُلَانٍ كَذَا وَ قَدْ كَانَ لِفُلَانٍ . [1] |
| کړې چې دومره د فلاني لپاره دی او دومره مال د فلاني لپاره دی حال دا چې دا مال د فلاني دی. |

**توضيح : وانت صحيح شحيح**: يعنې د ټولو غوره صدقه هغه ده چې هغه ته په داسې حال کې صدقه کړې چې کله ته تندرسته يې او بنه بخيل يې. مطلب دا دی چې د صحت مند سړي د لويې عمر اميد وي او د لوي او اوږد عمر په اميد کې د مال جمعه کولو باندې بنه حريص شي. داسې حالت کې مصرف کول د ډير اجر سبب دی.

**وتخشى الفقر**: يعنې شيطان د هر وخت فقر. ولګې او مجتاجۍ نه ويرول کوي او نفس هم وسوسه اچوي نو داسې حالت کې هم مصرف کول د لوي ثواب سبب دی. دا جمله "**خبر بعد خبر**" هم کيدی شي او دا حال هم کيدی شي. (المرقات : ۴/۳۷۰).

**وتأمل الغنى**: **ميم** مضموم دی. **ای تطمع وترجو** يعنې د زړه نه د مالداره کيدو او مالداره پاتې کيدل غواړې داسې حالت کې مصرف کول هم د لوي اجر سبب دی. (المرقات : ۴/۳۷۱).

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٣/ ٢٨٤، رقم الحديث ١٤١٩، ومسلم في صحيحه ٢/ ٧١٦ رقم الحديث ٩٢ - ١٠٣٢، وأحمد في المسند ٢/ ٢٣١

**ولا تمهل:** دا په ماقبل باندې عطف دی او مستقل کلام دی چې صدقه دا سې مؤخر کوی چې مرګ رانږدې شي نو هلته بیا هوش کې راشي چې د مرګ په وخت کې وصیتونه شروع کړي. اوس خو ستا د وارثانو حق ستا د مال سره وتړل شو. اوس دا ویل چې دا مال د فلاني او د فلاني دی. حال دا چې هغه خو اوس د فلاني دی نو. (المرقات: ۴/۳۷۱).

## د الله تعالی په لاره کې ډیر مصرف کوونکي کامیاب دي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ : انْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (یوځل) زه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې هغه وخت حاضر شوم کله چې نبي |
| وَ هُوَ جَالِسٌ فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ فَلَمَّا رَآنِي قَالَ : |
| کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کعبې د سیورې دلاندې ناست ؤ کله چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نظر په ما ولګید و نو وې فرمایل |
| هُمُ الْأَخْسَرُونَ وَ رَبِّ الْكَعْبَةِ فَقُلْتُ : فَدَاكَ أَبِي وَ أُمِّي |
| د کعبې په رب مې دې قسم وي چې هغه خلک ډیر تاوانیان دي ماورته وویل چې زما مور پلار په تا قربان شه |
| مَنْ هُمْ ؟ قَالَ : " هُمُ الْأَكْثَرُونَ أَمْوَالًا إِلَّا مَنْ قَالَ : |
| څوک دې هغه خلک؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل هغه خلک چې مال جمع کوي خو (هغه خلک مستثنی دي) چې |
| هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَ مِنْ خَلْفِهِ وَ عَنْ يَمِينِهِ وَ عَنْ شِمَالِهِ |
| خپل مال مصرفوي د خپل اخوا دیخوا او مخې ته. خپل ښي او چپ اړخ ته (غرض دا چې په هر قسمه او |
| وَ قَلِيلٌ مَا هُمْ ". (۱) |
| هر ځای کې د خدای د رضا په خاطر) خو داسې خلک ډیر کم دي. |

**توضیح: الا من قال:** حدیثونو کې او دغه شان محاورهٔ عرب کې "قال" د اشارې لپاره ویل کېږي. یعنې چا سره مال ډیر وي او لوي سرمایه دار وي. او په نقصان او خساره کې دی. خو کوم سرمایه داران چې هري خوا یعنې ښي. چپ او مخکې وروسته مصرف کوي نو هغه د هغې نه مستثنی دی. د "قال" لفظ د اشاره په معنی کې استعمالېږي. (المرقات: ۴/۳۷۲).

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱ ۲٤، رقم الحديث ۶۶۳۸، ومسلم في صحيحه ۲ ۶۸۶ رقم الحديث ۳۰ ۹۹۰، والترمذي في السنن ۳ ۱۲ رقم الحديث ۶۱۷، وأحمد في المسند ۵ ۱۵۲

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په عابد بخيل باندې د جاهل سخي فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلسَّخِيُّ قَرِيبٌ مِنَ اللهِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "سخي د الله رحمت ته نژدې دى. |
| قَرِيبٌ مِنَ الْجَنَّةِ قَرِيبٌ مِنَ النَّاسِ بَعِيدٌ مِنَ النَّارِ . وَ الْبَخِيلُ |
| جنت ته نژدې دى خلكو ته نزدې دى (يعنې ټولو ته ګران وي) او د اور نه لرې دى خو بخيل (چې خپل |
| بَعِيدٌ مِنَ اللهِ بَعِيدٌ مِنَ الْجَنَّةِ بَعِيدٌ مِنَ النَّاسِ قَرِيبٌ مِنَ النَّارِ. |
| واجب حقوق هم نه ادا كوي) الله د رحمت نه لرې دى جنت نه لرې دى خلكو نه لرې دى او اورته نزدې دى. |
| وَ لَجَاهِلٌ سَخِيٌّ أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ عَابِدٍ بَخِيلٍ.[1] |
| بيشكه د الله په نزد د عابد بخيل نه جاهل سخي ډير ګران دى. |

**توضيح : السخي:** د دې نه مراد هغه سړى دى چې د الله د رضا لپاره خپل مال مصرفوي. بد كارونو كې سخاوت مقصود نه دى. (المرقات : ۴/۳۷۲).

**قريب من الله:** يعنې د الله رحمت ته نزدې وي.

**قريب من الناس:** دا چې هغه په فقيرانو او محتاجه خلكو باندې مصرف كوي نو د خلكو خوښ وي. يا هسې سخي سړى خلكو ته ګران او محبوب وي. كه په هغوى مصرف كړى هم نه وي. (المرقات ۴/۳۷۳).

**و البخيل:** د دې بخيل نه هغه سړى مراد دى چې حق هم نه ادا كوي او نه زكوة ادا كوي. (المرقات ۴/۳۷۳).

**ولجاهل سخي:** دلته جاهل د عالم په مقابل كې نه دى بلكې د جاهل سخي نه مراد هغه سړى دى چې فرائض خو ادا كوي خو ډير نوافل نه كوي. دغه شان د بخيل عابد نه مراد هغه سړى دى چې د فرائضو نه بغير ډير نفلونه هم كوي خو كنجوس وي. نو د دغه كثير النوافل كنجوس عابد نه هغه تارک النوافل سخي افضل او بهتر دى. چې مسلسل سخاوت كوي. (المرقات : ۴/۳۷۳).

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۲ رقم الحديث ۱۹۶۱

## د تندرستۍ په وخت کې او د مرګ په وخت کې د صدقې تفاوت

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَأَنْ يَتَصَدَّقَ الْمَرْءُ

ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل مصرف کول دیو کس په خپل ژوند

فِي حَيَاتِهِ بِدِرْهَمٍ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِائَةٍ عِنْدَ مَوْتِهِ.(۱)

کې یو درهم د الله په لاره کې دا بهتر دی د ۱۰۰ درهمو مصرف کولو نه د خپل مرګ په وخت کې.

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَثَلُ الَّذِي يَتَصَدَّقُ

ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل مثال د هغه سړي چې صدقه کوي په وخت

عِنْدَ مَوْتِهِ أَوْ يُعْتِقُ كَالَّذِي يُهْدِي

د مرګ کې یا غلام ازاد کړي د هغه سړي په شان دی چې یو کس ته داسې وخت کې تحفه (خواږه) ولیږي

إِذَا شَبِعَ.(۲)

چې د هغې خیټه ډکه شوي وي.

## مؤمن بداخلاقه او بخیل نه شي کیدې

﴿۱٤﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِي مُؤْمِنٍ

ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل "مؤمن کې دوه خصلته نه جمعه کیږي

الْبُخْلُ وَسُوءُ الْخُلُقِ.(۳)

یو بخل بل بد اخلاقي.

**توضیح: لایجتمعان:** یعنې بداخلاقي او کنجوسي دا دواړه بد خصلتونه یو مؤمن کې نه شي جمعه کیدلی.

**سوال:** دلته سوال دا دی چې په ډیرو مسلمانانو کې دوه خصلتونه یا په دې کې یو خصلت دی. آیا هغه مؤمن پاتې نه شو؟(المرقات: ۴/۳۷۲).

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳ ۲۸۸، رقم الحديث ۲۸٦٦

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ٤ ۲۷٦، رقم الحديث ۳۹٦۸، والترمذي في السنن ٤ ۳۷۸ رقم الحديث ۲۱۲۳، والنسائي ٦ ۲۳۸ رقم الحديث ۳٦۱٤، وأحمد في المسند ٥ ۱۹۷

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ٤ ۳۰۲ رقم الحديث ۱۹٦۲

**جواب**: د دې سوال جواب دا دی چې د مؤمن نه مراد كامل مؤمن دی. د دې خصلتونو والا كامل مؤمن نشي كيدلی. دويم جواب دا دی چې د دې دواړه خصلتونو مراد دا دی چې دا دواړه خصلتونه د مؤمن طبيعت ثانيه شوي دي. كه د بشريت په تقاضا سره دا دواړه خصلتونه په يو مؤمن كې راشي او بيا ترې نه وځي او هغه پښيمانه شي نو دا كمال د ايمان منافي نه ده. د خلق حسن نه مراد هغه امور دي چې د كومو شريعت تعليم وركړی دی.

او د "بدخلقي" نه مراد دا دی چې د هغه كارونو خلاف ورزي وكړی شي چې د كومو اسلام تعليم وركړی دی. بهرحال په **باب النفاق** كې دا ويل شوي دي چې نفاق والا اخلاق يو مؤمن كې موندل كيدل هغه وخت دا منافق جوړوي، چې دا اخلاق هغې كې د طبيعت په توګه موجود وي. فقط شتون يې كافي نه دي. دا داسې دی چې د باب فتح لپاره د حرف حلقي كيدل ضروري دی. خو كه خرف حلقي په يو باب كې وموندلی شي نو د دې مطلب دا نه دی چې هغه باب فتح جوړ شوه. (المرقات : ۴/۳۷۴).

## د بخيل د پاره سخت وعيد

| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ خِبٌّ وَلَا |
|---|
| ابو بكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل : جنت ته به نه مكار داخلېږي. او نه |
| بَخِيلٌ وَلَا مَنَّانٌ . (۱) |
| بخيل، نه د خدای په لاره كې مال وركونكی او بيا د هغې نيكی زباتونكې. |

**توضيح** : **لايدخل الجنة**: د دخول نه مراد دخول اوّلی دی. چې بغير د سزه نه به جنت ته نه داخلېږي.

**خب**: **بفتح الخاء وتشديد الباء** سخت دوكه باز. مكار، عيار او شطار ته ويل كېږي. د بخيل نه مراد هغه دی واجب حق ادا كولو كې بخل كوي.

**منان**: احسان زباتونكي ته وايي. دويمه معنی دا چې صله رحمي ماتونكي ته وايي دلته هم جنت ته د نه داخليدلو نه دخول اوّلي مراد دی. (المرقات :۴/۳۷۵).

| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : شَرُّ مَا فِي الرَّجُلِ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل : په انسان كې دوه خصتلونه بدتر دي : يو |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤ ٣٠٣ رقم الحديث ١٩٦٤ وأحمد في المسند ١ ٧

شُحٌّ هَالِعٌ وَجُبْنٌ خَالِعٌ .وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ: لَا يَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْإِيمَانُ فِي كِتَابِ الْجِهَادِ إِن شَاءَ اللهُ تَعَالَى[1]

د لوي درجي والا بخیل او بل لوي درجي والا نا مردي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۱۷﴾ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ بَعْضَ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَ لِلنَّبِيِّ

عائشه رضي الله عنها وایي چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په بي بیانو مطهراتو کې بعضو بي بیانو وویل نبي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّنَا أَسْرَعُ بِكَ لُحُوقًا ؟

کریم صلی الله علیه وسلم ته چې مونږ کې ته کومه یوه بي بي ستا سره زر ملاقات کوي؟ (یعنې ستا سو د وفات نه

قَالَ : أَطْوَلُكُنَّ يَدًا

وروسته به کومه یوه بي بي اول مړه کېږي؟) نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د چا لاسونه اوږده وي.

فَأَخَذُوا

(عائشه رضي الله عنها وایي چې د نبي علیه السلام ددې ارشاد اورېدو سره) د نبي علیه السلام بي بیانو را واخیستې

قَصَبَةً يَذْرَعُونَهَا فَكَانَتْ سَوْدَةُ

دبانس یا د دورمې یوه تېوته او لاسونه ناپ کول یې شروع کړل (دې تولو کې) د سودې رضي الله عنها لاس

أَطْوَلَهُنَّ يَدًا فَعَلِمْنَا بَعْدُ

(چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم یوه بي بي وه) د ټولو نه اوږد لاس ؤ خو وروسته مونږ ته معلومه شوه چې د

إِنَّمَا كَانَتْ طُولُ يَدِهَا الصَّدَقَةَ وَ كَانَتْ أَسْرَعَنَا لُحُوقًا بِهِ

لاس داوږدوالي نه مراد صدقه وه او مونږ کې چې د ټولو نه اول چا د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره ملاقات وکړو

زَيْنَبُ

(یعنې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مرګ نه وروسته چې اول څوک مړه شوه) هغه زینب رضي الله عنها وه او هغې

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳ ۲٦۳، رقم الحديث ۲۵۱۱، وأحمد في المسند ۲ ۳۰۲

وَ كَانَتْ تُحِبُّ الصَّدَقَةَ . وَ فِي رِوَايَةٍ مُسْلِمٍ قَالَتْ .

به صدقي او خيراتو نه كول ډير خوښول. او په مسلم كې دعائشې رضي الله عنها باره كې منقول دي چې نبي

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَسْرَعُكُنَّ لُحُوقًا

عليه السلام (دازواج مطهرات د پوښتنې په جواب كې) وفرمايل چې تاسو كې ما سره زر ملاقات كونكي به

بِي أَطْوَلُكُنَّ يَدًا . قَالَتْ : وَ كَانَتْ

هغه وي چې د چا لاس اوږده وي. عائشه رضي الله عنها وايي چې (ددې په اوريدو سره) د نبي عليه السلام ازواج

يَتَطَاوَلْنَ أَيَّتُهُنَّ أَطْوَلُ يَدًا قَالَتْ كَانَتْ

مطهراتو خپل لاسونه ناپ كول شروع كړل. چې ثوک به هغوی كې اوږدو لاسونو والا وي. نو د ټولو نه

أَطْوَلَنَا يَدًا زَيْنَبُ ؟ لِأَنَّهَا كَانَتْ تَعْمَلُ بِيَدِهَا وَ تَتَصَدَّقُ . [1]

اوږده لاسونه د زينب رضي الله عنها وو ځكه هغې به ټول كارونه په خپل لاس كول او صدقې او خيراتونه به يې كول

**توضيح**: ددې نه معلومه شوه چې اهل لسان والا هم قرآن او حديث كې ځينې ځل د كلام اصلي حقيقت نه شي موندلی. ځكه ضروري ده چې شرعي اصطلاحات او د هغې اطلاقات د يو ماهر استاذ نه زده كړې شي. فقط په د لغتو په پوهه باندې اعتماد ونه كړی شي.

دلته **طول يد** امهات المؤمنين په ظاهري معنی باندې حمل كړو او خپل اندام يې ناپ كول شروع كړو. حال دا چې شارع ددې نه د سخاوت اراده كړې وه. حضرت زينب رضي الله عنها به د ام المساكين په لقب يادېدله ځكه ډير سخاوت په كې ؤ په خپلو لاسونو به يې د څرمنې كار كولو. او بيا به يې هغه څرمني خرڅولې. او د هغې رقم به يې د الله په لاره كې خيرات كولو.

**فاخذوا قصبة**: يعنې ازواج مطهراتو بانس راواخستلو او په هغې يې خپل لاسونه ناپ كول شروع كړل.

دلته د **اخذن** صيغه په كار وه ځكه د مؤنث صيغه ده. خو د تعظيم او د اكرام په توګه د مذكر صيغه راوړی شوې ده. او داسې كېږي لكه **زملوني** كې ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۸۵/۳، رقم الحديث ۱۴۲۰، ومسلم في صحيحه ۴ ۱۹۰۷ رقم الحديث ۱۰۱. ۲۴۵۲

## دزکوة په ادا کولو کې د بنی اسرائیلو د یو سړي قصه

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

ابو هریره رضی الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل (یو خل بنی اسرائیلو کې) یو کس (خپل زړه

قَالَ رَجُلٌ: لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ

یا خپل یو ملګري ته) وویل چې زه به (نن شپه د) خدای په لاره کې څه مال مصرفوم نو هغه (د خپل قصد او

فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ سَارِقٍ

ارادې مطابق) خیرات لپاره څه مال رایستلو (چې هغه مستحق ته ورکړي) او هغه د غه مال یو غل ته ورکړو

فَأَصْبَحُوا

(هغې ته معلومه نه وه چې داغل دی چې دهغې په وجه د خیرات مستحق نه دی) کله چې سحر شو (او خلک

يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ

خدای دالهام په وجه خپله دهغه غل نه خبر شول نو د تعجب په وجه یې) پیغورونه شروع کړل چې صدقه

اللَّيْلَةَ عَلَى سَارِقٍ فَقَالَ اللَّهُمَّ

ورکړې شوې ده نن شپه یو غل ته (کله چې صدقه کونکي ته هم حال معلوم شو نو) هغه وویل چې ای الله

لَكَ الْحَمْدُ عَلَى سَارِقٍ

هم تا لره تعریف دی (سره ددې نه چې) د صدقې مال دیو غل په لاس ورغلی دی او بیا یې وویل چې (نن

لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ

شپه به) بیا صدقه کوم (چې هغه مستحق ته ملاؤشي) نو د صدقې په نیت یې بیا مال رایستلو او (دا ځل هم

فَوَضَعَهَا فِي يَدِ زَانِيَةٍ فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ

دغلط فهمۍ په وجه) هغې یوې زناکارې ته په لاس ورکړو چې سحر شو نو خلکو بیا پیغورونه شروع کړل

تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلَى زَانِيَةٍ فَقَالَ اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ

چې نن شپه خو یو زناکارې د صدقې مال ویوړو هغه سړي وویل چې ای الله! هم تا لره تعریف دی (اګر که دا

عَلَى زَانِيَةٍ لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ

ځل) د صدقې مال یو زناکارې ته په لاس ورغلو او بیا یې وویل چې (نن شپه به) بیا صدقه ورکوم نو ده بیا

| غَنِيٍ | يَدَي | فِيْ | فَوَضَعَهَا | بِصَدَقَتِهِ | فَخرج |
|---|---|---|---|---|---|

دصدقې په نیت مال راوویستلو او (دا ځل یې بیا په غلط فهمۍ کې) هغه د یو مالداره په لاس ورکړو.

| غَنِيٍ | عَلَى | اللَّيْلَةَ | تُصُدِّقَ | يَتَحَدَّثُوْنَ | فَأَصْبَحُوا |
|---|---|---|---|---|---|

چې سحر شو نو خلکو بیا پیغورونه شروع کړل چې نن شپه یې یو مالداره ته د صدقې مال ورکړی شو. هغه

| غَنِيٍ | وَ عَلَى | زَانِيَة | وَ عَلَى | سَارِق | عَلَى | الْحَمْدُ | لَكَ | اللَّهُمَّ | فَقَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

سړي وویل ای الله! هم تا لره تعریف دی (اګر که) غل، زناکاري او مالداره ته ملاؤ شو (کله چې هغه سړی

| أَمَّا | لَهُ | فَقِيلَ | فَأُتِيَ |
|---|---|---|---|

او ده شو نو) خوب کې ده ته وویل شو (چې تا څومره صدقې ورکړي دې ټولې قبولې شوي دي) څکه د

| أَنْ | فَلَعَلَّهُ | سَارِقٍ | عَلَى | صَدَقَتُكَ |
|---|---|---|---|---|

صدقې مال چې کوم تا غل ته ورکړی دی (هغه بې فایدې او د ثواب نه خالي نه دی) امکان لري چې هغه

| أَنْ | فَلَعَلَّهَا | الزَّانِيَةُ | أَمَّا | وَ | سَرِقَتِهِ | عَنْ | يَسْتَعِفَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

په دې وخت کې د غلا نه منع شوی وي او د صدقې مال چې تا زناکارې ته ورکړی دی امکان لري چې د دې

| فَلَعَلَّهُ | الْغَنِيُّ | أَمَّا | وَ | زِنَاهَا | عَنْ | تَسْتَعِفَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|

په وجه د زنا نه منع شوې وي او د صدقې مال چې کوم مالداره ته ورکړی دی امکان لري چې هغه د دې په

| لِلْبُخَارِيِّ (۱) | وَ لَفظه | . | اللهُ | أَعْطَاهُ | مِمَّا | فَيُنْفِقَ | يَعْتَبِرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

وجه عبرت واخلي او الله چې هغې ته څه ورکړي دې هغه مصرف کړي. الفاظ د بخاری دي.

**توضیح**: **اللهم لك الحمد على السارق**: د دې سړي باره کې خلکو تبصرې شروع کړې او ي ويل چې وروره يو صدقه کونکي څه بنه صدقه کړې ده. غل ته يې ورکړې ده. هغه سړي خپله هم په دې بانديې تعجب وکړو. خو الله تعريف يې مخکې وکړو چې د الله شکر هم ادا شي او بيا يې وفرمایل چې ښا د غل لاس ته صدقه ورغله؟ زه بيا به يې ورکړم داسې به يې هر ځل ويله.

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۳ ۳۴۰، رقم الحديث ۱۴۲۱، ومسلم في صحيحه ۲ ۷۰۹ رقم الحديث ۷۸ ۱۰۲۲، واحمد في المسند ۲ ۳۲۲

فائق: خوب کې هغې ته یو ي فرښتې او په نور څه طریقې سره ورته وویل شول چې تا کومې صدقې کړې دې هغه بیکاره نه تلې. اګر که زکوة ادا نه شو. هغه به بیا ادا کوي. خو کومو خلکو ته چې دې ورکړې دې د هغې به څه نا څه بنه فایده وي. (المرقات :۴/۳۷۸).

## په زکوة ورکولو سره په مال کې برکت راځي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: بَيْنَا رَجُلٌ بِفَلَاةٍ مِنَ الْأَرْضِ |
| ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبي عَلَیْهِ السَّلَام و فرمایل یو کس د زمکې د ځنګل |
| فَسَمِعَ صَوْتًا فِي سَحَابَةٍ اسْقِ حَدِيقَةَ فُلَانٍ |
| په یوه برخه کې ولاړو چې ده په وریځ کې اوازواورید و چې ویونکی وایې چې د فلاني کس باغ خړوب کړه |
| فَتَنَحَّى ذَلِكَ السَّحَابُ فَأَفْرَغَ مَاءَهُ فِي حَرَّةٍ |
| بیا هغه وریځ یو طرف ته لاړل او (یو بل ځای کې) کا ړجنه زمکه باندې یې او به وُرولې او هغه ټولې او به د هغه |
| فَإِذَا شَرْجَةٌ مِنْ تِلْكَ الشِّرَاجِ |
| لختونه (چې په دې زمکه کې وي) یو لختي کې را جمعه شوي بیا (هغه او به دیو لختي په ذریعه یو طرف ته |
| قَدِ اسْتَوْعَبَتْ ذَلِكَ الْمَاءَ كُلَّهُ فَتَتَبَّعَ الْمَاءَ |
| تو بدلي) هغه کس هم دې او بو پسې شاته شاته روان شو (چې وګوري چې د کوم سړي باغ ته دا او به رواني |
| فَإِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ فِي حَدِيقَتِهِ يُحَوِّلُ الْمَاءَ |
| دې هغه څوک دی؟) ناڅاپه د غه کس یو سړي ولید و چې خپل پټي کې ولاړ دی او د بیلچې په ذریعې د غه او به |
| بِمِسْحَاتِهِ فَقَالَ لَهُ يَا عَبْدَ اللهِ مَا اسْمُكَ |
| (د باغ په بو ټو کې) خوروي. هغه کس د باغ والا نه وپوښتل چې ای د خدای بنده! ستا څه نوم دی؟ هغې |
| قَالَ فُلَانٌ الْاِسْمُ الَّذِي سَمِعَ فِي السَّحَابَةِ |
| ورته وویل چې زما فلانی نوم دی. او هغې ورته همغه نوم وویل چې کوم هغې په وریځو کې اوریدلی ؤ |
| فَقَالَ لَهُ يَا عَبْدَ اللهِ لِمَ تَسْأَلُنِي عَنِ اسْمِي فَقَالَ |
| بیا یې د باغ والا نه پوښتنه وکړه چې خدای بنده! ته زما د نوم پوښتنه ولې کوي؟ هغه کس ورته وویل چې |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنِّي | سَمِعْتُ | صَوْتًا | فِي | السَّحَابِ | الَّذِي | هٰذَا | مَاؤُهُ |

زه یې ځکه پوښتنه کوم چې د دې وریځو دا اوبه دي. دې وریځو کې ما یو اواز وراورید لی ... وونکی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَقُول | اسْقِ | حَدِيقَةَ | فُلَانٍ | لِاسْمِكَ |

(دې وریځ ته) ویل چې د فلاني باغ خړوب کړه هغه هم ستا نوم ؤ او (اوس ماته دا و وایه چې) ته په دې باغ

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَمَا | تَصْنَعُ | فِيهَا | قَالَ |

کې څه (خیرات) کوي (چې د هغې په وجه تاته دا فضیلت او بزرګي درکړی شوي ده) باغ والا ورته وویل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَما | إِذْ | قُلْتَ | هٰذَا | فَإِنِّي | أَنْظُرُ | إِلٰى | مَا | يَخْرُجُ | مِنْهَا |

چې ته یې اوس پوښتنه کوي نو ځکه تاته یې وایم دې باغ کې چې څه پیدا وار کیږي (اول) زه هغه ګورم.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَتَصَدَّقُ | بِثُلُثِهِ | وَ | آكُلُ | أَنَا | وَ | عِيَالِي | ثُلُثًا |

بیا په هغې کې دریمه برخه د خدای په لاره کې مصرف کړم. یوه دریمه برخه زه او زما اهل و عیال خوري

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَ | أَرُدُّ | فِيهَا | ثُلُثَهُ. (۱) |

او یوه دریمه برخه په دې باغ کې مصرف کړم.

**توضیح**: **فلاة**: صحرا او دښتي ته وایي.

**فلان**: وریځو نه د هغه سړي نوم واخستلی شو. خو نبي کریم ﷺ نوم وانخستلو. او د فلاني لفظ سره کنایه وفرمایل چې دغه شان د وریځو نه هغه اوریدونکي هم د هغه سړي نوم اوریدلی ؤ. خو د هغه باغ والا نه یې د هغې بیا وپوښتلو چې یقین او اطمینان یې شي. (المرقات: ۴/۳۸۰).

**لاسمك**: یعنې وریځ کې ستا نوم اوریدلی ؤ. د دینه معلومه شوه چې هغې خپل نوم هغه پوښتنه کونکي ته وویل. (المرقات: ۴/۳۸۰).

**اذا قلت هـذا**: یعنې دا د راز خبره ده خو ته په دې راز باندې خبر شوي نو اوس درته حقیقت وایم. (المرقات ۴/۳۸۰).

خلاصه دا چې هاتف غیبي د باغ والا نوم په صراحت سره اخستی دی. اوریدونکي اوریدلی دی. خو د باغ والا مخې ته یې پټ کړی ؤ. چې یقین یې وشي. بیا نبي کریم ﷺ په همدغه طریقه باندې

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ٤ ٢٢٨٨ رقم الحديث ٤٥ ١٩٨١، وأحمد في المسند ٢ ٢٩٦

لفظ فلا سره د هغه کس تذکره وکړه.

## د دوه ناشکرو او د یو شکر ګزار قصه

﴿۲۰﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ ثَلَاثَةً

دابو هریره رضی الله عنه باره کې روایت دی چې ده دنبي کریم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چې دري کسان وو

فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ أَبْرَصَ وَ أَقْرَعَ وَ أَعْمَى فَأَرَادَ اللهُ أَنْ يَبْتَلِيَهُمْ

په بني اسرائیلو کې دوي کې یو خوبرګي ؤ دویم ګنجی ؤ او دریم ړوند ؤ الله په دوی امتحان کول وغوښتل

فَبَعَثَ إِلَيْهِمْ مَلَكًا

(چې دالله دنعمت شکر اداکوي او که نه) نو دوی ته فرښته (دفقیرپه صورت کې) راولیږله دافرښته (اول)

فَأَتَى الْأَبْرَصَ فَقَالَ أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ لَوْنٌ حَسَنٌ

برګي ته ورغلو او ده نه یې وپوښتل چې ستا کوم شی د ټولو نه ډیر خوښ دی؟ برګي وویل چې ښه رنګ

وَ جِلْدٌ حَسَنٌ وَ يَذْهَبُ عَنِّي الَّذِي قَدْ قَذِرَنِي

او دبدن بهترین څرمن او دغه شان د دې شي (یعني برګوالی) نه خلاص شم څکه د دې په وجه کرکه کوي

النَّاسُ قَالَ: فَمَسَحَهُ

خلک د ما نه نبي علیه السلام فرمایل چې (د دې په اوریدو سره) فرښتني د برګي په بدن باندې لاس راخکلو

فَذَهَبَ عَنْهُ قَذَرُهُ وَ أُعْطِيَ لَوْنًا حَسَنًا وَ جِلْدًا حَسَنًا قَالَ

نو دده برګوالي لاړو هغې ته یې بهترین رنګ روغن او څرمن ورکړلی شوه. بیا فرښتني تپوس وکړو چې

فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ الْإِبِلُ أَوْ قَالَ الْبَقَرُ

(یو) ستا کوم مال د ټولو نه ډیر خوښ دی؟ هغه کس ورته وویل چې اوښ یا غوا (د حدیث یو راوي

شَكَّ إِسْحَقُ إِلَّا أَنَّ الْأَبْرَصَ أَوِ الْأَقْرَعَ

ته) شک دی چې (د غوا لپاره) برګي وویلي ؤ او یا ګنجی ویلي ؤ (بهرحال دا خو معلومه ده چې په

قَالَ أَحَدُهُمَا الْإِبِلُ وَ قَالَ الْآخَرُ الْبَقَرُ قَالَ فَأُعْطِيَ نَاقَةً عُشَرَاءَ

دې کې یو اوښ او بل د غوا لپاره ویلي ؤ نبي علیه السلام وفرمیل چې هغه سړي ته حامله اوښې ورکړی شوې

فَقَالَ بَارَكَ اللهُ لَكَ فِيهَا قَالَ :

بیا فرښتي دا دعا وکړه الله دې ستا په دې مال کې برکت واچوي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې بیا

فَأَتَى الأَقْرَعَ فَقَالَ أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ

فرښته ګنجي له راغله او د هغې نه یې وپوښتل چې ستا کوم شی د ټولو نه ډیر خوښ دی؟ ګنجي وویل

شَعَرٌ حَسَنٌ وَ يَذْهَبُ عَنِّي هٰذَا الَّذِي قَدْ قَذِرَنِي النَّاسُ .

چې ښه خائسته ویختان او دا چې د ګنجي توب نه خلاص شم. خلک د دې په وجه زما نه کرکه کوي. نبي

قَالَ : فَمَسَحَهُ فَذَهَبَ عَنْهُ وَ أُعْطِيَ

کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې فرښتي دده په سر لاس راخکلو او دده ګنجي توب ختم شو او ورکړي شو

شَعَرًا حَسَنًا قَالَ فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ

ورته بهترین ویختان. بیا فرښتي د هغې نه وپوښتل چې (اوس) ستا کوم مال د ټولو نه خوښ دی؟ دې

قَالَ الْبَقَرُ فَأُعْطِيَ بَقَرَةً حَامِلًا قَالَ :

کس ورته وویل چې غواګاني. هغې ته بلاربي غواګاني ورکړی شوي. او فرښتي ورته دعا هم وکړه چې

بَارَكَ اللهُ لَكَ فِيهَا قَالَ : فَأَتَى الأَعْمَى فَقَالَ أَيُّ شَيْءٍ

چې الله دې ستا په مال کې برکت واچوي. بیا فرښته ړوند ته ورغله او د هغې نه یې وپوښتل چې ستا کوم

أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ أَنْ يَرُدَّ اللهُ إِلَيَّ بَصَرِي فَأُبْصِرَ بِهِ النَّاسَ . قَالَ:

شی د ټولو نه خوښ دی؟ ړوند وویل چې ماته بینائی راکړه چې خلک پرې وینم. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل

فَمَسَحَهُ فَرَدَّ اللهُ إِلَيْهِ بَصَرَهُ قَالَ فَأَيُّ

فرښتي په هغې لاس تیر کړو او الله ورله بینائی ورکړه او بیا فرښتي د هغې نه وپوښتل چې (اوس) ستا کوم

الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ الْغَنَمُ فَأُعْطِيَ شَاةً وَالِدًا

مال د ټولو نه خوښ دی؟ هغه وویل چې بیزې نو د شودو والا بیزې ورته ورکړی شوې (د هغې نه څه موده

فَأُنْتِجَ هٰذَانِ وَ وَلَّدَ هٰذَا قَالَ فَكَانَ لِهٰذَا

وروسته) برګې او ګنجي د اوښانو او د غواګانو په ذریعې او ړوند د بیزو په ذریعې بچي ترلاسه کړل

وَادٍ مِنَ الْإِبِلِ

(گوياکې خداى د ټولو په مال کې برکت اچولى ؤ) تردې چې د برګي د اوښانو نه يو ځنګل ډک شو.

وَ لِهَذَا وَادٍ مِنَ الْبَقَرِ وَ لِهَذَا وَادٍ مِنَ الْغَنَمِ . قَالَ :

ګنجي د غواګانو نه يو ځنګل ډک شو او د ړوند د بيزونه يو ځنګل ډک شو. بيا نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل

ثُمَّ إِنَّهُ أَتَى الْأَبْرَصَ فِي صُورَتِهِ وَ هَيْئَتِهِ فَقَالَ

(د هغې نه وروسته) فرښته بيا برګي له په خپل (اولني) شکل او صورت کې راغله او هغې ته يې وويل

رَجُلٌ مِسْكِينٌ قَدِ انْقَطَعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي فَلَا بَلَاغَ لِيَ الْيَوْمَ

چې زه يو مسکين يم زما ټول سامان د سفر دوران کې ختم شوي ځکه (منزل مقصود ته) زما رسيدل امکان نه

إِلَّا بِاللَّهِ ثُمَّ بِكَ

لري خو که د الله ورکړه او مهرباني شي او د هغې نه وروسته ته ذريعه شي (نو زما دا مشکل به اسان شي).

أَسْأَلُكَ بِالَّذِي أَعْطَاكَ اللَّوْنَ الْحَسَنَ وَ الْجِلْدَ الْحَسَنَ وَ الْمَالَ بَعِيرًا

لهذا زه تا ته هغه ذات وسيله کوم چې هغه تا ته ښه رنګ، بهترين څرمن. او مال ورکړى دى يو اوښ غواړم

أَتَبَلَّغُ بِهِ فِي سَفَرِي فَقَالَ الْحُقُوقُ كَثِيرَةٌ

چې زما د سفر ذريعه پوره شي او زه خپل منزل مقصود ته ورسېږم. دې برګي وويل چې په ما حقوق ډېر زيات

دى (يعنې فرښتې نه يې ځان خلاصولو لپاره دروغ وويله چې زما د دې مال ډېر حقداران دي. ځکه تا ته

فَقَالَ لَهُ كَأَنِّي أَعْرِفُكَ أَلَمْ تَكُنْ أَبْرَصَ يَقْذَرُكَ النَّاسُ

هيڅ يو اوښ نه شم درکولى) فرښتې ورته وويل ګويا زه تا پېژنم آيا ته هغه برګي نه يې چې خلکو به درنه کرکه

فَقِيرًا فَأَعْطَاكَ اللَّهُ مَالًا فَقَالَ

کوله او ته محتاجه او مجبوروې خو الله تا ته (بهترين رنګ او شکل سره) صحت او مال درکړو برګي وويل

إِنَّمَا وَرِثْتُ هَذَا الْمَالَ كَابِرًا عَنْ كَابِرٍ فَقَالَ

چې دا خبره نه ده بلکې دا مال خو ما ته د خپل پلار نيکه د طرف نه ميراث کې ملاؤ شوى دى فرښتې ورته وويل

إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللَّهُ إِلَى مَا كُنْتَ .

که ته دروغژن يې الله دې بيرته په هغه حالت کړه په کوم کې چې مخکې اخته وې (بيا برګي او مفلس شي)

قَالَ : وَ أَتَى الْأَقْرَعَ فِي صُورَتِهِ فَقَالَ لَهُ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایل چې بیا فرښته ګنجي ته په هغه شکل او صورت کې راغله او هغې ته یې هم وویل چې

مِثْلَ مَا قَالَ لِهَذَا وَ رَدَّ عَلَيْهِ مِثْلَ مَا رَدَّ عَلَى هٰذَا

څه هغه برګي ته ویلي ؤ نو ګنجي همغه جواب ورکړو کوم جواب چې برګي ورکړی ؤ فرښتې ګنجي ته هم

فَقَالَ إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللهُ إِلَى مَا كُنْتَ .

وویل چې که ته دروغژن یې نو خدای دې تا همغه شان کړي لکه څنګه چې ته مخکې (ګنجي او محتاج) وې

قَالَ : وَ أَتَى الْأَعْمَى فِي صُورَتِهِ وَ هَيْئَتِهِ

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې ددې نه وروسته فرښته په هغه خپل او لنې شکل او صورت کې راغله او

فَقَالَ رَجُلٌ مِسْكِينٌ وَ ابْنُ سَبِيلٍ انْقَطَعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي

هغه ته یې هم دغه وویل چې زه یو مسکین انسان او مسافر یم زاد سفر سامان په سفر کې ختمید ونکی دی

فَلَا بَلَاغَ لِيَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللهِ

نو څکه نن (منزل مقصود ته) رسیدل په دې شکل کې امکان نه لري که د الله مهرباني را باندې ونه شي او د

ثُمَّ بِكَ أَسْأَلُكَ بِالَّذِي رَدَّ عَلَيْكَ بَصَرَكَ

هغې نه وروسته د هغې ذریعه شي. لهذا د هغه ذات واسطه درکوم چې بینائی تا ته بیرته درکړې ده

شَاةً أَتَبَلَّغُ بِهَا فِي سَفَرِي فَقَالَ قَدْ

ستا نه یوه بیزه غواړم چې د هغې په ذریعه خپل سفر پوره کړم روند په (خنده تندې سره) وویل چې بیشکه

كُنْتُ أَعْمٰى فَرَدَّ اللهُ إِلَيَّ بَصَرِي فَخُذْ مَا

زه یو روند ؤم الله ما ته زما بینائی بیرته راکړه لهذا (زما ټولې بیزې حاضرې دي) دې نو واخله کومه چې

شِئْتَ وَ دَعْ مَا شِئْتَ فَوَ اللهِ

دې خوښه وي او کومه چې دې نه وي خوښه هغه پرېږده. ته چې څه هم غواړې په الله قسم! تا نه به بیرته

لَا أَجْهَدُكَ الْيَوْمَ شَيْئًا أَخَذْتَهُ لِلّٰهِ فَقَالَ

بیرته د ورکولو تکلیف نه درکوم. (دې او ریدو سره) فرښتې وویل چې (تا ته دې ستا مال مبارک وي) ته

| أُمْسِكْ | مَالَكَ | فَإِنَّمَا | ابْتُلِيتُمْ |
|---|---|---|---|

خپل مال خپل ځان سره وساته. (زما ستا مال ته قطعاً ضرورت نشته دی) داوخت خو تاسو فقط په امتحان کې مبتلا کړی شوی وي (یعنې الله ستا امتحان اخستی دی چې آیا هغه زوړ حال دې هم یاد یا نا؟ نو په

| فَقَدْ | رَضِيَ | عَنْكَ | وَ |
|---|---|---|---|

امتحان کې کامیاب شوي) نو الله ستا نه راضي شو او ستا هغه (بدبخته) ملګري (یعنې برګي او ګنجي

| سَخِطَ | عَلَى | صَاحِبَيْكَ .(۱) |
|---|---|---|

ناشکره ثابت شول، ځکه هغوی) د الله په نزد مبغوض شول.

**توضیح**: **بني اسرائیل**: معلومه شوه چې قصه په پخواني امتونو کې د درې کسانو وه. اقرع: د دې ترجمه اردو کې د ګنجي په معنی کې کېږي. خو د دې حقیقت بناري خلک نه پېژني. په بانډو کې به مخکې دا مرض ؤو چې د هلکانو په سر کې به مخکې داسي د انو او ننکو ناروغي وه. چې د سر ویختان به اوتل او ځرمن به یې هم اوتله او زخم به پاتې شو چې بدبوئی به ترې نه تلله. او کله به تر بلوغت پورې دا مریضتیا وه او خلک به ترې نه وړاندې تختیدل او د هغې نه به یې نفرت کولو او د ګنجي نوم به یې ورته اخستلو. نن سبا د انګریزیت دور دی. کوم خلک چې سر ګنجی کړي نو هغې پسې ټوقي کوي او ګنجی (کټاسری) ورته وایي. دا ګنجی بل دی او هغه ګنجی بل دی. (المرقات :۴/۳۸۱).

**ملکًا**: یعنې په انساني شکل کې هغوی له یوه فرښته راغله. یعنې مخکنو امتونو کې به داسي کیدل او عام به ؤو دې امت کې دا سلسله نشته دی. (المرقات ۴/۳۸۱).

**الحبال**: یعنې د سفر ټول اسباب او ذرائع کټ شوي. حبل پړي ته وایي. (المرقات :۴/۳۸۱).

**ثم بك**: یا بیا د سبب په توګه ستا د مرستي په ذریعه. دلته **ثم** راوړلو سره د اداب بنه خیال ساتلی شوی دی ځکه **ثم** د تراخی لپاره دی چې کلام پرې جدا شو. که "**وبك**" وی نو په دې کې به د اشتراک فعل شک راتلی شو. چې د سوء ادب خطرؤ. (المرقات :۴/۳۸۲).

**ناقة عشرا**: **عشرا بضم العین** دلسو میاشتو بلاربې اوښې ته وایي. (المرقات ۴/۳۸۳).

**شاة والدا**: یعنې بلاربه بیزه. (المرقات :۴/۳۸۱).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحیحه ۵۰۰/۶، رقم الحدیث ۳۴۶۴، ومسلم في صحیحه ٤ ۲۲۷۵ رقم الحدیث ۱۰ ۲۹٦٤.

﴿۲۱﴾ وَ عَنْ أُمِّ بُجَيْدٍ قَالَتْ : قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ الْمِسْكِينَ لَيَقِفُ عَلَى بَابِي

ام بجيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وايي چې ما عرض وكړو يا رسول الله! كله چې يو سوال گر زما په دروازه ودريږي (او ما

حَتَّى أَسْتَحْيِيَ فَلَا أَجِدُ فِي بَيْتِي مَا أَدْفَعُ فِي يَدِهِ

نه څه وغواړي) نو زه ډيره شرميږم ځكه زما په كور كې داسې شى نه وي چې هغې ته يې په لاس وركړم.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : ادْفَعِي فِيْ يَدِهِ وَ لَوْ ظِلْفًا مُحْرَقًا.[1]

نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې هغې ته لاس كې خامخا څه وركوه اگر كه سوځيدلې ډوډۍ ولې نه وي

## د درس ور كونكي يوه قصه

﴿۲۲﴾ وَ عَنْ مَوْلًى لِعُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : أُهْدِيَ لِأُمِّ سَلَمَةَ

د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ آزاد كړى شوى غلام وايي (يو ځل) پيش كړې شوه ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته (د پخه شوي)

بُضْعَةٌ مِنْ لَحْمٍ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُعْجِبُهُ اللَّحْمُ فَقَالَتْ لِلْخَادِمِ :

غوښې پوټې د تحفه په توگه نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ډير خوښ و نو ځكه سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا خپلې وينځې ته وويل

ضَعِيهِ فِي الْبَيْتِ لَعَلَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَأْكُلُهُ

چې دا د غوښې پوټې په كې (حفاظت سره) كېږده. كيدى شي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هم د غه هومره وخوري.

فَوَضَعَتْهُ فِي كُوَّةِ الْبَيْتِ . وَ جَاءَ سَائِلٌ فَقَامَ عَلَى الْبَابِ

نو هغه وينځې هغه پوټې په يو طاق كې كيخودو (اتفاقاً چې همد غه وخت) يو سوال گر دروازې ته او دريدو

فَقَالَ : تَصَدَّقُوا بَارَكَ اللهُ فِيكُمْ .

او اوازيې وكړو چې اى كور والو! د خداى په نوم څه راكړئ. الله دې تاسو ته بركت دركړي. كور والو

فَقَالُوا : بَارَكَ اللهُ فِيكَ . فَذَهَبَ السَّائِلُ

ورته وويل چې :الله دې تا ته بركت دركړي (يعنې سوال گر ته يې جواب وركړو) سوال گر بيرته لاړو.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۳۰۷. رقم الحديث ۱۶۶۷ ، والترمذي في السنن ۳ ۵۲ رقم الحديث ۶۶۵ ، والنسائي ۵ ۸۶ رقم الحديث ۲۵۷۴، وأحمد في المسند ۲۴۷/۴

فَدَخَلَ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : يَا أُمّ سَلَمَةَ هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ أُطْعِمُهُ ؟ .

کله چې نبي عليه السلام (کورته) راغلو نو وي و فرمايل چې ام سلمه رضي الله عنها ستاسره د خوراک څه شی شته؟

فَقَالَتْ : نَعَمْ . قَالَتْ لِلْخَادِمِ : اذْهَبِي فَأْتِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِذَلِكَ اللَّحْمِ.

ام سلمه رضي الله عنها و ويل چې آؤ بيا دې وينځې ته وويل چې لاړه شه او نبي عليه الصلاة والسلام ته هغه غوښه راوړه

فَذَهَبَتْ فَلَمْ تَجِدْ فِي الْكَوَّةِ

وينځه (غوښې راوړولپاره) لاړه خو هغه چې طاق ته ورغله نو ډيره حيرانه شوه چې وي ليدل هلته خو يېخي

إِلَّا قِطْعَةَ مَرْوَةٍ

د غوښې نوم نشته بلکې (د غوښې په ځای) سپين کاڼي ايخودلی شوی دی نبي عليه السلام (چې وليدو نو)

فَقَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : فَإِنَّ ذَلِكَ اللَّحْمَ عَادَ مَرْوَةً

وې فرمايل چې ته سوال ګر ته څه نه ؤ وورکړي (او هغه دې تش لاس لېږلی ؤ) نو ځکه دا غوښه وګرځيده

لِمَا لَمْ تُعْطُوهُ السَّائِلَ. (1)

د سپين کاڼي په شکل. بيهقي دا روايت په دلائل النبوة کې را نقل کړی دی.

**توضيح: بارك الله:** دا اصل کې د سوال ګر د سوال جواب دی چې الله دې در ته برکت درکړي د ورکړې لپاره څه نشته دی.

**الكوة:** طاق يا طاقچې ته وايي.

**رخام:** د مرمر سپين کاڼي ته وايي. (المرقات: ۴/۳۸۶).

﴿۲۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا أُخْبِرُكُمْ

ابن عباس رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل آيا زه تاسو ته خبر درنه کړم چې د مرتبې په

بِشَرِّ النَّاسِ مَنْزِلًا ؟ قِيلَ : نَعَمْ

اعتبار سره د خدای په نزد بدترين کس څوک دی؟ صحابؤ وويل چې آؤ يا رسول الله! (ضرور يې ووايه) نبي

(۱) أخرجه البيهقي في دلائل النبوة ۶/۳۰۰، باب ما جاء في اللحم الذي صار حجرا وإخبار النبي صلى الله عليه وسلم عن سببه فكان كما قال.

قَالَ : الَّذِي يُسْأَلُ بِاللهِ وَلَا يُعْطِي بِهِ .(١)

عَلَیْهِالسَّلَام و فرمایل هغه کس چې دده نه د خدای په نوم سوال وکړی شي او هغه د هغې سوال پوره نه کړي.

**توضیح**: **یسئل الله**: د دې جملې مفهوم دا دی چې د کوم کس نه د الله په نوم سوال وکړی شي او دا یې د پوره کولو توان لري او پوره یې نه کړي نو دا بد ترین سړی دی. نو **یعطي** د معروف صیغه ده او **یُسئَل** د مجهول صیغه ده. (المرقات: ۴/۳۸۶).

## د مال راغونډولو کې د حضرت ابوذر غفاري رَضِیَاللهُعَنْهُ منفرد مسلک

﴿٢٤﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ عَلَى عُثْمَانَ

دابوذر غفاري رَضِیَاللهُعَنْهُ باره کې روایت شوی چې یو ځل ده د عثمان رَضِیَاللهُعَنْهُ نه د حاضریدو اجازت وغوښتو

فَأَذِنَ لَهُ وَ بِيَدِهِ عَصَاهُ

نو عثمان رَضِیَاللهُعَنْهُ اجازت ورکړو (کله چې حاضر شو نو) ده د لاس کې امساء وه (همدغه موقع باندې)

فَقَالَ عُثْمَانُ : يَا كَعْبُ ! إِنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ تُوُفِّيَ

عثمان رَضِیَاللهُعَنْهُ (کعب رَضِیَاللهُعَنْهُ چې د غه وخت موجود ؤ) وویل چې ای کعبه! عبد الرحمن بن عوف مړ شو

وَ تَرَكَ مَالًا فَمَا تَرَى فِيهِ ؟ .

او هغې (ځان پسې) ډیر مال پریخی دی. ته دې باره کې څه وی؟ (آیا د هغې د مال پیخې ډیر زیاتوالي

فَقَالَ : إِنْ كَانَ يَصِلُ فِيهِ

دهغه د ایمان کمال لپاره مضرؤ یا نه؟) کعب رَضِیَاللهُعَنْهُ ورته وویل که عبد الرحمن رَضِیَاللهُعَنْهُ به ادا کولو دخپا

حَقَّ اللهِ فَلَا بَأْسَ عَلَيْهِ .

مال نه د الله حق (زکوة، صدقه وغیره) نو دهغه باره کې د هیڅ ویري ګنجائش نشته دی (دي اوریدو سره)

فَرَفَعَ أَبُو ذَرٍّ عَصَاهُ فَضَرَبَ كَعْبًا وَ قَالَ : سَمِعْتُ

ابوذر رَضِیَاللهُعَنْهُ خپله امساء را وچته کړه او کعب رَضِیَاللهُعَنْهُ یې پرې ووهلو او ورته وي ویل چې ما اوریدلي دي

(١) أخرجه النسائي في السنن ٨٣/٥ رقم الحديث ٢٥٦٩، والدارمي ٢٦٥/٢ رقم الحديث: ٢٣٩٥.

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : مَا أُحِبُّ لَوْ أَنَّ لِيْ هٰذَا الْجَبَلَ ذَهَبًا أُنْفِقُهُ

دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چې که زما د سروزرو داغر (احد) وي او زه دا د (خدای په لاره) کې مصرف کړم

وَ يُتَقَبَّلُ مِنِّي أَذَرُ خَلْفِي مِنْهُ سِتَّ

نو سره ددې نه هغه قبول هم شي خو بيا يې هم زه نه خوښوم چې (د ځان نه وروسته) پرېږدم په دې کې شپږ

أَوَاقِيَّ .

اوقيه (يعنې دوه سوه دراهم). بيا ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مخاطب کړو او ورته وي ويل چې)

أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ يَا عُثْمَانُ أَ سَمِعْتَهُ ؟ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ .

په خدای قسم درکوم او پوښتنه درنه کوم چې آيا تا دا ارشاد نه دی اوريدلی؟ ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا درې ځل وويل

قَالَ : نَعَمْ .[1]

حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې آؤ (ما هم دا ارشاد اوريدلی دی).

**توضيح : فضرب کعباً:** دلته د کعب نه مراد کعب احبار دی چې صحابي نه ؤ بلکې تابعي ؤ عبد الرحمان بن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د شان والا صحابي دی چې په عشره مبشره کې دی. وروسته ډېر مالداره شو. حضرت ابو ذر غفاري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د دې امت يو مثالي زاهد دی. که دا وويل شي نو بې ځايه به نه وي چې ده به په زهد کې د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ سره يو قِسم ته مشابهت لرلو. دده مسلک ؤ چې کوم کس سحر خوراک وکړي او د ماښام لپاره يې ذخيره کړي نو هغه د ګناه ارتکاب وکړو. صحابۇ دور کې به خلکو دده ډېر قدر کولو او هره خبره به يې ورله منله. خو چې تابعين پيدا شول نو خلکو به د هغې خبره ډېره نه زغمله. هره ورځ به يو نه يو جنګ ؤو. حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په دې وجه د مدينې نه جلا وطن کړو او مدينې سره نزدې يې "ربذه" په ځائ کې ايسار کړو او هلته بيا وسيدلو او د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پيشنګوئی مطابق هلته مړ او هملته خخ هم کړی شو.

**اذر:** دا د حب مفعول دی او ددې نه مخکې د "ان" حرف محذوف دی. آی بِأَنْ أَذَرَ. (المرقات ۴/۳۸۷).

**انشدك:** د قَسم ورکولو په معنی کې دی. يعنې په خدای قَسم درکوم او پوښتنه درنه کوم چې نبي کريم

(۱) اخرجه أحمد في المسند ۱/۶۳.

ﷺ داسي فرمايلي ؤ او كه نه. (المرقات : ۴/۳۸۷).

﴿۲۵﴾ وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ : صَلَّيْتُ وَرَاءَ النَّبِيِّ
عقبه رضي الله عنه ابن حارث بيان كوي چې (د يوي ورځي واقعه ده چې) مامونځ وكړو وروسته د نبي كريم
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ الْعَصْرَ فَسَلَّمَ ثُمَّ قَامَ مُسْرِعًا
ﷺ مدينه كې د مازيګر كله چې نبي عليه السلام سلام وګرځولو نو ډير په تندئ سره اودريدو او د
فَتَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ إِلَى بَعْضِ حُجَرِ نِسَائِهِ فَفَزِعَ النَّاسُ مِنْ سُرْعَتِهِ
خلكو په څټونو يې خپي واړولي او د څېنو ازواج مطهراتو حجرو طرف ته لاړو. صحابه كرام ويريدل د
فَخَرَجَ عَلَيْهِمْ فَرَأَى أَنَّهُمْ قَدْ
نبي كريم ﷺ د تيز مزل كولو نه بيا نبي عليه السلام د حجري نه بهر راغلو او صحابه يې وليدل په
عَجِبُوا مِنْ سُرْعَتِهِ قَالَ : ذَكَرْتُ شَيْئًا مِنْ تِبْرٍ عِنْدَنَا
تعجب سره په خپل تيزمزل كولو باندې نو وي فرمايل (ناڅاپه) ماته راياد شو چې مونږ سره يو د سرو زرو
فَكَرِهْتُ أَنْ يَحْبِسَنِي
شي پروت دى نو ما بد وګڼل چې هغه ما (د مقام قرب نه) منع كړي. لهذا (زر لاړم او اهل بيتو ته) مې
فَأَمَرْتُ بِقِسْمَتِهِ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ . [1] وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُ
حكم وكړو چې هغه سره زر تقسيم كړې. او د بخارى په يو بل روايت كې دي چې نبي كريم ﷺ
قَالَ : كُنْتُ خَلَّفْتُ فِي الْبَيْتِ تِبْرًا مِنَ الصَّدَقَةِ
وفرمايل ما په زكوة دراوړى شوي سروزرو يو ډيرى كور كې پريخودى ؤ (چې د تقسيم نه وروسته پاتي
فَكَرِهْتُ أَنْ أُبَيِّتَهُ .
شوى ؤ) لهذا زما خوښ نه كړو چې يو شپه يې هم زه د ځان سره كېږدم.

**توضيح : تبر**: د سرو زرو ټكړو ته وايي. **يحسبني**: د دې مطلب دا دى چې دا سره زر چرته ما د مقام قرب نه منع نه كړي. دا د اهل الله خاص شان دى. (المرقات ۴/۳۸۸).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۹/۳ رقم الحديث ۱۴۳۰، والنسائي في السنن ۸۴/۳ رقم الحديث : ۱۳۶۵، وأحمد في المسند ۷/۴.

**ابیته**: یعنې هغه سره زر زما کور کې شپه تیره کړي او زه هغه خپل کور کې د شپې تیرولو لپاره کېږدم.

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدِي فِي مَرَضِه سِتَّةُ دَنَانِيرَ أَوْ سَبْعَةٌ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ناروغۍ په دوران کې ماسره شپږ يا اوه اشرفۍ وي |
| فَأَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ أُفَرِّقَهَا |
| لهذا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته حکم وکړو چې دا تقسيم کړه خو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام ناروغي دا (د تقسيم کولو |
| فَشَغَلَنِي وَجَعُ نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| نه) پاتې کړي (يعنې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د بيمارۍ په وجه ماته د هغې په وجه د تقسيمولو مهلت ملاؤ نه شو) |
| ثُمَّ سَأَلَنِي عَنْهَا : مَا فَعَلَتِ السِّتَّةُ أَوِ السَّبْعَةُ ؟ قُلْتُ : |
| نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما نه وپوښتل چې د هغه اشرفيو څه وشول؟ عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا (وايي چې ما) |
| لَا وَ اللهِ لَقَدْ كَانَ شَغَلَنِي وَجَعُكَ |
| عرض وکړو چې لا تر اوسه مې هغه نه دي تقسيم کړي په الله قسم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام بيمارۍ هغه تقسيمولو |
| فَدَعَا بِهَا ثُمَّ وَضَعَهَا فِي كَفِّهِ |
| نه) ما نه پاتې کړي (دي او ريد وسره) نبي عَلَيْهِ السَّلَام دغه اشرفۍ راوغوښتې او هغه يې په خپلو لاسو کېخودې |
| فَقَالَ : مَا ظَنُّ نَبِيِّ اللهِ لَوْ لَقِيَ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ |
| او وي فرمايل چې آيا دا ګمان (کيدې شي) چې د خداى نبي د الله سره په داسې حال کې ملاقات وکړي چې |
| وَ هٰذِهِ عِنْدَهُ ؟ .(۱) |
| دا اشرفۍ د هغې سره وي. |
| ﴿۲۷﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ دَخَلَ عَلَى بِلَالٍ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خواته راغلو نو (وي ليدل چې) |
| وَ عِنْدَهُ صُبْرَةٌ مِنْ تَمْرٍ فَقَالَ : مَا هٰذَا يَا بِلَالُ ؟ |
| دده خوا کې کهجورو انبار پروت دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترې نه وپوښتل چې بلاله! دا څه دي؟ بلال |

(۱) اخرجه أحمد في المسند ۱۰۴/۶.

قَالَ : شَيْءٌ ادَّخَرْتُهُ لِغَدٍ .

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې دا هغه شی دی چې ما د سبا (یعنې د آئنده پېښېدونکې ضرورت لپاره) جمع کړي دی.

فَقَالَ : أَمَا تَخْشَى أَنْ تَرَى لَهُ غَدًا بُخَارًا فِي نَارِ جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامِ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمایل چې آیا ته ددې نه نه ویرېږې چې سبا د قیامت په ورځ د اور بخار ووینې (بیا

أَنْفِقْ بِلَالُ وَلَا تَخْشَ مِنْ ذِي الْعَرْشِ إِقْلَالًا .[1]

یې وفرمایل) بلال! دا ذخیره د (الله په لار کې) مصرف کړه او د صاحب عرش نه فقر او دولګۍ ویره مه کوه.

﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : السَّخَاءُ شَجَرَةٌ فِي الْجَنَّةِ

ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "سخاوت" جنت کې یو بوټی دی. لهذا

فَمَنْ كَانَ سَخِيًّا أَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْهَا فَلَمْ يَتْرُكْهُ الْغُصْنُ حَتَّى يُدْخِلَ

کوم کس چې سخي وي نو هغه به د هغې څانګې نیسي. نو هغه څانګې به دا نه پرېږدي تردې چې داخل

الْجَنَّةَ . وَالشُّحُّ شَجَرَةٌ فِي النَّارِ فَمَنْ كَانَ شَحِيحًا

یې کړي جنت ته (اګر که هغه آخر الامروي) دغه شان بخل دوزخ کې یو بوټی دی لهذا څوک چې بخیل وي

أَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْهَا فَلَمْ يَتْرُكْهُ الْغُصْنُ حَتَّى يُدْخِلَهُ النَّارَ .[2]

نو هغه به ددې څانګې نیسي نو هغه څانګې به دا نه پرېږدي تردې چې داخل یې کړي دوزخ ته.

﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : بَادِرُوا بِالصَّدَقَةِ

حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د خدای په لار کې مصرف کولو تُندي

فَإِنَّ الْبَلَاءَ لَا يَتَخَطَّاهَا .[3]

کوی (یعنې مرګ یا د مریضتیا نه مخکې صدقه ورکړی) ځکه په صدقې ورکولو سره مصیبت نه ډیرېږي

(یعنې د خدای لاره کې مصرف کولو سره مصیبتونه ختمېږي).

---

(۱) أخرجه البیهقي في شعب الایمان ۱۱۸/۲ رقم الحدیث :۱۳۴۶.

(۲) أخرجه البیهقي في شعب الایمان ۴۳۵/۷ رقم الحدیث :۱۰۸۷۶.

(۳) أخرجه البیهقي في شعب الایمان بلفظ باکروا رقم الحدیث ۳۳۵۳.

# باب فضل الصدقة

## د صدقې فضیلت

ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې لیکلي دي چې هر هغه شي ته صدقه وايي چې کوم انسان د خپل مال نه د قرب الهی د حصول لپاره اوباسي. هغه صدقه که فرض وي یا واجب وي یا نفل وي. دیته صدقه ځکه ویل شوي ده چې صدقه ورکونکي په خپل صدق ایمان باندې دلالت کوي یا د جنت د نعمتونو په رېښتني میلان باندې دلالت کوي. (المرقات ۴/۳۹۰).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### الله تعالی د مصدق صدقه ډیروي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَصَدَّقَ بِعَدْلِ تَمْرَةٍ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم کس چې مصرف کړي کهجورې برابر (که |
| مِنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ وَلَا يَقْبَلُ اللهُ إِلَّا الطَّيِّبَ |
| په صورت کې وي او که په قیمت کې وي) د حلال عاید نه (او په دې پوهه شئ) چې الله فقط حلال مال قبلوي |
| فَإِنَّ اللهَ يَتَقَبَّلُهَا بِيَمِينِهِ ثُمَّ يُرَبِّيهَا لِصَاحِبِهَا كَمَا |
| نو الله دا په خپل ښی لاس باندې قبلوي او بیا دا (صدقه) د صدقه کونکي لپاره داسې وروزي لکه تاسو کې |
| يُرَبِّي أَحَدُكُمْ فَلُوَّهُ حَتَّى تَكُونَ مِثْلَ الْجَبَلِ.[1] |
| چې څوک خپل د اسپي روزي تردې چې هغه (صدقه یا د هغې ثواب) د غر په شان شي. |

**توضیح**: الا الطیب: یعنې الله د حلالو نه بغیر د حرام مال صدقه نه قبلوي. شاعر وايي:

ما يقبل الله الا كل طيبة ❁ ما كل من حج بيت الله مبرور

و قيل يحجون بالمال الذي يجمعونه ❁ حراماً الى البيت العتيق المحرم

فقهاؤ لیکلي دي کوم کس چې د حرام مال صدقه د ثواب د حصول په نیت کوي نو د هغې د کافر کیدلو خطر شته دی. فقهاء لیکي چې حرام مال د چا سره وي او هغه یې فقیر یا غریب ته ورکول غواړي نو د

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۲۷۸، رقم الحديث ۱۴۱۰، ومسلم في صحيحه ۲/۷۰۲ رقم الحديث :۶۳-۱۰۱۴، والترمذي في السنن ۳/۴۹ رقم الحديث ۶۶۱، وأحمد في المسند ۲/۳۰۱.

ثواب په نيت دې نه ورکوي بلکې د دمې د فرعيدو ف په نيت دې ورکوي.

**بيمينه**: د نبي لاس ذکر اعزاز او اکرام ارخ ته اشاره ده ځکه د احترام قابل شې په ښي لاس سره او اخستل او ورکول کيږي. يربي: تربيته نه دی. د ډيرولو په معنی کې دی. (المرقات: ۳۹۱/۴).

**فلوه**: د اسپې بچي ته فلوه وايي. لکه څنګه چې د شوق او اهتمام په وجه يو کس د خپلي اسپي بچي روزي. همدغه شان الله د هغه کس صدقه هم ډيروي. يربي او ﴿ وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ ﴾ آيت ته اشاره ده. ملا علی قاري رَحِمَهُ اللَّهُ مرقات کې د شيخ علي متقي رَحِمَهُ اللَّهُ د حلال مال د صدقه کولو متعلق يوه عجيبه قصه ليکلې ده. هلته دې وکتلی شي.

## په صدقه کولو باندې مال نه کميږي

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا نقصت صَدَقَة من مَال شَيْئًا |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "صدقه ورکول مال کې کمی نه کوي. او |
| وَمَا زَادَ اللهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ |
| کوم کس چې د چا خطا معاف کړي نو الله د هغې عزت ډير کړي او څوک خاص د الله د رضا لپاره تواضع او |
| إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ.(۱) |
| عاجزي اختياروي نو د الله د هغې مرتبې اوچتوي. |

**توضيح: ما نقصت**: دې حديث کې د درې شيانو ذکر دی او نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ضمانت په توګه دا ارشاد فرمايلي دي. اول دا چې صدقه کولو باندې مال نه کميږي. حال دا چې عامه توګه باندې خلک دا ګڼي چې مال کميږي. دويم چې د يو مجرم په معاف کولو سره د معاف کونکي عزت ډيريږي. حال دا چې خلک ګڼي چې عزت يې کم شو. دريم دا چې په تواضع کولو سره الله د متواضع ته اوچتوالی نصيب کوي. حال دا چې په ظاهره خو هغې خپله درجه لاندې راګوزاره کړې ده. (المرقات: ۴/۳۹۱).

## جنت يو دی او دروازې يې اته دي

| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ مِنْ شَيْءٍ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې مصرف کړي دوه چنده شي |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۰۱/۴، رقم الحديث ۶۹ ۲۵۸۸، والترمذي في السنن ۳۳۰/۴ رقم الحديث ۲۰۲۹، وأحمد في المسند ۲۳۵/۲

مِنَ الْأَشْيَاءِ فِي سَبِيلِ اللهِ دُعِيَ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ

په خپلو شیانو کې د الله په لاره کې (یعنې د الله د رضا او د خوشحالۍ په خاطر) نو دا به را وغوښتلې شي د

وَ لِلْجَنَّةِ أَبْوَابٌ فَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّلَاةِ

جنت په دروازو او د جنت ډېرې (یعنې اته) دروازې دي. نو کوم کس چې (ډیر) مونځ کونکی وي دا به د

دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّلَاةِ

جنت باب الصلاة (د مونځ دروازه) باندې را وغوښتلې شي (چې د مونځ گوزارو لپاره به خاص کړی شوي وي

وَ مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجِهَادِ

او ده ته به وویل شي چې ای بنده! په دې دروازه جنت ته داخل شه او کوم کس چې (ډیر) جهاد کونکی وي

دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجِهَادِ وَ مَنْ كَانَ

(د الله په لاره کې) داه به "باب الجهاد" (د جهاد په دروازه) به را وغوښتلې شي. کوم کس چې (ډیره)

مِنْ أَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ

صدقه ورکونکی (د الله په لاره کې خپل مال ډیر مصرف کونکی) وي دا به را وغوښتلې شي په باب الصدقه

وَ مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصِّيَامِ دُعِيَ مِنْ بَابِ

(یعنې د صدقې په دروازه) او کوم کس چې (ډیر روژې) نیونکی وي هغه به را وغوښتلې شي په باب

الرَّيَّانِ .

الریان (یعنې د باب الصیام نه چې جنت کې د روژو د دروازې همدغه نوم دی) باندې (دي او ریدو سره)

فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ : مَا . عَلَى مَنْ دُعِيَ مِنْ تِلْكَ الْأَبْوَابِ

ابوبکر صدیق رضي الله عنه عرض وکړو " (اګر که) کوم کس د دې دروازو نه په یوه دروازه هم را وغوښتلې شو

مِنْ ضَرُورَةٍ

د هغې ټولو دروازو باندې د را غوښتلو ضرورت نشته دی (ځکه په یوه دروازه باندې را غوښتل به هم کافي

وي دي وخت کې مقصد خو به جنت ته داخلیدل وي او دا به په یوه دروازه باندې هم داخل شي یا زه فقط

فَهَلْ يُدْعَى أَحَدٌ مِنْ تِلْكَ الْأَبْوَابِ كُلِّهَا ؟

د علم په خاطر پوهیدل غواړم چې آیا داسې څوک به (خوش نصیب) کس هم وي چې په دې ټولو دروازو

| قَالَ : نعم وَ أَرْجُو أَنْ تَكُوْنَ مِنْهُمْ.[1] |
|---|
| باندې به راوغوښتلی شي؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل آؤ. او زما امید دی چې ته د هغه خلکو نه یې |
| (کوم به چې په ټولو دروازو راغوښتلی کیږي). |

**توضیح: من انفق زوجین:** زوجین جوړې ته وایي. ددې نه مراد دا دی چې د یو جنس نه یې دوه شیان ورکړل مثلاً دوه درهم یې ورکړل، دوه سیره غنم یې ورکړل، دوه غلامان یا دوه جامې یې ورکړې یا یې دوه اوښان ورکړل. جدا جدا قسمونه مراد نه دي. ملا علی قاري رحمه الله لیکي چې زوجین د مسلسل صدقه کولو نه تعبیر دی چې یو ځل یې صدقه ورکړه او بیا یې ورکړه.

**ابواب:** یعنې د جنت اته دروازې دې لکه څنګه چې د صریح حدیث نه ثابت دي. (المرقات ۴/۳۹۲).

**باب الریان:** اګر که په روژو سره انسان تږی کیږي او د اوبه څکل ډیر په شوق سره غواړي نو ځکه د داخلیدلو دروازې نوم ریان ایخودلی شوی دی چې د خړوبولو په معنی دی. (المرقات: ۴/۳۹۲).

**من ضرورة:** د حضرت ابوبکر رضي الله عنه دا پوښتنه وه چې جنت ته داخلیدل مقصود دی هغه که په یوه دروازه وشي او که په ټولو دروازو باندې راوغوښتلی شي او داخلیدل څه ضروري نه دې خو یا رسول الله ﷺ! آیا داسې کیدی شي چې کوم یو کس په ټولو دروازو راوغوښتلی شي؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل چې داسې کیدی شي او زما امید دی چې ته به د همغه خلکو نه یې. (المرقات ۴/۳۹۴).

**فهل یدعی:** لپاره ما علی من دعی الخ کلام د تمهید په توګه دی. (المرقات: ۴/۳۹۴).

## یوه ورځ څلور کاره وکړه او جنت وګټه

| ﴿٤﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
|---|
| ابو هریره رضي الله عنه وایي چې (یوه ورځ صحابه کرام په مخاطب کولو سره) نبي کریم ﷺ وفرمایل |
| مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ صَائِمًا ؟ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ : أَنَا قَالَ : |
| چې تاسو کې د کوم یو کس روژه ده؟ ابوبکر رضي الله عنه وویل چې زما روژه ده نبي کریم ﷺ وفرمایل |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴، رقم الحديث ۱۸۹۷، ومسلم في صحيحه ۲ ۷۱۱ رقم الحديث ۸۵ ۱۰۲۷، وأحمد في المسند ۲ ۳۶۶

فَمَنْ تَبِعَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ جِنَازَةً ؟ قَالَ أَبُو بَكْرٍ : أَنَا.

نن تاسو کې کوم یو کس د جنازې سره (مونځ لپاره یا قبرستان) ته تللی وې؟ ابو بکر رضي الله عنه وویل: زه

قَالَ : فَمَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مِسْكِينًا ؟ قَالَ أَبُو بَكْرٍ : أَنَا.

نبي عليه السلام وفرمايل نن تاسو کې کوم کس په مسکين خواړه خوړلي دي؟ ابو بکر رضي الله عنه وويل "ما".

قَالَ : فَمَنْ عَادَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مَرِيضًا ؟ . قَالَ أَبُو بَكْرٍ : أَنَا.

نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل نن تاسو کې چا مريض بيمارپرسي کړې ده؟ ابو بکر رضي الله عنه وويل "ما"

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَا اجْتَمَعْنَ فِي امْرِئٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ.(۱)

بيا نبي عليه السلام وفرمايل چې (واوره) کوم کس کې چې دا خبرې جمع شي هغه به جنت ته داخلېږي.

**توضيح : انا:** يعنې ما همدغه شان کړي دي. د چا په پوښتنه کولو باندې خپل پټ اعمال ښکاره کول جائز دې خو بقدر د پوښتنه او د هغې جواب. داسي نه چې په ممبر کيني او د ټول کلي نيک کارونه شميرل شروع کړي. دی سره به ټول اعمال ضايع شي. دلته صديق اکبر رضي الله عنه څلور خبري کړې دې خو خبره د نبي کريم صلى الله عليه وسلم له اړخ نه د پوښتني لپاره شوې ده. خپله به يې وی. دا عجيبه نسخه ده. که نن هم يو کس ته د دې توفيق وشي نو نن هم د جنت وعده ده. د دې پلتنه څه مشکل کار نه دی. حرمين شريفين کې رمضان کې خامخا روژه وي. جنازه خامخا راځي. ملګرو کې مسکينان وي او د مريضانو هم کم نشته دی. عجيبه دولت دی چې د کم خرچ بالا نشين انداز سره يو ځای شي. (المرقات ۴/۳۹۴).

## د کم تر شي تحفه هم سپکه مه ګڼې

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا نِسَاءَ الْمُسْلِمَاتِ لَا تَحْقِرَنَّ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "ای د مسلمانانو ښځو! سپک مه ګڼې

جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَ لَوْ فِرْسِنَ شَاةٍ.(۲)

تحفه د يوه ګاونډي خپل ګاونډی ته (تحفه لېږل يا صدقه کول) اګر که هغه د بيزې نوک ولې نه وي.

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۷۱۳/۲ رقم الحديث :۸۷-۱۰۲۸.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۴۵/۱۰، رقم الحديث ۶۰۱۷، ومسلم في صحيحه ۷۱۴/۲ رقم الحديث :۹۰-۱۰۳۰، .أحمد في المسند ۴۳۵/۶.

**توضيح : يانساء المسلمات:** د دې كلام دوه مفهومه دي: اول دا چې يوې ګاونډۍ سره چې څه هم وي هغه كه د كمزوري نه كمزوري ولې نه وي هغه ضرور خپلې ګاونډۍ ته د تحفې په توګه ور ولېږي. همدغه شان په كلام كې تحفه كونكو ښځو ته خطاب دى.

دويم مفهوم دا دى چې يوه ګاونډۍ بلې ګاونډۍ ته يوه كمزوري شى ور ولېږي نو په سپک ګڼلو سره د هغې د قبلولو نه انكار مه كوى بلكې د كمزوري نه كمزوري شى هم قبلوى. دغه شان په كلام كې هغه ښځو ته خطاب دى چې هغوى ته تحفه ورلېږلې شوې وي او د ښځو په مزاج كې دا چې د كمزوري شي د قبلول جرأت او برداشت كم وي نو ځكه هغوى ته خطاب شوى دى.

**فرسن:** دېيزې د خپو د نوكانو په مينځ كې يوه بيكاره د څرمنې په شان غوښه وي. (المرقات ۴/۳۹۵).

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ وَحُذَيْفَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ.[1] |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: "هره نيكي صدقه ده". |
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ شَيْئًا |
| ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "تاسو هيڅ يو نيک كار كمزوري مه ګڼئ. |
| وَلَوْ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلِيقٍ.[2] |
| اګر كه ته ملاؤ شې د خپل ورور سره په خلاص تندي سره. |

## د نيكۍ د حاصلولو مختلفې مرتبې

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| ابوموسى اشعرى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (د الله شكر په خاطر) هر مسلمان |
| عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ. قَالُوا: فَإِنْ لَمْ يَجِدْ؟ |
| باندې صدقه لازم ده. صحابوُ (دې اوريدو سره) وويل چې كه د چا سره د صدقې لپاره څه نه وي؟(نو هغه |
| قَالَ: فَلْيَعْمَلْ بِيَدَيْهِ |
| څه وكړي) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل دا سې كس ته په كار دى چې هغه په خپل دواړو لاسونو باندې رزق وګټي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۴۷، رقم الحديث: ۶۰۲۱، ومسلم في صحيحه ۲/۶۹۷ رقم الحديث: ۵۲-۱۰۰۵، وأبوداود في السنن ۵/۲۳۵، رقم الحديث ۴۹۴۷، والترمذي في السنن ۴/۳۰۶ رقم الحديث ۱۹۷۰، وأحمد في المسند ۳/۳۴۴.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۲۶ رقم الحديث: ۱۴۴ ۲۶۲۶، وأحمد في المسند ۵/۲۷۳

فَيَنْفَعَ نَفْسَهُ وَ يَتَصَدَّقَ . قَالُوْا :

او (د ده اشن) خپل ځان ته (فايده) ورسوي. او صدقه او خيرات هم وکړي. صحابؤ عرض وکړو چې که

فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ ؟ أَوْ لَمْ يَفْعَلْ ؟

هغه د دې طاقت هم نه لري (محنت مزدوري وکړي او عايد ترلاسه کړي) يا يې وويل چې هغه دا هم ونه کړي

قَالَ : فَيُعِيْنُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوْفَ .

شي نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل هغه ته په کار دي چې (څه رنګ هم وي) د غمژن او د حاجت مندو سره مرسته

قَالُوْا : فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْهُ ؟ قَالَ :

• کړي. صحابه کرامو وويل چې که چرې دا هم ونه کړې شي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې هغه ته

فَيَأْمُرُ بِالْخَيْرِ . قَالُوا : فَإِن لَمْ يَفْعَلْ ؟

په کار ده چې (نوروته) د نيکۍ او خير هدايت وکړي صحابه کرامو وويل چې که چرې هغه دا ونه کړی شي

قَالَ : فَيُمْسِكُ عَنِ الشَّرِّ

نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې هغه ته په کار ده چې (خپل ځان يا نور د) بدی (تکليف) رسولو نه منع کړي

فَإِنَّهُ لَهُ صَدَقَةٌ .[1]

د هغه لپاره هم دغه صدقه ده (يعني هغه ته به د صدقې ثواب ملاؤ شي).

## صدقه هره ورځ د بدن په هر بند باندې واجب ده

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ سُلَامَى مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د انسان بدن کې بند ونه دي په هغه باندې

صَدَقَةٌ : كُلَّ يَوْمٍ تَطْلُعُ فِيهِ الشَّمْسُ يَعْدِلُ بَيْنَ الِاثْنَيْنِ صَدَقَةٌ

(يعني د هغه لپاره) هره ورځ صدقه ورکول لازم دي او دوه کسانو مينځ کې عدل کول هم صدقه ده د يو انسان

وَ يُعِينُ الرَّجُلَ عَلَى دَابَّتِهِ فَيَحْمِلُ عَلَيْهَا أَوْ يَرْفَعُ عَلَيْهَا مَتَاعَهُ صَدَقَةٌ

په هغه وخت کې مرسته کول چې د هغې په سپرلۍ باندې سپرول او د هغې اسباب ايخودل هم صدقه ده نه

[1] أخرجه البخاري ۱۰ ٤٤٧، رقم الحديث ٦٠٢٢، ومسلم في صحيحه ٦٩٩:٢ رقم الحديث ٥٥ - ١٠٠٨، وأحمد في المسند ٤ ٣٩٥.

| وَ الْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ وَ كُلُّ خَطْوَةٍ يَخْطُوهَا إِلَى الصَّلَاةِ صَدَقَةٌ وَيُمِيطُ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ |
| --- |
| خبره هم صدقه ده او هر هغه قدم چې د مونځ لپاره ایخودل کیږي هغه هم صدقه ده او د لارې نه تکلیف ورکونکی |
| صَدَقَةٌ .[1] |
| شی لرې کول هم صدقه ده. |

**توضیح**: سلامی: سین باندې ضمه ده او میم باندې فتحه ده. چې د هغې نه وروسته الف مقصوره دی.

علامه طیبی رَحِمَهُ اللهُ وایي چې سلامي جمعه ده. د دې مفرد سُلامیة دی. چې د گوتو بندونو لپاره ویل کیږي. خو ځینې علماء وایي چې د دې مفرد او جمعه یو شان ده. یعنې سلامی مفرد هم ده او جمعه هم ده او سلامیات هم جمعه راځي. ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې "وهوا عظم الاصبع" یعنې د گوتې بند او هډوکي ته سلامی وایي. خو دلته د انسان د بدن ټول بندونه مراد دي. او دا چې د بدن ټول بندونه حرکت کوي نو ځکه بندونو باندې د صدقه کولو ذکر شوی دی. اصل کې انسان باندې د شکر په توګه صدقه کول واجب کړی شوي ده چې صدقه فقط د دې نوم نه دی چې د خدای په لاره کې څوک مال مصرف کړي بلکې د دوه کسانو مینځ کې عدل او انصاف سره فیصله کول هم صدقه ده. (المرقات ۴/۳۹۷ والکاشف: ۲/۱۱۸).

**وکل خطوة**: قدم او چتول نه مراد فقط هغه قدمونه نه دي چې د مونځ کولو لپاره اخستلی کیږي. بلکې د هر نیک کار لپاره اخستونکي قدم هم په دې کې شامل دی. مثلاً د طواف لپاره یا د مریض د بیمار پرسی لپاره یا جنازه کې د شرکت لپاره کوم قدمونه اخستلی کیږي هغه صدقه ده. چې بندونو باندې د واجب صدقې حق ادا کیږي. (المرقات: ۴/۳۹۸).

## د انسان په بدن کې درې سوه شپیته بندونه دي

| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَلَقَ كُلَّ إِنْسَانٍ مِنْ بَنِي آدَمَ |
| --- |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راویه ده چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمیل: پیدا کړی شوی دی هر انسان د |
| عَلَى سِتِّينَ وَ ثَلَاثِمِائَةِ مَفْصِلٍ فَمَنْ كَبَّرَ اللهَ وَ حَمِدَ اللهَ وَ هَلَّلَ اللهَ وَ سَبَّحَ اللهَ |
| (۳۶۰) بندونو سره لهذا څوک چې الله اکبر الحمد لله لا اله الا الله او سبحان الله ووایي او د خدای |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶: ۱۳۲، رقم الحديث ۲۹۸۹، ومسلم في صحيحه ۲: ۶۹۹ رقم الحديث ۵۶: ۱۰۰۹، وأحمد في المسند ۲: ۳۲۹

| |
|---|
| وَ اسْتَغْفَرَ اللهَ رَ عَزَلَ حَجَرًا عَنْ طَرِيقِ النَّاسِ أَوْ شَوْكَةً أَوْ عَظْمًا |
| نه استغفار وغواړي او دغه شان دلاري نه کاڼي ازغی او هډوکی (يعني هر تکليف ورکونکی شی) لرې |
| أَوْ أَمَرَ بِمَعْرُوفٍ أَوْ نَهَى عَنْ مُنْكَرٍ |
| کړي يا دنيک کار کولو حکم وکړي يا دبدو کارونو او خبرونه منع شي او دا (ټول يا ځينې خبري او کارونه) د |
| عَدَدَ تِلْكَ السِّتِّينَ وَ الثَّلَاثِمِائَةِ فَإِنَّهُ يَمْشِي يَوْمَئِذٍ وَ قَدْ زَحْزَحَ |
| بندونو ددرې سوه شپيته شمير مطابق وکړي نو هغه په هغه ورځ داسې حالت کې ګرځي ګويا چې هغه خپل |
| نَفْسَهُ عَنِ النَّارِ.[1] |
| ځان د اور نه ساتلې دی. |

## د صدقې مفهوم عام دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّ بِكُلِّ تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةً |
| ابوذر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل هره تسبيح يعني سبحان الله ويل صدقه ده. |
| وَ كُلُّ تَكْبِيرَةٍ صَدَقَةٌ وَ كُلُّ تَحْمِيدَةٍ صَدَقَةٌ وَ كُلُّ تَهْلِيلَةٍ صَدَقَةٌ |
| هر تکبير يعني الله اکبر ويل صدقه ده هر تحميد يعني الحمد لله ويل صدقه ده هر تهليل يعني لااله الاالله ويل |
| وَ أَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ وَ نَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ وَ فِي بُضْعِ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ |
| صدقه ده دنيکۍ حکم کول صدقه ده هر بدۍ نه منع کيدل هم صدقه ده او خپلې ښځې يا وينځې سره جماع |
| قَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ أَيَأْتِي أَحَدُنَا شَهْوَتَهُ |
| کول هم صدقه ده. صحابه کرامو عرض وکړو يا رسول الله! مونږ کې چې څوک شهوت پوره کړي نو هغه ته |
| وَ يَكُونُ لَهُ فِيهَا أَجْرٌ ؟ قَالَ : أَرَأَيْتُمْ لَوْ وَضَعَهَا فِي حَرَامٍ |
| دې باندې ثواب ملاويږي؟ نبي عليه السلام وفرمايل ماته ووايئ چې که يو کس په حرامه ذريعه (يعني زنا) |
| أَكَانَ عَلَيْهِ فِيهِ وِزْرٌ ؟ فَكَذَلِكَ |
| باندې شهوت پوره کړي د هغه به ګناه کيږي يا نه؟ (ظاهره خبره ده يقينًا به د هغې ګناه کيږي) لهذا دغه شان |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۹۸ رقم الحديث ۵۴ - ۱۰۰۷.

| إِذَا وَضَعَهَا فِي الْحَلَالِ كَانَ لَهُ أَجْر.[1] |
|---|
| چې هغه په حلاله ذريعه (خپلې ښځې يا وينځې) نه شهورت پوره کړي نو هغه ته به ثواب ملاوېږي. |

## بهترينه صدقه

| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: نِعْمَ الصَّدَقَةُ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ډېر و شوده ورکونکې اوښه يو کس ته د شوده |
| اللِّقْحَةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً وَ الشَّاةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً |
| څکلو لپاره عارية ورکول بهتره صدقه ده ډېر شوده ورکونکې بيزه ورکونکې چاله د شوده څکلو لپاره عارية |
| تَغْدُو بِإِنَاءٍ وَ تَرُوحُ بِآخَرَ.[2] |
| ورکول بهترينه صدقه ده. هغه سحر ډک لوخی پئ ورکوي او ماښام ډک لوخی پئ ورکوي. |

**توضيح**: **اللقحة**: هغه اوښې ته **لقحة** وايي چې شوده په کې ډېر وي او څه لږه موده مخکې يې بچې پيدا شوی وي. (المرقات ۴/۴۰۰).

**الصفي**: دا د **لقحة** صفت دی. دينه مراد ډېر شوده ورکونکې اوښه ده. (المرقات: ۴/۴۰۰).

**منحة**: ميم باندې کسره ده. د ؤالی کولو په معنی دی. د **منحة** لفظ ډېر مشهور او معروف ؤ ځکه د عربو معاشره کې دې باندې په عامه توګه عمل کيدلو. طريقه به دا وه چې د يو سړي سره د شودو والا اوښ يا بيزه وه نو هغې به د **عارية** په توګه خپل فاميل (خاندان) کې يا بل کوم داسې سړي ته ورکولو چې د هغې سره به د شودو انتظام نه وو چې هغه د دې شوده نه استفاده وکړي او بيا يې بيرته ورکړي. (المرقات ۴/۴۰۰).

**تغدو بإناء**: دا جمله د منحة لپاره صفت دی مادحه او د صفت کاشفه ده يعنې د هغه کس د دې کار نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تعريف او ښوالی بيان کړو چې داسې منحه ده چې د هغې نه سحر او ماښام لوخي د شودو نه ډک حاصلېږي. (المرقات ۴/۴۰۰).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۹۷ رقم الحديث ۵۳-۱۰۰۶، وأحمد في المسند ۵/۱۶۷.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۷۰، رقم الحديث ۵۶۰۸، ومسلم في صحيحه ۲/۷۰۷ رقم الحديث ۷۴-۱۰۲۰.

## په پټي کې د فصل کرلو ثواب

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا أَوْ يَزْرَعُ زَرْعًا |
| انس رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل کوم مسلمان چې بوټی وکري يا پټي وکري |
| فَيَأْكُلُ مِنْهُ إِنْسَانٌ أَوْ طَيْرٌ أَوْ بَهِيمَةٌ إِلَّا كَانَتْ |
| او بيا انسان يا مارغه يا څريدونکی (د مالک د خوښي نه بغير) د هغې نه څه خوري نو (دا نقصان) د مالک |
| لَهُ صَدَقَةً . [1] وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ جَابِرٍ : |
| لپاره صدقه ده. او د مسلم په يو بل روايت کې چې د جابر رضي الله عنه نه منقول دی دا الفاظ هم دي چې او د |
| وَمَا سُرِقَ مِنْهُ لَهُ صَدَقَةٌ ). |
| هغې نه څه غلا کېږي نو هغه هم د مالک لپاره صدقه ده. |

**توضيح** :**اوبهيمة**:يعنې پټي والا چې کله فصل وکرلو او د دې فصل نه کوم ځناور يا مارغه يا څريدونکې ځاروي څه وخوړل او يا کوم انسان ترې نه غلا وکړه نو دا ټول زمنيدار او د پټي والا په حق کې صدقه ده. په دې سره د کرونده کولو د عام فضيلت نه اندازه وشوه. د فصل عمومي فايده دا هم ده چې يو اړخ ته غله ده چې انسان ترينه فايده اخلي نو بل اړخ وابنه دي چې ځاروي ترې نه فايده اخلي او دا رنګ د فصل پاتې شيانو نه د لرګو کار هم کېږي. بهرحال د فصل او زراعت ډيري فايدي دي.

**اويزرع**: کې أو د تنويع لپاره دی. (المرقات :۴/۴۰۱).

**سوال**: دلته اعتراض دی چې مارغانو، چرند او د غل په غلا به مالک ته څنګه ثواب ورکول کېږي حال دا چې په زمکه کې يې د کرلو وخت کې دا نيت نه ؤ کړی. بغير د نيت نه به ثواب څنګه ملاؤ ېږي؟

**جواب**: حضرت شاه عبد العزيز رحمه الله وايي چې د پټي اصل مقصود مطلقًا د نوع انساني او حيواني بقاء ده. دا اجمالي نيت دی چې د دهقان په زړه او مازغو کې وي. اوس که يو ځاوري هغه وخوړل يا يو انسان وخوړول که په جائزه طريقه وي او که په ناجائزه طريقه وي نو دې اجمالي نيت د دې سره تعلق وشي. ځکه ثواب حاصل شي. د امام بخاري رحمه الله او د ځينو نورو علماؤ دا رائی ده چې دلته بغير د نيت نه ثواب حاصلېږي. دا رائی ډيره واضحه ده.

---

(۱) أخرجه بخاري في صحيحه ۰۰ ۴۳۷، رقم الحديث ۲۰۰۸، ومسلم في صحيحه ۳ ۱۱۸۹ رقم الحديث ۱۲ ۱۵۵۳، والترمذي في السنن ۳ ٦٦٦ رقم الحديث ۱۳۸۲

## څاروۍ سره حسن سلوک د ثواب سبب دی

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: غُفِرَ لِامْرَأَةٍ مُومِسَةٍ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: چې بخشش وشو دیوې بدکارې ښځې |
| مَرَّتْ بِكَلْبٍ عَلَى رَأْسِ رَكِيٍّ يَلْهَثُ كَادَ |
| څکه یو ځل دا دیوسپي په خوا تیره شوه چې هغه د تندې د لاسه د کوهي په غاړه ولاړ و او ژبه یې راایستله |
| يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ فَنَزَعَتْ خُفَّهَا فَأَوْثَقَتْهُ بِخِمَارِهَا |
| نږدې وه چې سخته تنده دا مړکړي نو دې ښځې خپله د څرمني موزه وویستله او خپل څړوکي سره وتړله او |
| فَنَزَعَتْ لَهُ مِنَ الْمَاءِ |
| (ددې په ذریعه) یې د سپي لپاره اوبه راوویستلې (او په سپي یې وڅکولې) نو ددې ښځې ددې کار په وجه |
| فَغُفِرَ لَهَا بِذَلِكَ . قِيلَ : إِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ |
| بخشش وکړی شو صحابو (دې او ریدو سره) وویل چې آیا څناور سره په حسن سلوک باندې زمونږ لپاره |
| أَجْرًا ؟ قَالَ : فِي كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ |
| ثواب شته دی؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل آو. د هرځیګرلرونکي (یعنې ژوندي سر) سره حسن سلوک |
| أَجْرٌ . (۱) |
| کولو باندې ثواب دی (هغه که انسان وي او که څناوري وي). |

**توضیح**: **مومسة**: **میم** اول مضموم دی او **میم** ثاني باندې فتحه ده او کسره د دواړه جائز ده. فاسقه فاجره ښځې ته وايي. علامه طیبي رحمه الله لیکلي دي چې کیدلی شي د دې لفظ ماده **ومس** وي چې د خاربښ په معنی کې دی. (المرقات: ۴/۴۰۱).

**الرکية**: دا هغه کویي ته وايي چې د هغې غاړې نه وي جوړې کړی شوي. د دې جمعه "رکایا" راځي. (المرقات: ۴/۴۰۱).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۹/۶، رقم الحديث ۳۳۲۱، ومسلم في صحيحه ۱۷۶۰/۴ رقم الحديث: ۱۲ ۱۵۵۳، والترمذي في السنن ۶۶۶/۳ رقم الحديث ۱۳۸۲

**يلهث**: د تندي او ستړيا په وجه د سپي ژبه را وځي نو هغه حالت ته "**لهث**" وايي. (المرقات :۴/۴۰۱).

**خمارها**: زوړكي ته **خمار** وايي. دا چې پړي يا بل څه نه وُو نو زوړكي باندې يې وتړلو. (المرقات ۴/۴۰۱).

**كبد**: جگر ته وايي. **رطبة**: د تر او تازه په معنى کې دى. څكه كوم شي کې چې ځيگر وي نو هغه ځناور وي او تر څو چې ځيگر تازه وي نو هغه ژوندى وي گيني مړ كېږي. (المرقات :۴/۴۰۲).

## په ځاروُ باندې بې رحمي كول گناه ده

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : عُذِّبَتِ امْرَأَةٌ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا و ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راويان دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل عذاب وركړې شويوې |
| فِيْ هِرَّةٍ أَمْسَكَتْهَا حَتّٰى مَاتَتْ مِنَ الْجُوعِ فَلَمْ تَكُنْ تُطْعِمُهَا |
| ښځې ته صرف د دې په وجه چې دې يوه پيشو تړلې وه تردې چې دا مړه شوه د لوږې نه چې نه به يې خوراک |
| وَلَا تُرْسِلُهَا فَتَأْكُلَ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ.[1] |
| وركولو او نه به يې څه څښاك وركول او نه يې پرېخوده چې خوړلې يې وې حشرات د زمكې (مږه وغيره) |

**توضيح** : **في هرة**: دلته في كلمه د تعليل او علت بيانولو لپاره دى. يعنې د پيشو په وجه يوه ښځه دوزخ ته لاړه. (المرقات ۴/۴۰۲).

**خشاش: بضم الخا و كسرها: حشرات الارض** ته وايي يعنې هغه پيشو دې ښځې نه پرېخودله چې د زمكې چينجي يې خوړلې وَى. د دې حديث نه معلومه شوه چې په صغيره باندې هم مؤاخذه كيدلى شي. څكه د دغه ښځې دا فعل په ظاهره وړه گناه وه. خو ځينې علماء ليكي چې دې گناه باندې ضد كولو سره كبيره (لويه) گناه جوړېږي. (المرقات :۴/۴۰۲).

بهرحال د دې حديث چې كوم پس منظر معلومېږي هغه يقينًا كبيره گناه ته اشاره كوي څكه پشو اگر چې مضره ده. يا اوس محال هغې څه نقصان رسولى وى نو قتل موذى جائز دى خو يوه بې گناه پشو وژل او وژل هم په داسې انداز چې په تصور كولو سره غوني رازېږ شي. دې ته صغيره گناه تعجب دى. لهذا د بحث د لاندې کې د دې ښځې فعل د كبيره گناه وُو. څكه دوزخ ته لاړه.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۶/۶، رقم الحديث: ۳۳۱۸، ومسلم في صحيحه ۱۷۶۰/۴ رقم الحديث :۱۵۱-۲۲۴۲، وابن ماجه ۱۴۲۱/۲ رقم الحديث : ۴۲۵۶، وأحمد في المسند ۵۰۷/۲

## د لارې نه د تکلیف کوونکې شي د لرې کولو ثواب

﴿۱٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَرَّ رَجُلٌ بِغُصْنِ شَجَرَةٍ

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل یو کس د بوټي یوې څانګې په خوا تیرید و

عَلَى ظَهْرِ طَرِيقٍ فَقَالَ: لَأُنَحِّيَنَّ هٰذَا

چې په لاره کې پرته وه (چې په لاره تلونکو ته به ترینه تکلیف ؤ) هغه کس خپل زړه کې وویل چې دا به

عَنْ طَرِيقِ الْمُسلمين لَا يُؤْذِيهِمْ فَأُدْخل الْجَنَّةَ ".[1]

د مسلمانانو د لارې نه اخوا کړم چې هغوی ته تکلیف ورنه کړي نو په دې وجه هغه کس جنت ته داخل شو.

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ رَأَيْتُ رَجُلًا يَتَقَلَّبُ فِي الْجَنَّةِ

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ما یو کس ولید و چې جنت کې ګرځید و او

فِي شَجَرَةٍ قَطَعَهَا مِنْ ظَهْرِ الطَّرِيقِ كَانَتْ تُؤْذِي النَّاسَ.[2]

چکرې وهلو ځکه هغې یو داسې بوټي مات کړی ؤ چې په لاره کې ؤ او خلکو ته ترې نه تکلیف رسید و.

﴿۱۸﴾ وَ عَنْ أَبِي بَرْزَةَ قَالَ: قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ! عَلِّمْنِي شَيْئًا

ابرزه رضي الله عنه وايي چې یو ورځ ما نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته وویل چې ای د الله نبي! ما ته یو داسې خبره وکړه

أَنْتَفِعْ بِهِ قَالَ: اعْزِلِ الْأَذٰى

وکړه چې د هغې په وجه زه (آخرت کې فایده) حاصله کړم نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ته لرې کوه تکلیف

عَنْ طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ.[3]

رسوونکي شیان د مسلمانانو د لارې نه.

وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عدي ابن حَاتِمٍ: اتَّقُوا النَّارَ فِي بَابِ عَلَامَاتِ النُّبُوَّةِ إِنْ شَاءَ اللهُ.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۹/۲، رقم الحديث ٦٥۲، ومسلم في صحيحه ۲۰۲۱/٤ رقم الحديث :۱۲۷-۱۹۱٤، وابن ماجه ۱۳۱٤/۲ رقم الحديث : ۳٦۸۲، وأحمد في المسند ۳۰٤/۲.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۲۱/٤ رقم الحديث :۱۲۹-۱۹۱٤ ، وأحمد في المسند ٤۲۲/٤.

(۳) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۲۱/٤ رقم الحديث :۱۳۱-۲٦۱۸، وابن ماجه ۱۳۱٤/۲ رقم الحديث : ۳٦۸۱، وأحمد في المسند ٤۲۲/٤

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ : لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ جِئْتُ |
| عبد الله بن سلام رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم كله مدينې ته راغلو نو زه يې خدمت كې حاضر شوم |
| فَلَمَّا تَبَيَّنْتُ وَجْهَهُ عَرَفْتُ أَنَّ وَجْهَهُ لَيْسَ بِوَجْهِ كَذَّابٍ . |
| كله چې ما د نبي عليه الصلاة والسلام روښانه مخ وليد و ما و پيژندو چې دا مخ مبارك د يو دروغژن مخ نه شي كيدې |
| فَكَانَ أَوَّلُ مَا قَالَ : أَيُّهَا النَّاسُ ! |
| بيا د نبي كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد چې د ټولو نه اول نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلى ؤ ، دا ؤ چې اى خلكو ! |
| أَفْشُوا السَّلَامَ |
| سلام ښكاره كړئ (يعنې السلام عليكم) په اوچت اواز سره وايئ د دې لپاره چې چا ته سلام كېږي هغه |
| وَ أَطْعِمُوا الطَّعَامَ |
| يې واوري. او دا چې هر يو ته سلام كوئ هغه كه اشنا وي او كه نا اشنا وي) او (وږو ته) خواړه وركړئ |
| وَ صِلُوا الْأَرْحَامَ وَ صَلُّوا بِاللَّيْلِ وَ النَّاسُ نِيَامٌ |
| خپلوانو سره حسن سلوك كوئ د غه شان شپه كې هغه وخت (د تهجد) مونځ كوئ چې كله خلك اوده وي |
| تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ .[1] |
| (كه چرې دا وكړئ) نو جنت ته به د سلامتى سره (بغير د عذاب نه) داخل شئ. |
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اعْبُدُوا الرَّحْمٰنَ |
| عبد الله بن عمر رضي الله عنه راوي دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل " د الله رب العزت بندګي وكړئ |
| وَ أَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَ أَفْشُوا السَّلَامَ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ .[2] |
| (غريبانا تو ته) خواړه وركوئ او سلام عام كړئ نو جنت ته به په سلامتى سره داخل شئ . |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵۶۲/۴ رقم الحديث :۲۴۸۵ ،وابن ماجه ۴۲۳/۱ رقم الحديث :۱۳۳۴ ، وأحمد في المسند ۴۵۱/۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۵۳/۴ رقم الحديث :۱۸۵۵ ،وابن ماجه ۱۲۱۸/۲ رقم الحديث :۳۶۹۴.

## په صدقې کولو سره خاتمه بالخير کيږي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتُطْفِئُ غَضَبَ الرَّبِّ وَ |
| حضرت انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل "صدقه د الله غضب يخوي او |
| تَدْفَعُ مِيتَةَ السُّوْءِ. (۱) |
| حفاظت او ساتنه کوي د بد مرګ نه. |
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ وَإِنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ |
| جابر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل هره نيکي صدقه ده او نيکيو کې يو نيکي دا |
| أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ وَ أَنْ تُفْرِغَ مِنْ دَلْوِكَ |
| هم ده چې خپل د مسلمان ورور سره په خنده تندي ملاقات وکړي او بل دا چې واچوي او به د خپلې بوقې |
| فِي إِنَاءِ أَخِيكَ. (۲) |
| نه د خپل ورور په لوخي کې. |
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَبَسُّمُكَ فِي وَجْهِ أَخِيكَ |
| ابوذر رضي الله عنه راوي دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل د خپل (مسلمان) ورور مخې ته خندل (يعنې |
| صَدَقَةٌ وَ أَمْرُكَ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ ، وَ نَهْيُكَ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ |
| په خنده تندې سره ملاويدل) صدقه ده نيک کار لپاره حکم کول صدقه ده بدې خبرې نه منع کول صدقه ده |
| وَ إِرْشَادُكَ الرَّجُلَ فِي أَرْضِ الضَّلَالِ لَكَ صَدَقَةٌ |
| بې نښانې لاره کې چاته لاره ښودل صدقه ده (يعنې کوم ځای کې چې لارې نښانه او علامت نه وي چې |
| هغې په وجه يې خلکو نه لاره هيره شوي وي هلته يو ورک شوي مسافر ته لاره ښودلو باندې د صدقې په |
| وَ نَصْرُكَ الرَّجُلَ الرَّدِيءَ الْبَصَرِ لَكَ |
| شان ثواب ملاويږي) د يو ړوند يا کمزوري نظر والا سړي سره مرسته کول (په هغه وخت سره هغه د لاس |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۵۲ رقم الحديث ک ٦٦٤

(۲) أخرجه مسند أحمد ٥/٦٣، رقم الحديث ٢٠٦٥١

صَدَقَةٌ وَ إِمَاطَتُكَ الْحَجَرَ وَ الشَّوْكَ وَ الْعَظْمَ عَنِ الطَّرِيقِ لَكَ صَدَقَةٌ وَ إِفْرَاغُكَ مِنْ دَلْوِكَ

نه نيول او بو تلل) صدقه ده، لاري نه كاڼي، ازغي او هډوكي لري كول صدقه ده او وبه اچول د خپلې بوقي نه

فِي دَلْوِ أَخِيكَ لَكَ صَدَقَةٌ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

د خپل ورور په بوقه كې صدقه ده. امام ترمذي دا روايت نقل كړى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى.

## كوهي كنستل او صدقه كول بهترينه صدقه ده

﴿۲۴﴾ وَ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ ! إِنَّ أُمَّ سَعْدٍ

سعد بن عباده رضي الله عنه راوي دى وايي چې (ما) نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته وويل چې يا رسول الله! ام سعد

مَاتَتْ فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ ؟

رضي الله عنها (يعنې زما مور) مړه شوې ده (د هغې دايصال ثواب لپاره) كومه صدقه بهتره ده؟ نبي عليه السلام

قَالَ : الْمَاءُ . فَحَفَرَ بِئْرًا

وفرمايل اوبه. نو سعد رضي الله عنه (د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په دې ارشاد اوريدو سره) كوهې وكنستلو او

وَ قَالَ : هٰذِهِ لِأُمِّ سَعْدٍ.[2]

وې ويل چې دا د ام سعد رضي الله عنها (يعنې زما مور) لپاره صدقه ده.

**توضيح : هذه لام سعد:** د اوبو فايده عامه وي ځكه دې ته غوره صدقه ويل شوې ده. اهل بدعت ددې نه څلويښتي او داسې نور څه ثابتوي. حال دا چې دلته د عامې صدقې ذكر دى. ددې د څلويښتي سره څه تعلق دى. نبي كريم صلى الله عليه وسلم حضرت سعد رضي الله عنه يوه صدقه جاريه وښودله چې كوهې او باسه او وقف يې كړه او ثواب يې خپلې مور ته وبخښه دا به صدقه جاريه شي. (المرقات ۴/۴۰۷).
پته نشته دى چې دا بريليان حضرات د دې نه څلويښتي څنګه معلوموي؟ كيدى شي چې هغوى سره دا دليل وي:

يا الله ميري پيري ميں زور رہنے دے ❁ چشم عالم كو كور رہنے دے

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۰۶/۴ رقم الحديث : ۱۹۷۰ ، وأحمد في المسند ۳۴۴/۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۳۱۳/۲، رقم الحديث : ۱۶۷۹، والنسائي ۲۵۴/۶ رقم الحديث : ۳۶۶۴، وابن ماجه ۱۲۱۴/۲ رقم الحديث: ۳۶۸۴.

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّمَا مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا عَلَى

ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم مسلمان چې واغوندي جامې

عُرْيٍ كَسَاهُ اللهُ مِنْ خُضْرِ الْجَنَّةِ وَ أَيُّمَا مُسْلِمٍ أَطْعَمَ مُسْلِمًا عَلَى جُوعٍ أَطْعَمَهُ اللهُ

يو بربنډ ته نو الله به ده ته د جنت د شنو جامو نه يو جامه واغوندي کوم مسلمان چې يو وږي باندې خواړه

مِنْ ثِمَارِ الْجَنَّةِ . وَ أَيُّمَا مُسْلِمٍ سَقَى مُسْلِمًا عَلَى ظَمَأٍ

وخوري نو الله به پرې د جنت ميوې وخوري او کوم مسلمان چې د يو تګي مسلمان تنده ماته کړي نو الله

سَقَاهُ اللهُ مِنَ الرَّحِيقِ الْمَخْتُومِ. (۱)

تعالى به هغه مهر بند شرابو باندې موړ کړي.

## د زکوة نه بغير هم په مال کې حقوق دي

﴿۲۶﴾ وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتَ قَيْس قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا

فاطمه بنت قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په مال او زر کې يو بل حق هم شته د

سِوَى الزَّكَاةِ ثُمَّ تَلَا : ﴿ لَيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ

زکوة نه بغير بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آيت کريمه پوره تلاوت کړو نيکي هم دغه نه ده چې خپل مخونه

قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ ﴾ الْآيَةَ. (۱)

مشرق او مغرب طرف ته متوجه کړئ الخ.

## د اوبو او مالګې ور کولو نه انکار مه کوئ

﴿۲۷﴾ وَ عَنْ بُهَيْسَةَ عَنْ أَبِيهَا قَالَتْ : قَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ

بهيسه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خپل پلار مکرم نه نقل کوي: وايي چې هغوی (يعني د هغې پلار) وويل چې يارسول الله

مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ ؟ قَالَ :

هغه کوم شی دی چې د هغې نه منع کول او د هغې د ور کولو نه انکار کول حلال نه دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۳۴، رقم الحديث : ۱۶۸۲ ، والترمذي في السنن ۵۴۶/۴ رقم الحديث :۲۴۴۹ ،وأحمد في المسند ۱۳/۳.

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴۸/۳ رقم الحديث ۶۵۹ ، وابن ماجه ۵۷۰/۱ رقم الحديث :۱۷۸۹.

| |
|---|
| الْمَاءُ . قَالَ : يَا نَبِيَّ اللهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ ؟ |
| "اوبه" دي وويل چي "یارسول الله! او کوم شي دی چې د هغې د ورکولو نه انکار کول حلال نه دی؟ نبي |
| قَالَ : الْمِلْحُ . قَالَ : يَا نَبِيَّ اللهِ مَا الشَّيْءُ |
| عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل "مالګه" دي وويل چې یارسول الله! هغه کوم شی دی چې د هغې نه منع کول حلال نه دی؟ |
| الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ ؟ قَالَ : أَنْ تَفْعَلَ الْخَيْرَ خَيْرٌ لَكَ.(۱) |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "د خير کار کول چې ستا لپاره بهتر دی. |

## کار جنه زمکه د کرنې جوګه کول د ثواب سبب دی

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَحْيٰى أَرْضًا مَيْتَةً |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې وچه زمکه آباده کړي (یعني للمه او |
| فَلَهُ فِيهَا أَجْرٌ وَمَا أَكَلَتِ الْعَافِيَةُ مِنْهُ |
| شګنه زمکه د کرلو جوګه کړي) نو د ده لپاره په دې ثواب دی او که د هغه فصل نه ځناروي يا سړي څه وخوري |
| فَهُوَ لَهُ صَدَقَةٌ .(۲) |
| نو د ده د پاره دا صدقه ده (خو په دې شرط چې دې باندې صبر کونکی او شکرويستونکی وي). |

**توضیح : احیا ارضامیتة: میتة** وچې زمکې ته وايي چې شګنه زمکه هم ورته وايي دیو کس خپله زمکه غیر آباده ده یا د بل چا زمکه غیر اباده ده او يو کس هغه وکرله او اباده یې کړه نو هغې ته به ثواب ملاویږي چې د الله زمکه یې د بیکاره کیدو نه وساتله. (المرقات :۴/۴۰۸).

**عافیة** :یو رزق لټونکی حیوان ته **عافیه** وايي که هغه انسان وي که مرغۍ وي یا ځریدونکي حیوان او درنده وي . (المرقات :۴/۴۰۹).

**صدقة**: په دې شرط چې د زمکې مالک په دې سره راضي او خوشحاله وي او شکر ادا کوي . (المرقات :۴/۴۰۹).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷۵۰/۳، رقم الحديث : ۳۴۷۲ ،وأحمد في المسند ۴۸۰/۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۴۵۴/۳، رقم الحديث : ۳۰۷۴ ، والترمذي في السنن ۶۶۳/۳ رقم الحديث :۱۳۷۹.

## په قرض ورکولو کې ثواب

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ مَنَحَ مِنْحَةَ لَبَنٍ |
| براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کوم کس چې عاريةً ورکړي د شودو والا څاروی |
| أَوْ وَرَقٍ أَوْ هَدَى زُقَاقًا |
| یا سپين زر (يعنې روپۍ وغيره) قرض ورکړي یا لاره هيرونکي ته ړوند ته کوڅه او لاره کې لاره وښايي نو |
| كَانَ لَهُ مِثْلَ عِتْقِ رَقَبَةٍ. (۲) |
| نو دده به د يو غلام د آزادولو په شان ثواب وي. |

**توضیح:** اوورق: يعنې يو چاته سپين زر او يا يې روپۍ ورکړي چې هغه مجبوره خپل کار جوړ کړي.

اوهدی: يعنې يو ړوند ته يې لار وښودله يا يې ورته کوڅه سيده کړه. زقاق کوڅې ته وايي.

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَ عَنْ أَبِي جُرَيٍّ جَابِرِ بْنِ سُلَيْمٍ قَالَ : أَتَيْتُ الْمَدِينَةَ فَرَأَيْتُ رَجُلًا |
| ابی جري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې نوم يې جابر بن سليم دی وايي چې کله زه مديني ته راغلم نو ما يو کس وليدو چې |
| يَصْدُرُ النَّاسُ عَنْ رَأْيِهِ |
| خلک دده په عقل باندې اعتبار کوي (يعنې په وينايې خلک عمل کوي چې د هغه خود داري د هغه وضاحت |
| لَا يَقُولُ شَيْئًا إِلَّا صَدَرُوا عَنْهُ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوا : هٰذَا |
| کوي) چې هغه څه هم وايي خلک پرې عمل کوي نو ما تپوس وکړو چې دا څوک دی؟ خلکو وويل چې داد |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ قُلْتُ : عَلَيْكَ السَّلَامُ |
| الله رسول دی. راوي وايي چې زه (د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې حاضر شوم) نو وي ويل په تا دې سلام وي |
| يَا رَسُولَ اللهِ مَرَّتَيْنِ قَالَ : لَا تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلَامُ |
| ای د الله رسوله دوه ځلې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې اوريدو سره) وفرمايل چې مه وايه عليک السلام |
| فَإِنَّ عَلَيْكَ السَّلَامُ تَحِيَّةُ الْمَيِّتِ قُلِ السَّلَامُ عَلَيْكَ |
| ځکه عليک السلام د مړي لپاره دی البته السلام عليک وايه (ځکه دا سې غوره دي) د دې نه وروسته |

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٤ ۳۰۰ رقم الحديث ۱۹۵۷ ,وأحمد في المسند ٤ ۲۸۵

قُلْتُ : أَنْتَ رَسُول اللهِ ؟ فَقَالَ : أَنَا رَسُوْل اللهِ

ما وویل چې ته (نبي عليه السلام) د الله رسول یې؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې آؤ زه د الله رسول یم

الَّذِي إِذَا أَصَابَكَ ضُرٌّ فَدَعَوْتَهُ كَشَفَهُ عَنْكَ

هغه الله که تا ته څه تکلیف او مصیبت در ورسي نو ته هغه را وبله نو ستا تکلیف او مصیبت به لرې کړي

وَ إِنْ أَصَابَكَ عَامُ سَنَةٍ فَدَعَوْتَهُ أَنْبَتَهَا لَكَ

که وچکالي تاسو راګیر کړي او تاسو هغه را وبلې نو زمکه کې به تاسو ته شینکی را زغون کړي او که تاسو

وَ إِذَا كُنْتَ بِأَرْضٍ قَفْرٍ

زمکې په یوه داسې برخه کې خپله سورلۍ ورکه کړي چې هتله نه د اوبو نوم او نښان وي، نه د بوټي یا یو

أَوْ فَلَاةٍ فَضَلَّتْ رَاحِلَتُكَ فَدَعَوْتَهُ رَدَّهَا عَلَيْكَ .

داسې ځنګل وي چې د آبادۍ نه ډیر لرې وي تاسو هغه را وبلې نو ستا سپرلۍ به بیرته تاسو را ولي جابر

قُلْتُ : اعْهَدْ إِلَيَّ . قَالَ : لَا تَسُبَّنَّ أَحَدًا

رضي الله عنه وایي چې ما وویل ما ته نصیحت وکړه. نبي علیه الصلاة والسلام وفرمایل چا ته بد مه وایه جابر رضي الله عنه

قَالَ فَمَا سَبَبْتُ بَعْدَهُ حُرًّا وَلَا عَبْدًا وَلَا بَعِيرًا وَلَا شَاةً.

وایي چې د دې نه وروسته ما چا ته بد نه دي ویلي، نه ازاد ته، نه غلام ته، نه اوښ ته او نه بیزي ته (یعني

انسان خو لاڅه کوي چې څاروته مې هم بد نه دي ویلي لکه څنګه چې د عامو خلکو عادت وي) نبي علیه السلام

قَالَ : وَلَا تَحْقِرَنَّ شَيْئًا مِنَ الْمَعْرُوفِ

وفرمایل هیڅ یوه نیکۍ وړه مه ګڼه (یعني که ته چا سره نیکي وکړي او یا یې در سره بل وکړي نو هغه ډیره ګڼه

او د هغې شکریه ادا کوه او خپله چې ستانه کومه یوه نیکي هم کیدی شي نو د هغې کول غنیمت وګڼه) او کله

وَ أَنْ تُكَلِّمَ أَخَاكَ وَ أَنْتَ مُنْبَسِطٌ إِلَيْهِ وَجْهُكَ

چې د خپل ورور سره ملاقات کوي نو د خنده والا تندي اختیار کړه (یعني کله چې ته د چا سره ملاوشي نو هغه

سره به په تواضع او خوش کلامۍ سره ملاوشه د دې لپاره چې ستا په خوش اخلاقۍ سره د هغه زړه خوشحاله

إِنَّ ذٰلِكَ مِنَ الْمَعْرُوفِ وَ ارْفَعْ إِزَارَكَ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ فَإِنْ

وي) ځکه دا هم یوه نیکي ده او خپل پاجامه (اولنګ) تر نیمې پنډۍ پورې او چته ساته که د و مره او چتول ته

| |
|---|
| أُبَيْتَ فَإِلَى الْكَعْبَيْنِ وَ إِيَّاكَ وَ إِسْبَالَ الْإِزَارِ فَإِنَّهَا |
| نه خوښوي نو تر ښنګرو پورې يې ساته خو (د ښنګرو نه لاندې) د زوړندولو نه بچ وسه ځکه چې (د ښنګرو |
| مِنَ الْمَخِيلَةِ وَ إِنَّ اللهَ لَا يُحِبُّ الْمَخِيلَةَ وَ إِنِ امْرُؤٌ شَتَمَكَ |
| نه لاندې) ازار زوړندول د تکبر (علامت) دی او الله تکبر نه خوښوي. دغه شان که څوک تا ته کنځل وکړي |
| وَ عَيَّرَكَ بِمَا يَعْلَمُ فِيكَ فَلَا تُعَيِّرْهُ |
| او ستا په يو داسې عيب باندې چې تا ته شرم درکړي چې هغه پرې خبر دی نو ته (انتقاماً) هغه مه شرموه |
| بِمَا تَعْلَمُ فِيهِ فَإِنَّمَا وَبَالُ ذَلِكَ عَلَيْهِ. (۱) |
| په هغه عيب باندې چې ته پرې خبرېږې ځکه د هغې ګناه به هغه ته ملاوېږي. |
| وَ رَوَى التِّرْمِذِيُّ مِنْهُ حَدِيثَ السَّلَامِ. |
| ترمذی د دې روايت فقط ابتدائی برخه نقل کړې ده چې په هغې کې د "سلام" ذکر دی (نور روايت يې نه |
| وَ فِي رِوَايَةٍ: |
| دی نقل کړی) او د (ترمذی په) بل روايت کې د هغې ګناه به هغه ته ملاوېږي" په ځای دا الفاظ دي چې |
| فَيَكُونَ لَكَ أَجْرُ ذَلِكَ وَ وَبَالُهُ عَلَيْهِ. |
| ستا لپاره به د دې ثواب وي او د هغې لپاره د هغې ګناه. |

**توضيح: يصدر الناس:** يعني خلک به د هغې په رائی باندې مطمئن شول او بيرته به لاړل. (المرقات ۴/۴۱۰).

**مرتين:** يعني نبي کريم ﷺ په اول ځل سلام وانورېدلو نو ځکه حضرت جابر رضي الله عنه دوه ځل سلام وکړو.

**تحية الميت:** يعني د عليک السلام الفاظو سره سلام مه کوی ځکه د جاهليت په طريقو کې به د مړو لپاره دا سلام کېدو لکه څنګه چې د حماسه په باب المرثی کې يو شاعر د خپل مړي لپاره داسې دعاء کوي:

---

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۳۴۴/۴، رقم الحديث ۴۰۸۴، والترمذي في السنن ۵۰۲/۵ رقم الحديث: ۲۷۲۲، وأحمد في المسند ۶۳/۵

**علیک سلام الله قیس بن عاصم ۞ و رحمته ما شاء ان یترحما**

لهذا اوس سلام کول مکروه تنزیهي دی. (المرقات: ۴/۴۱۱).

**سوال:** دلته دا سوال پیدا کېږي چې د دې حدیث نه معلومېږي چې قبرستان کې مړو ته "**علیك السلام**" ویل د سنت طریقه ده حال دا چې د امت په دې عمل نشته دی بلکې څنګه چې په نورو حدیثونو کې راغلي دې همغه الفاظ ویل کېږي. **لکه السلام علیکم یا اهل القبور الخ؟**

**جواب:** د نبي کریم ﷺ مراد دا نهٔ چې **علیک السلام** د مړو لپاره استعمالوی. بلکې نبي کریم ﷺ د جاهلیت د خلکو د یو عادت تذکره وکړه چې هغوی به د مړو لپاره داسې الفاظ استعمالول د سلام اصل طریقه السلام علیکم ده. دا رائج کړی. (المرقات: ۴/۴۴۱).

**انا رسول الله:** یعنې زه د الله رسول یم. هغه الله الخ.

**سوال:** دلته دا سوال دی چې جابر بن سلیم رضی الله عنه پوښتنه وکړه. دلته نبي کریم ﷺ به ده لره جواب ورکولو نو دلته خو په سوال او جواب کې یو شان والی دی؟

**جواب:** علامه طیبي رحمه الله د دې جواب کړی دی چې نبي کریم ﷺ د اسلوب حکیم په طرز جواب ورکړی یعنې دا پوښتنه مه کوی چې زه د الله رسول یم. هغه خو ثابته او ښکاره شوي معامله ده.

بلکې دا پوښتنه کوی چې پروردګار د کوم مقصد لپاره رالېږلی یم. نو هغه زما "**رحمة للعالمین**" کېدل دې چې زه د الله یو داسې رحمت یم چې زما په وسیله که څوک د الله نه سوال کوي یا زه خپله د الله نه سوال کوم نو د مشکل نه مشکل کار کې الله هغه سوال قبلوي او هغه مشکل حل کړي. (الکاشف ۴/۱۳۳).

**الذي:** دا لفظ صفت واقع دی. د دې موصوف لفظ الله دی چې انا رسول الله کې د مضاف الیه په توګه ذکر دی. او آئنده **دعوته** کې چې کوم ضمیر راګرځي هغه لفظ الله ته راګرځي او مطلب دا دی چې زه د الله رسول یم چې کله تاسو ته یو **مصیبت** در ورسېږي او تاسو هغه زما په وسیله راوبلی یا زه هغه راوبلم نو **هغه مصیبت** ستاسو نه لرې کړي. یاده دې وي چې دا آخري کلام داسې دی. خو بدعتیانو خلک **"الذي"** د رسول صفت جوړ کړی دی. هغوی د مخکې کلام په مطلب کې ډېر سخته غلطي کوي او د الله صفتونه په نبي کریم ﷺ باندې ورتپي. داسې پکار نه ده.

**عام سنة:** **سنة** د وچکالی کال مراد دی. ګویا کې خپله **هغه** کال: قحط دی. نو څکه د هغې طرف ته د لفظ عام اضافت صحیح شو. دا **اضافت الشيء الی نفسه** نه دی. (المرقات: ۴/۴۱۱).

**المخیلة.** دا د **خیلاء** نه دی د تکبر په معنی کې دی. (المرقات: ۴/۴۱۳).

## څه چې د خدای په نوم ورکړی شي هغه باقي وي

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهُمْ ذَبَحُوا شَاةً |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راویه ده چې (یو صحابو یا اهل بیت والو) یوه بیزه ذبح کړه (کله چې د هغې غوښه تقسیم |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَا بَقِيَ مِنْهَا ؟ قَالَتْ : |
| شوه نو) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې "دي کې څه پاتې شوي دي؟ عائشه رضي الله عنها ووېل چې د |
| مَا بَقِيَ مِنْهَا إِلَّا كَتِفِهَا |
| اوږې نه بغير بل هيڅ نه ده پاتې شوي (يعني د دې ټوله غوښه تقسيم کړی شوي ده فقط وږه پاتې |
| قَالَ : بَقِيَ كُلُّهَا غَيْرُ كَتِفِهَا. [1] |
| شوي ده) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "اوږه نه بغير نور هر څه پاتې دي". |

**توضیح : غیر کتفها**: مطلب دا دی چې کوم د خدای په نوم ورکړی شوه هم هغه غوښه د الله په نزد پاتې ده. چې د ثواب لپاره جمعه شوه او کوم ته چې ته پاتې وي چې د الله په نوم نه ده ورکړی شوي نو حقيقت کې هم دغه پاتې نه ده بلکي ضايع شوه ځکه تا چې وخوړله نو د ثواب لپاره هيڅ پاتې نه شوه. دې کې د قرآن آيت ﴿مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ وَمَا عِندَ اللهِ بَاقٍ﴾ (نحل الاية :۹٤) طرف ته اشاره ده.

## چا ته د جامې اغوستلو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَا مِنْ مُسْلِمٍ كَسَا |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې کوم مسلمان وا غوندي بل |
| مُسْلِمًا ثَوْبًا إِلَّا كَانَ فِي حِفْظٍ مِنَ اللهِ |
| مسلمان ته جامه (يا جامه، قرطی څادر وغيره) نو هغه د الله د طرف نه په حفاظت کې وي. ترڅو پورې چې |
| مَا دَامَ عَلَيْهِ مِنْهُ خِرْقَةٌ. [2] |
| د دې مسلمان په بدن باندې د دې جامې يوه ټکره موجود وي. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٤: ٥٥٥ رقم الحديث ٢٤٧٠ ،وأحمد في المسند ٦: ٥٠
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٤: ٥٦٢ رقم الحديث ٢٥٦١

## درې قسمه خلک الله تعالی ته محبوب دي

﴿۳۳﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَرْفَعُهُ

عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د مرفوع په طریق (یعني د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام

قَالَ : " ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ : رَجُلٌ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ

وفرمایل درې کسان داسې دي چې دوي سره الله محبت کوي یو خو هغه کس چې د شپې مونځ ته ودرېږي

يَتْلُوا كِتَابَ اللّٰهِ وَ رَجُلٌ يَتَصَدَّقُ بِصَدَقَةٍ بِيَمِينِهِ يُخْفِيهَا

او د الله کتاب لولي. او دویم هغه سړی چې (نفل) صدقه په خپل ښي لاس ورکړي او هغه پټه کړي. راوي

أُرَاهُ قَالَ : مِنْ شِمَالِهِ وَ رَجُلٌ

وايي چې زما ګمان دی نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل (او هغه) ښي لاس باندې (پټه کړي) او درېیم هغه

كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَانْهَزَمَ أَصْحَابُهُ فَاسْتَقْبَلَ الْعَدُوَّ ".[1]

سړی چې هغه وخت کې د دښمن مخې ته کلک شو چې د هغې ملګرو شکست خوړلی وي.

وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ أَحَدُ رُوَاتِهِ أَبُو بكر بن عَيَّاش

امام ترمذی وايي چې دا روایت غیر محفوظ (ضعیف) دی. د دې یو راوي ابوبکر ابن عیاش دی چې

كَثِيرُ الْغَلَطِ.

ډېرې زیاتې غلطۍ کوي.

﴿۳۴﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ

ابوذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل درې داسې کسان دي الله دوي دوستان ساتي

وَ ثَلَاثَةٌ يُبْغِضُهُمُ اللّٰهُ فَأَمَّا الَّذِينَ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ

او درې داسې کسان دي چې هغه الله دښمنان ساتي. نو هغه کسان چې الله يې دوستان ساتي. هغوی کې

فَرَجُلٌ أَتَى قَوْمًا فَسَأَلَهُمْ بِاللّٰهِ

یو هغه سړی دی چې یو داسې کس ته صدقه ورکړه چې یوې ډلې ته راغلو او د خدای په واسطه يې ترې

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ٦٠١/٤ رقم الحديث: ٢٥٦٧، والنسائي ٨٤/٥ رقم الحديث: ٢٥٧٠.

وَ لَمْ يَسْأَلْهُمْ بِقَرَابَةٍ بَيْنَهُ وَ بَيْنَهُمْ فَمَنَعُوهُ

څه وغوښتل هغې د جماعت والو نه د حق قرابت په وجه سوال ونه کړو. خو د دې خلکو هغه ته هیڅ ورنه

فَتَخَلَّفَ رَجُلٌ بِأَعْيَانِهِمْ فَأَعْطَاهُ سِرًّا

کړل. نو یو سړی د (یعني صدقه ورکونکي) د جماعت والا شاته وغورځول او مخکې شو هغه سوال کر

لَا يَعْلَمُ بِعَطِيَّتِهِ إِلَّا اللهُ

ته یې په پټه توګه ورکړه بغیر د الله نه او د هغه چانه چا چې هغه ته ورکړه بل څوک به هغه ورکړه باندې خبر نه

وَ الَّذِي أَعْطَاهُ وَ قَوْمٌ سَارُوا لَيْلَتَهُمْ حَتَّى إِذَا كَانَ النَّوْمُ أَحَبَّ

شو او دویم هغه کس دی چې د جماعت سره ټوله شپه وګرځیدو تردې چې د هغوی لپاره خوب د هغه شیانو

إِلَيْهِمْ مِمَّا يُعْدَلُ بِهِ فَوَضَعُوا رُءُوسَهُمْ فَقَامَ

نه چې د خوب برابر دي خوښ شو نو د دې ټول خلک اوده شول. خو هغه کس ودریدلو (الله وایي) او مـ

يَتَمَلَّقُنِي وَ يَتْلُو آيَاتِي

ته په ژړا او فریادونو شو او زما آیتونه (قرآن کریم) یې لوستل شروع کړو (یعني په عبادت او فریاد کې

وَ رَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَلَقِيَ الْعَدُوَّ فَهَزَمُوا

مشغول شو) او دریم هغه کس دی چې لښکرکې وکله چې د دښمن سره مقابله شوه نو د هغې لښکر ماتې

وَ أَقْبَلَ بِصَدْرِهِ حَتَّى يُقْتَلَ أَوْ يُفْتَحَ لَهُ وَ الثَّلَاثَةُ الَّذِينَ

ماتې وخوړله خو هغه د هغې د دښمن مخې ته سینه کلکه کړه تردې چې شهید شو یا بریالی او هغه درې

يُبْغِضُهُمُ اللهُ الشَّيْخُ الزَّانِي

کسان چې الله په نزد مبغوض دي دوي کې خویو هغه کس دی چې د بوډا والي باوجود هم زنا وکړي. دویم

وَ الْفَقِيرُ الْمُخْتَالُ وَ الْغَنِيُّ الظَّلُومُ.(۱)

تکبر کونکی فقیر دی او دریم دولت مند ظلم کونکی (یعني هغه کس د دولت سره هم د قرضداري قرض

نه ادا کوي او نورو سره بل څه د ظلم معامله کوي).

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۶۰۱/۴ رقم الحديث ۲۵۶۸، والنسائي ۸۴/۵ رقم الحديث ۲۵۷۰

**توضیح ثلاثة:** دې حدیث کې د شپږو کسانو ذکر دی. چې حقیقت کې شپږ قسمه خلک دي. درې خوښ کړی سوي او درې مبغوض شوي دي. (المرقات: ۴/۴۱۶).

**فتخلف رجل بأعيانهم:** یعنې تول جماعت سوال کړ ته د څه شي ورکولو نه انکار وکړو. سائل فقط د خدای په نوم سوال وکړو. هیڅ قرابت نه و. نه څه خپلولي وه. د انکار نه وروسته همغه قوم کې یو کس خو دیخوالړو او بیا یې په پټه هغه سائل ته صدقه ورکړه. دا صدقه دومره پټه وه چې فقط ورکونکي او اخستونکی او الله ته علم وو.

**اعیانهم:** هغه خلکو کسان مراد دي.

**يتملقني:** د چاپلوسي کولو په معنی کې دی. دلته ژړا فریاد، تواضع او عاجزي کول مراد ده.

**يعدل به:** یعنې که د خوب برابر څه شی کیدی شي نو د هغه ټول شیانو نه هغه وخت کې خوب ډیر محبوب وو. (المرقات: ۴/۴۱۶).

**الشيخ الزاني:** د دې نه مراد واده شوی سړی دی. خو د ظاهر کلام نه معلومېږي چې بوډا سړی مراد دی. او بوډا هم واده شوی وي. د دې ګناه ځکه ډیره قبیحه ده چې ټول قوې یې جواب ورکړی وي. د مستی زمانه تیره شوي وي. هغه وخت هغه د رحم قابل وي نو د زنا پشان د قبیحي ګناه ارتکاب وکړي. دا د هغې د باطن د خباثت نښانې ده. دغه شان یو سړی ډیر زیات فقیر دی او قابل رحم دی. خو کله چې ورته څوک صدقه یا خیرات ورکوي نو هغه تکبر کوي او د اخستلو نه یې انکار کوي. دغه شان هغه خپل خان او خپل اهل و عیال په هلاکت کې واچوي. او فقر پټ کړي او تکبر کوي. علماؤ لیکلي دي چې د طمعي نه بغیر کوم شی راشي نو هغه مه رد کوی ځکه دا الله رالیږلي دي. (المرقات: ۴/۴۱۷).

**الظلوم:** د دینه دا سي مالداره سړی مراد دی چې غني دی. د قرض ورکولو طاقت لري خو قرض نه ادا کوي. نو دا سي ظالم مالداره الله مبغوض ساتي. ځکه د توان لرلو باوجود هم قرض نه ورکوي. دا د دې د شرارت او د خباثت علامت دی. یا د مالدارۍ په نشه کې نورو باندې ظلم کوي. (المرقات ۴/۴۱۷).

## دانسان صدقه د کائنات د هر طاقت نه ډیره ده

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ وَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ. لَمَّا خَلَقَ |
| انس بن مالک رضی الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کړی دې چې نبي علیه السلام وفرمایل کله چې پیدا |
| اللّٰهُ الْأَرْضَ جَعَلَتْ تَمِيدُ فَخَلَقَ الْجِبَالَ فَقَالَ بِهَا عَلَيْهَا فَاسْتَقَرَّتْ |
| کړه الله تعالی الله زمکه نو خو خیدله. بیا الله غرونه پیدا کړل او په زمکه یې ودرول نو بیا زمکه ودریدله. |

فَعَجِبَتِ الْمَلَائِكَةُ مِنْ شِدَّةِ الْجِبَالِ فَقَالُوا يَا رَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ
فرښتو د غرونو په سختوالي باندې ډیر تعجب وکړو هغوی وویل ای زمونږ پروردګاره! آیا ستا په مخلوقاتو

شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْجِبَالِ قَالَ نَعَم الْحَدِيد
کې د غرونو نه هم ډیر سخت څه شی شته دی؟ پروردګار وفرمایل آؤ وسپینه ده (چې کنې هم ماتوي)

قَالُوا يَا رَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْحَدِيدِ
هغوی تپوس وکړو چې ای پروردګاره! ستا په مخلوقاتو کې د وسپنې نه هم ډیر سخت څه شی شته دی؟

قَالَ نَعَمِ النَّارُ فَقَالُوا يَا رَبِّ هَلْ مِنْ
الله تعالی وفرمایل: آو. اور دی (چې هغه اوسپنه هم ویلې کوي) بیا هغوی وویل چې ای انه! آیا ستا په

خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ النَّار قَالَ نَعَمْ الْمَاء
مخلوقاتو کې د اور نه هم ډیر سخت څه شی شته دی؟ پروردګار وفرمایل آؤ اوبه دي (چې اور مړ کوي)

قَالُوا يَا رَبِّ فَهَل مِن خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْمَاءِ قَالَ نَعَمِ
بیا هغوی وویل چې ستا په مخلوقاتو کې اوبو نه هم ډیر سخت څه شی شته دی؟ الله تعالی وفرمایل آو

الرِّيحُ فَقَالُوا يَا رَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الرِّيحِ
هوا ده (چې هغه اوبه هم وچوي) بیا هغوی وویل چې ستا په مخلوقاتو کې هوا نه هم ډیر سخت څه شی شته

قَالَ نَعَمِ ابْن آدم تَصَدَّقَ بِصَدَقَة بِيَمِينِهِ
الله تعالی وفرمایل آو او هغه د ابن آدم صدقه ورکول دي چې هغه د خدای په لاره کې په ښي لاس باندې

يُخْفِيهَا مِنْ شِمَالِهِ. (۱)
(داسې) مال مصرفوي (چې) هغه د چپ لاس نه (هم) پټوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۳٦﴾ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُنْفِقُ مِنْ كُلِّ مَالٍ
ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل کوم بنده مسلمان چې مصرف کړي د هر مال نه

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٥ /٤٢٣ رقم الحديث ٣٣٦٩

| لَهُ زَوْجَيْنِ فِي سَبِيلِ اللهِ إِلَّا اسْتَقْبَلَتْهُ حَجَبَةُ الْجَنَّةِ كُلُّهُمْ يَدْعُوهُ إِلَى |
|---|
| دوه شيان د الله په لاره کې نو د جنت ټولي دروازي به دده استقبال کوي او هغه به هغه شيانو ته راغواړي |
| مَا عِنْدَهُ . قُلْتُ : وَ كَيْفَ |
| کوم چې په هغې کې دي. ابو ذر رضي الله عنه وايي (دي اوريدو سره) ما وويل چې د دوه شيانو د مصرف څه |
| ذٰلِكَ ؟ قَالَ : إِنْ كَانَتْ إِبِلًا فَبَعِيرَيْنِ |
| مطلب دی؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل که هغوی سره اوښان وی نو هغه دوه اوښان دې ورکړي او |
| وَ إِنْ كَانَت بَقَرَةً فَبَقَرَتَيْنِ .[1] |
| که غواګاني ورسره وي نو دوه غواګاني دې ورکړي. |

## د قيامت په ورځ به صدقه د سړي په سر سيوری وي

| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: حَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| مرثد بن عبد الله وايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ځينې صحابؤ ماته دا حديث بيان کړو چې هغوی د نبي |
| أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ ظِلَّ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صدقته .[2] |
| کريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې : " د قيامت په ورځ به د مؤمن سيوری دده صدقه وي. |

**توضيح** : د دې حديث تشريح مقلوب (سرچپه) ده چې اصل عبارت داسې په کار ؤ : "ان الصدقة کالظل في اله يحميه عن اذى الحر يومه القيامة". (کذافی الشرح)

## د عاشورې په ورځ د زيات مصرف کولو حکم

| ﴿۳۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ وَسَّعَ عَلَى |
|---|
| ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کوم کس چې فراخي راولي په خپل اهل |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۴۸/۶ رقم الحديث :۲۱۸۵، والدارمي ۲۶۸/۲ رقم الحديث :۲۴۰۳، وأحمد في المسند ۱۵۱/۵.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۱۴۷/۴.

| عِيَالِهِ فِي النَّفَقَةِ يَوْمَ عَاشُورَاءَ وَسَّعَ اللهُ عَلَيْهِ سَائِرَ سَنَتِهِ . قَالَ |
|---|
| وعيال باندې په خرچه کې د عاشورې په ورځ نو الله به ټول کال (دده مال او رزق ته) فراخي ورکړي. وايي |
| سُفْيَانُ : إِنَّا قَدْ جَرَّبْنَاهُ فَوَجَدْنَاهُ كَذَلِكَ .[1] |
| سفيان ثوري رَحِمَهُ اللهُ چې مونږ د دې تجربه وکړه نو همدغه شان مو وموندله . |
| وَ رَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْهُ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَ أَبِي سعيد وَ جَابِرٍ |
| دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی |
| وَ ضَعفه |
| او دا چې هغوی دا روايت ضعيف ګرځولی دی. |

**توضيح : وضعفه:** يعني امام بيهقي رَحِمَهُ اللهُ دا روايت ضعيف ګڼلی دی.

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې او شيخ عبد الحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ د **اشعة اللمعات** په حديث **توسع على العيال** يوم عاشوره باندې کلام کړی دی. چې آيا واقعي دا حديث ناقابل استدلال دی او که قابل عمل او قابل استدلال دی نو ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ د مرقات ج۴ ص ۴۲۰ باندې ليکي: **ونقل ميرك رَحِمَهُ اللهُ عن المنذري في الترغيب ان هذا الحديث وراه البيهقي من طرق ومن جماعة من الصحابة وقال (اى البيهقي) هذه الاسانيد وان كانت ضعيفة فهي اذا ضم بعضها الى بعض احدث قوة قال العراقي رَحِمَهُ اللهُ له طرق صحيح بعضها و بعضها على شرط مسلم، واما حديث الاكتحال يوم عاشوراء فلا اصل له وكذا سائر الاشياء العشرة ماعدا الصوم والتوسيع.**

د دې عبارت خلاصه دا شوه چې امام بيهقي اګرچه دا روايت ضعيف ګرځولی دی خو په ډيرو طريقو سره د جمعه کولو نه وروسته دا فيصله وارولی شوه چې دا سند و نه اګر که په انفرادي توګه کمزوري دی خو کله چې ډيري طريقي راجمعه شي نو حديث کې قوت پيدا کيږي.

د اصحاب جرح او تعديل امام العراقي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې حديث مختلفي طريقې دي. ځينو صحيح ګرځولې دی او ځينې خو د امام مسلم په شرط باندې دي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د عاشورې په ورځ رانجه لګول چې په کوم حديث کې دې هغه بې بنياده دي. دغه شان د عاشورې لپاره د لس (۱۰)

(۱) أخرجه الطبراني في الكبير ،ذكره في كنزالعمال ۵۷۶/۸ رقم الحديث ۲۴۲۵۹

شیانو ذکر کړي. تول بې بنیاده دي. فقط د عاشورې په ورځ روژه نیول او د توسع علی العیال حدیث صحیح دی. شیخ محدث دهلوی رحمه الله هم دغه شان کلام کړی دی خو د هغې کلاک څه نږدې یر دی. هغه د هغې په عبارت کې نقل کړي: **بدانکه آنچه ثبوت رسیده است نزد محدثین از اعمال روز عاشوره صوم است و توسع طعام . و حدیث صوم صحیح است توسع ضعیف و لیکن بتعدد طرق و کثرت ان بمرتبه حسن رسیده. ودر کتاب "ماثبت بالسنة فی ایام السنه" احادیث وارده در روز عاشورا از صحاح و حسان و ضعاف و موضوعات بتفصیل ذکر کرده ایم . (اشعة اللمعات ج۲ ص ٦٦).**

پوهه شی چې د عاشورې د ورځې متعلق چې کوم حدیثونه د محدثینو په نزد دې ثبوت ته رسیدلي دې هغه فقط د روژې حدیث او د توسع طعام والا حدیث دی. دې دواړه حدیثونو کې هم د روژو والا حدیث صحیح دی او د توسع طعام والا حدیث ضعیف دی. خو د طریقو ډیر والي او د هغې شمیر دا حدیث د حسن درجې ته رسولی دی او ما خپل کتاب "**ماثبت بالسنة في ایام السنه**" کې د عاشورې متعلق ټول حدیثونه تفصیل سره ذکر کړي هغې کې څه حدیثونه د صحیح په درجه کې دي، څه د حسن درجه کې. څه ضعیف او څه موضوعي دي. ما د دې حدیث متعلق دا تفصیل ځکه ولیکلو چې ځینې د سخت موقف والا خلک د عاشورا د ورځې د ټولو شیانو نه انکار کوي او بیا زر حدیثونه د موضوعاتو به را جمع کړي چې کوم د عاشورې متعلق وارد دي حال دا چې هغې کې څه حدیثونه **صحیح علی شرط المسلم** دي.

نو دومره غلا کول په کار نه ده لکه څنګه چې بدعت پسند حضرات د عاشورې ټول روایتونه **مِن وَعن** راواخلي او د موضوعاتو نه د غاړې هار جوړوي. دغه شان افراط او تفریط کول مناسب نه دي.

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ : قَالَ أَبُو ذَرٍّ : يَا نَبِيَّ اللهِ أَرَأَيْتَ |
| ابو امامه رضی الله عنه وايي چې (يو ځل) ابو ذر رضی الله عنه وويل چې ای د الله نبي (صلی الله علیه وسلم)! ماته ووايه چې |
| الصَّدَقَةُ مَاذَا هِيَ ؟ قَالَ أَضْعَافٌ مُضَاعَفَةٌ وَ عِنْدَ |
| د صدقې ثواب څومره دی؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل "د دې ثواب څو چنده ډير دی بلکې په نزد د |
| اللهِ الْمَزِيدُ. (۱) |
| الله د دې نه هم ډير دی. |

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۳ ۳٦٦ رقم الحديث ۳۷۹۵

# باب افضل الصدقة

## د بهترينې صدقې بيان

دې باب کې چې د کوم افضل او بهترينې صدقې بيان راروان دی. د دې بنياد دې باندې دی چې صدقه ورکولو کې د ټولو نه مخکې يا دا امر خودلی شوی دی چې د غه قسمه صدقه في حد ذاته ډېره فائده منده ده او د دې فايدې عامه دي. او دې ته د انسانو ډېر احتياج دی يا د صدقې په اعتبار سره افضل شي چې صدقه کولو کې څه امتيازي صفت وي مثلاً د دې اخلاص ډېر وي يا د احتياج په حالت کې صدقه کوی يا عن ظهر غنًی شي او بې پرواهی سره صدقې کوي. يا په دې اعتبار سره ډېره افضله ده چې چا باندې صدقه کړی شوي ده هغه ډېر قابل احسان يې ډېر مستحق وي ډېر اولاد والا وي. هغې خصوصاً په نوم سوال سره يې کړی وي. نو په دغه وجوهاتو باندې صدقه ډېره افضله شي. د افضيلت د همدغه اسبابو بيان دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### بهترينه صدقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَحَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَيْرُ |
| ابو هريره رضي الله عنه او حکيم بن حزام رضي الله عنه دواړه راويان دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: بهترينه |
| الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى وَ أَبْدَأْ |
| صدقه هغه ده چې په بې پرواهی سره ورکول کېږي او د صدقې ورکولو ابتداء د هغه کس نه کوی چې د هغه |
| بِمَنْ تَعُوْلُ. (۱) |
| نفقه په تاسو باندې لازمه وي. |

**توضيح**: **عن ظهر غنی**: يعنې کومه صدقه چې بې پرواهی سره ورکول کېږي. د دې لفظ دوه مفهومه دي. اول مفهوم دا دی چې صدقه کونکي نفس ته خوشحالي حاصله شي. هغه داسې چې د الله په لاره کې داسې خرچ کوي چې د الله په ذات يې پوره يقين وي. هغه د دې خبرې نه بې پرواه وي چې د خرچ نه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/ ۲۹۴، رقم الحديث ۱٤۲٦، ومسلم في صحيحه ۲/ ۷۱۷ رقم الحديث ۹۵-۱۰۳٤، وأبوداود في السنن ۳۱۲/۲، رقم الحديث ۱٦۷٦، وأحمد في المسند ٤۰۲/۲

وروسته به زما اهل و عیال څه خوري. لکه څنګه صدیق اکبر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې کور کې مې د الله او رسول نوم پریخودلو. (المرقات: ۴/۴۲۲ و الکاشف: ۴/۱۴۲).

دویم مفهوم دادی چې که چیرې صدقه کونکي نفس ته خوشحالي حاصله نه شوه خو د مال او زر خوشحالي حاصله شوه چې د خرچ کولو نه وروسته هم د هغې سره دومره مال پاتې دی چې د هغې د اهل و عیال لپاره کافي کیږي. اولنی مفهوم ډیر مناسب دی. (المرقات: ۴/۴۲۲ و الکاشف: ۴/۱۴۳).

**وابدأ بمن تعول:** یعنې کوم خلک چې ستا کورنی کې د صدقه کولو کې دې نو د هغوی نه یې شروع کړه او ځان دی یې جهان دی. (المرقات: ۴/۴۲۳).

## په خپل اهل و عیال باندې مصرف کول صدقه ده

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَنْفَقَ الْمُسْلِمُ |
| ابي مسعود رَضِیَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "کوم مسلمان چې خرچ کوي په خپل |
| نَفَقَةً عَلَى أَهْلِهِ وَ هُوَ يَحْتَسِبُهَا كَانَتْ لَهُ |
| اهل وعیال (یعنې ښځه او خپلوانو) باندې او هغې کې د ثواب طمع لري نو دد ښ داخرچ د هغې په حق کې |
| صَدَقَةً. (۱) |
| (ډیر مقبوله) صدقه ده. |
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ فِي |
| ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل یو دینار خو هغه دی چې خرچ یې کړې په |
| سَبِيلِ اللهِ وَ دِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ فِي |
| لاره د الله تعالی کې (یعنې حج یا جهاد یا طلب علم) او یو دینار خو هغه دی چې هغه تاسو خرچ کړي د غلام په |
| رَقَبَةٍ وَ دِينَارٌ تَصَدَّقْتَ بِهِ عَلَى مِسْكِينٍ وَ دِينَارٌ |
| ازادولو کې او یو دینار هغه دی کوم چې تاسو په یو مسکین خرچ کړې یو دینار هغه دی کوم چې تاسو په خپل |
| أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ أَعْظَمُهَا أَجْرًا الَّذِي |
| اهل و عیال خرچ کړې نو دې ټولو دینارو کې د ثواب په بناء د ټولو غټ دینار هغه دی چې کوم تاسو په خپل |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹۷/۹، رقم الحديث ۵۳۵۱، ومسلم في صحيحه ۷۱۷/۲ رقم الحديث ۳۵-۱۰۳۴، وأحمد في المسند ۲۷۳/۵.

أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ.[1]

اهل و عيال باندې خرچ کړو.

﴿٤﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفْضَلُ دِينَارٍ يُنْفِقُهُ

ثوبان رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل "بهترين دينار هغه دی چې خرچ يې کړي يو

الرَّجُلُ دِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى عِيَالِهِ وَدِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى دَابَّتِهِ فِي

انسان په خپل اهل و عيال باندې او بهترين دينار هغه دی چې يو کس يې په داسې څاروي خرچ کړي چې د

سَبِيلِ اللهِ وَدِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى أَصْحَابِهِ

جهاد لپاره ساتلی شوي وي او بهترين دينار هغه دی چې يو کس يې په خپل هغه ملګرو باندې خرچ کړي

فِي سَبِيلِ اللهِ.[2]

چې د الله په لاره کې جهاد کونکي وي.

﴿٥﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَلِيَ أَجْرٌ أَنْ

ام سلمه رضي الله عنها وايي چې (يو ورځ) ما عرض وکړو چې يا رسول الله! آيا زما د پاره اجر شته او که نه چې زه

أُنْفِقَ عَلَى بَنِي أَبِي سَلَمَةَ؟ إِنَّمَا هُمْ بَنِيَّ فَقَالَ:

خرچ وکړم د ابو سلمه رضي الله عنه په زامنو باندې؟ حال دا هم زما زامن دي نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل په

أَنْفِقِي عَلَيْهِمْ فَلَكِ أَجْرُ مَا أَنْفَقْتِ عَلَيْهِمْ.[1]

هغوی خرچ کوه او څه چې ته په هغوی خرچ کوې د هغې به تا ته ثواب درکول کېږي.

**توضيح: انما هم بني:** حضرت ابو سلمه رضي الله عنه يو صحابي ؤ ام سلمه رضي الله عنها اول دده په نکاح کې وه. کله چې دا مړ شو نو ام سلمه رضي الله عنها کونده شوه. د ابو سلمه رضي الله عنه نه د هغې اولاد ؤ کله چې ام سلمه رضي الله عنها نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته په نکاح شوه نو يتيم شوي بچي هم ورسره راغلل. ام سلمه رضي الله عنها به په هغوی باندې خرچ کولو خو خيال يې دا ؤ چې دا مې خپل اولاد دی. دوی باندې به خرچ کولو کې څه

(1) أخرجه مسلم في صحيحه ٦٩٢/٢ رقم الحديث :٣٩-٩٩٥، وأحمد في المسند ٤٧٦/٢.

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ٦٩١/٢ رقم الحديث :٣٨-٩٩٤، وأحمد في المسند ٥٠٣/٣.

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ٣٢٨/٣، رقم الحديث. ١٤٦٧، ومسلم في صحيحه ٢، وأحمد في المسند ٥٠٣/٣.

ثواب ملاؤ شي. چې د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يې وپوښتل نو نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د وېې باندې خرچ كوه. ثواب به در ته ملاوېږي. (المرقات: ۴/۴۲۴).

## خپلې ښځې يا خپل خاوند ته د زكوة وركولو مسئله

﴿٦﴾ وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ:

د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ زوجه محترمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې (يو ځل په مجلس ذكر و نصيحت كې

تَصَدَّقْنَ يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ وَ لَوْ

ښځې مخاطب كړې او) نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اى د ښځو جماعته! صدقه او خيرات كوى اګر كه

مِنْ حُلِيِّكُنَّ قَالَتْ

تاسو د زيورا تو نه ولې نه وي زينب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې (دې اوريدو سره) زه (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مجلس نه)

فَرَجَعْتُ إِلَى عَبْدِ اللهِ فَقُلْتُ إِنَّكَ رَجُلٌ خَفِيفُ ذَاتِ الْيَدِ وَ إِنَّ

عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغلم او هغه ته مې وويل چې ته تش لاس (يعني مفلس) سړى يې او دا چې

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَمَرَنَا بِالصَّدَقَةِ فَأْتِهِ فَاسْأَلْهُ

نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته د صدقې او خيرات كولو حكم كړى نو لاړ شه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا معلومه كړه

(چې زه تا او ستا په اولاد باندې د صدقې په توګه خرچ كوم نو آيا د صدقه به زما نه ادا شي كه نه؟)

فَإِنْ كَانَ ذَلِكَ يَجْزِي عَنِّي وَ إِلَّا

كه تا ته او ستا اولاد ته صدقه وركول زما لپاره كافي شي نو زه به هم تا ته صدقه دركوم او كه دا زما لپاره كافي

صَرَفْتُهَا إِلَى غَيْرِكُمْ قَالَتْ فَقَالَ لِي عَبْدُ اللهِ

نه وي نو نورو خلكو باندې به يې د صدقې په توګه خرچ كوم. زينب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې را ته ووېل عبدالله

بَلِ ائْتِيهِ أَنْتِ قَالَتْ فَانْطَلَقْتُ فَإِذَا

ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې ته هم لاړه شه. نو زه د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې حاضره شوم نو څه ګورم

امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ بِبَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

چې د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دروازه باندې د انصارو يوه ښځه ولاړه ده او (هلته د تللو) زمونږ د دواړو

حَاجَتِي حَاجَتَهَا

حاجت یو شان دی (یعني همدغه معلومول لپاره راغلي وه چې آیا زه صدقه خپل خاوند او دهغې متعلقینو

قَالَتْ وَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَدْ أُلْقِيَتْ عَلَيْهِ الْمَهَابَة .

ته ورکولی شم یانه؟) زینب رضي الله عنها وایي خو (داچې) دنبي کریم صلی الله علیه وسلم ذات دهیبت او عظمت مثل

فَقَالَتْ فَخَرَجَ عَلَيْنَا بِلَالٌ فَقُلْنَا لَهُ ائْتِ رَسُولَ اللهِ

ژ نو ځکه مونږ د هلته نه راووتو او بلال رضي الله عنه ته راغلو او ده ته مو وویل چې : ته ورشه رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَخْبِرْهُ أَنَّ امْرَأَتَيْنِ بِالْبَابِ تَسْأَلَانِكَ أَتجزئ الصَّدَقَة

صلی الله علیه وسلم ته چې په دروازه کې ولاړې دوا ره ښځې تا نه دا پوښتنه کوي چې آیا کفي به شي صدقه

عَنْهُمَا عَلَى أَزْوَاجِهِمَا وَ عَلَى أَيْتَامٍ فِي حُجُورِهِمَا

ددوي نه په خپلو خاوندانو او یتیم ماشومانو باندې چې ددوی په پالنه کې یې دوي صدقه کوي خو کوره

وَلَا تُخْبِرْهُ مَنْ نَحْنُ . قَالَتْ فَدَخَلَ بِلَالٌ

نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته دا و نه وایې چې مونږ څوک یو ؟ زینب رضي الله عنها وایي چې ورغلو بلال رضي الله عنه نبي

عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَسَأَلَهُ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

کریم صلی الله علیه وسلم ته او دنبي کریم صلی الله علیه وسلم نه یې هغه مسئله معلومه کړه (اول خو) تپوس وکړو رسول

مَنْ هُمَا . فَقَالَ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَار

الله صلی الله علیه وسلم د بلال رضي الله عنه نه چې دا ښځې څوک دي ؟ بلال رضي الله عنه ورته وویل چې یوه ښځه د انصارو

وَ زَيْنَب فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَيُّ الزَّيَانِبِ .

نه ده او دا بله زینب رضي الله عنها ده . نبي کریم صلی الله علیه وسلم ترې تپوس وکړو چې کومه یوه زینب رضي الله عنها ؟

قَالَ امْرَأَةُ عَبْدِاللهِ

(ځکه د زینب په نوم ډیرې ښځې وې) بلال رضي الله عنه ورته وویل چې د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه بي بي یا

فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَهُمَا أَجْرَانِ

نبي علیه السلام و فرمایل چې (لاړ شه هغې ته و وایه چې په دې صورت کې) دوي د پاره دوه چنده ثواب دی

| أَجْرُ الْقَرَابَة وَ أَجْرُ الصَّدَقَة .(۱) |
|---|
| یو خو د خپلولۍ (ادا کولو) او بل د صدقه ورکولو . |

**توضیح : ولو من حلیکن:** د دینه په واضحه توګه د احنافو مسلک ثابتیږي. چې د هغوی په نزد د ښځو په زیوراتو کې د زکوة شته دی، مسئله مخکې تیره شوې ده. (المرقات : ۴/۴۲۴).

**خفیف ذات الید:** یعنې لاس کې چې څه دې هغه سپک او کم دې یعنې سړې غریب وې. (المرقات ۴/۴۲۴).

**بل ائتیه انت:** حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ډیر ښه جواب وکړو چې د هغې په وجه د سړې فوقیت وساتل شو. الله دې په هغې باندې کروړونه رحمتونه نازل کړي. مطلب دا چې زه ستانه د زکوة اخستلو لپاره د دې مسئلې باره کې پوښتنه نه شم کولی چې زما د ښځې زکوة په ما باندې کېږي یا نه. ته خپله لاړه شه او معلومه یې کړه.

**حاجتي حاجتها:** یعنې د کومې مسئلې معلومولو لپاره زه تلې ؤم همدغه مسئله د دې ښځې هم وه. (المرقات : ۴/۴۲۵).

**المهابة:** یعنې الله نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته رعب او دبدبه او هیبت ورکړې ؤو. ځکه هیڅ یو کس ناڅاپه او بې اختیاره په نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه شو ورتللی. (المرقات : ۴/۴۲۵).

**واجر الصدقة:** یعنې دوه اجرونه به ملاوېږي. یو اجر به د صدقې ملاوېږي او بل اجر به د قرابت وصله ملاوېږي. اوس په دې کې د ائمؤ اختلاف دی چې آیا مېړه خپلې ښځې ته یا ښځه خپل مېړه ته زکوة ورکولی شي او که نا. (المرقات : ۴/۴۲۵).

**د فقهاؤ اختلاف :** د فقهاء احنافو ټول په دې باندې اتفاق دی چې مېړه د خپلې ښځې د زکوة مال نه شي اخستلی ځکه د دواړو مفادات شریک دي. چې پرې سړی د خپل مال نه فایده اخستلی شي چې ناجائز ده. البته دې کې اختلاف دی چې ښځه خپل مېړه ته زکوة ورکولی شي یا نه، دې کې اختلاف دی.

امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې ښځه هم خپل مېړه ته زکوة نشي ورکولی ځکه دلته هم مفادات شریک دي. د امام محمد رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله په نزد ښځه خپل مېړه ته زکوة ورکولی شي. ځکه مفاداتو کې اشتراک نشته دی او د بحث لاندې صریح حدیث هم موجود دی چې هغې کې واجبي صدقه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۲۷/۳، رقم الحديث ۱۴۶۶، ومسلم في صحيحه ۶۹۴/۲ رقم الحديث ۴۵-۱۰۰۰، وابن ماجه ۵۸۷/۱ رقم الحديث : ۱۸۳۴، وأحمد في المسند ۳۶۳/۶.

مراد ده. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله دا حدیث د زکوة نه بغیر په نورو صدقو، خیراتونو او معاملاتو باندې حمل کوي. (المرقات: ٤/٤٢٦).

## خپل نږدې خپلوانو ته زکوة ورکول ډېر ثواب لري

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَعَنْ مَيْمُونَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ: أَنَّهَا أَعْتَقَتْ وَلِيدَةً فِي زَمَانِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| میمونه بن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهَا باره کې منقول دي چې دې یوه وینځه آزاده کړه په زمانه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: لَوْ |
| کې او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یې د هغې تذکره وکړه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې که تا هغه |
| أَعْطَيْتِهَا أَخْوَالَكِ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِكِ.(١) |
| وینځه خپل ماما ته ورکړې وی نو ستا به ډېر ثواب شوی وی. |

## د خپل ګاونډیانو په عامه تحفه کې خیال وساتی

| |
|---|
| ﴿٨﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّ لِي جَارَيْنِ |
| د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا باره کې منقول دي چې دې عرض وکړو یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زما دوه ګاونډیان |
| فَإِلَى أَيِّهِمَا أُهْدِي؟ قَالَ: إِلَى |
| دي هغوی کې چاته تحفه ور ولیږم؟ (اول یا ډېر چاته ورکړم؟) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل هغه ګاونډی ته چې |
| أَقْرَبِهِمَا مِنْكِ بَابًا.(٢) |
| د هغه دروازه تاته ډېره نږدې وي. |
| ﴿٩﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا طَبَخْتَ مَرَقَةً فَأَكْثِرْ مَاءَهَا |
| ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کله چې خوراک پخوې نو اوبه په کې ډېرې اچوئ |
| وَتَعَاهَدْ جِيرَانَكَ.(٣) |
| او د خپل ګاونډی خیال ساتئ. |

---

(١) أخرجه البخاري رقم الحديث ٢٥٩٢، ومسلم في صحيحه ٢/٦٩٤ رقم الحديث ٤٤-٩٩٩، وأبوداود ٢/٣٢٠، رقم الحديث ١٦٨٩.

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ٥/٢١٩، رقم الحديث ٢٥٩٥، وأحمد في المسند ٦/١٧٥

(٣) أخرجه مسلم في صحيحه ٤/٢٠٢٥ رقم الحديث ١٤٢ ٢٦٢٥

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د لږ مال لرونكي والا صدقه افضله ده

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ ! أَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ ؟ |
| د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره كښې منقول دي چې ده وويل چې يا رسول الله! كومه صدقه د ډير ثواب سبب دى؟ |
| قَالَ : جُهْدُ الْمُقِلِّ وَ ابْدَأْ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل "د لږ مال ساتلو ډيره سعي او كوشش او د صدقي مال اول هغه كس ته وركوه چې |
| بِمَنْ تَعُولُ .(۱) |
| د ژوند ضرورتونه يې ستا سره تړلی شوي وي. |

**توضيح** : **جهد المقل:** جهد خو محنت مزدورۍ ته وايي. دلته صدقه كولو كښې كوشش كول او پوره كوشش كول مراد دى چې كم مال دى خو په زړه كانې كېږدي او د خداى په لاره كښې مال وركوي.

**المقل:** دا د قليل او قلت نه دى. مراد هغه خلك دي چې هغوى سره د صدقي لپاره مال بالكل كم وي. د عربي محاوره ده "**جهد المقل دموعة**" يعنې چا سره چې مال نشته دى هغه د ژړا نه بغير څه كولى شي.

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الصَّدَقَةُ عَلَى الْمِسْكِينِ |
| او سليمان بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "يو مسكين ته صدقه وركول يوه |
| صَدَقَةٌ وَ هِيَ عَلَى ذِي الرَّحِمِ |
| صدقه ده (يعنې هغې ته صدقه وركولو كښې فقط د صدقي ثواب ملاوېږي) خو خپلوانو ته صدقه وركول |
| ثِنْتَانِ : صَدَقَةٌ وَ صِلَةٌ " .(۲) |
| د دوه چنده ثواب سبب دى. يو خو د صدقي دى او بل د صله رحمي (خپلوانو سره د حسن سلوك) دى. |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۳۱۲، رقم الحديث ۱۶۷۷

(۲) أخرجه الترمذي ۳ ٤٦ رقم الحديث ۲۵۸ ، والنسائي ۵ ۹۲ رقم الحديث ۲۵۸۲، وابن ماجه ۱ ۵۹۱ رقم الحديث ۱۸٤٤ ، وأحمد في المسند ٤ ۲۱٤

## د مصرف کولو ترتیب

﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ :

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې یو ورځ د نبي کریم صلى الله عليه وسلم خدمت کې یو سړی حاضر شو او وې ویل چې

عِنْدِي دِينَارٌ

(یارسول الله) ماسره یو دینار دی (زه یې خرچ کول غواړم کوم ځای کې یې خرچ کړم؟) نبي عليه السلام ورته

فَقَالَ : أَنْفِقْهُ عَلَى نَفْسِكَ قَالَ : عِنْدِي آخَرُ قَالَ :

فرمایل چې په خپل نفس یې خرچ کړه. هغه کس وویل چې یو بل دی. نبي کریم صلى الله عليه وسلم وفرمایل

أَنْفِقْهُ عَلَى وَلَدِكَ قَالَ : عِنْدِي آخَرُ قَالَ :

هغه خپل اولاد باندې خرچ کړه هغه کس وویل چې ماسره یو بل هم دی نبي عليه السلام ورته وفرمایل چې هغه

أَنْفِقْهُ عَلَى أَهْلِكَ قَالَ : عِنْدِي آخَرُ

په خپل اهل (یعنې ښځه او مور پلار او نورو خپلوانو) باندې خرچ کړه هغه وویل: ماسره یو بل دینار دی؟

قَالَ : أَنْفِقْهُ عَلَى خَادِمِكَ . قَالَ : عِنْدِي آخَرُ

نبي عليه السلام وفرمایل هغه په خپل غلام باندې خرچ کړه. ده بیا وویل چې ماسره یو بل هم دی نبي عليه السلام

قَالَ : أَنْتَ أَعْلَمُ .[1]

ورته وفرمایل چې اوس ته د هغې باره کې ښه پوهېږې (یعنې اوس د دینه وروسته مستحق ته ښه پېژنې

څوک چې د دې مستحق ګڼې هغې ته یې ورکړه).

## بدترین سوال ګر څوک دی؟

﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ النَّاسِ؟

ابن عباس رضي الله عنه راوي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم وفرمایل آیا زه تاته ووایم چې بهتر سړی څوک دی؟

رَجُلٌ مُمْسِكٌ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ.

هغه کس دی چې د الله په لاره کې د اسپې واګې نیولې دی او ولاړ دی (یعنې میدان جنګ کې په اسپه

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۲ /۳۲۰، رقم الحديث ۱۶۹۱

| |
|---|
| أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِالَّذِي |
| باندې سپور دی او کافرانو سره د جنګ په انتظار کې دی) آیا زه تاته ووایم چې هغه کس څوک دی. چې |
| يَتْلُوهُ ؟ رَجُلٌ مُعْتَزِلٌ فِي غُنَيْمَةٍ لَهُ |
| د مجاهد مرتبې ته نږدې دی؟ هغه کس دی چې د خپلو یو بیزو سره یې په ګوټ کې ناسته خپله کړې ده |
| يُؤَدِّي حَقَّ اللهِ فِيهَا . |
| او د الله حق ادا کوي (یعنې یو څو بیزې یې واخستلې او چرته لرې ځنګل ته لاړلو او خپلو بیزو باندې د |
| أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِشَرِّ النَّاسِ |
| ژوندګوزاره کوي او په وخت باندې د هغې زکوة ورکوي) آیا زه تاته ووایم چې بدترین سړی څوک دی؟ |
| رَجُلٌ يُسْأَلُ بِاللهِ وَلَا يُعْطِي بِهِ .(۱) |
| هغه کس دی چې د خدای په نوم ترې نه سوال کېږي خو د سائل سوال پوره نه کړي. |

**توضیح**: **بخير الناس**: یعنې ټولو خلکو کې افضل غازي او مجاهد هغه کس دی چې هر وخت په اسپه باندې ناست وي او د جهاد په انتظار وي. کله چې هم د یو اړخ نه د کافرانو شور واوري نو په منډه هغې اړخ ته لاړ شي او د الله په لاره کې د مرګ به لټنه کې وي. (المرقات: ۴/۴۲۹).

دلته ټولو شارحینو د کلمۀ تمریض سره دا کلام کړی دی چې دې حدیث کې داسې عبارت مخذوف دی **"ای ممن هو من خير الناس"** یعنې داسې سړی چې په نورو خلکو کې ښه سړی دی یعنې د ټولو نه افضل نه وی خو د افضلو خلکو نه وي. شارحین فرمايي چې دا مخذوف ځکه اخستل غواړي چې کیدلی شي چې د دې مجاهد او غازي بل یو ډیر بهتر وي. د شارحینو دا کلام او احتمال په خپل ځای باندې په سرسترګو قبول دی خو په دې سره د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کلام کې د مخذوف عبارت لګولو بې ځایه تکلف دی. چې حدیث کې مجاهد ته ټولو نه افضل ویل شوي دي او د قرآن کریم اعلان ﴿وَفَضَّلَ اللهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ نو د دې نه وروسته بیا څه مجبوري ده چې مجاهد افضل نه دی؟

**يسئل بالله**: یعنې د الله په نوم ترینه سوال وکړی شي خو هغه څه ورنکړي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ١٥٦٠ رقم الحديث ١٦٥٢ ، والنسائي ٥ ٨٣ رقم الحديث ٢٥٦٩

**يسئل الله ولا يعطى به**: د دې دواړو صيغو د مجهول او معروف ويلو سره معنیٰ بدلېږي او مطلب هم بدل شي. (المرقات: ۴/۴۲۹).

شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ ليکي:

۱: **يسأل بالله**: د مجهول صيغه ده او **لا يعطى** د معلوم صيغه ده. ترجمه دا سې ده چې خلکو کې بدترينه هغه کس دی چې د هغې نه د الله په نوم سوال وکړی شي خو د الله په نوم يې نه ورکوي. دا د هغه کس حال بيان شوی دی چې سوال ترينه کېږي. سائل نه دی بلکې مسئول دی. هغې د الله د نوم په احترام کې هيڅ ورنکړل. (المرقات: ۴/۴۳۹).

۲: **يسأل**: د معلوم صيغه ده او "**لايعطى**" د مجهول صيغه ده. يعنې د الله په نوم سوال کوي او ګرځي راګرځي. خو هيڅوک يې ورله د الله په نوم نه ورکوي. دا د هغه سړي حال دی چې خپله سوال ګر دی. هغې د الله د نوم بې عزتي وکړه چې د لږ مال لپاره يې هر ځاې ته وړاندې کړو او چا هيڅ ورنکړل.

۳: **يسأل**: د معلوم صيغه ده او **لا يعطى** هم د معلوم صيغه ده. مطلب دا دی چې خپله د الله د نوم واسطه ورکوي او سوال کوي خو کله چې د دې نه د الله په نوم وغوښتلی شي نو بيا د الله په نوم هيڅ نه ورکوي. دا د هغه سړي حال دی خپله هم سوال ګر دی او هم مسئول دی. دې د الله په نوم خپل کار وکړو خو د بل کار يې د الله په نوم ونه کړو. دريم احتمال دا دی او امکان لري چې دې حديث کې د دې امکان ګنجائش وي. ما د هيڅ شارح په کلام کې دا احتمال نه دی ليدلی امکان لري چې چا ليکلی وي.

ما حديث باندې د ډېر فکر کولو نه وروسته دا تشريح وليکله که صحيح وي نو قبول يې کړی ګيني پرېږدی. (المرقات: ۴/۴۳۹).

## سوال ګر تش لاس مه لېږئ

| ﴿۱٤﴾ وَ عَنْ أُمِّ بُجَيْدٍ قَالَتْ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : رُدُّوا السَّائِلَ |
|---|
| ام بجيد رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "سوال ګر ته څه ورکوئ او بيرته يې لېږئ |
| وَ لَوْ بِظِلْفٍ مُحْرَقٍ. (۱) |
| اګر که هغه سوځيدلی تکړې ولې نه وي. |

**توضيح**: **ظلف محرق**: سوځيدلی تکړه د دې هيڅ مطلب نه وي بلکې بې فايده شی دی. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۲/۳۰۷، رقم الحديث ۱۶۶۷، والترمذي في السنن ۳/۵۲ رقم الحديث ۶۶۵، والنسائي ۵/۸۱ رقم الحديث ۲۵۶۵

دې تذکره د مبالغې په توګه کړې ده. مراد دا دی چې د لږ نه لږ او د کم نه کم شی ولې نه وي خو سوال ګر ته يې په لاس ورکوی. (المرقات: ۴/۴۳۹).

## احسان کوونکي ته بدل ورکړی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: مَنِ اسْتَعَاذَ مِنْكُمْ |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "کوم کس چې پناه وغواړي د تاسو نه د |
| بِاللهِ فَأَعِيذُوهُ وَ مَنْ سَأَلَ بِاللهِ فَأَعْطُوهُ |
| خدای په نوم هغه ته پناه ورکړی او کوم کس چې تاسو نه د خدای په نوم څه وغواړي نو د هغه سوال پوره کړی. |
| وَ مَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ |
| او کوم کس چې تاسو (خوراک) لپاره راوغواړي (يعنې تاسو ته دعوت درکړي) نو د هغه دعوت قبلوی. |
| وَ مَنْ صَنَعَ إِلَيْكُمْ مَعْرُوفًا فَكَافِئُوهُ |
| (خو په دې شرط چې هيڅ يو شیء مانع نه وي) او څوک چې تاسو سره احسان وکړي نو تاسو هم د هغې بدله |
| فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا مَا تُكَافِئُوهُ |
| ورکوی (تاسو هم د هغې سره همدغه شان احسان کوی) او که تاسو سره مال او زر نه وي چې د هغې بدله |
| فَادْعُوا لَهُ حَتَّى تَرَوْا أَنْ قَدْ كَافَأْتُمُوهُ .[1] |
| ورکړي نو تاسو د غه محسن ته دعا کوی تر څو چې تاسو پوهه شی چې د هغې بدله مو خلاصه کړه. |

**توضيح: فکافئوه**: دا د مکافاتو نه دی. د بدلې ورکولو په معنی دی.

**دعاکم**: يعنې د خوراک لپاره يې دعوت درکړو او څه مانع شرعي نه وي نو هغه قبلوی (المرقات ۴/۴۳۹)

**ماتکافئوه**: دا د مکافاتو نه دی. د بدله ورکولو په معنی کې دی. يعنې تاسو سره چې څوک احسان وکړي نو تاسو هم هغې سره احسان وکړی.

**لم تجدوا ماتکافئوه**: يعنې که مال نشته دی نو تاسو بدله نه شی ورکولی نو د احسان کونکي لپاره دو مره دعاګانې وکړی چې تاسو خپله وګڼی چې تاسو د هغې د احسان بدله هغې له ورکړه. يو روايت کې دي چې چا احسان کونکي ته وويل جزاک الله خيرًا نو بدله ورکولو کې مبالغه وکړه يعنې ښه حق يې

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۳۱۰، رقم الحديث ۱۶۷۲، وأحمد في المسند ۲ ۶۸

ورته ادا کړو. (المرقات: ۴/۴۳۹).

## د الله نوم د دنیا ګټلو لپاره مه استعمالوئ

| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يُسْأَلُ بِوَجْهِ اللهِ |
|---|
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل يو شي. هم مه غواړي د خدای د ذات په واسطه |
| إِلَّا الْجَنَّة. (۱) |
| د جنت نه بغير. |

**توضیح**: **الا الجنة**: د دې جملې دوه مفهومه دي. اول مفهوم یې دا دی چې د الله د ذات واسطه ورکول بندې د چنده څه مه غواړئ. ځکه چې دا وویل شو چې د الله په نوم فقط جنت غواړئ او ښکاره خبره ده چې جنت یو داسې شی دی چې د خلکو نه نه غوښتلی کېږي. د دې مطلب دا شو چې د الله په نوم بندې هیڅ مه غواړئ. دویم مفهوم دا دی چې د الله په نوم باندې هیڅ یو شی نه شي غوښتلی کېږي. ځکه دنیا یو ختمیدونکي او کم شی دی. د دې د حصول لپاره د الله دومره لوی نوم استعمالول په کار نه دی. که څوک دا نوم د یو مقصد لپاره استعمالول غواړي نو د جنت غوښتلو لپاره یې استعمال کړئ "**اللهم انی اسألك الجنة باسمك الكريم وبوجهك العظيم**". چې ای الله ماته د خپل نوم او د عظمت په واسطه جنت راکړې. د حدیث دا مفهوم ډیر واضح دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د ټولو نه د ښه شي صدقه کوئ

| ﴿۱۷﴾ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ : كَانَ أَبُو طَلْحَةَ أَكْثَرَ الْأَنْصَارِيِّ بِالْمَدِينَةِ مَالًا مِنْ نَخْلٍ |
|---|
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مديني په انصارو کې د کهجورو په اعتبار سره ډير مالداره |
| وَ كَانَ أَحَبُّ أَمْوَالِهِ إِلَيْهِ بَيْرُحَاءَ وَ كَانَتْ مُسْتَقْبِلَ الْمَسْجِدَ |
| وُ خپل مال کې د ټولو نه ورته ډير خوښ خپل د بيرحاء (په نوم) باغ وُو چې مسجد نبوی ته بالکل مخامخ |
| وَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَدْخُلُهَا وَ يَشْرَبُ مِنْ مَاءٍ فِيهَا |
| وُ. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هم اکثر دې باغ له تللو او د هغه خاې اوبه به یې څکلي چې ډيري ښې (يعنې |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ ۳۰۹، رقم الحديث ۱۶۷۱

طَيِّبٍ قَالَ أَنَسٍ فَلَمَّا نَزَلَتْ

خوږکي يا د! چې بيشکه حلالې او پاکې) وي. حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې کله دا آيت نازل شو: تاسو

﴿ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا

نيکي (يعنې جنت) ته ترهغې نه شئ تللی چې ترڅو پورې تاسو هغه شی (دالله په لاره کې) خرچ نه کړئ

تُحِبُّونَ ﴾ قَامَ أَبُو طَلْحَةَ إِلَى رَسُولِ اللهِ

چې ستاسو په نزد ډير خوښ وي. نو ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ : ﴿ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى

او عرض يې وکړو چې يا رسول الله! دا چې الله فرمايي چې نيکي (جنت) ته ترهغه نه شئ رسيدی ترڅو

تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ ﴾ وَ إِنَّ أَحَبَّ مَالِي إِلَيَّ بَيْرَحَاءُ

چې تاسو هغه شی خرچ نه کړئ کوم چې ستاسو ډير خوښ وي. لهذا بيرحاء چې په ټول مال کې زما خوښ

وَ إِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلَّهِ أَرْجُو بِرَّهَا

دی زه يې د الله په نوم صدقه کوم او (د دې آيت په وړاندې) د دې نيکۍ اميد لرمه او اميدواريمه چې د

وَ ذُخْرَهَا عِنْدَ اللهِ فَضَعْهَا يَا رَسُولَ اللهِ حَيْثُ أَرَاكَ اللهُ

خدای په نزد به زما لپاره د آخرت ذخيره وي. نو يا رسول الله! دا قبول کړه (او) چرته چې الله تا ته وفرمايي

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : بَخٍ بَخٍ ذٰلِكَ مَالٌ

(يعنې چرته چې ته مناسب وګڼې دا خرچ کړه) رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! وفرمايل واه واه! دا مال (باغ)

رَابِحٌ وَ قَدْ سَمِعْتُ مَا قُلْتَ وَ إِنِّي أَرَى أَنْ تَجْعَلَهَا فِي

ګټه رسونکی دی. څه چې تا ويلي دي ما واوريدل. زما په نزد مناسب ده چې ته دا باغ خپل (محتاجه)

الْأَقْرَبِينَ . فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ أَفْعَلُ يَا رَسُولَ اللهِ

خپلوانو کې تقسيم کړې (چې د صدقې د ثواب سره د صله رحمۍ ثواب هم درته ملاؤ شي) ابو طلحه

فَقَسَمَهَا أَبُو طَلْحَةَ

رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې يا رسول الله! (هم ستا د ارشاد مطابق) به عمل کوم. نو تقسيم کړو ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

| |
|---|
| فِي أَقَارِبه وَ فِي بَنِي عَمه.[1] |
| دغه باغ خپلو خپلوانو او د تره زامنو بندي. |

**توضیح**: بیرحا: باباندې فتحه ده. "ی" ساکن ده را مفتوح ده او "ح" باندې فتحه او مد دی. قصر هم جائز دی. را باندې ضمه هم جائز ده. دا د یو باغ نوم دی یا د ځاې نوم دی. (المرقات: ۴/۴۳۲).

**بخ بخ**: با باندې فتحه او خا باندې تنوین په شکل کې کسره ده. سکون هم جائز دی. دا کلمه یو شي د تعجب کولو یا د خوشحالیدلو په موقع باندې ویل کېږي. د مبالغې تکرار لپاره دی. د دې ترجمه داسې ده شاباش شاباش، واه واه. (المرقات: ۴/۴۳۳).

**مال رابح**: یعنې فایده ورکونکی او ګټه ورکونکی مال دی. "ای مال ذو ربح" په یو روایت کې د رائح لفظ دی. د دې مطلب دا دی چې د دې مال فایده به تاته در کول کېږي. (المرقات: ۴/۴۳۳).

**وقد سمعت ما قلت**: یعنې ما تا چې څه وویل ما واوریدل. (المرقات: ۴/۴۳۳).

## ښه خېټه مړول بهترینه صدقه ده

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ أَنْ تُشْبِعَ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: بهترینه صدقه (داهم) ده چې ته که کړې |
| كَبِدًا جَائِعًا.[2] |
| شي خېټه د یو زنده سري. |

**توضیح**: **کبدا جائعا**: ای ذو کبد جائع. د دینه مراد زنده سری دی هغه که انسان وي او څاروی وي. انسانانو کې که مسلمان وي او که کافر وي ټول مراد دي. البته په څارو کې هغه څاروي مستثنیٰ دي چې ضرر رسونکي دي. ځکه د هغې د ختمولو حکم دی. ځینې خلک سحر سحر کې کارغانو ته غوښه ورکوي نو د ثواب نیت کوي خو په ګاونډ یې انسان وږي پروت وي. دا د هغې فکر نه کوي. دا صدقه نه ده بلکې فقط ځان خوشحالوي. (المرقات: ۴/۴۳۴، والکاشف: ۴/۱۵۲).



(۱) أخرجه البخاري ۳/۳۲۵، رقم الحديث ۱۴۶۱، ومسلم في صحيحه ۲/۶۹۳ رقم الحديث ۴۲-۹۹۸، وأحمد في المسند ۳/۱۴۱

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۳/۲۱۷ رقم الحديث ۱۹۴۶

# باب صدقة المرأة من مال الزوج

مشكوة شريف کې ځینې مقاماتو کې بغير د عنوان نه ځه بابو قائم کړی شوي دي. حقيقت کې دا د تيرو شوؤ بابونو سره يو ځای دي او د هغې د تکميل لپاره دي. دې کې د همغه مضمون حديثونه وي کوم چې مخکې باب کې ؤو.

علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ په خپله شرح طيبي کې دا عنوان ايخې دی "باب صدقة المرأة من مال الزّوج".

بهرحال دې باب کې فقط د ښځې د صدقې د بيان ذکر نه دی بلکې نور هغه حديثونه هم دې چې هغې د خادم او د خزانچي او د غلام د صدقې ذکر هم دی. (المرقات: ۴/۳۳۴، الکاشف: ۴/۳۳۴)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د خاوند د مال نه ښځې ته د صدقې ثواب

| ﴿۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: إِذْ أَنْفَقَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ طَعَامِ بَيْتِهَا |
|---|
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې يوه ښځه صدقه ورکوي د کور د خوړو نه |
| غَيْرَ مُفْسِدَةٍ كَانَ لَهَا أَجْرُهَا بِمَا أَنْفَقَتْ وَ لِزَوْجِهَا |
| خو په دې شرط چې اسراف نه کوي نو د هغې په خرچ کولو ورته ثواب ملاوېږي او د هغې خاوند ته د مال |
| أَجْرُهُ بِمَا كَسَبَ وَ لِلْخَازِنِ مِثْلُ ذٰلِكَ |
| د ګټول په وجه ثواب ملاوېږي او اشپز (د مطبخ نګران) ته هم دغه شان ثواب ملاوېږي (لکه څنګه چې |
| لَا يَنْقُصُ بَعْضُهُمْ أَجْرَ بَعْض شَيْئًا. (۱) |
| مالک ته ملاوېږي) او په هغوی کې هيڅ ثواب د بل په وجه نه کمېږي. |

**توضيح: لها اجرها:** ځينو شارحينو ليکلي دي چې د حجاز د خلکو دا معمول ؤو چې هغوی د خپلو مالونو نه ځه مال د خپلو ښځو سره ايخودلو چې د ضرورت په وخت کې صدقه او ميلمستيا وکړی شي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې ښه عادت دادګيرنه ورکړه. خو دا يو شرط ايخودلی شوی دی چې:

**غير مفسدة:** يعنې د خاوند مال د خرابولو اراده يې نه وي، نه يې بې ځايه مصرف وي، نه اسراف وي.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۱۶۷، رقم الحديث ۱۴۳۷، ومسلم في صحيحه ۲/۷۱۰ رقم الحديث ۷۰۰-۱۰۲۳، وأحمد في المسند ۶/۴۴.

د دې مسئلې پوره تفصيل په توضيحات ۴ جلد او ۲۸۳ صفحه باندې موجود دی. هلته کتل په کار دي. دلته درې قِسمه حدیثونه دي. ځینو کې د خرچ کولو حکم دی، ځینو کې ممانعت دی او ځینو کې د لږ شي اجازت دی. بهتره دا ده چې ښځه اجازت واخلي ځکه د مقام او د زمان او د میړه د مزاج په وجه مسئله بدلیږي. (المرقات: ۴/۳۳۵)

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَنْفَقَتِ الْمَرْأَةُ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې یوه ښځه صدقه خیرات ورکوي |
| مِنْ كَسْبِ زَوْجِهَا مِنْ غَيْرِ أَمْرِهِ فَلَهَا نِصْفُ أَجْرِهِ.[1] |
| د خپل میړه د گټې (مال) نه د خاوند د اجازت نه بغیر نو دې ته نیم ثواب ملاوېږي. |

**توضيح: من غير امره:** د دې مطلب دا نه دی چې د خاوند په منع کولو هم ښځه صدقه کوي او هغې ته ثواب ملاوېږي. بلکې مطلب دا دی چې معمولي شان شی دی چې د هغې اجازت د دلالةً یا اشارةً یا صراحةً د خاوند د طرف نه وي لکه د تیلو دبلی، مالگه، د ورو د ډوډۍ قطره یا لږي روپۍ. د میړه د اجازت نه بغیر ورکوي.

بهرحال مجموعي حدیثونو ته په کتنې سره د ځینو نه اجازت او د ځینو نه ممانعت معلومېږي. د خاوند مزاج هم جدا جدا وي. د مقام او زمان په وجه کله معمولي شی قیمتي شي.

لهذا ښځو ته په کار دي چې د هر قِسمه صدقه کولو نه مخکې د خاوند نه اجازت واخلي چې مال د خاوند وي. (المرقات: ۴/۳۳۵)

## خادم ته هم د مالک صدقه کې ثواب ورکول کیږي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَازِنُ الْمُسْلِمُ الْأَمِينُ |
| ابو موسی اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم مسلمان او امین ځوکیدار |
| الَّذِي يُعْطِي مَا أُمِرَ بِهِ كَامِلًا مُوَفَّرًا طَيِّبَةً بِهِ نَفْسُهُ |
| (نوکر، خزانچي وغیره) هغه شی چې مالک یې ورکولو حکم کړی وي بغیر د څه نقصان نه په خوشحاله زړه |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۵۰٤، رقم الحديث ۵۳۶۰، ومسلم في صحيحه ۲/۷۱۱ رقم الحديث: ۸٤-۱۰۲۶، وأبوداود في السنن ۲/۳۱۷، رقم الحديث: ۱۶۸۷.

| فَيَدْفَعُهُ إِلَى الَّذِي أُمِرَ لَهُ بِهِ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقِيْنِ.[1] |
|---|
| هغه کس ته ورکړي کوم ته چې مالک د ورکولو حکم کړی وي نو دغه صدقه کونکی په دوه کسانو کې یو دی |

**توضیح**: **الخازن**: **خازن** خزانچي ته وايي. د دې په مفهوم کې هر نوکر، سيکرټري او خادم راځي. غلام هم په دې کې داخل دی. يعنې کله چې مالک صدقه کوی او دا خلک په صدقه کې ذريعې جوړې شي نو دوې ته به هم ثواب ملاوېږي. خو د بحث لاندې حديث کې د خزانچي او خادم لپاره څلور شرطونه لګولی شوي دي:

۱: **اولنی شرط** دا چې څومره مال مالک جدا کړی دی او د ورکولو حکم يې کړی دی نو هغه مال دې پوره پوره ادا کړي کمی دې په کې نه کوي.

۲: **دويم شرط** دا چې مالک څنګه په خوشحاله زړه خپل مال صدقه کړی دی نو کر دې هم داسې په فراخه او خوشحاله زړه ورکړي دا نه چې مالک ورکړو او نوکر کنځلي کوي چې دې ته يې ولې ورکړو او يا دومره يې ولې ورکړو.

۳: **دريم شرط** دا چې مالک کوم کس ته د ورکولو لپاره ويلي دي همغه ته يې ورکړي دا نه چې بل يو غريب يا مستحق ته يې ورکړي.

۴: **څلورم حکم** دا چې د مالک حکم وي دده د حکم نه بغير نه وي. (المرقات: ۴/۳۳۶)

**المتصدقين**: يا دا د صيغه تثنيه ده چې يو صدقه کونکی مالک دی او بل نوکر دی.

: مشکوة شريف په بعضو نسخو کې دا لفظ د جمعه صيغي سره راغلی دی يعنې د "**متصدقون**" لفظ دی. مطلب دا چې دا نوکر هم د صدقه کونکو نه يو دی. (المرقات: ۴/۳۳۶)

## مړي ته د ايصال ثواب د پاره صدقه کول

| ﴿۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أُمِّي افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې يو کس عرض وکړو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته چې زما مور ناڅاپه مړه شوه او |
| وَ أَظُنُّهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ |
| زما خيال دی چې که (هغې د مرګ نه مخکې) څه ويلي نو د صدقې ورکولو به يې (ضرور) نصيحت کړي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳ /۳۰۲، رقم الحديث ۱۴۳۸، ومسلم في صحيحه ۲ /۷۱۰، رقم الحديث: ۷۹ /۱۰۲۳، وأبوداود في السنن ۲ /۳۱۵، رقم الحديث ۱۶۸۴

| فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقت عَنْهَا ؟ قَالَ : نَعَمْ ".[1] |
|---|
| وې لهذا که زه د هغې طرف نه صدقه ورکړم نو آیا هغې ته به یې ثواب ورسېږي؟نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل آؤ. |

**توضیح**: **افتلتت**: دا د مجهول صیغه ده. **افتلات** ناڅاپه مرګ ته وايي. ګویا کې چا او چت کړې وي. (المرقات: ۴/۳۳۶).

**نفسها**: ملاعلی قاري رَحِمَهُ الله وايي چې دا لفظ په اکثر نسخو کې منصوب دی. نو دا د **افتلتت** لپاره مفعول ثاني دی. او مفعول اول د **افتلتت** ضمیر دی. چې نائب فاعل به وي او که **نفسها** په ځای مرفوع وي نو دا به د **افتلتت** لپاره نائب فاعل وي. د اهل السنة والجماعة په نزد د نفلي صدقو ثواب مړي ته رسېږي. معتزله وايي هیڅ نه رسېږي. د احنافو په نزد د مالي او بدني دواړه عبادتونو ثواب رسېږي. د شوافعو حضراتو په نزد د بدني عبادت ایصال ثواب کې څه اختلاف دې. (المرقات: ۴/۳۳۶)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## ښځه دې د خاوند د اجازت نه بغیر مصرف نه کوي

| ﴿۵﴾ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ |
|---|
| امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چې د حجة الوداع په کال یې خطبه کې ورکوله اوریدلي |
| لَا تُنْفِقُ امْرَأَةٌ شَيْئًا مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا |
| ؤ "کومه ښځه چې د خپل خاوند د اجازت نه بغیر د کور نه هیڅ خرچ نه کړي (هغه که صراحة اجازت او که |
| قِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ وَلَا الطَّعَامَ ؟ قَالَ : |
| دلالةً) وویل شو چې یا رسول الله! آیا د خواړو نه هم څه خرچ نه کړي؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل خواړه |
| ذَلِكَ أَفْضَلُ أَمْوَالِنَا.[2] |
| زمونږ په مالونو کې غوره شی دی. |

---

(۱) أخرجه البخاري ۱۰۲/۲، رقم الحديث ۱۳۸۸، كتاب الجنائز، باب موت الفجأة البغتة، أبن ماجه ۹۰۶/۲، رقم الحديث: ۲۷۱۷، كتاب الوصايا، باب من مات ولم يوص هل يتصدق عنه

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵۷/۳ رقم الحديث ۶۷۰، وابن ماجه ۷۰۰/۲ رقم الحديث: ۲۲۹۵.

## ښځه معمولي شی مصرف ولی شي

| ﴿۶﴾ وَ عَنْ سَعْدٍ قَالَ : لَمَّا بَايَعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ النِّسَاءُ |
|---|
| سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښځو نه بيعت واخستلو (يعني احکام شريعه باندې د عمل |
| قَامَتِ امْرَأَةٌ جَلِيلَةٌ كَأَنَّهَا مِنْ نِسَاءِ مُضَرَ |
| کولو عهد يې ترې واخستو) نو په دې کې دلوي قد الوي مرتبې والا ښځه اودريدله چې غالباً د قبيله مضر |
| فَقَالَتْ : يَا نَبِيَّ اللهِ إِنَّا كَلٌّ عَلَى آبَائِنَا وَ أَبْنَائِنَا وَ أَزْوَاجِنَا |
| نه معلومېدله او وي ويل چې يارسول الله! زمونږ بوج په خپل مور، پلار او مړونو باندې دی. آيا د هغوی |
| فَمَا يَحِلُّ لَنَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ ؟ قَالَ : الرَّطْبُ |
| مال زمونږ لپاره (د هغوی د اجازت نه بغير) حلال دی؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کوم چې تازه مال وي |
| تَأْكُلْنَهُ وَ تُهْدِينَهُ .[1] |
| هغه خورئ او د تحفې په توګه يې لېږئ. |

**توضیح: كل:** بوج او عيال ته وايي.

**الرطب:** هر هغه شی مراد دی چې سريع الفساد وي، زر خرابيدو په وجه ښځه هغه صدقه کولی شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## غلام دې د مولی په اجازت مصرف وکړي

| ﴿۷﴾ عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ قَالَ : أَمَرَنِي مَوْلَايَ |
|---|
| د آبي اللحم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ازاد کړی شوی غلام عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوځل) حکم وکړو ما ته خپل مالک د |
| أَنْ أُقَدِّدَ لَحْمًا فَجَاءَنِي مِسْكِينٌ فَأَطْعَمْتُهُ مِنْهُ |
| غوښې (د وچولو لپاره) پوټې کولو چې يو مسکين او فقير زما خواته راغلو او ما ورته د خوراک لپاره څه |
| فَعَلِمَ بِذَلِكَ مَوْلَايَ فَضَرَبَنِي فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ورکړه. کله چې زما مالک خبر شو نو هغه زه ووهلم. زه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲ / ۳۱۶ رقم الحديث ۱۶۸۶

فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ فَدَعَاهُ

او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مې ټوله قصه واوروله. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما مالک راوغوښتلو او د

فَقَالَ : لِمَ ضَرَبْتَهُ ؟ فَقَالَ يُعْطِي طَعَامِي بِغَيْرِ أَنْ آمُرَهُ

هغې نه يې وپوښتل چې دا دې ولې وهلی دی؟ هغه وويل چې دا زما دا خواړونه زما د اجازت نه بغير ورکړه

فَقَالَ :

کوي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (که تا دصدقې د ورکولو حکم کولی يا د ده په صدقه ورکولو سره

الْأَجْرُ بَيْنَكُمَا . وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ :

خوشحاليدلی نو) نو تاسو دواړه به دثوابونو حقدار وی. يو بل روايت کې دا الفاظ دی چې عمير وويل

كُنْتُ مَمْلُوكًا فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَتَصَدَّقُ مِنْ مَالِ

زه يو غلام سړی وم. نو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مې وپوښتل چې آيا زه صدقه ورکولې شي دمال دخپل

مَوَالِيَّ بِشَيْءٍ ؟

مالک نه؟(يعني څه دلږ او کمې درجې شی چې په عامه توګه يې دخرچ کولو اجازت وي) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

قَالَ : نَعَمْ وَ الْأَجْرُ بَيْنَكُمَا نِصْفَانِ .[1]

وفرمايل چې آؤ او د دې ثواب به تاسو ته نيم نيم ملاويږي.

**توضيح : ابي اللحم** : لحم غوښې ته وايي. او ابی د اسم فاعل صيغه ده. ابا يابی د انکار په معنی کې دی. دا چې د دې صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به غوښه نه خوړله نو ځکه د دې لقب آبي اللحم يعني د غوښې خوړلو نه انکار شو. صاحب مظاهر حق جديد په ترجمه کې او په تشريح کې د ده لره ابو اللحم ليکلی دی. د غلطي ده. د دې صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم عبد الله ؤ. او عمير د دې ازاد کړی شوی غلام ؤو. (المرقات : ۴/۲۳۷)

**الاجر بينكما نصفان** : علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ ليکي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسلوب حکيم په توګه داسې جواب ورکړی دی چې ابو اللحم ته يې ترغيب ورکړی دی. چې د دې غلام وهلو او د اجازت نه ورکولو نه بهتره کار دا ؤو چې دې ته دې د خرچ کولو اجازت ورکړی وی. ځکه په ثواب کې به تاسو دواړه برابر شريک وی. چې تا ته ثواب ملاوې. نو دا دې ولي ووهلو. هغې څه نقصان خو نه دی کړی.

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲ ۷۱۱ رقم الحديث ۸۲ ۱۰۲۵

تاته خو ثواب ملاوېږي. دې کلام نه د آبی اللحم پوهه کول مقصود ؤو. دا مطلب نه ؤو چې مالک د اجازت نه بغیر غلام د هغې په مال کې مطلق تصرف شروع کړي. (المرقات : ۴/۳۳۷)

د نقصان باره کې ځېنې علماء لیکي چې د دې نه مراد برخه ده. برابر نیم مراد نه دی ځکه اصل مالک ته ډیره برخه ملاوېږي. نو مطلب دا شو چې د دواړو په مینځ کې به ثواب تقسیمېږي. حدیث نمبر ۲ کې هم د نیم (نصف) راغلی دی. هلته به هم دغه مطلب وي. خو حدیثونو کې د **نصف** لفظ صریح موجود دی. نو ځکه دا تاویلات فقط تاویلات دي.



# باب من لا يعود في الصدقة

## په صدقه کې د رجوع کولو مسئله

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

﴿۱﴾ عن عمر بنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: حَمَلْتُ عَلٰى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللهِ

دعمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې هغې وويل (يو خل) ما ورکړه يو کس ته اسپه د خداى په لاره کې سورلى لپاره (يعنې يو مجاهد سره اسپه نه وه نو خکه ورله ما اسپه ورکړه) هغه کس هغه څه چې د

فَأَضَاعَهُ الَّذِي كَانَ عِنْدَهُ

اسپې سره ؤوضايع يې کړل (يعنې د اسپې ساتنه يې ونه کړه چې د هغې په وجه هغه اسپه کمزوري شوه)

فَأَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِيَهُ وَ ظَنَنْتُ أَنَّهُ يَبِيعُهُ بِرُخْصٍ

ما سوچ وکړو چې هغه ترې نه واخلم او خيال مې وکړو چې په ارزان قيمت يې خرڅه کړم خو (د اخستلو

فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ:

نه مخکې) ما د دې باره کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې

لَا تَشْتَرِهِ وَلَا تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ وَ إِنْ أَعْطَاكَهُ بِدِرْهَمٍ

ته دا مه اخله او مه خپله ورکړې شوې صدقه بيرته اخله اګر که هغه تاله په يو درهم ولې نه درکوي (ګويا

فَإِنَّ الْعَائِدَ فِي صَدَقَتِهِ كَالْكَلْبِ

داحقيقتًا نه بلکې صورةً بيرته اخستل دي) ځکه خپله ورکړې شوې صدقه بيرته اخستونکې د سپي پشان

يَعُودُ فِي قَيْئِهِ . وَ فِي رِوَايَةٍ :

دى. چې خپلې کانګې (التې) څټي. يو روايت کې دا الفاظ دې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل.

لَا تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ فَإِنَّ

خپله ورکړې شوې صدقه بيرته مه اخله (هغه اخستل د صورة وا لا ولې نه وي) ځکه خپل ورکړې شوی

| الْعَائِدَ | فِي | صَدَقَتِهِ | كَالْعَائِدِ | فِيْ | قَيْئِهِ .[1] |
|---|---|---|---|---|---|

صدقه واپس اخستونکی د هغه کس په شان دی چې کانګې وکړي او بیا یې څټي.

**توضیح: ولا تشتره**: حضرت عمر فاروق رَضِیَ اللهُ عَنْهُ یوه ښه اسپه یو صحابي ته په صدقه کې ورکړې وه. هغه کس د هغه اسپې ښه ساتنه ونه کړه نو ځکه اسپه کمزوري او د رحم قابله شوه. حضرت عمر فاروق رَضِیَ اللهُ عَنْهُ غوښتل چې هغه اسپه د هغه کس نه واخلي. خو د نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نه یې پوښتنه مناسبه وګڼله. نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې که هغه کس یې په یو دینار هم درکوي نو ته یې مه اخله او صدقه کې رجوع مه کوه. (المرقات: ۴/۳۳۸)

اوس دلته دوه مسئلې دي یوه مسئله هبه کې د رجوع ده دا جدا مسئله ده او دویمه رجوع في الصدقه ده دا جدا مسئله ده. اګر که د صدقې او هبې په شرائطو کې اتحاد دی خو د دې حکم کې اتحاد نشته دی. حکم یې جدا جدا دی. (کذافی العنایه)

بهرحال نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ځکه د اسپې د اخستلو نه منع کړو چې ډیر ممکن ؤو چې هغه کس خیال کړی وی چې ماته یې خیرات راکړی ؤو. اوس یې چې زه خرخوم نو د احسان تقاضا ده چې څه لږ ارځان ورکول په کار دې او کیدی شي چې د حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په زړه کې هم دغه خیال راغلی وي.

دغه شان د حضرت عمر فاروق رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په صدقه کړی شوي اسپه کې به په ثواب کې فرق راغلی وی. مثلاً اسپه د دوه زرو (۲۰۰۰) وه خو د احسان له خاطره هغه کس په پنځلس سوه (۱۵۰۰) ورکړه. دغه شان پنځه سوه (۵۰۰) درهمه حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ پاتې شول. ګویا کې حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ پنځه سوه (۵۰۰) درهمو کې رجوع وکړه. د همدغې نه نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ منع کړو.

اوس حدیث باندې د پوهیدلو نه وروسته د فقهاء کرامو معمولي شان اختلاف ته کتنه وکړی:

**د فقهاؤ اختلاف**: ځینې اهل الظواهر او د ځینې نورو علماؤ په نزد د هیڅ یو کس لپاره دا جائز نه ده چې هغه خپل صدقه کړی شوی مال بیرته واخلي.

که چا داسې وکړل نو دا هم حرام دې او بیع قابل فسخ شوه.

جمهور علماء وایي چې داسې اخستل مناسب نه دې دا یو قبیح حرکت دی خو که چا واخستلو نو بیع مکروه تنزیهي ده. (المرقات: ۴/۳۳۹)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۳/۳، رقم الحديث ۱۴۹۰، ومسلم في صحيحه ۱۲۴۱/۳ رقم الحديث ۷ ۱۶۲۲، وأبوداود في السنن ۸۰۸/۳، رقم الحديث: ۳۵۳۹، وأحمد في المسند ۲۷/۲.

**دلائل**: اهل ظواهرو او داسي نورو علماؤ د زير بحث لاندې د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د واقعې نه استدلال كړى دى. چې په خپله مدعا باندې ډيره واضحه ده.

جمهورو د قواعد شريعه اصوليه نه استدلال كړى دى چې دلته د شرعي ضابطې هيڅ داسي مانع نشته دى چې د هغې په وجه بيع فسخ شي. د صدقه كولو نه وروسته مصدق عليه د هغه مال مالک شي. اوس كه هغه څنګه خرڅول غواړي خرڅولى شي.

اوس يې كه هم صدقه كونكى اخلي نو د لاس بدليدو په وجه هغه مال د هغې صدقه پاتې نه شوه. خو دا چې دې حديث كې د اخستلو ډير قبيح مثال وركړى شوى دى. نو ځكه د مصدق لپاره اخستل مناسب نه دي. ځكه دې كې د بل لپاره قباحت راغلو. لهذا دا بيع تنزيهي ده. د دې نه ځان ساتل بهتر دې. علامه بدرالدين عيني رَحِمَهُ اللَّهُ او د ملاعلى قاري رَحِمَهُ اللَّهُ د تشريحاتو هم دغه خلاصه ده. (زجاجة المصابيح ج ۱ص ۵۳۹).

**جواب**: جمهورو زير بحث حديث په مكروه تنزيهي باندې حمل كړى دى چې د قواعد شريعۀ تحفظ وشي.

## د صدقه شوي مال د بيرته اخستلو يو صورت

﴿۲﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أَتَتْهُ امْرَأَةٌ

بريده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دى چې (يوه ورځ) زه د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست وُم چې يوه ښځه راغله او

فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّي تَصَدَّقْتُ عَلَى أُمِّي بِجَارِيَةٍ وَ إِنَّهَا مَاتَتْ

وې ويل چې يا رسول الله! ما يوه وينځه د صدقې په توګه وركړې وه. اوس زما مور مړه شوې ده (آيا زه

قَالَ :

هغه بيرته واخلم او دغه به هغه وينځه بيرته زما په ملكيت كې راشي يا نه؟) نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

وَجَبَ أَجْرُكِ وَ رَدَّهَا

(صدقه وركول په وجه) ستا ثواب خو ثابت شو (يعني د هغې ثواب يقينًا تاته ملاؤ شو) اوس بيرته

عَلَيْكِ الْمِيرَاثُ . قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّهُ كَانَ عَلَيْهَا صَوْمُ شَهْرٍ

دركړې تاته دغه وينځه ميراث هغې ښځې وويل چې يارسول الله! زما مور باندې ديوې مياشتې روژې پاتې

أَفَأَصُوْمُ عَنْهَا قَالَ : صُوْمِي عَنْهَا .

وې نو زه د هغې لپاره روژې نيولى شم؟ نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د هغه د طرف نه روژې ونيسه

| قَالَت | يَا رَسُوْلَ اللهِ | إِنَّهَا | لَمْ | تَحُجَّ | قَطُّ | أَفَأَحُجُّ | عَنْهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

بیا هغه ښځې وویل چې یا رسول الله ! زما مور کله هم حج نه ؤ کړی نو آیا زه د هغې لپاره حج وکړم؟نبي

| قَالَ : نَعَمْ حُجِّيْ عَنْهَا .[1] |
|---|

کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل آؤ د هغې لپاره حج وکړه.

**توضيح** : **ردها عليك الميراث**: د میراث طرف ته نسبت اسناد الی غیر ما هو له د قبیل نه مجازي دی. ځکه په حقیقت کې خو بیرته ورکونکي الله دی. د دې جملې حقیقي معنی داسې ده: الله د میراث په ذریعه وینځه بیرته تاته درکړه.

یاده دې وي چې صدقه کې چې ورکړی شوي مال د بیرته اخستلو کوم ممانعت راغلی دی. دا صورت د هغې نه بالکل جدا دی. ځکه دې کې هیچاته هیڅ اختیار نشته دی.

په غیر اختیاري توګه مال بیرته راغلو. او دغه شان په دې کې د اخستلو او خرڅول هیڅ صورت نشته دی. (المرقات ۴/۴۴۰)

**د نیابت صوم مسئله** : **قال صومي عنها**: دلته دوه مسئلې دي: اونه مسئله د نیابت ده چې مثلاً یو کس مړ شو او په هغې څه روژې پاتې دي. نو د هغې په وارثانو کې یو کس د هغې لپاره روژې نیولی شي یا نا. دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** : امام احمد نن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د اسحاق بن راهوي رَحِمَهُ اللهُ په نزد فرض روژو کې خو نیابت جائز نه دی خو نذر شوي روژه کې دفدیې په ځاې د روژې قضا هم صحیح ده. (المرقات ۴/۴۴۰)

ائمه ثلاثه او جمهور علماء وایي چې څنګه فرض روژو کې نیابت جائز نه دی بلکې فدیه ورکول لازم ده. همدغه شان په نذر شوي روژو کې هم قضاء جائز نه ده فدیه ورکول لازم ده.

**دلائل** : حنابلو د حدیث الباب د دې جملې نه استدلال کړی دی "**صومي عنها**". (المرقات : ۴/۴۴۰)

ائمه ثلاثه امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ، مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د موقوف روایت نه استدلال کړی دی. چې په هغې کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې فرمایلي دی "**من مات وعليه صيام شهر رمضان فَلْيُطْعَمْ عنه مكان كل يوم مِسْكِيْنٌ**". (**مشكوٰة ص ۱۷۸**)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۸۰۵ رقم الحديث ۱۵۷-۱۱۴۹، وأبوداود في السنن ۳/۶۰۴، رقم الحديث: ۳۳۰۹.

**د ائمه ثلاثو دويم دليل**: "عن مالك بلغه ان ابن عمر كان يسأل هل يصوم احد عن احد او يصلي احد عن احد فقال لا يصوم احد عن احد ولا يصلي احد عن احد". (مشکوٰة ص ۱۷۸)

**اولنى جواب**: په زير بحث حديث کې صوم حکمي مراد دى. چې هغه فديه ده. د پاس ذکر حديث نه دا تاويل ضروري دى.

**دويم جواب**: دا دى چې د پاس ذکر شوي حديثونو په وجه زير بحث حديث منسوخ دى.

**دريم جواب**: دا دى چې په نفلي روژه نيولو باندې ايصال ثواب کيدلى شي. دلته د نيابت صوم مسئله ليکلى شوې ده.

او د نيابت حج مسئله به ان شاء الله په خپل ځاې راشي.

## اظهار تشکر

زه د خپل رب لاکھ لاکھ شکر ادا کوم چې هغې ماته د **کتاب الزکوة** د بابونو د توضيحات او د هغې پوره تشريح توفيق راکړو. **الحمدلله حمدًا کثيرًا کثيرًا**.



۱۷ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# کتاب الصوم

## د روژې بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ (سورة بقرة آیت: ۱۹۳)

وقال الله تعالیٰ: ﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ (سورة بقرة آیت: ۱۸۵)

**صوم** مصدر دی. لغت کې مطلقاً د منع ایسارولو او د امساک په معنی کې راځي. هغه که د خوراک او څښاک نه منع کیدل وي او که خبرو نه. قرآن کریم کې دي ﴿إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنسِيًّا﴾ دا کلام د اسماک نه دی.

یو عربي شاعر خپل آس ته خوراک څښاک نه موندلو په وجه ورته روژه دار ګڼي او وایي:

**خیل صیام و خیل غیر صائمة ۞ تحت العجاج و اخری تعلک اللجما**

د څه اسپو روژه ده او د څه اسپو روژه نه ده. ټول میدان جنګ کې په ګرد کې دي او څه خپل واګي ژوي.

لبید شاعر خر او خري ته اوبه او د وښه نه موندلو په وجه هغې ته روژه دار وایي:

**حتی اذا سلخا جمادی ستة ۞ جزءاً و طال صیامه و صیامها**

تر دې چې د جمادی الثاني میاشت تیره شوه نو اوبه بغیر خر او خري اوږده روژه ونیوله.

د صوم شرعي تعریف داسې دی: **"الصوم هو الا مساك عن الاكل والشرب والجماع نهارا مع النية"**.

یعنې سحر د راختلو نه تر ماخام تره وبیدلو پورې د خوراک، څښاک او د روژې د منافي شیانو نه په نیت سره د منع کیدلو نوم **"صوم"** دی.

د رمضان روژې په ۲هـ کې فرض شوې وي. د دې نه مخکې د څینو علماؤ په خیال کې په ایام بیض او یوم عاشوره کې روژې فرض وي. د رمضان په وجه هغه منسوخ شوي. او س هغه فقط د سنت مؤکده په درجه کې دي. په دې باندې اتفاق دی. د څینې علماؤ رائی دا ده چې د رمضان نه مخکې هیڅ روژې فرض نه وي. البته خپله په رمضان کې مختلف دورونه راغلي دي. ابتداء کې د روژو نیولو یا د فدیه مالي اختیار ورکړی شوی ؤ. بیا هغه حکم منسوخ شو. د غه شان به ابتداء کې د لمر ډوبیدلو نه وروسته تر سترګې لیګیدلو په وجه ټوله شپه روژه فرض وه. بیا هغه حکم هم منسوخ شو. (المرقات

۴/۴۴۱).
د رمضان په مياشت کې هيڅ يو حالت کې د جماع ممانعت ؤو. بيا هغه منسوخ شو او شپه کې د جماع اجازت ملاؤ شو. اوس د رمضان روژې فرض شوي. او دا د اسلام په پنځه بنيادي ارکانو کې څلورم رکن دی. د دينه انکار کونکی کافر دی. رمضان د روژو فضيلت خپله په حديثونو کې ډير په لويه کچه بيان شوی دی. البته د روژو يو څو فائدي به ذکر کړو.

**د روژې فائدې**: د رمضان روژې فرض دي. دا د هر عاقل، بالغ او تندرسته مسلمان ذمه واري ده. که په دې کې څه دنياوي فايده وي او که نه وي. د الله حکم دی عمل کول پرې ضروري دی. اوس محال يو څو فايدو ته اشاره کؤو چې د فايدو نه به خالي نه وي.

۱: روژو سره د الله رضا او خوشحالي نصيب کېږي. د دې صورت دا دی چې سړي ته جنت ملاوېږي.

۲: روژه نيولو سره انساني جذبات، احساسات او شهوت قابو شي چې په وجه يې انسان د ټولو ګناهونو نه بچ شي. ځکه د خيټې مړيدلو په وجه د انسان ټول اندامونه د ګناه خواهش مند شي. ځکه عارفينو ويلي دي:

إِذَا جَاعَتِ النَّفْسُ شَبِعَتْ جَمِيْعُ الْأَعْضَاءِ ۞ وَإِذَا شَبِعَتْ جَاعَتْ كُلُّهَا

۳: روژه نيولو سره فقيرانو، غريبانانو او د مسکينانو سره زړه خوږي پيدا کېږي. يو مالداره کس ته دا احساس پيدا شي. چې ځنګه ما د کال په يوه مياشت کې د ولږې او تندې مشقت تير کړو. مسکينانو او غريبانانو ټول کال د غه شان به محنت او مشقت کې پراته وي. لهذا هغه د دوې همدرد جوړ شي.

د بشير حافي رَحِمَهُ اللهُ متعلق ليکلی شوي دې چې هغې بغداد کې د يخنۍ په يخ موسم کې پيړې جامې وويستلې او کندې ته به يې رازوړندولي. او په نرۍ جامو کې په فراخه ميدان کې کيناستلو. چاته ترينه وجه وپوښتله چې بغداد کې ډير فقيران دې چې د يخنۍ مشقت زغمي. زه هغوی ټولو ته پيړې جامې نشم ورکولی. نو کم نه کم د هغوی په مشقت کې د همدردۍ په توګه هغوی سره شريک شم.

همد غه وجه ده چې ځينو عارفينو به د مړې خيټې ډودۍ خوړلو نه وروسته دا دعا کوله أَللّٰهُمَّ لَا تُؤَاخِذْنِيْ بِحَقِّ الْجَائِعِيْنَ". (المرقات: ۴/۴۴۲).

۴: روژه نيول په وجه سړی خواري کونکې جوړ شي. نو ميدان جنګ کې يا په بل يو ميدان کې که ورته ډيري ورځي خواړه ورنه کړی شي. نو د روژې عادت سړي ډير وخت پورې هغه برداشت کوي. ګويا کې روژه د نورو عبادتونو لپاره مُمِد او معاون دی. او د انسان ذاتي ژوند لپاره ګټوره ده.

۵: روژه نيولو په وجه د انسان مزاج کې برداشت پيدا شي لهذا دا صبر کولو سره عادت شي. د غه شان روژه دار سړی چې ازدواجي او معاشرتي ژوند کې بهترينه طريقي سره ژوند تيرولی شي. (المرقات ۴/۴۴۱).

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## درمضان په میاشت کې سرکشه شیطانان بندي کېږي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانُ |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "کله چې د رمضان میاشت شروع شي نو |
| فُتِحَتْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ . وَ فِي رِوَايَةٍ : فُتِحَتْ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ وَ غُلِّقَتْ |
| د آسمان دروازې پرانیستلی شي یو بل روایت کې دی چې د جنت دروازې پرانستلی شي او بندې کړې شي |
| أَبْوَابُ جَهَنَّمَ وَ سُلْسِلَتِ الشَّيَاطِينُ . وَ فِي رِوَايَةٍ : فُتِحَتْ أَبْوَابُ الرَّحْمَةِ .[1] |
| دروازې د دوزخ او شیطانان هم بند کړی شي دیو بل روایت الفاظ دي چې د رحمت دروازې پرانستلی شي. |

**توضیح : فتحت ابواب السماء** : دا جمله یا په حقیقت باندې محمول ده چې واقعي د آسمان دروازې پرانستلی شي. د دینه د رمضان عظمت مقصد دی. قاضي عیاض مالکي رحمه الله وایي چې دلته څه ذکر دې چې د آسمان دروازې پرانستلی شي یا د جنت دروازې پرانیستلی شي دوزخ بند کړی شي او سرکشه شیطانان وتړلی شي. دا ټول په حقیقت باندې محمول دي. د دینه د رمضان تعظیم او عظمت مقصود دی. ځینو علماؤ دا ټول واقعات په کنایه او مجاز باندې حمل کوي او وایي د اسمان دروازې پرانستل د رحمت عامه نه کنایه ده. د جنت دروازې پرانستل کیدل د نیکیو عام کیدلو نه کنایه ده. د دوزخ دروازې بندیدل د بدو کارونو د کموالي نه کنایه ده ځکه روژه د بدیو نه بچ کول کوي او د سرکشه شیطانانو تړل ددې نه کنایه ده چې د انسانانو د ګمراه کولو او د شهواتو په میدان کې بې وسه کړی شي. (المرقات ۴/۴۴۲).

**وسلست الشیاطین**: یعنې شیطانان په ځنځیرونو باندې تړل کېږي او رمضان کې هغه بندي کړی شي او د هغوی نه هغه قوت واخستلی شي چې د هغې په ذریعه د الله تعالی مخلوق بې لارې کوي یا یې ګناهونو ته جوګه کوي. یو روایت کې د صفدت الشیاطین لفظ راغلی دی. د هغې هم دغه معنی ده.

**سوال**: دلته دا سوال پیدا کېږي چې ټول شیطانان بندي کړی شي نو رمضان کې دا ګناهونه ولې کېږي؟

**جواب**: د دې ډیر جوابونه دې او همغه جوابونه د دې جملې د پوهه کیدلو لپاره ډیر مفهوم هم دی.

۱: لوی او سرکشه شیطانان وتړلی شي د هغې واړه کارمندان کار چلوي. یو روایت کې د **"مردة الجن"**

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۲/۴، رقم الحديث ۱۸۹۹، ومسلم في صحيحه ۷۵۸/۱ رقم الحديث :۲-۱۰۷۹.

الفاظ هم د دې تائید کوي. او عامه نظر ګواه دی چې رمضان کې لوې لوې ګناهونه کول کم شي.

۲: شیطانان په ریښتیا تړل وتړلی شي خو تړیولس (۱۱) میشاتو پورې چې شیطانانو کوم نفس اماره تیار کړی دی یو یوې میاشتې پورې خپله کار چلوي لکه موټر د بندولو نه وروسته هم خپله مخکې وروسته لږ حرکت کوي.

۳: کیدلی شي چې د شیطانانو تړلو نه وروسته هم هغه د خپل ځایونو نه د انسانو په زړونو کې د وسوسو سلسله روانه وي.

بهرحال د بحث لاندې حدیث او د نبي کریم ﷺ فرمایل بې داغه دی. هر یو کس رمضان کې د ورانیو کمی احساسوي.

۴: دا هم امکان لري چې کوم خلک روژه نیسي او هغه نیکو کارو او د روژې شرطونه هم پوره کوي. فقط د داسې خلکو لپاره شیطانان تړلی شوي وي او اشرار او کفار پرانستلی شوي وي. (المرقات ۴/۴۴۳).

## جنت ته د دخول د پاره د روژه دارو مخصوصه دروازه ده

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِي الْجَنَّةِ ثَمَانِيَةُ أَبْوَابٍ مِنْهَا |
| سهل بن سعد رضي الله عنه وايي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل د جنت اته دروازې دې چې په دې کې یوه |
| بَابٌ يُسَمَّى الرَّيَّانَ لَا يَدْخُلُهُ إِلَّا الصَّائِمُونَ . (۱) |
| دروازه هغه ده چې نوم یې ریان ایخودل شوی دې دروازه باندې صرف روژه دار سړي داخلیدای شي. |

**توضیح: ثمانية ابواب:** جنت یو دی دروازې یې اته دې چې دا په حقیقت کې د جنت درجې دي. د هري دروازې جدا جدا نوم دی. هغې کې د یوې نوم **باب الريان** دی. او دوزخ هم یو دی خو د هغې د طبقاتو او درکاتو جدا جدا نومونه دي. د دوزخ اووه دروازې دي.

**د باب الريان** معنی د خړوبولو ده. چې د روژه دارو لپاره ده. د یو تږې روژه دار لپاره دا نوم څومره زړه راښکونکی دی. (المرقات: ۴/۴۴۳).

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه۳۲۸/۶، رقم الحديث ۳۲۵۷، ومسلم في صحيحه۸۰۸/۲ رقم الحديث :۱۶۶-۱۱۵۲، وابن ماجه ۵۲۵/۱ رقم الحديث ۱۶۴۰

## ټول ګناهونه معاف

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ صَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې روژه ونيوله د ايمان سره |
| وَ احْتِسَابًا |
| (يعنې شريعت په حق ګڼلو سره او د رمضان د فرضيت عقيده لرو سره) او ثواب ګڼلو په خاطر (يعنې د چا |
| غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . وَ مَنْ |
| دويري او ريا په طور نه بلکې خاص د الله لپاره) نو د ده مخکنې ګناهونه به وبخښل شي او همدا رنګې کوم |
| قَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَ احْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا |
| کس چې د ايمان سره او د ثواب د ګڼلو په خاطر رمضان کې او دريدو نو د ده هغه ګناهونه به وبخښل شي |
| تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . وَ مَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَانًا وَ احْتِسَابًا |
| کوم چې ده مخکې کړي ؤ او څوک چې د عبادت لپاره او دريدو د ايمان سره او د ثواب په خاطر په ليلة القدر |
| غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ .[1] |
| کې نو د ده هغه ګناهونه به وبخښل شي چې کوم ده مخکې کړي ؤو. |

**توضيح : ايمانا:** د کوم سړي چې ايمان نه وي او هغه مسلمان نه وي نو د هغه د روژي هيڅ فايده نشته دی نو ځکه د ايمان شرط لګول شوی دی. (المرقات : ۴/۴۴۴).

**احتسابا:** يعنې د ثواب په نيت روژه نيسي. هغه خلکو باندې رد دی چې د شرم په وجه يا د قرابت داری په وجه او عزيز ولی په روژي نيسي چې په ټولنه کې دليل نه شي. لکه څنګه چې په صوبه سرحد کې د کميونسټ ځوانان د علاقې د رسم او دود په وجه روژي نيسي او ثواب نه مني. (المرقات ۴/۴۴۴).

**ماتقدم من ذنبه:** يعنې واړه ګناهونه ټول او بخښل شي او لوی ګناهونه کمزوري شي. خو که د لوی ګناهونو نه توبه وکړی شي نو بيا ټول ګناونه معاف کېږي. همدغه فضيلت د تراويح او د ليلة القدر هم دی. (المرقات : ۴/۴۴۴).

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۵/٤، رقم الحديث ۱۹۰۱، ومسلم في صحيحه ۵۲٤/۱ رقم الحديث :۱۷۵-۷٦۰، والترمذي في السنن ٦۸۳/۳ رقم الحديث:٦۸۳، وابن ماجه ۵۲٦/۱ رقم الحديث : ۱٦٤۱، وأحمد في المسند ۳۲/۲.

**قام رمضان**: دا یو اصطلاحي لفظ دی چې یو اخې د تراویح لپاره استعمالیږي. د تهجد و لپاره د **قیام اللیل** الفاظ راغلي دي. (المرقات: ۴/۴۴۴).

## د روژې جامع فضیلت

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ عَمَلِ ابْنِ آدَمَ يُضَاعَفُ

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل هر یو عمل د انسان دوه چنده کیږي

الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ قَالَ اللهُ تَعَالَى:

په اعتبار د ثواب سره تر دې چې د یوې نیکۍ ثواب د لسو نه تر اووه سوه چنده پورې شي او الله فرمايي

إِلَّا الصَّوْمَ فَإِنَّهُ لِي وَ أَنَا أَجْزِي بِهِ

چې روژه خو زما لپاره ده او زه به یې بدله ورکوم (یعنې د روژې چې کومه جزاء ده په هغې زه پوهېږم او زه هغه روژه دار ته خپله ورکوم. دې کې بل یو څوک یعنې د فرښتو به هم واسطه نه وي ځکه روژه دارو)

يَدَعُ شَهْوَتَهُ وَ طَعَامَهُ مِنْ أَجْلِي لِلصَّائِمِ فَرْحَتَانِ: فَرْحَةٌ عِنْدَ

خپل خواهشات او خواړه زما لپاره پریخي دي روژه دار لپاره دوه خوشحالیانې دي. یوه خوشحالي خو د

فِطْرِهِ وَ فَرْحَةٌ عِنْدَ لِقَاءِ رَبِّهِ

روژه ماتي وخت کې او بله خوشحالي (د ثواب ملاویدو په وجه) د خپل پروردګار سره د ملاقات په وخت کې

وَ لَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ وَ الصِّيَامُ جُنَّةٌ

یاد و ساتئ چې د روژه دار د خُلې بوي الله ته د مشک د خشبوي نه ډیر خوښ دی او روژه ډهال دی (چې د دې په وجه انسان د شیطان د شر او د دهوکې نه او آخرت کې د دوزخ د اور نه محفوظ وي) لهذا تاسو کې چې

وَ إِذَا كَانَ يَوْمُ صَوْمِ أَحَدِكُمْ فَلَا يَرْفُثْ وَلَا يَصْخَبْ فَإِنْ

څوک روژه دار وي نو هغه دې فحش خبري نه کوي او مه بیهودګۍ سره خپل اوزا او چتوي او که څوک

سَابَّهُ أَحَدٌ أَوْ قَاتَلَهُ فَلْيَقُلْ إِنِّي امْرُؤٌ صَائِمٌ".[1]

(جاهل) ده ته څه بد و وايي یا دده سره د جنګ کولو اراده لري نو ده ته په کار ده چې و وايي زما روژه ده.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۸/٤، رقم الحديث ۱۹۰٤، ومسلم في صحيحه ۸۷/۲ رقم الحديث ١٦٤-۱۱٥۱، والترمذي في السنن ۱۳٦/۳ رقم الحديث ۷۱٤، وأحمد في المسند ۲ ۲٦٦

**توضیح** : **الا الصوم** : یعنې کومه ضابطه چې مقرر شوي ده. دا د نورو عبادتونو لپاره ده. د روژي لپاره نه ده. (المرقات :۴/۴۴۶).

**فانه لي**: یعنې د هري نیکۍ قاعده دا ده چې یو باندې تر اووه سوه (۷۰۰) پورې ډیرېږي. خو د روژي چې کومه نیکي ده د هغې قاعده داسي نه ده. ځکه روژه زما لپاره ده نو ځکه بدله به یې زه خپله ورکوم. (المرقات :۴/۴۴۶).

**سوال**: عبادات چې څومره هم دې ټول د الله لپاره دي. دلته د دې تخصیص څه وجه ده؟

**جواب**: د دې سوال او د تخصیص ډیر جوابونه دي :

**اول جواب** : دا دی چې هر عبادت کې د ریا کارۍ خطر وي خو روژه کې نه وي ځکه تر څو پورې یې چې روژه دار خپله ونه وایي نو چاته پته نه لګي چې څوک روژه دی او څوک روژه نه دی. نو ځکه یې وفرمایل چې روژه زما لپاره ده.

**دوهم جواب**: جاهلیت دور کې هر عبادت د غیر الله لپاره شوی دی خو روژه کله هم د غیر الله لپاره نه ده شوي. نو ځکه الله تعالی فرمایي چې روژه زما لپاره ده.

**دریم جواب**: ځینو دا جواب ورکړی دی چې د اشیاء ثلاثه پریخول د الله د صفاتو نه دي. کو کس چې روژه نیسي نو د الله تعالی د صفاتو سره مشابهت راځي. نو ځکه الله تعالی د روژه دار عبادت خپل طرف ته منسوب کړی دی.

**څلورم جواب**: د څه وجي او تاویل ضرورت نشته دی بلکي الله د روژي شان او تکریم او د عظمت د اوچتولو لپاره فرمایلي دي چې دا خاص زما لپاره ده. (المرقات :۴/۴۴۶).

**وانا اجزی به**: یعنې روژه دار ته به د روژي ثواب زه ورکوم.

**سوال**: د دې تخصیص څه مطلب دی حال دا چې ثواب خو الله ورکوي؟

**جواب**: شارحینو اولنی جواب دا کړی دی چې الله د هر عبادت ثواب ورکولو لپاره فرښتني مقرري کړي دي خو د روژي ثواب به په خپل لاس ورکوي بیا به د دې شان څه وي **سبحان الله**.

**دویم جواب**: دا دی چې هر عمل کې د مشقت او محنت اندازه فرښتو ته کېږي خو د روژه دار د تندي او د ولګي او د باطني سوځي او تکلیف اندازه فقط الله ته ده. نو ځکه یې ثواب هم خپله ورکوي.

**دریم جواب**: علامه قرطبي رَحِمَهُ اللهُ کړی چې د هر عبادت ثواب مقرر کړی شوی او د هغې لپاره یو حد دی یا لس چنده دی یا اووه سوه چنده دی یا اووه سوه لکه چنده دی. خو د روژي د ثواب هیڅ حد مقرر نه دی الله چې څومره ډیروغواړي ور به یې کړي. ځینې علماؤ د "**اجزی**" لفظ مجهول ویلی چې ترجمه یې دا ده چې روژه زما لپاره ده د دې په بدل کې به روژه دار ته د ثواب پر ځای زما ذات ملاوېږي نو ډیره ښه

توجيه ده خو كومه معتمده شرح كې ما نه ده ليدلې. يو نيم روايت كې د مجهول صيغه ده.

**ولخلوف فم الصائم**: لام ابتدائيه د تاكيد د مفتوح دى او خا باندې ضمه ده. فتحه ويل غلط دى. ولګې او د تندې په وجه چې خيته كې د ننه تپ پيدا كيږي هغې ته خلوف ويل شوى دى. او همغه بوى د الله خوښ دى. چې فقط د روژې په وجه وي. د خُلې چې كوم دهنى بدبوي وي هغه مراد نه ده. البته شارحينو د پوهه كولو لپاره ليكلي دي چې د خوارو نه وروسته چې خله كې كومه بدبوي پاتې شي. د خلوف نه همغه مراد دى. بهرحال روژې په وجه چې كوم اثر كيږي د هغې قدر او تعريف روان دى او د همغې پكار دى چې هغه ولړه او تنده ده. نه دا چې بل يو شى دى. (المرقات: ۴/۴۴۶).

**فلا يرفث**: د ښځو مخكې د ښځو احسانونه بيانولو تذكري ته رفث وايي مراد ترې نه فحش دى.

**ولا يضخب**: چغې سورې او شور شرغب ته "صخب" وايي. (المرقات: ۴/۴۴۷).

**امرأ صائم**: يعنې هر روژه دار ته په كار دې چې هغه د روژې په ورځ هر قسمه احساسات او جذبې قابو كړي تردې چې كنځلو نه ځان منع كړي چې وروره زما روژه ده. (المرقات: ۴/۴۴۷).

**الصوم جنة**: يعنې روژه د هرې ګناه لپاره باطني ډهال دى. خو په دې شرط چې دا ډهال صحيح سالم وي. مات نه وي. شيطان هم باطني دښمن دى او روژه هم باطني ډهال. (المرقات: ۴/۴۴۷).

**د بدعتيانو په خله څپيړه**: الصوم لي د جملې د توضيح او تشريح نه معلومه شوه چې د مكې مشركينو هم روژه د غير الله لپاره نه نيولې. خو د افسوس مقام دى چې نن سبا بدعتيان او بريليان حضرات د اولياء په نوم باندې باقاعده روژې نيسي.

بسوخت عقل زحيرت ❁ كه اين چه بو العجبى است

زندگی اس کی ہے ملت کے لئے پیغام موت ❁ کر رہا ہو جو بجائے کعبہ قبروں کا طواف

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## اى شريره د شر نه منع شه

| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ أَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ |
|---|
| ابو هريره رضي الله عنه او ي دى وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل كله چې د رمضان اولنۍ شپه راشي نو |
| رَمَضَانَ صُفِّدَتِ الشَّيَاطِيْنُ وَ مَرَدَةُ الْجِنِّ وَ غُلِّقَتْ أَبْوَابُ النَّارِ فَلَمْ يُفْتَحْ بَابٌ |
| شيطانان او سركشه پيريان بندي شي او د دوزخ دروازې بند كړي بيا د هغې هيڅ يوه دروازه خلاصه نه ږي |

وَ فُتِحَتْ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ فَلَمْ يُغْلَقْ مِنْهَا بَابٌ وَ يُنَادِي مُنَادٍ :

او د جنت دروازي خلاصي شي چې د جنت يوه دروازه هم تړل شوي نه وي او اعلان کونکي (فرښته) اعلان

يَا بَاغِيَ الْخَيْرِ أَقْبِلْ وَ يَا بَاغِيَ الشَّرِّ أَقْصِر

کوي چې اې د خير طلبګاره! (الله طرف ته) متوجه شه او اې د بدۍ اراده لرونکي! د بدۍ نه منع شه ځکه

وَ لِلّٰهِ عُتَقَاءُ مِنَ النَّارِ وَ ذٰلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ ". وَ رَوَاهُ أَحْمد عَنْ رَجُلٍ

الله خلک ازادوي او دا اعلان (د رمضان) په هره شپه کې کېږي. امام احمد هم دا روايت د يو کس نه نقل

وَقَالَ التِّرْمِذِيّ هٰذَا حَدِيث غَرِيب.[1]

کړی او امام ترمذی وايي چې دا حديث غريب دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿٦﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَاكُمْ رَمَضَانُ شَهْرٌ مُبَارَكٌ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ستاسو لپاره دبرکتونو والا مياشت درمضان

فَرَضَ اللهُ عَلَيْكُمْ صِيَامَهُ تُفْتَحُ فِيهِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَ

راغلي ده چې دې کې الله تاسو باندې روژې فرض کړي دي مياشت کې دآسمان دروازي خلاصولې شي او د

تُغْلَقُ فِيهِ أَبْوَابُ الْجَحِيمِ وَ تُغَلُّ فِيهِ مَرَدَةُ الشَّيَاطِينِ

دوزخ دروازي وتړل شي او د سرکشه شيطانانو په غاړه کې اميل واچولی شي او دې کې (يعني د رمضان

لِلّٰهِ فِيهِ لَيْلَةٌ

توله مياشت شپو کې يا آخري عشرهٔ رمضان په شپو کې) د الله يوه خاص شپه ده چې (دثواب په اعتبار) د

خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ

زرو ۱۰۰۰ مياشتو نه بهتره ده (يعني دې يوه شپه کې عمل کول د هغه زرو مياشتو عمل کولو نه چې په هغې

مَنْ حُرِمَ خَيْرَهَا

کې ليلة القدر نه وي، ډيره افضله او بهتره ده) لهذا کوم کس چې دې (شپه) کې د خير نه محروم شوی نو

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/ ٦٦ رقم الحديث ٦٨٢، وابن ماجه ۱/ ٥٢٦ رقم الحديث : ١٦٤٢

| فَقَدْ حُرِمَ .(۱) |
|---|
| هغه د هر خير نه محروم شو. |

**توضيح : مردة الشياطين**: د دې نه مخکې چې کوم حديث تير شوی دی هغې کې د **مردة الجن** لفظ راغلی او دې حديث کې هم د **مردة الشياطين** الفاظ راغلي دي. نو دې خبره باندې پوهيدل په کار دي چې د شيطانانو نه وروسته د **مردة الجن** دا الفاظ د تخصيص وروسته د تعميم د قبيل نه دي. **مردة** د **مارد** جمع ده او **مارد** سرکشه ته وايي. دې روايت باندې د مخکني حديث مسئله هم حل شوه چې هلته د نورو جوابونو نه بغير يو دا جواب هم ورکړی شوی دی چې د شيطانانو د تړلو نه مراد د سرکشه شيطانانو تړل دي او واړه شيطانان په انسانانو کې کار کوي. (المرقات ۴/۴۴۸).

## روژه او قرآن به شفاعت کوي

| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الصِّيَامُ وَالْقُرْآنُ يَشْفَعَانِ |
|---|
| عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل روژه او قرآن به دواړه شفاعت کوي |
| لِلْعَبْدِ يَقُولُ الصِّيَامُ : أَيْ رَبِّ إِنِّي مَنَعْتُهُ الطَّعَامَ وَ الشَّهَوَاتِ بِالنَّهَارِ |
| د بنده لپاره نو روژه به وايي چې ای زما پروردګاره! ما دا منع کړې وُ په دې ورځ د خوړو او د نورو خواهشاتو |
| فَشَفِّعْنِي فِيهِ وَ يَقُولُ |
| (او به جماع ،غيبت وغيره ګناهونو) نه لهذا زما د طرف نه (هم) د ده په حق کې شفاعت قبول کړه نو وايي به |
| الْقُرْآنُ : مَنَعْتُهُ النَّوْمَ بِاللَّيْلِ |
| قرآن چې ما دا د شپې د خوب نه منع کړی وُو. لهذا زما له اړخ نه (هم) د دې په حق کې شفاعت قبول کړه. |
| فَشَفِّعْنِي فِيهِ فَيُشَفَّعَانِ .(۲) |
| نو د دواړو شفاعت به قبول شي. |
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ : دَخَلَ رَمَضَانُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| انس ابن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله د رمضان مياشت راغله نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ستاسو |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ٤ ١٢٩ رقم الحديث ٢١٠٦، وأحمد في المسند ٢ ٢٣٠
(۲) أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ٢ ٣٤٦، رقم الحديث ١٩٩٤

إِنَّ هٰذَا الشَّهْرَ قَدْ حَضَرَكُمْ وَ فِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ

لپاره دا مياشت راغلي ده. چې دې کې يوه شپه (شب قدر) د زرو مياشتو نه بهتره ده. لهذا کوم کس چې

مَنْ حُرِمَهَا

ددې شپه د (سعادت) نه محروم شو (چې هغې ته دټولې شپې يا کم نه کم د شپې په څه برخه کې د پاڅيدو

فَقَدْ حُرِمَ الْخَيْرَ كُلَّهُ

او دخداى په عبادت کې مشغوليدو توفيق ورنه کړى شو) نو هغه د هر سعادت او د خير نه محرومه شو.

وَلَا يُحْرَمُ خَيْرَهَا إِلَّا كُلُّ مَحْرُومٍ.[1]

او (ياد وساتئ) د شب قدر د سعادت نه د نصيب محرومه، محرومه کېږي.

## د رمضان مياشت د هر قسمه برکتونو نه ډکه ده

﴿۹﴾ وَعَن سلمَان قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آخِرِ يَوْمٍ مِنْ شَعْبَانَ

سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شعبان په آخري شپه کې مونږ ته خطبه کې وفرمايل

فَقَالَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ أَظَلَّكُمْ شَهْرٌ عَظِيمٌ

اى خلکو! د عظمت مياشت په تاسو باندې سيورى کړيدى (يعني د رمضان مبارکه مياشت راغلي ده) دا

شَهْرٌ مُبَارَكٌ فِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ

ډير د برکتونو او مقدسه مياشته ده. دا هغه مياشت ده چې په دې کې هغه شپه (ليلة القدر) ده. چې بهتره

مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ جَعَلَ اللهُ تَعَالَى صِيَامَهُ فَرِيضَةً وَ قِيَامَ لَيْلِهِ

ده د زرو مياشتو نه الله ددې مياشتې روژې فرض کړي او ددې په شپو کې قيام (يعني د الله تعالى د عبادت

تَطَوُّعًا مَنْ تَقَرَّبَ فِيهِ بِخَصْلَةٍ مِنَ

لپاره پاڅيدل) نفل گڼلي دي کوم کس چې دې مبارکې مياشت کې نيکي (يعني نفل) په طريقه او د عمل

الْخَيْرِ كَانَ كَمَنْ أَدَّى فَرِيضَةً فِيمَا سِوَاهُ

په ذريعه د الله د تقرب طلب گار وي نو د هغه کس مثال داسې دى چې فرض يې ادا کړي د رمضان نه بغير

---

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۵۲٦ رقم الحديث: ۱٦٤٤

وَ مَنْ أَدّٰى فَرِيضَةً فِيْهِ كَانَ

په نورو میاشتو کې او کوم کس چې د رمضان په میاشت کې (بدني یا مالي) فرض ادا کړو نو دا به د هغه

كَمَنْ أَدّٰى سَبْعِينَ فَرِيضَةً فِيمَا سِوَاهُ وَ

کس په شان وي چې د رمضان د میاشت نه بغیر په نورو میاشتو کې اویا (۷۰) فرائض ادا کړي وي او

هُوَ شَهْرُ الصَّبْرِ

د رمضان میاشت د صبر میاشت ده (چې روژه دار په کې د خوراک، څښاک او د نورو خواهشاتو نه منع

وَ الصَّبْرُ ثَوَابُهُ الْجَنَّةُ وَ شَهْرُ الْمُوَاسَاةِ

شوی وي) هغه صبر چې د هغې ثواب جنت دی. رمضان میاشت د خواخوږۍ میاشت ده (لهذا دې کې د

وَ شَهْرٌ

محتاجه او فقیرانو خبر اخیستنه په کار ده) او دا هغه میاشت ده چې دې کې (د دولتمند او د مفلس هر قسمه)

وَ يُزَادُ فِيهِ رِزْقُ الْمُؤْمِنِ مَنْ فَطَّرَ فِيهِ صَائِمًا كَانَ لَهُ

مؤمن (ظاهري او معنوي) رزق زیاتېږي. کوم کس چې رمضان کې یو روژه دار ته (د خپل حلال عاید نه)

مَغْفِرَةً لِذُنُوبِهِ وَ عِتْقَ رَقَبَتِهِ مِنَ النَّارِ

روژه ماتی ورکړي نو د هغه دا عمل به د ګناهونو د بخښش او مغفرت ذریعه او د دوزخ د اور نه د حفاظت سبب

وَ كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْتَقِصَ مِنْ أَجْرِهِ شَيْءٌ

شي او ده ته به د روژه دار د ثواب هومره ثواب ملاؤ شي بغیر د دې نه چې د روژه دار په ثواب کې به کموالی

قُلْنَا : يَا رَسُولَ اللهِ لَيْسَ كُلُّنَا نَجِدُ مَا نُفَطِّرُ بِهِ الصَّائِمَ .

وشي. مونږ وویل چې یا رسول الله! مونږ ټول خو داسې نه یو چې د روژه ماتي په قدر د انتظام کولو اوس

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يُعْطِي اللهُ هٰذَا الثَّوَابَ مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا عَلٰى مَذْقَةِ لَبَنٍ

ولرو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل دا ثواب الله هغه کس ته هم ورکوي چې روژه دار ته په یو ګوټ شوده

أَوْ تَمْرَةٍ أَوْ شَرْبَةٍ مِنْ مَاءٍ وَ مَنْ أَشْبَعَ صَائِمًا

یا یوه کهجوره یا یو ګوټ او بو سره روژه ماتي ورکړي او کوم کس چې روژه دار ته په مړه خېټه روژه ماتی

سَقَاهُ اللهُ مِنْ حَوْضِي شَرْبَةً لَا

ورکړي نو الله به هغې ته زما د حوض (یعني حوض کوثر) نه داسې څړوب کړي چې هغه به (د هغې نه پس) نه

يَظْمَأُ حَتَّى يَدْخُلَ الْجَنَّةَ وَ هُوَ شَهْرٌ أَوَّلُهُ رَحْمَةٌ وَ أَوْسَطُهُ مَغْفِرَةٌ

تږي کېږي تر دې چې داخل شي جنت ته او دا دې میاشتې اوله برخه کې رحمت، مینځنې برخه کې مغفرت

وَ آخِرُهُ عِتْقٌ مِنَ النَّارِ

او آخري برخه کې د دوزخ نه خلاصون دی (خو دا درې واړه شیان د مؤمنانو لپاره خاص دي د کافرانو دې

وَ مَنْ خَفَّفَ عَنْ مَمْلُوكِهِ فِيهِ

سره هیڅ تعلق نشته دی) او کوم کس چې په دې میاشت کې د خپل غلام یا وینځې بوج سپک کړي نو

غَفَرَ اللهُ لَهُ وَ أَعْتَقَهُ مِنَ النَّارِ.[1]

الله به هغه وبخښي او هغه به د دوزخ د اور نه خلاص کړي.

## په روژه کې د بندیانو خلاصون

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانَ

ابن عباس رضي الله عنه راوي دي وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې به چې کله میاشت د رمضان راغله

أَطْلَقَ كُلَّ أَسِيرٍ وَ أَعْطَى كُلَّ سَائِلٍ.[2]

نو هر بندي به یې خلاص کړو او د هر سائل سوال به یې پوره کولو.

**توضیح: کل اسیر:** دلته عام طور په ذهن کې دا شک پیدا کېږي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره به د کفارو نه بغیر بندیانو نه بل هیڅ څوک بندي نه ؤو او د کفارو د بندیانو جدا قاعده مقرره ده چې فدیه یا نور شیان دي. دلته د رمضان په وجه بندیان ولې خلاص کړی شو؟ د دې جواب ملا علی قاري رحمه الله په دې الفاظو کې ورکړی دی "**اى ممن يستحق الحبس لحق الله اولحق العبد بتخليصه منه**" یعنې د بندیانو مراد نه خلک هم اخستلی کېدلی شي چې د حقوق الله په وجه بندیان ؤو. او بندیان هغه خلک هم مراد اخستل کېدلی شي چې د حقوق العباد په وجه به بندیان ؤو. د حقوق العباد په وجه به چې کوم

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۳۰۵/۳ رقم الحديث ۳۶۰۸

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۳۱۱/۳ رقم الحديث ۳۶۲۹

خلک بنديانو ؤو د هغوی د خلاصيدلو مطلب دا دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به حقدار ه ته وويل او ازاد به يې کړلو نو اطلق کل اسير نه مراد خاص بندي دی. چې د خلکو د حقوقو په وجه به د خلکو سره بنديان ؤو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره بنديان نه ؤو. (المرقات: ۴/۴۴۷).

## دروږو هر کلي او اهتمام

﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ الْجَنَّةَ تُزَخْرَفُ لِرَمَضَانَ

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې جنت ښائسته کوي د رمضان (د هر کلي

مِنْ رَأْسِ الْحَوْلِ إِلَى حَوْلٍ قَابِلٍ. قَالَ: "فَإِذَا كَانَ أَوَّلُ يَوْمٍ مِنْ رَمَضَانَ

لپاره) جنت د شروع کال نه د آخر د کال پورې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې د رمضان اوله ورځ

هَبَّتْ رِيحٌ تَحْتَ الْعَرْشِ مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ عَلَى الْحُورِ الْعِينِ فَيَقُلْنَ: يَا

راشي نو عرش د لاندې د جنت د بوټو پاڼي د حور عين په سرونو باندې هوا کوي بيا حورې وايي چې ای زمونږ

رَبِّ اجْعَلْ لَنَا مِنْ عِبَادِكَ أَزْوَاجًا

پروردګاره خپلو بنده ګانو کې زمونږ لپاره خاوندان جوړ کړه چې د هغوی (سره د ناستې په خوشحالۍ) باندې

تَقَرُّ بِهِمْ أَعْيُنُنَا وَتَقَرُّ أَعْيُنُهُمْ بِنَا".[1]

زمونږه سترګې يخې شي او د هغوی سترګې زمونږ په (ديدن او ملاقات) يخې شي.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: يُغْفَرُ لِأُمَّتِهِ

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل بخښنه کيږي زما امت (روژه دارو) ته په

فِي آخِرِ لَيْلَةٍ فِي رَمَضَانَ. قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَهِيَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ؟

آخره شپه د رمضان کې. وويل شو يا رسول الله! آيا هغه ليلة القدر دی؟ (چې هغې کې بخښنه کيږي) نبي

قَالَ: لَا وَلَكِنَّ الْعَامِلَ إِنَّمَا يُوَفَّى أَجْرُهُ إِذَا قَضَى عَمَلَهُ.[2]

عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې بلکې کارکونکي ته د ده پوره مزدوري ورکولې کيږي چې کله خپل کار پوره کړي.

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۳/۳۱۲ رقم الحديث ۳۶۳۳

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۲/۲۹۲

# باب رؤية الهلال

## د سپوږمۍ د ليدلو مسائل

﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الأَهِلَّةِ قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ﴾ (سورة بقرة آيت: ۱۸۹).

زمونږ شريعت د سپوږمۍ: ثبوت لپاره او د مياشتي د ابتداء مدار د سپوږمۍ په ليدلو باندې ايخى دى. يا پوره ديرشو (۳۰) ورځو ايخودلى شوى دى. كه ۲۹ باندې سپوږمۍ وليدلى شوه نو بله ورځ به د اسلامي مياشت اولنۍ ورځ شمير كېږي. او كه په ۲۹ باندې سپوږمۍ ونه ليدله شوه نو ديرش ورځو پوره كيدلو سره به بله مياشت شروع شي. د اسلامي مياشتي ابتداء د مدار د سپوږمۍ په افق باندې موجوديدلو باندې نه دى. بلكي د هغې په ليدلو باندې مدار دى. لهذا كه فضاء پاكه وي نو سپوږمۍ په هيڅ كې ښكاره نشوه. نو آسمان باندې د سپوږمۍ د پيدا كيدلو او موجويدلو باوجود به هم د بله اسلامي مياشت نه شروع كېږي. همدغه فرق دى چې اهل شرع علماء او اهل نجوم ماهرينو به مينځ كې چې علماء د سپوږمۍ په نظر راتللو باندې د مياشتي ابتداء كوي. خو اهل نجوم د سپوږمۍ په اسمان پيدا كيدلو باندې مدار كوي. هغوى د سپوږمۍ د ليدلو نه مخكې حكم كوي چې سبا د مياشتي اولنۍ ورځ ده. مسلمان د شريعت پابند دى. د اهل نجوم د قياسونو او خيالونو او د تجربو پابند نه دي. اسلامي شريعت كې د سپوږمۍ د ثبوت لپاره يو څو قواعد دي.

۱: **الشهادة على رؤية الهلال**: يعنې د ليدونكي په ګواهۍ سره د سپوږمۍ ثبوت كېږي.

۲: **الشهادة على الشهادة**: يعنې يو كس د قاضي په عدالت كې د سپوږمۍ د ليدلو ګواهي وركړه او بل كس واوريدله او لاړو د يو بل كس په ګواهۍ باندې يې ګواهي وركړه نو دې سره سپوږمۍ ثبوت وشي.

۳: **الشهادة على القضاء**: يعنې د عدالت محكمه كې قاضي د سپوږمۍ د ثبوت فصيله واوروله. د هغه عدالت كس لاړو او يو بل ځاې كې يې هم د دې د ثبوت ګواهي وركړه.

۴: **استفاضة الخبر**: يعنې مختلفو اړخونو كې دا خبر خور شو چې سپوږمۍ ښكاره شوه. د دينه هم د سپوږمۍ ثبوت كېږي. بهرحال د احنافو د ائمه په كتابونو كې ليكلى شوي دې چې كه مطلع پاكه نه وى نو د يو عادل كس په ګواهۍ سره هم د سپوږمۍ كتلو لپاره ګواهي كافي ده خو كه مطلع پاكه وي نو بيا د يو عادل ګواهي معتبره نه ده بلكي د ډير رش يعنې د ګڼو خلكو د جماعت په ګواهۍ سره د سپوږمۍ ثبوت كېږي.

دا خو د رمضان لپاره د سپوږمۍ د ګواهۍ مسئله ده. د اختر لپاره څه حكم دى؟ نو د دې باره كې احناف وايي چې مطلع پاكه وي نو د يو لوي جماعت خلكو ته به ضرورت وي. خو كه كه مطلع ګرد جنه وي نو د

دوه کسانو د ګواهۍ ضرورت به وي. درمختار کښې لیکل شوي دي چې که یو کس په اوچت ځای باندې وسېږي، د ښار نه باهر وي خو عادل وي نو راشي او د رمضان د میاشتې د لیدلو ګواهي ورکړي. مطلع اګر که پاکه وي نو د هغې ګواهي به قبلېږي او د سپوږمۍ ثبوت به کېږي. امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ هم دې اړخ ته دی چې دې باندې فتوی ورکول ډیر بهتره ده. د عام تار او خط نه د سپوږمۍ ثبوت نه شي کیدی. دغه شان د راډیو د خبر نه هم د سپوږمۍ ثبوت نه شي کیدی. خو که د قاضي خط قاضي ته راشي نو راډیو (ریډیو) باندې د رؤیت هلال کمیټۍ رئیس خپله په خپل آواز کښې اعلان وکړي نو د هغې اعتبار به وي.

## د روژې د نیولو مدار په سپوږمۍ باندې دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (شعبان د دیرشم تاریخ نه د رمضان په نیت) |
| لَا تَصُومُوا حَتَّى تَرَوُا الْهِلَالَ وَلَا تُفْطِرُوا حَتَّى |
| روژه مه نیسئ. تر دې چې سپوږمۍ ووینئ. دغه شان روژه تر هغه پورې مه ختموئ تر څو چې (د اختر) |
| فَإِنْ تَرَوْهُ |
| سپوږمۍ ووینئ. لهذا (په دیرشمه ۳۰ شپه یا نه ویشتم ۲۹ تاریخ) که (ګرد او غبار او وریځې او نور |
| غُمَّ عَلَيْكُمْ فَاقْدِرُوا لَهُ . |
| څه شیان یا په بله څه وجه باندې) سپوږمۍ ښکاره نه شوه نو به دې اعتبار وکړئ (یعنې دا میاشت د |
| وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ : الشَّهْرُ تِسْعٌ وَ عِشْرُونَ لَيْلَةً |
| دیرشو وګڼئ.) د یو روایت الفاظ دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل میاشت کله د دیرشو وي نو څکه |
| فَلَا تَصُومُوا حَتَّى تَرَوْهُ فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ |
| کله چې سپوږمۍ و نه وینئ (د رمضان په نیت) روژه مه نیسئ او که (۲۹ تاریخ باندې وریځ او نوره څه |
| فَأَكْمِلُوا الْعِدَّةَ ثَلَاثِينَ . [1] |
| وي (او سپوږمۍ ښکاره نه شي) نو دیرش ورځې پوره کړئ (یعنې د دیرشو ورځو ویې وګڼئ). |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۹/٤، رقم الحديث ۱۹۰٦، ومسلم في صحيحه ۷۵۹/۲ رقم الحديث ۳ ۱۰۸۰، وأبوداود في السنن ۷٤۰/۲، رقم الحديث: ۲۳۲۰، والترمذي في السنن ٦۸/۳ رقم الحديث ٦۸٤، وابن ماجه ۵۲۹/۱ رقم الحديث ۱٦۵٤

**توضیح**: **لاتصوموا**: یعنې تر څو چې سپوږمۍ ښکاره نه شي نو تاسو شعبان کې روژه مه نیسۍ او چې تر څو پورې سپوږمۍ ښکاره نه شي نو تاسو د اختر لپاره روژه مه نیسۍ. ستاسو رژوه نیول او روژه ماتی کولو په سپوږمۍ کتلو باندې موقوف دي. (المرقات: ۴/۴۶۱).

**فان غم**: یعنې که د دوړو او وریځي په وجه تاسو ته سپوږمۍ ښکاره نشي. (المرقات: ۴/۴۶۲).

**فاقدروا**: ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دې صیغه کې دال باندې ضمه ده. دې باندې کسره ویل غلط دي مطلب دا چې که سپوږمۍ ښکاره شوې نه وی نو تاسو د رمضان دیرش روژې پوره کړی. (المرقات ۴/۴۶۳).

بهرحال اسلامي میاشت کله د ۲۹ او کله د ۳۰ راځي. نو اصل مدار په سپوږمۍ باندې دی. که هغه نه وي نو بیا دیرش ورځي دي.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل سپوږمۍ لیدو نه وروسته روژه ونیسۍ |
| وَ أَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ فَإِنْ غم عَلَيْكُم |
| او په لیدو سره روژه ماتی (اختر) وکړۍ. لهذا (۲۹ تاریخ باندې) که وریځ (یانورخه) شي (او رؤیت هلال |
| فَأَكْمِلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ. [2] |
| ثابت نه شي) نو د شعبان میاشت د دیرشو ورځو وګڼۍ (دغه شان د رمضان د میاشتي هم اعتبار وکړی) |

## د سپوږمۍ په باره کې د نجومیانو قول معتبر نه دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَنَا أمة أُمِّيَّة |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل مونږ اهل عرب امی قوم یو چې نه پوهیږو په |
| لَا نَكْتُبُ وَلَا نَحْسُبُ الشَّهْرُ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا |
| حساب کتاب باندې میاشت دومره او دومره وي (لفظ دومره به درې ځل ویلو سره نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| وَ عَقَدَ الْإِبْهَامَ فِي الثَّالِثَةِ . |
| خپل د دواړو لاسونو ګوتي دوه ځل بندې کړې او بیا یې پرانیستلې) او یوه ګوته یې بنده کړه په دریم ځل |

(۲) أخرجه البخاري ۱۱۹/۴، رقم الحديث ۱۹۰۹، ومسلم في صحيحه ۷۶۱/۲ رقم الحديث ۱۸-۱۰۸۱، وأحمد في المسند ۴۲/۵.

| |
|---|
| باندې (يعني د لاسونو کوتې بندې کړې او نهه (۹) کوتې يې خوږ ا نيستلې چې د دې مطلب دا ؤ چې |
| ثُمَّ قَالَ : الشَّهْرُ هٰكَذَا |
| مياشت کې يوه ورځ کمه ديرش وي يعني د نهه ويشتو مياشت وي) او بيا يې وفرمايل مياشت دومره او |
| وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا |
| دومره او دومره (يعني دا ځل نبي عَلَيْهِ السَّلَام د ديرشو شميرو يلو لپاره د اول ځل په شان د رې ځله کوتې بنده |
| يَعْنِي تَمَامَ الثَّلَاثِينَ يَعْنِي مَرَّةً تِسْعًا وَ عِشْرِينَ |
| نه کړه) يعني پوره د ديرشو ورځو وي. د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مطلب دا ؤ چې کله مياشت د نهه ويشتو |
| وَ مَرَّةً ثَلَاثِينَ ".[1] |
| ورځو وي او کله د ديرشو ورځو وي. |

**توضيح**: **انا امة امية**: امت ته د نسبت کولو په مطلب کې درې اقوال دي:

۱: اولنی قول دا دی چې امية د امت عرب طرف ته منسوب دی ای **نحن امم العرب** يعني مونږ عرب قوم يو. ځکه د عرب خلک به په ليک لوست باندې نه پوهيدل.

۲: دا نسبت د "**ام**" طرف ته اشاره ده يعني مونږ په ليک لوڅت باندې نه پوهېږو. څنګه چې د مور نه پيدا شوي دي همغه شان دي.

۳: يا د نسبت د **ام القراء** اړخ ته ده چې د مکي نوم دی ای **نحن امة مکية**. مکه کې هم د خط و کتابت رواج (دود) نه ؤو. دې حديث کې چې دا **ولا نکتب ولا نحسب** راغلی دی دا اکثر د عربو په اعتبار سره دی. ګينې حساب کونکي کاتبان به پکې ؤو خو لږ به ؤو.

**الشهر هکذا**: نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دواړه لاسونو په لس واړه **ګوتو** باندې د مياشتې ورځې وشميرلي. خو اول ځل شميرلو باندې چې يې **ګوتو** سره کومه اشاره وکړه د **هغې** په آخر کې يې **غټه ګوته** د لاس تلي سره پيوسته کړه چې اشاره يې کړه چې کله مياشت د ۲۹ ورځو وي. علام ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې په تسلسل سره د څلورو مياشتو نه زيات د ۲۹ ورځو نه شي راتللی. فقط څلور مياشتې راتلی

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲۶/۱، رقم الحديث ۱۹۱۳، ومسلم في صحيحه ۶۷۱/۲ رقم الحديث ۱۵ ۱۰۸۰، وأبوداود في السنن ۷۳۹/۲، رقم الحديث ۲۳۱۹، وأحمد في المسند ۱۲۲/۲

شي. (المرقات: ۴/۴٦۴).
بهرحال نبي کريم ﷺ بيا په لسو ګوتو بيا شمير شروع کړو او دا ځل يې غټه ګوته کولاوه پريخوده چې په هغې سره اشاره وکړی شوه چې کله مياشت د ديرشو (۳۰) ورځو وي. (المرقات ۴/۴٦۵).
د حديث په آخر کې د دې اجمال تفصيل راوي بيان کړی دی چې کله مياشت د ۲۹ ورځو وي کله ۳۰ ورځو وي. ملاعلی قاری رَحِمَهُ اللَّهُ مرقات ج ۴ ص ۴٦۲ کې د اهل نجومو باندې سخت رد کوی او ليکي چې ابن سريج ليکي چې حديث کې چې کوم "**فاقدروا**" حکم دی د دينه مراد اهل نجوم دي. لهذا کوم خلک چې په علم نجوم باندې پوهيږي. هغه په همدغه باندې حساب وکړي او کوم خلک چې په علم نجوم باندې نه پوهيږي هغه "**فاکملوا**" باندې عمل وکړی يعنې ديرش ورځې پوره کړی. ملا علی قاری رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي "**وهو مردود**" دا قول مردود دی.

۱: ځکه "**انا امة امية**" صريح حديث دی چې حکم کوي چې د مياشتې معلومولو لپاره د اهل نجومو د دې دقيق حساب ضرورت نشته دی.
۲: او د امت په دې اجماع ده چې د د سپوږمۍ باره کې د نجوميانو په قول هيڅ اعتبار نشته دی. اګر که نجوميان په دې باندې متفق شي چې سپوږمۍ داسي ليدل کيږي. (المرقات: ۴/۸٦۲).
۳: د قرآن عظيم اعلان دی ﴿**فمن شهد منک الشهر فليصمه**﴾ (سورة البقرة الايه: ۱۸۵) دي کې د سپوږمۍ ذکر دی. د نجوميانو د حساب نه دی (ګوياکې مياشت د سپوږمۍ په وجه حاضريږي. د نجوميانو به حساب و کتاب سره نه ده).
۴: او د نبي کريم ﷺ واضحه حديث دی "**صوموا الرؤيته وافطر والرؤيته**" او دا هم واضحه حديث دی "**لا تصوموا حتى تروهٗ**" (دي حديثونو کې د سپوږمۍ ليدلو سره د مياشتې ابتداء او انتها مربوط ده. د هيڅ نجومي قول سره نه ده).

**بل قول**: ملا علی قاري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې بلکې زه خو وايم که يو نجومي د سپوږمۍ د ليدلو نه مخکې د سپوږمۍ په پيدا کيدلو باندې روژه ونيوله نو هغه به ګناه ګار وي او دا به رمضان په روژو کې شمير نه وي. او که نجومي د خپل باطل حساب او کتاب په بنياد باندې د کوچني اختر فيصله وکړه او روژه يې ونيوله نو هغه به فاسق وی او د روژي کفاره به پري وي (يعنې دوه مياشتې روژي به نيسي).
او که نجومي د خپل حساب په بنياد باندې روژه ماتی فرض او واجب کړو او روژه يې ماته کړه نو کافر به شي. (**مرقاة ج ۴ ص ٦۲۴**).

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ يو څو صفحې وروسته نور ليکي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير په اهتمام سره د په ګوتو باندې اشاره کوي او دا مسئله بيانوي. د دې لپاره چې حساب او کتاب ته رجوع کول باطل شي.
(مرقاة ج۴ ص ۴۶۲).

## د رمضان او د ذوالحجې مياشتې ناقصه نه دي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " شَهْرَا عِيدٍ لَا يَنْقُصَانِ: |
| ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ناقصه نه دي د اختر دواړه مياشتې يعنې |
| رَمَضَانُ وَ ذُو الْحِجَّةِ ".(١) |
| د رمضان او د ذی الحجې. |

**توضيح: شهرا عيد:** يعني د اختر دوه مياشتې، د رمضان مياشت اګر که سپوګمۍ نشته دی خو په ختميدلو سره يې کوچنی اختر راځي نو په دې وجه د قرب، د اختر مياشت وويل شوه. هسې هم د اختر سپوګمۍ د رمضان په آخري ورځ کې پيدا کېږي. (المرقات: ۴/۴۶۶).

**لا ينقصان:** يعني د رمضان او د ذی الحجه دواړه مياشتې کله هم ناقصه نه وي بلکې همشيه پوره د ديرشو ورځو وي. د دې جملې په مفهوم او مطلب کې د علماء کرامو ډير اقوال دي:

۱: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دواړه مياشتې په يو کال کې ناقصه نه شي راتللی. که يوه ناقصه ده يعنې د ۲۹ ورځو ده نو بله پوره ده يعنې د ديرشو ورځو به وي.

۲: دا ضابطه د هميشه لپاره نه ده ويل شوي بلکې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژوند مبارک کې چې دا دواړه مياشتې څومره خل راغلي دې نو پوره به وي. هيڅ يوه به دې کې ناقصه نه وه.

۳: اسحاق بن راهويه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې نقصان نه حسّی نقصان مراد نه دی بلکې معنوی نقصان مراد دی چې ثواب دی. مطلب دا چې دواړه مياشتې د ثواب په اعتبار سره د ديرشو (۳۰) ورځو نه کله هم کمې نه وي. اګر که په ظاهري توګه د نهه ويش (۲۹) ورځو شي خو ثواب به د ديرشو ورځو ملاوېږي. دا توجيح د ټولو نه واضح ده. (المرقات: ۴/۴۶۶).

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٢٤/٤، رقم الحديث ١٩١٢، ومسلم في صحيحه ٧٦٦/٢ رقم الحديث ٣١ ١٠٨٩، وأبوداود في السنن ٧٤٢/٢، رقم الحديث ٢٣٢٣، والترمذي في السنن ٧٥/٣ رقم الحديث ٦٩٢، وابن ماجه ٥٣١/١ رقم الحديث ١٦٥٩، وأحمد في المسند ٣٨/٥

## د رمضان نه يو يا دوه ورځې مخکې د روژې نيولو ممانعت

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَتَقَدَّمَنَّ أَحَدُكُمْ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل تاسو کې هيڅ يو کس روژه مه نيسي د

رَمَضَانَ بِصَوْمِ يَوْمٍ أَوْ يَوْمَيْنِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَجُلٌ كَانَ يَصُومُ صَوْمًا فَلْيَصُمْ ذٰلِكَ الْيَوْمَ.[1]

رمضان نه مخکې يوه يا دوه ورځې خو کوم کس چې د روژو نيول عادي وي نو هغه روژه نيولی شي.

**توضيح: لايتقدمن:** يعني رمضان د راتللو نه مخکې يو يا دوه يا زياتې روژې مه نيسی. خو کوم کس چې مخکې نه د هرې مياشت آخر کې د روژو نيولو عادي وي يا پنج شنبه، جمعه يا دوشنبه يا داسې نورو ورځو کې د روژو عادي وي نو هغه يې نيولی شي. (المرقات: ۴/۴۶۸).

علماء ليکي چې ددې ممانعت وجه داده چې د اهل کتابو سره مشابهت رانه شي ځکه اهل کتاب د فرض روژو سره نفل روژې ګډوې.

ځينې علماء وايي چې دې سره سړی ناراسته شي او د رمضان د روژو لپاره د چستۍ ضرورت دی هغه نه پاتې کيږي.

علامه مظهر رحمه الله وايي چې د مرضان نه مخکې او د شعبان په آخر کې روژه نيول مکروه ده. د علماو وينا ده چې د کراهت نه مکروه تنزيهي دی. مولانا اسحق رحمه الله وايي چې دلته د کومې روژې نه منع شوی دی دا د **يوم الشک** روژه نه ده بلکې د شعبان د آخري ورځو روژه ده خو کوم کس چې په دې ورځو کې د روژو د نيولو عادي وي نو بيا هغې کې باک نشته دی.

نبي کريم صلى الله عليه وسلم به خپله د شعبان روژې نيولې چرته چې منع والی دی هغه د هغه خلکو لپاره دی چې کمزوري وي او روژه نيولو سره نور هم کمزوري کيږي چې د هغې په وجه رمضان کې نقصان راتللی شي بهرحال دا نهي ارشادي ده د شفقت په توګه نبي کريم صلى الله عليه وسلم منع کړې ده (المرقات ۴/۴۶۸).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا انْتَصَفَ شَعْبَانُ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کله چې د شعبان نيمه مياشت تيره شي نو

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲۷/۴، رقم الحديث ۱۹۱۴، ومسلم في صحيحه ۱۰۸۲/۲۱، وأبوداود في السنن ۷۵۰/۲، رقم الحديث: ۲۳۳۵، والترمذي في السنن ۶۹/۳ رقم الحديث: ۶۸۵.

| فَلَا تَصُومُوا. (۱) |
| --- |
| روژي مه نيسی. |

## د سپوږمۍ د کتلو اهتمام ضروري دی

| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْصُوا هِلَالَ شَعْبَانَ لِرَمَضَانَ (۲) |
| --- |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "رمضان لپاره د شعبان شپې شميرئ". |

**توضيح**: دې حديث کې امت ته واضحه تعليم ورکړی شوی دی چې په مسلمانانو باندې لازم دي چې هغوی د خپل اسلامي شعائرو او د اسلامي احکاماتو په پابندۍ سره اهتمام وکړي. احکامو باندې عمل وکړي او د احکامو لپاره چې څه اسباب او ذرائع دي د هغې لټه وکړي. نو د رمضان لپاره ضروري دي چې د شعبان د ورځو شمير ښه محفوظ وساتي د دې لپاره چې د رمضان په ابتداء کې ګډوډ والی پيدا نشي. معلوه شوه چې سپوږمۍ ليدل څنګه چې د حکومتونو ذمه واري ده نو د عامو مسلمانانو هم ذمه واري ده چې د دې کتلو کې اړتيا ووښاي. (المرقات: ۴/۴۷۰).

## نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د شعبان د مياشتې پوره روژې نيولې

| ﴿۸﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ |
| --- |
| ام سلمه رضي الله عنها وايي چې ما نبي کريم صلى الله عليه وسلم ليدلی چې روژې به يې نيبولې دوه مياشتې پرلپسې |
| إِلَّا شَعْبَانَ وَ رَمَضَانَ. (۳) |
| صرف په شعبان او رمضان کې. |

**توضيح**: **الا شعبان**: د دې حديث ظاهر د ابو هريره رضي الله عنه د مخکني حديث نمبر ۶ سره تعارض دی. دغه شان **باب صيام التطوع** کې د حضرت عائشه رضي الله عنها حديث د دې سره هم تعارض کېږي. د دې تعارض ډيري وجې دي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷۵۱/۲، رقم الحديث ۲۲۳۷، والترمذي في السنن ۱۱۵/۳ رقم الحديث ۷۳۸، وابن ماجه ۵۲۸/۱ رقم الحديث ۱۶۵۱.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۷۱/۳ رقم الحديث ۶۸۷

(۳) أخرجه أبوداود في السنن ۷۵۰/۲، رقم الحديث ۲۳۳۶، والترمذي في السنن ۱۱۳/۳ رقم الحديث ۷۳۶، والنسائي ۱۵۰/٤ رقم الحديث ۲۱۷۵، وابن ماجه ۵۲۸/۱ رقم الحديث ۱۶٤۸.

**اولنی جواب:** دا دی چې د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روایت په ځینو طریقو کې اکثر د شعبان لفظ راغلی دی او اکثر د شعبان روایت د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د روایت سره تعارض نشته دی ځکه حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ټول شعبان د روژو نفي کوي دغه شان د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت سره تعارض ختم شي.

**دویم جواب:** دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شفقت په توګه امت د شعبان د روژو نه منع کړی دی. او خپله یې د قوت او طاقت لرلو به وجه نیولي.

**دریم جواب:** دا دی چې امکان لري چې د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قولي حدیث د ام سلمه رضي الله عنها د دې فعلي حدیث لپاره ناسخ وي.

**څلورم جواب:** دا دی چې حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خپل علم مطابق په خپل نمبر کې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمل لیدلی دی او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خپل نمبر کې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمل بیان کړی دی. (المرقات: ۴/۴۷۰).

## د یوم الشک روژه نیول د ګناه سبب دی

| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ: مَنْ صَامَ الْيَوْمَ الَّذِي يُشَكُّ فِيهِ فَقَدْ عَصَى أَبَا |
|---|
| د عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ارشاد دی چې کوم کس د یوم الشک روژه ونیوله نو ده نافرماني وکړه د ابو |
| الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[1] |
| القاسم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ). |

**توضیح: یوم الشک:** د یوم الشک تعین کې د علامه ابن تیمیه رَحِمَهُ اللهُ او د نورو فقهاؤ په مینځ کې څه لږ شان اختلاف دی. خو د ابن تیمیه د رائی دلته اعتبار نه دی شوی. ځکه د عامو فقهاؤ خبره لیکم.

د شعبان په نهه ویشتم (۲۹) تاریخ کې مثلاً د ماښام وخت کې فضاء پاکه نه وي. اسمان کې ښې ډېر وریځې وي. نو دهغې نه وروسته د شعبان چې کومه دیرشمه (۳۰) ورځ راتلونکي ده هغه د شک ورځ ده. هغې کې احتمال دی چې اول د رمضان وي او دا هم احتمال دی چې دا دیرشم (۳۰) شعبان وي. دې حدیث کې هم د سه ویل شوي دي چې یوم الشک کې د رمضان روژه نیول مکروه ده. پاتې شوه نفل روژه نو د علماؤ د اقوالو په رڼا کې د اسې تفصیل دی. (المرقات: ۴/۴۷۰).

**د علماؤ اقوال:** شیخ عبد الحق محدث دهلوی رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د شک د ورځې روژې باره کې د علماؤ اختلافي اقوال دي.

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۴۹، رقم الحديث: ۲۳۳۴، والترمذي في السنن ۳/۷۰ رقم الحديث: ۶۸۶، والنسائي ۴/۱۵۳ رقم الحديث: ۲۱۸۹، وابن ماجه ۱/۵۲۷ رقم الحديث: ۱۶۴۵.

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ، امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ قول دا دی چې د شک په ورځ دې روژه ونه نيولی شي. دې ورځ باندې روژه نيول مکروه ده. او که څوک يې نيول غواړي نو هغه دې د نفل نيت وکړي. بيا که د شک ورځ ثابته شوه نو دا نفل روژه به د رمضان فرض جوړه شي. د احنافو په نز د که د يو سړی په دې ورځ باندې روژه نيولو د مخکې نه عادت وي مثلاً پنج شنبې يا د جمعې ورځ يوم الشک شوه. نو د هغې لپاره دا روژه نيول مستحب ده. دغه شان خواصو لپاره مثلاً مفتي يا عالم يا د قوم مشر لپاره دا روژه نيول مستحب ده. او عام خلک دې د يوم الشک روژه تر زوال پورې ونيسي. که د سپوږمۍ خبر رانغلو نو هغه روژه دې ماته کړي او که د سپوږمۍ خبر راغلو نو د رمضان روژه دې پوره کړي. دعوامو او د خواصو دا اصطلاح د نيت په وجه دی. کوم کسان چې د دې روژې صحيح نيت کولی شي هغه خواص دې او کوم خلک چې صحيح نيت نه شي کولی هغه عوام دي.

صحيح نيت دا سې دی چې يو کس فقط د نفلو نيت وکړي. په هغې کې دا خيال او تردد نه وي چې که د رمضان ورځ شوه نو دا به د رمضان روژه شي او غلط نيت دا سې دی چې يو کس دا سې نيت وکړي چې که د رمضان ورځ شوه نو زما روژه به فرض شي او که د سبا ورځ د رمضان نشوه نو زما روژه به نفل شي. داسې تردد کې به نه نيت صحيح وي نه به عبادت صحيح وي.

ځينو شارحينو يوم الشک روژه کې د ائمه احنافو څه مربوطه او منضبطه اقوال نقل کړي دي. وايي چې د شک د ورځې روژه کې د احنافو يو څه صورتونه دي.

۱: خالص د رمضان په نيت دې روژه نيول مکروه ده. ځکه د بحث لاندې حديث کې صريح ممانعت دی.

۲: رمضان نه بغير د هيڅ فرض يا د واجب د قضاء نيت کول هم مکروه دي. خو د مخکنې صورت نه کراهت څه کم دی.

۳: د نفل په نيت روژه نيول مکروه نه ده بلکې د خواصو لپاره افضله ده. کما قال ابويوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ.

۴: اصل نيت کې چې تردد وي کچرې رمضان شو نو دا روژه به د هغې وي او که رمضان نشو نو نفل به شي. دا نيت معتبر نه دی او نه د دې هيڅ عبادت معتبر دی. بهرحال د حديث شريف حکم واضحه دی چې د شک په ورځې روژه مه نيسئ. دا د ګناه سبب دی. (المرقات: ۴/۴۷۱).

## د سپوږمۍ په ګواهۍ کې يو عادل کافي دی

﴿۱۰﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ :

ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې يو اعرابی د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې حاضر شو او وې ويل چې ما د

إِنِّي رَأَيْتُ الْهِلَالَ يَعْنِي هِلَالَ رَمَضَانَ فَقَالَ : أَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ؟

رمضان مياشت ليدلې ده. نبي عَلَيْهِ السَّلَام ده ته وويل چې آيا ته ددې خبرې ګواهي ورکوې چې د الله نه بغير

قَالَ : نَعَمْ قَالَ : أَتَشْهَدُ أَنَّ

بل څوک معبود نشته ؟ ده وویل چې آؤ. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې آیا ته ددې خبرې ګواهي ورکوې چې

مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ ؟ قَالَ : نَعَمْ .

محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله رسول دی؟ده وویل چې آؤ (ددې نه وروسته) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) ته

قَالَ: يَا بِلَالُ أَذِّنْ فِي النَّاسِ أَنْ يَصُومُوا غَدًا . (1)

وفرمایل چې خلکو ته اعلان وکړه چې سبا روژه ده.

**توضیح** :**تشهد**: د دې لفظ نه معلوه شوه چې کوم مستور الحال وي. د هغې شهادت د رمضان د سپوږمۍ باره کې معتبر دی. دغه شان د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د رمضان سپوږمۍ لیدلو کې د یو کس ګواهي معتبره ده. هغه که عادل وي یا مستورات الحال وي. خو په دې شرط چې فضا پاکه وي نو دوه ګواهان ضروري دي. د ښځو ګواهي هم معتبره ده چې یو سړی او دوه ښځې وي. دې حدیث کې بانده کې اوسیدونکي صحابي درأیت لفظ استعمال کړی دی چې علماؤ ترې نه دا خبره را ویستلي ده چې د رمضان د سپوږمۍ په ګواهۍ کې د شهادت لفظ استعمالول ضروري نه دی. د باب په ابتداء کې تفصیل تیر شوی دی. (المرقات : ۴/۴۷۲).

﴿۱۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : تَرَاءَى النَّاسُ الْهِلَالَ فَأَخْبَرْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې یو ځل سپوږمۍ لیدو لپاره خلک راغونډ شو نو ما نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وویل

إِنِّي رَأَيْتُهُ فَصَامَ وَ أَمَرَ النَّاسَ بِصِيَامِهِ . (2)

چې ما سپوږمۍ لیدلې ده نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روژه ونیوله او خلکو ته یې هم د روژې نیولو حکم وکړو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۱۲﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَتَحَفَّظُ مِنْ شَعْبَانَ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د شعبان ورځې دومره په احتیاط شمیرلې چې هیڅ

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷۵٤/۲، رقم الحديث ۲۳٤۰ ، والترمذي في السنن ۷٤/۳ رقم الحديث ۶۹۱ ، والنسائي ۱۳۶/٤ رقم الحديث :۲۱۱۳، وابن ماجه ۵۲۹/۱ رقم الحديث ۱۶۵۲

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۷۵۶/۲، رقم الحديث : ۲۳٤۲

مَا لَا يَتَحَفَّظُ مِنْ غَيْرِهِ . ثُمَّ يَصُومُ لِرُؤْيَةِ رَمَضَانَ

يو ې مياشت ته به يې دومره توجه نه کوله بيا به چې د رمضان سپوږمۍ وليده نو نبي عليه‌السلام به روژه ونيوله

فَإِنْ غُمَّ عَلَيْهِ عَدَّ ثَلَاثِينَ يَوْمًا

که (په نهويشتم (۲۹) تاريخ) به فضا کې وريځ وه (او د سپوږمۍ ليدل به ثابت نه شو) نو د ديرش ورځو

ثُمَّ صَامَ .(۱)

پوره کيدلو نه وروسته به يې روژې شروع کړې.

## د سپوږمۍ د غټيدو يا وړوکي کيدو اعتبار نشته دی

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ قَالَ : خَرَجْنَا لِلْعُمْرَةِ فَلَمَّا

ابو البختري رحمه‌الله وايي (يو ځل) مونږ خلک د عمرې لپاره (د خپل ښار کوفې نه) راووتلو. کله چې

نَزَلْنَا بِبَطْنِ نَخْلَةَ تَرَاءَيْنَا الْهِلَالَ .

مونږ بطن نخله ته (چې د مکې او طائف په مينځ کې ديو مقام نوم دی) ورسيدو نو د سپوږمۍ ليدو لپاره په

فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ : هُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ .

يو ځای کې را جمع شو (د سپوږمۍ د ليدو نه وروسته) ځينو خلکو وويل چې دا د سپوږمۍ د ريمه شپه ده

بَعْضُ الْقَوْمِ : هُوَ ابْنُ لَيْلَتَيْنِ فَلَقِينَا ابْنَ عَبَّاسٍ

او نورو خلکو وويل چې دويمه شپه ده د دې نه وروسته مونږ د ابن عباس رضي‌الله‌عنهما سره مخامخ شونو هغه ته

فَقُلْنَا: إِنَّا رَأَيْنَا الْهِلَالَ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ : هُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَ قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ :

مووويل چې مونږ خو سپوږمي ليدلې ده نو بعضې خلکو ويل چې دا د دريمې شپې ده او بعضو ويل چې

هُوَ ابْنُ لَيْلَتَيْنِ . فَقَالَ : أَيَّ لَيْلَةٍ رَأَيْتُمُوهُ ؟ قُلْنَا :

دا د دوه شپو ده نو ابن عباس رضي‌الله‌عنه وويل چې تاسو سپوږمۍ په کومه شپه ليدلې؟ مونږ ورته وويل چې

لَيْلَةَ كَذَا وَ كَذَا . فَقَالَ : إِنَّ رَسُولَ اللهِ

دا سې دا سې شپه کې (يعني د دوشنبې يا د سه شنبې په شپه) نو ابن عباس رضي‌الله‌عنه وويل چې رسول الله

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷٤٤/۲، رقم الحديث ۲۳۲۵، وأحمد في المسند ۶ ۹.

| |
|---|
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَدَّهُ لِلرُّؤْيَةِ |
| ﷺ درمضان موده سپوږمۍ لیدو باندې موقوف کړې ده (یعنې کله چې سپوږمۍ ولیدل شي |
| فَهُوَ لِلَيْلَةٍ رَأَيْتُمُوهُ |
| نو رمضان به شروع کېږي) لهذا سپوږمۍ د هم هغه شپې ده چې په کومه شپه تاسو هغه لیدلې ده د همدغه |
| وَ فِي رِوَايَةٍ عَنْهُ . قَالَ : أَهْلَلْنَا رَمَضَانَ وَ نَحْنُ بِذَاتِ عِرْقٍ |
| ابو البختري رحمه الله روایت دی چې مونږ په ذات عرق کې (د بطن نخله سره نږدې مقام) کې سپوږمۍ ولیده |
| فَأَرْسَلْنَا رَجُلًا إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَسْأَلُهُ |
| نو مونږ یو کس د ابن عباس رضي الله عنه خدمت ته ددې باره کې معلومولو لپاره ولیږلو چې دا سپوږمۍ د کومې |
| فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ |
| شپې ده؟ (ځکه زمونږ په مینځ کې پاس شوی اختلاف پیدا شوی ؤ) ابن عباس رضي الله عنه وویل چې رسول الله |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى قَدْ أَمَدَّهُ لِرُؤْيَتِهِ |
| ﷺ فرمایلي دي چې الله د شعبان موده د رمضان سپوږمۍ لیدلو پورې موقوف کړې ده. لهذا |
| فَإِنْ أُغْمِيَ عَلَيْكُمْ فَأَكْمِلُوا الْعِدَّةَ . (۱) |
| که (نهه ویشتم تاریخ باندې) فضا کې وریځ وي نو شمېر پوره کړئ (یعنې د شعبان دیرش ورځې پوره کړئ) او د هغې نه وروسته روژه ونیسئ. |

**توضیح: تراءینا الهلال:** یعنې مونږ ټولو یو ځای کې د سپوږمۍ لیدلو لپاره راغونډ شو. (المرقات ۴/۴۷۴).

**هو ابن ثلاث:** یعنې سپوږمۍ دومره غټه وه چې د درې ورځو ښکاریدله. ځینو وویل چې د دوه ورځو معلومېږي. حضرت ابن عباس رضي الله عنه وفرمایل چې تاسو چې په کومه شپه سپوږمۍ لیدلې ده هغه د هغه شپې وه. یعنې که مخکې وي نو ښکاره شوې به وې. لهذا د هغې د غټوالي هیڅ اعتبار نشته دی. ځ و علماؤ لیکلي دي چې د اولنۍ شپې د سپوږمۍ غټیدل د قیامت د علاماتو نه ده چې د قیامت ته نږدې به د سپوږمۍ جوسه دیر شي. (المرقات ۴/۴۷۴).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۷۶۶ رقم الحديث :۳۰- ۱۰۸۸.

دلته دوه روایتونو کې څه تضاد معلومیږي. د دې د مربوطولو لپاره تاسو داسې وګڼئ چې اول خلک ذات عرق کې د سپوږمۍ لیدلو لپاره راجمعه شول. بیا د لیدلو نه وروسته اختلاف پیدا شو. ځینو وویل چې د یوې ورځې ده، ځینو وویل چې د دوه ورځو ده. نو هغوی یو کس حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته راولیږلو. حضرت ابن عباس رضي الله عنه جواب ورکړو. بیا دا ټول خلک په بطن نخله کې راجمعه شول. هلته یې بیا د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په یوه واسطه پوښتنه وکړه. حضرت ابن عباس رضي الله عنه ورله جواب ورکړو. بطن نخله د مکې او د طائف په مینځ کې د یو ځای نوم دی او ذات عرق هم د هغې سره نژدې د یول بل مقام نوم دی. (المرقات :۴/۴۷۵).

**مسئله**: که د شعبان په دیرشم (۳۰) تاریخ سپوږمۍ ښکاره شوه نو دا به بلې شپې لپاره د سپوږمۍ حسابیږي. لهذا د ورځې د روژې نیولو حکم به نه وي. او که د رمضان په دیرشم تاریخ (۳۰) سپوږمۍ ښکاره شوه نو هغه ورځ به روژه نه شي ماتولی وي او نه اختر لمانځل کیږي. بلکې دا سپوږمۍ به د راروان سبا لپاره وي. (المرقات :۴/۴۷۶).

**مسئله**: سپوږمۍ لیدل واجب علی الکفایه دي. کوم کس چې خپله ولیدله خو دې وجې نه د هغې ګواهي رد کړی شوه نو خپله په هغې باندې روژه نیول لازم دي.

**د اختلاف مطالع مسئله**: د اختلاف مطالع اعتبار شته دی او که نا. د دې مطلب دا دی چې مثلاً یو ښار یا یو ملک کې سپوږمۍ ښکاره شوه. بل ښار یا وطن باندې به د هغه سپوږمۍ اثر وي یا نه. کوم فقهاء چې وایي چې اثر به یې کیږي نو هغه وایي چې د اختلاف مطالع اعتبار نشته دی. ټول اسلامي وطن لپاره د یو اسلامي وطن سپوږمۍ لیدل کافي کیږي. احناف د همدغه قائل دي. خو شوافع وایي چې د هر وطن خپله خپله فضا ده. لهذا د یو وطن سپوږمۍ بل وطن باندې حجت او دلیل نه شي کیدی. د شوافع حضراتو همدغه مسلک دی. شوافعو ترمذی کې د حضرت کریب رضي الله عنه د روایت نه استدلال کړی دی چې شام کې روژه وه او مدینه کې نه وه. احنافو د "**صوموا لرؤيته، وأفطروا لرؤيته**" نه استدلال کړی دی. احنافو علماو کې علامه زیلعي رحمه الله وایي چې که فضا پاکوالي د اختلاف اعتبار اونکړی شي نو دیر مشکلات به پیدا شي. لهذا که نزدې ښارونو کې د فضا اختلاف اعتبار نه وي نو همدغه نشوالی صحیح دی خو په لرې وطنونو کې د اختلاف مطالع اعتبار کول غواړي. یعنې زمونږ سپوږمۍ جلا او زمونږ سپوږمۍ جلا.

حضرت علامه شاه انور شاه کشمیري رحمه الله وایي چې د زیلعي رحمه الله دا قول صحیح دی، ګیني که مخکښې قول اختیار کړی شوه او د ټولې دنیا لپاره سپوږمۍ معتبره ومنلی شوه نو یا به ۲۷، ۲۸ کې او یا به ۳۱، ۳۲ کې اختر لمانځل کیږي. لهذا د فتوی په دویم قول باندې عمل کول په کار دی.

اوس پاتې شوه دا خبره چې کوم ښار ته نزدې ښار ویل کېږي او کوم به بعید ښار شمارل کېږي. په دې کې تفصیل دی.

۱: ځېنې علماء وایي چې د عرف اعتبار به وي. شوافع د درې ورځو مسافت اعتبار کړي ده.

۲: ځېنې علماء وايي چې يو اقلیم کې اوسیدونکي خلک به د نزدې شمارل کېږي. خو د دوه اقلیمو خلک به بعید خلک شمیرل کېږي. يو اقلیم يو براعظم وي.

۳: ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ په خپل رسائل کې لیکلي دي چې د یوې میاشتې په مسافت باندې پروت ښار په شهر بعید کې شمارل شي او د دې نه کم مسافت والا ښار به نزدې ښار شمارل کېږي. ځېنو علماؤ پنځه سوه میله مسافت ته بعید ویلی دی.

۴: آسان او واضحه قول دا دی چې چرته د شپې تاریخ بدلېږي هغه بعید دی او چرته چې تاریخ نه بدلېږي نو هغه نزدې دی. مثلاً امریکه او برطانیه کې ورځ وي خو پاکستان کې شپه وي. تاریخ جدا جدا بدلېږي.



# باب في فضل السحور
## د پېشمني بيان

قال الله تعالى: ﴿ وَكُلُواْ وَاشْرَبُواْ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ أَتِمُّواْ الصِّيَامَ إِلَى الَّليْلِ ﴾ .(سورة بقره آيت:١٨٧)

دلته باب بغير د عنوان نه ايخودلى شوى دى. دې خبرې طرف ته اشاره ده چې د دې باب مسائل د مخكني باب سره تړل شوي دي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ دې سره د "في السحور" جمله لګولې ده.

علامه طيبى رَحِمَهُ اللَّهُ د "في مسائل متفرعه من كتاب الصوم" عنوان زيات كړى دى. دې باب كې واقعي د رمضان متفرقه مسائل بيان كړى شوي دي. پشمني او روژه ماتي متعلق زياتره حديثونه بيان شوي دي او د نيت كول متعلق هم ډير حديثونه دي. (المرقات: ۴/۴۷۸، الكاشف: ۴/۱۷۸).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ
## د پېشمني بركت

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَسَحَّرُوا فَإِنَّ فِي السَّحُورِ |
| حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل پېشمنى كوئ ځكه د پېشمني |
| بركة.[1] |
| په خوړو كې بركت دى. |

**توضيح:** في السحور بركة: سَحُور د سين فتحه او ح باندې ضمه سره د پشمني خوړو ته وايي. حديثونو كې زياتره دا لفظ داسي منقول دى او همدغه محفوظ دى. خو ځينې علماؤ دا لفظ د سين د ضمه سره نقل كړى دى. هغوى وايي چې سُحور مصدر دى. چې د پشمني فعل ته وايي او زيات مناسب دا دى. ځكه د بركت تعلق د فعل سحور سره دى فقط د خوړو سره نه دى. بهرحال دا معمولي فرق دى. (المرقات ۴/۴۷۷).

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٣٩/٤، رقم الحديث ١٩٢٣، ومسلم في صحيحه ٧٧٠/٢ رقم الحديث: ٤٥-١٠٩٥.

پشمني کې د برکت يوه وجه خو روحاني ده. ځکه هغه وخت الله د آسمان دنيا ته راځي. لهذا د غه مبارک وخت کې کوم کس بيداره وي نو بيداره کيدل خپله برکت سبب دی. بيا به د ژبې نه يوه برکت کلمه وځي دا جدا برکت دی. بيا که مونځ وکړی شي دا جدا برکت دی. د پشمني په عمل سره په سنت عمل وشو دا جدا برکت دی. پشمني د برکت دويمه وجه مادي ده هغه دا سې چې سړی د شپې بالکل په اخيري شپه کې او د ورځ د شروع نه مخکې ښه خوراک څښاک وکړي. لهذا ټوله ورځ هغه ولږې او تندې نه محفوظ وي. (المرقات ۴/۴۷۷).

## پيشنمې کول د اهل اسلام او د اهل کتاب په مينځ کې امتياز دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : فَصْلُ مَا بَيْنَ صِيَامِنَا |
| عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : فرق په مينځ د زمونږ روژه کې |
| وَ صِيَامِ أَهْلِ الْكِتَابِ أَكْلَةُ السَّحَرِ. (۱) |
| او د اهل کتابو (يعنې يهودو او نصاری) د روژو په مينځ کې د پشمني دی. |

**توضيح : اکلة السحر** : اهل کتاب يهود او نصاری د روژو لپاره پشمنی نه کوي. د هغوی په روژو کې د شپې روژه هم شامله ده چې د روژه ماتي نه وروسته د شپې روژه لازمه شي. د اسلام په شروع د مسلمانانو لپاره هم دغه حکم ؤ بيا منسوخ شو. اوس مسلمانان شپه کې پشمني خوراک کوي. اهل کتاب يې نه خوري. د اهل کتابو سره مشابهت نه ساتل د خپل دين سره وفاداري هم ده او د په دې سره د دين عظمت شکر هم ادا کېږي. (المرقات :۴/۴۷۸).

## په روژه ماتي کې تونديې کول په هدايت باندې د کلکوالي علامت دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ سَهْلٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ |
| سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: خلک به تر هغه پورې په خير باندې وي |
| مَا عَجَّلُوا الْفِطْرَ. (۲) |
| چې ترڅو پورې دوې پشمنيي تُندي کوي. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲:۷۷۰ رقم الحديث ۴۶ ـ ۱۰۹۶، والترمذي في السنن ۳ ۸۸ رقم الحديث: ۷۰۸.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۱۹۸، رقم الحديث ۱۹۵۷، ومسلم في صحيحه ۲ ۷۷۱ رقم الحديث ۴۸ ـ ۱۰۹۸، والترمذي في السنن ۳/۸۲ رقم الحديث ۶۹۹، وابن ماجه ۱/۵۴۱ رقم الحديث ۱۶۹۷، وأحمد في المسند ۵ ۳۳۹

**توضيح : ما عجلو الفطر** : روژه ماتي کې د تونده کولو مطلب دا دی چې کله لمر ډوب شي او د روژه ماتي وخت راشي نو بيا روژه ماتي کې تاخير کول مناسب نه دي. ځکه دا سي تاخير کول د يهود او د نصاراؤ شعار دی. هغوی تر هغه وخت پورې روژه ماتی نه کوي تر څو چې اسمان کې ستوري ښکاره شوي نه وي. همدغه طريقه د شيعه ګانو او د روافضو هم ده. نور اهل بدعت هم د تاکيد په نوم دا سې تاخير کوي. خو د سنت طريقه دا ده چې د ماښام مونځ نه مخکې روژه ماتی وشي او بيا د ماښام مونځ وکړی شي. (المرقات :۴/۴۷۸).

علامه طيبي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د دې حديث متعلق ليکي چې د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سنت اتباع نيغه لاره ده. کوم کس چې د دې لارې نه اخوا ديخوا لاړو نو هغې کږه لاره اختيار کړه. (المرقات :۴/۴۷۹).

## د روژه ماتي وخت

| ﴿٤﴾ وَعَنْ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا أَقْبَلَ اللَّيْلُ مِنْ هَهُنَا |
|---|
| عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کله چې دلته شپه راشي (يعني د مشرق د طرف |
| وَ أَدْبَرَ النَّهَارُ مِنْ هٰهُنَا وَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ |
| نه د شپې توروالی راوچت شي) او دلته نه (مغرب) نه ورځ شي او لمر (پوره) ډوب شي نو (پوهه شی) چې |
| فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ. (۱) |
| روژه دار روژه ماتی وکړو. |

**توضيح : غربت الشمس**: دا جمله د ماقبل لپاره د تاکيد په توګه ده. ماقبل کلام کې دوه ځل د **هٰهنا** لفظ راغلی دی. د دې نه اشاره کول مقصود ده يعنې کله چې د مشرق طرف نه شپه راشي مطلب دا چې مشرقي افق باندې توروالی اوچت شي او د مغرب د طرف نه ورځ لاړه شي. لمر پوره ډوب شي. (المرقات :۴/۴۷۹).

**فقد افطر الصائم** : يعنې بيا پوهه شی چې روژه دار روژه ماته کړه. مطلب دا دی چې اوس د روژه ماتي وخت شو د دې نه ډير انتظار کول په کار نه دی. علامه طيبي رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې **"ای اقبل ظلمة الليل من جانب المشرق وادبر ضوء النهار من المغرب فقد افطر الصائم حکمًا وان لم يفطر حسًا اودخل في**

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤ ۱۹٦، رقم الحديث ۱۹۵۱، ومسلم في صحيحه ۲ ۷۷۲ رقم الحديث ۵۱-۱۱۰۰، وأبوداود في السنن ۲ ۷٦۲، رقم الحديث ۲۳۵۱، والترمذي في السنن ۳ ۸۱ رقم الحديث ٦۹۸

وقت الافطار". (الكاشف: ۴/۱۸۰).

## د پرله پسي روژو نيولو ممانعت او مطلب

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوِصَالِ فِي الصَّوْمِ. |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم روژه باندې د روژې نيولو نه منع و فرمايله. نو يو |
| فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: إِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَ أَيُّكُمْ |
| كس ورته وويل چې يارسول الله! تاسې خو روژه باندې روژه نيسې. نبي عليه السلام و فرمايل تاسو كې كوم |
| مِثْلِي إِنِّي أَبِيتُ يُطْعِمُنِي رَبِّي وَ يُسْقِينِي ".[1] |
| يو كس زما په شان دی زه خو داسې شپه تيرومه چې زما پروردگار ماته خواړه راكوي او زما تنده ختموي |

**توضيح: الوصال**: روژه پسې روژه نيولو ته وصال وايي. د دې مطلب دا دی چې يو كس مثلاً دوه يا درې روژې داسې پرلپسې ونيسي چې په مينځ كې يې روژه ماتې ونه كړي. حديث كې د دې ځكه ممانعت راغلې دی چې دې سره سړی كمزوری كيږي. او د نورو عبادتونه توان بيا نه لري نه مونځ كولی شي، نه جهاد كولی شي او نه د نيكۍ بل كوم كار كولی شي. اوس د دې باره كې اختلاف دی چې آيا د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه بغير د امت بل كوم نفر لپاره پرله پسې روژې نيول جائز دي يا نه څه علماء دې طرف ته تلي دي چې د امت كوم خلک چې قوت لري هغوی روژې نيولی شي. هغه حضرات د دې حديث ممانعت په رحمت او شفقت باندې حمل كوي. نو حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه او حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه او داسې نورو به په دې عمل حمل كولو. او پرلپسې به يې روژې نيولې. ځينو تابعينو به هم په صوم وصال باندې عمل كولو. (المرقات: ۴/۴۸۰).

خو ځينې علماؤ صوم وصال ناجائزه ګڼلی دی. امام ابو حنيفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله وايي چې صوم وصال مكروه دی. ظاهري حديث په همدې باندې دلالت كوي. البته دې كې بحث دی چې د دې كراهت نه مكروه تحريمي مراد دی يا مكروه تنزيهي دی. صحيح قول همدغه دی چې صوم وصال مكروه تحريمي دی.

**يطعمني**: د دې جملې نه په واضحه توګه معلوميږي چې صوم او وصال د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خصوصياتو نه ؤو. نبي كريم صلى الله عليه وسلم كې هغه روحاني قوت ؤو چې بل هيڅ يو كې امكان نه لري.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۲۰۰، رقم الحديث ۱۹۶۰، ومسلم في صحيحه ۲/۷۷۴ رقم الحديث :۵۷-۱۱۰۳، وأبوداود في السنن ۲/۷۶۷، رقم الحديث: ۲۳۶۱.

نبي کريم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله په محبت کې مستغرق ؤو. د بل هيڅ يو کس خوا ړو ته يې څه ضرورت ؤو. لکه چا ويلي دي:

و ذکرک للمشتاق خير شراب ❁ و کل شراب دونه کسراب

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د روژې د نيت مسئله

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَمْ يَجْمَعِ الصِّيَامَ قَبْلَ |
| حفصه رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهَا راويه ده چې نبي کريم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې نيت ونه کړي د روژې مخکې |
| الْفَجْرِ فَلَا صِيَامَ لَهُ. وَ قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَفَهُ عَلَى حَفْصَةَ |
| د سحر نه نو د هغه روژه (کامله) نه وي. امام ابو داؤد رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ وايي چې موقوف دی دا حديث په حفصه |
| معمر و الزبيدي وَ ابْنُ عُيَيْنَةَ وَ يُونُسُ الْأَيْلِيُّ كُلُّهُمْ عَنِ الزُّهْرِيِّ.(۱) |
| رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهَا باندې او معمر، زبيدی ابن عيينه او يونس ايلي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ دې ټولو د روايت د زهری نه نقل کړی |
| يعنې دې قول ته يې د حفصې رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهَا قول ويلی دی. |

**توضيح: من لم يجمعه الصيام:** د صيغه د شد سره ويلی شوي ده او بغير د شد نه هم ويلی شوي ده. اجماع او تجميع کلکي ارادی او عزم کامل ته وايي. دلته د شپې نه د روژې کلک نيت کولو ته ويل شوی دی. حديث نه په واضحه توګه معلومېږي چې د روژې نيت کول هغه وخت ضروري دی ګيني صحيح به نه وي. خو نورو روايتونو ته په کتلو سره د فقهاؤ په خپل مينځ کې اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف:** د ټول فقهاؤ په دې باندې اتفاق دی چې د روژې د صحت لپاره نيت شرط دی. خو د نيت لپاره کوم وخت پکار دی. دې باره کې د فقهاؤ اختلاف دی. نو امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فرمايي چې د هر قسمه روژې لپاره د شپې نه نيت کول شرط دی. هغه که نفلي وي يا واجب وي. د شپې نه نيت کولو ته تبيت نيت وايي. امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ په نزد د نفل روژو نه بغير هر قسمه روژو لپاره د شپې نه نيت کول ضروري دی. نفل کې ضروري نه دی بلکې د زوال نه مخکې نيت کيدلی شي. ائمه احنافو په نزد څه تفصيل شته دی. (المرقات: ۴/۴۸۱).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۸۲۳/۲، رقم الحديث ۲۴۵۴، والترمذي في السنن ۱۰۸/۳ رقم الحديث ۷۳۰، والنسائي ۱۹۶/۴ رقم الحديث ۲۳۳۳.

۱: د قضا شوي روژي، د نذر مطلق روژي او د کفاری روژه که څوک نیسي نو د شپي نه نیت کول شرط دی. د دینه بغیر رمضان او نذر معین او نفل روژو کې د شپي نه نیت ضروري نه دی بلکې مستحب دی. وس اختلاف حقیقت کې د احنافو او د شوافعو او د حنابلو په مینځ کې بیانو. ځکه مالکیه خو په هر صورت کې د تبیت نیت کول ضروري ګڼي. د هغوی اختلاف د ټولو سره دی.

**دلائل**: د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کوي او هغه په مطلق منلو سره د هر قسمه روژي لپاره د تبیت نیت ضروري ګڼي. شوافع او حنابله یعنې جمهور هم د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کوي. خو نفل روژه د دې حدیث سره خاص کوي. ځکه د هغوی په نزد روژه متجزی کیدلی شي. یعنې د کله نه چې نیت وکړی شو نو د هغه وخت نه به د روژي ثواب شروع شي. لهذا د شپي نه نیت ضروري نه دی. د احنافو په نزد اولنی دلیل د قرآن آیت دی ﴿**کلو واشربوا حتی یتبین لکم الخیط الابیض من الخیط الاسود من الفجر**﴾(بقرة الایة : ۱۸۷) اوس دلته تر صبح صادق پوري د خوراک څښاک اجازت شته دی. او کله چې صبح صادق شي نیت به د هغې نه وروسته کېږي. نو آیت کې دا شاره وشوه چې د رمضان د روژي نیت د صبح صادق نه وروسته جائز دی. د دې تعلق د فرض روژي د نیت سره دی. احنافو د ائمو دویم دلیل مسلم او بخاری کې د حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی:

"**عن سلمه بن اکوع انه قال بعث رسول الله صلی الله علیه وسلم رجلا من اسلم یوم عاشوراء فامره یؤذن فی الناس من کان لم یصم فلیصم ومن کان اکل فلیتم صیامه الی اللیل**". (**متفق علیه**)

طرز استدلال داسي دی چې د رمضان روژي فرض کیدلو نه مخکې د عاشوراء روژه فرض وه. دلته د عاشوري د فرض روژي د نیت د ورځ په وخت کې شوی دی. معلومه شوه چې د فرض روژي نیت د ورځې وخت کې کیدلی شي. خو دا چې فرض معین وي. د احنافو دریم دلیل د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روایت دی چې الفاظ یې دا دي "**عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قالت دخل علی رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات یوم فقال هل عندکم شیئ فقلنا لا فقال فانی اذًا صائم. (رواه مسلم، مشکوٰة صـ)** (المرقات :۴/۴۸۱).

**دا دلیل د نفلو لپاره دی**: د احنافو څلورم دلیل عقلي دی. هغه داسي دی چې د کومو روژو لپاره د ورځي او د شپي وخت متعین دی د هغې لپاره د وخت ضرورت نشته دی. ځکه د هغه وخت لپاره همغه روژه مقرر ده. د دې هیڅ مزاحم نشته دی. لکه د رمضان روژي دي. یا نذر معین دی. او که قضا روژي وي یا د کفاری روژي وي یا د نذر مطلق روژي وي نو د هغې لپاره د هیڅ ورځ او د وخت مقررول او معین نشته دی. او د دې مزاحم هم موجود دی چې په دې ورځ بلک کومه روژه هم کیدلی شي. نو ځکه دا د شپې به متعین کول غواړي. لهذا د شپي نه نیت ضروري دی.

**جواب**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او جمهور فقهاؤ ته د احنافو د طرف نه د زير بحث حديث نه يو جواب دا دی چې د دې حديث په مرفوع او موقوف کيدو کې اضطراب دی امام ابوداؤد رَحِمَهُ اللهُ دا ضعيف ګرځولی دی.

دويم جواب دا چې "**فلا صيام له**" کې نفي د کمال صوم ده. تبييت نيت مونږ مستحب منو. دريم جواب دا دی چې د بحث د لاندې حديث تعلق د هغه روژو سره دی چې په هغې د شپې نه نيت د ټولو په نزد ضروري دی. لکه نذر مطلق، کفاری او د قضاء مافات روژې دي. د حديث په همدې باندې محمول دی.

## د سحر اذان په وخت کې د خوراک او څښاک مسئله

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ أَحَدُكُمْ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په تاسو کې يو کس د سحر اذان واوري |
| وَ الْإِنَاءُ فِي يَدِهِ فَلَا يَضَعْهُ حَتَّى |
| او د هغه په لاس کې لوخی وي (چې د کوم نه هغه څه خوړلو يا څکلو اراده لري) نو لوخی دې نه ايږدي |
| يَقْضِيَ حَاجَتَهُ مِنْهُ.[1] |
| بلکې خپل ضرورت دې پوره کړي. |

**توضيح**: **اذا سمع النداء**: يعنې که يو کس د پشمني وخت کې څه خوري يا څکي او اذان وشو. نو د دې حديث تعليم دا دی چې هغه خوراک څښاک بند نه کړي بلکې خپل ضرورتونه دې پوره کړي. (المرقات ۴/۴۸۳).

د دې حديث د ظاهري مطلب نه څه خلکو غلط فهمي کړې ده او خپلو پيروکارانو ته يې د سحر د اذان په وخت کې د صبح صادق نه ورسته د خوراک څښاک اجازت ورکړی دی او د خلکو روژې يې خرابې کړې. حال دا چې د حديث صحيح مطلب شارحينو داسې ليکلې ده. چې د دې حديث تعلق د هغه کس سره دی چې د لمر د محاذاتو ته مخامخ ناستې وي. هغه د سحر او د صبح صادق او د صبح کاذب باره کې بنه تجربه لري. د هغې په لاس کې خواږه دې يا اوبه دي. هغه خوراک څښاک کوي او صبح صادق ليدلو سره يې هم کوي. يو نا پوهه مؤذن د وخت نه مخکې اذان وکړو او دا واقفه او تجربه کار وينې چې سحر تر اوسه پورې نه دی راختلی. نو د داسې کس لپاره په حديث کې دا حکم دی چې دا کس دې د سحر رابنتلو ته وګوري د نا پوهه اذان ته دې نه ګوري. د دې حديث دويم مطلب علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ بيان کړی دی چې د دينه د تهجد اذان مراد دی. دغه شان نور ډير حديثونه د تهجد متعلق دي. دا جواب ډير

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۷۶۱/۲، رقم الحديث ۲۳۵۰، وأحمد في المسند ۵۱۰/۲

واضحه دی.بهرحال دسحر د راختلو نه مخکې اذان جائز نه دی او د صبح صادق نه وروسته قصداً په خوراک څښناک سره روژه فاسدېږي او کفاره هم لازمه شي د خدای نه ویره لرونکو ته سوچ په کار دی. (المرقات ۴/۴۸۵).

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَالَ اللهُ تَعَالَى: أَحَبُّ عِبَادِي |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "د الله ارشاد دی چې خوښ بنده زما په |
| إِلَيَّ أَعْجَلُهُمْ فِطْرًا ". [1] |
| بنده ګانو ماته هغه بنده دی چې (وخت کیدو باندې) روژه ماتولو کې تونده کوي. |

## په کهجوري باندې روژه ماتې کول د برکت سبب دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَفْطَرَ أَحَدُكُمْ |
| سلیمان بن عامر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسو کې چې څوک روژه ماتی کوي |
| فَلْيُفْطِرْ عَلَى تَمْرٍ فَإِنَّهُ بَرَكَةٌ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ |
| نو ورته په کار ده چې په کهجوره روژه ماته کړي ځکه کهجوره د برکت سبب دی که چا کهجوره ونه مونده |
| فَلْيُفْطِرْ عَلَى مَاءٍ فَإِنَّهُ طَهُورٌ .وَلَمْ يَذْكُرْ: فَإِنَّهُ بَرَكَةٌ غَيْرُ التِّرْمِذِيِّ [2] |
| نو اوبو سره روژه ماته کړي ځکه اوبه پاکونکی دی او لفظ **فانه برکة** د ترمذی نه غیر بل چانه دی نقل کړی |

**توضیح : علی تمر** : کهجوره او اوبه سره روژه ماتولو حکم په استحباب باندې محمول دی. اوبه خو سهل الحصول دي. او کهجوره کې برکت دی. ځکه کهجوره یوه مبارکه میوه ده. او د کهجوری بوټی د مؤمن سره مشابه دی. هغې خوړوالی او ښه شریني ده. او د انسان معده چې کله د روژې په وجه تشه شي او هغې ته شریني ورسيږي نو معده هغه ډیره زر قبلوي چې د بدن ټول اندامونه د کمزوری نه وروسته خاص قوت حاصل کړي او همده قوت د بدن لپاره برکت دی. دا چې کهجوره یوه میوه ده او ور باندې پخولو ته ضروت نه لري نو اور ورسره نه دی لګیدلی نو په دې وجه هم مبارکه ده.

دغه شان په عربو کې د کهجورو میوه د ټولو نه ډیره وي او عربو ته کهجوري د ټولو نه خوښې هم دې او د اوبه پاکوالی خو ښکاره خبره ده. چې کهجوره نه وي نو بیا اوبه ښه د روژه ماتي دی. باندو کې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۸۳ رقم الحديث .۷۰۰ ، وأحمد في المسند ۳۲۹/۲.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۷٦٤/۲، رقم الحديث .۲۳۵۵ ، والترمذي في السنن ٤٦/۳ رقم الحديث :٦٥۸ ، وأحمد في المسند ۱۷/٤.

مسلمانان د مالګه څښولو سره روژه ماتي کوي. دا هم یو اسان او ښه شي دی. (المرقات: ۴/۴۸۵).

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُفْطِرُ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ عَلَى رُطَبَاتٍ

انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماښام د مونځ نه مخکې تازه یو څو کهجورو سره روژه ماتی

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ فَتُمَيْرَاتٌ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تُمَيْرَاتٌ حَسَا

کولو که تازه کهجورې به نه وې نو په وچو کهجورو به یې روژه ماتی کولو او که وچې کهجورې به هم نه وې

حَسَوَاتٍ مِنْ مَاءٍ. (۱)

نو په یو څو (یعنې درې) لپه اوبه به یې څکلې.

## روژه ماتي ور کونکي ته ډیر ثواب ملاویږي

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا

زید ابن خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "کوم کس چې بل له روژه ماتی ور کوي

أَوْ جَهَّزَ غَازِيًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ. (۲)

یا د یو غازي سامان سموي نو هغې د همغوی پشان ثواب ملاویږي.

﴿۱۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا أَفْطَرَ قَالَ: ذَهَبَ الظَّمَأُ

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله روژه ماتی کولو نو دا به یې فرمایل: تنده لاړه،

وَ ابْتَلَّتِ الْعُرُوقُ وَ ثَبَتَ الْأَجْرُ إِنْ شَاءَ اللهُ. (۳)

رګونه تازه شول او که الله وغوښتل نو ثواب ثابت شو.

## د روژه ماتي د وخت دعاء

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ مُعَاذِ بْنِ زُهْرَةَ قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ إِذَا أَفْطَرَ قَالَ:

معاذ بن زهره رَحِمَهُ اللهُ (تابعی) وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله روژه ماتی کولو نو دا به یې ویل

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۶۴، رقم الحديث ۲۳۵۶، والترمذي في السنن ۳/۷۹ رقم الحديث: ۶۹۶، وأحمد في المسند ۳/۱۶۴

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۴/۱۱۴.

(۳) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۶۵، رقم الحديث ۲۳۵۷

اللّٰهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَ عَلَى رِزْقِكَ أَفْطَرْتُ.[۱]

اې الله! ما فقط ستا لپاره روژه ونيوله او هم ستا په رزق روژه ماتې کوم.

**توضيح**: د ابن ماجه په يو روايت کې دي چې روژه دار چې د روژه ماتي وخت کې کومه دعا غواړي هغه نه رد کېږي بلکې قبلېږي. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د دې وجې نه د روژه ماتې وخت کې د دعا اهتمام کولو او امت ته يې د دې تعليم ورکړو.

د همدغه حديث په حديث په سلسله کې يوه دعا ذکر ده. ابن مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې ذکر شوې دعا کې خلک "**وبك أمنت و عليك توكلت**" الفاظ زياتوي. دا الفاظ د حديث نه ثابت نه دي. د معنی په اعتبار سره صحيح دي (خو د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه منقول دعا نه وروسته لوستل په کار دي) نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د روژه ماتي په وخت کې دا دعا هم نقل ده: **الحمد لله الذي اعانني فصمت ورزقني فافطرت**، دا ډېره ښه دعا ده.

د دې نه مخکې حديث کې دا الفاظ هم راغلي دي: **ذهب الظمأ وابتلت العروق وثبت الاجر ان شاء الله**. د دعا په دې کلماتو کې د الله تبارک وتعالی عبادت پورا کولو باندې د الله تبارک وتعالی شکر ادا کړی شوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۱۴﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَزَالُ الدِّينُ ظَاهِرًا مَا

ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دين (اسلام) به هميشه غالب وي تر هغه چې

عَجَّلَ النَّاسُ الْفِطْرَ لِأَنَّ الْيَهُودَ وَ النَّصَارَى يُؤَخِّرُونَ.[۲]

خلک په روژه ماتی کې توندي کوي. ځکه يهود او نصارا ئې به تاخير کولو.

## په روژه ماتې کې توندې کول سنت نبوي دی

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ أَبِي عَطِيَّةَ قَالَ: دَخَلْتُ أَنَا وَ مَسْرُوقٌ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْنَا:

ابو عطيه وايي چې زه او مسروق دواړه د عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په خدمت کې حاضر شو او عرض مو وکړو چې

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۶۵، رقم الحديث ۲۳۸۵

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۶۳، رقم الحديث ۲۳۵۳، وابن ماجه ۱/۵٤۲ رقم الحديث :۱۶۹۸، وأحمد في المسند ۲/٤٥۰.

| |
|---|
| يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ رَجُلَانِ مِنْ أَصْحَابِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَدُهُمَا يُعَجِّلُ الْإِفْطَارَ |
| اى ام المؤمنين! د نبي كريم ﷺ په صحابؤ کې دوه کسان دي. هغوی کې څوك يو تندي کوله په |
| وَ يُعَجِّلُ الصَّلَاةَ وَ الْآخَرُ : يُؤَخِّرُ الْإِفْطَارَ وَ يُؤَخِّرُ الصَّلَاةَ . قَالَتْ : |
| روژه ماتي او مونځ کې او بل کس تاخير کولو په روژه ماتي او مونځ کولو کې عائشې رضي الله عنها پوښتنه وکړه |
| أَيُّهُمَا يُعَجِّلُ الْإِفْطَارَ وَ يُعَجِّلُ الصَّلَاةَ ؟ قُلْنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ . |
| چې روژه ماتي او مونځ کې توندې کونکی څوك دی؟ مونږ ورته وويل چې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه |
| قَالَتْ : هٰكَذَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| عائشې رضي الله عنها وويل چې د نبي كريم ﷺ همدغه معمول ؤ. او هغه بل سړی چې تاخير کوي په |
| وَ الْآخَرُ أَبُو مُوسَى.(۱) |
| روژه ماتي او مونځ کې هغه ابو موسی رضي الله عنه ؤ. |

**توضيح** : رجلان: د دوه کسانو کې څوك يو جليل القدر صحابي حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه دی چې د هغې باره کې نبي كريم ﷺ فرمايلي ؤ "رضيت لامتي ما رضي لها ابن ام عبد" يعنې زما د امت لپاره چې مسعود رضي الله عنه څه خوښ کړل زه هم هغه خوښوم.

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه باره کې وفرمايل "كُنَيْفٌ مِلِئَ عِلْمًا" ابن مسعود رضي الله عنه د علم خزانه ده دې حديث کې ذکر دې چې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روژه ماتي او مونځ کولو کې د نبي كريم ﷺ اعلى مقام خپل کړو.

او حضرت ابو موسی رضي الله عنه هم د شان والا صحابی دی. دې حديث کې ذکر دې چې حضرت ابن مسعـ د رضي الله عنه د سنت په آخري جواز باندې عمل وکړو.

ددې د تاخير کولو مطلب دا نه دی چې تر منع وخت نه به يې تاخير کولو. بلکې مطلب دا دی چې حد جواز کې به تر آخري وخت پورې تللو.

شايد د څه عذر په وجه به داسې وه يا د بيان جواز لپاره د تعليم په توګه به يې داسې کړي ؤو. يو نيم ځل به د مجبورۍ په وجه به داسې شوي وي.

---

(۱) أخرجه مسلم ۷۷۱/۲ رقم الحديث ۳۹ ۱۰۹۹ و أبوداود في السنن ۷٦۲/۲، رقم الحديث :۲۳۵٤ ، والترمذي في السنن ۸۳/۳ رقم الحديث :۷۰۲ ، والنسائي ۱٤٤/٤ رقم الحديث ۲۱٦۱

﴿۱٦﴾ وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ قَالَ دَعَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى السَّحُورِ فِي رَمَضَانَ

عرباض بن ساريه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه يې راوغوښتم پشمني ته په روژه کې او

فَقَالَ: هَلُمَّ إِلَى الْغَدَاءِ الْمُبَارَكِ.[1]

وي فرمايل چې د برکت خوړو لپاره راشه.

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نِعْمَ سَحُورُ الْمُؤْمِنِ

ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د مؤمن لپاره د پشمني بهترين خوراک

التَّمْرُ.[2]

کهجوري دي.



(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷۵۷/۲، رقم الحديث ۲۳٤٤، والنسائي ۱٤۵/٤ رقم الحديث ۲۱٦۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۷۵۸/۲، رقم الحديث ۲۳٤۵.

# باب تنزيه الصوم

## د روژې سره د منافي شيانو بيان

دي باب کې به د روژې د منافي شيانو بيان کېږي. د روژې منافي ځينې دا سې شيان دي چې هغې سره روژه بالکل فاسدېږي. لکه قصداً خوراک، څښاک او جماع کول او د ځينې داسې شيانو بيان به وي چې هغې سره به روژه نه فاسدېږي خو مکروه کېږي. لکه بې عذره په ژبه باندې د څه شي څکل او لاړې ګوزارول. دغه شان د ځوان کس لپاره د ښځې ښکلول. دغه شان مصطګی رومی د روژې په حالت کې ژېچل مکروه دي. قصداً روژه خوړونکي باندې کفاره لازمېږي. او غلطۍ سره تالو کې او به تللو سره کفاره نشته بلکې قضاء لازمېږي. د کفارې مقدار او ترتيب داسې دی چې که غلام وي نو يو غلام ازادول د يوې روژې کفاره ده. که غلام نه وي نو بيا شپېته ورځې يعنې دوه مياشې مسلسل روژې نيول دي. که په دې توان نه لرې نو بيا شپېته مسکينانو ته دوه وخته ډوډۍ ورکول دي. د څه عذرونو او مجبوريو په وجې سره روژه ماتی کولی شي. خو وروسته به د هغې قضاء لازمه وي يا دا چې د فديه صورت به وي. په دې عذرونو کې يو سفر دی. د سفر په وجه روژه ماتی کېږي. دغه شان حامله يا مرضعه ښځې لپاره د مجبورې په وخت کې روژه ماتی جائز دی. د اکراه په صورت کې روژه ماتی جائز دی. د مرض سخت والي په وجه روژه ماتی جائز دی. بوډه والي په وجه روژه ماتی جائز دی. که مريض تندرسته شو نو قضا به کوي ګینې د هغې له اړخه نه به فديه ورکول کېږي. بوډه لپاره هم د فديې حکم دی. هره ورځ به د يوې روژې په بدل کې نيم صاع غنم د فديه په توګه ورکول کېږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### لغو، باطل او دروغ د روژې منافي دي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ لَمْ يَدَعْ |
| ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې پرې نه خودې (د روژې حالت |
| قَوْلَ الزُّورِ وَ الْعَمَلَ بِهِ فَلَيْسَ لِلّٰهِ حَاجَةٌ فِي أَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وَ شَرَابَه .[1] |
| کې) فضول خبرې او فضول کارونه نو الله ته د دې خبره پروا نشته چې دې کس خوراک څښاک پرېښې دی |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ١١٦/٤، رقم الحديث ١٩٠٣.

**توضيح** : **من لم يدع**: روژه د انسان په بدن کې د انقلاب راوستلو په غرض باندې فرض کړې شوې ده. لکه څنګه چې په عبادتونو سره د انسان باطني احساسات او خيالونه او د هغې په کيفيت او جذباتو کې نيک انقلاب راځي. دغه شان د انسان په ظاهري اندامونو کې هم د انقلاب راتلل په کار دی لهذا د هغې په نظر او شرمګاه کې انقلاب راتلل په کار دي. دې سره په ښپو او ژبه او غوږونو کې هم انقلاب راتلل په کار دي د سوچ مقام دی چې يو طرف ته انسان د حلال خوراک او څښاک نه ځان ساتي او بل طرف ته حرام غيبت او حرام دروغ او لغو او باطل کې اخته وي. نو د خوراک او څښاک نه د منع کيدو څه فايده؟ همدغه مضمون په دې حديث کې بيان کړې شوې دی چې يو کس روژه کې د حرام شيانو نه نه منع کيږي نو د حلال شيانو د پرهيز کولو او روژې نيولو باندې د الله هيڅ پرواه نشته دی. اهل تصوف ليکي چې د روژې درې قِسمه دي. يو د عوامو روژه ده چې هغې هغوی فقط د خوراک، څښاک او جماع نه ځان منع کړي. دويمه د خواصو روژه ده چې هغې هغه خلک د خپل اندامونه او خپل احساسات او جذبات او لذتونه او مکروهاتو نه ځان بچ کړي. دريمه روژه د اخص الخواصو روژه ده چې هغې کې خلک خپل ځان د غير الله اړخ ته د التفات نه بچ کوي. (المرقات :۴/۴۹۱).

## په روژه کې د تقبيل مسئله

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روژې په حالت کې (د خپلو بي بيانو) نه چيه اخستله او |
| وَ يُبَاشِرُ وَ هُوَ صَائِمٌ وَ كَانَ أَمْلَكَكُمْ لِأَرَبِهِ.(۱) |
| هغوی به يې خپل بدن ته رانژدې کولې ځکه نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپل حاجت باندې ستاسو نه ډير طاقت لرونکی ؤ. |

**توضيح** : **ارب**: حاجت او ضرورت ته ارب او مأرب وايي. دلته د حاجت نه مراد جماع او شهوت دی يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د روژې حالت کې د خپلو ازواج مطهراتو نه چيه (تقبيل) او غاړه اخستله خو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په خپلو جذباتو باندې د قابو کولو توان لرو. (المرقات ۴/۴۹۳).

چيه او غاړه اخستلو باره کې د احنافو ائمه وايي چې که چرې د بوس او کنار په وجه د جماع يا انزال ويره وي نو دا مکروه دې او د هغې ويره نه وي نو بيا مکروه نه دي. څېنو روايتونو کې د ځوان لپاره ممانعت راغلی دی او د بوډه لپاره د اجازت ذکر دی.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱٤۹/٤، رقم الحديث ۱۹۲۷، ومسلم في صحيحه ۲ ۷۷۷ رقم الحديث ٦٥ ۱۱۸٦، وأبوداود في السنن ۲ ۷۷۸، رقم الحديث: ۲۳۸۲، وأحمد في المسند ٤۲/٦.

## جنابت د روژې سره منافي نه دی

| ﴿۳﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُدْرِكُهُ الْفَجْرُ فِي رَمَضَانَ |
| --- |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي چې (کله به داسې کېدل چې) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به سحر کړو په روژه کې په حالت |
| وَ هُوَ جُنُبٌ مِنْ غَيْرِ حُلُمٍ فَيَغْتَسِلُ |
| د جنابت کې او دا جنابت به د احتلام په وجه نه وو ځکه (په داسې صورت کې) به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ غسل کولو |
| وَ يَصُومُ.[1] |
| او روژه به یې نیوله. |

**توضیح**: د دې حدیث مطلب دا دی چې څېني ځل به نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جماع په وجه جنابت کې ؤو او صبح صادق به شو. نو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به روژه هم وه او جنابت کې به هم ؤو. د دې حدیث نه خو یوه خبره دا معلومه شوه چې جنابت که د احتلام په وجه وي یا د جماع په وجه وي خو د روژې منافي نه دي. دویمه خبره دا معلومه شوه چې د جنابت په حالت کې د روژې نیت کول جائز دی. ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د صبح صادق نه مخکې د روژې په نیت کې د جنابت به حالت کې او ده کیدلو. یوه خبره دا هم معلومه شوه چې د جنابت په حالت کې پشمني کول جائز دی. یوه خبره دا هم معلومه شوه چې که چاته په ورځ کې احتلام وشو نو د جنابت به وجه به روژې ته نقصان نه رسېږي. (المرقات ۴/۴۹۳).

## د روژې په حالت کې ښکر لګول جائز دی

| ﴿٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ وَ هُوَ مُحْرِمٌ |
| --- |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احرام په حالت کې ښکر ولګولو او دغه شان نبي کریم |
| وَ احْتَجَمَ وَ هُوَ صَائِمٌ.[2] |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روژې په حالت کې (هم) ښکر لګولی دی. |

**توضیح**: **احتجام** او حجامه ښکر لګولو ته وایي. د دې طریقه دا وي چې اول مریض په ستن یا بل شي باندې زخمي کړی شي. بیا په هغې باندې د غوا ښکر کېږدي او د ښکر څوکې والا ارخ کې ورو کی شان

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵۳/٤، رقم الحديث ۱۹۳۰، ومسلم في صحيحه ۷۸۰/۲ رقم الحديث ۷٦ ۱۱۰۹، وأبوداود في السنن ۷۸۱/۲، رقم الحديث ۲۳۸۸، والترمذي في السنن ۱٤۹/۳ رقم الحديث ۷۷۹

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷٤/٤، رقم الحديث ۱۹۳۸، وأبوداود في السنن ۷۷۳/۲، رقم الحديث: ۲۳۷۳، والترمذي في السنن ۱٤٦/۳ رقم الحديث: ۷۷۵، وابن ماجه ۵۳۸/۱ رقم الحديث ۱٦۸۲

سوری وکړی شي. دغه سوري باندې خله کیخودلی شي او د مریض د بدن نه په زوره ساه اخستلو سره وینه رابښکل کېږی. دې کې مریض ته تکلیف نه وي. دا عمل د ډیرو مرضونو لپاره ګټور دی. بلکه پریشر لپاره په خاصه توګه ګټور دی. البته سړی هر کال د دې عادي شي. جمهور ائمه وايي چې د روژه دار لپاره د خکر لګول بغیر د کراهت نه جائز دی. مریض لپاره هم جائز دی او د معالج لپاره هم جائز دی. امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د مریض او د ډاکټر دواړو روژه ماتېږي. قضا یې لازمه ده او کفاره یې نشته دی. زیر بحث حدیث د جمهورو دلیل دی. د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ دلیل حضرت شداد بن اوس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راتلونکی حدیث نمبر ۱۴ دی. هلته به د دې جواب کېږي. (المرقات: ۴/۴۹۴).

## په ویره باندې خوراک څښاک کولو باندې روژه نه ماتېږي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ نَسِيَ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "کوم کس چې په هیرې سره څه وخوري |
| وَ هُوَ صَائِمٌ فَأَكَلَ أَوْ شَرِبَ فَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ فَإِنَّمَا أَطْعَمَهُ اللهُ وَ سَقَاهُ.[1] |
| او دا روژه دار وي نو ده ته په کار ده چې هغه خپله روژه پوره کړي ځکه هغه خوراک څښاک دا الله د طرف ه دی |

**توضیح: من نسی:** یعنې په هیره باندې روژه دار څه وخوړل نو د هغې روژه نه ماتېږي. البته د هغې نه وروسته خوراک منع دی. دغه شان په هیره جماع کول معاف ده. د جمهور ائمو همدغه مسلک دی. البته امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کوم سړي په هیره باندې څه وخوړل یا به وڅکل نو د هغه روژه ماتېږي او قضا لازم ده. کفاره پرې نشته دی. هغه روژه مونځ باندې قیاس کوي. جمهور ائمه وايي چې دا قیاس مع الفاروق دی ځکه د مونځ حالت حالت مذکره دی او د روژې حالت داسې نه دی. (المرقات ۴/۴۹۵).

## د روژې د کفارې مسئله

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست وُو ناڅاپه یو سړی چې نوم یې سلمه |
| فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ هَلَكْتُ . |
| بن صخر الانصاري ابسیاضي) وُ راغلو او وې ویل: یا رسول الله! (دیو ګناه کیدو دوجې نه) زه تباه شوم. |

---

(۱) أخرجه البخاري ۱۵۵/٤، رقم الحديث ۱۹۳۳، ومسلم في صحيحه ۸۰۹/۲ رقم الحديث :۱۷۱-۱۱۵۵، وأبوداود في السنن ۷۸۳/۲، رقم الحديث: ۲۳۹۰، والترمذي في السنن ۱۰۲/۳ رقم الحديث:۷۲٤، وابن ماجه ۵۳٤/۱ رقم الحديث :۱٦۷۱، وأحمد في المسند ۲٤۱/۲.

قَالَ : مَا لَكَ ؟ قَالَ : وَقَعْتُ عَلَى امْرَأَتِي وَ أَنَا صَائِمٌ.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: په تا څه وشو ؟ هغه وويل: ما د روژې په حالت کې د خپلې ښځې سره جماع وکړه

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : هَلْ تَجِدُ رَقَبَةً تُعْتِقُهَا ؟ قَالَ : لَا

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: آيا ستا سره غلام شته چې هغه ته (د کفارې په توګه) ادا کړې. هغه وويل: نه! نبي

قَالَ : فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ؟ قَالَ :

عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: آيا په تا کې دومره طاقت شته چې دوه مياشتې پرلپسې روژې نيولی شې؟ هغه وويل

لَا قَالَ : هَلْ تَجِدُ إِطْعَامَ سِتِّينَ مِسْكِينًا ؟ قَالَ : لَا

چې نه! نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: آيا شپيته ۶۰ مسکينانو ته خوراک ورکولی شې؟ هغې وويل چې نه. نبي

قَالَ : اجْلِسْ وَ مَكَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وويل چې ښه! ته کېنه او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په انتظار کې شو چې يو کس څه راوړي چې هغه ته

فَبَيْنَا نَحْنُ عَلَى ذٰلِكَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

يې ورکړي چې د کفارې په توګه يې صدقه کړي. نو مونږ همدغه شان کيناستلو تردې چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ وَ الْعَرَقُ الْمِكْتَلُ الضَّخْمُ

په خدمت کې يو عرق راغلو چې هغې کې کهجورې وې او عرق يوې غټې بوجۍ ته وايي (چې د کهجورې

د پڼې نه به جوړيدل او شپتو نه تر اتيا سيره پورې کهجورې به په کې راتللې) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د

قَالَ : أَيْنَ السَّائِلُ ؟ قَالَ : أَنَا . قَالَ :

دې ليدو سره) وفرمايل چې سائل چرته دی؟ هغه وويل چې همدلته حاضر يم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې

خُذْ هٰذَا فَتَصَدَّقْ بِهِ . فَقَالَ الرَّجُلُ :

دا کهجورې ونيسه او د الله په لاره کې (محتاجو باندې) تقسيم کړه. هغه کس وويل چې يا رسول الله! آيا دا

أَعَلَى أَفْقَرَ مِنِّي يَا رَسُولَ اللهِ ؟

زه يو داسې کس ته ورکړم چې هغه زمانه هم ډير محتاجه وي؟ (يعنې زه خپله د ټولو نه محتاجه يم نو رو خلکو

فَوَ اللهِ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا يُرِيدُ الْحَرَّتَيْنِ أَهْلُ بَيْتٍ أَفْقَرُ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي.

ته يې څنګه ورکړو) په الله قسم! د مدينې په دواړه غاړو کې داسې کورنشته چې زما د کورنه ډير محتاج وي

او د مديني د دواړه غاړو نه دواړه غرونه ؤو (چې د مديني طرف ته د شرق او غرب طرف کې پراته دي).

فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ أَنْيَابُهُ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (د ده په خبرو اوريدو سره) په خندا شو تردي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ژامو غاښونه ښکاره شو

ثُمَّ قَالَ : أَطْعِمْهُ أَهْلَكَ. [1]

بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ده ته وفرمايل چې ښا دا کهجوري خپل اهل او عيال باندې وخوره.

**توضيح : جاءه الرجل**: د دې صحابي نوم سلمه بن صخر بياضی انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی. دا د ښځو باره کې **مغلوب الحال** ؤو. د دې حديث نه بغير بل روايت کې دا تفصيل دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې نه وپوښتل چې دا جماع ولې وکړه؟ هغې جواب ورکړو چې کله ما د خپلې ښځې پازيب وليدلو نو صبر مې ونه کړی شو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې څڼ (غلام) ازاد کړه. نو هغې خپل څټ طرف ته اشاره وکړه چې په خدای قسم زه د هيڅ څڼ مالک نه يم. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دوه مياشتي روژي ونيسه. هغې ووېل چې دا اوس ګير شوی يم نو د همدغه روژو په وجه ګير شوی يم يعنې د يو مياشتي صبر او توان مې نشته نو د دوه مايشتي صبر به څنګه وکړم. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا غله د مديني په فقيرانو کې تقسيم کړه. دا ستا کفاره ده. هغې ووېل چې د مديني په اطرافو کې زما نه به بل څوک ډير فقير کيدلی شي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خنده شو او ورته وې ويل چې خپل اهل او عيال باندې دا وخوره. اوس دلته دوه لويې اختلافي مسئلې دي. (المرقات :۴/۴۹۶).

**اولنۍ اختلافي مسئله** : دلته اولنۍ مسئله دا ده چې آيا کفاره د جماع په وجه لازميږي او که په خوراک او څښاک په وجه هم لازميږي. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کفاره فقط د جماع په وجه واجب کيږي. (المرقات :۴/۴۹۶). د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد د رمضان په روژو کې د جماع په شان د خوراک او څښاک په وجه هم کفاره واجب کيږي.

**دلائل** : شوافعو او حنابلو د بحث د لاندې حديث نه استدلال کړی چې د جماع د کفارې ذکر په کې دی احنافو او مالکيو د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د روايت نه استدلال کړی چې امام نسائي په صحيح سند سره داسې نقل کړی دی. **"عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا انه عليه السلام سأله رجل فقال صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افطرت فی رمضان فامره بالتصدق بالعروق ولم يساله بما ذا افطر". (رواه النسائی بسند صحيح)**

---

(۱) أخرجه البخاري ۱۶۳/۴، رقم الحديث ۱۹۳۶، ومسلم في صحيحه ۷۸۱/۲ رقم الحديث :۸۱-۱۱۱۱، وأبوداود في السنن ۷۸۳/۲، رقم الحديث: ۲۳۹۰، والترمذي في السنن ۱۰۲/۳ رقم الحديث ۷۲۴، وابن ماجه ۵۳۴/۱ رقم الحديث : ۱۶۷۱، وأحمد في المسند ۲۴۱/۲.

**جواب:** شوافعو او د حنابلو د لیل اولنی جواب دا دی چې په دې حدیث کې د جماع ذکر دی خو د اکل و شرب په وجه د کفاری هیڅ نفي نشته دی. دویم جواب دا دی چې جماع کې د وجوب کفاری په وجه او سبب و علت جماع نه ده بلکې افطار صوم (روژه ماتی) دی او افطار د اکل وشرب نه هم کېږي.

**دویمه اختلافي مسئله**: دي حدیث کې دویمه اختلافي مسئله دا ده چې آیا تنګدسته او فقیر سړي نه د فقر په وجه کفاره ساقط کیدلی شي یا نه. نو امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ‌اللهُ او څه نور علماؤ په نزد ساقط کېږي. خو د جمهورو په نزد نه ساقط کېږي. (المرقات: ۴/۴۹۹).

**دلائل**: امام احمدی رَحِمَهُ‌اللهُ د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی چې دلته د دې فقیر سړي نه کفاره ساقط شوه بلکې هغې خپله کفاره وخوړله. جمهور فقهاؤ د هغه ټولو نصوصو نه استدلال کړی دی چې هغې کې د تنګدستی او د مالداری هیڅ فرق نشته دی.

**جواب**: د بحث د لاندې حدیث یو جواب دا دی چې دا د هغه کس خصوصیت ؤو. لکه څنګه چې دا هم د هغه کس خصوصیت ؤو چې د هغې نه د کفارې مطالبه وشوه. حال دا چې هغې باندې کفاره صوم یعنې د دوه میاشتو روژې لازم وي. دویم جواب دا دی چې دا سړی غریب ؤو. هغه وخت کې د هغې سره د کفارې لپاره هیڅ نه ؤو او خپله محتاجه ؤو. نو د هغې په ذمه کې کفاره بالدین په صورت کې مؤخر کړی شوه چې وروسته یې ادا کړه. دریم جواب دا دی چې دا حدیث د اسلام د ابتدائی حالت باندې محمول دی. وروسته دا حکم منسوخ شو او کفاره مقرره شوه. (المرقات: ۴/۴۹۹).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### د بل په لاړو بیریدلو سره روژه ماتیږي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ عَائِشَةَ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : كَانَ يُقَبِّلُهَا وَ هُوَ صَائِمٌ |
| د عائشې رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهَا باره کې منقول دې چې نبي کریم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ به د روژې په حالت کې دا ښکلوله او د |
| وَ يَمَصُّ لِسَانَهَا . [1] |
| هغې ژبه به یې په خله کې نیوله. |

**توضیح**: **یمص لسانها**: مس لسان نه دا قطعًا نه لازم کېږي چې د هغې لاړي یې هم تیري کړي وي بلکې فقط د ژبې څټلو سره یا خو بیخي لاړي نه وي لګیدلي او که لاړي لګیدلي هم وي نو د هغې د خلې نه باهر ګوزاري کړي. دا توجیه ځکه ضروري ده چې د ټولو فقهاؤ په دې باندې اتفاق دی چې د بل لاړي

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷۸۰/۲، رقم الحديث ۲۳۸۶ ،وأحمد في المسند ۶ ۱۲۳

تيرولو سره روژه ماتېږي. دا حديث ضعيف هم دی. (المرقات: ۴/۵۰۱).

## ځوان دې د روژې په حالت کې مباشرت نه کوي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ إِنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُبَاشَرَةِ لِلصَّائِمِ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې يو کس د نبي کريم صلی الله عليه وسلم تپوس وکړو د مباشرت په باره کې د روژې |
| فَرَخَّصَ لَهُ. |
| په حالت کې (چې آيا زه خپله ښځه د خپل بدن سره را نزدې کولی شم يا نه؟) نبي عليه السلام هغه ته اجازت ورکړو |
| وَ أَتَاهُ آخَرُ فَسَأَلَهُ |
| د هغې نه وروسته يو بل کس د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او د مباشرت باره کې وپوښتل |
| فَنَهَاهُ فَإِذَا الَّذِي رَخَّصَ لَهُ شَيْخٌ وَ إِذَا الَّذِي |
| نو نبي عليه السلام هغه منع کړو کوم کس ته يې چې د بوس او کنار اجازت ورکړی ؤ هغه بوډا ؤ او کوم يې چې |
| نَهَاهُ شَابٌّ. [۲] |
| منع کړی ؤ هغه ځوان ؤ. |

**توضيح**: ځوان يې ځکه منع کړو چې هغه خپل جذبات نشو قابو کولی. داسې نه چې روژه فاسده کړي او د بوډا جذبات ډېر نه وي نو ځکه يې هغه ته د مباشرت اجازت ورکړو. ځوان لپاره دا ممانعت د ځينو علماؤ په نزد د مکروه تحريمي په درجه کې دی او د ځينو علماؤ په نزد مکروه تنزيهي دی (المرقات ۴/۵۰۲).

بهرحال نن سبا بوډاګان د کمزورۍ په وجه هم خپل جنسي حرکت نه شي قابو کولی. ځکه د ځوان په شان خطر هغوی ته هم دی. لهذا دې شغل کې پرېوتل په کار نه دي. شريعت رمضان کې د تقبيل مباشرت ترغيب نه ورکوي بلکې شريعت د هغه مجبوره کس خبره کوي چې د داسې واقعې تيريدلو نه وروسته روژه خرابېږي او که نه؟ نو شارع وويل چې روژه نه خرابېږي.

## د روژې په حالت کې د قئ (اُلټو) مسئله

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې کوم کس باندې قئ غالبه شي (يعنې |

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۷۸۰/۲، رقم الحديث: ۲۳۸۶، وأحمد في المسند ۱۲۳/۶

| وَ هُوَ صَائِمٌ فَلَيْسَ عَلَيْهِ قَضَاءٌ |
|---|
| خپله قئ ورشي) او دده روژه وي نو په ده باندې قضا نشته دی او کوم کس چې (تالو کې ګوته او يا نور څه |
| وَ مَنِ اسْتَقَاءَ عَمْدًا فَلْيَقْضِ .(۱) وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : |
| ومندي) قصداً قئ وکړي نو هغه ته په کار دي چې د خپلې روژې قضا راوګرځوي امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ وايي |
| هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِيسَى بْنِ يُونُسَ وَ قَالَ مُحَمَّدٌ |
| چې مونږ دا حديث د عيسى بن يونس نه بغير په بل سند سره نه پيژنو . دغه شان محمد رَحِمَهُ اللهُ (يعني امام |
| يَعْنِي الْبُخَارِيَّ لَا أُرَاهُ مَحْفُوظًا . |
| بخاري رَحِمَهُ اللهُ) وايي چې زه دا حديث محفوظ نه ګڼم (يعني دا حديث منکر دی). |

**توضيح : من استقاء** : بي اختياره قئ کولو سره روژه نه فاسدېږي. هغه که په ډکه خله قئ وي يا لږ قئ وي خو په دې شرط چې روژه دار قئ بهر ګوزاري کړي. که بيرته يې تيري شوي نو روژه به ماتېږي. خو که قئ تالو پورې راغلي وي نو د باهر راتلو پر ځاې غير اختياري خلې ته لاړي نو بيا هم روژه نه ماتېږي.

**خلافاً لابي يوسف**. او که په قصد قئ وکړي او هغه په ډکه خله وي نو د ټولو ائمو په نزد روژه فاسدېږي او که په ډکه خله نه وي نو د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد بيا هم روژه فاسدېږي خو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد روژه نه ماتېږي او همدغه قول راجح دی. (المرقات ۴/۵۰۱).

بهرحال که د قئ مسئله کې که روژه ماته هم شي کفاره نشته دی فقط قضاء ده.

| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ مَعْدَانَ بْنِ طَلْحَةَ أَنَّ أَبَا الدَّرْدَاءِ حَدَّثَهُ أَنَّ |
|---|
| د معدان بن طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه نه دا حديث بيان کړی چې |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَاءَ فَأَفْطَرَ . قَالَ : |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د روژې حالت کې) قئ ورکړي او بيايې روژه ماته کړه معدن وايي چې د هغې نه |
| فَلَقِيتُ ثَوْبَانَ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ فَقُلْتُ : إِنَّ أَبَا الدَّرْدَاءِ |
| وروسته د دمشق جومات کې د ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملاؤ شو او هغه ته يې وويل چې ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۷۷۶/۲، رقم الحديث : ۲۳۸۰ ، والترمذي في السنن ۹۸/۳ رقم الحديث : ۷۲۰.

| |
|---|
| حَدَّثَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَاءَ فَأَفْطَرَ . قَالَ : |
| کړي حدیث ماته چې نبي کریم ﷺ قئ وکړو او بیا یې روژه ماته کړه ثوبان رضي الله عنه وویل چې |
| صَدَقَ وَ أَنَا صَبَبْتُ لَهُ وَضُوءَهُ .[1] |
| ابو درداء بالکل ریښتیا ویلي او دې وخت کې ما نبي کریم ﷺ ته داودس د اوبو انتظام کولو. |

**توضیح : قاء فأفطر** : یعنې نبي کریم ﷺ قئ وکړو او د هغې په ذریعې یې روژه ماته کړه. مطلب دا چې نبي کریم ﷺ د څه بیماری یا کمزوري یا د څه عذر په وجه نفل روژه په قئ کولو سره ماته کړه د نبي کریم ﷺ عادت دا نه ؤو. خو د مجبوری په وجه به داسې شوي وي. (المرقات ۴/۵۰۲).

**قال ثوبان** : یعنې ابو درداء چې کوم حدیث بیان کړی دا بالکل صحیح دی. ما د نبي کریم ﷺ د اودس اوبه د نبي کریم ﷺ په مبارک اندامونو باندې اړولې وې. د دینه معلومه شوه چې قئ **ناقض للوضوء** دی. او دا هم معلومه شوه چې اودس کې **استعانت من الغیر** تر یو حد پورې جائز دی. **کتاب الطهارة** کې تفصیل تیر شوی دی. (المرقات :۴/۵۰۲).

## د روژې په حالت کې مسواک وهل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ قَالَ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَا لَا أُحْصِي يَتَسَوَّكُ |
| عامر ابن ربیعه رضي الله عنه وایي چې ما نبي کریم علیه الصلاة والسلام ولیدو چې د شمار نه ډیر زیات مسواک یې |
| وَ هُوَ صَائِمٌ ".[1] |
| کولو او دا په حالت د روژه کې ؤ . |

**توضیح : یتسوك وهوا صائم** : د روژې حالت کې مسواک کولو باندې دا حدیث واضحه دلالت کوي. د امام مالک رحمه الله او د امام ابو حنیفه رحمه الله مسلک همدغه شان دی. هغوی وایي چې که مسواک لوند وي او وچ، که قبل الزوال وي یا بعد الزوال وي هر رنګه هر وخت جائز دی. حضرت امام شافعي رحمه الله وایي چې د روژه دار لپاره د لمر د زوال نه وروسته مسواک مکروه دی. ځکه مسواک سره د روژه دار د

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۷۷، رقم الحديث . ۲۳۸۱ ، والترمذي في السنن ۱/۱۴۲ رقم الحديث :۸۷.

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۷۶۸، رقم الحديث : ۲۳۶۴ ، والترمذي في السنن ۳/۱۰۴ رقم الحديث :۷۲۵ ، وأحمد في المسند ۳/۴۴۵.

خلي خوشبو ختمېږي. احناف وايي چې د غه خوشبو په خله او غاښونو کې نه وي بلکې د تشې خيټې د تاړ په وجه راخيږي په مسواک کولو او نه کولو په دې کې هيڅ فرق نه راځي (المرقات ۴/۵۰۳)

## په روژه کې رانجه کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿١٢﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " اشتكيت عَيْنِي |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو كس د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو او وي ويل چې زما سترګې خوږېږي. آيا |
| أَفَأَكْتَحِلُ وَأَنَا صَائِمٌ ؟ قَالَ: نَعَمْ ." (1) |
| زه د روژې حالت کې رانجه مګلی شم؟ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل آو. |

**توضيح : فأكتحل:** يعني زما سترګې خوږېږي آيا زه د روژې حالت کې رانجه مږلی شم؟

**قال نعم:** يعني آو راجه مږلی شي. (المرقات :۴/۵۰۵).

دلته اصل مسئله دا ده چې د روژې حالت کې د بدن نه بهر چې کوم شي دننه رسېږي. نو د هغې لپاره دوه لارې دي. يوه لاره منافذ او د سورې ده لکه پوزه، غوږ او مقعد دی. دويمه لاره د بدن مسامات دي. اوس چې کوم شی د منافذ په لاره دننه لاړو نو هغې سره روژه ماتېږي. خو کوم شی چې په مسامات په لاره دننه لاړو نو هغې سره روژه نه ماتېږي. لکه پچکاري ده يا رانجه دي يا د يخو اوبو يخوالی دی. دا ټول شيان د مسامات په ذريعه دننه ځي. چې روژه پرې نه ماتېږي. نو علماء ليکي چې سترګو کې رانجه اګر که تالو کې هم د دې اثر محسوسېږي. بيا پرې هم روژه نه ماتېږي. ځکه دا د مسامات په ذريعې دننه تلې دی. بهرحال د جمهور فقهاؤ همدغه مسلک دی. خو امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او اسحاق بن راهويه رَحِمَهُ اللهُ او سفيان ثوری رَحِمَهُ اللهُ په نزد راجه مږل مکروه دي. ځينې ډاکټران وايي چې د سترګو نه د خيټې طرف ته منفذ او سوری دی نو ځکه تالو کې اثر محسوسېږي که منفذ دی نو بيا مسئله خطري ده. (المرقات ۴/۵۰۵).

| |
|---|
| ﴿١٣﴾ وَعَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعَرْجِ |
| د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو صحابي وايي چې ما نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدو په مقام عرج کې چې را |
| يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ الْمَاءَ وَ هُوَ صَائِمٌ مِنَ الْعَطَشِ أَوْ مِنَ الْحَرِّ. (2) |
| اچولې يې په سر باندې اوبه د روژې په حالت کې د تندې ماتولو لپاره او يا د ګرمۍ د ختمولو لپاره. |

(1) أخرجه أبوداود في السنن ٧٧٦/٢، رقم الحديث ٢٣٧٨، والترمذي في السنن ١٠٥/٣ رقم الحديث :٧٢٦.

(2) أخرجه أبوداود في السنن ٦٩/٢، رقم الحديث :٢٣٦٥، وأحمد في المسند ٤٧٥/٣

## د روژې په حالت کې د ښکر لګولو حکم

﴿۱۴﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى رَجُلًا بِالْبَقِيعِ وَهُوَ يَحْتَجِمُ

شداد بن اوس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو يو سړي په جنت البقيع کې چې ښکريې لګولو

وَ هُوَ آخِذٌ بِيَدِي لِثَمَانِ عَشْرَةَ خَلَتْ مِنْ رَمَضَانَ

دې وخت کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما لاس نيولې ؤ د رمضان په ۱۸ تاريخ باندې نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام

فَقَالَ: أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَ الْمَحْجُومُ.[1]

وفرمايل چې خکر لګونوکی او خکر لګولو والا خپله روژه ماته کړه.

قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ: وَتَأَوَّلَهُ بَعْضُ مَنْ رَخَّصَ فِي الْحِجَامَةِ:

امام محی السنة رَحِمَهُ اللهُ وايي چې بعضې علماء تاويل کوي د روژې حالت کې د خکر لګولو اجازت ورکوي

يعنې دا چې (دې ارشاد کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مراد دا دی چې) خکر لګولو والا خو د ضعف په

أَيْ تَعَرَّضَا لِلْإِفْطَارِ: الْمَحْجُومُ لِلضَّعْفِ وَ الْحَاجِمُ لِأَنَّهُ

وجه د روژې ماتولو ته نزدې شي او خکر لګونکی د دې په سبب روژه ماتې ته نزدې شي چې کيدی شي

لَا يَأْمَنُ مِنْ أَنْ يَصِلَ شَيْءٌ إِلَى جَوْفِهِ بِمَصِّ الْمَلَازِمِ.

چې د خکر لګولو عمل سره (د ويني) څه برخه د هغې خيټې ته ورسيږي.

**توضيح: افطر الحاجم**: يعنې خکر ويستلو او لګونکي دواړو خپله رژوه ماته کړ د دې حديث د دينه مخکني باب کې د حديث نمبر ۴ سره په ظاهره واضحه تعارض دی. هغې کې صفا الفاظ ذکر دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روژې حالت کې خکر ويستلې ؤ. نو د جمهور فقهاؤ په دې اتفاق دی چې ښکر ويستلو سره روژه نه ماتيږي. البته د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ مسلک دا دی چې خکر لګولو عمل سره روژه ماتيږي. د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ دليل زير بحث حديث دی. او د جمهورو دليل دې باب کې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث نمبر ۴ دی چې کوم بخاری نقل کړی او وروسته راتلونکی حديث نمبر ۱۷ هم د جمهورو دليل دی. د دواړو مضمون دا دی چې خکر لګولو سره روژه نه ماتيږي. (المرقات ۴/۵۰۷).

**جواب**: زير بحث حديث د جمهورو په ډيرو وجوهاتو باندې جواب کړی دی:

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۲۸۱، رقم الحديث: ۲۳۷۱، سنن الدارمي ۲/۲۵، رقم الحديث: ۱۷۳۰.

**اولني جواب**: نو صاحب مصابيح محي السنة رَحِمَهُ اللَّهُ داسي کړې دی چي اصل کې د افطر مطلب دا دی چې دې دواړو خپله روژه ماتولو ته وړاندې کړه. خکه ويستونکی خو د روژي ماتولو ته نزدې شو چې د ويني تويدلو سره به کمزوری شي بيا به روژه ماته کړي. او خکه لګولو والا د روژي ماتولو ته داسي نزدې شو چې کيدلی شي چې په دې عمل کې د ويني يو څاڅکی د هغې خلې کې لاړ شي.

**دويم جواب**: دا دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا کلام هغه کړی دی کله چې روژه ماتي وخت تير شوی ؤو. نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د دواړو روژه ماته شوه.

**دريم جواب**: دا دی چې د روژي حالت کې دا عمل مفسد صوم خو نه دی البته مکروه دی. نو د بحث د لاندې حديث تعلق د کراهت سره دی.

**څلورم جواب**: دا دی چې د لته د افطر نه مراد سقوط اجر دی چې هغوی ته به د روژي ثواب نه ملاويږي ځکه د خکر کولو وخت کې د دواړو د چا غيبت کولو.

**پنځم جواب**: دا دی چې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث باندې دا حديث منسوخ شو. نو په ابتداء کې همدغه شان حکم ؤو. بيا منسوخ شو. (المرقات: ۴/۵۰۷).

## بې عذره د رمضان روژه ماتول لوي جرم دی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَفْطَرَ يَوْمًا مِنْ |
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې يوه ورځ روژه ماته کړه د |
| رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ وَلَا مَرَضٍ لَمْ يَقْضِ عَنْهُ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ |
| رمضان په غير د څه رخصت او ناروغی نه نو د ټول عمر روژي هم د دې بدل نه شي کيدی اګر که هغه ټول |
| وَ إِنْ صَامَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ قَالَ |
| عمر روژي ونيسي. امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ دا روايت د بخاري په ترجمة الباب کې نقل کړی. او ويلي دي |
| التِّرْمِذِيُّ: سَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَعْنِي الْبُخَارِيَّ يَقُول أَبُو |
| امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ چې ما د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ دا وريدلي دې چې ما (د دې روايت يو راوي) ابو |
| المطوس الرَّاوِي لَا أَعْرِفُ لَهُ غَيْرَ هٰذَا الْحَدِيثِ.[۱] |
| المطوس د دې حديث نه بغير د بل هيڅ روايت راوي نه دی موندلی. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱٦٠/٤ ،و أبوداود في السنن ۷۸۸/۲، رقم الحديث : ۲۳۹٦ ، والترمذي في السنن ۱۰۱/۳ رقم الحديث ۷۲۳ ،وأحمد في المسند ۳۸٦/۲.

**توضیح**: **وان صامه**: یعني د رمضان روژه بغیر د عذر نه ماته کړه او بیا یې د کفارې په توګه ټول ژوند روژې نیسي. بیا به هم دغه کس د رمضان د روژې ثواب حاصل نکړی شي. دې حدیث د رمضان د روژو عظمت بیان کړی شوی دی. او دا ظاهره خبره ده چې د رمضان په وختونو کې د فرض روژې نیولو ثواب په غیر رمضان کې په نفل روژو سره څنګه حاصلیدلی شي.

**وان صامه**: دا جمله د ماقبل لپاره تاکید ده. تر کوم ځایې پورې د شرعي حق مسئله ده نو علماء لیکي چې که یو کس قصداً د رمضان روژه ماته کړه نو د هغې به ذمه کفاره راغله. هغې دوه میاشتې روژې ونیولې او کفاره یې پوره کړه نو هغه د ذمه اورۍ نه خلاص شو. یا روژه ماتولو باندې پرې قضا راغله. او هغې قضا روژه ونیوله. نو دا کس د رمضان د روژې نه خلاص شو. پاتې د ثواب اصل موندل نو د رمضان وخت او دا برکات خو نه شي حاصلیدی. (المرقات: ۴/۵۰۹).

## بې روحه او بې فایدې روژه

| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : كَمْ مِنْ صَائِمٍ |
|---|
| ابوهریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "ډیر روژه داران داسې دې چې هغوی ته |
| لَيْسَ لَهُ مِنْ صِيَامِهِ إِلَّا الظَّمَأُ وَ كَمْ مِنْ قَائِمٍ |
| په روژو باندې بغیر د تندې نه بل هیڅ نه حاصلېږي. او ډیر په شپه کې عبادت کې مشغولیدونکې داسې |
| لَيْسَ لَهُ من قِيَامه إِلَّا السهر . [۲] وذكر حديث لَقيط ابن صبِرة في باب سنن الوضوء. |
| دې چې هغوی ته د هغوی د عبادت نه بغیر د بې خوبۍ نه بل هیڅ نه حاصلېږي. |

**توضیح**: مطلب دا دی چې یو کس روژه ونیسي خو نه د هغې نیت صحیح وي، نه یې اخلاص، نه یې دروغ پریخودل، نه یې بهتان او د دروغو ګواهي نه منع شو، نه د هغې باطن کې روژې سره انقلاب راغلو او نه د هغې په ظاهري اندامونو کې انقلاب راغلو. نو داسې ته د ولږې او تندې نه بغیر بل هیڅ حاصل نه شو. که د فرض روژې د ذمه وارۍ نه دا کس د عهد نه بري شو خو د روژې د روح نه دا کس محرومه شو. نو هغې بغیر د روح نه او بغیر د فایدې نه روژه ونیوله. چې هغې ته ترینه هیڅ حاصل نشول. دغه شان که یو کس د شپې د ریاکارۍ عبادت کوي او د ځان خودنې لپاره تهجد کوي. نو هغې ته بغیر د بې خوبۍ نه بل هیڅ ملاؤ نه شو. (المرقات: ۴/۵۱۰).

---

(۲) أخرجه ابن ماجه ۱/۵۳۹ رقم الحديث: ۱۶۹۰، وأحمد في المسند ۲/۳۷۳.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په احتلام سره روژه نه ماتیږي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَلَاثٌ لَا يُفْطِرْنَ الصَّائِمَ |
| ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل دریږ شیان د روژه دار روژه نشي ماتولی. |
| الْحِجَامَةُ وَ الْقَيْءُ وَ الِاحْتِلَامُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ |
| خکر، قئ (چې خپله راشي) او احتلام. امام ترمذي دا روایت نقل کړی او ویلي یې دي چې دا حدیث |
| غَيْرُ مَحْفُوظٍ وَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ زيد الرَّاوِي يضعف فِي الْحَدِيثِ.[1] |
| محفوظ نه دی. د دې یو رواي عبدالرحمن بن زید روایت د حدیثونو په سلسله کې ضعیف شمارل کیږي |
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ قَالَ: سُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ: كُنْتُمْ تَكْرَهُونَ الْحِجَامَةَ |
| ثابت بناني رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وشوه چې تاسو به د بدګڼل ښکر لګول |
| لِلصَّائِمِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: لَا إِلَّا مِنْ أَجْلِ الضَّعْفِ.[2] |
| په حالت د روژه کې په زمانه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې ده وویل چې نه. بغیر د ویرې د صورت نه. |
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَحْتَجِمُ وَ هُوَ صَائِمٌ |
| امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د تعلیق په طریقه نقل کوي چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (اول خو) د روژې حالت کې ښکر لګولو |
| ثُمَّ تَرَكَهُ فَكَانَ يَحْتَجِمُ بِاللَّيْلِ[3] |
| لګولو خو وروسته یې بیا پریخودو البته ما به په شپه کې خکر لګولو. |

## دغړغړې لوندوالی او د دیار لرګي چوپولو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ: إِنْ مَضْمَضَ ثُمَّ أَفْرَغَ مَا فِي فِيهِ مِنَ الْمَاءِ |
| عطاء رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) وايي چې که روژه دار غړغړه وکړي او بیا او به د خلې نه (بالکل) ګوازري کړي |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۹۷/۳ رقم الحديث: ۷۱۹.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷٤/٤ رقم الحديث: ۱۹٤۰.

(۳) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۳/٤.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | يَضِيْرُهُ | أَنْ | يَزْدَرِدَ | رِيقَهُ | وَمَا | بَقِيَ | فِي فِيهِ |
| نودده روژي ته به په دې خبره نقصان نه رسيږي چې هغه خپلې لاړې او كوم شى چې د خلې دننه دى تيرشي | | | | | | | |
| وَلَا | يَمْضَغُ | الْعِلْكَ | فَإِنِ | ازْدَرَدَ | رِيقَ | الْعِلْكِ | لَا أَقُولُ : |
| او روژه دار دې ديار نه ژووى او كه روژه دار د ديار لاړې تيرې كړى نو زه دا نه ويم چې د هغې روژه | | | | | | | |
| إِنَّهُ | يُفْطِرُ | وَلَكِنْ | يُنْهَى | عَنْهُ . | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ | فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ.[1] |
| ماته شوه خو د هغې نه منع كول كيږي (دا روايت د بخاري په ترجمة الباب كې نقل كړى شوى دى). | | | | | | | |

**توضيح** : **ان يزدرد ريقه** : لاړې تيرول او د اودس نه وروسته د اوبو لوند والى تيرولو ته ازدارد وايي. مطلب دا دى چې يو كس د اودس لپاره غړ غړه كوي او اوبه گوزاروي. دومره كافي ده. د دې نه وروسته چې خله كې كوم لوندوالى او يخوالى محسوسيږي د هغې تيرولو سره روژي ته نقصان نه رسيږي. ځكه دغه شان مسلسل توكلو سره سړى د وهم خكار شي. او خله يې اوچه شي. لكه څنګه چې ځينې شكي مزاج خلك داسې كوي. (المرقات : ۴/۵۱۳).

**العلك**: غرونو كې يو بوټى وي چې ځينو علاقو كې ورته د ديار بوټى وايي. هغې د ګوند پشان يو شى اينختى وي لكه څنګه چې نورو بوټو كې چيړ وي. داسې يو ګوند دى. چې مصطګى رومې هم ورته وايي. دا خلې كې ژوول كيږي. دې سره غابونه هم پاكيږي. او د غابونو درد او د نورې ډيرې مريضتيا ګانې ختموي. دا ولړه راولې د پنساريانو سره دا شى ملاويږي. دا اول كې ژوول كيږي نو خله كې ذره ذره شي. خو وروسته د ژاولې په شان واينخلې او په راښكلو سره د دې نه اوږد تار هم راوځي. دا دوه، دوه نيم ساعته وروسته خراب شي او ختم شي. دا خلك په غرونو كې ژوى راژوى. خله كې د دې لاړې جوړيږي. چې معمولې شان خوشبوې په كې وي. دلته حديث كې د همدغې ذكر دى. چې د دې نه ګوند جوړ شي نو د دې ژوول روژه كې مناسب نه دې خو كه چا وژوول نو يو ه ذره يې خيټې ته دننه لاړله نو روژه پرې نه ماتيږي. خو احتياط همدې كې دى چې د دې نه منع وشي. پښتو كې دې شي ته "لاک" وايي. (المرقات : ۴/۵۱۳).



---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵۹/٤.

# باب صوم المسافر

## د مسافر روژه

قال الله تعالی: ﴿فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾. (سورة بقرة آيت: ۱۸۴).

وقال الله تعالی: ﴿وَأَن تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ﴾. (سورة بقرة آيت: ۱۸۴).

دې باب کې ټول د لسو حديثونو ذکر دي. دې ټولو حديثونو کې د مسافر د روژه باره کې مسائل او احکامات ذکر دي چې د سفر باره کې روژه نيول جائز دي يا نه؟ که جائز ده نو نيول يې افضل دي يا نه؟ خلاصه دا چې که د مسافر سره په سفر کې سهولت او راحت وي او روژه نيول غواړي نو د رمضان د ختونو د برکتونو په وجه روژه نيول افضل دي او که سفر کې ډير مشقت دی بيا هم مسافر روژه نيسي او روژه ماته جائز نه ګڼي. نو دا کس ګناهګار دی د سفر نه مراد شرعي سفر دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### په سفر کې د روژې نه نيولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : إِنَّ حَمْزَةَ بْنَ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيَّ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې حمزه بن عمرو اسلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه چې آيا |
| أَصُومُ فِي السَّفَرِ |
| زه د سفر حالت کې روژه ونيسم؟(يعنې که رمضان کې سفر کوم نو روژه ونيسم يا نه، ددې باره کې څه حکم |
| وَ كَانَ كَثِيرَ الصِّيَامِ . فَقَالَ : إِنْ شِئْتَ |
| دی؟) او حمزه به ډيرې روژې نيولې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا ستا خوښه ده که خوښه دې وي |
| فَصُمْ وَ إِنْ شِئْتَ فَأَفْطِرْ.(۱) |
| وي نيسه او که خوښه دې نه وي نو مه نيسه. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۹/٤، رقم الحديث ۱۹٤۳، ومسلم في صحيحه ۷۸۹/۲ رقم الحديث :۱۰۳-۱۱۲۱، وأبوداود في السنن ۷۹۳/۲، رقم الحديث: ۲٤۰۲، والترمذي في السنن ۹۱/۳ رقم الحديث ۷۱۱.

**توضیح**: **ان شئت فصم**: د علماؤ په دې اتفاق دی چې د سفر حالت کې روژه نیول او نه نیول دواړه جائز دي. خو که سفر د راحت او ارام سره وي یا د مشقت او تکلیف سره وي.
البته که سهولت وي نو روژه نیول افضل ده. خو په دې شرط چې نه نیول هم جائز ګڼي. د احنافو په نزد د حکم د هر قسم جائز سفر لپاره دی. که د جائز کارونو لپاره سفر وي یا د ناجائز کارونو لپاره وي. د دې سهولت تعلق فقط د سفر سره دی.
امام شافعي رَحِمَهُ‌اللّٰهُ وایي چې د دې سهولت تعلق فقط د سفر سره دی چې جائز سفر وي. ګناه والا سفر لپاره دا شرعي سهولت نه شي کیدلی. لهٰذا کوم مسافر چې غلا کولو لپاره ځي هغه به د دې سهولت نه محروم وي. (المرقات: ۴/۵۱۵).

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابو سعید خدری رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنْهُ وایي چې (یو ځل) مونږ د نبي کریم صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ سره د جهاد لپاره روان شو. نو |
| لِسِتَّ عَشْرَةَ مَضَتْ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ فَمِنَّا مَنْ صَامَ وَ مِنَّا مَنْ |
| د رمضان شپاړسم تاریخ ؤ مونږ کې ځینو کسانو (چې قوي ؤ) روژې ونیولې او څه کسان (چې ضعیف ؤو |
| أَفْطَرَ فَلَمْ يَعِبِ الصَّائِمُ عَلَى الْمُفْطِرِ |
| یا د نورو خدمتګاران ؤو) روژې ونه نیولې نو نه روژه دار روژه نه نیونکي معیوب ونه ګڼل (ځکه هغوی په |
| وَلَا الْمُفْطِرُ عَلَى الصَّائِمِ.[1] |
| رخصت عمل وکړو یعنې اجازت باندې یې عمل کړی وؤ) او نه روژه نه نیونکو روژه دار معیوبه ونه ګڼل |
| (ځکه هغوی په عزیمت باندې عمل کړی ؤ). |

## د مسافر لپاره د مشقت په حالت کې روژه نه نیول بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي سَفَرٍ |
| جابر رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنْهُ وایي چې (یو ځل) نبي کریم صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ د سفر حالت کې ؤ چې (یو ځای کې) نبي عَلَيْهِ‌السَّلَام |
| فَرَأَى زِحَامًا وَ رَجُلًا قَدْ ظُلِّلَ عَلَيْهِ |
| ګڼ خلک ولیدل او یو کس یې ولیدو چې هغې باندې (د تپ نه بچ کیدو لپاره) سیوری کړی شوی ؤ. نبي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۶/۴، رقم الحديث ۱۹۴۷، ومسلم في صحيحه ۷۸۶/۲ رقم الحديث :۹۳-۱۱۱۶، وأبوداود في السنن ۷۹۵/۲، رقم الحديث: ۲٤۰۵.

فَقَالَ : مَا هٰذَا ؟ قَالُوْا : صَائِمٌ .

عَلَیۡهِ السَّلَام تپوس وکړو چې دا څه دي؟ هغوی وویل چې دا کس روژه دار دی چې د ضعف په وجه راپریوتی دی

فَقَالَ : لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصَّوْمُ فِي السَّفَرِ . (۱)

نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د سفر حالت کې روژه نیول نیکي نه ده.

﴿٤﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي السَّفَرِ فَمِنَّا الصَّائِمُ

انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ وايي (يوځل) مونږ د نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ سره په سفر کې ؤ و مونږ کې د څه خلکو روژه وه

وَ مِنَّا الْمُفْطِرُ فَنَزَلْنَا مَنْزِلًا فِي يَوْمٍ حَارٍّ فَسَقَطَ

او د څه خلکو روژه نه وه. کله چې مونږ یو منزل ته ورسید و نو د ګرمۍ ورځ وه. نو راپریوتل هغه خلک چې

الصَّوَّامُونَ وَ قَامَ

روژه یې وه (یعنې د ضعف او قوت نه لرلو په وجه د هیڅ کار جوګه نه ؤ) او چُست و هغه خلک د کومو چې

الْمُفْطِرُوْنَ فَضَرَبُوا الْأَبْنِيَةَ وَ سَقَوُا الرِّكَابَ .

روژه نه وه (یعنې خپل کار کې مشغول شول) نو هغوی خیمې رایستلې او اوښانو ته یې اوبه ورکړې.

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : ذَهَبَ الْمُفْطِرُوْنَ الْيَوْمَ بِالْأَجْرِ . (۲)

نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ (د دې لیدلو باندې) وفرمایل چې د روژه نه نیونکو نن د ثواب میدان وګټلو.

## نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ د جهاد په سفر کې روژه ماته کړه

وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنَ الْمَدِيْنَةِ إِلَى مَكَّةَ

ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ وايي چې (د مکې د فتح په کال) نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ د مدینې نه مکې طرف ته روان شو

فَصَامَ حَتّٰى بَلَغَ عُسْفَانَ

نو نبي عَلَیۡهِ السَّلَام (هغه سفر کې) روژه ونیوله تر دې چې ورسید و عسفان ته (چې د مکې نه په دوه منزله فاصله

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۳/٤، رقم الحديث ۱۹۳٦، ومسلم في صحيحه ۷۸٦/۲ رقم الحديث :۹۲-۱۱۱٥، وأبوداود في السنن ۷۹٦/۲، رقم الحديث: ۲٤۰۷، وأحمد في المسند ۲۹۹/۳.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۸٤/٦، رقم الحديث ۲۸۹۰، ومسلم في صحيحه ۷۸۸/۲ رقم الحديث :۱۰۰-۱۱۱۹.

| |
|---|
| ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَرَفَعَهُ إِلَى يَدِهِ |
| کې ديوخاې نوم دی) نو اوبه يې راوغوښتې اول خو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه اوبه خپل لاس کې (اوچتې) واخستې |
| لِيَرَاهُ النَّاسُ فَأَفْطَرَ حَتَّى قَدِمَ مَكَّةَ وَ ذٰلِكَ |
| (چې خلک يې وګوري) او بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روژه ماته کړه او دغه شان نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مکې ته راغلو او دا سفر د |
| فِي رَمَضَانَ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ : قَدْ صَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| رمضان مياشت کې شوی ؤ نو ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به ويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (د سفر حالت کې) روژه ونيوله |
| وَ أَفْطَرَ . فَمَن شَاءَ صَامَ وَ مَنْ شَاءَ أَفْطَرَ .[1] |
| او نيولې يې هم نه ده لهذا که څوک غواړي (د سفر حالت کې) روژه ونيسي او که څوک غواړي نو نه دې نيسي |
| وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسلم عَن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ |
| او د مسلم يو بل روايت چې د جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه منقول دی. هغې کې دا الفاظ دي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| شَرِبَ بَعْدَ الْعَصْرِ. |
| د مازيګر نه وروسته اوبه وڅکلې. |

**توضيح**: دا د مکې د فتح سفر ؤ څکه نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نيولې شوې روژه ماته کړه چې امت ته د لاړېسودني اصول ورکړی شي څکه مخکې د دښمن سره مقابله وې او د مجاهد روژه وي نو په ښه توګه به بيا جنګ نه شي کولی څکه د روژې د ماتولو حکم وکړی شو. څکه که کفار غالبه شوی نو نه به روژه پاتې شي او نه به روژه دار پاتې شي.

خو دا خبره د يادولو وړ ده چې سفر کې چې کومه روژه ونيولی شي نو کور ته د رسيدلو نه وروسته د هغې قضا لازم ده. (المرقات ۴/۵۱۸).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۶/۴، رقم الحديث ۱۹۴۸، ومسلم في صحيحه ۷۸۵/۲ رقم الحديث :۸۸-۱۱۱۳، وأحمد في المسند ۲۹۱/۱.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د څه خلکو د پاره په سفر کې سهولت

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ الْكَعْبِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ وَضَعَ عَنِ |
| انس بن مالک کعبي رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل الله تعالى موقوف کړي د |
| الْمُسَافِرِ شَطْرَ الصَّلَاةِ وَ الصَّوْمَ عَنِ الْمُسَافِرِ وَ عَنِ الْمُرْضِعِ وَ الْحُبْلَى.[1] |
| مسافر لپاره نيم مونځ دغه شان مسافر، پئ ورکونکي ښځه او حاملې ښځې ته روژه معاف کړې شوي ده |

## که په سفر کې آسانتياوي نو روژه نيول افضل ده

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ كَانَ لَهُ حَمُولَةٌ |
| ام سلمه ابن محبق رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کوم کس سره چې داسې سپرلۍ وي |
| تَأْوِي إِلَى شِبَعٍ |
| چې هغې باندې منزل ته په آسانۍ او آرام سره رسي (يعنې سفرېې بامشقته نه وي بلکې د راحت والا وي) |
| فَلْيَصُمْ رَمَضَانَ من حَيْثُ أَدْرَكَهُ.[2] |
| نو هغه ته په کار ده چې چيرته پرې رمضان راشي نو روژه دې ونيسي. |

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د مشقت باوجود هم روژه نه ماتول ګناه ده

| |
|---|
| ﴿٨﴾ عَنْ جَابِرٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَامَ الْفَتْحِ إِلَى مَكَّةَ فِي رَمَضَانَ |
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د فتح مکې په کال د رمضان مياشت کې د مکې طرف ته لاړو |
| فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ كُرَاعَ الْغَمِيمِ |
| نو نبي عليه السلام روژه ونيوله تر دې چې کله ورسيد و کراع الغميم (چې د مکي او مديني مينځ کې د عسفان |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۹٤/۳، رقم الحديث ۲٤۰۸، والترمذي في السنن ۹٤/۳ رقم الحديث: ۷۱۵، والنسائي ۱۸۰/٤ رقم الحديث: ۲۲۷۵، وابن ماجه ۵۳۳/۱ رقم الحديث ۱٦٦۷، وأحمد في المسند ۲۹/۵

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۷۹۸/۲، رقم الحديث: ۲٤۱۰، وأحمد في المسند ۷/۵.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَصَامَ | النَّاسُ | ثُمَّ | دَعَا | بِقَدَحٍ | مِنْ | مَاءٍ |

سره نزدې ديوځاى نوم دى) دنورو خلكو هم روژه وه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پياله كې اوبه راوغوښتلي او هغه يې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرَفَعَهُ | حَتَّى | نَظَرَ | النَّاسُ | إِلَيْهِ | ثُمَّ | شَرِبَ |

(لاس كې دومره) اوچتې كړې چې خلكو وليدې بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه اوبه وڅكلي. د هغې نه وروسته

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقِيلَ | لَهُ | بَعْدَ | ذٰلِكَ | إِنَّ | بَعْضَ | النَّاسِ | قَدْ صَامَ. |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وويل شو چې څېنو خلكو روژه نيولې ده (يعنې هغوى د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په متابعت كې روژه

فَقَالَ : أُولَئِكَ الْعُصَاةُ أُولَئِكَ الْعُصَاةُ.[1]

ماته نه كړه) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل هغه خلك پاخه ګناهګاران دي، هغه خلك پاخه ګناهګاران دي.

**توضيح**: **العصاة**: هغه خلك يې ځكه ګناهګاران وبلل چې د هغوى عقيده دا نه وه چې سفر كې روژه ماتول جائز دي بلكې د هغوى عقيده دا وه چې په هر حالت كې روژه نيول دي.

نو په دغه شان كولو سره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سنتو خلاف ورزي وشوه. نو ځكه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناراضه شو او هغوى ته يې ګناهګار وويل. (المرقات: ۴/۵۲۲).

## په سفر كې روژه مه نيسئ

﴿۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَائِمُ رَمَضَانَ فِي

عبد الرحمن ابن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل روژه نيونكي د رمضان په

السَّفَرِ كَالْمُفْطِرِ فِي الْحَضَرِ.[2]

سفر كې په حضر كې د روژه نه نيونكي پشان دى.

## په سفر كې روژه نه نيول اولى ده

﴿۱۰﴾ وَعَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيِّ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أَجِدُ بِي قُوَّةً عَلَى الصِّيَامِ

د حمزه ابن عمرو اسلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره كې روايت شوى چې ده وويل يا رسول الله! زه طاقت لرم د روژې

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲ ۷۸۵، رقم الحديث ۹۰ ۱۱۱۴. والترمذي في السنن ۸۹/۳ رقم الحديث ۷۱۰، والنسائي ۱۷۷/۴ رقم الحديث ۲۲۶۳

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۱۸۳/۴ رقم الحديث ۲۱۸۵

| |
|---|
| فِي السَّفَرِ فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ ؟ |
| په حالت د سفر کې آیا (روژه نیولو یا د نه نیولو صورت کې) ما باندې ګناه شته دی؟ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ |
| قَالَ : هِيَ رُخْصَةٌ مِنَ اللهِ عَزَّ وَ جَلَّ فَمَنْ أَخَذَ |
| وفرمایل دا (یعني سفر کې روژه نه نیول) د الله د طرفه رخصت (اساني) ده. لهذا کوم کس قبول کړو دا |
| بِهَا فَحَسَنٌ وَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَصُومَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ. [1] |
| رخصت هغه ښه وکړل او کوم کس چې روژه نیول غواړي نو په هغه باندې هیڅ ګناه نشته دی. |

**توضیح** : **فحسن**: دې حدیث کې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې سفر کې روژه نیول یا نه نیول اګر که دواړه جائز دي خو ځوک چې و نه نیسي هغه بهتر او اولی دی. او ځوک یې چې ونیسي نو دې کې هیڅ ګناه نشته دی. نتیجه دا شوه چې روژه نه نیول اولی ده. (المرقات :۴/۵۴۵).



---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۷۹۰، رقم الحديث :۱۰۷ - ۱۱۲۱، والنسائي في السنن ۱۸۶/۴ رقم الحديث : ۲۳۰۳

۱۹ جمادی الثاني ۱٤۱۰هـ

# باب القضاء

## د قضاء روژې بیان

قال الله تعالى: ﴿فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾. (سورة بقره: آیت: ۱۸٤).

د روژې د نیولو یا د ماتولو متعلق درې حکمونه دي:

۱: هیره کې که چا نسیاناً روژه ماته کړه نو هغې کې نه قضاء شته او نه کفاره شته دی.

۲: قصداً د رمضان روژه ماتولو په صورت کې د وه میاشتې پرله پسې د روژې نیولو کفاره واجب کېږي.

۳: که د یو شرعي عذر په وجه روژه ماته شوه نو هغې کې قضاء لازمه ده. دې باب کې زیاتره حدیثونه د همدغې مسئلې متعلق دي.

شارحین لیکي چې راجح قول همدغه دی چې دلته د قضاء نه د رمضان د روژو قضاء مراد ده.

### د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قضاء روژې

| ﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ يَكُونُ عَلَيَّ الصَّوْمُ مِنْ رَمَضَانَ فَمَا أَسْتَطِيعُ أَنْ أَقْضِيَ إِلَّا فِي شَعْبَانَ |
|---|
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې زما په ذمه چې کومې روژې د رمضان پاتې دې د هغې قضا فقط د شعبان په |
| قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ : تَعْنِي الشغل مِنَ النَّبِيِّ |
| میاشت کې کېدی شي یحیی ابن سعید وایي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې مشغولیت کې یایې وویل |
| أَو بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ.(۱) |
| چې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د خدمت سره د مشغولیت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د (شعبان نه بغیر په بله میاشت کې) د |
| رمضان روژو نه پاتې کړې وه. |

**توضیح: قالت کان یکون:** علامه طیبي رَحِمَهُ الله وایي چې د "**یکون**" کلمه زیاتي ده. د ملاعلی قاري رَحِمَهُ الله د اندازې نه معلومېږي چې "**کان**" د شان په معنی مستعمل دی او "**یکون**" په خپل ځای قائم دی.

"**ای کان الشان یکون علی الصوم**" یعنې معامله داسې وه چې زما په ذمه روژې وې. یعنې د ماهوارې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۹/٤، رقم الحديث ۱۹۵۰، ومسلم في صحيحه ۸۰۲/۲ رقم الحديث :۱۵۱-۱۱٤٦، وأحمد في

په وجه روژې قضاء شوې وې. نو د نبي کريم ﷺ د خدمت په وجه به د قضا شوي روژو لپاره نه شوم فارغيدلی. خو که د شعبان مياشت به راغله. نو نبي کريم ﷺ به هم روژې نيولې او زه به هم د روژو لپاره فارغه شوم. (المرقات: ۴/۵۲۵).

**من النبي او بالنبي:** دا د راوي کلام دی چې د حضرت عائشه رضي الله عنها په کلام کې تشريح او تفسير کول غواړي يعنې د حضرت عائشه رضي الله عنها د "لا استطيع" کلام نه مراد دا دی چې حضرت عائشه رضي الله عنها به د نبي کريم ﷺ په خدمت کې مشغوله وه يا د نبي کريم ﷺ د خدمت سره مشغوله وه.

ملا علی قاري رحمه الله وايي چې دلته "من" د تعليل لپاره دی او باسبب لپاره دی. (المرقات ۴/۵۲۶).

## ښځه دې د خاوند د اجازت نه بغير نفلي روژه نه نيسي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَحِلُّ لِلْمَرْأَةِ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل صحيح نه دي د هيڅ يوې ښځه دپاره چې |
| أَنْ تَصُومَ وَ زَوْجُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ وَلَا تَأْذَنَ |
| نفلي روژه ونيسي دخاوند په موجودوالي کې دغه شان هيڅ يوه ښځه دې دخاوند د اجازت نه بغير هيچا ته |
| فِي بَيْتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ.(۱) |
| کور ته د.رادننه کيدو اجازت نه ورکوي. |

**توضيح**: دې حديث کې دوه حکمونه بيان شوي دي: اولنی حکم دا چې کله ميړه کور کې موجود وي نو د ښځې لپاره جائز نه ده چې د خاوند د خوښې او اجازت نه بغير روژه ونيسي د "**لايحل**" نه همدغه حکم بيان شوی. دويم حکم دا چې د ښځې لپاره جائز نه ده چې د خپل خاوند د اجازت نه بغير هيچاته هم کور د رادننه کيدلو اجازت ورنه کړي. اگر که هغه کس د هغې د خاندان نه ولې نه وي او خپلوان يې ولې نه وي. خو فقط دومره گنجائش شته دی چې د خاوند اجازت کله په خله باندې صراحةً وي او کله دلالةً اشارةً وي چې ښځه پوهيږي چې خاوند د خپل فلاني خپلوانو راتللو باندې ناخوښي کوي.

بهرحال د خاوند په اجازت کې د سرو سره ښځې هم شاملې دې چې د خاوند د خوښې نه بغير هيڅ يوې ښځې ته د رادننه کيدو اجازت ورنه کړي. (المرقات: ۴/۵۲۷).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۵/۹، رقم الحديث ۵۱۹۵، ومسلم في صحيحه ۷۱۱/۲ رقم الحديث: ۸۴-۱۰۲۶، وأبوداود في السنن ۸۲۶/۲، رقم الحديث: ۲۴۵۸، والترمذي في السنن ۱۵۱/۳ رقم الحديث: ۷۸۲.

# په حائضه ښځه باندې د روژې قضاء واجب ده او د مونځ قضاء واجب نه ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ | وَ | عَنْ | مُعَاذَةَ | | الْعَدَوِيَّةِ |

معاذۀ عدویه رحمة الله علیها (چې کنیت یې ام الصهبا دی او یوه جلیل القدره تابعیه ده) باره کې روایت

أَنَّهَا قَالَتْ لِعَائِشَةَ : مَا بَالُ الْحَائِضِ تَقْضِي الصَّوْمَ

شوی چې دې د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه تپوس وکړو چې دا څه وجه ده چې حائضه ښځو باندې د روژو قضا واجب

وَلَا تَقْضِي الصَّلَاةَ ؟ قَالَتْ عَائِشَةُ :

ده خو د مونځ قضا پرې واجب نه ده؟ عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به کله

كَانَ يُصِيبُنَا ذَلِكَ فَنُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّوْمِ وَلَا نُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّلَاةِ.[1]

په مونږ حیض راغلو نو مونږ ته به د روژو د قضا حکم راکړی شو خو د مونځ د قضا حکم به یې نه کولو.

**توضیح**: **ولا تقضي الصلوة**: دې ښځې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه مونځ د عدم قضاء او د روژو د قضاء باره کې د فرق متعلق پوښتنه کړي وه. خو حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هغې ته جواب ورنه کړو بلکې اشاره یې وکړه چې دې تفریق کې تللو هیڅ فائده نشته دی. نه څه اعلی مقصد دی. بلکې د شانِ عبودیت تقاضا دا ده چې شارع کوم حکم کړی دی بغیر تاویلې ماویلې نه پرې عمل وکړه.

د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عادت همدغه ؤ چې هغوی به لنډې او اوږدې قیصې نه کولې او نه د احکاماتو حکمتونو پسې ګرځیدل. بلکې هلته نه به حکم راغلو او دلته به یې پرې عمل کولو. نو حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا همدغه جواب ورکړو چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به مونږ ته په ماهوارۍ کې حکم کیدو چې د روژو قضا راوګرځوي او د مونځونو ذکر په کې نه ؤ.

دغه ښځو کیدلی شي چې د خوارجو په وجه یې پوښتنه کړې وه. چې د هغوی په نزد مونځ پریخودل د کفر سبب دی.

څېنو روایتونو کې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل **"احرورية الت"** یعنې ته د حرورا ډلې سره تعلق لرې یعنې د خوراجو نه یې؟ (المرقات ۴/۵۲۷).

بهرحال د قضا مونځو حکم کولو کې به ډیره تنګسیا وی ځکه مونځونه هره ورځ کېږي. او د رمضان میاشت خو په دولسو (۱۲) میاشتو کې یو ځل راځي. د دې لس ورځو د قضا هیڅ مشکل نشته دی.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۶۵/۱ رقم الحديث : ۶۹- ۳۳۵

دې حديث کې علماؤ ته هم ډير ښه درس ملاوېږي چې هغوی دې د دې خبري التزام نه کوي چې د هر حکم حکمت دې عوامو ته وړاندې کړي کار د عمل کولو سره دی د مصلحت او حکمت لټولو سره مطلب نه دی.

## د مړي د طرف نه د روژو د فديې مسئله

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ مَاتَ وَ عَلَيْهِ صَوْمٌ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا او يه ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې مړشي او په هغه روژې پاتې وي |
| صَامَ عَنْهُ وليُّهُ .[1] |
| نو د هغې د طرف نه دې د هغه وارثان روژې ونيسي (يعنې فديه دې ورکړي). |

**توضيح : من مات:** که يو کس مړ شوی او په هغې د رمضان روژې پاتې وې نو د هغې په قضاء د علماؤ دا اختلاف دی چې آيا فديه ادا کړی شي او که د مړي لپاره روژې ونيولی شي.

احناف علماء داسې تفصيل بيانوي چې که مړي د خپلو روژو د فديې وصيت کړی وي او د مړي په ترکه کې دومره مال هم وي چې فديه پرې ادا کړی شي.

نو په وارثانو واجب ده چې د مړي د قضا روژو فديه ورکړي. او که مړي څه مال نه وي پريخی نو په وارثانو لازمه نه ده چې هغوی د خپل طرف نه فديه ورکړي. خو که څوک يې ورکوي نو هغه تبرع او احسان دی. د فديې مقدار د يوې روژې لپاره نيم صاع غنم دي.

وس پاتې شو دا صورت چې که يو وارث د خپل مړي د طرف نه د مونځ فديه ادا کوي.نو د هغې شرعي څه حيثيت دی؟

دې باره د ائمه احنافو نه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې که څوک د مړي د طرف نه د قضا شوي مونځونو فديه ادا کول غواړي. نو مونځ په روژو باندې قياس کول سره ويلی شي چې دا فديه به هم جائز وي او ان شاء الله دې فديې سره به فايده هم وي.

د احنافو په نزد د هر نفلي عبادت ثواب ايصال هم جائز دی. اوس پاتې شو دا صورت چې يو کس د خپل مړي د طرف نه د هغې د روژو په بدل کې روژې نيولو سره فديه ادا کول غواړي نو آيا دا جائز ده يا نه؟ دې کې د علماؤ اختلاف دی.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۲/٤، رقم الحديث ۱۹۵۲، ومسلم في صحيحه ۸۰۳/۲ رقم الحديث :۱۵۳-۱۱٤۷، وأبوداود في السنن ۷۹۱/۲، رقم الحديث: ۲٤۰۰

**د فقهاؤ اختلاف** :د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد وارث د خپل مړي د طرف نه فديه کې روژي نيولی شي. خو امام مالک رَحِمَهُ اللهُ، امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ جمهور وايي چې هيڅ يو کس د مړي د طرف نه فديه کې روژه نه شي نيولی. (المرقات :۴/۵۲۸).

**دلائل** :امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د زير بحث حديث نه استدلال کړی دی چې بالکل واضح دليل دی.

**جمهور فقهاؤ د فصل ثالث د** حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه استدلال کړی دی چې الفاظ يې دا دی **"لايصوم احد عن احد الخ"**.

**جمهور فقهاؤ** د ورپسي حديث نمبر ۵ نه هم استدلال کړی دی چې هغې کې د **"اطعام الطعام"** د فديه ادا کولو حکم دی.

**جواب**: جمهور فقهاؤ د طرف نه د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د دليل دوه جوابونه ورکړي دي:

**اول جواب** دا دی چې **"صام عنه وليه"** مطلب دا نه دی چې وارث به د هغې د طرف نه روژه ونيسي بلکې نورو حديثونو په کتلو سره به د تطبيق په غرض همدغه ويل کېږي.

د دې حديث مطلب دا دی چې وارثان دې د دې مړي د قضا روژو د ادا کولو څه انتظام وکړي. او هغه انتظام فديه ده.

**دويم جواب** دا دی چې د نورو حديثونو په وړاندې زير بحث حديث منسوخ او موقوف دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
| نافع رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) دا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دا دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| مَنْ مَاتَ وَ عَلَيْهِ صِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ فَلْيُطْعَمْ عَنْهُ |
| وفرمايل کوم کس چې مړ شي او په ده باندې د رمضان روژي پاتې وی نو خوراک دې ورکړي دده دطرف |
| مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينٌ .[1] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : |
| نه دهري روژي په بدل کې يو مسکين ته . امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ دا روايت نقل کړی دي او ويلی يې دي چې |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۹۶/۳ رقم الحديث : ۷۱۸ ، وابن ماجه ۵۵۸/۱ رقم الحديث : ۱۷۵۷.

| وَ الصَّحِيحُ أَنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَى إِبْنِ عُمَرَ. |
|---|
| صحیح دادې چې دا روایت په ابن عمر رضي الله عنه باندې موقوف دی . یعنې داد نبي کریم صلی الله علیه وسلم |
| ارشاد نه دی بلکې د ابن عمر رضي الله عنه قول دی. |

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د چا د طرف نه مونځ او روژه نه شي کیدې

| ﴿٦﴾ عَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُسْئَلُ : |
|---|
| امام مالک رحمه الله نه روایت شوی دی چې هغه ته روایت رسیدلی چې د ابن عمر رضي الله عنه نه تپوس کیدلو |
| هَلْ يَصُومُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ أَوْ يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ ؟ |
| چې یو کس د بل لپاره مونځ کولی شي یا بل لپاره روژه نیولی شي؟ ابن عمر رضي الله عنه به د دوي په جواب |
| فَيَقُولُ : لَا يَصُومُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ وَلَا يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ.[1] |
| کې ویل چې نه خو څوک د چا لپاره مونځ کولی شي او نه د چا لپاره روژه نیولی شي. |

**توضیح : ولا یصلی احد عن احد:** یعنې د چا د طرف نه د هغې قضا شوي مونځونه د هغې په وارثانو کې هیڅ څوک نه شي کولی او نه هغه لره د چا د طرفه څوک روژه نیولی شي.
خو د احنافو په نزد دا خبره مسلم ده چې نفل کولو سره یا نفل روژه نیولو سره یا نفل حج کولو سره د هغې ثواب مړي ته لیږلی شي.



---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۳۰۳/۱ رقم الحدیث :۴۳ من کتاب الصیام.

# باب صيام التطوع

## د نفلي روژو بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿ وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ ﴾ (سورة بقره آيت: ۱۱۰).

الله د هر فرض عبادت نفل عبادت هم مشروع کړی دی چې د نفل په ذريعه د فرض تکميل وشي او که چانه کومه فريضه پاتې شوي وي نو په نفلو سره د هغې ادراک کېږي. دې باب کې د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نفلي روژو بيان دی. بيا د عام امت لپاره د مياشتي او د کال په مختلفو ورځو کې او مختلف تاريخونو کې د خاص خاص نفلي روژو بيان دی او ځينې ورځو کې د ممانعت بيان دی. زياتره د ايام بيض بيان دی. د يوم عاشوره او عرفې ذکر دی او د صوم داؤدي ذکر دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### په نفلي روژو کې د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معمول

﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ حَتَّى نَقُولَ:

عائشه رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله (د نفل) روژي نيول شروع کړل نو مونږ ته به يې ويل

لَا يُفْطِرُ وَ يُفْطِرُ حَتَّى نَقُولَ:

چې اوس به تاسو روژي نيول نه ختموی. او کله به يې چې روژي نه نيولي نو مونږ به ويل چې اوس به نبي

لَا يَصُومُ وَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَكْمَلَ صِيَامَ شَهْرٍ قَطُّ إِلَّا

عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ کله هم روژي نه نيسي ما نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ نه دي ليدلي چې پوره مياشت يې روژې نيولې وي په غير

رَمَضَانَ وَمَا رَأَيْتُهُ فِي شَهْرٍ أَكْثَرَ مِنْهُ صِيَامًا فِي شَعْبَانَ

د رمضان نه او ما نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ د شعبان د مياشت نه بغير بله کومه مياشت کې په ډير روژو نيولو نه دی ليدلی

(يعنې نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې شعبان کې څومره زياتې روژي نيولي دومره به يې د رمضان نه بغير

وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَتْ: كَانَ يَصُومُ شَعْبَانَ

بله مياشت کې نه نيولي) د يو بل روايت دا الفاظ دي چې عائشه رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا وايي نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ به د شعبان

| كُله | وَ | كان | يَصُوم | شعْبَان | إِلَّا | قَلِيْلا .[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پوره روژي نيولي يعني د شعبان مياشت كې به يې يو څو ورځي پريخودې او پاتې نورې به يې روژي نيولي | | | | | | |

**توضيح**: لا يفطر: يعني د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به نفلي روژو كې دا عادت مبارك ؤ چې كله به نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرلپسي روژي نيولي چې ليدونكي به خيال وكړو چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله هم روژه ماته نه كړي او كله به نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نفل روژي بندې كړې نو د كتونكي به خيال شو چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله هم نفلي روژه نه نيسي. (المرقات: ۴/۵۳۱).

**كان يصوم شعبان الا قليلا**: د دې جملي نه چې مخكې كومه جمله ده هغه همدغه شان ده خو هغې كې د **كُلَّهُ** لفظ دى. او دلته همغه جمله تكرار شوي ده خو **إِلَّا قَلِيْلًا** لفظ زيات دى. نو دې كلام كې تناقض هم شته دى او تكرار هم شته دى. شارحينو كې ملا على قاري رَحِمَهُ اللهُ د دې كلمي دوه توجيهات كړي دي. اوله توجيه دا ده چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله د شعبان روژي پوره نيولي او كله به يې پوره نه نيولي يعني يو كال به يې پوره نيولي او بل كال به يې يو څه ونيولي. دويمه توجيه دا ده چې دلته اګر كه حرف عطف نشته دى خو دويمه جمله په اولنى جمله باندې عطف ده او دا عطف تفسيري دى. ګويا كې دويمه جمله د اولنى جملي وضاحت دى يعني نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د شعبان روژي پوره نيولي. (المرقات: ۴/۵۳۱).

| ﴿۲﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ قَالَ : قُلْتُ لِعَائِشَةَ : أَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عبد الله بن شقيق رَحِمَهُ اللهُ (تابعى) وايي چې ما د عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه تپوس وكړو چې آيا نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ | | | | | | | |
| يَصُوْمُ | شَهْراً | كُلَّهُ | ؟ | قَالَ | : | مَا | عَلِمْتُهُ صَامَ |
| به پوره مياشت روژي نيولي؟ عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې زه نه يم خبر چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې روژه نيولي | | | | | | | |
| شَهْرًا | كُلَّهُ | إِلَّا | رَمَضَانَ | وَلَا | | | |
| وي پوره مياشت په غير د رمضان نه او زه يوي داسي مياشت هم نه يم خبر چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به هغې كې | | | | | | | |

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۴/۲۱۳، رقم الحديث ۱۹۶۹، ومسلم في صحيحه ۲/۸۱۰ رقم الحديث: ۱۷۵-۱۱۵۶، وأبوداود في السنن ۲/۸۱۳، رقم الحديث: ۲۴۳۴، والترمذي في السنن ۳/۱۱۴ رقم الحديث: ۷۳۶، وابن ماجه ۱/۵۴۵ رقم الحديث: ۱۷۱۰، وأحمد في المسند ۶/۰۷.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَفْطَرَهُ | كُلَّهُ | حَتَّى | يَصُومَ | مِنْهُ |
| بالكل روژې نه وي نيولې څكه نبي عَلَيْهِ السَّلَام به هره مياشت كې څه روژې نيولې (د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | |
| | حَتَّى | مَضٰى | لِسَبِيْلِهِ . (۱) | |
| همدغه معمول ؤ) تردې چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې دنيا نه لاړو. | | | | |

﴿۳﴾ وَ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَنَّهُ سَأَلَهُ

عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د عمران نه تپوس وكړو

أَوْ سَأَلَ رَجُلًا وَ عِمْرَانَ يَسْمَعُ فَقَالَ : يَا أَبَا فُلَانٍ أَمَا صُمْتَ مِنْ سَرَرِ شَعْبَانَ ؟

يا يې دبل كس نه تپوس وكړو او عمران اوريدل چې اې د فلانې كس پلاره! آيا تا روژې نه دي نيولې د

قَالَ : لَا قَالَ : فَإِذَا أَفْطَرْتَ

آخري ورځو د شعبان ؟ هغه وويل چې نه ، نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل كله چې تا سو د رمضان نه فارغ

فَصُمْ يَوْمَيْنِ . (۲)

شې نو دوه ورځې روژې ونيسې.

**توضيح**: سرر شعبان: د هر شي آخري برخې ته "سرر" وايي. د سرر لفظ يو راويت كې راغلى دى. قاموس كې ليكل شوي دې چې سرر او سرار د مياشتې آخري شپې ته وايي. دا چې دې شپه كې سپوږمۍ ډوبه شي نو څكه ورته سرر ويل شوي دي. (المرقات: ۴/۵۳۳). يو شاعر وايي:

شُهُوْرٌ يَنْقَضِيْنَ وَمَا شَعَرْنَا ۞ لِأَنْصَافٍ لَهُنَّ وَلَا سِرَارُ

دلته دې حديث كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يا عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه كړې ده ، يا بل كوم يو صحابي پوښتنه كړې ده او عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوريدل . څه چې هم وي خو دا سې معلومېږي چې هغه سړي د شعبان آخري ورځو كې دوه روژې خپل ځان باندې د نذر په توګه واجب كړې وي. نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وويل چې كله د رمضان مياشت تيره شي نو د خپل واجب روژو په بدل كې دوه روژې ونيسه.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۸۱۰ رقم الحديث ۱۷۳-۱۱۵۶.

(۲) أخرجه البخاري ۴/۲۳۰، رقم الحديث ۱۹۸۳، ومسلم في صحيحه ۲/۸۲۰ رقم الحديث :۱۹۹-۱۱۶۱، وأحمد في المسند ۴/۴۴۴.

## د عاشورې د روژې فضيلت

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفْضَلُ الصِّيَامِ بَعْدَ رَمَضَانَ

ابو هريره رضي الله عنه روايت کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل د رمضان د روژونه وروسته بهترينې روژې

شَهْرُ اللهِ الْمُحَرَّمِ وَ أَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْفَرِيضَةِ صَلَاةُ اللَّيْلِ.[1]

د الله د مياشتې د محرم روژې دي او د فرض مونځ نه وروسته بهتر مونځ د شپې دی.

**توضيح**: حديث د ظاهري الفاظ نه معلومېږي چې د محرم د ټولې مياشتې روژې نيولو فضيلت شته دی خو عام علماء وايي چې د بحث لاندې حديث کې د محرم د روژې نه مراد د يوم عاشوره روژه ده. د محرم نسبت الله ته شوی دی. دا د الله مياشت ده. دا د شرف او عزت په وجه ده ګيني ټولې مياشتې د الله دي.

**صلوة الليل**: علماؤ ليکلي دي چې سنن مؤکده د تهجد و نه افضل دي خو دلته تهجد د سنن مؤکدؤ نه افضل کړی شوي دي. د دې جواب دا دی چې دلته د فرائضو او د سنن دواړو نه وروسته د تهجد فضيلت بيان شوی دی. نو سنن مؤکده افضل دي. (المرقات: ۴/۵۳۴).

﴿٥﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَحَرَّى صِيَامَ يَوْمٍ

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې ما نه دې ليدلي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به يوه ورځ د روژې نيولو اراده وکړه

فَضَّلَهُ عَلَى غَيْرِهِ إِلَّا هٰذَا الْيَوْمَ: يَوْمَ عَاشُورَاءَ وَ هٰذَا الشَّهْرَ

او دغه ورځې ته يې په بله کومه ورځ باندې فضيلت ورکړی وي خو دغه ورځ عاشوره ته او دې مياشتې ته

يَعْنِي شَهْرَ رَمَضَانَ.[2]

يعني د رمضان مياشتې (ته به يې په نورو ورځو او مياشتو فضيلت ورکولو).

**توضيح**: علماء وايي چې دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنه فهم او خيال دی. ګيني د عرفې روژه د عاشورې د ورځې نه افضله ده.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۲۱/۲ رقم الحديث ۲۰۲. ۱۱۶۳، وأبوداود في السنن ۸۱۱/۲، رقم الحديث: ۲۴۲۹، والترمذي في السنن ۱۱۷/۳ رقم الحديث: ۷۴۰، وابن ماجه ۵۵٤/۱ رقم الحديث: ۱۷٤۲.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲٤٥/٤، رقم الحديث ۲۰۰۶، ومسلم في صحيحه ۷۹۷/۲ رقم الحديث ۱۳۱. ۱۱۳۲-، وأحمد في المسند ۲۲۲/۱.

## د محرم په نهمې او لسمې ورځ باندې روژه نيول مستحب ده

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: حِينَ صَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَاشُورَاءَ |
| ابن عباس رضی الله عنه راوي دی چې كله نبي كريم صلی الله علیه وسلم د عاشورا په ورځ روژه ونيوله او صحابؤته |
| وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّهُ يَوْمٌ يُعَظِّمُهُ |
| هم د روژې د نيولو حكم وكړې شو. نو صحابؤ وويل: چې يا رسول الله! دا خو هغه ورځ ده چې عظمت |
| الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى |
| وركړې دې ورځې ته يهودو او نصاراو (او دا چې د يهودو او نصاراؤ مخالفت زمونږ شان دی. لهذا روژه |
| فَقَالَ |
| نيولو سره به مونږ دې ورځې په عظمت كولو كې د يهودو او نصاراؤ سره موافقت څنګه وكړو) نو وفرمايل |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَئِنْ بَقِيتُ إِلَى قَابِلٍ لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ.[۱] |
| رسول الله صلی الله علیه وسلم چې كه زه بل كال ژوندی پاتې شوم نو نهم تاريخ باندې به ضرور روژه نيسم. |

## د عرفې د ورځې روژه

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ: أَنَّ نَاسًا تَمَارَوْا عِنْدَهَا يَوْمَ عَرَفَةَ فِي |
| ام فضل بنت حارث رضی الله عنها وايي چې يو څه خلكو بحث شروع كړو زما مخكې د عرفې په ورځ په باره د |
| صِيَامِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ: |
| روژو د نبي كريم صلی الله علیه وسلم كې ځينو ويل چې نبي كريم صلی الله علیه وسلم (د نن) نه روژه دی او ځينو داويل |
| هُوَ صَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَيْسَ بِصَائِمٍ فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَهُوَ |
| چې نبي علیه السلام روژه نه دی (دې ليدو سره) ما د شودو يوه پياله نبي علیه السلام ته ولېږله او نبي علیه السلام |
| وَاقِفٌ عَلَى بَعِيرِهِ بِعَرَفَةَ فَشَرِبَهُ.[۲] |
| په ميدان عرفات كې او ښ باندې ولاړ ؤ نو نبي علیه السلام هغه شوده (واخستل او) وې څكل. |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۷۹۸/۲ رقم الحديث: ۱۱۳۴/۱۳۳، وأبوداود في السنن ۸۱۸/۲ رقم الحديث: ۲۴۴۵

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۷۹۱/۲ رقم الحديث: ۱۱۰-۱۱۲۳، وأبوداود في السنن ۸۱۷/۲، رقم الحديث: ۲۴۴۱

## د ذوالحجې په اوله عشره کې روژه

﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَائِمًا فِي الْعَشْرِ قَطُّ.[1]

عائشه رضي الله عنها وايي چې ما نبي کريم صلی الله علیه وسلم کله هم په عشره کې روژه نيولو باندې نه دی ليدلی.

**توضيح**: د ذوالحجه اولنۍ عشره د برکتونو والا ده. دې کې يوم عرفه ده چې د ډير برکتونو والا ده. د علماؤ په دې کې اختلاف دی چې آيا د رمضان آخري عشره د فضيلت والا ده او که د ذوالحجه اولنۍ عشره د فضيلت والا ده. علماء ليکي چې که د رمضان د آخرۍ عشري نه ليلة القدر اخوا کړی شي نو ددې نه به ذوالحجه غوره شي. بهرحال هر مسلمان ته په کار دې چې دې عشره کې روژه ونيسي. نبي کريم صلی الله علیه وسلم دې کې روژې نيولي دې او امت يې ترغيب ورکړی دی. ترمذي شريف کې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه يو حديث ذکر دی چې الفاظ يې دا دي: "**ما من ايام احب الى الله ان يتعبد فيها من عشر ذي الحجة يعدل صيام کل يوم منها بصيام سنة الخ**". (توضيحات ج ۲ ص ۹۲۳)

امام ترمذي د دې حديث سند ته ضعيف ويلی دی خو مرقات کې ملا علی قاري رحمه الله دا حديث د نقل کولو نه مخکې ليکي "**دل الحديث المشهور وهوا الخ**". اوس پوښتنه دا ده چې حضرت عائشه رضي الله عنها د بحث لاندې حديث دا څنګه وفرمايل چې ما کله هم نبي کريم صلی الله علیه وسلم دې عشره په روژو نيولو باندې نه دی ليدلی؟ د دې جواب دا دی چې حضرت عائشه رضي الله عنها د خپل علم او خپل نه کتلو د اعتبار نه نفي کړې ده. د دې مطلب دا نه دی چې حقيقت کې نبي کريم صلی الله علیه وسلم روژه نه ده نيولې. علماء فرمايي چې د حضرت عائشه رضي الله عنها عدم علم نه عدم ثبوت نه لازم کېږي. دويم جواب دا دی چې زه فرض کړه نبي کريم صلی الله علیه وسلم خپله نه دې نيولې لکه څنګه چې حضرت عائشه رضي الله عنها وايي. خو امت ته يې د دې ترغيب ورکړی دی. دا ترغيب کافي او پوره دی. لکه څنګه چې پاس ترمذی شريف کې حديث دی. او دغه شان يې د عرفې ورځې تشويق خو ډير مشهور دی. ورسره لاندې حديث نمبر ۹ کې د عرفې د روژې ډير زيات فضيلت ذکر دی.

## د نفلي روژو ښه ترتيب

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ: أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَيْفَ

ابوقتاده رضي الله عنه وايي چې يو سړی د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو او وې ويل: ته څرنګه

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۳۳/۲ رقم الحديث: ۹ ۱۱۷۶، وأبوداود في السنن ۲ ۸۱٦، رقم الحديث ۲۴۳۹

تَصُومُ فَغَضِبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنْ قَوْلِهِ .

روژه نيسي؟(ددې په اوريدو سره) دنبي كريم ﷺ په مخ باندې د غصې (اثرات ښكاره شو)

فَلَمَّا رَأَىٰ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غَضَبَهُ

عمر رضي الله عنه (چې هغه وخت مجلس كې حاضرؤ) چې دنبي كريم ﷺ د غصې دا حالت وليد ونوزر

قَالَ رَضِينَا بِاللهِ رَبًّا وَ بِالْإِسْلَامِ دِينًا وَ بِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا

يې وويل چې مونږ راضي شو د الله په رب كيدو ،د اسلام په دين كيدو او د محمد ﷺ په نبي كيدو

نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ غَضَبِ اللهِ وَ غَضَب رَسُوله فَجَعَلَ عُمَر رَضِي اللهُ عَنْهُ يُرَدِّدُ هٰذَا الْكَلَامَ حَتَّى

او مونږ د الله او د هغې رسول د غضب نه پناه غواړو. عمر رضي الله عنه به دا جملې بار بار ويلې تردې چې د

سَكَنَ غَضَبُهُ فَقَالَ عُمَر يَا رَسُول الله

نبي كريم ﷺ غصه يخه شوه د هغې نه وروسته عمر رضي الله عنه وپوښتل چې يارسول الله! هميشه

كَيْفَ بِمَنْ يَصُومُ الدَّهْرَ كُلَّهُ قَالَ : لَا صَامَ وَلَا أَفْطَرَ

روژه نيونكي باره كې تاسو څه فرمايي؟نبي عليه السلام وفرمايل هغه نه روژه ونيوله او نه بغير د روژې نه پاتې

أَوْ قَالَ : لَمْ يَصُمْ وَ لَمْ يُفْطِرْ .

شو يايې وفرمايل نه يې روژه ونيوله او نه بغير د روژې پاتې شو (دې موقع باندې د راوي شک دی چې

قَالَ

نبي كريم ﷺ لَا صَامَ وَلَا افْطر وفرمايلو لَمْ يَصُمْ وَلَمْ يُفْطَرْ) بيا عمر رضي الله عنه تپوس وكړو چې د

كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمَيْنِ وَ يُفْطِرُ يَوْمًا

هغه كس باره كې څه حكم دی چې دوه ورځې خو يې روژه وي او يوه ورځ بغير د روژې وي؟ نبي عليه السلام

قَالَ : وَ يُطِيقُ ذٰلِكَ أَحَدٌ . قَالَ كَيْفَ مَنْ

وفرمايل څوک ددې طاقت لري شي؟ بيا عمر رضي الله عنه تپوس وكړو چې د هغه كس باره كې څه حكم دی

يَصُوم يَوْمًا وَ يفطر يَوْمًا قَالَ : ذَاك صَوم دَاوُد عَلَيْهِ السَّلَام

چې يوه ورځ روژه نيسي او يوه ورځ روژه نه نيسي؟وي فرمايل دا د داؤد عليه السلام روژه ده ددې نه وروسته

قَالَ كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمًا وَ يُفْطِرُ يَوْمَيْنِ

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تپوس وکړو چې د هغه کس باره کې څه حکم دی چې يوه ورځ روژه وي او دوه ورځي روژه نه وي؟

قَالَ : وَدِدْتُ أَنِّي طُوِّقْتُ ذٰلِكَ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل زه دا خوښوم چې ماته دومره طاقت راکړی شي دا دې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

ثَلَاثٌ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَ رَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ فَهٰذَا صِيَامُ الدَّهْرِ كُلِّهِ

چې د يو رمضان نه تر بل رمضان پورې د هرې مياشتې درې روژې د هميشه روژو برابري دې (يعنې د هغې

صِيَامُ يَوْمِ عَرَفَةَ أَحْتَسِبُ عَلَى اللهِ

ثواب د هميشه روژو نيولو د ثواب برابروي) او (د غير حج حالت کې) د عرفې روژه خو زما د خدای نه اميد دی

أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ وَ السَّنَةَ الَّتِي بَعْدَهُ

چې هغه (د هغه روژې په وجه) د هغې نه د مخکنې او د وروستنې کال ګناهونه هم لرې کړي (يعنې الله به

وَ صِيَامُ يَوْمِ عَاشُورَاءَ

يې بل کال د ګناهونو نه محفوظ وساتي. يا دا چې که ګناه وشي نو معاف کېږي به) او د يوم عاشوره روژې

أَحْتَسِبُ عَلَى اللهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ .[1]

باره کې زما د خدای نه اميد دی چې هغه (د دې روژې په وجه) د يو کال مخکنې ګناه لرې کړي.

**توضيح** : **كيف تصوم** : سوال کونکي ته داسې سوال کول په کار نه ؤ ځکه هغې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عبادت کيفيت باره کې تپوس وکړو. حال دا چې داسې کول په کار نه ؤ بلکې د هغوی لپاره مناسب وه چې د خپل احوالو مطابق د روژې نيولو پوښتنه يې کړې وی. ځکه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معامله خو د ميلمنو سره هم وه او عام مسلمانانو ته د وحې امانت د رسولو معامله هم وه. وحې ته صبر کول هم ؤ. د ازواج مطهراتو معامله هم وه. الغرض د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په عبادتونو کې کم والی هم د مصلحت بناء ؤ او کثرت کې هم مصلحت ؤ. دا د دې لپاره چې کم او زيات عبادت کې د امت هر يو نفر لپاره يوه نمونه قائمه وي. په دې وجه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناراضه شو. بيا د د پوښتنه کونکي پوښتنه د آداب نبوت خلاف هم وه. د دې وجوهاتو په وجه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سخت ناراضه شو. حال دا چې حضرت

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۱۸/۲ رقم الحديث :۱۹۶-۱۱۶۲، وأبوداود في السنن ۸۰۷/۲، رقم الحديث:۲۴۲۵.

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه کومه پوښتنه کړي وه هغه بالکل همدغه پوښتنه وه. چې کوم هغه پوښتنه کړي وه خو د پوښتني انداز بدل ؤو. اسلوب مناسب ؤو چې د کوم نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

جواب ورکړو "**ويردد هذا الکلام**" يعني عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کوم اقرار د دين او د تعوذ من الشيطان دعا وغوښتله او هغه يې بيا بيا لوستله تردې چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غصه ختمه شوه. همدغه طريقه به صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او خاص کر حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به اختياروله.

**لا صام ولا افطر**: د دې خو يو مطلب خيره ده. دويم مطلب دا دى چې د هغه کس د حالت متعلق خبر دى چې نه هغې روژه ونيوله ځکه د شريعت د حکم مطابق روژه نه نيولو په وجه هغې ته ثواب نه ورکول کيږي. او نه يې روژه ماتې وکړو ځکه حقيقت کې خو يې روژه نيولي ده خو په ظاهر يې نه څه وخوړل او نه څه وڅکل. شوافع حضرات فرمايي چې عمل دا ضياع د هغه کس لپاره دى چې د ټول کال روژو کې د منع کړى شوى ورځو روژي هم ونيسي يعني د اخترونو او د ايام تشريق روژي ونيسي. که داسي نه وي نو ټول کال روژي جائز دي. د احنافو محقق ابن همام رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د ټول کال روژي نيول مکروه تنزيهي دي. ځکه دې سره بدن کې کمزوروالى راځي. چې دې په وجه سړى د نورو عبادتونو او جهاد نه پاتې شي. د دينه دا اشاره ملاويږي چې که يو کس نه کمزورى کيږي نو بيا د هغې لپاره روژه جائز ده. نو ځکه به ډيرو صحابوٴ به ټول کال روژي نيولي. فقط پنځه منع شوي ورځو کې به يې پريښودلي. (المرقات: ۴/۵۴۰).

**ويطيق: اى او يطيق** آيا د دې طاقت چا کې شته دى؟(المرقات: ۴/۵۴۱).

**ثلاث من کل شهر**: ددې نه مراد د ايام بيض روژي دي چې د سپوږمۍ په ديارلسم (۱۳)، څوارلسم (۱۴) او پنځلسم (۱۵) تاريخ کې وي. ځينې علماؤ ليکلي دي چې د ايام بيض ثواب همدغه ورځو کې ملاويږي ګيني نشته دى. خو ځينې علماء فرمايي چې درې ورځي دا روژي د مياشتي په کومه ورځ او کوم يو تاريخ کې نيول کيدلى شي. آئنده د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا يو راويت هم په دې باندې دلالت کوي. (المرقات: ۴/۵۴۱).

## د دوشنبې (پير) دورځي د روژې فضيلت

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَوْمِ الِاثْنَيْنِ فَقَالَ:

ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د پيرورځې د روژي نيولو باره کې تپوس وشونو نبي

| فِيهِ وُلِدْتُ وَ فِيهِ أُنْزِلَ عَلَيَّ.[1] |
|---|
| عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې دي ورځ باندې زه پيدا شوى وُم او په همدغه ورځ باندې دقرآن نزول شروع شو. |

## په هره مياشت کې درې نفلي روژې صيام الدهر دي

| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ مُعَاذَةَ الْعَدَوِيَّةِ أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ: أَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
|---|
| معاذۀ عدويه باره کې منقول دي چې دې د عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه تپوس وکړو چې آيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به |
| يَصُومُ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ ؟ قَالَتْ : نَعَمْ فَقُلْتُ لَهَا : |
| دهرې مياشت کې درې (نفل) روژې نيولې؟ هغې ورته وويل چې آؤ (معاذۀ وايي چې) بيا ما د هغې نه تپوس |
| مِنْ أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ كَانَ يَصُومُ ؟ قَالَتْ : |
| وکړو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به د مياشتې په کومو ورځو کې روژې نيولې؟ هغې وويل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به د کومې |
| لَمْ يَكُنْ يُبَالِي مِنْ أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ يَصُومُ.[2] |
| خاصې ورځې د روژې نيولو اهتمام نه کولو (يعنې کومه ورځ به يې چې وغوښتل نو روژه به يې نيوله |
| کومه خاص ورځ مقرره نه وه). |

**توضيح**: ددې حديث نه معلومه شوه چې د ايام بيض لپاره د تاريخونو مقررول مناسب نه دي بلکې د مياشتې په هريو تاريخ کې روژه نيولو سره د ايام بيض حق ادا کېږي. خو بيا هم د ټولو حديثونو نه تعين هم ثابت دی. د ايام بيض نوم هم معروف دی او امت کې ايام بيض يوه پخوانۍ اصطلاح ده. لهذا دا عمل سره ژوندی ساتل ضروري ده.

## په شوال کې د شپږ روژو عظيم ثواب

| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
|---|
| د ابو ايوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت شوی چې هغه دا حديث بيان کړی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل |
| مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ أَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ |
| کوم سړی چې د رمضان روژې ونيسي او د هغې نه وروسته د شوال شپږ (۶) روژې (هم) ونيسي نو |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۲۰/۲ رقم الحديث ۱۹۸. ۱۱۶۲.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۱۸/۲ رقم الحديث ۱۹٤-۱۱٦۰، وأبوداود في السنن ۸۲۳/۲، رقم الحديث:۲٤۵۳.

| كَانَ | كَصِيَامِ | الدَّهْرِ [1] |
|---|---|---|
| هغه به د همیشه روژه نیونکي په شان وي. | | |

**توضیح**: ستّا من شوال: د شوال شپږ روژې د دې صحیح او صریح حدیث نه ثابت دي. د دې شپږ اختر نه وروسته شوال کې په متفرقه توګه هم نیول کیدلی شي او پرله پسي نیول هم جائز دي. ځینو علماؤ متفرقه ورځو کې اولی ګڼلي دي. ځینو پرله پسي نیول اولی ګڼلي دي. مطلق داسې کیدلی شي چې چرته خلک پرلپسې د رمضان سره اختلاط باندې پوهه شي او خوب ستردې پوري پر او مېږې چې ځینې ناپوهه وایي "نحن الى الآن لم يأت عيدنا" نو داسې صورت کې افتراق اولي دی. که د اختلاط صورت نه پیدا کېږي او خلکو ته شک نه واقع کېږي نو هغه اتصال اولیٰ دی. امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ د شوال شپږ روژې مکروه لیکلي دي. په مؤطا کې فرمایي. (المرقات: ۴/۵۴۴).

**ما رَئیت احدا من اهل العلم یصومها**: یعني په عوامو کې خو مشهوره ده لیکن ما علماء د دې روژې په نیولو باندې نه دي لیدلي. په حنافو علماؤ کې علامه ابن همام رَحِمَهُ اللّٰهُ د امام ابویوسف او ابوحنیفه رَحِمَهُمَا اللّٰهُ په حواله سره دې لره مکروه لیکلي ده. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ فیصله داسې کوي: **قالوا یکره لئلا یظن وجوبها**. (کذا فی المرقات ج۲\۵۴۵)

بهرحال د صریح او صحیح احادیثو په موجودوالي کې د شوال د روژو نه انکار کول خو ډېر غټ جرأت دی. چې هغه د هیڅ یو عالم لپاره مناسب نه دی. خو عامو خلکو د دې روژو سره د التزام معامله شروع کړې ده. لکه څنګه چې ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ عبارت پاس نقل کړی شوی دی. چې یو نادان وایي: **نحن الى الآن لم يأت عيدنا**. نو داسې خارجي عوارض او خارجي منکراتو د وجې نه شاید امام مالک او ابن همام رَحِمَهُمَا اللّٰهُ دې ته مکروه ویلي دي. ځکه عوام په حرمینو شریفینو کې د دې روژو د ډېر اهتمام کېږي لکه څنګه چې په رمضان کې کېږي. دې ته په کتلو سره احنافو فقهاؤ او امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ اقوال په پوهه کې راځي. بهرحال دا غلو یو خارجي عارضي معامله ده. د صحیح او صریح حدیث حکم په ځای باندې دی (المرقات: ۴/۸۴۵).

(۱) أخرجه مسلم في صحیحه ۸۲۲/۲ رقم الحدیث ۲۰۴ (۱۱۶٤)، وأبوداود في السنن ۸۱۲/۲، رقم الحدیث ۲٤۳۳

## د اخترونو په ورځ او ايام تشريق کې روژې نيول منع دي

﴿۱۳﴾ وعن أبي سعيد الخدري قال: نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن صوم يومين [illegible]

[illegible] نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [illegible]

الفطر و النحر.[1]

وړوکي اختر او د لوی اختر په ورځ نيولو نه منع کړې ده

﴿۱۴﴾ عن أبي سعيد الخدري قال. قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لا صوم في يومين:

ابوسعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نشته دي روژه په دوه ورځو کې

الفطر و الأضحى ".[2]

دوړوکي اختر په ورځ او دلوي اختر (څلور) ورځې (يعنې دذی الحجه لسم تاريخ نه تر ديارلسم تاريخ پورې)

﴿۱۵﴾ وعن نبيشة الهذلي قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم أيام التشريق أيام أكل وشرب

نبيشه هزلی راوي دي وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "ايام تشريق د خوراک، څښاک ورځې

و ذكر الله.[3]

دي او د الله د يادولو ورځې دي.

**توضيح**: لوي اختر او وړوکي اختر کې الله د مسلمانانو لپاره د ميلمستيا انتظام کړی دی. لهذا د الله د دسترخوان نه د خوراک کولو نه اعراض کول ډير نامناسب دي. ځکه شريعت دې ورځ کې د روژه نيول نه منع کړي ده.

**ايام تشريق**: دا د ذوالحجه يولسم، دولسم او ديارلسم تاريخ ته وايي. شرق د لمر راښتلو ته وايي. د عرب خلک د قرباني غوښې پرتې پوټې کړې او لمر ته يې د وچولو لپاره اچوي دې مناسبت سره د دې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۲۹/۴، رقم الحديث ۱۹۹۱، ومسلم في صحيحه ۸۰۰/۲ رقم الحديث ۱۱۱۰ ۸۲۷، وأبوداود في السنن ۸۰۲/۲، رقم الحديث ۲۴۱۷، والترمذي في السنن ۱۴۲/۲ رقم الحديث ۷۷۶، وابن ماجه ۵۴۹/۱ رقم الحديث ۱۷۲۱، وأحمد في المسند ۷۱/۳.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۷۰/۳، رقم الحديث ۱۱۹۷، ومسلم في صحيحه ۷۹۹/۱ رقم الحديث ۱۴۰ ۸۲۷، وأبوداود في السنن ۸۰۱/۱، رقم الحديث ۱۱۹۲، والترمذي في السنن ۱۴۱/۳ رقم الحديث [illegible]، وابن ماجه [illegible] رقم الحديث [illegible]

(۳) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۰۰/۲ رقم الحديث ۱۴۴ ۱۱۴۱، وأبوداود في السنن ۸۰۴/۲، رقم الحديث ۲۴۱۹، والترمذي في السنن ۱۴۳/۳ رقم الحديث ۷۷۳، وابن ماجه ۵۴۸/۱ رقم الحديث ۱۷۲۰

ورځو نوم ايام تشريق شوى دى. يو روايت کښې د "**وبعال**" الفاظ هم دي. چې د جماع په معنى کې دى.

يو روايت کښې د **وذکرالله** الفاظ دي. چې د هغې نه اشاره کېږي چې مسلمان ته په کار ده چې خپلې ډيرې خوشحالۍ کې هم د الله د ذکر نه بې خبره نه وي.

## د نفلي روژې د پاره د جمعې د تخصيص حکم

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَا يَصُومُ أَحَدُكُمْ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو کې دې هيڅوک روژه نه نيسي په |
| يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِلَّا أَنْ يَصُومَ قَبْلَهُ أَوْ يَصُومَ بَعْدَهُ.[۲] |
| ورځ د جمعې. خو داسې روژه نيولی شي چې يوه ورځ مخکې يا يوه ورځ وروسته هم روژه ونيسي. |
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا تَخْتَصُّوا لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو مه خاص کوئ شپه د جمعې د الله |
| بِقِيَامٍ مِنْ بَيْنِ اللَّيَالِي وَلَا تَخْتَصُّوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِصِيَامٍ مِنْ بَيْنِ الْأَيَّامِ |
| تعالى د عبادت د پاره په ټولو ورځو کې او همدارنګې مه خاص کوئ ورځ د جمعې د روژې نيولو لپاره په |
| إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي صَوْمٍ يَصُومُهُ أَحَدُكُمْ .[۲] |
| ټولو ورځو کې خو که تاسو د روژو په مينځ کې د مخکې نه راروان وي او جمعه راشي (نو بيا صرف د جمعې |
| په ورځ روژه نيولو کې څه باک نشته دى). |

**توضيح** : **لا تختصوا** : يعنې هيڅ يو کس دې د جمعې ورځ د روژې لپاره نه خاص کوي. که د جمعې نه مخکې يا وروسته ورځو کې هم روژه ونيسي. نو بيا صحيح ده ځکه اوس تخصيص پاتې نشو.

شيخ توربشتي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې شريعت په دوه وجوهاتو باندې د عبادت لپاره د تخصيص کولو نه ممانعت کړې دى. د ممانعت اوله وجه مونږ دا ويلى شو چې نصاراؤ د هفتې ورځ د تعظيم په توګه د عبادت او د روژې لپاره خاص کړې ده. او يهودو د يک شنبې (اتوار) ورځ د عبادت او خاص کړ د

---

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۳۲/٤، رقم الحديث ۱۹۸۵، ومسلم في صحيحه ۸۰۱/۲ رقم الحديث :۱٤۷-۱۱٤٤، وأبوداود في السنن ۸۰۵/۲، رقم الحديث. ۲٤۲۰، والترمذي في السنن ۱۱۹/۳ رقم الحديث:۷٤۳، وابن ماجه ۵٤۹/۱ رقم الحديث : ۱۷۲۳، وأحمد في المسند ٤۵۸/۲.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۰۱/۲ رقم الحديث :۱٤۸-۱۱٤٤.

روژي لپاره خاص کړي ده. اسلام د جمعې ورځ روژې لپاره د خاص کولو نه منع کړي ده چې د یهودو او نصاراؤ سره مشابهت را نه شي.

د ممانعت دویم وجه سونړ دا ویلی شو چې الله د جمعې ورځ د یو ځو عبادتونو لپاره خاص کړي ده او د اونۍ نورې ورځې یې هم د څه خصوصي اعمالو سره خاص کړي دي نو بالکل مناسبه نه وه چې د الله د تخصیص سره یو انسان هم تخصیص شروع کړي (یعنې د عبادتونو لپاره تخصیص فقط د الله حق دی).

ملا علي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ دا کلام نقل کړی دی او د هغې نه وروسته فرمایي چې د یو حکم حکمت یا د مصلحت معلومول د یو بنده کار نه دی. د بنده د شان سره خو دا اعتراف او اعلان دی چې زمونږ هر حکم منل او په هغې باندې عمل کول دي.

**لیلة الجمعة:** دې حدیث کې دي چې د جمعې ورځ د کوم عبادت لپاره مه خاص کوی. دا حدیث صریح او صحیح او علی الاعلان اعلان کوي چې جمعه د هیڅ یو نیک کار لپاره مه خاص کوی، د دې ممانعت باوجود هم اهل بدعت د جمعې شپه د عبادت لپاره خاص کوي او د خدای نه نه ویرېږي. نو ځکه اهل بدعتو صلوة الرغائب ایجاد کړو او د جمعې تقدس یې د ښپو لاندې کړو. صلوة الرغائب د رجب په اولنۍ عشره کې اولنۍ جمعې په شپه کې لوستلی کېږي. چې اهل بدعت یې اهتمام کوي.

علامه نووي رَحِمَهُ اللَّهُ شرح مسلم کې لیکي. علماؤ صلوة الرغائب ته بدعت او د مکروه ګرځولو لپاره دا حدیث د استدلال په توګه وړاندې کړی دی. علماؤ د دې مونځ بدعت او اختراع او د دې ایجاد کونکو په ګمراهۍ باندې مستقل کتابونه لیکلي دي الخ.

د علامه نووي رَحِمَهُ اللَّهُ دې کلام سره د تبلیغي جماعت والو سترګې هم پرانستل کیدلو پکار دي چې د جمعې په شپه او سه روزه، چله او ګشت په کارونو کې تر د غلو حد پورې تخصیص او تعیین کوي.

**سوال:** دلته سوال پیدا کېږي چې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو روایت دی چې صاحب مشکوٰة په فصل ثاني کې ذکر کړی دی چې حدیث نمبر ۲۳ دی. هغې په واضحه توګه د جمعه د روژې د نیولو تخصیص بیان دی "**وقلما کان یفطر یوم الجمعة**" اوس دې دواړه حدیثونو کې تعارض دی. د دې څه جواب دی.

**جواب:** د دې سوال دوه جوابونه دي. اولنی جواب دا دی چې ائمه احناف فرمایي چې دا پوښتنه په هغه خلکو ده چې د جمعې د تخصیص قائل نه دي. احناف خو د جمعې تخصیص مني. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ مرقات کې د علامه ابن همام رَحِمَهُ اللَّهُ په حوالې سره داسې لیکي "**قال ابن الهمام ولا بأس بصوم یوم الجمعة منفرداً عن ابي حنيفة و محمد رحمهما الله**". (مرقات ج ۴ ص ۵۴۸)

ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ هم ليکي چې دا نهي تنزيهي ده. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ دا جواب هم کړی دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم ممانعت کړی دی دا د شفقت او د رحمت په بنياد دی چې جمعه کې نور عبادتونه مثلاً غسل دی، سعی ده، خطبه او جمعه ده. او س روژه هم د دې عبادتونو سره ملاؤ کړی شي نو مشقت کې به اخته شي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ دا جواب هم کړی دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه ممانعت کړی دی چې چرته داسي نه دا خلک د جمعې روژه واجب ونه ګڼي. (المرقات ص ۵۵۶ ج ۴)

ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت ته ترجيح ورکوي او د دې د تاويل نه انکار کوي او ليکي چې **"بل ظاهره الاطلاق المؤيد لمذهبنا انه لا يکره افراد صومه"**.

د احنافو علماؤ دا جواب هم کړی دی چې د عبادتونو لپاره د جمعې د تخصيص ممانعت او کراهت په دغه صورت کې دی چې يو کس يو نيک عمل د جمعې لپاره مؤخر کوي. مثلاً صدقه ده، يا يوه روژه ده. د په نورو ورځو کې وزوړندوي او جمعې ته يې ورسوي او دا عمل جمعه کې د ډير ثواب لپاره خاص کړي. دا ځکه منع دی چې د دې د عقيدې د خرابيدو خطر دی. شيخ عبد الحق په **اشعة اللمعات** کې ليکلي دي چې د جمعې د تخصيص د ممانعت وجه دا ده چې نورو ورځو کې عبادت رخصت نه شي ځکه عبادت خو هر وخت کول پکار دی. فقط تر جمعې پورې خاص کول مناسب نه دی. بهرحال نور ائمه د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت کې تاويل کوي او وايي چې دې کې ځان له د جمعې ورځ مراد نه ده بلکي دې سره د نورو ورځو يو ځای کول مراد دي.

## په جهادي سفر کې د روژې نيولو لوی ثواب

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي

ابو سعيد خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چا چې روژه ونيوه يو ورځ په

سَبِيلِ اللهِ بَعَّدَ اللهُ وَجْهَهُ

لاره (يعني د جهاد په وخت کې يا دا چې خالص د الله تعالی لپاره) نو لرې به کړي الله به مخ د ده (يعني ذات

عَنِ النَّارِ سَبْعِينَ خَرِيفًا.[1]

ده) د (دوزخ) د اور نه د اويا کال مسافت په قدر لرې کړي.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۷/۶، رقم الحديث ۲۸۴۰، ومسلم في صحيحه ۸۰۸/۲ رقم الحديث: ۱۶۸-۱۱۵۳.

## په اعمالو کې اعتدال اختیارول په کار دی

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عَبْدَ اللهِ

عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه وايي چې (یو ورځ) نبي کریم صلی الله علیه وسلم ماته وویل چې ای عبد الله!

أَلَمْ أُخْبَرْ أَنَّكَ تَصُوْمُ النَّهَارَ

آیا ماته دا خبر نه دی راکړی شوی (یعني دا ماته معلوم نه شوي دی) چې ته (هره ورځ) ورځ کې روژې نیسې

وَ تَقُوْمُ اللَّيْلَ ؟ فَقُلْتُ : بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللهِ .

او (هره شپه) ټوله شپه د الله عبادت او ذکر او تلاوت کې مشغولېږې؟ ما وویل چې آو یا رسول الله هم داسې

قَالَ : فَلَا تَفْعَلْ صُمْ وَ أَفْطِرْ

ده نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل داسې مه کوه (بلکې) روژه هم نیسه او بغیر د روژې هم اوسېږه، شپه کې

وَ قُمْ وَ نَمْ فَإِنَّ لِجَسَدِكَ عَلَيْكَ حَقًّا

د خدای عبادت هم کوه او ویده کېږه هم ځکه ستا د بدن هم تا باندې حق دی (لهذا خپل بدن ډېر مشقت او

وَ إِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا

ریاضت کې مه اخته کوه چې مریض یا هلاک نه شي) ستا د سترګو هم تا باندې حق دی (ځکه شپه کې لږ

وَ إِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا

اوده کېږه چې سترګې دې لږ آرام او راحت ومومي) ستا د ښځې تا باندې حق دی (هغې سره شپه او صحبت

وَ إِنَّ لِزَوْرِكَ عَلَيْكَ حَقًّا .

او مباشرت کوه) او ستا د میلمنو هم تا باندې حق دی (لهذا د دوي سره خبرې اترې کوه، د دوي سره خوراک

لَا صَامَ مَنْ صَامَ الدَّهْرَ.

څښاک کې شریک کېږه) کوم سړی چې همیشه روژه ونیوله، هغې (ګویا کې) روژه و نه نیوله (البته) هره

صَوْمُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ . صُمْ كُلَّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ

میاشت کې درې ورځې روژې د همیشه روژه نیول سره برابر دي. لهذا هره میاشت کې درې ورځې (یعنې

وَ اقْرَأِ الْقُرْآنَ فِيْ كُلِّ شَهْرٍ

ایام بیض یا مطلقا که هرې درې ورځې وي) روژې نیسه او د غه شان هره میاشت کې قرآن لوله (یعنې یو

قُلْتُ : إِنِّي أُطِيقُ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ.

مياشت کې يو ځل د قرآن ختم کوه) ما ورويل چې زه خو ددې نه هم ډېر کولو همت لرم نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

قَالَ : صُمْ أَفْضَلَ الصَّوْمِ صَوْمَ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ : صِيَامُ يَوْمٍ

وفرمايل (نو بيا) بهترينه روژه د داؤد روژه ده هغه نيسه (چې د هغې طريقه داده چې) يوه ورځ روژه نيسه

وَ إِفْطَارُ يَوْمٍ . وَ اقْرَأْ فِي كُلِّ سَبْعِ لَيَالٍ مَرَّةً وَلَا تَزِدْ عَلَى ذٰلِكَ. [1]

او بله ورځ يې مه نيسه او اووه شپو کې يو قرآن ختموه او دې کې اضافه مه کوه (يعنې نفل روژې نيول او د قرآن ختم کولو کې د پاس ذکر شوي شمير او مقدار نه زياتی مه کوه).

**توضيح** : کله چې حضرت عبد الله ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واده وکړو نو څه لږه موده وروسته د هغې پلار عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپلې نګور نه وپوښتل چې زما ځوي څنګه دی؟ نګور جواب ورکړو چې ډېر ښه او نيک سړی دی. ټوله ورځ روژه نيسي او بيا ټوله شپه تهجد کوي. د دې اشاري سره حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوهه شو چې حقوق زوجيت کې ځوې خطا کوي. هغه لاړو او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې شکايت وکړو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې ځوې پوهه کړي. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې آيا ماته د دې خبر نشته دی چې ته ټول ورځ روژه نيسي او ټوله شپه تهجد کوي؟ هغې اقرار وکړو. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته د اعتدل اختيارولو لپاره وويل چې د اعتدال لاره اختيار کړه. ځکه په تا باندې ډېر حقوق دي. د هغې ادا کول هم ضروري دي. لهٰذا عبادت کې دومره خطا مه کوه چې عملي ژوند ته نقصان وي او نه دومره غلو او تشدد پکار دی چې د انسان ټوله قوی مفلوج شي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هر هر شي نوم اخستلو سره هغې ته لار ښودنه وکړه. (المرقات :۴/۵۵۲).

يو چا ښتيا ويلي دي :

جہاں تک آپ کی تقلید ہے اسی حد تک ❁ سلیقۂ بشریت بشر کو ملتا ہے

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۱۷/٤، رقم الحديث ۱۹۷۵، ومسلم في صحيحه ۸۱۲/۲ رقم الحديث :۱۸۲-۱۱۵۹، وأبوداود في السنن ۸۰۹/۲، رقم الحديث. ۲٤۲۷.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د دوشنبې (پیر) او پنجشنبې (جمعرات) د روژو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسَ. (۱) |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راویه ده وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د پیر او جمعرات په ورځ (نفل) روژه نیوله. |
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: تُعْرَضُ الْأَعْمَالُ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل وړاندې کیږي اعمال (د الله تعالی په دربار |
| يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَ الْخَمِيسِ فَأُحِبُّ أَنْ يُعْرَضَ عَمَلِي وَ أَنَا صَائِمٌ. (۲) |
| کې) د پیر او جمعرات په ورځ ځکه زه خوښوم چې زما اعمال وړاندې کیږي نو چې زما روژه وي. |

**توضیح**: فرښتې د انسانانو ورځنې اعمال لیکي او پاس خیجي. بیا د جمعرات او د پیر په ورځ الله تعالی په دربار کې هغه عملونه وړاندې کیږي. لهذا دا حدیث د هغه حدیث سره معارض نه دی چې هغې کې ویل شوي دې چې د انسان ورځني عملونه الله ته وړاندې کیږي.

## په هره اسلامي میاشت کې دیارلسم او څوارلسم تاریخ ایام بیض دي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا أَبَا ذَرٍّ إِذَا صُمْتَ مِنَ الشَّهْرِ |
| ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ابو ذره! که ته روژې نیول غواړې په میاشت کې |
| ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَصُمْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ وَأَرْبَعَ عَشْرَةَ وَ خَمْسَ عَشْرَةَ. (۳) |
| درې ورځې نو په دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم باندې روژې نیسه. |

**توضیح**: هره میاشت کې د درې نفلي روژو نیولو ډیرې طریقې دې خو بهتره او افضله همدغه ده چې هغه د ایام بیض روژې دي. چې د هغې مصداق د د هرې میاشتې دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاریخ دی. لکه څنګه چې د بحث لاندې حدیث کې د دې تصریح او وضاحت موجود دی. د ایام بیض معنی "ده سپینه او رڼا ورځ. هره میاشت په همدغه تاریخونو کې سپوږمۍ پوره شي او ښه رڼا شي. ځکه دې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۱/۳، رقم الحديث: ۷۴۵، نسائي ۲۰۲/۴ رقم الحديث: ۲۳۶۱، ابن ماجه ۵۵۳/۱ رقم الحديث ۱۷۳۹، مسند أحمد ۱۰۶/۶.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۲/۳ رقم الحديث: ۷۴۷.

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ۱۳۴/۳ رقم الحديث: ۷۶۱، والنسائي ۲۲۳/۴ رقم الحديث: ۲۳۲۲.

ته ايام بيض ويل شوي دي. لهذا مسلمان ته په کار ده چې د استحباب په توګه د دې روژو اهتمام وکړي. اهل تصوف او د هغوی په خانقاهي نظام کې د روژو ډير اهتمام کېږي. مدرسو کې طلباء کرام هم دغه روژې نيسي. بانډو کې، کورونو کې ښځې د دې ډير اهتمام کوي خو د تبليغي جماعت معتبر حلک عموماً دا روژې نه پېژني. ځکه هغوی اعمالو [illegible] کم شوي

**د جمعې په ورځ نفلي روژه نيول جائز ده**

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُوْمُ مِنْ غُرَّةِ كُلِّ |
| عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به روژې نيولې په شروع د هرې |
| شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَ قَلَّمَا كَانَ يفطر يَوْم الْجُمُعَةَ. وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ إِلَى ثَلَاثَةَ أَيَّام [1] |
| مياشتې کې درې ورځې او ډير کم به داسې ؤ چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د جمعې په ورځ روژه نه ؤ. |

## د مياشتې په ټولو ورځو کې روژه نيول جائز ده

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُوْمُ مِنَ الشَّهْرِ السَّبْتَ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راويه ده وايي چې: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله روژې نيولې په مياشت کې د هفتې، |
| وَ الْأَحَدَ وَ الِاثْنَيْنِ وَ مِنَ الشَّهْرِ الْآخر الثُّلَاثَاء وَ الْأَرْبعَاء وَ الْخَمِيس. [2] |
| اتوار او د پير او کله به يې روژې نيولې په مياشت کې د منګل، چهارشنبې او جمعرات په ورځ. |
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنِي أَنْ أَصُومَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ |
| ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ماته حکم کولو چې، زه نفلي روژې ونيسم درې ورځې |
| مِنْ كُلِّ شَهْرٍ أَوَّلُهَا الِاثْنَيْنِ وَ الْخَمِيس. [3] |
| په هره مياشت کې او د هغې شروع د دوشنبې او د پنجشنبې څخه وکړم. |

**توضيح**: خميس: پنجشنبې (جمعرات) ته وايي. او دلته لفظ "واو" د "او" په معنی کې دی. يعنې که شروع د هرې ورځې نه وي که د دوشنبې د ورځې نه وي يا د پنجشنبې د ورځې نه وي خو په مياشت کې درې روژې نيول په کار دي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في [illegible]

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳ ۱۲۲ رقم الحديث ۷٤٦.

(۳) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۸۲۲، رقم الحديث ۲٤٥٢.

## دويرې صيام الدهر نيول جائز دي

﴿۲٦﴾ وَعَنْ مُسْلِمٍ الْقُرَشِيِّ قَالَ سَأَلْتُ أَوْ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صِيَامِ الدَّهْرِ

مسلم قرشي رضي الله عنه وايي چې ما پوښتنه وکړه يا پوښتنه وکړه شوه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه د هميشه روژو نيولو

فَقَالَ : إِنَّ لِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا صُمْ رَمَضَانَ

نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې [illegible] ستا اهل و عيال هم حق دی نو ځکه روژې ونيسه په رمضان

وَالَّذِي يَلِيهِ وَكُلَّ أَرْبِعَاءَ وَخَمِيسٍ

کې او په هغه ورځو کې چې رمضان پسې متصل دي يعنې د شوال شپږ روژې (زيات نه زيات) هره چهارشنبه

فَإِذًا أَنْتَ قَدْ صُمْتَ الدَّهْرَ كُلَّهُ. (۱)

او پنجشنبه روژه نيسه که تا دا روژې ونيولې نو پوهه شه چې هميشه دې روژې ونيولې.

## په عرفاتو کې د عرفې په ورځ روژه نيول مکروه ده

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَهَى عَنْ صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ. (۲)

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم عرفات کې د عرفې په ورځ د روژې نيولو نه منع کړې ده.

**توضيح**: ميدان عرفات کې حاجيان راجع کېږي. هغه ورځ باندې ډېر په محنت او مشقت سره الله ته زاري و فرياد کوي، دعا کول د الله ذکر کول او تلبيه کې مشغوليدل الله ته ډېر محبوب دي. لهذا که په دې ورځ حاجي روژه ونيسي نو اعمالو ته به يې نقصان ورسېږي. حاجي به کمزوری شي او الله ته د خپل حالت فرياد او زاري نه شي کولی. نو ځکه د حاجيانو لپاره په دې ورځ روژه نيول مکروه تنزيهي ده. د حاجيانو نه بغير د نورو خلکو لپاره عرفې په ورځ روژه نيولو کې ډېر ثواب دی. دې کې ناراستي کوژ په ... [illegible] حاجيانو لپاره کراهت تنزيهي ده. (المرقات: ۴/۵۵۸).

## يوازې د هفتې په ورځ روژه مه نيسه

﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ عَنْ أُخْتِهِ الصَّمَّاءِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

عبدالله بن بسر رضي الله عنه د خپل خور اصماء رضي الله عنها نه نقل کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

---

۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۸۱۲، رقم الحديث: [illegible] والترمذي في السنن ۳/۱۲۲، رقم الحديث: ۷۴۸.

۲) أخرجه [illegible] ۲/۸۱۲، رقم الحديث: ۲۴۴۰.

| لَا تَصُومُوا يَوْمَ السَّبْتِ إِلَّا فِيمَا افْتُرِضَ عَلَيْكُمْ فَإِنْ |
|---|
| تاسو يوائې دهفتې دورځې روژه مه نيسئ. مګر دا چې په دغه ورځ روژه نيول ضروري وي لهذا که په تاسو |
| لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا لِحَاءَ عِنَبَةٍ أَوْ عُودَ شَجَرَةٍ فَلْيَمْضُغْهُ.(۱) |
| کې يو سړی د انګور د بوټې پوټکې يا د اوني د لرګې نه غيره هيڅ بيا نه مومي نو هم هغه دې وچوپي. |

**توضيح**: ددې نه مخکې روايت نمبر ۲۴ نه معلومه شوه چې د هفتې په ورځ روژه منع نه ده. بلکې راروان حديث نمبر ۳۲ کې خو د روژې د نيولو حکم دی چې د يهودو مخالفت وشي. خو دلته دې حديث کې د ممانعت ذکر دی. چې په ظاهره تعارض دی. د دې جواب دا دی چې دا نهي او کراهت مکروه تنزيهي باندې محمول دی چې حقيقت کې د اولی او غير اولی خبره ده. يعنې د هفتې په ورځ روژه خلاف اولی ده. که څوک روژه ونيسي نو جائز ده. دويم جواب دا دی چې دا ممانعت ځکه دی چې روژه نيولو سره د دې ورځې د تعظيم احتمال دی. ځکه دا د يهودو و عبادت ورځ ده. يهود اګر که دې کې عبادت کې نه کوي بلکې اختر په کې لمانځي. خو بيا هم ممانعت ځکه دی چې روژه نيول سره د دې ورځې د تعظيم احتمال دی او دا احتمال د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په روژه کې نه ؤ نو روژه نيول د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيت ؤ او نه نيول د امت خصوصيت دی. (المرقات :۴/۵۵۹).

**الا لحاء**: د بوټي پوستکی ته لحاء وايي. چې چهال هم ورته وايي.

**عنبة**: د انګور بوټی مراد دی.

**عود**: د لرګي په معنی دی. (المرقات :۴/۵۵۹).

| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللهِ |
|---|
| ابو امامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چاچې روژه ونيوله يوه ورځ په لاره د الله |
| جَعَلَ اللهُ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ النَّارِ خَنْدَقًا كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَ الْأَرْضِ.(۲) |
| کې الله به دده او د(دوزخ) په مينځ کې يوه کنده راولي چې د آسمان او د زمکې د مسافت به برابر وي. |

**توضيح**: د في سبيل الله لفظ د حج لپاره ويل کيدی شي. د علم سفر باندې هم د دې اطلاق کيدی شي خو دلته اولني مصداق جهاد دی "اى في سبيل الجهاد". (المرقات :۴/۵۶۰).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۸۰۵/۲، رقم الحديث : ۲۴۲۱ ، والترمذي في السنن ۱۲۰/۳ رقم الحديث :۷۳۳.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۴۳/۴ رقم الحديث :۱۶۲۴

## کم تکليف او ډير عبادت

﴿۳۰﴾ وَ عَنْ عَامِرِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: اَلْغَنِيمَةُ الْبَارِدَةُ

عامر ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل يخ غنيمت (يعني د محنت او

اَلصَّوْمُ فِي الشِّتَاءِ . وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ مُرْسَل

مشقت ثواب ګټل) د ګرمۍ روژې نيول دي. امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا حديث مرسل دی (ځکه د

وَ ذَكَرَ حَدِيثَ

ډېنو حضراتو په نزد عامر ابن مسعود رَحِمَهُ اللهُ صحابي نه بلکې تابعي دی) او ذکر شوی دی حديث د

أَبِي هُرَيْرَةَ : مَا مِنْ أَيَّامٍ أحب إِلَى اللهِ فِي بَاب الْأُضْحِية .[1]

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **ما من ايام احب الى الله** د قرباني په باب کې.

**توضيح:** غنيمت بارده نه مراد همدغه دی چې محنت لږ او ثواب ډير ځکه يخنۍ کې تنده لږه وي نو روژه په آسانۍ سره نيول کيږي ورځې هم وړې وي نو کم تکليفه او ډير ثواب لرونکي روژه ده (المرقات ۴/۵۶۱)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د عاشورې دورځې د روژې پس منظر

﴿۳۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَدِمَ الْمَدِينَةَ فَوَجَدَ الْيَهُودَ

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې (کله) مديني ته راغلو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

صِيَامًا يَوْمَ عَاشُورَاءَ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: مَا هٰذَا الْيَوْمُ الَّذِي

وليدل چې يهود د عاشورې روژه نيولي ده نبي عَلَيْهِ السَّلَام د وی نه تپوس وکړو چې د دې ورځې څه خصوصيت

تَصُومُونَهُ ؟ فَقَالُوْا : هٰذَا يَوْمٌ عَظِيمٌ : أَنْجَى اللهُ فِيهِ

دی چې تاسو روژه نيسی.؟ يهودو وويل چې دا ډيره عظيمه ورځ ده دې ورځ باندې الله خلاصي ورکړې ؤ

مُوسَى وَ قَوْمَهُ وَ غَرَّقَ فِرْعَوْنَ وَ قَوْمَهُ فَصَامَهُ مُوسَى شُكْرًا

موسی عَلَيْهِ السَّلَام او د هغه قوم ته او فرعون او د ده قوم يې ډوب کړی ؤ نو روژه ونيوله په دې ورځ موسی

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۶۲/۳ رقم الحديث : ۷۹۷ ، وأحمد في المسند ۲۳۵/٤ .

فَنَحْنُ نَصُومُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ، صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

عَلَيْهِ السَّلَامُ د شكر ادا كولو په طور ځكه مونږ هم روژه نيسو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل ستاسو مقابل

فَنَحْنُ أَحَقُّ وَ أَوْلَى بِمُوسَى مِنْكُمْ

كې مونږ موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ډير نزدې يو او (د هغوى د طرف نه د شكر ادا كولو په طور د روژې نيولو) ډير حقدار

فَصَامَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَمَرَ بِصِيَامِهِ.[1]

يو. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د عاشورې روژه خپله هم ونيوله او نورو ته يې هم د نيولو حكم وكړو.

## د يهودو او نصارا او مخالفت

﴿۳۲﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ يَوْمَ السَّبْتِ وَيَوْمَ الْأَحَدِ

ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به روژه نيوله د هفتې په ورځ او د اتوار په ورځ د نورو

أَكْثَرَ مَا يَصُومُ مِنَ الْأَيَّامِ وَ يَقُولُ : إِنَّهُمَا يَوْمَا عِيدٍ لِلْمُشْرِكِينَ

ورځو په نسبت ډيره روژه نيوله او فرمايل به يې چې دا دواړه ورځې د مشركانو لپاره اخترد ى (چې هغوى

فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أُخَالِفَهُمْ . (۲)

په كې روژه نه نيسي). لهذا زه دا خوښم چې (دې ورځو كې روژه ونيسم او) د هغوى مخالفت وكړم.

**توضيح**: سوال دا دى چې ددې نه مخكې حديث نمبر ۲۸ كې په واضحه توګه د هفتې په ورځ د روژې نيولو ممانعت دى نو دلته حديث كې اجازت ولې دى؟ د دې جواب دا دى چې د حديث نمبر ۸ تعلق د امت سره دى او دلته د جواز تعلق د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ذات سره دى. هلته د امت خصوصيت دى او دلته د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيت دى.

**للمشركين**: يهودو ته ځكه مشرك وويل شو چې هغوى حضرت عزير عَلَيْهِ السَّلَامُ د الله ځوى ګڼلو او عيسايانو ته ځكه مشرك وويل شو چې هغوى حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ د الله ځوى وګرځولو.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۴۴/۴، رقم الحديث ۲۰۰۴، ومسلم في صحيحه ۷۹۵/۲ رقم الحديث ۱۲۷ ۱۱۳۰، وأبوداود في السنن ۸۱۸/۲، رقم الحديث: ۲۴۴۴، وأحمد في المسند ۳۵۹/۲.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۳۲۴/۶.

## د رمضان نه مخکې د عاشورې د روژو تاکيدؤ

﴿۳۳﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِصِيَامِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ

جابر ابن سمر رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم مخكې مونږ ته د عاشورې د روژې د نيولو حكم كولو

وَ يَحُثُّنَا عَلَيْهِ وَ يَتَعَاهَدُنَا عِنْدَهُ

كولو او ترغيب به يې راكولو او د هغه ورځ د راتلو وخت كې به يې زمونږ خبر اخستلو (يعني د عاشورې ورځ

فَلَمَّا فُرِضَ رَمَضَانُ

به چې رانزدې شوه نو د دې روژې د نيولو نصيحت به يې كولو) خو كله چې د رمضان روژې فرض شوي نو نبي

لَمْ يَأْمُرْنَا وَ لَمْ يَنْهَنَا عَنْهُ وَ لَمْ يَتَعَاهَدْنَا عِنْدَهُ.[1]

عليه السلام مونږ ته نه امر وكړو او نه يې منع كړو د روژې نيولو نه او نه يې د دې راتلو وخت كې زمونږ خبر اخيستو

﴿۳۴﴾ وَ عَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ: أَرْبَعٌ لَمْ يَكُنْ يَدَعُهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

حفصه رضي الله عنها وايي چې څلور شيان داسې دي چې هغه به نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه پريخودل (ځكه

صِيَامُ عَاشُورَاءَ وَ الْعَشْرِ

سنت مؤكده دي) اول د يوم عاشورې روژې دويم د عشره ذو الحجه (يعني د ذى الحجه د ابتدائي نهه ورځو)

وَ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَ رَكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ.[2]

روژې، دريم هره مياشت كې درې روژې، څلورم د سحر نه مخكې دوه ركعته (د فجر دوه سنت ركعته).

## د ايام بيض روژې

﴿۳۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُفْطِرُ أَيَّامَ الْبِيضِ فِي

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم په غير د روژې نه پاتې كيدو په ايام بيض كې نه په

حَضَرٍ وَلَا فِي سَفَرٍ.[3]

كور كې او نه سفر كې.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۷۹٤/۲ رقم الحديث: ۱۲۵ – ۱۱۲۸.

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۲۲۰/٤ رقم الحديث: ۲٤۱٦، وأحمد في المسند ۲۸۷/٦.

(۳) أخرجه النسائي في السنن ۱۹۸/٤ رقم الحديث: ۲۳٤۵.

**توضیح**: **ایام بیض** یعني د سپوږمۍ د شپو روژي، **ایام** جمع ده دا مضاف دی او **بیض** مضاف الیه دی خو دا د مضاف الیه صفت دی. د دې موصوف **لیالي** دی. اصل عبارت داسي دی "**ایام لیالي البیض**" هره میاشت کې دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم اسلامي تاریخ باندې دا روژې نیول کېږي. ټول کال کې د نفلي روژو شمیر یو پنځوس (۵۱) دي. یولس میاشتو کې درې دیرش (۳۳) روژې نو همدغه ایام بیض دي. نهه روژې د عشره ذی الحجه دي. دوه روژې د یوم عاشوره دي. یوه د پنځلسم شعبان ده او شپږ د شوال دي. ۶+۱+۲+۹+۳۳=۵۱.(المرقات :۴/۵۶۶).

## روژه نیول د بدن زکوة دی

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ شَيْءٍ زَكَاةٌ وَ |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دي وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د هر شي لپاره زکوة دی او د |
| زَكَاةُ الْجَسَدِ الصَّوْمُ .(۱) |
| بدن زکوة روژه نیول دي. |

**توضیح**: **زکوٰة الجسد**: یعنې د هر شي لپاره زیاتوالی او پاکوالی وي. د بدن زیاتوالی روژې دې څکه روژه کې د خوارو د قلت په وجه ډیري مریضتیاګاني کمي شي. یو پوهه ډاکټر ماته وویل چې د ایام بیض د روژو پابندي کونکي د شوګر د مریضتیا نه بچ وي. دغه دې ګناهونو سره د سرې ګناهونو د نجاست محفوظ وي نو طهارت عن المعاصي راشي. لهذا د زکوة د پاکوالي پوره مفهوم په روژه باندې صادق دی. څکه ورته **زکوة الجسد** ویل شوی دی. (المرقات :۴/۵۶۷).

د بهیقی په یو روایت کې دې چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې الله د بنی اسرائیلو یو نبي ته وحي ولېږله چې خپل قوم ته خبر ورکړه چې کوم کس زما د خوشحالی لپاره روژه نیسي نو زه فقط دا نه چې د هغې بدن تندرسته ساتم بلکې هغې له ډیر ثواب هم ورکوم.

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَصُومُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ. |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به د پیر او د جمعرات په ورځ روژه نیوله. نو نبي |
| فَقِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ ! إِنَّكَ تَصُومُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَ الْخَمِيسِ. |
| علیه السلام ته وویل شو چې یارسول الله! تاسې د پیر او جمعرات په ورځ (اکثر) روژه نیسي؟ نبي علیه السلام |

(۱) أخرجه ابن ماجه ۱/۵۵۵ رقم الحدیث :۱۷۴۵.

فَقَالَ : إِنَّ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَ الْخَمِيسِ يَغْفِرُ اللهُ فِيهِمَا لِكُلِّ مُسْلِمٍ إِلَّا
وفرمايل پيراو جمعرات دادوه ورځې دي چې الله په کې د هر مسلمان بخشش کوي بغير د هغه دوه خلکو

ذَا هَاجِرَيْنِ
نه چې تعلقات يې پريخودي وي نو الله (هغه فرښتو ته چې دا ثار مغفرت ظاهريدو وخت کې بدي ورانولو

يَقُولُ : دَعْهُمَا حَتَّى يَصْطَلِحَا". [1]
باندې مقرر شوي دي) وايي چې دوې پرېږده هرهغه وخت پورې چې دوې (خپل مينځ) کې صلح وکړي.
د هغې نه وروسته به د دوې مغفرت کېږي.

## د الله تعالى د خوشحالۍ لپاره د نفل روژې ثواب

﴿۳۸﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ صَامَ يَوْمًا
ابو هريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل : کوم کس چې روژه ونيسي يوه

ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللهِ بَعَّدَهُ اللهُ مِنْ جَهَنَّمَ كَبُعْدِ غُرَابٍ طَائِرٍ
ورځ دالله دخوشحالولو دپاره نو الله تعالى هغه لره دالوتونکې کارغه دمزل په اندازه د دوزخ نه لرې ساتي

وَ هُوَ فَرْخٌ حَتَّى مَاتَ هَرِمًا. [2]
څوک چې ماشوم وي او د بوډاوالي په حالت کې مړ شي.

**توضيح : غراب طائر:** وايي چې د کارغه عمر زر (۱۰۰۰) کاله وي. دغه شان الوتل يې هم تيز دي. اوس غور وکړه چې د عمر د اول نه تر بوډا والي پورې مسلسل الوځي نو څومره مسافت به تيروي؟ څومره مسافت چې هغه تيروي د هغې په مقدار به الله روژه دار د دوزخ نه لرې ساتي. (المرقات : ۴/۵۶۸).
بيهقي کې يو روايت دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د روژه دار اوده کيدل عبادت دی. خاموشي يې تسبيح ده. عمل يې دوه چنده دی دعاء يې مقبوله ده او گناهونه يې معاف دي.
طبراني نه منقول دي چې د الله سره يو دسترخوان دی چې قِسما قِسم نعمتونه په کې پراته دي چې هيچا يې تصور نه دی کړی. نه چا اوريدلی دی، نه يې ليدلی دی. دې دسترخوان ته به فقط روژه دار کيني.

﴿اللهم ارزقنا ما بيّن رسولك من النعم﴾

---

(۱) أخرجه ابن ماجه ۵۵۳/۱ رقم الحديث ۱۷۴۵، وأحمد في المسند ۲۲۹/۲.
(۲) أخرجه أحمد في المسند ۵۲۶/۲، أخرجه البيهقي في شعب الايمان عن سلمة بن قيص ۲۹۹/۳ رقم الحديث : ۳۵۹۰.

# متفرقه مسائل

## د نفل روژو نیت په ورځ کې کیدې شي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَقَالَ: هَلْ |
| عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې (يوه ورځ) نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما خوا له راغلو او وې ويل چې آيا تا سره |
| عِنْدَكُمْ شَيْءٌ ؟ فَقُلْنَا : لَا قَالَ : فَإِنِّي إِذًا صَائِمٌ. |
| (د خوراک) څه شی شته دی؟ ما وويل چې نه نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې ما اوس روژه نيولې ده بيا د |
| ثُمَّ أَتَانَا يَوْمًا آخَرَ |
| هغې نه وروسته يو بله ورځ نبي عَلَيْهِ السَّلَام راغلو (او وې پوښتل چې تا سره د خوراک څه شی شته دی؟) نو |
| فَقُلْنَا : يَا رَسُولَ اللّٰهِ أُهْدِيَ لَنَا حَيْسٌ |
| ما ورته وويل چې يارسول الله! مونږ حيس په هديه کې راغلی دی نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې را اوړه ماته يې |
| فَقَالَ : أَرِينِيهِ فَلَقَدْ أَصْبَحْتُ صَائِمًا فَأَكَلَ. [1] |
| وښايه ما سحر روژه نيولې وه. بيا نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه حيس وخوړلو. |

**توضيح: فاني اذا صائم:** دې جملې نه دا مسئله ثابته شوه چې د نفل روژو نيت د ورځې د زوال نه مخکې کول جائز دی. د فقهاؤ په دې باندې اتفاق دی. فقط امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د نفل روژو لپاره هم نيت ضروري دی چې د دې نيت د شپې نه وي. د دې ټول تفصيل تير شوی دی. (المرقات: ۴/۵۷۰).

**اصبحت صائما فاکل:** حديث د دې جملې نه يوې بلې اختلافي مسئلې اړخ ته اشاره وشوه. هغه دا چې نفل روژه بغير د څه عذر نه ماتيدلی شي يا نا. د جمهور علماؤ همدغه مسلک دی. چې ماتيدلی شي. خو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې نفل روژه د نيولو نه وروسته واجب شي. لهٰذا د عذر نه بغير د دې ماتول نشته دی. او عذر صورت هم د ماتولو ګنجائش دی خو بيا قضا لازمه ده. اختلاف او دلائل د راروان حديث نمبر ۴ د لاندې راځي. څه انتظار وکړې.

**حيس:** د يو خوارو نوم دی چې د ماليده په شان دی. کهجوري، غوړي او د قورتو نه جوړيږي. (المرقات ۴/۵۷۰).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۰۹/۲ رقم الحديث: ۱۷۰-۱۱۵۴، وأبوداود في السنن ۸۲۴/۲، رقم الحديث ۲۴۵۵، وأحمد في المسند ۲۰۷/۶.

## د نفلي روژې ماتولو لپاره څه عذر دی؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى أُمِّ سُلَيْمٍ فَأَتَتْهُ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يو ځل) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ام سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خواته لاړو نو هغې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته |
| بِتَمْرٍ وَ سَمْنٍ فَقَالَ: أَعِيدُوا سَمْنَكُمْ فِي |
| كهجوري او غوړي راوړل (چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام يې وخوري) نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغې ته وويل چې كيږده غوړي په |
| سِقَائِهِ وَ تَمْرَكُمْ فِي وِعَائِهِ فَإِنِّي صَائِمٌ. ثُمَّ قَامَ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنَ الْبَيْتِ |
| مشک كې او كهجوري په لوخي كې ځكه چې زه روژه يم بيا نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د كور په يو كوټ كې د |
| فَصَلَّى غَيْرَ الْمَكْتُوبَةِ فَدَعَا لِأُمِّ سُلَيْمٍ وَ أَهْلِ بَيْتِهَا.(۱) |
| فرض نه بغير مونځ شروع كړو او ام سليم او د هغې د كور والو لپاره يې دعاء وكړه. |

**توضيح**: كه د چا نفلي روژه وي او هغه ورځ د هغې خاص ميلمانه راغلل. نو آيا د هغې اضافت عذر دی چې دغه سړی روژه ماته كړي يا عذر نه دی؟ دې باره كې د علماؤ لړ شان اختلاف دی. خو راجح همدغه دی چې كچرې ميلمه د هغې په وجه خوراک كې څه باک محسوسوي يا د هغې نه بغير خوراک نه كوي يا د هغې زړه ماتونه پري كيږي. يا هغوی نا خوښي او تنګسيا محسوسوي. نو دې صورت كې ضيافت عذر دی. روژه ماتولی شي. د ائمه احنافو په كتابونو كې ليكل شوي دي چې داسي صورت كې به روژه دار ته دوه اجرونه ملاويږي. يو خو دا چې هغې د ميلمانو ميلمستيا وكړه او بله دا چې هغې وروسته روژه ماته كړه. خو كه د ميلمنو په وجه پاس ذكر شوي مشكلات نه راځي نو د روژې ماتولو لپاره ضيافت عذر نه دی. د حضرت ام سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم دغه صورت وُ ځكه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روژه ماته نه كړه. بهرحال كه مشر سړی وي نو هغه ته په كار دي چې نفل وكړي او د كور والو لپاره دعا وكړي لكه څنګه چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ام سليم لپاره وكړه. (المرقات: ۴/۵۷۰).

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تاسو كې څوک د خوراک لپاره راوبلل شي |
| وَ هُوَ صَائِمٌ فَلْيَقُلْ: إِنِّي صَائِمٌ. وَ فِي رِوَايَةٍ |
| او دهغه روژه وي نو هغه ته په كار دي چې داووايي چې زه روژه دار يم او يو بل روايت كې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث: ۱۹۸۲.

| قَالَ : إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ فَلْيُجِبْ فَإِنْ كَانَ صَائِمًا |
|---|
| وفرمایل چې که تاسو کې چاته دعوت درکړل شي نو هغه ته په کار ده چې دعوت قبول کړي او که هغه روژه |
| فَلْيُصَلِّ وَ إِنْ كَانَ مُفْطِراً فَلْيَطْعَمْ . (۱) |
| داروي نو دوه رکعته نفل مونځ دې وکړي او که روژه دار نه وي نو ورته په کار ده چې خوراک کې شریک شي |

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په نفلي روژې ماتوونکي باندې قضاء شته او که نه ؟

| ﴿٤﴾ عَنْ أُمِّ هَانِئٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْفَتْحِ فَتْحِ مَكَّةَ جَاءَتْ فَاطِمَةُ |
|---|
| دام هانی رضي الله عنها نه روایت شوی دی چې کله مکه فتح شوه نو هغه ورځ باندې فاطمه رضي الله عنها راغله او |
| فَجَلَسَتْ عَلَى يَسَارِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أُمُّ هَانِئٍ عَنْ يَمِينِهِ |
| دنبي کریم صلی الله علیه وسلم چپ طرف ته کیناسته او ام هاني رضي الله عنها یې بنې طرف ته ناسته وه دې وخت کې یوې |
| فَجَاءَتِ الْوَلِيدَةُ بِإِنَاءٍ فِيهِ شَرَابٌ فَنَاوَلَتْهُ |
| وینزې یو لوخی راوړو چې هغې کې دخوراک څښاک څه شی ؤ وینزې هغه لوخی نبي علیه السلام ته ورکړو. |
| فَشَرِبَ مِنْهُ ثُمَّ نَاوَلَهُ أُمَّ هَانِئٍ |
| نبي علیه السلام دهغې نه څه اوبه وڅکلې او لوخی یې ام هانی رضي الله عنها ته ورکړو. ام هانی رضي الله عنها هم دهغې |
| فَشَرِبَتْ مِنْهُ فَقَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ لَقَدْ أَفْطَرْتُ وَ كُنْتُ صَائِمَةً فَقَالَ لَهَا : |
| نه وڅکلې او وې ویل چې یا رسول الله! ما خو روژه ماته کړه ځکه زما روژه وه. نبي علیه السلام وفرمایل چې |
| أَكُنْتِ تَقْضِينَ شَيْئًا ؟ قَالَتْ : لَا. |
| آیا ته د (رمضان) کومه قضاء (یا نذر) روژه نیولې وه؟ هغې ورته وویل چې نه (بلکې نفلي روژه وه) نبي |
| قَالَ : فَلَا يَضُرُّكِ إِنْ كَانَ تَطَوُّعًا . وَ فِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ |
| علیه السلام ورته وفرمایل: که دا نفلي روژه وه نو هیڅ باک نه کړي. او په روایت د احمد او ترمذي کې هم |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۰۵/۲ رقم الحديث :۱۵۹-۱۱۵۰، والترمذي في السنن ۱۵۰/۳ رقم الحديث:۷۸۱، وابن ماجه ۵۵۶/۱ رقم الحديث : ۱۷۵۰، وأحمد في المسند ۵۰۷/۲.

| |
|---|
| وَ التِّرْمِذِيّ نَحْوَهُ وَ فِيهِ فَقَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ أَمَا إِنِّي |
| د دې په شان رانقل کړې دا الفاظ هم دې چې ام هاني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل چې يا رسول الله! تاسې ته معلوميدل |
| كُنْتُ صَائِمَةً فَقَالَ : الصَّائِمِ أَمِيرُ نَفْسِهِ |
| په کار دي چې زه زما روژه وه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "نفل روژه نيونکی د خپل نفس مالک دی |
| إِنْ شَاءَ صَامَ وَ إِنْ شَاءَ أَفْطَرَ.[1] |
| که غواړي روژه دې ونيسي او که غواړي روژه دې ماته کړي. |

**توضيح**: نفل روژه که چا ونيوله او بيا يې ماته کړه نو هغې باندې قضاء شته دی يا نا؟ دې باره کې د علماؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام احمد او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد نفل روژه ماتولو کې قضا لازمه نه ده. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد قضا لازم ده. اصل اختلاف د شوافعو او د احنافو دی. (المرقات: ۴/۵۷۱).

**دلائل**: د شوافعو اولنی دليل زير بحث د حضرت ام هاني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی چې دې کې دا الفاظ دي **"فلا يضرك ان كان تطوع"** او يو بل روايت کې دا الفاظ دی **"الصائم المتطوع امير نفسه"** ان شاء **صام اون شاء افطر**. (المرقات: ۴/۵۷۴).

د ائمه احنافو اولنی دليل د قرآن دا ايت دی: ﴿**وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ**﴾. (**سورة محمد آيت: ۳۳**).

د احنافو دويم دليل ورسره لاندې حديث نمبر ۵ دی. چې الفاظ يې دا دي **فقال افضيا يوما أخر مكانه**. د دې په ډيرو طريقو کې اتصال دی. که په ځينو کې انقطاع او ارسال وي نو هغه مضر نه دی. (المرقات ۴/۵۷۶).

د احنافو دريم دليل د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی: **عن عائشه قالت دخل على النبي صلى الله عليه وسلم فقلت له يا رسول الله انا هيأنا لك حيسا فقال اما انى كنت اريد الصوم والكن قربيه سأ صوم يوم أخر مكانه. (طحاوى بيهقى، دار قطنى) (المرقات: ٤/٥٧٦).**

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۸۲۵/۲، رقم الحديث: ۲۴۵۶، والترمذي في السنن ۱۰۹/۳ رقم الحديث: ۷۳۱، وأحمد في المسند ۳۴۲/۶.

**جواب:** د حضرت ام هاني رضي الله عنها په حدیث کې د نفلي روژې ماتولو باندې فقط د عدم نقصان حکم شوی دی. د دې مطلب دا کیدل شي چې روژه د قضا کولو نه وروسته مضرت نه ده. دا حدیث د قضا نه کولو نه بالکل ساکت دی. او احناف دلائل قضا باندې ناطق دي او ناطق د ساکت نه راجح دي.

**دویم جواب:** دا هم دی چې د ام هانی رضي الله عنها دې حدیث کې ډیر ضعف دی. نو علامه منذري رحمه الله

وايي **لایثبت وفي اسناده اختلاف کثیر (مرقات)**. امام ترمذي رحمه الله هم د دې سند کمزوری ګڼلی دی.
د دې حدیث د دویم جزء جواب دا دی چې نفل روزه نیونکی روژې نیولو وخت کې مختار دی. که غواړي ودې نیسي اویا دې نه نیسي. لهٰذا دا قطعي دلیل نه دی.

**دریم جواب:** دا دی چې د حدیث دا جزء هم د قضا نه ساکت دی. او زمونږ دلیل ناطق دی او ناطق د ساکت نه راجح دی. تاویلات اګر که په زور باندې بناء دې خو احنافو د نورو معیار حق د روایتونو په وجه دا تاویلات کړي دي.

د احنافو د طرف نه شوافعو الزامي جواب دا کړی دی چې تاسو کله د نفلي حج او عمرې د ماتولو باندې قضاء واجب ګڼئ نو نفل روژو کې داسې ولې نه کوئ. آخر نفلي روژې او نفلي حج او عمره کې څه فرق دی؟(المرقات :۴/۵۷۵).

## د نفلي روژې ماتونکي به قضاء راګرځوي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : |
| زهري رحمه الله د عروه رحمه الله او هغه د عائشې رضي الله عنها نه نقل کوي چې عائشې رضي الله عنها وویل (یوه ورځ) |
| كُنْتُ أَنَا وَ حَفْصَةُ صَائِمَتَيْنِ فَعَرَضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ |
| زما او د حفصې رضي الله عنها دواړو روژه وه. مونږ ته خوراک راوړی شو. زمونږ د هغې خوړلو ته زړه وشو. نو |
| فَأَكَلْنَا مِنْهُ فَقَالَتْ حَفْصَةُ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا كُنَّا صَائِمَتَيْنِ |
| مونږ هغه خوراک وخوړو د دې نه وروسته حفصه رضي الله عنها وویل چې یا رسول الله! زمونږ روژه وه چې مخې |
| فَعُرِضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ . |
| ته مو خوراک راوړی شو زمونږ ورته زړه وشو او ومو خوړلو (اوس زمونږ باره کې څه حکم دی؟) نبي |

قَالَ : اقْضِيَا يَوْمًا آخَرَ مَكَانَهُ .[1]

عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل چې د بدلې په توګه قضاء يوه روژه ونيسی.

وَ ذَكَرَ جَمَاعَةٌ مِنَ الْحُفَّاظِ رَوَوْا عَنِ الزُّهْرِيِّ

او د حفاظ حديثو يې د يو داسې ډلې ذکر کړی دی چې هغوی دا روايت د زهری رَحِمَهُ اللَّهُ او زهری رَحِمَهُ اللَّهُ د

عَنْ عَائِشَةَ مُرْسَلًا وَ لَمْ يذكروا فِيهِ عَنْ عُرْوَةَ

عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه د ارسال په طريقه نقل کړی دی. دې کې د عروه رَحِمَهُ اللَّهُ د واسطې ذکر نشته دی. او هم

وَ هٰذَا أصح وَ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ عَنْ زُمَيْلٍ

دغه ډېر صحيح دی دغه شان دا روايت امام ابو داؤد رَحِمَهُ اللَّهُ د زميل رَحِمَهُ اللَّهُ نه نقل کړی چې د عروه رَحِمَهُ اللَّهُ

مَوْلَى عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ.

ازاد شوی غلام ؤو. زميل د عروه نه او عروه رَحِمَهُ اللَّهُ د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه نقل کړی دی.

## نفلي روژه نيونکو ته فرښتې دعاء کوي

﴿٦﴾ وَ عَنْ أُمِّ عُمَارَةَ بِنْتِ كَعْبٍ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا

دام عماره بنت کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا باره کې روايت شوی چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لته تشريف راوړو

فَدَعَتْ لَهُ بِطَعَامٍ فَقَالَ لَهَا : كُلِي.

هغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته خواړه راوغبنتل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ام عماره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته وفرمايل چې ته يې هم وخوره هغې

فَقَالَتْ : إِنِّي صَائِمَةٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِنَّ الصَّائِمَ إِذَا أُكِلَ عِنْدَهُ

ووېل چې زما روژه ده. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې د يو روژه دار مخې ته خواړه خوړل کېږي

صَلَّتْ

(او د هغې زړه خواهش کېږي چې د هغې په وجه روژه هغې ته ډېر سخت زور ورکوي) نو رحمت لېږي په

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۸۲۶/۲، رقم الحديث : ۲٤٥٧ ، والترمذي في السنن ۱۱۲/۳ رقم الحديث : ۷۳٥ ، وأحمد في المسند ۲٦۳/٦.

| عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ حَتَّى يَفْرَغُوا. [۱] |
|---|
| دوي باندې ملائكې تر څو پورې چې خواړه خوړونكي نه وي فارغ شوي. |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| ﴿۷﴾ عَن بُرَيْدَةَ قَالَ : دَخَلَ بِلَالٌ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ |
|---|
| بريده رضي الله عنه وايي چې يو ځل بلال رضي الله عنه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم خدمت كې حاضر شو او نبي عليه السلام |
| يَتَغَدَّى فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : الْغَدَاءَ يَا بِلَالُ. |
| د سحر خوراك كولو نبي كريم صلى الله عليه وسلم بلال رضي الله عنه ته وفرمايل چې اى بلاله ! راشه خواړه وخوره |
| قَالَ : إِنِّي صَائِمٌ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : نَأْكُلُ رِزْقَنَا |
| بلال رضي الله عنه وويل چې زه روژه يم يا رسول الله! نو نبي عليه السلام وفرمايل مونږ خوخپل رزق (دلته) خورو او |
| وَ فَضْلُ رِزْقِ بِلَالٍ فِي الْجَنَّةِ أَشَعَرْتَ يَا بِلَالُ |
| د بلال رضي الله عنه بهترين رزق جنت كې دى اى بلاله! آيا ته پوهېږې چې (كله د روژه دار مخې ته خواړه خوړل |
| أَنَّ الصَّائِمَ يُسَبِّحُ عِظَامُهُ وَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ الْمَلَائِكَةُ |
| كېږي نو) د روژه دار هډوكې تسبيح وايي او فرښتې د هغې لپاره بخښنه غواړي. تر هغه وخت چې هغې |
| مَا أُكِلَ عِنْدَهُ ؟. [۲] |
| مخې ته خوراك خوړلى كېږي. |



(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۵۳/۳ رقم الحديث :۷۸۵ ، وابن ماجه ۵۵۶/۱ رقم الحديث :۱۷٤۸ ، وأحمد في المسند ۳٦۵/٦.

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲۹۷/۳ رقم الحديث :۳۵۸٦.

# باب ليلة القدر
# د ليلة القدر بيان

**قال الله تعالى:** ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ ۱ وَمَا أَدْرَاكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ ۲ لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ﴾ (سورة القدر آيت: ۱-۳).

دي باب کې د ليلة القدر د عظمت او د فضيلت بيان دی. ځکه ورته ليلة القدر وايي. چې قدر اندازه کولو ته وايي. او دې شپه کې هم د ارزاق او آجال اندازه کېږي او ليکل کېږي. يا دا لفظ د قدر و عظمت او د شان په معنی دی. بهرحال د ليلة القدر شپه دې امت مرحومه سره خاص ده. ځکه د دوی عمرونه مختصر دي. نو الله ليلة القدر په ذريعې سره اجرو او ثواب کې د هغوی عمرونه اوږد کړل. يو حديث کې دي چې ابن حاتم نقل کړی دی. د هغې خلاصه دا ده چې يو ځل صحابه کرام رضي الله عنهم ناست ؤو چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د بني اسرائيلو د څلورو کسانو ذکر وکړو او وې فرمايل چې اتيا اتيا (۸۰) کالو پورې هغوی د الله عبادت وکړو. صحابؤ چې کله دا وواريدل نو تعجب يې وکړو او ارمان يې هم وکړو. چې دې وخت کې جبريل امين راغلو او وې فرمايل تاسو تعجب وکړو او د اوږد عمر عبادت کولو تمنا مو وکړه. نو الله دې امت ته د دې نه ډير خير ورکړی دی. بيا جبرئيل امين سورة القدر ولوستلو چې د زرو کالو نه درې اتيا کاله او څلور مياشتي راځي. ﴿خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ﴾ (سورة القدر آيت: ۳).

علماؤ ليکلي دي چې ليلة القدر کې د الله د خاص رحمت تجلی اسماني دنيا ته راشي. دغه شپه زمکي ته ګڼ شمير فرښتي لاندې ارکوځېږي. همدغه شپه کې قرآن د لوح و محفوظ نه اسمان ته نازل شوی ؤو. همدغه شپه کې فرښتي پيدا شوي دي. همدغه شپه کې د حضرت آدم عليه السلام ماده راجمعه کړی شوي وه. همدغه شپه جنت کې بوټي لګولی شوي ؤو. همدغه شپه کې د عبادتونو درجي د نورو وختو په نسبت اوچتي کړی شوي وي. او همدغه شپه کې دعا قبلېږي. (المرقات ۴/۵۷۹).

**ليلة القدر کومه شپه کې دی؟** الله دغه شپه د خلکو نه پټه ساتلي ده چې خلک د هري شپې قدر وکړي او نقط په ليلة القدر باندې اکتفا ونکړي. لکه څنګه چې د جمعې په ورځ د قبوليت وخت الله پټ ساتلی دی. ليلة القدر هم د هغې په شان ده. علماؤ ليکلي دي چې څوک ټول کال د عبادت لپاره شپه کې د تهجد لپاره پاسېږي هغه به ضرور ليلة القدر ومومي. ځکه څوک چې د شپې د عبادت قدر کوي هغه ليلة القدر موندلی شي. لکه څنګه چې ويل شوي دي.

من لم يعرف الليلة لم يعرف ليلة القدر
يعنی هر شب شبِ قدر است اگر قدر می دانی

بهرحال ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ مرقات کې ليکي چې قاضی عياض وفرمايل چې علماء د ليلة القدر د محل په تعين کې خپلو کې اختلاف لري. د ځينو خيال دی چې دا شپه بدلېږي رابدلېږي. يو کال په يوه شپه کې راځي. نو بل کال بله يوه شپه کې راځي. ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې قول نه د ليلة القدر باره کې د ټولو مختلف حديثونو باره کې تطبيق پيدا کېږي.

د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د نورو علماؤ مسلک همدغه دی. (المرقات: ۴/۵۷۹).

د ځينو علماؤ خيال دی چې ليلة القدر د رمضان مياشتي د آخري عشري په شپو کې تاوېږي راتاوېږي. د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رائی ده چې ليلة القدر ټول کال ګرځي راګرځي. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ هم دغه خيال دی. د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رائی دا ده چې شب قدر د ټول رمضان په شپو کې يوه شپه کې راځي. د اکثر صحابؤ او علماء رائی دا ده چې د رمضان وويشتمه (۲۷) شپه د ليلة القدر ده. د دې څه خصوصي علامات وي. چې حديثونو کې ذکر دي. د هغې نه بغير چې کوم علامات بيانېږي. چې بوټی په سجده شي، بيا ودرېږي. دا ټول غير مستند او غير معتمد شيان دي.

**سوال:** دلته يو مشهور سوال دی چې عوام الناس او د ځينو خواصو په ذهنونو کې دا ځي راځي. هغه پوښتنه ده چې د ليلة القدر شپه خو يوه ده. دا چې په کوم ځاې کې راله او لاړه نو نورو ځايونو کې به څنګه راځي او که راغله هم نو طاق شپو کې به څنګه راځي.

**جواب:** د دې ساده جواب دا دی چې د ليلة القدر د تلو راتلو تعلق د اختلاف مطالع او د زمانی د قديم او د تاخير سره دی. دا شپه مثلاً سعودی کې د زمانه قديم په وجه مخکې راغله. بيا هغې سفر شروع کړو او پاکستان ته راورسيدو. اوس دا همغه پرونی شپه ده خو د زمانه تاخير په وجه او د اختلاف مطالع نه مونږ ته په تاخير سره راورسيده. دا تيره شوي ورځ که سعودي ۲۷ شپه وه نو همدغه شپه به مونږ ته بله ورځ باندې رارسيدلی. چې په هغې کې شب قدر دی. بهرحال د زمانی د تقديم او د تاخير په وجه شپه هم يوه ده شب قدر هم يو دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## شب قدر د آخري عشره په طاق شپو کې دی

﴿۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْوِتْرِ مِنَ

عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ولټوي "شب قدر په طاق شپو کې د

| |
|---|
| الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ من رَمَضَان .[1] |
| رمضان په آخري عشره کې. |
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ إِنَّ رِجَالًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرُوا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْمَنَامِ |
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډيرو صحابؤ ته خوب کې ښکاره شوې شب قدر (د |
| فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَى رُؤْيَاكُمْ قَدْ تَوَاطَأَتْ فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ |
| رمضان) په آخري اووه شپو کې نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې زه داوينم چې ستاسو د ټولو خوبونه متفق دي |
| فَمَنْ كَانَ مُتَحَرِّيهَا فَلْيَتَحَرَّهَا |
| په آخري اووه شپو باندې لهذا کوم کس چې د قدر شپه موندل غواړي نو هغه ته په کار دي چې تالاش يې |
| فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ .[2] |
| وکړي په آخري اووه شپو کې. |

**توضيح** : في السبع الاواخر : يعني شب قدر د رمضان آخري عشره کې په آخري اووه شپو کې ولټوئ. د دې حديث مطابق شب قدر د ۲۳ رمضان نه تر اخر پورې په يوې شپه کې کيدلی شي. اسلامي مياشت په يقيني توګه د ۲۹ ورځو وي. کله د ډيرشتو وي خو په دې کې احتمال شته دی. لهذا ۲۹ په حساب سره دا اووه ورځې جوړيږي. او د حديث همدغه مطلب اخستل ډير صحيح دي. (المرقات : ۴/۵۸۰).

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دا د رمضان په آخري عشره کې ولټوئ |
| لَيْلَةَ الْقَدْرِ : فِي تَاسِعَةٍ تَبْقَى فِي سَابِعَةٍ تَبْقَى |
| يعني ليلة القدر په پاتې نهمه شپه باندې (چې هغه د يوويشتمې شپې ده) د پاتې اوومې شپې نه (چې |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۹/٤، رقم الحديث ۲۰۱۷، ومسلم في صحيحه ۸۲۸/۲ رقم الحديث :۲۱۹-۱۱۶۹، وأبوداود في السنن ۱۱۱/۲، رقم الحديث ۱۳۸۵.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵٦/٤، رقم الحديث ۲۰۱۵، ومسلم في صحيحه ۸۲۲/۲ رقم الحديث :۲۵-۱۱٦۵، وأحمد في المسند ۱۷/۲.

| فِي | خَامِسَةٍ | تَبْقَى .[1] |
|---|---|---|
| هغه درويشتمه شپه ده) او په پاتې پنځمه شپه کې (چې هغه پنځويشتمه شپه ده) | | |

**توضيح** : **في تاسعة تبقى**: يعني كله چې د آخري عشري نهه شپې پاتې شي نو هغه وخت شب قدر لټوی، دا يوويشتمي شپې ته اشاره ده. سابعة تبقى: د دينه ډيرېشتمي شپه ته اشاره ده. خامسة تبقى: دې کې پنځويشتمي شپې ته اشاره ده. د دې حديث د حساب مطابق د رمضان مياشت د ۳۰ ورځو پکار ده. او که دپاس شمير د اسلوب نه د رمضان آخري عشره واخستلې شي نو بيا به مطلب دا وي چې شب قدر په ۲۹ شپې کې ولټوی، ۲۷ او ۲۵ کې شپه کې يې هم ولټوی. (المرقات ۴/۵۸۲، الكاشف ۵۸۳/۴).

| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَكَفَ الْعَشْرَ الْأَوَّلَ |
|---|
| ابوسعيد خدري رضي الله عنه راوي دي وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم اعتكاف وکړو په اوله عشره کې د |
| مِنْ رَمَضَانَ ثُمَّ اعْتَكَفَ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ فِي قُبَّةٍ تُرْكِيَّةٍ ثُمَّ |
| رمضان کې بيا نبي عليه السلام اعتكاف وکړو په مينځني عشره کې په ترکۍ خيمه کې دننه ددې نه وروسته |
| أَطْلَعَ رَأْسَهُ . فَقَالَ : إِنِّي اعْتَكَفْتُ الْعَشْرَ الْأَوَّلَ |
| نبي عليه السلام خپل سر د خيمې نه رابهر کړو او وې فرمايل چې ما اعتكاف وکړو په اولني عشره کې د پاره |
| أَلْتَمِسُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ اعْتَكَفْتُ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ ثُمَّ أُتِيتُ فَقِيلَ لِي |
| د لټولو ددې شپې بيا ما اعتكاف وکړو په مينځنۍ عشره کې بيا ماته يوه فرښته راغله او ماته يې وويل |
| إِنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ فَمَنِ اعْتَكَفَ مَعِي |
| چې شب قدر د رمضان په آخري عشره کې راځي. لهذا کوم کس چې زما سره اعتكاف کول غواړي نو هغه |
| فَلْيَعْتَكِفِ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ فَقَدْ أُرِيتُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ |
| ته په کار ده چې آخرۍ عشره کې اعتكاف وکړي او ماته خوب کې شب قدر متعين کړی شو خو وروسته |
| أُنْسِيتُهَا |
| زما د ذهن نه ووتلو (يعني جبرائيل عليه السلام ماته وويل چې فلانۍ شپه کې شب قدر دی خو ما نا بيا هير |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲٦۰/٤، رقم الحديث: ۲۰۲۱، وأبوداود في السنن ۱۱۰/۲، رقم الحديث: ۱۳۸۳، والترمذي في السنن

وَ قَدْ رَأَيْتُنِي

شو چې هغې د کومې شپې تعین کړی ؤ) او ما (خوب کې) خپل ځان ولیدلو چې زه په دې شپه کې (یعنې

أَسْجُدُ فِي مَاءٍ وَ طِينٍ

د لیلة القدر په سحر کې) خټو کې سجده کوم. او دا چې مانه هیر شوي ؤ چې دا کومه شپه وه. لهذا دا

مِنْ صَبِيحَتِهَا فَالْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ وَ الْتَمِسُوهَا فِي كُلِّ وِتْرٍ.

(د رمضان) په آخري عشره کې لټوئ. خو لیلة القدر په طاقو شپو (یعنې د آخري عشرې په شپو) کې لټوئ.

قَالَ : فَمَطَرَتِ السَّمَاءُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ

راوي وایي چې (کومه شپه نبي کریم ﷺ خوب لیدلی ؤ) په هغه شپه باران شوی ؤ. او دا د

وَ كَانَ الْمَسْجِدُ عَلَى عَرِيشٍ فَوَكَفَ الْمَسْجِدُ فَبَصُرَتْ

جومات چهت د کهجورو د ښاښونو نه جوړ شوی ؤ نو ځکه جومات څڅیدو نو ما سترګو ولیدل چې په

عَيْنَايَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَى جَبْهَتِهِ أَثَرُ الْمَاءِ وَالطِّينِ مِنْ صَبِيحَةِ إِحْدَى وَعِشْرِينَ.

یو ویشتمه شپه سحر کې د نبي کریم ﷺ په تندي باندې د اوبو او د خټې نښان ؤ. د دې حدیث

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ فِي الْمَعْنَى وَ اللَّفْظُ لِمُسْلِمٍ إِلَى قَوْلِهِ : " فَقِيلَ لِي : إِنَّهَا فِي الْعَشْرِ

د نقل په سلسله کې معنوي توګه باندې بخاري او مسلم دواړه متفق دي. البته فقیل لي انها في العشر

الْأَوَاخِرِ ". وَ الْبَاقِي لِلْبُخَارِيِّ . وَ فِي

الاواخر" پورې د دې روایت الفاظ خو مسلم نقل کړي دي او د روایت نور الفاظ بخاری نقل کړي او په

رِوَايَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُنَيْسٍ قَالَ : لَيْلَةَ ثَلَاثٍ وَ عِشْرِينَ .(۱)

روایت د عبد الله بن انیس کې دی چې (دیوویشتمې شپه د سحر په ځای) د دریشتمې شپې سحر الفاظ دي.

**توضیح: ثم قبة ترکیة**: د ترکي جوړه شوي یوه وړه خیمه وه. دیته خرقان هم وایي چې فارسي کې ورته خرګاه وایي. (المرقات: ۴/۵۸۳).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۶/۴، رقم الحديث ۲۰۱۶، ومسلم في صحيحه ۸۲۴/۲ رقم الحديث :۲۱۳-۱۱۶۷، وأبوداود في السنن ۱۰۹/۲، رقم الحديث: ۱۳۸۲.

**ثم اتيت**: دا د مجهول صيغه ده يعنې ماته راتلونكي فرښته.

**اريت**: دا هم د مجهول صيغه ده يعنې ماته دا شپه خودلې شوې ده خو بيا رانه هيره شوه يعنې د دې تعين ختم كړې شو شپه پاتې ده.

**رئيتني**: يعنې ما خوب كې خپل ځان په داسې حالت كې وليدو.

**على عريش**: يعنې د دې چهت د كهجورو د ښاښونو نه جوړ شوې وُو.

**فوكف المسجد**: يعنې د جومات چهت د باران په وجه راڅڅيدلى وُو او اوبه ترې نه لاندې څڅيدلې.
راوي د نبي كريم ﷺ د خوب متعلق بيان: كړو چې څنګه نبي كريم ﷺ خوب كې خپل ځان وليدلو همدغه شان د سحر د مونځ نه وروسته مونږ نبي كريم ﷺ وليدلو. دا شپه ۲۳ د رمضان وه. (انمرقات ۴/۵۸۲).

## د رمضان اوه ويشتمه (۲۷) د شب قدر شپه ده

﴿۵﴾ وَ عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ قَالَ: سَأَلْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ فَقُلْتُ إِنَّ
زربن حبيش رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) وايي چې ما دابي بن كعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه كولو كې وويل چې ستا (ديني)
أَخَاكَ ابْنَ مَسْعُودٍ يَقُولُ: مَنْ يَقُمِ الْحَوْلَ يُصِبْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ.
ورور ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چا چې د ټول كال دعبادت لپاره شوګيرو كړې نو هغه به شب قدر و مومي؟
فَقَالَ رَحِمَهُ اللهُ أَرَادَ أَنْ
ابي ابن كعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې الله دې په ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رحم وكړي هغه دا خبره په دې بناء كړې ده
لَا يَتَّكِلَ النَّاسُ أَمَا إِنَّهُ قَدْ عَلِمَ
چې خلك په دې طمع ناسته ونه كړي ګيني تركومه حده چې حقيقت دى ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوهېږي چې
أَنَّهَا فِي رَمَضَانَ وَ أَنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ وَ أَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَ عِشْرِينَ
شب قدر به رمضان كې راځي او بيا د رمضان په آخري عشره كې يوه شپه شب قدر روي او هغه اوه ويشتمه شپه
ثُمَّ حَلَفَ لَا يَسْتَثْنِي
ده. بيا ابن ابى كعب داسې قسم وخوړو چې د هغې سره يې ان شاء الله ونه ويل او وي ويل چې بيشكه

| |
|---|
| أَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَ عِشْرِيْنَ . فَقُلْتُ : |
| ليلة القدر په اوه ويشتمه شپه دی. ما وويل ابو منذر رضي الله عنه (دادابي ابن كعب رضي الله عنه كنيت دی) ته |
| بِأَيِّ شَيْءٍ تَقُوْلُ ذٰلِكَ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ ؟ قَالَ : بِالْعَلَامَةِ أَوْ بِالْآيَةِ الَّتِي |
| دا خبره د کوم دليل په بناء کوي؟ هغه وويل چې د هغه نښاني په بناء باندې چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم |
| أَخْبَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّهَا تَطْلُعُ يَوْمَئِذٍ لَا شُعَاعَ لَهَا.[1] |
| مونږ ته ويلي ده چې د دې شپې سحر کې چې لمر راخېژي نو هغې کې رڼا نه وي (نو ماليدلي ده چې د اوه |
| ويشتمي شپې په سحر لمر راوختلو او هغې کې رڼا نه وه). |

**توضيح** : **ان لايتكل الناس**: يعني فقط د ۲۷ رمضان په طمع کيني ګيني حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته ښه معلومه وه چې شب قدر د رمضان آخري عشره کې ده او به ۲۷ د رمضان کې ده. (المرقات ۴/۵۸۰)

**ثم حلف**: يعني داسي قسم چې پوخ ؤو. هغې کې د ان شاء الله استثناء هم نه وه. امام رازي رحمه الله په تفسير کبير کې ليکلي دي چې قرآن کې سورة قدر کې الله درې ځل د ليلة القدر لفظ استعمال کړی دی او د لفظ د ننه نهه حروف دي. چې د هغې نو ټول نهه ۲۷ حروفه جوړيږي. لهذا ليلة القدر په ۲۷ شپه کې دی دا قرآني اشاره ده. دلته د سلطان العارفين محی الدين ابن العربي رحمه الله يو عبارت نقل کوم چې د فايدې نه خالي نه دی هغه په فتوحات مکيه کې ليکي: **واخلتف الناس في ليلة القدر اعني في زمانها فمنهم من قال في السنة كلها تدرو وبه اقول فاني رئيتها في شعبان وفي شهر ربيع وفي شهر رمضان واكثر ما رئيتها في شهر رمضان وفي العشر الاخر منه ورئيتها مرة في العشر الوسط من رمضان في غير ليلة وترو في الوتر منها فأنا على يقين من انها تدور في السنة في وتر وشفع من الشهر انتهى.**

**(زجاجة المصابيح ج١ ص ٥٨٣) (المرقات :٤/٥٨٨).**

## د رمضان په آخري عشره کې د عبادت مجاهده

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْتَهِدُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ |
| عائشه صديقه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به کوشش کولو په اخري عشره د رمضان کې په |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۲۸/۲.

مَا لَا يَجْتَهِدُ فِي غَيرِه .[1]

عبادت کې چې دومره کوشش او مجاهده به يې بله هيڅ يوه مياشت کې نه کوله.

﴿۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ شَدَّ مِئْزَرَهُ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله به (د رمضان) آخري عشره راغله نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به وتړلو خپل ملا بند

وَ أَحْيَا لَيْلَهُ وَ أَيْقَظَ أَهْلَهُ.[2]

کلک، شپې به ويخولي او خپل اهل و عيال به يې راويخولو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د ليلة القدر دعاء

﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْ عَلِمْتُ أَيَّ لَيْلَةٍ لَيْلَةَ الْقَدْرِ مَا أَقُولُ فِيهَا؟

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دي چې وي ويل يا رسول الله! که زه شب قدر و مومم نو څه دعا وغواړم؟ نبي

قَالَ: " قُولِي: اللَّهُمَّ إِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّي ".[3]

عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل دا دعا وغواړه اى الله! ته بخښونکى يې او معاف کول خوښوي لهذا ما معاف کړه.

﴿۹﴾ وَ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ الْتَمِسُوهَا

ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى چې ماد نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې فرمايل يې تاسو ولټوي

يَعْنِيْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِيْ تِسْعٍ يَبْقِيْنَ أَوْ فِيْ سَبْعٍ يَبْقِيْنَ

يعنې شب قدر (د رمضان په پاتې) نهمه شپه (يعنې نهه ويشتمه شپه کې) يا پاتې اومه شپه (يعنې

أَوْ فِيْ خَمْسٍ يَبْقِيْنَ أَوْ ثَلَاثٍ أَوْ آخِرَ لَيْلَةٍ.[4]

اوه ويشتمه شپه) يا پاتې پنځمه شپه (يعنې پنځو يشتمه شپه) کې او يا په آخري شپه کې.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۸۳/۲ رقم الحديث :۸- ۱۱۷۵، وابن ماجه ۵۶۲/۱ رقم الحديث : ۱۷۶۷، وأحمد في المسند ۸۲/۶.

(۲) أخرجه البخاري ۷۱۱/۲، رقم الحديث : ۱۹۲۰.

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ۴۹۹/۵ رقم الحديث :۳۵۱۳.

(۴) أخرجه الترمذي في السنن ۱۶۰/۳ رقم الحديث :۷۹۴، وأحمد في المسند ۳۶/۵.

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهِ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د شب قدر باره کې تپوس وشو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام

فَقَالَ هِيَ فِيْ كُلِّ رَمَضَانَ. رواه ابوداؤد وقال رواه سفيان وشعبة عن ابي إسحاق موقوفا على ابن عمر [1]

وفرمايل چې دا په هر رمضان کې راځي.

## درويشتمه شپه د شب قدر ده

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اُنَيْسٍ قَالَ قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ اِنَّ لِيْ بَادِيَةً اَكُوْنُ فِيْهَا وَ

عبد الله بن انيس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما وويل چې يارسول الله! زما کور په ځنګل کې دی هملته اوسېږم او

اَنَا اُصَلِّيْ فِيْهَا بِحَمْدِ اللهِ فَمُرْنِيْ بِلَيْلَةٍ اَنْزِلُهَا اِلٰى هٰذَا فِي الْمَسْجِدِ

هملته مونځ کوم د خدای شکر دی لهذا ته ما ته د دې شپې باره کې ووايه چې په هغې کې زه جومات ته راشم

(يعنې ووايه چې شب قدر کومه شپه ده چې زه هغه شپه مسجد نبوي کې عبادت وکړم) نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام

فَقَالَ اَنْزِلْ لَيْلَةَ ثَلَاثٍ وَّ عِشْرِيْنَ قِيْلَ لِابْنِهِ

وفرمايل (د رمضان په) درويشتمه شپه کې راشه (د دې نه وروسته) تپوس وشو د عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د زوي نه

كَيْفَ كَانَ اَبُوْكَ يَصْنَعُ قَالَ

(چې نوم يې حمزه ؤ) چې د دې باره کې ستا د پلار څه معمول ؤ هغه وويل چې (د رمضان دوه ويشتم تاريخ

كَانَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ اِذَا صَلَّى الْعَصْرَ فَلَا يَخْرُجُ مِنْهُ لِحَاجَةٍ

باندې) زما پلار د ماښکر مونځ کول او مسجد نبوي ته به د ننه شو او نه به راووتو د مسجد نه د هيڅ يو کار

حَتّٰى يُصَلِّيَ الصُّبْحَ فَاِذَا صَلَّى الصُّبْحَ وَجَدَ دَابَّتَهٗ

(چې د اعتکاف منافي ؤ) لپاره تر سحره پورې نو کله به يې چې د سحر مونځ وکړو نو ولاړه به وه سورلی

عَلٰى بَابِ الْمَسْجِدِ فَجَلَسَ عَلَيْهَا وَ لَحِقَ بِبَادِيَتِهٖ. [2]

دده د جومات په دروازه کې او سپور به شو او خپل ځنګل ته به لاړو.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱۱۱/۲، رقم الحديث : ۱۳۸۷.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱۰۸/۲، رقم الحديث : ۱۳۸۰.

**توضيح: بادیته**: د ښاري خلکو نه بغیر چې کوم خلک بانډو کې وسیدونکي دي د هغوی د وسیدلو ځایونو ته بادیه وايي. عربو کې به د هر خاندان جدا جدا بادیه وه. دا به حقیقت کې ځارن ځایونه ؤو او کاړ جني زمکي به وي. (المرقات: ۴/۵۹۳).

**سوال**: دلته دا سوال دي چې د شب قدر علم الله پټ ساتلی دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم فرمایلي چې د دې تعین زمانه اخستلی شوی دی نو بیا دلته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې صحابي د متعین په توګه څنګه وویل چې به دریشتمه شپه جومات ته راشه دا د شبه قدر دی.

**جواب**: د دې سوال جواب دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقط د دې کال تعین کړی ؤو چې الله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ویلي ؤو چې دې کال به لیلة القدر په دریشتمه شپه راځي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د همیشه لپاره تعین نه ؤو کړی هغه خپله صحابي تعین کړلي دی. (المرقات: ۴/۵۹۳).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د شب قدر علم او بیا نسیان

﴿۱۲﴾ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ : خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بهر راغلو چې مونږ ته د شب قدر خبر

لِيُخْبِرَنَا بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَقَالَ : خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ

راکړي خو مسلمانانو کې دوه کسه په جنګ شو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل زه بهر راغلم چې تاسو ته زه خبر درکړم

بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى فُلَانٌ وَ فُلَانٌ فَرُفِعَتْ

د شب قدر باره کې (چې هغه کومه شپه ده) خو فلانی فلانی په جنګ شو نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه تعين واخيستې

وَ عَسَى أَنْ يَكُونَ خَيْرًا لَكُمْ فَالْتَمِسُوهَا فِي التَّاسِعَةِ وَ السَّابِعَةِ

شو او کیدی شي چې ستاسو لپاره همدغه بهتره وي لهذا تاسو ولټوي شب قدر په نه ویشتم، او وه ویشتم

وَ الْخَامِسَةِ.[1]

او پنځه ویشتمه شپه کې.

**توضيح: فتلاحی**: دا د جنګ کولو او یو بل ته د سپکو او سپورو ویلو په معنی کې دی. د دې دوه کسانو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۶۷/۴ رقم الحديث: ۲۰۲۳.

خپل منيځ کې څه ورکړه راکړه وه. چې د هغې په وجه د هغوی خپل مينځ کې تکرار وشو. د يو نوم حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه ؤ او د بل نوم عبدالله ابن حدرد ؤ. نبي کريم صلى الله عليه وسلم بله کومه موقع کې بيا د دوی فيصله کړې وه. (المرقات: ۴/۵۹۵).

**فرلغعت**: يعني د دې دوه کسانو د جنګ دومره بد تاثير وشو چې د مانه د ليلة القدر تعين بيرته واخيستلې شو. د دې نه مسلمانانو ته سوچ کول په کار دي چې خپلو کې منافرت او جګړې او د فساد څومره لوی روحاني اثر وي. (المرقات: ۴/۵۹۵).

دې خبره باندې ځان پوهه کړی، چې د ليلة القدر د اوچتولو مطلب دا نه دی چې دا شپه ختمه شوه او **فضيلت** يې پاتې نشو. بلکي مطلب دا دی چې کوم تعين نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته ورکړې ؤ هغه تعين ختم شو. شب قدر ختم نه شو "**وعسى ان يکون**" دې جمله کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم امت ته اطمينان ورکړې چې بيرته اوچتول ستاسو لپاره بهتر دي غم مه کوی او مه پريشانه کېږئ بلکې د دې په تلاش کې نور هم ښه محنت کوئ ښه ډېر ثواب به درته درکړې شي (المرقات: ۴/۵۹۵، الکاشف: ۲۴۸/۴).

## د شب قدر فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " إِذَا كَانَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ |
| انس رضي الله عنه راوي دي وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کله چې شب قدر راشي نو (دغه شپه کې) |
| نَزَلَ جِبْرِيل عَلَيْهِ السَّلَام فِي كُبْكُبَةٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ يُصَلُّونَ عَلَى كُلِّ عَبْدٍ قَائِمٍ |
| جبرائيل عليه السلام د فرښتو په ډله کې راکوزېږي. او د هر هغه بنده لپاره دعا کوي چې ولاړ وي (يعني |
| أَوْ قَاعِدٍ يَذْكُرُ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ |
| مونځ کوي، طواف کوي يا بل څه عبادت کوي) يا ناست وي (د الله يادولو ته او دالله په ذکر کولو کې |
| فَإِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدِهِمْ يَعْنِي يَوْمَ فِطْرِهِمْ |
| مصروف وي) بيا چې کله د دې (مسلمانانو) اختر (يعني د روژې اختر) ورځ وي نو الله د خپل دې بنده ګانو |
| بَاهَى بِهِمْ مَلَائِكَتَهُ |
| په وجه د خپل (دې) فرښتو مخې ته فخر کوي (چې دوی د آدم عليه السلام د پيدائش په وخت کې بنی آدم لره |
| فَقَالَ : يَا مَلَائِكَتِي مَا جَزَاءُ أَجِيرٍ وَفَّى عَمَلَهُ ؟ |
| مطعون کړې ؤ) او فرمايي چې ای زما فرښتو ! د مزدور لپاره څه اجر دی. چا چې خپل کار پوره کړو؟ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوا : | رَبَّنَا | جَزَاؤُهُ | أَنْ | يُوَفَّى | أَجْرَهُ . |

فرښتي عرض کوي چې اې زمونږ پروردګاره! د دې اجر دا دی چې د دې کارپوره پوره اجرت ورکړی شي

قَالَ : مَلَائِكَتِي عَبِيدِي وَ إِمَائِي قَضَوْا فَرِيضَتِي عَلَيْهِمْ

الله فرمايي فرښتو! (تاسو واورئ چې) زما بنده ګانو زما هغه فرض ادا کړو چې کوم هغوی باندې ؤو

ثُمَّ خَرَجُوا يَعُجُّونَ إِلَى الدُّعَاءِ

(يعنې روژه) بيا دوی (د خپل کورونو نه عيدګاه طرف ته) د دعا په سوال عاجزۍ راووتل. قسم مې

وَ عِزَّتِي وَ جَلَالِي وَ كَرَمِي وَ عُلُوِّي وَ ارْتِفَاعِ مَكَانِي

دې وي په خپل ذات او جلال باندې او په کرم او اوچت قدر باندې او په خپله اوچته مرتبه باندې، زه به د

لَأُجِيبَنَّهُمْ . فَيَقُول : ارْجِعُوا فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ

دوی دعا ضرور قبلوم بيا الله (بنده ګانو ته) فرمايي چې (خپلو کورونو ته) بيرته لاړشئ ما تاسو وبخښلئ

وَ بَدَّلْتُ سَيِّئَاتِكُمْ حَسَنَاتٍ .

او ما ستاسو ټولې بدۍ په نيکۍ بدلې کړې ستاسو اعمال نامه کې مې دهرې بدۍ په بدل کې يوه نيکۍ

قَالَ : فَيَرْجِعُونَ .

وليکله د هغې نه وروسته نبي عليه السلام وفرمايل بيا مسلمانان د عيدګاه نه کورونو ته داسې حال کې ځي

مَغْفُورًا لَهُمْ ". [1]

چې د دوی ګناهونه بخښل شوي وي.

**توضيح : في كبكبة:** کاف باندې دواړه ځايونو کې فتحه ده او ضمه پرې هم ويل کيدلی شي. دا هغه لنډه جماعت ته وايي چې خپلو کې يو بل سره ملګيدلي وي. د دې جمعه کباکب دی. چې د عسکرو ډلې ته هم وايي. (المرقات :۴/۵۹۲).

**فاذا کان يوم عيدهم:** د حديث دا برخه د ليلة القدر سره متعلق نه ده خو د په ليلة القدر کې د فرښتو د نزول ذکر راغلو نو د فرښتو متعلق د کوچني اختر باره کې هم کلام وشو او د يو بل حديث برخه د دې

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۱۳۵/۳ رقم الحديث ۳۱۱۷.

حديث سره يو ځاې کړی شوي ده. (المرقات: ۴/۵۹۲).

**ملائکتي**: دا منادی دی. دې حديث کې ددې نه مخکې **ملائکتي** الفاظ د حرف ندا سره راغلي دي، دلته اضافت تشريفيه دی. (المرقات: ۴/۵۹۷).

**عبيدي امائي**: دا جدا کلام دی چې مبتدا دی او **قضوا فريضتي** د دې د پاره جزء دی. (المرقات ۴/۵۹۷).

**يعجون**: سوال او فرياد او چغو وهلو ته وايي. لکه يو حديث کې دي **الحج العج الثج**.

**وعزتي**. د خپل عظمت ذاتي قسم د دې ذات تعلق د الله سره دی.

**جلالي**: د خپل جاه او ځان له قسم. د دې جملې تعلق د الله د صفاتو سره دی. (المرقات: ۴/۵۹۷).

**وکرمي**: د خپل وجود او سخا قسم. د دې جملې تعلق د الله د افعالو سره دی. نو د ذات او د صفاتو او د افعالو ذکر راغلو. (المرقات: ۴/۵۹۷).

**وعلوي**: د دې تعلق د پاس ټولو جملو سره دی.

**مغفورٌ لهم**: يعنې د ټولو مغفرت وشي. دې کې اشاره ده چې هر کس د مغفرت محتاجه دی. هغه که نيک وي او که بد وي.

د الله تعالی فرمان دی: ﴿وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ (سورة النور آيت: ۳۱).

اللهم اني استغفرك فاغفر لي ما قدمت وما اخرت ما اعلنت وما اسررت

ان تغفرِ اللّٰهم فاغفر جمّا ❁ و ايّ عبد لك لا ألمّا

فضل محمد يوسف زئي غفرله

حال کراچی پاکستان جمعه ۲۴ رجب ۱۴۲۵ھ



# باب الاعتكاف

**قال الله تعالى تبارك وتعالى ﴿وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾** (سورة البقرة آيت:۱۸۷)

د اعتكاف لغوي معنى ده **"هوالحبس على الشئ ولزومه"** په اصطلاح د شرع كې د اعتكاف **تعريف** داسې دى **"هو المكث في المسجد ولزومه على وجه مخصوص".(المرقات :۴/۵۹۸)**.

**د اعتكاف اقسام**: اعتكاف په درې قسمه دي : **۱- اعتكاف واجب**: دا هغه اعتكاف دى چې د نذر په واجب شوى وي د دې اعتكاف لپاره دامام مالك رحمه الله، امام شافعي رحمه الله او د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزددراجح قول مطابق روژه نيول شرط دى. او د يوې ورځې اوديوې شپې كيدل شرط دى اوكه فاسده شي نو قضا يې هم واجب ده دا اعتكاف په هره زمانه كې كيدى شي د يوې زماني سره خاص نه دى.

**۲: اعتكاف سنت مؤكده دى**: دا هغه اعتكاف دى چې د رمضان په آخري عشره كې لس ورځې كېږي. دا سنت مؤكده على الكفايه دى. كه ټول كلي پريخوستلو نه ټول به گناه گار وي. كه يو سړي وكړو نو د ټول لپاره به كافي شي.

**۳: اعتكاف مستحب**: د اولني دوه قسمونو نه بغير نور ټول اعتكافون مستحب دي. د مستحب اعتكاف اقله موده كې د فقهاؤ مختلف اقوال دى.

د اما مالك رحمه الله په نزد د مستحب اعتكاف اقله موده يوه ورځ ده. ددې نه كم اعتكاف نشته دى.

د امام ابويوسف رحمه الله په نزد د دې موده د ورځ اكثره برخه ده. د امام محمد رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله په نزد د اقله موده هيڅ تعين نشته دى. د يو ساعت هم كيدلى شي. د امام ابو حنيفه رحمه الله ظاهري روايت هم دغه دى او هم دې باندې فتوى ده.

**د اعتكاف پس منظر**: دين اسلام كې د رهبانيت هيڅ گنجائش نشته دى. مخكني دينونو كې به خلكو د رهبانيت ژوند تيرولو. يعنې د كورونو ، ښځو او ماشومانو نه ځان جدا كولو باندې د قوت لايموت په گوزاره باندې ټول عمر د يوازې والي په عبادت كې مشغوليدلو سره په ډير مشقت به يې تيرولو. دين اسلام كې رهبانيت هيڅ گنجائش نشته دى. خو د نموني په توگه د رهبانيت پشان د لس ورځو ژوند د تيرولو حكم شوى دى چې يو مسلمان ته دا احساس وشي چې د دې لس ورځو د مشقتونو او د محنتونو والا ژوند ته وگوره او بيا سوچ وكړه چې مخكني دينونو كې يوه لويه ډله هميشه هيمشه لپاره دغه شان سخت ژوند تيرولو. تاسو باندې د الله احسان دى.

بهرحال د معتكف مثال د هغه كس پشان دى چې د بادشاه په دروازه كې پروت وي او خپل خواست مسلسل د قبوليت په غرض وروړاندي كوي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## ښځې دې په خپل کور کې اعتکاف وکړي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ حَتَّى |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د رمضان په آخري عشره کې اعتکاف کولو تردې چې |
| تَوَفَّاهُ اللهُ ثُمَّ اعْتَكَفَ أَزْوَاجُهُ مِنْ بَعْدِهِ.[1] |
| الله هغه د دنيا نه اوچت کړو بيا د نبي عليه السلام نه وروسته د نبي عليه السلام ازواج مطهراتو اعتکاف کولو. |

**توضيح**: ښځو لپاره جوماتونو کې اعتکاف کول جائز نه دي. که هغوی اعتکاف کول غواړي نو خپلو کورونو کې دې په خاص ځاې کې کيني او هغه ځاې پورې دې خاص شي. ټول کور کې دې نه ګرځي راګرځي. ازواج مطهراتو د اعتکاف سنت ساتلو لپاره اعتکاف کړی ؤ.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ټولو خلکو کې د خير او نيکۍ معامله کې سخی ؤ. |
| وَكَانَ أَجْوَدَ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ وَكَانَ جِبْرِيلُ يَلْقَاهُ كُلَّ لَيْلَةٍ |
| (خصوصاً) رمضان کې خو به يې ډير سخاوت کولو اوراتلو به جبرائيل عليه السلام نبي عليه السلام ته هره شپه |
| فِي رَمَضَانَ يَعْرِضُ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنَ فَإِذَا لَقِيَهُ |
| په رمضان کې راتلو او د نبي عليه السلام مخې ته به يې (تجويد سره) قرآن کريم لوستو. نو کله به چې ملاقات |
| جِبْرِيلُ كَانَ أَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ.[2] |
| کولو جبرائيل عليه السلام د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره نو د نبي عليه السلام سخاوت د هوا د چپو نه هم ډير شو. |

**توضيح: اجود الناس**: يعنې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به نيکۍ کونکو کې د ټولو نه ډير فياض او سخي ؤ. بيا به چې کله د نيکيو موسم او سيزن راغلو لکه رمضان او داسې نور، نو هغې کې به نبي

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۷۱/٤، رقم الحديث ۲۰۲۶، ومسلم في صحيحه ۸۳۱/۲ رقم الحديث :٥-۱۱۷۲، وأبوداود في السنن ۸۲۹/۲، رقم الحديث: ۷۹۰، والترمذي في السنن ۱۵۷/۳ رقم الحديث:۷۹۰، وابن ماجه ۵۶۲/۱ رقم الحديث : ۱۷۷۳، وأحمد في المسند ۲۸۱/۲.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۶/٤، رقم الحديث ۱۹۰۲، ومسلم في صحيحه ۱۸۰۳/٤ رقم الحديث :۵۰-۲۳۰۸، وأحمد في المسند ۲۳۱/۱.

کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تيزي هوا نه هم زيات سخي شو ځکه يو به د خير والا مياشت په سر راغله او بل دا چې حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام به مسلسل راتللو . دې وجه باندې به د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سخاوت نور ډير شو . بهرحال عرب چې کله د يو شي د تيز والى بيانوي نو هوا سره د هغې تشبيه ورکوي. دلته هم دغه تشبيه ده. د دې حديث د باب اعتکاف سره هيڅ تعلق نشته دى. خو چې د رمضان ذکر راغلو د شپو ذکر يې راغلو نو لامحاله دې خبره باندې پوهه راشي چې اعتکاف به هم شوى وي. ځکه اعتکاف په رمضان کې کېږي. (المرقات : ۴/۵۹۹).

## په رمضان کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جبرائيل سره د قرآن دور

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ يعرض على النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنَ كُلَّ عَامٍ مَرَّةً

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې هر کال به يو ځل د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته قرآن لوستلى کيدو (يعنې

فَعَرَضَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ

جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام به لوستلو) خو کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د دې دنيا نه لاړو هغه کال نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته دوه ځله

وَ كَانَ يَعْتَكِفُ كُلَّ عَامٍ عَشْرًا فَاعْتَكَفَ

قرآن ولوستل شو. دغه شان به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر کال لس ورځي اعتکاف کولو، خو اعتکاف يې

عِشْرِينَ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ.[1]

وکړو شل (۲۰) ورځې په کوم کال چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو .

## معتکف د انساني تقاضا د پاره د جومات نه بهر وتلى شي

﴿٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اعْتَكَفَ أَدْنَى

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله د اعتکاف په حالت کې وُ نو په ناسته ناسته به يې

إِلَيَّ رَأْسَهُ وَ هُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَأُرَجِّلُهُ وَ كَانَ

سر مبارک زما طرف ته کړو او ما (د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ويښتانو کې) ږومنځ وهله. دغه شان به نبي

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴۳/۹ ، رقم الحديث ۱۹۹۸، و أبوداود في السنن ۸۳۲/۲، رقم الحديث : ۲۴۶۶، و أحمد في المسند ۳۳۶/۲.

| لَا يَدْخُلُ الْبَيْتَ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ". (۱) |
|---|
| كريم ﷺ به د حاجت انساني نه بغير كور ته نه داخليدو. |

**توضيح**: الالحاجة الانسان: د انساني حاجت د الفاظو لاندې دير څه راځي. دغه لفظ په بنياد جوړولو سره فقهاؤ او د حديث شارحينو د د اعتكاف لپاره د سختي نه سختي پابندي راويستلي دي. (المرقات: ۴/۶۰۲).

نو د حاجت او ضرورت دوه قسمه دي: اول طبعي حاجت دى لكه تشناب، غسل، جنابت يا غسل جمعه. دويم شرعي حاجت دى. لكه د اخترونو د مونځونو لپاره وتل، د اذان لپاره وتل اګر كه معتكف مؤذن وي يا غير مؤذن وي. دغه شان جامع مسجد ته د جمعې لپاره وتل او داسي نور حاجتونه. علماؤ ليكلي دي چې د جمعې لپاره د لمر د زوال په وخت كې وتل په كار دي. خو كه جامع مسجد لري وي نو بيا داسي وخت كې وتل په كار دي چې رسيدلو سره تحتية المسجد او د جمعې سنت د مخكې نه ادا كړى شي او د جمعې نه وروسته چې كوم سنت دي د هغې لپاره هم جومات كې هيساريدل جائز دي. دا تفصيلات د احنافو په نزد دي. خو شوافع او حنابله حضرات وايي چې د معتكف د جومات لپاره جامع مسجد ته نشي وتلى. بلكې هغه ته په كار دي چې داسې جومات كې اعتكاف وكړي چې هلته جمعه وي. ځكه امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې اعتكاف د جامع مسجد نه بغير بل جومات كې جائز نه دى.

ائمه احنافو ليكلي دي چې كه څرې جومات په غورزيدو شي نو معتكف دې زر بل جومات كې اعتكاف ته كيني. امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې كه څرې بغير د ضرورت نه معتكف يو منټ هم د جومات نه بهر تيروي نو دده اعتكاف به فاسد شي. خو صاحبين وايي چې كه چيرې نيمه ورځ د جومات نه بهر شو نو بيا به اعتكاف فاسدېږي كيني نه فاسد كېږي. (المرقات: ۴/۶۰۷).

## د جاهليت په حالت كې د منلې شوې نذر مسئله

| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ عُمَرَ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كُنْتُ نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ |
|---|
| ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي كريم ﷺ ته وويل چې ما په جاهليت كې دا نذر منلى |
| أَنْ أَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ؟ |
| وُچې يوه شپه (او يوه ورځ لكه بل روايت كې وضاحت شته دى) مسجد حرام كې اعتكاف كوم (نو آيا |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۷۳/۴، رقم الحديث ۲۰۲۹، ومسلم في صحيحه ۲۴۴/۱ رقم الحديث :۶-۲۹۷ والترمذي في السنن ۱۶۷/۳ رقم الحديث: ۸۰۴، وابن ماجه ۵۶۵/۱ رقم الحديث ۱۷۷۶، وأحمد في المسند ۲۶۴/۶.

قَالَ : فَأَوْفِ بِنَذْرِكَ. (۱)

هغه نذر زما لپاره پوره کول ضروري دی) نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل چې :خپل نذر پوره کړه.

**توضیح : اوف بنذرك:** د جاهلیت اطلاق د اسلام نه مخکنی زمانه باندې کېږي. دلته د حضرت عمر رضي الله عنه نذر خو یا د اسلام نه مخکې د جاهلیت زمانه کې ؤو. چې حدیث پرې واضحه دلالت کوي. دې صورت کې د امام شافعي رحمه الله مسلک داسي دی چې کچرې چا د اسلام د قبولو نه مخکې جائز نذر منلی وي نو د اسلام د قبولو نه وروسته د هغې پوره کول واجب دي. لکه څنګه نبي کریم ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته د **"اوف بنذر"** حکم وکړو. دا حکم د وجوب لپاره دی. (المرقات :۴/۶۰۳).

امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې د اسلام نه مخکې منلی شوی نذر پوره کول ضروري نه دی. ځکه دا یوه **اتفاقي مسئله** ده چې کافر کې د نذر منلو اهلیت نه وي. لهذا د هغې نذر پوره کول واجب نه دی. شوافعو د بحث د لاندې حدیث نه استدلال کړی دی چې امر د وجوب لپاره دی. امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي چې دا حکم حضرت عمر رضي الله عنه د اطمینان د خاطر لپاره د استحباب په توګه دی یا جاهلیت نه مراد د جاهلیت زمانه ده یعنې د اسلام د قبلولو ابتدائی حالت دی.

**اعتکف لیلة:** یعنې ما د جاهلیت په زمانه کې نذر منلې ؤ چې یوه شپه به اعتکاف کوم. دې لفظ سره د فقهاؤ په منیځ کې اختلافي مسئله پیدا شوې ده هغه دا چې آیا د اعتکاف لپاره روژه نیول شرط دی او که نه؟(المرقات :۴/۶۰۳).

**د فقهاؤ اختلاف:** علامه بدرالدین عیني رحمه الله وایي چې د امام شافعي رحمه الله او احمد رحمهما الله او د اسحاق بن راهویه رحمه الله په نزد د اعتکاف د نذر لپاره روژه لازمه نه ده. امام ابو حنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله وایي چې د نذر اعتکاف لپاره روژه شرط دی. اعتکاف بغیر د روژې نه جائز نه دی. د امام شافعي رحمه الله قدیم قول هم داسي دی. (المرقات :۴/۶۰۳).

**دلائل:** فریق اول زیربحث حدیث نه استدلال کړی دی طرز استدلال داسي دی چې دې کې **"لیلة"** د شپې د نذر خبره ده او د شپې روژه نه وي لهذا د نذر اعتکاف لپاره روژه شرط نه دی. (المرقات ۴/۶۰۳). فریق ثاني د ابوداؤد او د نسائي د روایت نه استدلال کوي چې ته هغې کې نبي کریم ﷺ وفرمایل **"اعتکف وصم"** یعنې اعتکاف وکړه او روژه ونیسه. دویم دلیل راتلونکی حدیث نمبر ۹

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۷۴/۴، رقم الحديث: ۲۰۳۲، ومسلم في صحيحه ۱۲۷۷/۳ رقم الحديث :۲۷-۱۶۵۶، وأبوداود في السنن ۶۱۶/۳، رقم الحديث: ۳۳۲۵، والترمذي في السنن ۹۶/۴ رقم الحديث:۱۵۳۹.

دی. چې هغې کې دی لا اعتكاف الا بصوم واضح الفاظ راغلي دي. (المرقات: ۶۰۳/۴).
**جواب:** ابن بطال رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نذر والا حديث که تهولې طريقې ولټولی شي نو دې کې د اصل روايت الفاظ "**يوماً وليلة**" دي. دويم جواب دا دی چې دا د جاهليت نذر ؤو. د استحباب په توګه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پوره کولو حکم کړی ؤو. **لهذا** دې کې د روژې ضرورت نشته دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### د اعتكاف قضاء

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د رمضان آخري عشره کې اعتکاف کولو يو کال (غالباً د څه |
| فَلَمْ يَعْتَكِفْ عَامًا فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ |
| عذر په بناء) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اعتکاف ونه کړو کله چې دويم کال راغلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (دې رمضان کې) |
| اِعْتَكَفَ عِشْرِيْنَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ عَنْ أُبَيِّ بن كَعْب.[1] |
| شل ورځې اعتکاف وکړو. ابوداؤد او ابن ماجه دا روايت د ابی ابن کعب نه نقل کړی دی. |

**توضيح:** د واجب اعتكاف چې څنګه قضاء واجب ده. دغه شان د سنت مؤکده اعتکاف قضا هم واجب ده. خو واجب نه سنت ده. د دې حديث نه د سنت مؤکده اعتکاف قضاء ثابتيږي.

### اعتکاف ته د کيناستو وخت

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَعْتَكِفَ صَلَّى الْفَجْرَ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله د اعتکاف اراده کوله نو د سحر مونځ به يې وکړو. |
| ثُمَّ دَخَلَ فِي مُعْتَكَفِهِ.[2] |
| د هغې نه وروسته به د اعتکاف ځای ته داخل شو. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ١٦٦/٣ رقم الحديث :٨٠٣ ، وأحمد في المسند ٤٠١/٢.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ٨٣١/٢ رقم الحديث : ١١٧٣/٦، أبوداود في السنن ٨٣٠/٢، رقم الحديث : ٢٤٦٤ .

**توضيح : ثم دخل:** يعنې نبي كريم ﷺ به چې كله د اعتكاف كولو اراده كوله نو د سحر مونځ نه وروسته به د اعتكاف ځاې ته داخليدو. د فقهاء كرامو په دې كې لږ اختلاف دی چې اعتكاف كونكی به كوم وخت كې جومات ته راځي او د اعتكاف په ځاې كې كيني. د امام اوزاعي رحمه الله او د سفيان ثوري رحمه الله او يو قول كې د امام احمد بن حنبل رحمه الله مسلک دا دی چې اعتكاف كونكی به د رمضان په يوويشتم تاريخ كې د سحر د مونځ نه وروسته چې جومات ته راشي او اعتكاف ته به كيني. (المرقات :۴/۶۰۵).

ائمه ثلاثه او يو قول كې امام احمد بن حنبل رحمه الله جمهور ائمه دا وايي چې معتكف به د شپې د لمر پريوتلو نه وروسته جومات ته داخل شي او شپه به جومات كې تيره كړي. دا د يوويشتم رمضان شپه ده. فريق اول د زير بحث د حضرت عائشه رضي الله عنها د حديث نه استدلال كړی دی چې هغې كې په واضحه توگه د سحر د مونځ نه وروسته د اعتكاف ته د كيناستلو طريقه بيان شوي ده. (المرقات ۴/۶۰۵).

جمهور فقهاء هم د دې حديث نه استدلال كوي خو داسې احتمال بيانوي چې نبي كريم ﷺ مسجد نبوی كې د اعتكاف لپاره د شپې تشريف راوړی ؤو او شپه يې په جومات كې تيره كړې وه. خو خپل د كيناستلو خاص ځاې ته يې هغه وخت تشريف ويوړو كله يې د سحر مونځ وكړو. نو د اعتكاف ابتداء خو د مابنام نه وخت نه شوي وه. خو د اعتكاف لپاره چې كوم خاص ځاې جوړ شوی ؤو هغې ته د شپې داخل شوی ؤو. نو د اختلاف خبره ختمه شوه. (المرقات ۴/۶۰۵).

## د اعتكاف په حالت كې د مريض بيمار پرسي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَعُودُ الْمَرِيضَ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي كريم ﷺ د اعتكاف په حالت كې (به چې د حاجت لپاره وتلو) نو د |
| وَ هُوَ مُعْتَكِفٌ فَيَمُرُّ كَمَا هُوَ فَلَا يُعَرِّجُ |
| مريض بيمار پرسي به يې كوله (چې د جومات نه بهر به يو ځاې كې ؤ) نبي عليه السلام به تيرشو چې څنګه ؤ |
| يَسْأَلُ عَنْهُ .(۱) |
| د هغې سره به نه حصاريدلو او فقط د هغه تپوس به يې كولو. |

**توضيح : فلا يعرج:** يعنې د يو مريض بيمار پرسی لپاره په بدله لاره نه تللو. د هغې صورت به دا ؤو چې نبي كريم ﷺ د خپل طبعي حالت لپاره د جومات نه باهر تلو او بيرته به راتلو. دې تلو

لو کې به نبي کريم ﷺ په روانه کې د مريض پوښتنه کوله. همدغه مطلب دی د دې حديث
نبي کريم ﷺ به د لارې نه اخوا ديخوا نه تللو. مستقله توګه باندې د يو مريض د بيمار
ی لپاره تللو په وجه اعتکاف باطل کېږي. که يو کس په نذر اعتکاف کې دا شرط ولګوي چې زه به
ريض بيمار پرسي کوم يا به جنازي ته زم بيا به جائز وي.

## د اعتکاف آداب

| |
|---|
| وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : السُّنَّةُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ أَنْ لَا |
| شه رضي الله عنها وايي چې د اعتکاف کولو لپاره دا سنت (ضروري) دی چې نه خو (په قصدا و حصاريد و سره) |
| دَ مَرِيضًا وَلَا يَشْهَدُ جِنَازَةً وَلَا يَمَسُّ |
| يض بيمار پرسي وکړي او نه (د جومات نه بهر مطلقا) د جنازې مونځ کې شريک شي او نه صحبت وکړي |
| رَأَةً وَلَا يُبَاشِرُهَا وَلَا يَخْرُجُ لِحَاجَةٍ إِلَّا لِمَا لَا بُدَّ مِنْهُ |
| ځو سره، نه به د ښځې سره مباشرت وکړي او نه دې وځي بغير د ضرورته (متيازو نه بغير) د يو بل کار لپاره |
| وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا بِصَوْمٍ وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ جَامِعٍ.[1] |
| او د اعتکاف لپاره روژه نيول ضروري ده او اعتکاف په جامع مسجد کې صحيح ده. |

**ضيح: ولا اعتكاف الا بصوم**: د دې توضيح او د علماؤ اختلاف د دينه مخکې حديث نمبر ۵ د لاندې
ن شوی دی. دا د جمهور د مسلک لپاره واضح دليل دی. د علامه شامي رحمه الله ميلان هم دې طرف ته
ې چې اعتکاف که واجب وي او که مسنون وي خو روژه ورته شرط ده. (المرقات: ۴/۶۰۵).

**في مسجد جامع**: يعنې د جامع جومات نه بغير بل جومات کې اعتکاف جائز نه دی. حضرت حسن
سری، امام زهری او عروه او د عطاء رحمه الله په نزد د اعتکاف د صحت لپاره داسې جومات ضروري دی
ې هغې کې جمع وي يعنې جامع جومات وي. د امام مالک رحمه الله يو روايت هم داسې دی. (المرقات
۴/۶۰).

جمهور انمو په نزد د اعتکاف لپاره جمع د جومات ضروري نه دی بلکې هر هغه جومات کې اعتکاف
حيح دی. چرته چې د پنځه وخته مونځ د جماعت سره کېږي. نو حديث کې د جامع جومات نه مراد د
معې والا جومات مراد نه دی. بلکې د جماعت والا جومات مراد دی. باندو کې چې کوم جوماتو کې

[1] أخرجه أبوداود فی السنن ۸۳۶/۲، رقم الحديث ۲۴۷۳

جماعت سره پنځه مونځونه نه کېږي. هغې کې اعتکاف ضروري نه دی که یو کس په خپله توګه د ثواب نیت کوي نو هغه جائز دی جمهور وایي چې د قرآن دا آیت ﴿وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾ (سورة البقرة آیت: ۱۸۷) کې جوماتونه عام دي د جامع جومات تخصیص نشته دی.

البته علماؤ د اعتکاف د فضیلت باره کې جوماتونو کې فرق بیان کړی دی چې د ټولو نه افضل اعتکاف په مسجد حرام مکه کې دی. بیا د مسجد نبوي اعتکاف دی. بیا د مسجد اقصی اعتکاف دی او د جامع مسجد اعتکاف افضل دی.

بهرحال د معتکف لپاره جومات ته خواره راوړل او بیا خوړل جائز دي خو د خوارو جائز کولو لپاره د اعتکاف کول څه معهود شرعي نه دی. لکه څګه چې یې تبلیغي حضرات کوي. بیا هغوی ته په کار ده چې اعتکاف ځان باندې لازم کوي نو روژه دې هم ونیسي. خو که جزوقتي اعتکاف دی نو هغې کې روژه نشته دی یعنې "نویت سنة الاعتكاف ما دمت في هذا المسجد" د څه ساعت لپاره نیت وي.

متعتکف لپاره اخستل او خرڅول هم جومات کې جائز دی خو سامان دننه راوړل منع دی. دغه شان اخستل او خرڅول د خپل ذات او د اهل و عیال د ضرورتونو متعلق وي. عام تجارت مراد نه دی او نه هغه جائز دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا اعْتَكَفَ طُرِحَ لَهُ فِرَاشُهُ |
| ابن عمر رضي الله عنه نقل کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به کله اعتکاف کولو نو غوړیدله به ورته بستره په |
| أَوْ يُوضَعُ لَهُ سَرِيرُهُ وَرَاءَ أُسْطُوَانَةِ التَّوْبَةِ.[1] |
| (مسجد نبوي) کې د توبې ستنې نه مخکې او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم کټ به ایخودلی کیدو. |

**توضیح:** حضرت ابولبابه انصاري رضي الله عنه نه د بنو قریظه باره کې یو لغزش شوی ؤو. هغې خپل ځان د مسجد نبوي په یو ستنې پورې تړلی ؤو. بیا د هغې توبه قبوله شوه. همدغه ستنې ته اسطوانه توبه وايي. چې د هغې ذکر دې حدیث کې دی.

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۵۶۴ رقم الحديث: ۱۷۷۴.

## معتکف ته د بهر ټولو نیکیو ثواب ملاویږي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ فِي الْمُعْتَكِفِ هُوَ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اعتکاف کونکي باره کې وفرمایل هغه کس د |
| يَعْتَكِفُ الذُّنُوبَ وَ يُجْرَى لَهُ مِنَ الْحَسَنَاتِ كَعَامِلِ الْحَسَنَاتِ كُلِّهَا.[1] |
| ګناهونو نه محفوظ وي او د هغې د نیکیو سلسله د ټولو نیکي کونکو والو په شان دوام لري. |

**توضیح: کعامل الحسنات کلها**: یعنې د کومو نیکیو لپاره متعکف نه شي وتلی او عام مسلمانان هغه نیکو کې شریک وي او هغه نیکۍ حاصولي. نو الله هغه معتکف ته د شرکت کولو نه بغیر دا ټولي نیکۍ ورکوي. (المرقات: ۴/۶۰۹).

د معتکف ترجمه همدغه ده چې ښکته د الله په دروازه کې پروت وي او د ټولو ګناهونه نه غاړې ته شي او د ذوالجلال مخې ته د مغفرت خواست وړاندې کوي. دا چې معتکف د ټولو خلکو د طرف نه ذمه واري پوره کوي نو ځکه د خلکو په نیکیو کې دا شریک کړی شوی دی.



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۵۶۷/۱ رقم الحديث: ۱۷۸۱.

# كتاب فضائل القرآن
## د قرآن كريم فضائل

قال الله تعالى ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَتْكُم مَّوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَشِفَاءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ قُلْ بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴾. (سورة يونس آيت: ۵۷-۵۸)

**فضائل** جمع ده د دې مفرد فضيلة دى "**وهي ما يزيده به الرجل على غير و اكثر ما يستعمل في الخصال المحمود**". (**الكاشف :۴/۳۶۱**).

قرآن كريم د الله هغه آخري كتاب هدايت دى. چې انسانانو ته د ديني لارښوني لپاره رانازل شوى دى. د دې فضيلت همدغه كافي دى چې دا د خالق كائنات كتاب دى. بيا الله خپله د دې لوي شان د همدي په ورقو كې بيان كړى ذى. بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل فرمانونو، اقوالو او افعالو په ذريعه دې لوي عظمت ظاهر كړى دى. تر يو لسوه (۱۱۰۰) كالو په دې كتاب مسلمانانو د دنيا په ټولو انسانانو باندې د حاكم او د قائد په حيثيت سره د دنيا په مخ باندې غالب وساتل او د دې تعليماتو په رڼا كې مسلمانانو مثالي حكومتونه قائم كړل. كله چې مسلمانانو دا كتاب پريخودلو نو د هغې قائدانه صلاحيتونه ختم شول او د دوې حكومتونه د كفارو په لاس ورغلل. كائنات كې كه نن مظلوم دى نو د ټولو نه لوي مظلوم د الله همدغه كتاب دى.

هر مسلمان باندې فرض دې چې د الله كتاب خپل ځان لپاره د ساتنې سبب كړي او د دې ناظره ولولي او ياد يې كړي او په معنى كې ځان پوهه كړي او دې باندې عمل وكړي چې د دنيا لپاره هم قائد شي او آخرت كې هم كامياب شي.

د دې امت علماؤ په مختلف اندازو سره د دې كتاب خدمت كړى دى. فقهاؤ په فقاهت او د مسائلو په حوالي سره خدمت كړى دى. اهل بلاغت د فصاحت او بلاغت په حوالي سره خدمت كړى دى. د صَرف او نحو علماؤ د خپل فن په رڼا كې د دې پوره خدمت كړى دى. او قاريانو د دې په قرأت كې خدمت كړى دى. اهل تصوفو د دې د تصوف طرف ژوندى كړى دى او اهل عملو په عملي ميدان كې د دې خدمت كړى دى. مفسرينو د دې د تفسير او توضيح هغه خدمتونه كړي دې چې په كتلو ورته عقل خيران شي. دوه لاكه كتابونه ليكل د كتاب الله خدمت دى.

الغرض دې عاجز انسان د خپل وس مطابق د دې په خدمت كې هيڅ كم نه دى پريخودى. كه د الله د دې ابد كلام حق ادا كيدى شو نو خدمت كونكو په دې لوي خدمت سره به د دې حق ادا شوى وى. خو ختميدونكى انسان د دې ابد كلام حق نه شي ادا كولى. هغه فقط دومره ويلى شي :

ما للعلوم و للتراب و انما ⁂ یسعی لیعلم انه لا یعلم

دؤ باب کې د ټول قرآن فضائل په عمومي توګه بیان شوي دي او د ځېنو سورتونو او آیتونو فضائل خصوصي بیان شوي دي.

**په قرآن په قرآن کې د تفاضل بحث**: اوس دلته دا بحث دی چې آیا د قرآن د ځېنو سورتونو یا آیتونو په نورو آیتونو باندې فضیلت ورکول کیدلی شي او که نه؟

علامه سیوطي رَحِمَهُ اللهُ په اتقان کې لیکلي دي چې دې کې د علماؤ اختلاف دی. د ابن حبان ابوالحسن اشعري او د قاضي ابوبکر باقلاني رَحِمَهُ اللهُ رائی دا ده چې قرآن کریم کې تفضیل د ځېنو په ځېنو باندې جائز نه دی. ځکه ټول د الله کلام دی. (المرقات: ۴/۶۱۰).

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ چې جواهر القرآن کې کوم کلام کړی دی د هغې خلاصه دا ده چې که چیری ستا بصیرت او ذوق سلیم په آیت الکرسی او آیت مداینه کې او سورة اخلاص او سورة لهب کې فرق نه شي کولي چې کوم د کوم یو نه افضل دی نو بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته رجوع وکړه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سورتونو او د آیتونو مینځ کې د تفضیل بنایسته بیان دی. (المرقات ۴/۶۱۰).

د ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ د کلام نه معلومه شوه چې نفس کلام په دې اعتبار چې دا د الله کلام دی. دې کې هیڅ فرق نشته دی. نه تفاضل شته دی. البته د معانی او د مضامینو په اعتبار سره تفاضل شته دی ځکه د سورة اخلاص مضمون چې د الله په وحدانیت باندې مشتمل دی. هغه په سورة لهب کې چرته دی. همدغې اعتبار سره تفضیل شته دی. ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ نور لیکي چې د قرآن اطلاق کلام نفسي او په دې باندې دلالت کونکې الفاظ دواړو باندې کیږي. (المرقات ۴/۶۱۰).

**نوټ**: دلته دا ویل ضروري دي چې مشکوة ویلو وخت کې به ماته څه زیات وخت ملاؤ شو نو ما به ددې نه د فضائلو بابونو نه درس ورکولو چې د یو تاریخ د لاندې درج نه ؤو. همدغه وجه ده چې د فضائل قرآن نه تر د کتاب فضائل الحج پورې د درس هره ورځ تاریخ نه دی لیکلی شوی. (فضل محمد غفرله)

## قرآن ښودونکي او زده کوونکي د ټولو نه بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَيْرُكُمْ مَنْ |
| حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل تاسو کې بهترین سړی هغه دی چا |
| تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَ عَلَّمَهُ. (۱) |
| چې قرآن زده کړو او بل ته یې وښودلو. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۷۴، رقم الحديث ۵۰۲۷، والترمذي في السنن ۲/۱۴۷، رقم الحديث ۱۴۵۲

## د قرآن د تلاوت عظیم فضیلت

﴿۲﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي الصُّفَّةِ

عقبه بن عامر وايي چې (يوه ورځ) نبي کريم ﷺ باهر راغلو نو مونږ "صفه" باندې ناست ؤو

فَقَالَ: أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنْ يَغْدُوَ كُلَّ يَوْمٍ إِلَى بُطْحَانَ

نبي کريم ﷺ وفرمايل چې تاسو کې کوم يو سړی داخوښوي چې هغه هره ورځ لاړ شي د بطحان

أَوْ إِلَى الْعَقِيقِ فَيَأْتِيَ مِنْهُ بِنَاقَتَيْنِ كَوْمَاوَيْنِ فِي غَيْرِ إِثْمٍ وَلَا قَطْعِ رَحِمٍ

يا د عقيق طرف ته او هلته نه دوه اوښ د کوف نه بغير د څه ګناه او بغير د صله رحمۍ د ماتولو نه راوړي؟

فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ! كُلُّنَا نُحِبُّ ذٰلِكَ قَالَ:

مونږ عرض وکړو چې يارسول الله! مونږ ټول يې کؤو نبي عليه السلام وفرمايل (نو بيا واورئ چې) تاسو کې

أَفَلَا يَغْدُو أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَيُعَلِّمُ أَوْ يَقْرَأُ آيَتَيْنِ مِنْ كِتَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ

کوم کس جومات ته لاړ شي او هلته د کتاب الله دوه آيتونه بل ته وښايې يايې خپله ولولي. نو دا د ده

خَيْرٌ لَهُ مِنْ نَاقَتَيْنِ وَثَلَاثٌ خَيْرٌ لَهُ مِنْ ثَلَاثٍ وَأَرْبَعٌ

لپاره د دوه اوښانو نه بهتر دي. درې آيتونه د ده لپاره د درې اوښانو نه بهتر دي او څلور آيتونه د ده لپاره د

خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَرْبَعٍ وَمِنْ أَعْدَادِهِنَّ مِنَ الْإِبِلِ.[1]

څلور اوښانو نه بهتر دي، حاصل دا چې د آيتونو شمير د اوښو د شمير نه بهتر دی (پنځه آيتونه د پنځه اوښانو نه او شپږ آيتونه د شپږ اوښانو نه بهتر دي دغه شان مخکې پورې قياس وکړئ).

**توضیح: الصفة:** مسجد نبوي سره د اسلام اولنۍ مدرسې نوم **الصفة** وه. چې د دې بنياد ايخودونکې خپله نبي کريم ﷺ ؤو او چې طالبان يې هم خپله صحابه کرام رضي الله عنهم ؤو تر اوسه پورې مسجد نبوي کې د ننه د دې نښانې دي.

**بطحان:** مدنيې منورې سره نزدې د يو لختي نوم ؤو. دغه شان (المرقات: ۴/۶۱۳).

**عقيق:** مدينې منورې نه درې ميله فاصله کې د يو ځای نوم دی.

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۵۵۲/۱ رقم الحديث: ۲۵۱-۸۰۳، وأبوداود في السنن ۲/۱۴۹، رقم الحديث: ۱۴۵۶

دي دواړه ځايونو کې به هغه وخت تجارتي منډيانې لګيدلي. چې د اوښانو اخستل او خرڅول به په کې کيدل. د عربو په نزد به اوښ ښه مال ؤو. خصوصا د لوي کوف والا ګرانه سرمايه وه. ځکه نبي کريم صلی الله علیه وسلم د عربو د مزاج مطابق يو بليغ اسلوب سره د الله د کلام د تلاوت ترغيب ورکړى دى.

**کوماوين:** د **کوماء** تثنيه ده. او **کوماء** اوچت ځاې ته وايي. ددې نه دوه اوښې مراد دي. چې کوف يې اوچت وي. د عربو په نزد دا ډير ښه مال ؤو. (المرقات: ۴/۶۱۳).

**في غير اثم:** يعني چې کوم کې چې د غله او غصب په شان څه ګناه نه وي.

**ولا قطع رحم:** يعني هغې کې د ګناه خاص صورت د صله رحمى د قطعى نه وي يا څه ډاکه او ظلم نه وي. دا تخصيص بعد تعميم دى. (المرقات: ۴/۶۱۴).

**ومن اعدادهن من الابل:** يعني څومره چې آيتونه ډيرېږي دغه شان به اوښې ډيرېږي. يعني پنځه آيتونه د پنځه اوښونه بهتر دې او شپږ آيتونه شپږ اوښان بهتر دي الى اخره. دې دواړه حديثونو کې د قرآن لوستونکو لپاره د هغوى د لوي ثواب ذکر شوى دى. د اوښ ملاوېدلو مطلب دا دى چې ګويا کې يو کس د الله په لاره کې اوښ صدقه کړو او د هغې ثواب يې وموندلو يا يې دوه يا څلور يا يې لس اوښان صدقه کړه او ثواب يې وګټلو. (المرقات: ۴/۶۱۵).

| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ |
|---|
| ابو هريره رضی الله عنه راوي دى چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې آيا تاسو کې يو کس دا خوښوي چې |
| إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ أَنْ يَجِدَ فِيهِ ثَلَاثَ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ. قُلْنَا: نَعَمْ |
| کله کور ته راشي نو هلته درې بلاربې او چاغې غټې اوښې ولاړې وموميي؟ مونږ وويل چې آؤ نبي علیه السلام |
| قَالَ: فَثَلَاثُ آيَاتٍ يَقْرَأُ بِهِنَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِه خَيْرٌ لَهُ مِنْ ثَلَاثِ خَلِفَاتٍ |
| وفرمايل تاسو کې چې کوم يو کس مونځ کې د قرآن درې آيتونه لولي نو دا د هغې لپاره د درې بلاربو او |
| عِظَامٍ سِمَانٍ.[1] |
| د لوي څربو اوښانو نه بهتر دي. |

**توضيح: خلفات:** د **خلفة** جمع ده خا باندې فتحه او کسره دواړه جائز دي مراد ترې نه بلاربې اوښې دي.

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱ ۵۵۲ رقم الحديث ۲۵۰ ۸۰۲

**ای حاملات عظام**: یعني د بدن په اعتبار سره لوي وي.

**سمان**: یعني د کیفیت په اعتبار سره لوي وي. (المرقات: ۴/۶۱۶).

## د ماهر قرآن فضیلت

| |
|---|
| ۲۱۰۴ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْمَاهِرُ بِالْقُرْآنِ |
| عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ماهر قرآن د هغه فرښتو سره دی چې |
| مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ وَ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَ يَتَتَعْتَعُ فِيهِ وَ هُوَ عَلَيْهِ |
| لیکونکي بزرګ او نیکاني دي او هغه سړی چې قرآن په اینختلو اینختلو سره وایې او د قرآن (لوستل) د |
| شَاقٌّ لَهُ أَجْرَانِ. (۱) |
| هغې لپاره مشکل دی نو د هغه لپاره دوه ثوابونه دي. |

**توضیح**: **الماهر بالقرآن**: ماهر قرآن نه هغه سړی مراد دی چې قرآن ورته خپله یاد وي او پوره په روانی سره یې لولي. (المرقات: ۴/۶۱۶).

**السفرة**: د سافر جمعه ده چې قاصد او پیغام رسونکي ته وایي. یا السفرة د کتبة په معنی کې ده. ددې نه مراد هغه فرښتې دي چې د لوح محفوظ نه قرآن رانقل کوي. د قرآن د ماهرین به دې فرښتو سره وي چې د دواړو کار د قرآن عظیم عام کول او خورول او مخکې بوتلل دي.

**الكرام**: دا د کریم جمعه ده. مکرم او مقربې فرښتې مراد دي. (المرقات: ۴/۶۱۷).

**البررة**: دا د البار جمعه ده. البار محسن، نیک کارکونکي او ښه سلوک والا. (المرقات: ۴/۶۱۷).

**يتتعتع**: د حرج یتدحرج په شان باب دی. **"ای یتردد و یتلبد علیه لسانه"** په اینختلو اینختلو سره قرآن لوستونکي ته وایې. (المرقات: ۴/۶۱۷).

**اجران**: یعنې دوه چنده اجر او ثواب دی. یو خو د قرآن د لوستلو دی او بل هغې کې مشقت په وجه دی. چې لوستونکی یې د اینختلو په وجه برداشت کوي. (المرقات: ۴/۶۱۷).

**سوال**: آیا د دې حدیث مطلب دا شو چې کوم سړی د قرآن ماهر دی هغه ته به یو اجر ملاوېږي او ځوک یې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث: ۱۹۳۷، ومسلم في صحيحه ۱/۵۴۹ رقم الحديث: ۲۴۴-۷۹۸، وأبوداود في السنن ۲/۱۴۸، رقم الحديث: ۱۴۵۴، والترمذي في السنن ...

په اینختلو اینختلو سره لولي نو هغې ته به دوه ثوابه ورکړې کېږي. نو ماهر د غیر ماهر ثواب ډیر شو؟
**جواب**: داسې نه ده د ماهر ثواب ډیر دی خو غیر ماهر ته به د هغې په اعتبار سره دوه چنده ثواب ملاوېږي د هغې دواړه ثوابونه د ماهر یو ثواب ته نه رسېږي. ګویا کې د ماهر ثواب د سرو زرو دی چې وزن کې کم او قیمت کې زیات دی. او د غیر ماهر ثواب د سپینو زرو په شان دی. سپین زر اګر که په وزن کې وي خو قیمت کې د سرزرو نه کم وي.

## دوه قسمه خلک قابل د فخر دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا حَسَدَ إِلَّا علی اثْنَيْنِ: |
| ابن عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل فقط د دوه کسانو باره کې حسد (جائز) دی |
| رَجُلٌ آتَاهُ اللهُ الْقُرْآنَ فَهُوَ |
| یو هغه سړی دی چې هغې ته الله د قرآن عظمت ورکړی وي او هغه سړی (د څېښې وختونو نه بغیر) او د |
| يَقُومُ بِهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَ آنَاءَ النَّهَارِ وَ رَجُلٌ آتَاهُ اللهُ مَالًا |
| شپې په اکثره برخه کې دې قرآن کې مشغول وي. او دویم هغه سړی چې هغې ته الله مال ورکړی وي او |
| فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ آنَاءَ اللَّيْلِ وَ آنَاءَ النَّهَارِ".(۱) |
| هغه یې د ورځې او د شپې په اکثره برخه کې خرچ کوي. |

**توضیح**: لاحسد: حسد معنی د بل د نعمت د زوال ارمان کول دي. کینه ګر (حاسد) ته که ملاؤ شي یا او که نا. او د غبط معنی د حصولِ نعمت غیر من غیر زوال منه وي. لهذا کینه ناجائزه ده او غبط جائز دی. دې حدیث کې د حسد نه غبطه مراد ده. ځکه حسد حرام دی. غبطه جائز ده. دې باندې دا اعتراض دی چې غبطه جائز ده نو بیا دلته حدیث کې د حصر څه ضرورت ؤو. غبطه خو هر شي کې جائزه ده. نو اصل جواب دا دی چې دا کلام د فرض والتقدیر په توګه دی چې کچرې حسد په یو شي کې جائز وی نو دې دواړه شیانو کې به جائز وی. چې دې کې جائز نه دی نو بیا په هیڅ شي کې جائز نه دی. یا جواب دا دی چې دا دواړه شیان دا هم کیدلو په وجه باندې د حسد د عام قانون نه مستثنیٰ دي. (توضیحات جلد اول ص۴۲۲ وګوری) که د حسد نه غبطه واخستلی شي او د غبطه ترجمه رشک اونکړی شي بلکې د دې ترجمه مسابقه او ریس وکړی شي نو هیڅ اشکال به پاتې نه شي. پښتو کې دې ته "سیالي" وایې دا ډیر ښه دی. (المرقات: ۴/۶۱۸).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۷۳/۹، رقم الحديث ۵۰۲۵، ومسلم في صحيحه ۵۵۸/۱ رقم الحديث ۲۶۶ ۸۱۵.

## د قرآن لوستونکي او نه لوستونکي مثال

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي يَقْرَأُ |
| ابو موسی اشعري رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل مثال د هغه مسلمان چې لولي |
| الْقُرْآنَ مَثَلُ الْأُتْرُجَّةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ |
| قرآن د سنګترې په شان دی چې خوشبويي ډېره خوندوره او مزه هم ډېره ښه او کوم مسلمان چې قرآن نه لولي |
| مَثَلُ التَّمْرَةِ لَا رِيحَ لَهَا وَ طَعْمُهَا حُلْوٌ وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ |
| د کهجورې په شان دی چې خوشبويي نه وي او خوندېي خوږ وي او هغه منافق چې قرآن کريم نه لولي |
| كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ لَيْسَ لَهَا رِيحٌ وَ طَعْمُهَا مُرٌّ وَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي |
| مثال يې د مرغونې د ميوې په شان دی چې هغې کې خوشبو نه وي او مزه يې ډېره ترخه وي او هغه منافق چې |
| يَقْرَأُ الْقُرْآنَ مَثَلُ الرَّيْحَانَةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَ طَعْمُهَا مُرٌّ.[1] |
| قرآن لولي د هغې مثال د خوشبودارې ميوې په شان دی چې خشبويي ښه وي خو مزه يې ترخه وي. |
| وَفِي رِوَايَةٍ: الْمُؤْمِنُ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيَعْمَلُ بِهِ كَالْأُتْرُجَّةِ وَالْمُؤْمِنُ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيَعْمَلُ بِهِ كَالتَّمْرَةِ. |

**توضيح: الاترجة**: ترنج، ليمبو او سنګترې ته وايي. اردو کې د دې لفظ سنګترې سره ترجمه شوې ده. خو د لغت کتابونو کې چې منجد کوم عکس ليکلی دی هغه د ليمبو دی. او منجد او مصباح اللغات کې دې ته ليمبو ويل شوی دی بهرحال دا لوي ليمبو، سنګتره، کينو او د مالټې نيارة استعماليدای شي علامه طيبي رحمه الله ليکلي دي چې دې ميوې باندې انساني ټولو قوتونو ته لذت حاصلېږي. د لوي کيدلو په وجه لاسونو باندې ښه لګي. کتلو سره په سترګو ښه لګي. بوې کولو سره قوت شامه باندې ښه لګي. څټولو سره قوت ذائقه د دينه خوند اخلي. د غه شان قرآن عظيم دی چې په لوستلو سره او اورېدلو سره او او اورولو سره خپله قاري هم خوند اخلي او نور خلک هم ترينه خوند اخلي. (المرقات: ۴/۶۱۹).

**الحنظلة**: مرغونې ته وايي. چې ډېر پيکه وي. بدبوداره هم وي. د منافق همدغه مثال دی چې پيکه هم وي. او بدبوداره هم وي. چې هر طرف ته ضرر د پاسه ضرر وي. (المرقات: ۴/۶۱۹).

كأن مثار النقع فوق رؤسنا ۞ و اسيافنا ليل تهاوى كواكبه

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۵۵۵، رقم الحديث ۵۰۲۷، ومسلم في صحيحه ۱/۵۴۹ رقم الحديث ۲۴۳، ۷۹۷، وأبوداود في السنن ۵/۱۶۶، رقم الحديث: ۴۸۲۹.

د حديث مطلب دا شو چې د قرآن لوستونکی مؤمن د قرآن لوستلو په وجه نور روحاني پرمختګ کوي. او نه لوستونکی د دې پرمختګ نه محرومه وي.

## د قومونو د عروج او زوال سبب قرآن دی

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا |
| عمر بن خطاب رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل يقيناً الله تعالی او چتوي خلک په دې |
| الْكِتَابِ أَقْوَامًا وَ يَضَعُ بِهِ آخَرِينَ.[1] |
| کتاب يعنې د کلام الله په ذريعه او د دې په ذريعې سره ځومره خلکو غورځوي. |

**توضيح : يرفع بهذا الكتاب:** د حديث مطلب دا نه دی چې فقط د تلاوت کولو يا د نه کولو سره د قومونو عروج او زوال تعلق نه دی بلکې د دې حديث يو جامع مفهوم دی. د هغې طرف ته فقط اشاره کوم يعنې دا کتاب چې کوم قومونه خپلوي. دې او امر او نواهي ته جائز مقام ورکوي. د دې تلاوت کوي. او دې باندې عمل کوي. دا خپل مقتدی جوړوي او معاشره کې دا په قانوني حيثيت سره قائموي. د خپل سياست بنياد په دې کتاب ږدي او خپلي خارجي او داخلي پاليسياني د دې کتاب په رڼا کې جوړوي او دې کتاب ته د اعزاز يو عالی شان مقام ورکوي. نو داسې قومونو ته الله د دنيا (مودې سره) او آخرت کې د دې کتاب په برکت سره تر اسمان پورې او چت کړي او کوم قومونه چې داسې نه کوي. الله هغوی د ذلت کنده کې لاندې راګوزاروي. نن سبا دا امر مشاهده ده د چانه پټه نه ده. (المرقات: ۴/۶۲۰).

**حکايت :** امام بغوي رحمه الله په معالم التنزيل کې د سند سره يوه واقعه ليکلې ده چې د مکې والي نافع بن حارث د عُسفان مقام کې د حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاؤ شو. حضرت عمر رضي الله عنه نافع رضي الله عنه د مکې والي مقرر کړی ؤ. ځکه يې ترينه وپوښتل چې مکه مکرمه کې دا وخت څوک خپل معاون والي مقرر کړی دی؟ حضرت نافع بن حارث رضي الله عنه جواب کې وويل چې ما ابن ابزی (عبد الرحمن بن ابزی) والي مقرر کړی دی. حضرت عمر رضي الله عنه په تعجب انداز کې وويل چې تاسو يو غلام هغه (اشراف د قريشو) باندې مقرر کړو؟ (دا څه غضب دی) حضرت نافع رضي الله عنه وويل چې ای امير المؤمنين! دا د قرآن د ټولو نه ډير لوستونکی او ليکونکي عالم دی او د قرآن فرائض د ټولو نه ښه پيژني او د قرآن په رڼا کې د فيصلو کې د ټولو نه زيات ماهر دی. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وويل چې (داسې رښتيا کيدل په کار ؤ. دا والي کيدلو ډير اهل دی) واوره نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل "ان يرفع بهذا الكتاب اقواما

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۵۹ رقم الحديث ۲۶۹ ۸۱۷

ويضع به اُخرين". (المرقات: ۶۲۰/۴).

## د قرآن کريم په تلاوت کولو سره سکينه نازليږي

﴿۸﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ أُسَيْدَ بنَ حُضَيْرٍ قَالَ:

ابو سعيد خدري رضي الله عنه به دا اسيد ابن حضر رضي الله عنه باره کې روايت کوي وايي چې (يو ورځ)(اسيد رضي الله عنه)

بَيْنَمَا هُوَ يَقْرَأُ مِنَ اللَّيْلِ سُورَةَ الْبَقَرَةِ وَ فَرَسُهُ مَرْبُوطَةٌ عِنْدَهُ إِذْ جَالَتِ الْفَرَسُ فَسَكَتَ

د شپې سورة بقره لوستله دده اسپه دده سره نزدې ولاړه وه ناڅاپه اسپه په ټوپونو شوه نوده لوستل بند کړل

فَسَكَنَتْ

(چې وکورې چې دا ولې ټوپونه وهي) اسپې هم ټوپونه وهل بند کړل (اسيد رضي الله عنه دا سوچ وکړو چې

فَقَرَأَ فَجَالَتِ الْفَرَسُ فَسَكَتَ

اسپه به هسې ټوپونه وهي) بيا يې لوستل شروع کړل، اسپې هم ټوپونه وهل شروع کړل. هغه بيا بس کړې

فَسَكَنَتْ الفرس ثُمَّ قَرَأَ فَجَالَتِ الْفَرَسُ

نو اسپه ودريده. بيا چې هغې لوستل شروع کړل نو اسپه هم په ټوپونو شوه (اوس ده ته احساس وشو

فَانْصَرَفَ وَ كَانَ ابْنُهُ

اسپه هسې ټوپونه نه وهي بلکې ددې خاص وجه ده) نوده لوستل موقوف کړل (اتفاقًا) دهغه خوې چې نوم

يحيى قَرِيبًا مِنْهَا فَأَشْفَقَ أَنْ تُصِيبَهُ

يې يحيى ؤ دا اسپې سره نزدې ؤ هغه ويريدو چې چرته اسپه (دې ټوپونو کې) دې ماشوم ته ضرر ونه رسوي

فَلَمَّا أَخَّرَهُ

(څکه هغه دا اسپې خوا ته لاړو چې خوې د هغه ځاې نه اخوا کړي) کله يې چې څوې د هغه ځاې نه اخوا کړو

رَفَعَ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَإِذَا مِثْلُ الظُّلَّةِ فِيهَا أَمْثَالُ الْمَصَابِيحِ

سريې اوچت کړو آسمان طرف ته نو ناڅاپه څه ويني چې دوربځې په شان يو شې دی چې هغې کې ډيوه بلېږي

فَلَمَّا أَصْبَحَ حَدَّثَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ: اقْرَأْ يَا

کله چې سحر شو نو اسيد رضي الله عنه دا واقعه نبي عليه السلام ته بيان کړه نبي عليه السلام و فرمايل لوستل کوه ای

ابْنَ حُضَيْرٍ اقْرَأْ يَا ابْنَ حُضَيْرٍ . قَالَ فَأَشْفَقْتُ يَا رَسُولَ اللهِ

ابن حضیره لوستل کوه ای ابن حضیره اسید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل یارسول الله! زه ددې خبرې نه ویریدم چې چیرته

أَنْ تَطَأَ يَحْيٰى وَ كَانَ مِنْهَا قَرِيْبًا فَرَفَعْتُ رَأْسِيْ

اسپه یحیی چیت نه کړي. ځکه یحیی د اسپي خواته ؤ نو ځکه زه د یحیی خواته لاړم او او چت مې کړو سر

فَانْصَرَفْتُ إِلَيْهِ وَ رَفَعْتُ رَأْسِي إِلَى السَّمَاءِ فَإِذَا مِثْلُ الظُّلَّةِ فِيهَا أَمْثَالُ الْمَصَابِيحِ

اسمان طرف ته نو څه وینم چې د وریځي په شان یو شی دی چې هغې کې ډیوه بلیږي. بیا زه (د تحقیق حال

فَخَرَجْتُ حَتّٰى لَا أَرَاهَا قَالَ :

لپاره د خپل کور نه) بهر راووتم. خو هغه (رڼا) ما ته بیا رابنکاره نه شوه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمیل

وَ تَدْرِي مَا ذَاكَ ؟ قَالَ لَا قَالَ : تِلْكَ الْمَلَائِكَةُ دَنَتْ لِصَوْتِكَ

پوهیږې هغه څه ؤ؟ ما ورته وویل چې نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل هغه فرښتې وې چې نزدې ر غلي وې ستا

وَ لَوْ قَرَأْتَ لَأَصْبَحَتْ يَنْظُرُ النَّاسُ إِلَيْهَا

د قرأت اواز (اوریدو) ته که چیرته تا همد غه شان قرأت کولې نو همد غه شان به سحر شوی وی او لیدلې به وې

لَا تَتَوَارٰى مِنْهُمْ . وَ اللَّفْظُ لِلْبُخَارِيِّ وَ فِيْ

خلکو فرښتې او هغه فرښتې به د خلکو د نظرونو نه نه وی پناه شوی". الفاظ د بخاری دي او په روایت د

مُسْلِمٍ : عَرَجَتْ فِي الْجَوِّ بَدَلَ :

مسلم کې عرجت في الجو (یعنې هغه شی د زمکې او د اسمان په مینځ کې وختو) الفاظ دي په بدل د

فَخَرَجْتُ عَلٰى صِيْغَةِ الْمُتَكَلِّمِ. (۱)

د فخرجت په صیغې د متکلم سره.

**توضیح**: مطلب دا دی چې حضرت اسید بن حضیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله تلاوت کولو نو د قرآن اوریدلو لپاره به د اسمان نه فرښتې لخکر په لخکر رانازلیدلې. چې د هغې په وجه اسپې تپوپونه وهل. نزدې کې ورسره د حضرت اسید بن حضیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وړوکي ځوی ته خطر پیښ شو. تلاوت یې پریخودلو او باهر راغلو. نو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶۳/۹، رقم الحديث ۵۰۱۸، ومسلم في صحيحه ۵۴۸/۱ رقم الحديث :۲۴۲-۷۹۶.

فرښتي هم غائبي شوي. چې د سکينې په صورت کې وريځو کې ښکاره شوي وي.

**اقرأ يا ابن حضير**: د دې جملي ترجمه شاه انور شاه رَحِمَهُ اللهُ داسي نقل کړي ده "لوله اى ابن حضير لوله". علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې **اقرأ** امر دی. زمان ماضي يې د استمرار الحال په توګه وړاندې کړی دی همدغه ترجمه شاه صاحب رَحِمَهُ اللهُ په اردو کې کړي ده(المرقات ۴/۶۴۲ والکاشف ۲۶۷/۴).

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: كَانَ رَجُلٌ يَقْرَأُ سُورَةَ الْكَهْفِ وَإِلَى جَانِبِهِ حِصَانٌ مَرْبُوطٌ |
| براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ورځ يو کس سورة کهف لوستو او دده خواکې يو اسپه وه چې تړل شوي |
| بِشَطَنَيْنِ فَتَغَشَّتْهُ سَحَابَةٌ فَجَعَلَتْ تَدْنُو وَ تَدْنُو وَ جَعَلَ فَرَسُهُ |
| وه په دوه پړو باندې چې هغه د وريځې (ټوټي) پټه کړه او هغه همدغه شان نزدې کيدو تردې چې اسپې |
| يَنْفِرُ فَلَمَّا أَصْبَحَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ |
| ټوپونه وهل شروع کړه کله چې سحر شو نو هغه کس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راغلو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته يې ټوله قصه |
| فَقَالَ : تِلْكَ السَّكِينَةُ تَنَزَّلَتْ بِالْقُرْآنِ .(۱) |
| وکړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې : هغه سکينه وه چې د قرآن لوستلو په وجه رانازله شوي وه. |

**توضيح**: **شطنين**: دا د **شطن** تثنيه ده. **شطن** پړي ته وايي. **السكينة**: دا د **تسكين** او سکون نه دی. د اطمينان په معنی کې دی يعني هغه تسکين قلب، د زړه قرار، او د خدای رحمت چې هغې سره زړه پاک او منور شي. سکينه اګر که مشاهده کې په عامه توګه نه راځي خو کله کله د وريځو سيوري په صورت کې ښکاره کيږي. ميدان جهاد کې د بيهوشۍ په صورت کې ښکاره کيږي عوام اکثر غفلت ته سکينه وايي د وعظ مجلس يا تلاوت کې شيطاني خوب ته سکينه وايي دا غلط دي. (المرقات : ۴/۶۲۳).

## د سورة فاتحې اهميت او فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى قَالَ: كُنْتُ أُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ فَدَعَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| سعيد ابن معلی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يو ورځ) ما جومات کې مونځ کولو چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ زه راوغوختم |
| فَلَمْ أُجِبْهُ حَتَّى صَلَّيْتُ ثُمَّ أَتَيْتُهُ |
| ما هيڅ جواب ورنه کړو بيا چې (د مونځ نه فارغ شوم او) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راغلم نو عرض مې وکړو چې |

| |
|---|
| فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي كُنْتُ أُصَلِّي |
| يارسول الله! (هغه وخت) ما مونځ کولو (ځکه ماتاته جواب درنه کړو) نبي عَلَيْهِ‌السَّلَام وفرمايل چې آيا نه |
| فَقَالَ أَلَمْ يَقُلِ اللهُ ﴿ اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَ لِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ﴾ |
| دي ويلي الله دا چې د الله او د هغې رسول ته جواب ورکړئ کله چې د الله رسول تاسو راوغواړي او اطاعت |
| ثُمَّ قَالَ لِيْ : أَلَا أُعَلِّمُكَ أَعْظَمَ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ قَبْلَ أَنْ |
| وکړئ؟ بيا دې نه وروسته نبي عَلَيْهِ‌السَّلَام وفرمايل آيا زه تاته و نه ښايم ډير لوي (افضل) سورة مخکې د دې نه |
| نَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ . فَأَخَذَ بِيَدِي فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ نَخْرُجَ قُلْتُ لَهُ |
| چې مونږ د دې جومات نه بهر شو؟ بيا يې زما لاس ونيولو او چې بيا کله مونږ د جومات نه په وتو شونو ما وويل |
| يَا رَسُوْلَ اللهِ اِنَّكَ قُلْتَ لَأُعَلِّمَنَّكَ أَعْظَمُ سُورَة هِيَ سُورَةٌ مِنَ الْقُرْآنِ قَالَ: |
| چې يارسول الله! تاسو ماته ويلي ؤ چې تا ته د قرآن يو لوي سورة زده نه کړم؟ نبي عَلَيْهِ‌السَّلَام وفرمايل هغه |
| ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُوتِيتَهُ". (۱) |
| سورت الحمد لله رب العلمين دی. دا اووه آيتونه دي چې مونځ کې بار بار لوستل کيږي. |

**توضيح : استجيبوا**: يعنې کله چې نبي کريم صَلَّى‌اللَّهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ تاسو راوغواړي نو هر حالت کې اجابت او اطاعت کوئ، مونځ پرېږدئ او راشئ وپوښتئ چې څه خدمت دی؟ دا خبره خو په خپل ځای ده چې راغوښتلو باندې بغير د تاخير نه مونځ پرخودل او راتلل په کار دي. (المرقات :۴/۶۲۳).

بحث دې کې دی چې آيا مونځ پاتي شو او که باطل شو؟ علامه طيبي رَحِمَهُ‌اللَّهُ وايي چې د حديث ظاهر په دې دلالت کوي چې مونځ باطل نه شو. (المرقات :۴/۲۷۱).

علامه بيضاوي رَحِمَهُ‌اللَّهُ ليکي چې ځينې علماء ليکي چې مونځ باطل نه شو. خو ځينې علماء ليکي چې باطل کيږي. د حديث نه واضح کيږي چې مونځ باطل نه شو. ملاعلی قاري رَحِمَهُ‌اللَّهُ وايي چې اجابت رسول خو لازم دی. حديث په همدې باندې دال دی. خو مونځ د بطلان يا د عدم بطلان نه حديث ساکت دی. البته د عامه دلائلو په وړاندې د مونځ باطل کيدل ډير ظاهره دي.

**المثاني**: سورة فاتحې ته **السبع** ځکه وويل شو چې دا بالاتفاق په اووه آيتونو مشتمل ده. او **المثاني** کې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۵۴، رقم الحديث ۵۰۰۶، وأحمد في المسند ۴/۲۱۱.

ډير احتمالونه دي. خو ظاهره دا ده چې دا سورة دا چې په هر رکعت کې تکرارېږي. ځکه ورته المثاني ويل شوی دی. يا د نزول په اعتبار سره المثاني دی ځکه دا يو ځل په مکه کې نازل شوی دی، دوه ځله په مدينه کې نازل شوی دی. (المرقات: ۴/۶۲۵).

**والقرآن العظيم**: دا عطف عام على الخاص د قبيل نه دی. يا **القرآن العظيم** نه سورة فاتحه مراد ده. دا د عطف **صفت على صفت** صورت دی. اصل عبارت داسي دی **ولقد آتيناك شيئا يقال له السبع المثاني ويقال له القرآن العظيم**". د يو شي دوه جدا جدا صفتونه دي. سورة فاتحي ته قرآن عظيم ځکه ويل شوی دی چې د قرآن کريم ټول مضمونونه سورة فاتحه کې په اجمالي توګه درج ده.

## د سورة بقرې فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ مَقَابِرَ |
| ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل خپلو کورونو نه مقبري مه جوړوی (يادساتی) |
| إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْفِرُ من الْبَيْتِ الَّذِي يقْرَأُ فِيهِ سُورَةَ الْبَقَرَةِ. [1] |
| شيطان د هغه کور تختي کوم کې چې سورهٔ بقره لوستلی کېږي. |

**توضيح**: **مقابر**: د دې لفظ دوه مفهومه دي: اول دا چې خپل کورونه د قبرستان په شان مه جوړوی چې هغې کې نه تلاوت وي، نه عبادت وي، نه د الله ذکر وي. دويم مفهوم دا چې خپل مړي خپلو کورونو کې مه ښخوی، کورونو نه قبرستان مه جوړوی. اولنی معنی ډيره واضحه ده يعني کورونو کې سورة بقره وايی. (المرقات: ۴/۶۲۶).

## د سورة بقرې او آل عمران شفاعت

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: اقْرَءُوا الْقُرْآنَ فَإِنَّهُ | | | | | | |
| ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي چې لولی قرآن ځکه دا قرآن به د | | | | | | |
| يَأْتِي | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | شَفِيعًا | لِأَصْحَابِهِ | اقْرَءُوا | الزَّهْرَاوَيْنِ |
| قيامت په ورځ د خپل لوستونکو شفاعت کوي او (خاصکر) لولی دوه پړقيدونکي سورتونه چې هغه سورة | | | | | | |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۳۹ رقم الحديث ۲۱۲، ۷۸۰، والترمذي في السنن ۵ ۱۴۵ رقم الحديث ۲۸۷۷

الْبَقَرَةَ وَ سُورَةَ آلِ عِمْرَانَ فَإِنَّهُمَا تَأْتِيَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ

بقره او سورة آل عمران دي ځکه دا دواړه به د قيامت په ورځ داسي ظاهرېږي ګويا کي دوريځي دوه ټوټې دي

أَوْ كَأَنَّهُمَا غَيَايَتَانِ أَوْ فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ

يا دوه سيوري کونکي شيان دي يا د مارغانو د صفونو تړلی شوي دوه ټوټې دي او جنګ کوي د خپلو

تُحَاجَّانِ عَنْ أَصْحَابِهِمَا اقْرَءُوا سُورَةَ الْبَقَرَةِ فَإِنَّ

لوستونکو لپاره او سورة بقره لولی ځکه د دي لوستلو باندي د مدا ومت مفهوم او معانی کي غور او فکر او

أَخْذَهَا بَرَكَةٌ وَ تَرْكُهَا حَسْرَةٌ

د دي په احکامو باندي عمل کولو سره برکت (يعني لويه نفع) ده د دي پرېخودل د قيامت په ورځ به د حسرت

وَلَا تَسْتَطِيعُهَا

(د شرم سبب) وي او (يا د وساتي چي د سورة بقري د اوږد والي په وجه) طاقت نه لري د دي د لوستلو هغه

الْبَطَلَةُ . (۱)

خلک چي اهل باطل او نا راسته وي.

**توضیح**: **الزهراوين**: د **الزهراء** تثنيه ده د جواز تانيث دی د ډير رڼا نه او پړقيدونکي په معنی دی. ځکه دي کي د هدايت زبردسته رڼا ده. ګويا کي دا دواړه سورتونه او چت اسمان باندي د سپوږمۍ او د لمر په شان دي. او نور ستوري دي. (المرقات: ۴/۶۲۶).

**تأتيان**: يعني د دي اجر او ثواب به ملاوېږي يا به دا دوه سورتونه خپله په يو خاص بند سره متشکل راشي

**غمامتان**: د وريځي دوه پړقيدونکي ټوټي. **اوغيايتان**: دا د سيوري په معنی کي دی. يعني دوه مزيداره سائبان. (المرقات: ۴/۶۲۶).

**اوفرقان**: د فرقة تثنيه ده. د فرق او فرقة تثنيه فرقان ده. **ای القطعتان** د مارغانو دوه سيلونه (ډلي) مراد دي. چي د هغې په وجه به سر باندي سيوری شي. (المرقات: ۴/۶۲۶).

علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چي دلته او د شک لپاره نه دی بلکي د مختلف قسمونو او انواعو د بيانولو لپاره دی. بيا ترتيب ورکوي او وايي چي اول صفت د هغه خلکو لپاره دی چي قرآن لولي خو په معاني

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۵۳ رقم الحديث ۲۵۲-۸۰٤، وأحمد في المسند ٤ ١٥٤

باندې يې نه پوهېږي. دويم صفت د هغه خلكو لپاره دى چې د معلم په حيثت نورو ته د ښودلو صلاحيت لري. بيا علامه رَحِمَهُ اللهُ د دې تشبيه د تقسيم وضاحت داسې كوي چې د وريځې سيورى د سائبان نه د سيوري نه كم وى. دغه شان سائبان نزدې هم وي. وريځ د عوام الناس لپاره عام دى. خو سائبان د بادشاهانو سره خاص وي. او د مارغانو و وزرو سيورى د خو عام باشاهانو ته هم نصيب نه وي. دا خو د حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ په شان د اخص الخواص لپاره وي. چې هغه وفرمايل ﴿رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنبَغِي لِأَحَدٍ مِّنْ بَعْدِي﴾. (المرقات: ۴/٦٢٧).

**صواف:** د **صافة** جمعه ده وزرو والا **مارغان** چې كله قطار جوړ كړي او په فضا كې ودېږي هغې ته صواف وايي. (المرقات: ۴/٦٢٦).

**البطلة:** ددې نه يا خو جادوګر خلك مراد دې چې د خپلې ګمراهۍ په وجه يې دا دواړه سورتونه ونه لوستلى شول. نه يې پرې عمل وكړى شو. يا د دينه هغه باطل خلك مراد دې چې د خپلې بې راه روۍ، فسق او فجور او سستۍ او مستۍ كې پراته وي. هغوى ته اوږدو سورتونو د لوستلو توفيق چرته كيدى شي. (المرقات: ۴/٦٢٧).

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: يُؤْتَى بِالْقُرْآنِ |
| نواس ابن سمعان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دې چې رابه وړلې شي قرآن د |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ أَهْلِهِ الَّذِينَ كَانُوا يَعْمَلُونَ بِهِ تَقْدُمُهُ سُورَةُ الْبَقَرَةِ |
| قيامت په ورځ نو چاچې لوستلو او عمل يې پرې كولو د ټول قرآن مخې ته به دوه سورتونه سورت بقره او |
| وَ آلُ عِمْرَانَ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ |
| سورت آل عمران وي. دغه شان كوياكې هغه به د وريځې دوه ټوټې وي يا به وريځې دوه توري ټوټې وي |
| أَوْ ظُلَّتَانِ سَوْدَاوَانِ بَيْنَهُمَا شَرْقٌ أَوْ كَأَنَّهُمَا فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ تحاجان عَنْ صَاحِبِهِمَا. (۱) |
| او هغې كې پرق دى ياګوياكې دوه تكړې صف بسته مارغانو په شان دې چې لوستونكو لپاره به جنګ كوي |
| (يعنې د خپل لوستونكو سفارش به كوي). |

**توضيح : يوتى بالقرآن:** يعنې بعينه به قرآن راوستلى شي يا به د دې ثواب وړاندې كړى شي او د دې باندې عمل كونكي به د دې ثواب سره حاضر كړى شي.

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۵۵٤/۱ رقم الحديث ۲۵۳-۸۰۵. والترمذي في السنن ۱٤۷/۵ رقم الحديث: ۲۸۸۳.

**ظلتان سوداوان**: وریځ چې کله برخه په برخه ژوریګي. نو د هغې سیوری خوندور او آرام ورکونکی وي. دلته د دې لفظ اضافه کولو نه همدغه بیانول مقصود دی. (المرقات: ۴/۶۲۷).

**بینهما**: یعنې دا وریځې خو به ډیرې ډوبې وي خو د دې په مینځ کې یو پرق وي. چې د هغې په وجه به مزیداره رڼا کې هیڅ کمی نه راځي او ویرونکی تورتم به نه وي. علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ او نور علماء وایي چې د شرق معنی فرق دی یعنې د وریځو په دې دوه ټوټو کې یوه پرقیدونکي مسافت وي یعنې بسم الله به ذکر وي چې د هغې په وجه به د دواړه سورتونو په مینځ کې فرق او جدا والی معلومیږي.

## آیت الکرسی د قرآن عظیم د ټولو نه عظیم آیت دی

﴿۱۴﴾ وَ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : يَا أَبَا الْمُنْذِرِ

ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (یو ځل زمانه) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړه چې ای ابو المنذره!

أَتَدْرِي أَيُّ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللهِ مَعَكَ أَعْظَم ؟

(دا د ابي ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کنیت دی) آیا ته پوهیږي چې ستا په نزد د کتاب الله کوم یو آیت د ټولو نه عظیم

قُلْتُ اللهُ وَ رَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ :

دی؟ ما وویل چې الله او د هغه رسول د ټولو نه ښه پوهیږي (چې هغه کوم آیت دی) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ بیا وفرمایل

يَا أَبَا الْمُنْذِرِ أَتَدْرِي أَيُّ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللهِ مَعَكَ أَعْظَم ؟ قُلْتُ ﴿ اللهُ لَا

ای ابو منذره! آیا ته پوهیږي چې ستا په نزد د کتاب الله کوم یو آیت د ټولو نه عظیم دی؟ ما وویل چې الله لا

إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴾ قَالَ فَضرب فِي صَدْرِي وَ قَالَ :

اله الا هو الحی القیوم (یعنې ټوله آیت الکرسي) ابي ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (دې اوریدو سره) نبي

لِيَهْنِكَ الْعِلْمُ يَا أَبَا الْمُنْذِر.[1]

عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل لاس مبارک زما په سینه ووهلو چې ابو المنذره! خدای دې وکړي چې ستا علم خوشګوار وي

**توضیح**: **لیهنك العلم**: ابو المنذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کنیت دی. په عظیم الشان صحابو کې د ټولو نه لوی قاري ؤ. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ده نه د امتحان په طور تپوس وکړو چې قرآن

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۵۵۶/۱ رقم الحديث ۲۵۸. ۸۱۰، وأبوداود في السنن ۱۵۱/۲، رقم الحديث: ۱۴۱۰، وأحمد في المسند ۱۴۲/۵.

کریم کښې د ټولو نه لوي آیت کوم یو دی. دې باندې هغې وفرمایل چې آیت الکرسی د ټولو نه لوي ده. نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ خپل شاګرد ته په صحیح جواب ورکولو باندې دوه اعزازه ورکړل. یو د اعزاز په توګه یې د هغې رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ په سینه باندې لاس ووهلو چې شاباش، شاباش، دویم یو اعزازي نمبر ورکړو چې تاته دې ستا علم مبارک وي. د دې حدیث نه د مدرسو د شاګردانو د امتحانونو او دې باندې د نمبرو او د انعامونو ثواب ملاویږي. (المرقات: ۴/۶۲۹).

**لیهنك**: دا صیغه د همزه سره هم ویل شوي ده او العلم هر صورت کښې د دې فاعل دی. "**اى لیكن العلم هنیئا لك**" **باب سمع** او **فتح** دواړه اهل لغت استعمال کړی دی. عرب چې کله د یو مأشوم په پیدائش باندې مبارکي ورکوي نو وايي "**لیهنك الولد**". (المرقات: ۴/۶۲۹).

حضرت ابي ابن کعب رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ یو ځل د جواب ورکولو نه ګریز وکړو. کیدلی شي چې نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ فقط متوجې کول غوښتل او جواب یې خپله ورکول غوښتلو لکه عام عادت مبارکه یې همدغه خو کله چې نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ دوباره وپوښتل نو حضرت ابي ابن کعب رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ ته اندازه وشوه چې دا واقعي دا پوښتنه ده نو هله یې جواب ورکړو د ادب لحاظ یې هم وساتلو او جواب یې هم صحیح ورکړو. اسلامي مدرسو کښې د امتحاني نظام ثبوت او بیا په کامیبیدلو باندې د اعزاز و اکرام په توګه د انعام ورکولو لپاره دا حدیث دلیل دی. (المرقات: ۴/۶۲۸).

## د حضرت ابوهریره رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ سره د ابلیس قصه

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: وَكَّلَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ

ابو هریره رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وايي چې نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ زه مقرر کړم په ساتلو د زکوة د رمضان (یعني صدقة الفطر)

فَأَتَانِي　آتٍ　فَجَعَلَ　يَحْثُو　مِنَ　الطَّعَامِ

نو (دغه وخت کښې) یو سړی ماته راغلو او خپلو لاسونو باندې (خپلي لمن او خپل لوخي کښې) غله اچول شروع

فَأَخَذْتُهُ　وَ　قُلْتُ　لَأَرْفَعَنَّكَ　إِلَى　رَسُولِ　اللهِ　صَلَّى　اللهُ　عَلَيْهِ　وَ　سَلَّمَ

کړه ما هغه ونیولو او ورته مې وویل چې زه تا نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ته بوځم (او د دې غلط حرکت په وجه

قَالَ　إِنِّي　مُحْتَاجٌ　وَ　عَلَيَّ　عِيَالٌ　وَ　لِي　حَاجَةٌ　شَدِيدَةٌ

پرې تا ته سزا در کوم) هغه وویل چې زه یو محتاجه یم ما باندې د خپل اهل و عیال نفقه ده او زه سخت حاجتمند

قَالَ　فَخَلَّيْتُ　عَنْهُ　فَأَصْبَحْتُ

یم. ابو هریره رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وايي چې ما (د هغې دا بد حالت واوریدو نو) هغه مې پرېښودو کله چې سحر شو نو

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : يَا أَبَا هُرَيْرَة مَا فَعَلَ أَسِيْرُكَ الْبَارِحَةَ .
نبي عَلَيْهِ السَّلَام ماته وویل چې ابو هریره! ستاد تیري شپې د بندي څه وشو؟ (یعنې الله نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته د دې
قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ ! شَكَا حَاجَةً شَدِيدَةً وَ عِيَالًا
واقعې خبرورکړې وُ) ما وویل چې یارسول الله! هغه ماته شکایت وکړو د خپل سخت حاجت او عیال داری
فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ قَالَ : أَمَا
نو زما پرې رحم راغلو او هغه مې پرېخودو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: خبردار او سېږه هغه (د خپلو خیالاتو په
إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَ سَيَعُودُ . فَعَرَفْتُ
اظهار کې) تاته دروغ ویلي دي هغه به بیا راځي (نو ځکه بیا لپاره خیال کوه) زه پوه شوم چې خامخا به راځي
أَنَّهُ سَيَعُودُ لِقَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَنَّهُ سيعود . فَرَصَدْتُهُ فَجَاءَ
ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې هغه به بیا راځي. نو زه د هغې په انتظار شوم هغه راغلو او خپلو
يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَأَخَذْتُهُ فَقُلْتُ :
خپلو دواړو لاسونو باندې یې غله د کول شروع کړه ما هغه ونیولو او ورته مې وویل چې (اوس خو به) زه تا
لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ دَعْنِي فَإِنِّي مُحْتَاجٌ وَ عَلَيَّ عِيَالٌ لَا أَعُودُ
نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بوځم هغه وویل چې ما پرېږده زه ضرورتمند یم او بچو نفقه را باندې ده بیا لپاره
فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :
به نه راځم زما پري رحم راغلو او هغه مې پرېخودو کله چې سحر شو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وویل
يَا أَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ ؟ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ شَكَا حَاجَةً شَدِيدَةً وَ عِيَالًا
چې ستا د بندي څه وشو؟ ما وویل چې یارسول الله! هغه ماته شکایت وکړو د خپل سخت حاجت او عیال داری
فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ قَالَ :
نو زما پرې رحم راغلو او هغه (په دې وعده چې بیا به نه راځم) پرېخودو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل
أَمَا إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَ سَيَعُودُ . فَرَصَدْتُهُ الثَّالِثَةَ
هوښیار او سېږه هغه (دا ځله هم) دروغ ویلي (چې زه به نه راځم) هغه به بیا راځي نو زه بیا د هغه په انتظار

فَجَاءَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَأَخَذْتُهُ فَقُلْتُ

شوم او هغه بيا راغلو كله يې چې غله اچول شروع كړه نو ما هغه ونيولو او ورته مې وويل چې نن خو به دې

لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُول الله وَ هٰذَا آخِرُ ثَلَاثِ مَرَّاتٍ إِنَّكَ تَزْعُمُ لَا تَعُودُ ثُمَّ تَعُودُ

ضرور نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بوځم دا آخري دريمه موقع ده تاخوويلي ؤ چې بيا به نه راځم خو ته بيا راغلې

قَالَ دَعْنِي أُعَلِّمْكَ كَلِمَاتٍ يَنْفَعُكَ اللهُ بِهَا قُلْتُ مَا هُوَ قَالَ

هغه وويل چې ما پريږده زه به تاته داسې كلمې زده كړم چې الله به درته د هغې په وجه نفع رسوي ما ورته وويل

إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ

چې هغه كوم كلمات دي هغه وويل چې كله ته (او ده كيدو لپاره) خپلې بسترې ته راشې نو وايه آيت الكرسي

﴿ اللهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴾ حَتّٰى تَخْتِمَ الْآيَةَ فَإِنَّكَ لَنْ يَزَالَ

الله لا اله الا هو الحي القيوم آخر اية پورې (يعنې تر وهو العظيم پورې) نو د الله د طرف نه به د هميشه د

عَلَيْكَ مِنَ اللهِ حَافِظٌ وَلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتّٰى تُصْبِحَ

پاره مقرر وي تاته يو ساتونكې (فرښته) او تر سحر پورې به هيڅ يو شيطان تاته نږدې نه راځي (دا شيطان

فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

كه دانسانانو نه وي ياد جنات نه) ما (دې او ريدو سره) هغه داځل هم پريخودو كله چې سحر شو نو وويل ماته

مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ ؟ قُلْتُ : زَعَمَ أَنَّهُ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې ستا د بندي څه وشو؟ ما وويل چې بندي (كله) ماته دا وويل چې هغه به ماته

يُعَلِّمُنِي كَلِمَات يَنْفَعُنِي اللهُ بِهَا فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ قَالَ النَّبِيُّ

كلمات زده كوي چې د هغې په وجه به الله ماته نفع رسوي (نو داځل مې هم پريخودو) نو وفرمايل نبي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَمَا إِنَّهُ صَدَقَكَ وَ هُوَ كَذُوبٌ وَ تَعْلَمُ

كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبرا وسېږه (اګر كه) هغه تاته (ددې كلماتو باره كې) ريښتيا ويلي دي خو هغه (په نورو

مَنْ تُخَاطِبُ مُنْذُ ثَلَاثَ لَيَالٍ . قَالَ لَا

خبرو كې) دروغجن دي. او ته پوهېږې چې ته دې درې شپو كې چا سره مخاطب وې؟ ما وويل نه. نبي

| قَالَ : ذَاكَ شَيْطَانٌ.[1] |
|---|
| عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل "هغه شيطان ؤ (چې هغه د غه شان په مكر او فريب سره د صدقي په مالونو كې كمي كولو ته راغلى ؤ). |

**توضيح**: حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صدقي مالونو باندې څوكيدار مقرر كړى ؤ. يو شپه غل راغلو. حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ونيولو. هغه زارۍ وكړه چې ما پرېږده. نو حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه پريخودو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الله د وحي په ذريعه خبر كړو چې داسې واقعه وشوه. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې دا غل به بيا راځي. دا هم ورته د وحي په ذريعه وويل شو. الغرض دا چې درې ځله دا سلسله وشوه. بيا دې غل حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د ځان او مال د حافظت لپاره يوه وظيفه وښوده چې د اوده كيدو وخت كې آيت الكرسي وايه. زما په شان غله به نه راځي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې تصديق د افاديت تصديق وفرمايلو او دا يې هم وويل چې درې ورځي ستا دا معامله د شيطان سره وه. د دې حكايت نه هر مسلمان لپاره پوهيدل په كار دي چې آيت الكرسي د يو مسلمان د ځان او د مال د حفاظت لپاره يو لويه قلعه ده. (المرقات ۴/۶۲۳).

## د سورة فاتحې او د امن الرسول فضيلت

| ﴿۱۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: بَيْنَمَا جِبْرِيلُ قَاعِدٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې (يوه ورځ) كله چې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست |
| سَمِعَ نَقِيضًا مِنْ فَوْقِهِ فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ : |
| ؤ نو جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ پاس طرف ته د دروازې د پرانستلو آواز واوريدو نو خپل سر يې اوچت كړو او وې ويل |
| هٰذَا بَابٌ مِنَ السَّمَاءِ فُتِحَ الْيَوْمَ لَمْ يُفْتَحْ قَطُّ إِلَّا الْيَوْمَ فَنَزَلَ مِنْهُ |
| چې دا د اسمان دروازه پرانستلى شوه د نن نه بغير دا كله هم نه ده پرانستل شوې چې راكوزه شوه د دې نه |
| مَلَكٌ فَقَالَ هٰذَا مَلَكٌ نَزَلَ إِلَى الْأَرْضِ لَمْ يَنْزِلْ قَطُّ إِلَّا الْيَوْمَ |
| يو فرښته. جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ وويل چې دا فرښته د نن نه بغير كله هم زمكې ته نه ده راكوزه شوې بيا هغه |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۴۸۷، رقم الحديث ۲۳۱۱

| فَسَلَّمَ وَ قَالَ أَبْشِرْ بِنُورَيْنِ أُوتِيتَهُمَا |
|---|
| فرښتې (نبي عليه السلام ته) سلام وكړو او وې ويل چې خوشخبري دې وي تا ته چې تا ته هغه دوه نوره دركړې |
| لَمْ يُؤْتَهُمَا نَبِيٌّ قَبْلَكَ فَاتِحَةُ الْكِتَابِ وَ خَوَاتِيمُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ |
| شول چې ستا نه مخكې بل هيڅ نبي ته نه ؤ وركړل شوي او هغه سورة فاتحه او د سورة بقري آخرې برخه ده |
| لَنْ تَقْرَأَ بِحَرْفٍ مِنْهُمَا إِلَّا أُعْطِيتَهُ.[1] |
| دې كې به ستا د طرف د ويل شوي د يو يو حرف په بدل كې ثواب ملاويږي او يا به دعاء قبليږي. |

**توضيح: نقيضاً**: دا هغه اواز ته وايي چې د يو شي د خلاصولو يا د بندولو يا د لمتبدلو سره پيدا كيږي. دلته د دروازې د خلاصيدو اواز مراد دى. (المرقات: ۴/۶۳۳).

**خواتيم سورة البقرة**: ددې نه "**أمن الرسول**" مراد دى. علماؤ ليكلي دي چې ددې نه د سورة بقرې آخري درې آيتونه مراد دي چې د **أمن الرسول** نه شروع كيږي مشهور همدغه دي (المرقات ۴/۶۳۳).

**اعطيته**: يعنې هره هره كلمه باندې به ثواب ملاويږي. او د هرې كلمې چې كوم سوال دى د هغې مطابق به انعام وركول كيږي. مثلاً سورت فاتحه كې "**اهدنا الصراط المستقيم**" د او **أمن الرسول** كې "**ربنا لاتواخذنا**" دى يا داسې نورې كلمې. (المرقات: ۴/۶۳۴).

| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْآيَتَانِ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ |
|---|
| ابن مسعود رضي الله عنه راوي دى وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دوه آيته آخرې د سورة بقرې |
| مَنْ قَرَأَ بِهِمَا فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ.[2] |
| (يعنې أمن الرسول نه تر آخره پورې) چا چې وويل د شپې نو دا دده د پاره كافي ده. |
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَفِظَ عَشْرَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ سُورَةِ |
| ابودرداء رضي الله عنه راوي دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چا چې ياد كړل لس آيتونه اولنې د سورة |

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۵۴ رقم الحديث: ۲۵۴-۸۰۶.

(۲) أخرجه البخاري ۳۱۷/۷، رقم الحديث: ۴۰۰۸، ومسلم في صحيحه ۱/۵۵۵ رقم الحديث: ۲۵۵-۸۰۷، وأحمد في المسند ۱۱۸/۴.

الْكَهْف عُصِمَ مِنَ الدَّجَّالِ.[۱]

کهف نو دا به د دجال د شر نه محفوظ وي.

## د سورت اخلاص فضيلت

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ

ابو درداء راوي دی وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل آيا عاجزدی په تاسو كې يو كس ددې نه چې

يَقْرَأَ فِي لَيْلَةٍ ثُلُثَ الْقُرْآنِ؟ قَالُوا: وَكَيْفَ يَقْرَأُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ؟

ولولي د شپې دريمه برخه د قرآن؟ صحابؤ وويل چې دريمه برخه د قرآن به څنګه ولوستل شي؟ نبي عليه السلام

قَالَ: قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ.[۲]

وفرمايل قل هو الله احد د قرآن د دريمې برخې برابر دی (كوم كس چې د شپې دا سورت ووايي نو ګويا چې

ده دري برخه قرآن ووېل).

**توضيح: تعدل:** يعنې مساوي او برابر دی. قرآن عظيم اصولي توګه باندې درې لوي مضامينو باندې مشتمل دی: ۱: قصص ۲: احكام ۳: توحيد. دې درې مضمونونو كې سورت اخلاص په پوره توګه دريم نمبر مضمون باندې مشتمل دی. ځكه د تهائي قرآن برابر دی. يا مطلب دا دی چې د سورت اخلاص د ثواب په اعتبار سره د يو تهائ قرآن د ثواب برابر دی. (المرقات: ۴/۶۳۶).

﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا عَلَى سَرِيَّةٍ وَكَانَ

عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي كريم ﷺ يو كس امير كړو او د لښكر سره يې ولېږلو هغه كس به

يَقْرَأُ لِأَصْحَابِهِ فِي صَلَاتِهِمْ فَيَخْتِمُ بِـ (قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ)

مونځ كې د خپلو ملګرو امامت هم كولو او (د هغه معمول وُچې خپل قرأت) قل هو الله احد باندې ختمولو.

فَلَمَّا رَجَعُوا ذَكَرُوا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

كله چې دا د لښكر خلك را واپس شونو ددې تذكره يې نبي عليه السلام ته وكړه. نبي عليه السلام ورته وفرمايل

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۵۵ رقم الحديث: ۲۵۷-۸۰۹، وأبوداود في السنن ۳/۱۹۷، رقم الحديث: ۴۳۲۳.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۵۶ رقم الحديث: ۲۵۹-۸۱۱، وأبوداود في السنن ۲/۱۵۲، رقم الحديث: ۱۴۶۱.

سَلُوهُ لِأَيِّ شَيْءٍ يَصْنَعُ ذَلِكَ فَسَأَلُوهُ فَقَالَ لِأَنَّهَا
چې ددې كس نه پوښتنه وكړئ چې هغه دا سې ولې كوي؟ دهغه نه وپوښتل شونو هغه وويل چې دا زه ځكه

صِفَةُ الرَّحْمَنِ وَ أَنَا أُحِبُّ
كوم چې دې سورت كې د رحمن (د الله) صفت (وحدانيت) بيان شوی او زه دا خوښم چې (د الله د صفت او د

أَنْ أَقْرَأَهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :
وحدانيت له نظره) دا سورت (هميشه) وايم. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې اوريدو سره) وفرمايل چې دې

أَخْبِرُوهُ أَنَّ اللهَ يُحِبُّهُ.[1]
سړي ته خبر وركړئ چې الله د ده سره دوستي كوي ځكه هغه د الله سره دوستي كوي.

**توضيح : فيختم:** د دې لفظ ډير واضحه مطلب دا دی چې دې سړي به هر مونځ كې د سورت فاتحې نه وروسته سورت اخلاص لوستلو. علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د هر ركعت آخر كې به يې سورت اخلاص لوستلو. دې صورت كې د فقهاؤ لړ شان اختلاف راځي چې آيا هر ركعت كې د يو سورت تكرار صيح دی يا نه؟ اولني وضاحت ډير بهتر دی. (المرقات : ۴/۶۳۷).

﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: إِنَّ رَجُلًا قَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُحِبُّ هٰذِهِ السُّورَةَ : (قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ)
انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راويت كوي چې يو كس عرض وكړو چې يا رسول الله! زه خوښوم دا سورت يعنې قل هو الله

قَالَ : إِنَّ حُبَّكَ إِيَّاهَا أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ".[2]
احد (يعنې دا اكثر لولم) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې دې سورت سره دوستي به تا جنت ته داخل كړي

## په معوذتين باندې د دم كولو طريقه

﴿۲۲﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَمْ تَرَ آيَاتٍ أُنْزِلَتِ اللَّيْلَةَ
عقبه ابن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نن شپه دا سې نا اشنا آيتونه نازل شوي دي

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۴۷/۱۳، رقم الحديث ۷۳۷۵، ومسلم في صحيحه ۱ ۵۵۷ رقم الحديث :۲۶۳-۸۱۳.
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۳/۲، رقم الحديث ۷۷۴

لَمْ يُرَ مِثْلُهُنَّ قَطُّ (قل أَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ) و (قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ)[1]

چې (دپناه غوښتلو په سلسله کې) ددې هيڅ بديل نشته او هغه قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس دي

﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ

عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به هره ورځ کله بستري ته تشريف ويوړو نو د (اوده کيدلو

كُلَّ لَيْلَةٍ جَمَعَ كَفَّيْهِ ثُمَّ نَفَثَ فِيهِمَا فَقَرَأَ فيهمَا (قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ) وَ (قُلْ أَعُوْذُ

نه مخکې) خپل دواړه لاسونه ملاؤکړل او په هغې به يې دم کړل او بيا به يې هغې باندې قل هو الله، قل اعوذ

بِرَبِّ الْفَلَقِ) وَ (قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ) ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا مَا اسْتَطَاعَ

برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ويل او بيا به رابنکل دواړه لاسونه په خپل بدن چې ترکوم ځاې پورې

مِنْ جَسَدِهِ يَبْدَأُ بِهِمَا عَلَى رَأْسِهِ وَ وَجْهِهِ وَمَا أَقْبَلَ مِنْ جَسَدِهِ

به کيدې شو او نبي عليه السلام به لاس رابنکل د خپل سر، خله او د بدن د مخکنۍ برخې نه شروع کولو (ددې

يَفْعَلُ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ.[2]

نه وروسته به يې د بدن په نورو اندامونو رابنکل) د نبي کريم عليه الصلاة والسلام دا عمل به درې ځلې کول

(يعنې لوستل او دمول او بدن باندې لاسونه رابنکل) درې ځلې کول.

وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ ابْنِ مَسْعُودٍ: لَمَّا أُسْرِيَ بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَابِ الْمِعْرَاجِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى

**توضيح: فقرأ فيهما**: دا جمله د دينه مخکې د **ثم نفث فيهما** تفصيل او تفسير دى يعنې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به خپلو دواړو لاسونو کې معوذتين دم کړل. د دې صورت به دا ؤو چې اول به نبي کريم صلى الله عليه وسلم ولوستل. بيا به يې په لاسونو دم کړل. بيا به يې خپل بدن باندې مږل. عربي محاوره کې کلام داسې شائع دى. لهذا د يو راوي طرف نه سهو يا د غلطۍ د نسبت کولو ضرورت نشته دى چې هغې **فقرأ فيها** موخر ذکر کړى دى او **ثم نفث** يې اول ذکر کړى دى. (المرقات: ۴/۶۴۰).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۵۸ رقم الحديث ۲٦٤ ۸۱٤

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۶۲، رقم الحديث ۵۰۱۷

﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ﴾ (نحل : ۹۸) او ﴿فَتُوبُوا إِلَىٰ بَارِئِكُمْ﴾ (بقره : ٥٤) ﴿فَاقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ﴾ (بقره : ٥٤) کې هم دغه شان دی. هلته به بيا څه کوي؟ بهرحال مسلمان له په کار ده چې د دم کولو دا طريقه خپله کړي. دا د سحر او دجادو او نورو روحاني مرضونو علاج دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په قيامت کې د عرش لاندې درې مهم شيان

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ عَنْ عَبْدِالرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : |
| عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل |
| ثَلَاثَةٌ تَحْتَ الْعَرْشِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْقُرْآنُ يُحَاجُّ الْعِبَادَ لَهُ ظَهْرٌ وَ بَطْنٌ |
| درې شيان دي د عرش د لاندې د قيامت په ورځ يو قرآن دی چې د بنده ګانو سره به جنګ کوي او د قرآن لپاره |
| وَ الْأَمَانَةُ وَ الرَّحِمُ تُنَادِي : أَلَا مَنْ |
| ظاهر هم دي او باطن هم دويم مهم شی امانت وي. دريم شی به صله وي چې اواز به کوي خبردار! کوم کس |
| وَصَلَنِي وَصَلَهُ اللهُ وَ مَنْ قَطَعَنِي |
| چې زه ملاؤ کړمه هغه دې هم الله (د خپل رحمت سره) ملاؤ کړي او کوم کس چې زه ماته کړي يم (يعنې |
| قَطَعَهُ اللهُ .(۱) |
| زما حق يې ادا نه کړو) نو الله به هغه کس هم ماتوي. |

**توضيح : تحت العرش:** يعنې دې درې واړو شيانو به د قيامت په ورځ د الله قرب حاصل وي. هغه که د عرش د لاندې وي يا بل ځاې کې وي. (المرقات :۴/۶۴۲).

۱: اولنې شی قرآن دی چې دا به هلته د نه منونکو، نه لوستونکو او د نه عمل کونکو سره جنګ کوي او دليل به ورباندې وي.

**ظهر وبطن:** يعنې د قرآن کريم د الفاظو يوه ظاهري معنی ده او بله تاويلي معنی ده. يا يوه ظاهري معنی ده چې اهل اسلام په دې پوهيږي او يوه باطني معنی ده چې علماء باطن او اهل تصوف پرې پوهيږي. د دې جملې تشريح په پوره توګه توضيحات ج۱ ص ۴۵۰ باندې وګورئ. (المرقات ۴/۶۴۲)

(۱) أخرجه البغوي في شرح السنة ۲۲/۱۳ رقم الحديث :۳۴۳۳

۲: دويم شی امانتونه دي چې هغې نه حقوق الله او حقوق العباد دواړه مراد دي چې قيامت کې به د انسان په مقابله کې او دريږي.

۳: دريم شی خپلولي او صله رحمي ده چې د ساتلو حکم يې دی د قيامت په ورځ به دا هم شکايتونه شروع کړي.

## د قرآن د قاري اوچت مقام

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يُقَالُ |
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "(د قيامت په ورځ به) وويل شي |
| لِصَاحِبِ الْقُرْآنِ : اقْرَأْ وَ ارْتَقِ وَ رَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا |
| صاحب قرآن ته چې وايه او (د جنت درجو باندې) خيجه او رورو وايه لکه څنګه چې تا په دنيا کې رورو ويلو |
| فَإِنَّ مَنْزِلَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَؤُهَا ".[1] |
| پس ستا منزل به آخري په دې آيت وي کوم به چې ته وايې. |

**توضيح**: دا ويل امر تکليفي نه دی بلک دا داسي تکويني معامله ده لکه څنګه چې انسان دنيا کې ساه اخلي يا فرښتې تسبيح وايي. ويل کېږي چې د جنت د اوچتوالي دومره درجې دي څومره چې د قرآن آيتونه دي. صاحب مظاهر حق ليکلي دي چې د قرآن د آيتونو شمير شپږ زره دوه سوه درې ديرش (۶۲۳۳) دي. دې حديث کې د لصاحب القرآن الفاظ راغلي دي. د صاحب قرآن نه مراد هغه کس دی چا چې قرآن پوره ولوستلو او دې باندې يې عمل هم وکړو او هميشه يې د دې تلاوت وساتو. علامه ابن حجر او ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا مرتبه فقط د حافظ قرآن سره خاص ده. (المرقات: ۴/۶۴۳).

## قرآن نه خالي زړه وران کنډر دی

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الَّذِي لَيْسَ فِي جَوْفِهِ شَيْءٌ مِنَ الْقُرْآنِ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د کوم سړي زړه چې د قرآن نه خالي وي نو |
| كَالْبَيْتِ الْخَرِبِ .[2] |
| هغه (يا د هغه زړه) د وران کور په شان وي. |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۲/۱۵۳، رقم الحديث ۱۴۶۴، والترمذي في السنن ۵/۱۷۷ رقم الحديث: ۲۹۱۴، وأحمد في المسند ۲/۱۹۲.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۷۷ رقم الحديث ۲۹۱۳، وأحمد في المسند ۱/۲۲۳

**توضيح**: قرآن عظيم د دې امت د مسلمانانو زينت دی کوم کس چې د دې نه محروم شو هغه د زينت نه محروم شو او د هغې د باطن خانه خرابه ده. هغه د وران کهنډر په شان دی. چې هيڅ څوکيدار پرې نه وي نو عيار او مکار دښمن چې شيطان دی. هغه دې ورانه کې بې د ويرې او خطر نه دلته خپل ځای جوړوي.

## تلاوت کې د مشغول کس ټول ضرور تونه پوره کول کيږي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَقُولُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: مَنْ |
| ابو سعيد رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې الله تعالى فرمايي کوم سړی |
| شَغَلَهُ الْقُرْآنُ عَنْ ذِكْرِي وَ مَسْأَلَتِي أَعْطَيْتُهُ أَفْضَلَ مَا |
| چې منع کړو قرآن کريم زما د ذکر او زما د غوښتلو نه نو زه به هغه ته د هغې نه بهتر شی ورکړو کوم چې |
| أُعْطِي السَّائِلِينَ . وَ فَضْلُ . كَلَامِ اللهِ عَلَى سَائِرِ الْكَلَامِ |
| غوښتونکو ته ورکوم او بزرګي او بهتري د الله تعالى د کلام د ټولو کلامونو مقابله کې لکه فضيلت د |
| كَفَضْلِ اللهِ عَلَى خَلْقِهِ " . وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ (۱) |
| الله تعالى په ټولو مخلوقاتو باندې (لهذا قرآن کې د مشغوليدونکي ته په نوروشيانو کې مشغوليدونکو |
| ته هم دغه شان برتري او بزرګي حاصليږي). |

**توضيح**: **يقول الرب**: دې جملي سره دا حديث حديث قدسي شو. يعني تلاوت کې مشغول کس فقط تلاوت کې او بل کس ډير په عاجزۍ سره د الله په مقدس ځای کې يا مقدس وخت کې سوال کوي او ترې نه يې غواړي نو الله چې هر څه ورکوي د هغې نه زيات تلاوت کونکي ته ورکوي. (المرقات ۴/۶۴۶).

**كفضل الله على خلقه**: د دې تشبيه حقيقت د هيڅ يو انسان عقل نه شي موندلی. دا تشبيه د دنيا په تشبيهاتو کې انتهاء ده يعنې د الله د کلام مقام په نورو کلامونو باندې دومره اوچت دی لکه څنګه چې د الله شان د خپل مخلوق په مقابله کې اوچت او بالا دی.

**وفضل كلام الله الخ**: دا جمله نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايله. ډيره واضحه او راجحه همدغه ده چې دا جمله د حديث قدسي برخه نه ده. (المرقات :۴/۶۴۶).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۸۴/۵ رقم الحديث :۲۹۲۶ .

## د قرآن د هر حرف په بدل کې لس نیکۍ

﴿۲۸﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِنْ كِتَابِ اللهِ فَلَهُ

ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل کوم سړی چې يو حرف ووايي د کتاب الله نو دده

بِهِ حَسَنَةٌ وَ الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا

لپاره د يو حرف په بدل کې يوه نيکي ليکل کېږي چې يوه نيکي د لسو نيکيو برابره ده (يعنې د قرآن د هر حرف

لَا أَقُولُ : آلم حَرْفٌ . أَلِفٌ حَرْفٌ وَ لَامٌ حَرْفٌ

په بدل کې لس نيکۍ ملاوېږي) زه دا نه وايم چې ټول الم يو حرف دی (بلکې) الف يو حرف دی لام يو حرف

وَمِيمٌ حَرْفٌ ". وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا[1]

دی او ميم يو حرف دی (يعنې الم لوستلو سره ديرش نيکۍ ليکل کېږي).

## قرآن د هدايت سرچينه ده

﴿۲۹﴾ وَ عَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ قَالَ : مَرَرْتُ فِي الْمَسْجِدِ

حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې اعور (ړوند) ؤ راوي دی چې زه (يوورځ کوفه کې) جومات ته راغلم (د ناستو خلکو خوا

فَإِذَا النَّاسُ يَخُوضُونَ فِي الْأَحَادِيثِ

ته نو ما وليدل چې هغه خلک) بيکاره (فضول خبرو (قيصو) کې اخته دي (او هغوی د قرآن مجيد تلاوت

فَدَخَلْتُ عَلَى عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

او د اسې نور عمل پريخی دی) نو زه د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خدمت کې حاضر شوم او ده ته مې د دوې باره

فَأَخْبَرْتُهُ : قَالَ : أَوَقَدْ فَعَلُوهَا ؟

کې وويل هغه وويل آيا هغوی په رښتيا د اسې کړي دي (چې تلاوت يې پريخی دی او بيکاره خبرو کې

قُلْتُ نَعَمْ قَالَ : أَمَا إِنِّي قَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ :

لګيا دي) ما وويل چې آؤ هغه وويل نو بيا واوره! ما د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام نه اوريدلي چې فرمايل يې:

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵ ۱۷۵ رقم الحديث ۲۹۱۰

أَلَا إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ.

خبردار! فتنه به راځی (يعني د خلکو په ديني افکارو او عقائدو کې به اختلاف پيدا کېږي، اعمالو کې ناراستي او ګمراهي پيدا کوي او هغه ګمراه خلک به د اسلام په نوم د نوي مذهب او نظريې داغ لګوي)

فَقُلْتُ مَا الْمَخْرَجُ مِنْهَا يَا رَسُولَ اللهِ : قَالَ كِتَابُ اللهِ

ما وويل چې يارسول الله! بيا د دې نه د بچ کيدو لاره څه ده؟ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ و فرمايل کتاب الله (يعني

فِيهِ نَبَأُ مَا كَانَ

د خلاصون لاره به فقط په قرآن باندې عمل کولو سره تر لاسه کېږي) چې هغې کې حالات دی ستاسو نه د

قَبْلَكُمْ وَ خَبَرُ مَا بَعْدَكُمْ

مخکې خلکو (يعني مخکينو امتونو) او د هغه خبرو خبر درکړی شوی چې ستاسو نه وروسته واقع کيدونکي

وَ حُكْمُ مَا بَيْنَكُم

دې (يعني د قيامت علامات او احوال) او دې قرآن کې هغه احکامات هم ذکر دې چې ستاسو په مينځ کې

وَ هُوَ الْفَصْلُ

(ضروري) دې او (يادساته) هغه قرآن د حق او باطل په مينځ کې (د خپلو حکمونو په ذريعې) فرق کونکی دی

لَيْسَ بِالْهَزْلِ مَنْ تَرَكَهُ مِنْ جَبَّارٍ

هغه څه بيکاره او لايعنې شی نه دی او (دا هم په کولاؤ غوږونو واوره) کوم متکبر چې قرآن پريخودو

قَصَمَهُ اللهُ وَ مَنِ ابْتَغَى الْهُدَى فِي غَيْرِهِ

الله به يې هلاک کړي او چاچې د دې قرآن نه بغير (د بل داسې کتاب نه او علم نه چې نه د قرآن نه مستنبط

أَضَلَّهُ اللهُ وَ هُوَ

دی او نه د اسلامي شرائع او نظرياتو مطابق دی) هدايت او رښا غوارې نو الله به هغه ګمراه کړي. دغه

حَبْلُ اللهِ الْمَتِينُ وَ هُوَ الذِّكْرُ الْحَكِيمُ

قرآن کلکه رسۍ ده (يعني د الله د قرب او د هغې د معرفت د ټولو نه قوي وسيله ده) قرآن باحکمته ذکر دی.

وَ هُوَ الصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيمُ

قرآن بالکل سيدها او پاکه لاره ده (چې په تللو سره پرې انسان د خپل تخليق حقيقي مقصد مونډلی شي)

| |
|---|
| هُوَ الَّذِي لَا تَزِيغُ بِهِ الْأَهْوَاءُ وَلَا تَلْتَبِسُ بِهِ الْأَلْسِنَةُ |
| قرآن هغه سرچينه د هدايت ده چې د هغې د اتباع په نتيجه کې انساني خواهشات د حق نه باطل طرف ته ځي. |
| وَلَا يَشْبَعُ مِنْهُ الْعُلَمَاءُ |
| د دې ژبې سره نورې ژبې نه ملاوېږي. علماء به په دې باندې (کله) هم ماړه نه شي (علماء او مفسرين د دې |
| وَلَا يَخْلَقُ عَلَى كَثْرَةِ الرَّدِّ |
| په ټولو علوموا و معارفو باندې تسلط نه شي کولی) او قرآن مجيد په کثرت تلاوت کولو سره نه زړېږي او |
| وَلَا يَنْقَضِي عَجَائِبُهُ هُوَ الَّذِي لَمْ تَنْتَهِ الْجِنُّ إِذْ سَمِعَتْهُ حَتَّى قَالُوْا |
| نه دې عجائبات ختمېږي قرآن هغه کلام دې چې پېريانو وا ورېد و نو يو ساعت توقف کولو نه بغيرې ووېل |
| ﴿ إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ ﴾ مَنْ |
| چې مونږ قرآن واورېد و چې د هدايت عجيبه لاره ښايي. لهذا مونږ په دې ايمان راوړو (يادوساتئ) کوم |
| قَالَ بِهِ صَدَقَ وَ مَنْ عَمِلَ بِهِ أُجِرَ |
| کس چې د قرآن مطابق وويل هغې رښتيا وويل او چاچې په دې عمل وکړو هغې ته به ثواب ورکول کېږي |
| (يعني همغه اقوال او نظريات صحيح او د قبلولو قابل دې چې بېخي د قرآن مطابق وي. د غه شان د |
| وَ مَنْ |
| هدايت والا هغه کس دی چې قرآن به د هدايت سرچينه وګڼله او عمل يې پرې وکړو) څوک چې (د خلکو |
| حَكَمَ بِهِ عَدَلَ وَ مَنْ دَعَا إِلَيْهِ |
| په مينځ) د قرآن مطابق فيصله او انصاف وکړه چاچې (خلکو ته) دې باندې (دايمان راوړو او د عمل کولو) |
| هُدِيَ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ. [(۱)] |
| طرف ته راوبلل. هغې ته نېغه لار وښودلی شوه (يعني سهغه د هدايت والا دی) |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ مَجْهُولٌ وَفِي الْحَارِثِ مَقَالٌ. |

**توضيح : يخوضون**: يعني تلاوت يې پرېخی دی او نورو خبرو کې اخته دي. (المرقات: ۴/۶۴۸).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۵۸/۵ رقم الحديث ۲۹۰۶

**اوقد فعلوها**: آیا هغوی ریښتیا داسې کړی دي؟(المرقات :۴/٦۴۸).

**الا انها**: د ضمیر قصه ده. **نبأ**: د تیرې شوي زماني متعلق خبرونه مراد دي. وخبر: د راروان وخت لوي لوي واقعات مراد دي. وحکم: د موجوده زماني فیصلې مراد دي. نو قرآن د درې واړو زمانو په حالاتو او مسائلو باندې مشتمل جامع کتاب دی. (المرقات :۴/٦۴۹).

**هو الفصل**: د دې نه د قرآن آیت ﴿إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ﴾ طرف ته اشاره ده (المرقات ۴/٦۴۹)

**من جبار**: انسان لپاره چې کله د جبار استعمالېږي. نو د دینه مذمت مقصود وي. نو د جبار نه دلته هغه متکبر او منکر قرآن مراد چې نه یې په قرآن ایمان راوړو، نه یې ولوستلو او نه یې پرې عمل وکړو. (المرقات :۴/٦۴۹).

**قصمه الله**: قصم د ضرب یضرب نه د ماتولو او ذره ذره کولو په معنی کې دی. یعنې الله به هغه ذره ذره کړي. (المرقات :۴/٦۴۹).

**لاتزیغ به الاهوا**: یعنې کوم کس چې قرآن پسې راوان وي او نیغ پرې روان وي نو هغه به کله هم ګمراه نشي. د مختلفو خیالونو او نظریو خلک که خپل خیالونه او نظرونه او مختلف خواهشات د قرآن تابع کړي نو د ټولو خیالونه به په یو حق باندې راجمعه شي. ځینې علماؤ دا بیان کړی دی چې اهل هواء دا قرآن د نیغې لارې نه او د صداقت او د دیانت نه اخوا دیخوا نه شي بوتللی. دغه شان کونکی په خپله خو کاږه شي خو قرآن کې به هیڅ کمی پیدا نه کړي.

**لاتلتبس به الالسنة**: د دې مطلب دا دی چې قرآن هغه کتاب دی چې د هیڅ ژبې لغت د دې د لغت سره نه شي مشابه کیدلی. بلکې قرآن عظیم فصاحت او بلاغت کې ممتاز دی او د دې اسلوب ښکاره دی چې د التباس ګنجائش په کې نشته دی. یو مطلب دا هم کیدلی شي چې د دنیا ټولې ژبې د قرآن لوستلو وخت کې یو شي عرب او عجم د یوې ژبې نه د عربی په ژبه راغونه شي هیڅ التباس نه شي پاتې کیدی.

**ولا یشبع منه العلماء**: یعنې د دې عالي مضامین او فصیح کلام او عجیب او غریب نکات داسې دي چې د دې سره به علماء ماړه نه شي. بلکې د دې غرائب او عجائب داسې نااشنا جواهرات دي چې د دې په تالاش کې عمرونه خو ختمیدی شي خو دا جواهرات به پاتې وي. (المرقات :۴/٦۵۱).

**ولا یخلق**: باب نصر او د ضرب دواړو نه د زړیدلو په معنی کې دی. یعنې هر کتاب او هر کلام بار بار ویلو او تکرارولو سره بې ذوقه او بې شوقه شي او سړی نه ترینه تنګ شي خو د الله کلام چې څومره ولوستل شي همغه هومره شوق، ذوق، لذت، خوند. جمال او کمال تازه شي. (المرقات :۴/٦۵۱).

لکه ویل شوي دي:

و خير جليس لا يمل حديثه ۞ وترداده تزداد فيه تجملا

دا کلام چې څومره هم خور کړی شي، وا وريدلی شي يا واورولی شي، ولوستلی شي يا بل ته ولوستلی شي نو به تکرار سره يې خوشبو نوره هم ډيره خورېږي. (المرقات : ۴/۶۵۱). چا ويلي دي:

اعد ذكر نعمان لنا ان ذكره. ۞ هو المسك ما كررته يتضوع

**لم تنته الجن:** انتهاء د توقف په معنی کې ده يعنې څنګه چې پيريانو د الله کلام واوريدلو نو هغوی د قسم د توقف نه بغير وويل ﴿انا سمعنا قرانا عجبا﴾.

**قال به:** يعنې چاچې د قرآن په حوالې سره خبره وکړه هغې رېښتيا وويل.

**هدی:** د مجهول صيغه ده يعنې هغې ته د نېغې لارې هدايت وکړی شو. (المرقات : ۴/۶۵۲).

## د قرآن حافظ مور او پلار ته تاج ور په سر کول کېږي

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ مُعَاذِ الْجُهَنِيِّ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ وَعَمِلَ |
| معاذ جهنی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې قرآن ولولي او عمل وکړي |
| بِمَا فِيهِ أُلْبِسَ وَالِدَاهُ تَاجًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ضَوْءُهُ |
| په هغه څه چې په دې کې ذکر دي نو د قيامت په ورځ به دده مور او پلار ته تاج ور اچول کېږي چې د هغې رڼا |
| أَحْسَنُ مِنْ ضَوْءِ الشَّمْسِ فِي بُيُوتِ الدُّنْيَا لَوْ كَانَتْ فِيكُمْ |
| به د دنيا په کورونو کې د پړقيدونکي لمر نه اعلی وي که (بالفرض) ستاسو کورونو کې لمر وي، او س |
| فَمَا ظَنُّكُمْ بِالَّذِي عَمِلَ بِهٰذَا ؟ .[1] |
| تاسو خپله د هغه سړي مرتبه باندې پوهېدلی شئ چا چې قرآن باندې عمل وکړو. |

**توضيح : من قرأ:** حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د دې قاري صاحب نه مراد حافظ قرآن دی. خو په دې شرط چې هغه پرې عمل وکړي او د دې حق ادا کړي. (المرقات : ۴/۶۵۲).

**لوكانت فيكم:** يعنې که هغه لمر ستاسو کورونو ته راشي او د هغې خوروالی او رڼا يو ځای کې راغونډه شي او هغه وخت د هغې رڼا تيزه شي. نو د هغې به هم د قرآن رڼا تيزه وي. بيا به خپله د قرآن او عامل قرآن څه مقام وي؟. (المرقات : ۴/۶۵۳).

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱۴۸/۲، رقم الحديث : ۱۴۵۳ ، وأحمد في المسند ۴۴۰/۳.

## په کوم څرمن کې چې قرآن وي هغه په اور نه سوځي

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لَوْ جُعِلَ |
| عقبه ابن عامر رضي الله عنه وايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې که چيرته کيخودلې شي |
| الْقُرْآنُ فِي إِهَابٍ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ مَا احْتَرَقَ.(۱) |
| قرآن په يو څرمنه کې او هغې ته (بالفرض) اور واچولی شي نو هغې باندې به د اور اثر نه کيږي. |

**توضيح: في اهاب:** د دې جملې متعلق علامه طيبي رحمه الله او ملا علی قاري رحمه الله وايي چې دا احتمال هم شته چې د څرمنې نه مراد غير مدبوغ (چې نه وي رنګ شوي) څرمنه وي او هغې کې قرآن عظيم راتاؤ کړی شي او هغه په اور کې ګوزار کړې شي نو هغه څرمن باندې څکه اثر نه کيږي چې هغې کې **قرآن** رانغښتلی شوی دی. دا حضرات وايي چې دا د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې معجزه وه. او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د معجزې سره خاص ده چې داسې به کيدل. (الکاشف: ۴/۳۰۲).

دويم مطلب دا چې دلته د څرمن نه مراد د مسلمان قاري او حافظ زړه دی چې د قيامت په ورځ به د هغه بدن باندې د دوزخ اور اثر نه کوي بلکې د قرآن عظيم په رحمت او برکت سره به دا اور نه لري منډې وهي لکه څنګه چې دې حديث کې ذکر دې چې دوزخ به وايي جزيا مؤمن فان نورك اطفألهبي دا مطلب ډير واضحه دی.

## د قرآن حافظ به د لسو خپلوانو شفاعت کوي

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ |
| حضرت علي رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چا چې قرآن کريم ولوستو او بيا يې ياد |
| فَاسْتَظْهَرَهُ فَأَحَلَّ حَلَالَهُ وَحَرَّمَ حَرَامَهُ أَدْخَلَهُ اللهُ بِهِ الْجَنَّةَ |
| کړو او د دې حلالو ته يې حلال او حراموته يې حرام وويل نو الله به دا جنت ته داخل کړي او دده د خپلوانو |
| وَشَفَّعَهُ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِهِ كُلُّهُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ.(۲) |
| په حق کې به د هغې شفاعت قبول کړي. چې مستوجب د دوزخ (يعني فاسق او مستحق د عذاب) به وي. |

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۵۲۲/۲ رقم الحديث: ۳۳۱۰، وأحمد في المسند ۱۵۵/۴.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۵۸/۵ رقم الحديث: ۲۹۰۵، وأحمد في المسند ۱۴۸/۱.

وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَ حَفْصُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّاوِي لَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ

امام ترمذي رحمه الله وايي چې دا حديث غريب دی. د دې يو راوي قوی نه دی بلکې (روايت حديث کې)

يَضْعُفُ فِي الْحَدِيثِ.

ضعيف شمارل کېږي.

﴿۳۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ:

ابو هريره رضي الله عنه راوي دي وايي چې (يو ورځ) نبي کريم صلی الله علیه وسلم ابي ابن کعب رضي الله عنه ته وفرمايل چې

كَيْفَ تَقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ ؟ فَقَرَأَ أُمَّ الْقُرْآنِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

(مونځ کې) ته څنګه (يعني څه وايي)؟ هغه سورت فاتحه وويله. نبي کريم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل

وَ الَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا أُنْزِلَتْ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الْإِنْجِيلِ

قسم دی په هغه ذات د چا په قبضه کې چې زما ژوند دی! دغه شان سورت نه دي نازل شوي په تورات،

وَلَا فِي الزَّبُورِ وَلَا فِي الْقُرْآنِ مِثْلُهَا وَ إِنَّهَا سَبْعٌ مِنَ الْمَثَانِي

انجيل او زبور کې او نه په قرآن کې رانازل شوی دی. سورت فاتحه سبع مثاني ده. (يعني اووه آيتونه

وَ الْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُعْطِيتُهُ . وَ رَوَى الدَّارِمِيُّ مِنْ قَوْلِهِ : مَا أُنْزِلَتْ

دي چې بار بار ويلی کېږي) او دا قرآن عظيم دی چې ماته ياد کړی شوی دی. دارمي دا روايت د ما انزلت نه

وَ لَمْ يَذْكُرْ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ . وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

نقل کړی او دې روايت کې د ابي بن کعب رضي الله عنه ذکر نشته امام ترمذي وايي چې دا حديث صحيح دی.

## حافظ د مشک او عنبرو بوجۍ ده

﴿۳٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ فَاقْرَءُوهُ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل قرآن زده کړی بيا دا ولولی او (دا خبره ياد ساتی.

فَإِنَّ مَثَلَ الْقُرْآنِ لِمَنْ تَعَلَّمَ

چې) د هغه کس مثال چې قرآن زده کوي بيا دا (هميشه) لولي (يا پري عمل کوی) او ودې په مشغوليت کې

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱٤۳/٥ رقم الحديث : ۲۸۷٥ ، والنسائي ۱۳۹/۲ رقم الحديث : ۹۱٤، وأحمد في المسند ۳٥۷/۲.

وَ قَامَ بِهٖ كَمَثَلِ جِرَابٍ مَحْشُوٍّ مِسْكًا تَفُوْحُ رِيْحُهٗ كُلَّ مَكَانٍ

شوګیري کوي د هغه بوجۍ په شان دی چې د مشکو نه ډکه وي چې خوشبوي ټول کور کې خوريږي او د هغه

وَ مَثَلُ مَنْ تَعَلَّمَهٗ فَرَقَدَ وَ هُوَ فِيْ جَوْفِهٖ

کس مثال چې قرآن زده کړي او اوده وي (يعني د قرآن په تلاوت کې شوګیري او بیداري نه غافل ؤ يا يې

كَمَثَلِ جِرَابٍ أُوْكِئَ عَلٰى مِسْكٍ. (۱)

پرې عمل و نه کړو) د هغه بوجۍ په شان دی چې په مشک باندې تړلی شوي وي.

**توضیح: تعلموا القرآن:** يعني د دې الفاظ او معاني زده کړي.

**فاقرؤه:** يعني د زده کولو نه وروسته يې نورو ته ورزده کوي. (المرقات: ۴/۶۵۴).

**وقام به:** يعني د قرآن د تلاوت لپاره شوګیري کوي. (المرقات: ۴/۶۵۷)

**جراب:** بوجۍ ته وايي "**محشو مسکا**: يعني داسي بوجۍ چې د دننه نه د مشکو او عنبرو نه ډکه وي او د هغې خله پرنستلې شوي وي چې خوشبوې هر طرف ته خوريږي. (المرقات: ۴/۶۵۷)

**اوکی:** د ايکاء نه دی. بوجۍ په مزي باندې تړلو ته وايي. (المرقات: ۴/۶۵۷)
مطلب دا دی چې د حافظ سينه د کومو مشک او عنبرو نه ډکه ده. چې قرآن دی کچرې هغه دا لوي نو د دننه خوشبوې باهر هر طرف ته خوريږي. خپله هم هغې ته فايده کيږي او خلکو ته ترې نه هم فايده کيږي خو که حافظ قرآن غافل پروت وي نو د دننه خوشبوې بنده پاتې شي نه به ورته خپله فايده وي او نه به ترې نه بل ته فايده وي. (المرقات: ۴/۶۵۷)

﴿۳۵﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ قَرَأَ ﴿حٰمٓ﴾ الْمُؤْمِنَ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل کوم کس چې ولولي حم (د سورة مؤمن) نه

إِلٰى ﴿إِلَيْهِ الْمَصِيْرُ﴾ وَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ حِيْنَ يُصْبِحُ حُفِظَ بِهِمَا حَتّٰى يُمْسِيَ.

تر اليه المصير پورې او آيت الکرسي د سحر په وخت کې نو د دې په برکت سره به دا محفوظ وي تر ماښامه

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۴، ۱ رقم الحديث: ۲۸۷۶.

وَ مَنْ قَرَأَ بِهِمَا حِيْنَ يُمْسِيْ

پورې (د ظاهري او باطني مصيبتونو او بلا ګانو نه) او کوم کس چې د ماښام وخت کې دا وايي نو د دې

حُفِظَ بِهِمَا حَتّٰى يُصْبِحَ". وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ (۱)

په برکت سره به تر سحر پورې محفوظ وي.

## په لوح محفوظ کې قرآن کله وليکل شو؟

﴿۳۶﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ كَتَبَ كِتَابًا

نعمان ابن بشير رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "الله تعالى ليکلي دي يو کتاب د

قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمٰوَاتِ وَ الْأَرْضَ بِأَلْفَيْ عَامٍ

زمکې او د اسمان د پيدائش نه دوه زره (۲۰۰۰) کاله مخکې (يعني لوح محفوظ کې يې فرښتو ته د

أَنْزَلَ مِنْهُ آيَتَيْنِ خَتَمَ بِهِمَا سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ

ليکلو حکم ورکړو) دې کتاب کې يې هغه دواړه آيتونه نازل کړي چې هغې باندې سورة بقره ختميږي

وَلَا تُقْرَآنِ فِيْ دَارٍ ثَلَاثَ لَيَالٍ فَيَقْرَبُهَا الشَّيْطَانُ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. (۲)

(آمن الرسول نه د سورت اخر پورې) دا آيتونه چې په کوم کور کې ويل کېږي شيطان هغه کور ته نه ځي

﴿۳۷﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ قَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ

ابو درداء رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "کوم کس چې وايي درې اولنۍ آيتونه د

الْكَهْفِ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ (۳)

سورت کهف هغه به د دجال د فتنې نه محفوظ وي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۴۵/۵ رقم الحديث :۸۷۹ .

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۴۷/۵ رقم الحديث :۲۸۸۲ ،وأحمد في المسند ۲۷۴/۴.

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ۱۴۹/۵ رقم الحديث :۲۸۸۶.

## سورت یاسین د قرآن زړه دی

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ قَلْبًا وَقَلْبُ الْقُرْآنِ يٰسٓ |
| انس رضی الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل دهری شي زړه وي او د قرآن زړه سورت یاسین |
| وَ مَنْ قَرَأَ (يٰسٓ) كَتَبَ اللهُ لَهُ بِقِرَاءَتِهَا قِرَاءَةَ الْقُرْآنِ |
| دی څوک چې سورة یاسین وایي. الله د سورة یاسین ویلو په وجه (دهغه په اعمال نامه کې) ثواب لیکي |
| عَشْرَ مَرَّاتٍ . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (۱) |
| د لس ځلي قرآن ویلو. امام ترمذي وایي دا حدیث غریب دی. |

**توضیح**: وقلب القرآن: ای لبه وخالصه. (المرقات: ۴/۶۵۹)

**سوال**: دې سورت ته د قرآن زړه په څه وجه ویل شوی دی؟ **جواب**: د دې سوال اول جواب دا دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم همدغه خبره وکړه او بس خبره ختمه. علامه طیبی رحمه الله وایي چې دا چې سورت یاسین کې د حشر او نشر قاطع دلائلو سره اثبات شوی دی او دې کې د انسان لپاره بالغ زواجر اعلی وعدي موجود دې او علوم مکنونه (پټ علمونه) نه دا سورت ډک شوی دی او دقیق معاني باندې مشتمل دی نو ځکه دې ته قلب القرآن ویل شوی دی. (المرقات ۴/۶۵۹، الکاشف: ۴/۳۰۸).

امام غزالي رحمه الله وایي چې حشر او نشر باندې ایمان راوړل د ایمان د صحت لپاره ضروري دی او دا موضوع په سورت یاسین کې په ابلغ طریقي سره ذکر ده ځکه دا قلب قرآن دی. (المرقات: ۴/۶۶۰)

علامه نسفي رحمه الله وایي چې دې سورت کې درې بنیادي عقائد ذکر دي. چې توحید، رسالت او حشر او نشر دی. او د دې درې واړو تعلق د قلب سره دی. لهذا دا سورت قلب قرآن دی. (المرقات: ۴/۶۶۰)

**عشر مرات**: یعني یو ځل سورت یاسین س لوستلو باندې د لس ځله قرآن لوستلو ثواب ملاویږي. په دې شرط چې هغه د لس سورت یاسین نه بغیر فرض کړی شي. (المرقات: ۴/۶۶۰)

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى قَرَأَ (طه) و (یس) |
| ابو هریره رضی الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل الله تعالی ولوستو سورة طه او سورة یاسین |
| قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمٰوَاتِ وَ الْأَرْضَ بِأَلْفِ عَامٍ فَلَمَّا سَمِعَتِ الْمَلَائِكَةُ الْقُرْآنَ |
| مخکې د اسمان او زمکي د پیدائش نه زر (۱۰۰۰) کاله کله چې فرښتو واوریدل قرآن (یعني دا دواړه |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۴۹ رقم الحدیث: ۲۸۸۷.

| قَالَتْ طُوبٰى لِأُمَّةٍ يَنْزِلُ هٰذَا عَلَيْهَا |
|---|
| سورتونه) نو وي ويل چې خوش بختي دې وي هغه امت لره چې چا باندې به دا قرآن نازليږي (يعنې دا |
| وَ طُوْبٰى لِأَجْوَافٍ تَحْمِلُ هٰذَا |
| دواړه سورتونه) او خوش بختي دې وي هغه زړونو ته چې دا به قبلوي (يعنې دا به يادوي او ددې محافظت |
| وَ طُوبٰى لِأَلْسِنَةٍ تَتَكَلَّمُ بِهٰذَا. (١) |
| به کوي) او خوش بختي دې وي هغه ژبو ته چې دا به وايي. |

**توضيح: بالف عام:** يعنې الله سورت طه او سورت ياسين د فرښتو مخې ته د زمکي او اسمان د تخليق نه زر (۱۰۰۰) کاله مخکې ظاهر کړو. (المرقات: ۴/۶۶۱)

**سوال:** دلته دا سوال پيدا کيږي چې دې حديث کې زرو (۱۰۰۰) کالو ذکر دی خو ددې نه مخکې د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه په روايت کې نمبر ۳۶ کې د دوه زره (۲۰۰۰) کالو ذکر دی او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حديث په مقادير لکهت باره کې پنځوس زره (۵۰۰۰۰) کاله ذکر دی. دا په ظاهره تضاد او تعارض دی. **جواب:** جواب دا چې دا تعارض نه دی بلکې د مختلفو شيانو په مينځ کې ميعاد زماني ده. د ځينو زمانه پنځوس زره کاله ده د ځينو څلويښت زره کاله او د ځينو دوه زره کاله ده او د ځينو زر کاله زمانه ده. علامه طيبي رحمه الله وايي چې د ټولو شيانو د زمکي او د اسمان د تخليق نه مخکې پنځوس زره کاله مسافت کې په لوح محفوظ کې ليکلي شوي ؤو. فرښتو باندې په مختلفو زمانو کې دا شيان الله ظاهر کړي ؤو. په دې وجه تفاوت راغلو. په توضيحات ج۱ ص ۲۸۵ باندې د دې تفصيل شته دی.

## د حم دخان فضيلت

| ﴿٤٠﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ قَرَأَ (حم) الدُّخَانِ |
|---|
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل کوم کس چې ووايي حم الدخان (سورة |
| فِي لَيْلَةٍ أَصْبَحَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ. |
| دخان) نو هغه په داسي حال کې سحر کړي چې اويا زره (۷۰۰۰۰) فرښتي دده لپاره بخشش غواړي. |
| وَ قَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَعمر بن أَبِي خَثْعَمٍ الرَّاوِي |
| امام ترمذي رحمه الله وايي چې دا حديث غريب دی او ددې حديث راوي عمر ابن ابي خشعم (روايت حديث |

(١) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۵۴۷ رقم الحديث: ۳۴۱۴.

| يُضَعَّفُ وَ قَالَ مُحَمَّدٌ يَعْنِي الْبُخَارِيَّ هُوَ مُنْكَرُ الحَدِيث .[۱] |
|---|
| کې) ضعیف شمارل کېږي. او امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې دا (عمربن خشعم) منكر الحديث دی. |
| ﴿۴۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ قَرَأَ (حم) الدُّخَانِ فِي لَيْلَةِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې ووايي حم الدخان په شپه د |
| الْجُمُعَةِ غُفِرَ لَهُ. وَ قَالَ : هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَ هِشَام أَبُو الْمِقْدَام |
| جمعې دده بخشش کېږي. امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ ويلي دي چې دا حدیث غریب دی ابو هشام ابو المقدام |
| الرَّاوِي يضعف .[۲] |
| په روایت د حديثو کې ضعیف ګڼلی شوی دی. |

## د مسبحات فضیلت

| ﴿۴۲﴾ وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ الْمُسَبِّحَاتِ قَبْلَ أَنْ يَرْقُدَ |
|---|
| عرباض ابن ساريه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د اوده کيدلو نه مخکې مسبحات لوستلو. |
| يَقُولُ : إِنَّ فِيهِنَّ آيَةً خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ آيَةٍ . وَ رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ |
| او فرمایل به یې چې دې کې یو آیت دی چې د زرو آیتونو نه بهتر دی. او دارمی دا روایت نقل کړي دي د |
| عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ مُرْسَلًا وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[۳] |
| خالد بن معدان نه د ارسال په طريقې سره او امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې دا حديث حسن غريب دی. |

**توضيح**: **المسبحات**: د کومو سورتونو ابتداء کې چې د **سَبَّحَ يا يُسَبِّحُ يا سَبِّحْ** الفاظ راغلي دې هغې ته مسبحات وايي. قرآن کې دا قسمه سورتونه ټول اوه دي: ۱: سورة بني اسرائيل ۲: سورة حديد ۳: سورة حشر ۴: سورة صف ۵: سورة جمعه ۶: سورة تغابن ۷: سورة اعلى. (المرقات: ۴/۶۶۲)

دې سورتونو کې یو آیت دی چې د زرو آیتونو نه بهتر دی. اوس هغه آیت کوم یو دی؟ نو ځینې علماء وايي چې ﴿لَوْ أَنْزَلْنَا هَذَا الْقُرْآنَ عَلَى جَبَلٍ الخ﴾ (حشر: ۲۱) آیت دی. ځینې وايي چې ﴿هُوَ الْأَوَّلُ

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۵۰ رقم الحديث: ۲۸۸۸.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۵۱ رقم الحديث: ۲۸۸۹.

(۳) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۰۴، والترمذي في السنن ۵/۱۶۶ رقم الحديث: ۲۹۲۱، وأحمد في المسند ۴/۱۲۸.

وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ الخ﴾ (حدید: ۳) آیت دی. بهر حال علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې الله دا په ليلة القدر کې پټ ساتلی دی ځکه يې تعين ګران دی (الکاشف ۴/۳۰).

## د سورة ملک فضیلت

| |
|---|
| ﴿٤٣﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: إِنَّ سُورَةً فِي الْقُرْآنِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "په قرآن کريم کې يو سورت دی چې هغې |
| ثَلَاثُونَ آيَةً شَفَعَتْ لِرَجُلٍ حَتَّى غُفِرَ لَهُ وَهِيَ: |
| کې ديرش آيتونه دي دغه سورت د يو کس شفاعت وکړو تردې چې د هغه بخشش وشو او هغه سورت |
| ﴿تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ﴾ (۱) |
| تبارك الذي بيده الملك دی. |

**توضیح: شفعت لرجل:** دا مطلب هم کیدی شي چې تیره شوي زمانه کې دې سورت د يو کس شفاعت کړی ؤ او نو الله وبخښلو. دويم احتمال دا چې د **شفعت** ماضي صيغه د مستقبل په معنی کې استعمال شوي ده يعنې "**تشفع**" قيامت کې به ددې کس شفاعت کوي. (المرقات: ۴/۶۶۳)

| |
|---|
| ﴿٤٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ضَرَبَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِبَاءَهُ عَلَى قَبْرٍ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابوٴ کې يو کس خپله خيمه په يو قبر باندې ودروله |
| وَ هُوَ لَا يَحْسَبُ أَنَّهُ قَبْرٌ فَإِذَا فِيهِ إِنْسَان |
| خو هغه ته ددې خبري علم نه ؤ چې دلته قبر دی نو ده د خلکو نه واوريدل چې دې (قبر) کې يو کس دی چې |
| يَقْرَأُ سُورَةَ ﴿ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ ﴾ حَتَّى خَتَمَهَا فَأَتَى |
| ويله يې تبارک الذي بيده الملک تردې چې ده دا سورت ختم کړو ددې نه وروسته خيمه ودرونکي راغلو |
| النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: هِيَ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته يې دا واقعه وويله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې سورة ملک |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱۱۹/۲، رقم الحديث: ۱۴۰۰، والترمذي في السنن ۱۵۱/۵ رقم الحديث ۲۸۹۱.

| الْمَانِعَةُ هِيَ الْمُنْجِيَةُ تُنْجِيهِ مِنْ عَذَابِ اللهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| ملک منع کونکی او نجات ورکونکی دی. دا سورت خپل لوستونکی د الله د عذاب نه خلاصوي. |

## د اوده کيدو نه مخکې سورت ملک وايي

| ﴿٤٥﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَنَامُ حَتَّى يَقْرَأَ: (آلم تَنْزِيل) |
|---|
| جابر رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به نه اوده كيدو ترڅو چې به يې نه وو ويلي الم تنزيل السجده |
| وَ ﴿تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ﴾ (٢) |
| او تبارک الذي بيده الملک. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. وَكَذَا فِي شرح السّنة. وَ فِي الْمَصَابِيح غَرِيبٌ. |

## د سورت زلزال، اخلاص او د الكافرون فضيلت

| ﴿٤٦﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
|---|
| ابن عباس رضي الله عنه او انس بن مالک رضي الله عنه دواړه روايان دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل سورة |
| ﴿إِذَا زُلْزِلَتْ﴾ تَعْدِلُ نِصْفَ الْقُرْآنِ ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ وَ ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا |
| اذا زلزلت د نيم قرآن برابر دی، سورة قل هو الله د دريمې برخې د قرآن برابر دی او سورت قل يا ايها |
| الْكَافِرُونَ﴾ تَعْدِلُ رُبُعَ الْقُرْآنِ. (٣) |
| الكافرون قرآن د څلورمې برخې برابر دی. |

**توضيح: تعدل نصف القرآن:** قرآن كريم صلى الله عليه وسلم الله مبدأ او معاد بيان كړی دی. سورت زلزال په پوره توګه د معاد متعلق دی. لهذا نيم قرآن دی. قرآن كريم كه په دې نظر سره وکتلی شي چې دې کې درې لوي مضامين. كر دي يعني قصص، احكام، او توحيد، سورت اخلاص دريمه يعنې د توحيد متعلق دی. لهذا دا د ثلث قرآن برابر شو. كه قرآن ته په دې نظر سره وكتلی شي چې دې كې لوي لوي څلور مضامين ذكر دي. مثلاً توحيد، رسالت، احكام او قصص او سورت الكافرون كې توحيد په لويه

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ١٥١/٥ رقم الحديث: ٢٨٩٠.

(٢) أخرجه الترمذي في السنن ١٥٢/٥ رقم الحديث: ٢٨٩٢.

(٣) أخرجه الترمذي في السنن ١٥٣/٥ رقم الحديث: ٢٨٩٤.

پيمانه باندې بيان شوى دى ځكه دا ربع القرآن دى. (المرقات: ٤/٦٦٦)
ياكه د ټولو متعلق وويل شي چې نبي كريم ﷺ دا سي فرمايلي دي نو د نبي كريم ﷺ فرمان د ټولو نه لويه درجه ده. نبي كريم ﷺ مونږ ته ترغيب راكړى. دې ترغيب ته په كتلو سره به دې باندې عمل كول په كار دى. نه دا چې علتونه او حكمتونه راوباسو او د حقيقت نه محرومه شو.

## د سورة حشر په درې آيتونو باندې اويا (٧٠) زره فرښتې دعاء كوي

| |
|---|
| ﴿٤٧﴾ وَ عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ |
| معقل ابن يسار رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل كوم كس |
| قَالَ حِينَ يُصْبِحُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ : أَعُوذُ بِاللهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ |
| چې د سحر وخت كې درې ځل دا ووايي (زه پناه غواړم په الله تعالى سره چې اوريدونكې او پوهه دى د |
| الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ فَقَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ آخِرِ سُورَةِ ( الْحَشْرِ ) |
| شيطان مردود نه) او بيا ووايي د سورة حشر آخري درې آيتونه (هو الله الذي لااله الاهو نه تر آخر د سورة |
| وَكَّلَ اللهُ بِهِ سَبْعِينَ أَلْفَ مَلَكٍ يُصَلُّونَ عَلَيْهِ حَتَّى يُمْسِيَ |
| پورې) نو الله اويا زره (٧٠٠٠٠) فرښتې مقررې كړي. چې دده لپاره دعاء وغواړي تر ماښام پورې (د |
| وَ إِنْ مَاتَ فِي ذٰلِكَ الْيَوْمِ مَاتَ شَهِيدًا. |
| خير او دنيكۍ د توفيق) او دده د ګناهونو بخښنه غواړي او كه هغه كس په دې ورځ مړشي نو مړبه شي د |
| وَ مَنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي |
| شهادت په مرګ باندې او كوم كس چې دا (يعنې اعوذ بالله الخ او دغه آيتونه د) ماښام وخت كې ولولي |
| كَانَ بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ . وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| نو د سحر پورې دا (پاس ذكر شوى) سعادت ورته حاصل وي. امام ترمذي وايي چې دا حديث غريب دى |

## هره ورځ دوه سوه ځل د قل هو الله احد لوستلو تأثير

| |
|---|
| ﴿٤٨﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ قَرَأَ كُلَّ يَوْمٍ |
| انس رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبي عليه السلام وفرمايل كوم كس چې ووايي هره ورځ |

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٥/١٦٧ رقم الحديث: ٢٩٢٢.

مِائَتَيْ مَرَّةٍ ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ مُحِيَ عَنْهُ ذُنُوبُ خَمْسِينَ سَنَةً

دوه سوه ځله قل هو الله احد نو دهغې (اعمال نامه نه) د پنځوسو کالو ګناهونه وران کړی شي. مګر دا چې

إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ دَيْنٌ . رَوَاهُ وَالدَّارِمِيُّ وَفِي رِوَايَتِهِ خَمْسِينَ مَرَّةٍ وَلَمْ يَذْكُرْ

قرض وربانديې وي. یوبل روایت کې (دوه سوه په ځای) پنځوس ځله ذکر دی. خو دې روایت کې نه دي

إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ دَيْن .[1]

ذکر دا الفاظ چې إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ دين.

﴿٤٩﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " مَنْ أَرَادَ أَنْ يَنَامَ عَلَى فِرَاشِهِ

انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي کوم کس چې بستره باندې داوده کیدو اراده وکړي او

فَنَامَ عَلَى يَمِينِهِ ثُمَّ قَرَأَ مِائَةَ مَرَّةٍ ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ يَقُولُ لَهُ الرَّبُّ:

بیا ښي طرف باندې پریوځي او سل ځله قل هو الله احد ووايي نو قیامت په ورځ به ده ته پروردګار وايي

يَا عَبْدِي ادْخُلْ عَلَى يَمِينِكَ الْجَنَّةَ " . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ .[2]

چې ای زما بنده جنت ته په خپل ښي طرف داخل شه. امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا حديث غريب دی.

**توضيح : على يمينك الجنة:** دا چې د پريوتلو وخت کې سړي په ښي طرف باندې اوده کیږي او ظاهره ده چې د دې سړي په ښي طرف باندې پریوتلو نه وروسته سل ځله **قل هو الله احد** ولوستلو نو ځکه به ورته قیامت کې وویل شي چې جنت په ښي طرف داخل شه.

﴿٥٠﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ فَقَالَ:

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې: يو ځل نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو سړي نه **قل هو الله احد** واوريدو نو ويې فرمايل

وَجَبَتْ قُلْتُ : وَمَا وَجَبَتْ ؟ قَالَ : الْجَنَّةُ .[3]

چې د دې لپاره واجب شو ما عرض وکړو چې څه شی ورته واجب شو؟ وی فرمایل جنت.

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ١٥٤/٥ رقم الحديث :٢٨٩٨.

(٢) أخرجه الترمذي في السنن ١٥٤/٥ رقم الحديث :٢٨٩٧.

(٣) أخرجه الترمذي في السنن ١٥٤/٥ رقم الحديث : ٢٨٩٧.

﴿۵۱﴾ وَ عَنْ فَرْوَةَ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ أَبِيهِ : أَنَّهُ قَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ

فروه ابن نوفل د خپل پلار نه نقل کوي چې ده (نبي کريم ﷺ ته) وويل چې يا رسول الله! ماته

عَلِّمْنِي شَيْئًا أَقُولُهُ إِذَا أَوَيْتُ إِلَى فِرَاشِي .

څه داسي شی (يعنې آيت يا سورة) زده کړه چې خپلي بستره باندې يې (يعنې داوده کيدو نه مخکې) وايم

فَقَالَ : اقْرَأْ ﴿ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ ﴾ فَإِنَّهَا بَرَاءَةٌ مِنَ الشِّرْكِ.(۱)

نبي کريم ﷺ وفرمايل **قل يا ايها الكافرون** لوله. ځکه دا د شرک نه بيزاري ده (لهذا که دا لولي

او اوده کيږي نو ګويا کې د شرک نه پاک اوده شوي او که مړ کيږي نو په توحيد باندې به مړ کيږي).

## د معوذتينو فضيلت

﴿۵۲﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: بَيْنَا أَنَا أَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْجُحْفَةِ

عقبه بن عامر رضي الله عنه وايي چې (يو ځل) کله چې مونږ د نبي کريم ﷺ سره روان وو په مينځ د جحفه

وَ الْأَبْوَاءِ إِذْ غَشِيَتْنَا رِيحٌ وَ ظُلْمَةٌ شَدِيدَةٌ

او ابواء (چې د مکي او مديني دلارې په مينځ دوه ځايونه دي) چې ناڅاپه تيزباد او سخت تور تم مونږ راګير

فَجَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ بِأَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ

کړو نو نبي عليه السلام د اعوذ برب الفلق او د اعوذ برب الناس په ذريعې سره پناه غوښتل شروع کړه (يعنې دا

وَ يَقُولُ : يَا عُقْبَةُ تَعَوَّذْ بِهِمَا

سورتونه يې ويل شروع کړل) او ماته يې هم وفرمايل چې عقبه د دې دوه سورتونو په ذريعې سره پناه غواړه

فَمَا تَعَوَّذَ مُتَعَوِّذٌ بِمِثْلِهِمَا .(۲)

پوهه شه چې هيڅ يو پناه غوښتونکي د دې دواړو سورتونو په شان د بل هيڅ شي په ذريعه پناه نه ده غوښتې

(ځکه د آفتونو او د مصيبتونو په وخت کې الله نه د پناه د طلب په سلسله کې دا دواړه سورتونه د ټولو نه افضل دي)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳۰۳/۵، رقم الحديث : ۵۰۵۵ ، والترمذي في السنن ۴۴۲/۵ رقم الحديث :۳۴۰۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱۵۳/۲، رقم الحديث : ۱۴۶۳.

﴿۵۳﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ خَبِيبٍ قَالَ: خَرَجْنَا فِيْ لَيْلَةِ مَطَرٍ وَ ظُلْمَةٍ شَدِيدَةٍ نَطْلُبُ

عبد الله ابن خبيب رضي الله عنه وايي چې مونږ ووتلو په يو سخت تورتم او باراني شپه کې چې تالاش کولو مو

رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

نبي کريم صلى الله عليه وسلم (يعني نبي عليه السلام چرته تللو، مونږ هم د هغې کتلو پسي ووتلو چې د نبي عليه السلام

فَأَدْرَكْنَاهُ فَقَالَ: قُلْ. قُلْتُ مَا أَقُولُ؟

سره لاړ شو) نو مونږ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وموندلو نبي عليه السلام (هغه وخت) وفرمايل چې ولوله ما وويل

قَالَ: ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ وَ الْمُعَوِّذَتَيْنِ

چې څه ولولم؟ نبي عليه السلام وفرمايل وايه **قل هو الله احد، قل اعوذ برب الفلق** او **قل اعوذ برب الناس**

حِينَ تُصْبِحُ وَ حِينَ تُمْسِي ثَلَاثَ مَرَّاتٍ تَكْفِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ.[1]

سحر او ماښام وخت درې ځله. دا به شي تا لره کفايت کوي (يعني هر مصيبت او بلا به درنه لرې کوي).

﴿۵۴﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَقْرَأُ

عقبه بن عامر رضي الله عنه وايي: چې ما وويل يا رسول الله! آيا زه (پناه غوختلو لپاره او د شرا و بدی د دفع کولو

سُورَةَ ﴿هُودٍ﴾ أَوْ سُورَةَ ﴿يُوسُفَ﴾؟ قَالَ: لَنْ تَقْرَأَ شَيْئًا أَبْلَغَ

لپاره) سورة هود او که سورة يوسف ووايم نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ته نه شي ويلې بل سورة غوره

عِنْدَ اللهِ مِنْ ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ (۲)

سورة د الله په نزد د قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ نه.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

﴿۵۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعْرِبُوا الْقُرْآنَ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قرآن معاني بيانوئ او د دې

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳۲۰/۵، رقم الحديث: ۸۲ . . ، والترمذي في السنن ۵۳۰/۵ رقم الحديث: ۳۵۷۵.

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۱۵۸/۲ ر. ق. الحديث: ۹۵۳.

| وَاتَّبِعُوا غَرَائِبَهُ وَ غَرَائِبُهُ فَرَائِضُهُ وَ حُدُودُهُ .(۱) |
|---|
| غرائبو تابعداري كوئ، د دې غرائب د دې فرائض او د دې حدود دي. |

## د قرآن كريم د تلاوت ترتيب او فضيلت

| ﴿۵۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنْ |
|---|
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قرآن كريم قرائت په مونځ كې دا بهتر دی د |
| قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنَ التَّسْبِيحِ وَالتَّكْبِيرِ وَ |
| قرائت د قرآن نه په غير د مونځ نه او قرائت د قرآن په غير د مونځ نه دا بهتر دی د تسبيح ،تكبير ويلو نه او |
| التَّسْبِيحُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّدَقَةِ وَ الصَّدَقَةُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّوْمِ |
| تسبيح ډير ثواب لري د (الله په لاره كې د خرچ كولو) نه او صدقه كول دا ډير ثواب لري د روژې نيولو نه |
| وَ الصَّوْمُ جُنَّةٌ مِنَ النَّارِ .(۲) |
| او روژه د دوزخ د اور نه ډهال دی. |

## په كتلو سره تلاوت د زباني تلاوت نه افضل دی

| ﴿۵۷﴾ وَ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَوْسٍ الثَّقَفِيِّ عَنْ جَدِّهِ قَالَ : |
|---|
| عثمان ابن عبد الله بن اوس ثقفي د خپل نيكه (اوس رضي الله عنه) نه نقل كوي چې هغه ووېل چې: وفرمايل |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : قِرَاءَةُ الرَّجُلِ الْقُرْآنَ فِي غَيْرِ الْمُصْحَفِ أَلْفُ دَرَجَةٍ |
| رسول الله صلى الله عليه وسلم : سړی په غير د مصحف (يعنې په يادو) قرآن لوستل د زرو درجو ثواب لري او |
| وَ قِرَاءَتُهُ فِي الْمُصْحَفِ تُضَعَّفُ عَلَى ذٰلِكَ |
| لوستل په مصحف كې (په كتلو سره) دا دوچند دی په غير د مصحف نه (يعنې په ياو باندې) د لوستلو |
| إِلَى أَلْفَيْ دَرَجَةٍ .(۳) |
| د ثواب نه دوه زره (۲۰۰۰) پورې ډيرېږي. |

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/ ۴۲۷ رقم الحديث :۲۲۹۳.

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/ ۴۱۳ رقم الحديث :۲۲۴۳.

(۳) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/ ۴۰۷ رقم الحديث :۲۲۱۸.

**توضیح**: په کتلو سره تلاوت په یادو تلاوت نه ځکه افضل دی چې په کتلو سره لوستلو کې مشقت ډیر وي. د دې وجه دا ده چې په کتلو سره لوستلو کې سوچ او فکر او خشوع او خضوع ډیره حاصلېږي. او د مصحف زیارت هم نصیب کېږي. د دې د او چتولو او لاس لګولو جدا جدا ثواب دی. دا شیان په یادو لوستلو سره نه حاصلېږي. دې کې مشقت ډیر دی. لهٰذ ثواب یې ډیر دی.

## تلاوت قرآن د زنګ شوي زړونو ریګمال دی

| |
|---|
| ﴿۵۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ هٰذِهِ الْقُلُوبَ تَصْدَأُ كَمَا |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل یاد و ساتئ. دا زړونه زنګ نیسي لکه څنګه |
| يَصْدَأُ الْحَدِيدُ إِذَا أَصَابَهُ الْمَاءُ. قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا جِلَاؤُهَا؟ |
| چې او به رسید و سره و سپنه زنګ نیسي عرض وکړی شو چې یا رسول الله! د دې د لرې کولو څه ذریعه ده؟. |
| قَالَ: كَثْرَةُ ذِكْرِ الْمَوْتِ وَتِلَاوَةِ الْقُرْآنِ. رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ(۱) |
| نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل مرګ ډیر یادوئ او د قرآن کریم تلاوت. |

**توضیح**: **تصدأ**: زنګ لګیدو ته وایي. (المرقات: ۴/۶۷۴).

**ماجلاؤها**: جلاء زنګ شوي وسپنه د پاکولو لپاره ریګمال یا قلعی استعمالېږي. چې وسپنه پاکه شي. زړې کې جلاء پیدا شي. همدغې طرف ته حدیث کې اشاره ده چې د دنیا په غفلتونو، ګندګیو او ګناهونو په وجه زړه ګنده کېږي او دې باندې ګویا کې د ګناه داسې زنګ ولږېږي لکه څنګه چې په اوبو باندې وسپنې ته زنګ لږې. چې په هغې سره زړه سخت شي. د دې علاج نبي کریم صلی الله علیه وسلم وښودلو چې قرآن کریم ډیر لولئ او مرګ ډیر یادوئ. د دې زړه نه به زنګ لاړ شي. (المرقات: ۴/۶۶۵)

## آیت الکرسی په قرآن کریم کې د ټولو نه عظیم آیت دی

| |
|---|
| ﴿۵۹﴾ وَعَنْ أَيْفَعَ بْنِ عَبْدِ الْكَلَاعِيِّ قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ سُورَةِ |
| ایفع بن عبد الکلاعی وایي چې یو سړي (نبي کریم صلی الله علیه وسلم) ته وویل چې یا رسول الله! کوم سورة په |
| الْقُرْآنِ أَعْظَمُ؟ قَالَ: ﴿ قُلْ |
| قرآن کې (د صفات باري تعالی په سلسله کې) د ټولو نه عظیم الشان دی؟ نبي علیه السلام وفرمایل **قل** |

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان.

| |
|---|
| هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ ﴾ قَالَ : فَأَيُّ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ أَعْظَمُ ؟ قَالَ : |
| هوالله احد هغه وويل چې په قرآن کې د ټولو نه عظيم الشان آيت کوم يو دی نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل |
| آيَةُ الْكُرْسِيِّ ﴿ اَللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴾ قَالَ : فَأَيُّ آيَةٍ |
| آيت الكرسى الله لا اله الا هو الحي القيوم. هغه بيا وويل چې کوم يو آيت دی يا رسول الله! چې د هغې |
| يَا نَبِيَّ اللّٰهِ تُحِبُّ أَنْ تُصِيبَكَ وَ أُمَّتَكَ ؟ |
| په باره کې به ته وايې چې هغه (يعنې د هغې ثواب او فايده به) نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د ده امت ته رسيږي ؟ |
| قَالَ : خَاتِمَةُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ فَإِنَّهَا مِنْ خَزَائِنِ رَحْمَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى |
| نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل د سورت بقرې آخرى برخه. بيشکه دا ايتونه د خداى د رحمت د خزانو نه د |
| مِنْ تَحْتِ عَرْشِهِ أَعْطَاهَا هٰذِهِ الْأُمَّةَ لَمْ تَتْرُكْ |
| عرش د لاندې نه نازل شوي او کوم چې دې امت ته ورکړې شوي دي نو نه دې پرېښودل شوي يو داسې |
| خَيْراً مِنَ الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ إِلَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ. [1] |
| خير د خيرونو د دنيا او د آخرت نه چې هغه په دې کې نه وي. |

**توضيح**: دې حديث کې سورت اخلاص ته د قرآن ټولو نه لوي سورت ويل شوى دى او په تير شوي حديث نمبر ۱۰ کې سورت فاتحه د ټولو نه لوي سورت ويل شوى دى. چې د هغې سره په ظاهر کې تعارض معلومېږي. خو دا هيڅ تعارض نه دى ځکه سورت اخلاص کې د الله د ذات تعارف شوى دى او د ذات په اعتبار سره د الله لوي والى بيان شوى دى. خو په سورت فاتحه کې د الله د صفاتو په ذريعي سره د الله لوي والى بيان شوى دى. جدا جدا مضمون دى. (المرقات : ۴/۶۶۵)

## سورت فاتحه د هر مرض لپاره شفاء ده

| |
|---|
| ﴿۶۰﴾ وَعَنْ عَبْدِالْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ مُرْسَلًا قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : فِيْ |
| عبد المالک ابن عمير د ارسال په طريقې روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : په سورت |

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۵۴۰ رقم الحديث : ۳۳۸۰

فَاتِحَةُ الْكِتَابِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ. (۱)

فاتحه کې د هر مرض لپاره شفاء ده.

**توضيح**: تجربه هم گواه ده او حديثونه او اقوال د علماؤ هم گواه دي چې د ايمان او يقين سره چا سورت فاتحي سره علاج کړی دی. د روحاني او بدني دواړو اعتبار سره ورته شفاء شوي ده البته فقط په يو ځل يا يو عمل سره به فائده نه کېږي. تر څه ورځو پورې دوام ورکول هري وظيفي لپاره ضروري دی. فاتحه به اوبو باندې دم کړی يا يې په کاغذ باندې وليکی يا يې د تعويذ په شکل کې غاړه کې زوړند کړی.

﴿۶۱﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: مَنْ قَرَأَ آخِرَ آلِ عِمْرَانَ فِي لَيْلَةٍ

حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه راوي دي وايي چې کوم کس ولولي آخري برخه د سورة آل عمران په شپه

كُتِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ. (۲)

کې نو ده لپاره (يعني د شوگيري) ثواب ليکل کېږي.

﴿۶۲﴾ وَعَنْ مَكْحُولٍ قَالَ: مَنْ قَرَأَ سُورَةَ آلِ عِمْرَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ

مکحول رحمه الله وايي چې کوم کس چې د جمعې په ورځ سورت آل عمران وايي نو دعاء او استغفار کوي

إِلَى اللَّيْلِ. (۳)

ده د پاره ملائکې تر شپې پورې.

﴿۶۳﴾ وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ اللهَ خَتَمَ سُورَةَ الْبَقَرَةِ

جبير ابن نفير رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل الله ختمه کړې ده سورت بقره په دوه

بِآيَتَيْنِ أُعْطِيتُهُمَا مِنْ كَنْزِهِ الَّذِي

آيتونو (يعني امن الرسول نه آخر پورې) باندې دا دوه آيتونه ماته د هغه خزانې نه راکړی شوي دي چې د

تَحْتَ الْعَرْشِ فَتَعَلَّمُوهُنَّ وَعَلِّمُوهُنَّ نِسَاءَكُمْ فَإِنَّهَا صَلَاةٌ

عرش دلاندې ده لهذا دا آيتونه تاسو زده کړی او خپلو ښځو ته يې هم زده کړی ځکه دا دوه آيتونه رحمت

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲ ۵۳۸۰ رقم الحديث ۳۳۷۰، وشعب الايمان

(۲) أخرجه الدارمي في السنن ۲ ۵۰٤ رقم الحديث ۳۳۹۶.

(۳) أخرجه الدارمي في السنن ۲ ۵٤٤ رقم الحديث ۳۳۹۷

| |
|---|
| وَ قُرْبَانٌ وَ دُعَاءٌ.(۱) |
| دی (د خدای) د قرب ذریعه ده او د ټولو دیني او دنیوي نیکیو د حصول لپاره دعاء ده. |
| ﴿٦٤﴾ وَعَنْ كَعْبٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اِقْرَؤُوْا سُوْرَةَ هُوْدٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ.(۲) |
| کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د جمعې په ورځ سورت هود لولئ. |

## د جمعې په ورځ د سورت کهف لوستلو ثواب

| |
|---|
| ﴿٦٥﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قَرَأَ سُورَةَ الْكَهْفِ فِي يَوْمِ |
| ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کوم کس چې وايي سورة کهف په ورځ د |
| الْجُمُعَةِ أَضَاءَ لَهُ النُّورِ مَا بَيْنَ الْجُمُعَتَيْنِ.(۳) |
| جمعې نو د هغې لپاره (يعنې د هغې په زړه کې د ايمان او هدايت) رڼا تر بلې جمعې روښانه وي. |

**توضيح**: يعنې يوه جمعه کې چې چا سورت کهف ولوستلو نو تر بلې جمعې پورې هغه کس د الله له طرف نه يو روحاني انواراتو او برکتونو کې وي. د دښمنانو د شر او غرور نه محفوظ وي او د دجال په شان د لوي فتنې نه بچ وي. لکه څنګه چې د ابتدائی لس آيتونو تاثير په حديثونو کې ذکر دی. لهذا په هر مسلمان لازمه ده چې د جمعې په ورځ دې د سورت کهف د لوستلو اهتمام وکړي. د عوامو او خواصو تجربه ده چې په دې عمل سره انسان د هرې فتنې او د دښمن د حملې نه محفوظ وي. (المرقات ۴/۶۷۸)

| |
|---|
| ﴿٦٦﴾ وَ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ قَالَ: اِقْرَأُوا الْمُنْجِيَةَ |
| خالد ابن معدان رَحِمَهُ اللهُ نه منقول دی چې دا وايي چې ولولئ (د قبر او حشر) عذاب ساتونکي سورة (د |
| وَ هِيَ ﴿ آلم تَنْزِيل ﴾ فَإِنَّهُ بَلَغَنِي |
| شپې په اخري برخه) کې او هغه سورت الم تنزيل دی. ځکه (د صحابؤ نه) ماته دا خبره رارسيدلې ده چې |
| أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَقْرَؤُهَا مَا يَقْرَأُ شَيْئًا غَيْرَهَا |
| يو سړی ؤ چې همدغه به يې لوستل. هغه به د دې سورت نه بغير بل هيڅ نه لوستل (يعنې د دې سورت نه |

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲ ٤٤٢ رقم الحديث ۳۳۹۰

(۲) أخرجه الدارمي في السنن ۲ ٥٤٥ رقم الحديث ۳٤۰۳

(۳) أخرجه البيهقي في الدعوات الكبير ۲ ۱۳۳، رقم الحديث ٥۲٦

| |
|---|
| وَ كَانَ كَثِيرَ الْخَطَايَا |
| بغیر یې هیڅ شی ورد نه ؤ تا کلی) او هغه کس ډیر ګناهګار ؤ نو (کله چې هغه مړ شو) دي سورت خپلې |
| فَنَشَرَتْ جَنَاحَهَا عَلَيْهِ قَالَتْ : رَبِّ اغْفِرْ لَهُ فَإِنَّهُ كَانَ يُكْثِرُ قِرَاءَتِي |
| څنګلې خورې کړې او فریاد به وکړې چې ای پروردګاره! ددې کس بخشش وکړې ځکه ده به زه ډیر لوستلم |
| فَشَفَّعَهَا الرَّبُّ تَعَالَى فِيهِ وَ قَالَ : |
| الله د هغه کس په حق کې ددې کس شفاعت قبول کړو او (فرښتو) ته یې حکم وکړو چې (ددې د اعمال نامه |
| اكْتُبُوا لَهُ بِكُلِّ خَطِيئَةٍ حَسَنَةً وَارْفَعُوا لَهُ دَرَجَةً ". وَ قَالَ أَيْضًا : |
| کې) د هرې بدۍ په بدل کې نیکۍ ولیکۍ او دده درجې اوچتې کړۍ. خالد به دا هم ویل چې بیشکه دا |
| "إِنَّهَا تُجَادِلُ عَنْ صَاحِبِهَا فِي الْقَبْرِ تَقُولُ : اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتُ مِنْ كِتَابِكَ |
| سورت به قبر کې د خپل لوستونکي د طرف نه جنګ کوي هغه به وایي چې یا الله! که زه ستا کتاب ( د |
| فَشَفِّعْنِي فِيهِ وَ |
| قرآن کریم) نه یم (چې په لوح محفوظ کې لیکل شوی دی) نو دې په حق کې زما شفاعت قبول کړه. او که |
| إِنْ لَمْ أَكُنْ مِنْ كِتَابِكَ فَامْحُنِي عَنْهُ |
| (بالفرض) زه ستا د کتاب نه نه یم نو ما ددې نه وران کړې دغه شان خالد رَحِمَهُ اللهُ وویل دا سورت به (قبر کې) |
| وَ إِنَّهَا تَكُونُ كَالطَّيْرِ تَجْعَلُ جَنَاحَهَا عَلَيْهِ فَتَشْفَعُ لَهُ |
| د مرغۍ په شان راشي او خپلې وزرې به خپروي او ددې لپاره (به د الله) نه شفاعت کوي نو منع به یې کړي |
| فَتَمْنَعُهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ ". وَ قَالَ فِي تَبَارَكَ مِثْلَهُ. |
| د عذاب قبر نه او خالد رَحِمَهُ اللهُ سورت **تبارك الذى بيده الملك** باره کې همدغه وویل چې (د همدغه |
| وَ كَانَ خَالِدٌ لَا يَبِيتُ حَتَّى يَقْرَأَهُمَا . |
| سورت هم دغه تاثیر او برکت دی) د خالد رَحِمَهُ اللهُ همدغه معمول ؤ چې نه به اوده کیدو په غیر د ویلو ددې |
| وَ قَالَ طَاوُسٌ : فُضِّلَتَا عَلَى كُلِّ سُورَةٍ |
| دواړو سوتونو نه. طاؤس رَحِمَهُ اللهُ وایي چې فضیلت ورکړې شوې دی دې دواړه سورتونو ته په هر سورت |

فِي الْقُرْآنِ بِسِتِّينَ حَسَنَةً.[1]

د قرآن كريم باندې په شپيته نيكيو سره.

## د سورت ياسين لوستلو فضيلت

﴿۶۷﴾ وَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

عطاء بن ابي رباح رحمه الله (تابعي) وايي چې ماته دا حديث رارسيدلی چې نبي كريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل

مَنْ قَرَأَ (يٰسٓ) فِي صَدْرِ النَّهَارِ قُضِيَتْ حَوَائِجُهُ.[2]

كوم كس چې دورځ په ابتدائی برخه كې سورت ياسين وايي نو دده ديني او دنيوي حاجتونه پوره كېږي.

﴿۶۸﴾ وَعَنْ مَعْقِلِ ابْنِ يَسَارِ الْمُزَنِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قَرَأَ (يٰسٓ)

معقل ابن يسار رضي الله عنه راوي دی چې نبي كريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل كوم كس چې ووايي سورة ياسين

ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللهِ تَعَالَى غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ

دالله درضا او دخوشحالۍ طلب كولو دپاره نو دده هغه ګناهونه بخښل كېږي كوم چې ده مخكې كړي وي

فَاقْرَؤُوهَا عِنْدَ مَوْتَاكُمْ.[3]

لهذا دا سورت دې د مړو مخې ته ولوستل شي.

﴿۶۹﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّهُ قَالَ: إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ سَنَامًا وَ

دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه باره كې روايت شوی چې ده وويل دهرشي لپاره اوچتوالی او بلندي وي او

إِنَّ سَنَامَ الْقُرْآنِ سُورَةُ الْبَقَرَةِ وَ إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ لُبَابًا وَ إِنَّ لُبَابَ الْقُرْآنِ الْمُفَصَّلُ.[4]

دقرآن اوچتوالی او بلندي سورة بقره ده دهرشي خلاصه (حاصل مقصد) وي او دقرآن خلاصه مفصل ده.

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۵۴۶/۲ رقم الحديث: ۳۴۰۸.

(۲) أخرجه الدارمي في السنن ۵۴۹/۲ رقم الحديث: ۳۴۱۸.

(۳) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴۷۹/۲ رقم الحديث: ۲۴۵۸.

(۴) اخرجه الدارمي في السنن ۵۳۹/۲ رقم الحديث: ۳۳۷۷.

## د قرآن کريم ښائست سورة رحمن دی

| |
|---|
| ﴿۷۰﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لِكُلِّ شَيْءٍ عَرُوسٌ وَ |
| حضرت علي رضي الله عنه وايي چې ما د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي چې د هر شي لپاره ښائست وي او |
| عَرُوسُ الْقُرْآنِ الرَّحْمٰنُ. (۱) |
| د قرآن ښائست سورت رحمان دی. |

**توضيح**: سورت رحمن ځکه د قرآن زينت دی چې زمونږ پيغبر دغه شان ويلي دي. بله وجه دا ده چې سورت رحمن کې الله د عجيبه نعمتونو ذکر کړی دی. د حورو د حسن و جمال او د هغوی د زيوراتو شان او کمال يې ذکر کړی دی. دريمه وجه دا هم کيدی شي چې د دې سورت الفاظ او آيات په عجيب اسلوب سره واقع دي. د فواصلو تسلسل او د يو خاص آيت بار بار تکرار د زيب او زينت په اعتبار سره يو خاص شان لري. باذوقه خلک که عوام وي او که خواص هغه دا پيژني. (المرقات: ۴/۶۸۲)

## سورت واقعه د فقر فاقې علاج دی

| |
|---|
| ﴿۷۱﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ سُورَةَ الْوَاقِعَةِ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ |
| ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل کوم کس چې هره شپه سورة واقعه وايي |
| لَمْ تُصِبْهُ فَاقَةٌ أَبَدًا وَ كَانَ ابْنُ مَسْعُودٍ يَأْمُرُ بَنَاتَهُ |
| نو کله هم دولږي حالت ته نه شي رسيدی ابن مسعود رضي الله عنه به خپلو لورانو ته حکم کولو چې هغوی به |
| يَقْرَأْنَ بِهَا كُلَّ لَيْلَةٍ. (۲) |
| هره شپه دا سورت ولولي. |

**توضيح**: د سورت واقعې يو خاص تاثير دی چې کوم مفلس او فقير او محتاجه کس چې د ماسخوتن وخت کې يې ووايي يا يې خپله ښځه او بچو باندې ووايي. نو الله د هغه د کور محتاجي او فقر و فاقه لري کوي. بالفرض که مال در هم نکړی شو نو الله قلبي استغناء او قناعت و سکون ورکوي. شريعت ځينې عبادتونو سره د اخروي فايدو سره د دنيوي فايدو هم ذکر ځکه کړی دی چې خلک دې عبادت طرف ته متوجه شي او دا عبادت په معاشره کې ښه عام شي. (المرقات: ۴/۶۸۲)

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/۴۹۰ رقم الحديث: ۲۴۹۴.

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/۴۹۱ رقم الحديث: ۲۴۹۸.

| ﴿۷۲﴾وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُحِبُّ هٰذِهِ السُّوْرَةَ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى[1] |
|---|
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا سورة يعنې **سبح اسم ربك الاعلى** خوښ ؤ. |

**توضيح**: اسماني صحيفي ټولي سل دي. چې د هغې طرف ته دلته په صحف اولى کې اشاره شوي ده. او اسماني لوي کتابونه څلور دي. دې صحيفو کې د دين او دنيا د نيکيو تعليمات او د تزکيه نفس لپاره بهتر مواعظ او نصيحتونه موجود ؤو.

| ﴿۷۳﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ |
|---|
| عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو کس د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او وي ويل |
| أَقْرِئْنِي يَا رَسُوْلَ اللهِ فَقَالَ : " اقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ ذَوَاتِ |
| چې يا رسول الله! ماته ووايه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل ووايه دري هغه سورتونه چې د هغې شروع کې |
| ( الر ) فَقَالَ : كَبُرَتْ سِنِّي وَ اشْتَدَّ قَلْبِي |
| الر دی هغه وويل زما عمر ډير شوی او زړه مې سخت مريض دی (يعنې زما په زړه باندې د حافظې کمي |
| وَ غَلُظَ لِسَانِيْ |
| او د نسيان غلبه ده). او دغه شان مې ژبه هم درنه شوي ده (يعنې کلام الله خصوصاً لوي سورتونه نشم |
| قَالَ : " فَاقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ |
| زده کولی) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل که ته هغه سورتونه، نه شي ويلی نو وايه هغه دري سورته چې په شروع |
| ذَوَاتِ ( حم ) فَقَالَ مِثْلَ مَقَالَتِهِ . قَالَ الرَّجُلُ : يَا رَسُوْلَ |
| کې يې (حم) دی (ځکه دا سورتونه د هغه سورتونو په نسبت واړه دي) هغه کس بيا ووېل چې يا رسول |
| اللهِ ! أَقْرِئْنِي سُوْرَةً جَامِعَةً |
| الله! ماته جامع سورتونه ووايه (يعنې يو داسي سورت راته ووايه چې په هغې کې ډيري خبري راجمعه |
| فَأَقْرَأَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ( إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ ) حَتَّى |
| وي) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ته سورت اذا زلزلت ولوستو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (پوره سورت ولوستو او) ددې نه |

(۱) أخرجه مسند أحمد ۱/۹۶، رقم الحديث ۷۴۲

| |
|---|
| فَرَغَ مِنْهَا فَقَالَ الرَّجُلُ : وَ الَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ |
| فارغ شو نو هغه کس وويل چې قسم په هغه ذات چې ته يې په حق رالېږلى يې زه به (ددې سورة د عمل |
| لَا أَزِيدُ عَلَيْهِ أَبَداً ثُمَّ أَدْبَرَ الرَّجُلُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| كولو) په سلسله كې زياتى نه كوم ، بيا هغه كس شاه را واړوله ( يعنې كله چې بيرته لاړو) نو وفرمايل |
| أَفْلَحَ الرُّوَيْجِلُ " مَرَّتَيْنِ .(١) |
| رسول الله ﷺ چې "دي كس مراد حاصل كړو دا خبره نبي كريم ﷺ دوه ځل وكړه. |

**توضيح** : دې سورت ته جامعه ځكه وويل شو چې دې كې **فمن يعمل مثقال ذرة خيرًا يره ومن يعمل مثقال ذرة شرا يره** په شان آيت دى. چې هيڅ يو شى يې باهر پرينخوستلو، ټول يې دننه را ونغښتل.

## سورت تكاثر ووايه او يو منځ كې د زر ګونو آيتونو د لوستلو ثواب وګټه

| |
|---|
| ﴿٧٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: أَلَا يَسْتَطِيعُ أَحَدُكُمْ |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دى چې نبي كريم ﷺ وفرمايل آيا تاسو كې هيڅ يو كس په دې قادر نه دي |
| أَنْ يَقْرَأَ أَلْفَ آيَةٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ ؟ قَالُوْا : وَ مَنْ يَسْتَطِيعُ |
| چې هغه هره ورځ زر (١٠٠٠) آيتونه لولي صحابؤ وويل چې څوك په دې قادر كيدى شي چې هغه (هميشه) |
| أَنْ يَقْرَأَ أَلْفَ آيَةٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ ؟ قَالَ : " أَمَا يَسْتَطِيعُ أَحَدُكُمْ |
| هره ورځ زر آيتونه ولولي؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل "آيا څوك په دى قادر كيدلى نه شي چې هغه |
| أَنْ يَقْرَأَ: (أَلْهٰكُمُ التكاثر) ؟.(٢) |
| (هره ورځ) الهاكم التكاثر ولولي. |

**توضيح** :سورت تكاثر ډير وړوكى سورت دى چې په ويلو كې يې وخت نه لګي يو منځ كې درې ځله ويل كيدى شي خو دې دولت ته لږ وګورئ چې د زرو آيتونو برابر دى. هر مسلمان ته په كار ده چې د دې نه ډيره فايده واخلي او يو منځ كې د زرو آيتونو ثواب وګټي. (المرقات :٦٨٦/۴)

---

(١) أخرجه أحمد في المسند ١٦٩/٢

(٢) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ٤٩٨/٢ رقم الحديث :٢٥١٨

## د سورت اخلاص په لس ځل ویلو سره یو محل ملاویږي

﴿۷۵﴾ وَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ مُرْسَلًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ
سعید ابن مسیب رحمه الله دارسال په طریقې نقل کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم کس چې
قَرَأَ ﴿ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ﴾ عَشَرَ مَرَّاتٍ بُنِيَ لَهُ بِهَا قَصْرٌ فِي الْجَنَّةِ وَ مَنْ
سورت قل هو الله احد لس ځله ووايي نو ددې په وجه هغه ته په جنت کې يو محل جوړ کړی شي. کوم کس
قَرَأَ عِشْرِينَ مَرَّةً بُنِيَ لَهُ بِهَا قَصْرَانِ فِي الْجَنَّةِ وَ مَنْ قَرَأَهَا ثَلَاثِينَ مَرَّةً
چې دا شل ځله ووايي نو ددې په وجه ورته دوه محله جوړ کړی شي او کوم کس يې چې ديرش ځله ووايي
بُنِيَ لَهُ بِهَا ثَلَاثَةُ قُصُورٍ فِي الْجَنَّةِ . فَقَالَ عُمَرُ بْنُ
نو د دې په وجه ورته درې محله جوړ شي (نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دې زيري اوريدو سره) وويل عمر بن
الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : وَ اللهِ يَا رَسُولَ اللهِ إِذًا لَنُكْثِرَنَّ قُصُورَنَا.
خطاب رضي الله عنه چې په خدای قسم ای د الله رسوله! بیا خو به مونږ جنت کې د ځان لپاره ډیر محلونه جوړ کړو
فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اللهُ أَوْسَعُ مِنْ ذٰلِكَ.[1]
نبي علیه السلام وفرمایل الله ددې نه هم ډیره فراخه دی (یعنې ددې سورة فضیلت او ثواب ډیر عظیم او وسیع
دی لهذا په دې زيري تعجب مه کوی بلکې ددې د حصول کوشش وکړی او دې طرف ته میلان وکړی).

**توضیح : قصر في الجنة:** یعنې څوک چې سورة اخلاص لس ځله ووايي. نو د هغې په بدل کې به ورته الله جنت کې يو محل جوړ کړي او که څوک يې سل ځله ووايي نو لس محلونه به ورته جوړ کړي. هر مسلمان باندې لازمه ده چې د دې عظيم دولت نه استفاده وکړي او دې کې کوتاهي ونه کړي. د ځان لپاره دې هم ولولي او د خپلو مړو د ثواب لپاره دې هم ولولي. دا د کم خرچ او ډیر ثواب والا نعمت دی. همدغې باندې حضرت عمر رضي الله عنه تعجب وکړو چې زمونږ خو به ډیر محلونه جوړ شي. نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د الله وسعت ستا د تعجب نه لوی ده. بهرحال محل ملاویدل خو يو نعمت دی خو د بشارت په ضمن کې جنت ته د تللو بشارت ملاؤ شو هغه جدا نعمت دی. (المرقات :۴/۶۸۶)

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۵۵۱/۲ رقم الحدیث :۳۴۲۹.

## په هر مسلمان باندې د قرآن تلاوت واجب دی

| |
|---|
| ﴿۷٦﴾ وَ عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ قَرَأَ فِي لَيْلَةٍ |
| حسن د ارسال په طريقې نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل :څوک چې ولولي د شپې (د قرآن) |
| مِائَةَ آيَةٍ لَمْ يُحَاجِّهِ الْقُرْآنُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ وَ مَنْ قَرَأَ فِي لَيْلَةٍ مِائَتَيْ آيَةٍ |
| سل آيتونه نو هغه شپه کې قرآن د هغه سره جنګ نه کوي او څوک چې دوه سوه (۲۰۰) آيتونه ولولي نو دده |
| كُتِبَ لَهُ قُنُوتُ لَيْلَةٍ وَ مَنْ قَرَأَ فِي لَيْلَةٍ خَمْسَمِائَةٍ إِلَى الْأَلْفِ |
| لپاره به د شوګيرۍ ثواب ليکل کېږي او څوک چې د پنځه سوو نه تر زرو پورې آيتونه ولولي نو هغه په |
| أَصْبَحَ وَ لَهُ قِنْطَارٌ مِنَ الْأَجْرِ . قَالُوْا : وَمَا الْقِنْطَارُ ؟ |
| داسې حال کې سحر کوي چې دده لپاره د قنطار ثواب (ليکل شوی) وي صحابوٴ وويل چې قنطار څه وي؟ |
| قَالَ : اِثْنَا عَشَرَ أَلْفًا .(۱) |
| نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د ولس زره درهم يا دينار. |

**توضيح : لم يحاجه القرآن**: يعنې قرآن کريم به د هغه سره سره جنګ نه کوي. د دينه معلومه شوه چې څوک د قرآن تلاوت نه کوي او دې باندې عمل نه کوي نو قرآن به د هغه دښمن شي او هغه نه به د خپل حق مطالبه کوي. يا به د هغه خلاف شکايت کوي. دلته دومره خبره باندې پوهيدل په کار دي چې د قرآن جنګ کول او ملامته کولو دوه سببه دي. يو د قرآن نه لوستلو وجه او دويم په هغې باندې عمل نه کولو په وجه. که دې دوه کارونو کې څوک کوتاهي کوي نو قرآن به ورسره جنګ کوي. اوس که څوک د عمل کولو کوتاهي نه کوي، نو تلاوت کولو سره به دا جنګ ختم شي. او که څوک تلاوت کوي خو عمل پرې نه کوي نو فقط تلاوت سره به دا جنګ نه ختمېږي. بلکې عمل کولو سره به ختمېږي. علامه طيبي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې دا حديث په دې خبره دلالت کوي چې د قرآن تلاوت په هر مسلمان باندې واجب دی. بهرحال دې حديث کې د جنګ نسبت د قرآن طرف ته مجازي دی. حقيقت کې به دا جنګ د الله د طرف نه وي. ځينو شارحينو دا وعيد د هغه حافظانو لپاره ويلی چې د هغوی نه د قرآن د هيريدو خطره وي او هغوي د قرآن حفاظت نه کوي. **قنطار**: انبار او د خزانې په معنی کې دی. يعنې د دې د وزن په حساب به ورته ثواب ملاوېږي يا به د شمير برابر ثواب ملاوېږي يعنې دولس زره درهم يا دينار.

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۵۵۷ رقم الحديث :۳۴۵۹.

# باب آداب التلاوة و دروس القرآن

## د قرآن ويل او بل ته لوستل او آداب تلاوت

**قال الله تعالىٰ:** ﴿وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلاً﴾ (سورة مزمل آيت: ٤).

پوهيدل په کار دي چې دلته د مشکوة په نسخو کې فقط د **باب** لفظ دی عنوان هيڅ نشته دی. چې د هغې مطلب دا وي چې د اباب ددې نه د مخکې د باب د لواحقاتو نه دی. البته شارح طيبي رَحِمَهُ اللهُ او ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ پاس ذکر شوی عنوان قائم کړی دی. دې عنوان کې چې کومو مضامينو ته اشاره شوي ده. دې باب کې د همدغه متعلق حديثونه ذکر دي. همدغه شان د قرآن نګرانی او حفاظت باندې زور ورکړی شوی دی. د دې په هيرولو باندې سخت وعيد اوروَل شوی دی. (المرقات: ۴/۳۲۷).

## د قرآن خبر اخله هيروه يې مه

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَعَاهَدُوا الْقُرْآنَ |
| ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د قران خبر اخلئ (يعنې قرآن |
| فَوَ الَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَهُوَ |
| هميشه لولئ چې هير درنه ،نه شي) قسم دی په هغه ذات د چا په قبضه کې چې زما ساه ده قرآن د سينو نه |
| أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنَ الْإِبِلِ فِي عُقُلِهَا.[1] |
| دومره زر وځي چې اوښ هم دومره زر د پړي نه ،نه شي وتلی. |

**توضيح**: قرآن عظيم دا چې يو عظيم دولت دی او لويي دولت حفاظت غواړي. که څوک يې ناقدري کوي او حفاظت کې ورله کوتاهي کوي نو دا دولت لاړ شي. دلته د تړلی شوي تږي اوښ د قرآن سره تشبيه شوي ده چې کله اوښ تږی وي او پړي ترې خلاص شي نو په منډه منډه د اوبو طرف ته ځي. عربو کې دا طريقه وه چې تر پنځه ورځو پورې به يې اوښان تړلي ؤ او اوبو ته بوتللو ضرورت به يې نه محسوسولو. شپږمه ورځ باندې به يې د اوښانو نه پړي خلاص کړل نو هغوی به په پټو سترګو د ابو طرف ته منډه کولي. دغه شان مثال د قرآن دی چې که چرې دا وتړي او د دې نګراني او خبر اخستنه کوي او تلاوت او حفاظت يې کوي نو دا دولت به درسره وي. ګيني منډه به درنه وهي. د قرآن معجزه ده چې څومره زر ياد

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٧٩/٩، رقم الحديث ٥٠٣٣، ومسلم في صحيحه ٥٤٥/١ رقم الحديث ٢٣١-٧٩١، وأحمد في المسند ٣٩٧/٤

کړی شي هغه هومره زر هیرېږي هم. (المرقات: ۴/٦٨٩).

**تفصياً:** د باب **تفعل** نه په منډه منډه تللو په معنی کې دی.

**عقل:** د **عقال** جمعه ده داوښ یوه ښپه راټاؤ کړی شي او شړنګني سره کله وتړي نو اوښ نشي خوځیدی ځکه د بدن دروند والي په وجه اوښ په درې ښپو باندې ګوډ نه شي تللی دغه پړي ته عقال وايي.

## داسې مه وایه چې ما نه فلانی آیت هیر شو

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِئْسَ مَا لِأَحَدِهِمْ |
| ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل د يو کس لپاره دا خبره ډېر بده ده چې هغه |
| أَنْ يَقُولَ: نَسِيتُ آيَةَ كَيْتَ وَ كَيْتَ بَلْ نُسِّيَ وَ اسْتَذْكِرُوا |
| داسې ووايي چې ما نه فلانی آيت هير شو بلکي هغه دې داسې ووايي چې ما نه هير کړی شو او ياد وئ |
| الْقُرْآنَ فَإِنَّهُ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنْ صُدُورِ الرِّجَالِ مِنَ النَّعَمِ".[1] |
| (مسلسل) قرآن کريم ځکه د خلکو د زړه نه خو لا څه چې د څاروي نه هم ډېر زر وځي. |

**توضيح: نُسِّيَ:** دلته یو ادب خودلی کيږي چې که د يو کس نه د قرآن يو سورت يا يو آيت هير شي نو هغه دې داسې نه وايي چې ما هير کړو بلکي داسې دې وايي چې ما نه هير کړی شو. ځکه اولنې صورت کې دا کس خپل طرف ته نسبت کوي چې حقيقت کې د دې عظيم دولت بې ادبي او په دې د کوتاهي او تقصير اعتراف دی بلکي هغه دې دا ووايي چې ما نه هير کړی شو چې هغې د تأسف او افسوس ته اشاره ده چې ما خو هيرول نه غوښتل خو زما نه هير کړی شو. (المرقات: ۴/٦٩٠).

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّمَا مَثَلُ صَاحِبِ الْقُرْآنِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل "صاحب قرآن (قرآن لوستونکی) مثال په شان |
| كَمَثَلِ صَاحِبِ الْإِبِلِ الْمُعَقَّلَةِ إِنْ عَاهَدَ عَلَيْهَا أَمْسَكَهَا |
| د مالک د تړلی شوي اوښ دی که چرې هغه د خپل اوښ خبر اخلي نو هغه تړلی شوی ولاړ وي او که هغه يې |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۷۹/۸، رقم الحديث ۵۰۳۲، ومسلم في صحيحه ۱ ۵٤٤ رقم الحديث :۲۸۸-۷۹۰، والترمذي في السنن ۱۷۷/۵ رقم الحديث:۲۹٤۲، وأحمد في المسند ۵۸/۱

| وَ | إِنْ | أَطْلَقَهَا | ذَهَبَتْ .(۱) |
|---|---|---|---|

پرېږدي نو هغه ترې نه وځي (د غه شان که څوک قرآن مسلسل نه وايي او نه يې يادوي نو قرآن د هغه د سينې نه وځي).

## تر څو چې دې زړه وي قرآن لوله

﴿٤﴾ وَعَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اِقْرَؤُوا الْقُرْآنَ

جندب بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "قرآن تر هغه وخت پورې لولئ

| مَا | ائْتَلَفَتْ | عَلَيْهِ | قُلُوبُكُمْ | فَإِذَا | اخْتَلَفْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

چې تر څو پورې ستاسو د زړه خواهش وي کله چې خپلو کې اختلاف وي (يعنې دير لوستلو باندې غم او

| فَقُوْمُوْا | عَنْهُ .(۲) |
|---|---|

تنگستيا محسوسېږي) نو ودرېږئ (يعني قرآن ويل موقوف کړئ).

**توضيح: ما ائتلفت:** ائتلا د مالوف او مانوس کېدو په معنى دى يعني تر څو پورې چې د قرآن په تلاوت کې شوق او ذوق وي او تازګي او بيداري وي نو بنه يې وا، ليکن چې کله دا تازګي ختمه شي او دا کيفيت بدل او مختلف شي او انسان ستړي شي نو د دې سترې والي وخت کې تلاوت بند کړه لاړ شه آرام وکړه دې د پاره چې د دې عظيم دولت باره کې دې په زړه کې څه بوج او تکليف محسوس نه شي. (المرقات ۴/۶۹۱).

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لوستلو انداز

﴿٥﴾ وَ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ: سُئِلَ أَنَسٌ: كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وشوه چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرأت څنګه ؤ؟

فَقَالَ: كَانَتْ مَدًّا مَدًّا ثُمَّ قَرَأَ: بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ده ووېل چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قرأت په راخکلو سره ؤ بيا ده بسم الله الرحمن الرحيم ووېله او وايي چې دغه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۷۹، رقم الحديث:۵۰۳۱، ومسلم في صحيحه ۱/۵۴۳ رقم الحديث :۲۲۶-۷۸۹.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۱۰۱، رقم الحديث:۵۰۱۰، ومسلم في صحيحه ۱/۲۵۳ رقم الحديث :۳-۲۶۶۷، وأحمد في المسند ۴/۳۱۳.

| |
|---|
| يَمُدُّ بِبَسْمِ اللهِ وَ يَمُدُّ بِالرَّحْمٰنِ |
| شان به یې بسم الله راخکله (یعنې بسم الله کې به یې الف د الف مقصوره پشان رابنکلو) او اوږدولو |
| وَ يَمُدُّ بِالرَّحِيمِ .(۱) |
| به یې رحمن (یعنې د دې الف به یې رابنکلو) او رحیم به یې یې هم اوږدولو (یعنې د رحیم یاء به یې د [illegible] |
| یا د عارضي مد کولو). |

## الله تعالی د نبي تلاوت په غور سره اوري

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې څنګه (په خوبنی سره) |
| مَا أَذِنَ اللهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِنَبِيٍّ يَتَغَنَّى بِالْقُرْآنِ .(۲) |
| الله د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اواز اوري كله چې هغه قرآن په خائسته آواز سره وايي د غه شان بل څوک اواز نه اوري. |

**توضیح** : **ما اذن**: دې حديث كې اولنی ما نافیه دی او دویمه ما مصدریه دی. "**اذن**" د سمع نه په کولاؤ غوږنو سره اوریدلو ته وايي. (المرقات :۴/۶۹۲)

**یتغنی**: خوش اوازۍ سره لوستلو ته وايي. چې هغې کې غنغنه وي. بالقرآن: د دینه یا خو همدا قرآن کریم مراد دی. یا قرآن د معني سره قرات دی چې مصدر دی. د دینه لوستل مراد دی. هغه قرآن ولولي یا د مخکني کتابونو یا د تیر شوي زماني یو نبي لولي. (المرقات :۴/۶۹۲)

ملاعلی قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د "**نبي**" د تنکیر نه اشاره ملاوېږي چې د دینه هم یو نبي مراد کیدلی شي. د حديث مفهوم دا دی چې د هر نبي اواز د هر فرد بشر نه بنایسته او شیرین وي. خو هغه نبي **چې** کله په خوش اوازۍ سره یعنې تجوید او ترتیل سره بغیر د تکلف د الله کتاب لولي نو هغه وخت د هغې اواز د کائنات هر اواز نه لطیف او شیرین وي. همدغه "**مایلیق بشانه**" په غوږونو سره اوري. دا خوښوي او دا قبلوي. سبحان الله څه شان دی. **اعلاء السنن** کې لیکل شوي دي چې د قرآن کریم تلاوت په اوچت اواز سره ویل افضل دی. خو د عوارضو په وجه په ورو ویل په کار دي.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹۱/۹، رقم الحديث:۵۰۴۶، وأبوداود في السنن ۲، رقم الحديث: ۱۴۶۵،وأحمد في المسند ۳ ۱۱۹
(۲) [illegible]

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَذِنَ اللهُ لِشَيْءٍ |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل الله هیڅ یو شي ته غوږ نه ګدي (یعني |
| مَا أَذِنَ لِنَبِيٍّ حَسِنِ الصَّوْتِ بِالْقُرْآنِ |
| اهتمام یې نه کوي) لکه څنګه چې هغه د قرآن لوستلو وخت کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خائسته آواز ته غوږ نیسي |
| يَجْهَرُ بِهِ. (۱) |
| (یعنې هغه خوښ او قبلوي) چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په اوچت اواز سره قرآن لولي. |

## په ښکلي آواز سره قرآن لوستل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ مِنَّا |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل هغه سړی زمونږ په طریقه تلونکی نه دی |
| مَنْ لَمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْآنِ. (۲) |
| څوک چې قرآن په خائسته آواز سره نه لولي. |

**توضیح: لم یتغن**: دا لفظ شارحینو حسن صوت او ترنم او خوش اوازۍ باندې حمل کړی مطلب دا چې څوک قرآن خوش طبیعي طور خوش اوازۍ سره نه وايي نو هغه د تلاوت په میدان کې زمونږ نه نه دی. ځینو علماؤ دا لفظ د استغناء او د مستغني کیدو په معنی اخیستی دی مطلب دا چې چاته الله د قرآن دولت ورکړی وي او هغه خپل ځان د دې په وجه د نورو نه مستغني ګڼي بلکې نورو ته صاحب دولت وايي نو هغه زمونږ په طریقه باندې نه دی ځکه هغه د عظیم دولت توهین وکړو (المرقات ۴/۶۹۳، الکاشف ۴/۳۲۲)

مرقات کې ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې علامه ازهر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د **لم یتغن** لفظ په استغناء باندې حمل کول د لغت په اعتبار سره غلط دی. دا لفظ فقط د تغنی نه دی چې د خوش اوازۍ په معنی کې دی. ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې علامه ازهر رَحِمَهُ اللهُ دا لغت په غلط ګڼلو سره ترینه خپله غلطي شوي ده. اهل لغت دا د استغناء په معنی کې استعمالوي. **یقال رجل ربطها تغنیا ای استغناء بها من الناس**. بیا ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ د "**یتغن**" په ډیرو معناګانو کې لیکي: **قوله: لم یتغن: ای**

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۱۷/۱۳، رقم الحديث. ۷۵۴٤، ومسلم في صحيحه ۵٤۵/۱ رقم الحديث. ۲۳۳-۷۹۲، وأبوداود في السنن ۱۵۷/۲، رقم الحديث: ۱٤۷۳.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۰۲/۱۳، رقم الحديث ۷۵۲۷

لم يحسن صوته به، اولم يجهر به اولم يتغن به عن غيره، اولم يترنم به، اولم يتحزن، اولم يطلب به غنى النفس، اولم يرج به غنى اليد، فهذه سبعة معان ماخوذة من فتح البارى استخرجها على القاري. (المرقات ٤/٦٩٣، الكاشف ٤/٣٣٢).

د شارحينو دا تشريحات په خپل ځاې صحيح ده خو كه تغنى نه دې اړخ ته اشاره مقصود وي چې كوم كس قرآن لولي نو د قرآن په لهجه كې دې ولولي. دې كې غنه ده، ادغام دى، مد او د عربى طرز كلام خپل يو جدا طرز دى. نو دا احتمال به بې ځايه نه وي. مطلب دا چې چا قرآن د قرآن په طرز ونه لوستلو بلكې د عربي طرز په كلام يې ولوستلو نو هغه زمونږ نه نه دى.

## نبي كريم ﷺ به د بل چا نه قرآن اوريدو

﴿۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ: اقْرَأْ عَلَيَّ. قُلْتُ: أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ؟ قَالَ: إِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي. فَقَرَأْتُ سُورَةَ النِّسَاءِ حَتَّى أَتَيْتُ إِلَى هَذِهِ الْآيَةِ ﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا﴾ قَالَ: حَسْبُكَ الْآنَ. فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَإِذَا عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ.[1]

عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې (يو ورځ) نبي كريم ﷺ ما ته وفرمايل چې دې وخت كې دا په ممبر باندې ؤ چې زما مخې ته قرآن ووايه ما وويل چې ستا مخ كې زه قرآن ووايم، حال دا چې قرآن خو په تا رانازل شوى دى. نبي عليه السلام وفرمايل چې "زه دا خوښوم چې د خپل ځان نه بغير د بل نه قرآن واورم. ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې بس ما سورة نساء شروع كړه تر چې كله دې آيت ته راورسيدلم ﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا﴾ نو نبي عليه السلام وفرمايل چې بس اوس ودريږه، بيا زه د نبي عليه السلام طرف ته متوجه شوم نو څه گورم چې د نبي عليه السلام سترگې ډيرې زياتې اوښكې توېوي

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۹٤، رقم الحديث: ٥٠٥٠، ومسلم في صحيحه ۱/٥٥٠ رقم الحديث: ۲٤٥-۷۹۹، وأبوداود في السنن ٤/٧٤، رقم الحديث: ٣٦٦٨، والترمذي في السنن ٥/٢٢٢ رقم الحديث: ٣٠٢٥.

**توضيح**: دې حديث نه اول دا تعليم زده شو چې وړو ته د غټو مخکې د ادب لحاظ ساتل په کار دي. لکه څنګه چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همدغه خيال وکړو چې قرآن خپله په نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې نازل شوی دی. همدا (نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د دې حقدار دی چې خپله يې هم ولولي او نورو ته يې هم ولولي. د دې مخې ته: قرآن لوستلو جرأت څوک کولی شي. دويم تعليم دا ملاؤ شو چې کله کله غټو له په کار ده چې د خپلو وړو نه قرآن واوري. دې کې دا فايده ده چې د قرآن په معاني او مطلب کې د غور کولو ښه موقع ملاوېږي. دريم تعليم دا ملاؤ شو چې کله د قرآن يوه برخه قاري ولولي او اوريدونکي او غواړي چې قاري اوس قرأت بند کړي نو هغوی ورته ويلی شي چې بس همدغه کافي دی.

**تذرفان**: دا د ضرب يضرب نه د ژړله اه او ښکو تويولو په معنی کې دی. (المرقات: ۴/۶۹۴).

امرء القيس وايي:

**وما ذرفت عيناک الا لتضربي ۞ بسهميک في اعشار قلب مقتل**

## د حضرت ابي ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سعادت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ : إِنَّ اللهَ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې (يوه ورځ) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل: چې الله ماته |
| أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ قَالَ : آللهُ سَمَّانِي لَكَ ؟ |
| حکم کړی چې زه ستاسو مخکې قرآن ووايم. ابي ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې آيا الله تا ته زما نوم اخستی |
| قَالَ : نَعَمْ . قَالَ : وَ قَدْ ذُكِرْتُ عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ ؟ |
| دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې آؤ ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې زما ذکر شوددواړو جهانو پروردګار |
| قَالَ : نَعَمْ . فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ. |
| په نزد؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې آؤ (دي اوريدو سره) دابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سترګو نه اوښکي رواني |
| وَ فِي رِوَايَةٍ : " إِنَّ اللهَ أَمَرَنِي |
| شوي او يو روايت کې داسي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې "ماته الله دا حکم |
| أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ ﴿ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ قَالَ : |
| کړی دی چې زه ستسو مخکې سورت لم يکن الذين کفروا ولولم. ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې آيا الله |

| وَ سَمَّانِي ؟ قَالَ : نَعَمْ . فَبَكٰى .(١) |
|---|
| زما نوم اخستی دی؟ نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ ت وفرمايل چې آو (دي او ريد وسره) ابي بن كعب رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ په ژړا شو. |

**توضيح**: **الله سماني**: صحابهٔ کې حضرت ابي بن کعب رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ په سيد القراء کې شمارل کېږي. نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ په ده باندې د الله تعالى په حکم باندې په خاص توګه قرآن تلاوت کړو، ګويا خصوصي سند يې ورکړو. د حضرت کعب رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ نوم دا چې الله په خاصه توګه ذکر کړی دی. نو دې باندې د ډيرې خوشحالئ په وجه حضرت کعب رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وژړل. دې عظيم شرف باندې د خوشحالی اظهار همدغه شان د ټولو نه ډير مناسب ؤ. (المرقات: ۴/۶۹۵).

**اين سعادت بزور بازو نيست ✿ تانه بخشد خدائے بخشنده**

## دار الحرب ته د قرآن وړلو ممانعت

| ﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهٰى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ يُسَافَرَ بِالْقُرْآنِ إِلٰى أَرْضِ الْعَدُوِّ |
|---|
| ابن عمر رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وويل چې نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ منع کړې ده د سفر کولو نه د قرآن کريم سره د دښمن ملک |
| وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ : لَا تُسَافِرُوا بِالْقُرْآنِ فَإِنِّي |
| (يعنې دار الحرب) ته. او د مسلم يو راويت کې داسې دي چې وي فرمايل قرآن سره سفر مه کوي ځکه |
| لَا آمَنُ أَنْ يَنَالَهُ الْعَدُوُّ .(٢) |
| ځکه چې زما دا اطمينان نشته دی چې دښمن به دا وتختوي (او بيا د دې بې حرمتي وکړي). |

**توضيح**: دار الحرب نه مراد هغه علاقې دې چيرته چې جنګ روان وي يا دار الحرب داسې وي چې هلته مسلمان موجود نه وي که په دار الحرب کې مسلمانان آباد وي او د قرآن په وړلو کې د سپکاوي او توهين څه خطره نه وي نو هلته د قرآن وړل جائز دی، د اسلام عسکر او لښکرې که په شوکت او دبدبه کې وي نو بيا هم د قرآن وړل دار الحرب ته جائز دی، د خطرې او ويرې په صورت کې هم د قرآن وړل حرام نه دی خو مکروه ضرور دي، دلته يو نرې غوندې سوال دی او هغه دا چې د نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ په زمانه کې قرآن په مکمل طور سره ليکل شوې موجود نه ؤ نو بيا ددې نهي څه مطلب؟ نو ددې آسان جواب دا دی چې په هغه وخت کې چې د چا سره چې څومره قرآن موجود ؤ هماغومره قرآن وړل دار

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٧٢٥/٨، رقم الحديث ٤٩٦٠، وأحمد في المسند ٢١٨/٣

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه ١٣٣/٦، رقم الحديث ٢٩٩٠، ومسلم في صحيحه ١٤٩٠/٣ رقم الحديث ٩٢-١٨٦٩، وأبوداود في السنن ٨٢/٣، رقم الحديث ٢٦١٠

الحرب ته منع ؤ او یا دا چې د مستقبل باره کې نبي کریم صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ دا خبره د پیشنګوئي په طور دا حکم وکړو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## غریبو مهاجرینو ته زیرې

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَن أَبِيْ سَعِيْد الْخُدرِيّ قَالَ: جَلَست فِي عِصَابَةٍ مِنْ ضُعَفَاءِ الْمُهَاجِرِينَ |
| ابو سعید رَضِيَاللّٰهُعَنْهُ وايي چې زه (يوه ورځ) د غريبانانو مهاجرينو جماعت په مينځ کې ناست ؤم. هغوی |
| وَ إِنَّ بَعْضَهُمْ لِيَسْتَتِرُ بِبَعْضٍ مِنَ الْعُرْيِ وَ قَارِئٌ يَقْرَأُ عَلَيْنَا إِذْ جَاءَ |
| کې ځینې د لوڅ بدن په وجه د خپلو ملګرو ته پناه ناست ؤو. او يو سړي مخې ته قرآن لوستلو چې ناڅاپه |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَامَ عَلَيْنَا فَلَمَّا قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| نبي کریم صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ راغلو او مونږ سره ودريدو لوستونکي چې کله نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ ولاړ وليدو نو هغه چې |
| سَكَتَ الْقَارِئُ فَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ: مَا كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ؟ قُلْنَا: |
| شو. هغه وخت نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ مونږ ته سلام وکړو او وي فرمايل چې تاسو څه کول؟ مونږ ووېل چې مونږ د |
| كُنَّا نَسْتَمِعُ إِلَى كِتَابِ اللهِ فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي جَعَلَ مِنْ أُمَّتِي |
| الله کتاب اوريدو نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ وفرمايل ټول تعريفونه الله لره دي چې زما په امت کې يې هغه خلک پيدا کړل |
| مَنْ أُمِرْتُ أَنْ أَصْبِرَ نَفْسِي مَعَهُمْ. قَالَ |
| چې د چا باره کې ما ته حکم شوی دی چې د هغوی سره کېنه". راوي وايي چې (دي فرمايلو سره) نبي |
| فَجَلَسَ وَسَطَنَا لِيَعْدِلَ بِنَفْسِهِ فِينَا |
| عَلَيْهِالسَّلَامُ زمونږ مينځ کې کيناستو (يعنې د يو خاص سړي په خوا کې کې نه کيناستو) چې د هغې د ذات |
| ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ هٰكَذَا |
| اقدس زمونږ ټولو سره يو شان دی. بيا نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ خپلې ګوتې سره داسې اشاره وکړه (چې د حلقې په |
| فَتَحَلَّقُوا وَ بَرَزَتْ وُجُوهُهُمْ لَهُ |
| شکل کې کينی.) ټول کسانو حلقه جوړه کړه او کيناستل او د ټولو خلې د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ طرف ته شوې. د |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ : | أَبْشِرُوا | يَا | مَعْشَرَ | صَعَالِيكِ | الْمُهَاجِرِينَ |

هغې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل "ای د مهاجرینو مفلس ډولګیه! تاسو ته دې خوشخبري وي د

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِالنُّورِ | التَّامِّ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | تَدْخُلُونَ | الْجَنَّةَ | قَبْلَ | أَغْنِيَاءِ | النَّاسِ |

دې خبري چې د قیامت په ورځ به تاسو ته پوره رڼا وي او تاسو به داخلیږئ جنت ته د دولتمند ډولګي نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِنِصْفِ | يَوْمٍ | وَ | ذَاكَ | خَمْسِمِائَةِ | سَنَةٍ [1] |

نیمه ورځ مخکې او دا نیمه ورځ د پنځه سوه کالو برابره وي.

**توضیح: یستتر**: یعني چا سره به چې ټوټه لړه وه هغه به د خپل ملګري شاته چپ کیناستلو چې د هغې ستر کولاؤ نه شي. (المرقات: ۴/۶۹۷).

**العري**: د دې مطلب دا دی چې د ستر ځایونو نه بغیر یې په بدن باندې ټوټه نه وه. نو ټول بدن یې لوڅ ؤو. (المرقات: ۴/۶۹۷).

**ان اصبر نفسي معهم**: دې کې د سورت کهف دې آیت ته اشاره ده ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم﴾ الخ.

**لیعدل بنفسه**: یعني نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بالکل په مینځ مساوي کیناستو چې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ تعلق زمونږ ټولو سره مساوي شي.

**قال بیده**: دا د اشاره په معنی کې استعمالیږي. (المرقات: ۴/۶۹۸) **برزت وجوههم له**: یعني دا سې یې حلقه جوړه کړه او کیناستلو چې ټولو ته د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ کولاؤ وي.

**اغنياء الناس**: د دې نه صالح مالداره شاګرد مراد دی. او د فقراؤ نه فقیر صالح شاګرد مراد دی.

**بنصف یوم**: د قیامت نیمه ورځ د پنځه سوه (۵۰۰) کالو برابره ده. د الله ارشاد دی ﴿وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ﴾ (سورت الحج آیت: ۴۷).

د دې حدیث نه معلومه شوه چې د فقراء، صالحینو او صابرینو درجه به د قیامت په ورځ د صالیحنو و شاکرینو مالدارو نه لویه وي. ځکه مالداره به له اوس د حساب په تیریدلو کې وي او فقراء په جنت کې مزي کوي. مالدارو په دنیا کې ښې مزي کړي دي. غریب به و رته کتل.

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۷۲/٤، رقم الحديث ۳٦٦٦، وأحمد في المسند ۳/٦۳

## خپل خوش اوازۍ سره قرآن مزین کړۍ

﴿۱۳﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيِّنُوا الْقُرْآنَ بِأَصْوَاتِكُمْ [1]

براء ابن عازب رضي الله عنه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل قرآن ته په خپل آواز سره زینت ورکړۍ.

**توضیح** : **زینو القرآن**: یعنې خپل ښایسته اوازونو باندې قرآن ښایسته کړۍ. او چې خوږ سره کیدۍ شي آواز ښایسته کړۍ چې د قرآن عظیم عظیم او هیبت جاري وي او په اوریدونکي باندې اثر وشي. دا نه چې مزین قرآن په خپل مکروه اواز کې داسي ولولۍ چې د خلکو د دینه نه نفرت پیدا شي. یو بل حدیث کې دي "ان الصوت الحسن یزید القرآن حسنًا". (المرقات: ۴/۶۹۹)

ځینې علماء وایي چې دلته قرآن خپل مصدري معنی کې دی چې د قرأت په معنی کې دی. یعنې خپل اواز سره قرأت ښایسته کړۍ، معلومه شوه چې قرآن ښایسته لوستل مستحب دی. خو په دې شرط چې د تجوید او ترتیل پوره رعایت په کې وي، سندرې په صورت کې نه وي. بلکي لحون عرب کې بلا تکلف وي. علماؤ لیکلي دي چې کچرې قاري غواړي چې د هغې اواز ښایسته شي نو هغې له په کار ده چې زړه کې د خدای ویره پیدا کړي. دې وجې نه ځینو علماؤ دلته د حدیث دا کلام مقلوب منلی دی. یعنې زینو القرآن باصواتکم اصل کې داسي دی زینو اصواتکم بالقرآن. (المرقات ۴/۶۹۹)

## د قرآن په هیرولو باندې وعید

﴿۱۴﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنِ امْرِئٍ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ ثُمَّ يَنْسَاهُ

سعد بن عباده رضي الله عنه وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وایي کوم کس چې قرآن یاد کړي او بیایې هیر کړي

إِلَّا لَقِيَ اللهَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَجْذَمَ. (۲)

کړي نو هغه به د قیامت په ورځ د الله سره په داسي حال کې ملاویږي چې لاس به یې غوڅ شوی وي.

**توضیح** : **ینساه**: د احنافو په نزد د دې نسیان نه مراد دا دی چې قرآن نه په کتلو هم ونه ویل شو خو د شوافعو په نزد مطلب دا دی چې مخکې هغې ته یادؤ خو اوس یې په یادو نشو لوستلی یا د دې کلام مطلب دا دی چې په دې باندې عمل نه کوي. قرآن که یاد وي او که هیر وي.

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۱۵۵، رقم الحديث: ۱۴۶۸، والنسائي ۲/۱۷۹ رقم الحديث ۱۰۱۵

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۱۵۸، رقم الحديث ۱۴۷۴، وأحمد في المسند ۲۸۴۰۵

## د درې ورځو نه په کمو ورځو کې د قرآن ختمولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : لَمْ يَفْقَهْ مَنْ |
| عبدالله ابن عمر رضي الله عنه راوي دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل په قرآن پوهه نه شو هغه کس چا |
| قَرَأَ الْقُرْآنَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ. (۱) |
| چاچې ولوستو (یعنې ختم یې کړو) قرآن کم د درېو (۳) ورځو نه. |

**توضیح** : **لم یفقه**: یعنې د درې ورځو نه یې کم ورځو کې قرآن ختم کړو نو هغه کس په قرآن پوهه نشو. ځینې سلف د دې حدیث ظاهر ته په کتلو باندې عمل کوي او د درې ورځو نه یې کم کې به قرآن نه ختمولو. بلکې دا به یې مکروه ګڼله. (المرقات ۴/۷۰۱).

علامه طیبي رحمه الله وایي چې کوم د درې ورځو نه کم کې قرآن ختم کړو نو هغه د قرآن په ظاهري معنی' خو پوهه شو خو د قرآن د حقائقو او دقائقو نه محروم شو. ها د حقائقو او د دقائقو نفي خو ده لیکن د ثواب نفي نه ده. ثواب خو په هر صورت کې ملاوېږي. ځینو علماؤ د محاکمي صورت پیدا کړی دی او فرمایي چې کوم خلک ماهر فی القرآن دې دا حکم د هغوی لپاره نه دی بلکې دا حکم د غیر ماهرینو لپاره دی. ځکه ماهرینو کې ځینې خو یوه شپه کې پوره قرآن لولي او ځینې یې یوه شپه او یوه ورځ کې پوره لولي بلکې نن سبا یې هم لولي. (المرقات ۴/۷۰۱).

صحابؤ کې به اکثرو اووه ورځو کې قرآن پوره لوستلو. او دیته به یې "ختم الاحزاب" ویلې. نو قرآن نن هم په اووه منزلو باندې مشتمل دی. یوه منزل به یوه ورځ کې لوستلی کیدلو. دې اووه منزلو ته "**فَمِیْ بِشَوْقٍ**" کې دی. د دې حروفو اولنی حرف د سورت د نوم حرف دی. مثلاً ف نه فاتحه طرف ته اشاره ده. دا اولنی منزل دی. "**م**" نه مائده طرف ته اشاره ده دا دویم منزل دی. "**ی**" نه سورت یونس طرف ته اشاره ده دا دریم منزل دی. "**ب**" نه سورت بنی اسرائیل طرف ته اشاره ده دا څلورم منزل دی "**ش**" نه شعراء طرف ته اشاره ده دا پنځم منزل ده. شپږم منزل د **سورة الصافت** نه دی، نه دا چې د سورت **ص** نه، سورت **ص** کې **والقرآن ذی الذکر** دی او "**ق**" دې کې **والقرآن المجید** نه سورت **قاف** طرف ته اشاره ده چې اوم منزل دی او د **فمی بشوق** اوم حرف دی. (المرقات: ۴/۷۰۱).

---

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱۱۶/۲، رقم الحديث ۱۳۹۴، والترمذي في السنن ۱۸۲/۵ رقم الحديث: ۲۹۴۹

په دې خبره باندې هم پوهيدل په کار دي چې د يو مسلمان په ذمه باندې څومره وخت کې د قرآن پوره لوستل ضروري دي؟ امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ او د اسحاق بن راهويه رَحِمَهُ اللَّهُ مذهب دا دی چې کم نه کم په څلويښتو ورځو کې د پوره قرآن لوستل ضروري دی. دې مسلک باندې څه وزني دليل نشته دی. امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ هم د دې ترديد کړی دی. امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ رجحان دې طرف ته دی چې دې کې هيڅ تحديد نشته دی. فتاوی عالمگيري کې ليکل شوي دي چې حفظ ته په کار ده چې څلويښتو ورځو کې يو ځل پوره قرآن ولولي او دا يې هم ليکلي دي چې کوم کس کال کې يو ځل قرآن ختم کړي نو هغه هاجر للقرآن نه کېلی کېږي. يعنې هغې د قرآن حق ادا کړو گڼې نه يې دی ادا کړی.

## قرآن په اوچت اواز لوستل افضل دې يا په ورو؟

| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْجَاهِرُ بِالْقُرْآنِ |
|---|
| عقبه بن عامر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل اوچت آوازسره قرآن لوستونکی کس |
| كَالْجَاهِرِ بِالصَّدَقَةِ وَ الْمُسِرُّ بِالْقُرْآنِ كَالْمُسِرِّ بِالصَّدَقَةِ.(۱) |
| د ظاهري صدقه ورکونکي په شان دی او په ورو قرآن لوستونکی کس د پټې صدقه ورکونکي په شان دی |

**توضيح: كالجاهر بالصدقة:** پټه باندې صدقه ورکول د ښکاره صدقې ورکولو نه افضل دی. د دې حديث مطلب دا شو چې قرآن په ورور لوستل د جهرًا لوستلو نه افضل دی.

علامه طيبي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د هغې خلاصه دا ده چې ورور قرآن لوستلو فضيلت کې هم حديثونه شته دی او ظاهري جهر لوستلو فضيلت کې هم حديثونه شته دی. لهذا دواړو کې تطبيق داسي دی چې کوم کس ته د رياکارۍ خطره وي نو د هغې لپاره ورور لوستل افضل دې او چاته چې د رياکارۍ خطر نه وي نو هغې جهرًا لوستل افضل دی. خو په دې شرط چې چاته د ضرر رسولو خطره نه وي.

دويمه توجيه دا ده چې اصل او بنيادي توگه باندې جهرًا افضل ده. لکه څنگه چې مخکې ليکل شوي دې خو د عوارضو په وجه ورور لوستل افضل دی. (الكاشف ۴/۳۴۱).

## څوک چې په قرآن عمل نه کوي هغه قرآن ونه منلو

| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ صُهَيْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا آمَنَ بِالْقُرْآنِ |
|---|
| او صهيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "هغه سړي په قرآن ايمان نه دی راوړی |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۸۳/۲، رقم الحديث: ۱۳۳۳، والترمذي في السنن ۱۶۵/۵ رقم الحديث: ۲۹۱۹، والنسائي ۸۰/۵ رقم الحديث: ۲۵۶۱.

مَنِ اسْتَحَلَّ مَحَارِمَهُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ [1]

چې د دې حرام حلال ګڼي.

## د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرأت

﴿١٨﴾ وَ عَنِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مليكة عَنْ يَعْلَى بْنِ مُمَلَّكٍ

ليث ابن سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د ابن ابي مليكه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه نقل كوي او هغه د يعلى ابن مملك رَحِمَهُ اللّٰهُ باره كې روايت

أَنَّهُ سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

كوي چې هغه د ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرأت باره كې پوښتنه وكړه (چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام

فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا. (٢)

به قرآن څنګه ويلو؟) ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرأت به واضحه توګه يو يو حرف بيان كړو

﴿١٩﴾ وَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ

ابن جريج د ابن ابي مليكه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه او هغه د ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه نقل كوي، او وايي چې د رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُقَطِّعُ قِرَاءَتَهُ يَقُولُ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ثُمَّ يَقِفُ ثُمَّ يَقُولُ:

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرأت به جدا جدا ؤ الحمد لله رب العالمين به يې ولوستو او بيا به چپ شو، بيا به يې وويل

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ ثُمَّ يَقِفُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ: لَيْسَ

الرحمن الرحيم ولوستل او چپ به شو. امام ترمذي رَحِمَهُ اللّٰهُ دا روايت نقل كړى او ويلي يې دي چې د دې

إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ لِأَنَّ اللَّيْثَ رَوَى هٰذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ

سند متصل نه دى ځكه دې (اصل) سلسله سند داده. ابن ابي مليكه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نقل كړو د يعلى ابن مملك

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ

مملك رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه او هغه نقل كړو د ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه (لكه څنګه چې د دې نه مخكې د حديث سلسله

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ١٦٥/٥ رقم الحديث :٢٩١٨.

(٢) أخرجه أبوداود في السنن ١٠٤/٢، رقم الحديث : ١٤٦٦ ، والترمذي في السنن ١٦٧/٥ رقم الحديث :٢٩٢٣ ، والنسائي ١٨١/٢ رقم الحديث :١٠٢٢.

| وَ حَدِيثُ اللَّيْثِ أَصح .[1] |
|---|
| سند ده) او د ليث حديث (چې مخکې تير شو) زيات صحيح دی. |

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## قرآن فقط د خوش اوازۍ نوم نه دی

| ﴿۲۰﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ نَقْرَأُ الْقُرْآنَ |
|---|
| جابر رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ) نبي کريم صلی الله عليه وسلم زمونږ خواته راغلو چې مونږ قرآن کريم لوستلو. |
| وَفِينَا الْأَعْرَابِيُّ وَالْأَعْجَمِيُّ فَقَالَ : اِقْرَؤُوا فَكُلٌّ حَسَنٌ |
| مونږ کې بانډچيان او عجم هم ؤ نبي عليه السلام مونږ ته وويل چې لولی! تاسو کې هرڅوک ښه لوستل کوي |
| وَ سَيَجِيءُ أَقْوَامٌ يُقِيمُونَهُ كَمَا |
| (ياد وساتی) يوه داسې ډله پيدا کيدونکي ده چې د هغې خلک به قرآن داسې نيغ کړي لکه څنګه چې |
| يُقَامُ الْقِدْحُ يَتَعَجَّلُونَهُ وَلَا يَتَأَجَّلُونَهُ .[2] |
| غشی نيغول کېږي. او د دې بدله به زر (په دنيا کې) حاصلول غواړي د آخرت لپاره به هيڅ پرې نه ږدي. |

**توضيح : الاعجمي**: عربو مقابله کې غير عرب ته لو ته عجمي ويل کېږي.

**الاعرابي**: اعرابو ته منسوب دی اعراب بانډچيانو ته وايي. د حضرت جابر رضي الله عنه مطلب دا دی چې کوم مجلس کې صحابه کرام رضي الله عنهم ناست ؤ. هلته مونږ سره څه بانډچيان او څه غير عرب ؤ چې د ټولو قواعدو سره يې قرآن نشو لوستلی. خو د دينه باوجود هم نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې تاسو ټول يې لولی. د ټولو قرأت ښه دی. ځکه غرض د آخرت دی. تاسو اګر که قراءت کې خپلې ژبې او خپل آوازونه نه برابر کړي. خو دې کې ستاسو نقصان نشته دی. ستاسو نه وروسته به څه خلک راشي چې د هغې خلک به قرآن داسې نيغ لولي لکه څنګه چې تير نيغول کېږي. د دې تفصيل دا دی، چې خپل آوازونه او قرآني کلمات به د مختلف قرأتونو سره ښه مزين کړي او د مخارج په ادا کولو کې به ښه محنت کوي او ډير تکليف به کوي. خو د هغوی دا سعی به د آخرت لپاره نه وي. بلکې ټوله سعی به د خپل شهرت، د

(۱) أخرجه أبوداود ۲۹٤/٤، رقم الحديث ٤٠٠١ ، والترمذي في السنن ۱۷۰/٥ رقم الحديث :۲۹۱۷ ، وأحمد في المسند ۳۰۲/٦.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵۲۰/۱، رقم الحديث : ۸۳۰ ، وأحمد في المسند ۱۵۵/۳

خپل عزت، فخر و مباهات او د دنيا نه د خودلو او اورولو لپاره وي. نور دا چې سر نه تر پښو پورې به په تكبر او غرور كې پراته وي. دې تولو نقصانونو سره سره به هغوی د خلكو نه اجرت هم وصولوي. نن سبا پاكستان كې لوي لوي خطيبان دې طرف ته راروان دي. افسوس په دې باندې چې علماء ديوبند ته منسوب هم دي او په تقريرونو باندې اجرتونه مقرروي او هغه هم پنځلس زره (١٥٠٠٠) او كه د دې نه كم وي نو لس زره (١٠٠٠٠) گيني اقلاً شپږ زره (٦٠٠٠) د دې نه كم نشته دی. دا سي لفاظي كونكو او د آخرت هيروونكو باره كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي "**يتعجلونه ولا يتأجلونه**" يعني زر زر به د ثواب بدل اخلي خوري به يې او د آخرت د ثواب خيال به نه ساتي ﴿**خَسِرَ الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةَ ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ**﴾.(المرقات ٤/٧٠٦).

**﴿٢١﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اِقْرَؤُوا الْقُرْآنَ بِلُحُونِ الْعَرَبِ**

حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو قرآن كريم د اهل عربو په شان او د

**وَ أَصْوَاتِهَا وَ إِيَّاكُمْ وَ لُحُونَ أَهْلِ الْعِشْقِ وَ لُحُوْنَ أَهْلَ الْكِتَابَيْنِ وَ سَيَجِيْءُ**

هغوی د آوازونو مطابق او تاسو ځان وساتي د اهل عشقو او د اهل كتابو په طريقه لوستلو نه او زر ده چې پيدا

**بَعْدِيْ قَوْمٌ يُرَجِّعُوْنَ بِالْقُرْآنِ تَرْجِيْعَ الْغِنَاءِ وَ النَّوْحِ**

به شي زمانه وروسته يو جماعت چې د دې دلې خلك به د راگ او نوحه پشان اوازونه سره قرآن لولي. د

**لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ**

هغوی به دا حال وي چې د قرآن به يې د تالو نه ښكته نه كوزيږي (يعني د هغوی لوستل به قبول نه وي)

**مَفْتُوْنَةٌ قُلُوْبُهُمْ وَ قُلُوْبُ الَّذِيْنَ يُعْجِبُهُمْ شَأْنُهُمْ** .(١)

د غه شان د هغې قرأت په اوريدلو باندې د خوشحاله كيدونكو زړونه به فتنه كې راگير شي.

**توضيح**: **لحون العرب**: د عربو لهجه او د لوستلو طريقه مراد ده. عرب خلك په غير د څه تكليف او تكلف نه د حدر په انداز كې قرآن لولي خپله ترې نه هم فايده اخلي او نورو ته هم فايده كېږي. د اهل عشق او د اهل كتاب والو طريقه دا ده چې څنگه شاعران غزلې وايي. محفلونه جوړوي، د سرود او د سندرو او موسيقي انداز كې لولي. تاسو هغه شان قرآن مه لولي. د هغوی زړونه په فتنو كې پراته دي.

---

(١) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ٢/٥٤٠ رقم الحديث ...

او دنیا د هغوی په زړه او مازغو باندې مسلط ده. او د هغوی هغه تابع خلک به هم هغوی سره په فتنه کې راګیر وي. چې د دې بې خبره قاریانو قرأت به خوښوي. (المرقات ۴/۷۰۶).

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ حَسِّنُوا الْقُرْآنَ |
| براء بن عازب راوي دی چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي چې فرمایل یې: ښائسته کړئ قرآن |
| بِأَصْوَاتِكُمْ فَإِنَّ الصَّوْتَ الْحَسَنَ يَزِيدُ الْقُرْآنَ حُسْنًا .(۱) |
| په خپلو ښو اوازونو (یعنې ترتیل او خوش اوازی سره ځکه ښه یسه اواز سره د قرآن حسن زیاتیږي. |

## د خدای نه دویریدونکي قاري آواز د ټولو نه ښکلی دی

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ طَاوُسٍ مُرْسَلًا قَالَ : سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| طاؤس رَحِمَهُ الله د ارسال په طریقې نقل کوي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه تپوس وشو چې د قرآن لوستلو |
| أَيُّ النَّاسِ أَحْسَنُ صَوْتًا لِلْقُرْآنِ ؟ وَ أَحْسَنُ قِرَاءَةً ؟ |
| په سلسله کې په اوازونو کې د ټولو نه کوم یو اواز بهتر دی او په لوستلو کې هم (یعنې په ترتیل او |
| قَالَ : مَنْ إِذَا سَمِعْتَهُ يَقْرَأُ أَرَأَيْتَ |
| الفاظو ادا کولو کې کوم کس د ټولو نه بهتر دی؟) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل هغه کس چې اورئ یې تاسو |
| أَنَّهُ يَخْشَى اللهَ . قَالَ طَاوُسٌ : وَ كَانَ طَلْقٌ كَذَلِكَ .(۲) |
| په لوستلو کې، ستاسو ګمان وي چې د اد الله نه ویریږي طاؤس رَحِمَهُ الله وایي چې طلق کې همدغه خبره وه |
| (چې د قرآن لوستل خو محسوسیدل خو خشیت الهی هغوی باندې غالب ده). |

**توضیح**: مطلب دا دی چې یو کس قرآن لولي او د هغې په لوستلو باندې ستاسو زړه باندې اثر کېږي یا د هغې کیفیت داسې وي چې د هغې نه معلومیږي چې د خدای ویره پرې سوره ده. نو پوهه شئ چې د ټولو نه ښه اواز د همدغې دی. د دینه معلومه شوه چې که څوک خپل اواز د تلاوت لپاره ښه کول غواړي نو هغه ته په کار ده چې خپل زړه کې د الله ویره پیدا کړي. طاؤس رَحِمَهُ الله وایي چې د شیخ طلق همدغه کیفیت ؤو. صاحب مشکوة دا صحابي لیکلی دی. والله اعلم. (المرقات ۴/۷۰۷).

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۵۱۵ رقم الحديث ۳۵۰۱

(۲) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۵۶۳ رقم الحديث ۳۱۸۹

## د درسونو او مدرسو په ذریعه قرآن عام کړئ

﴿۲٤﴾ وَعَنْ عُبَيْدَةَ الْمُلَيْكِيِّ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

ابو عبیده ملیکی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو صحابي و راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل

يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ لَا تَتَوَسَّدُوا الْقُرْآنَ وَاتْلُوهُ حَقَّ تِلَاوَتِهِ مِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ

ای اهل قرآن! د قرآن نه بالخ مه جوړوئ او شپه او ورځي يې لولئ لکه څنګه چې د هغې د لوستلو حق دی

وَأَفْشُوهُ وَتَغَنَّوْهُ وَتَدَبَّرُوا مَا فِيهِ

قران ظاهره کړئ دا خپل خوش اوازی سره لولئ. څه چې دې کې ذکر دې هغې کې غور او فکر کوئ چې

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ وَلَا تَعْجَلُوا ثَوَابَهُ

ستاسو طلب (آخرت) حاصل شي او د دې ثواب حاصلولو کې تلوار مه کوئ (یعنې په دنیا کې د دې د

فَإِنَّ لَهُ ثَوَابًا. (1)

اجر حاصلولو کوشش مه کوئ) ځکه آخرت کې د دې ډیر ثواب دی.

**توضیح**: لاتتوسدوا: ای د قرآن لوستونکو! قرآن نه بالخت مه جوړوئ چې دې باندې سر کیږدئ او اوده شي یا آرام کول پري شروع کړئ. (المرقات ۴/۷۰۸).

علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ لیکي چې قرآن باندې ډډه لګول، ئینا ستل یا خملاستل، د دې اړخ ته ښپي کول، دې باندې یو شی کیخودل، د دې طرف ته شاه کول، دا د ښپو لاندې کول او په زمکه غورځول دا ټول شیان حرام دي.

نن سبا عام عرب د قرآن په احترام کې کوتاهي کوي. حال دا چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تورات د نسخي احترام کړی دی.

د ابوداؤد جلد دویم کتاب الحدود باب رجم الیهودین ص **۲۵۵** باندې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کې دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تورات په زمکه کې کیخودلو بلکې د لاندې نه یې بالښت را اوچت کړو او هغې باندې یې تورات کیخودو. د حدیث عربي متن دا سې دی: **ثم قال ائتوني بالتوراة فاتي بها**

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۷۳/۵، رقم الحديث ۲۳۱۹، ومسلم في صحيحه ۵۶۰/۱ رقم الحديث :۲۷۰-۸۱۸، وأبوداود في السنن ۱۵۷/۲، رقم الحديث: ۱۴۷۵، والترمذي في السنن ۱۷۷/۵ رقم الحديث:۲۹۴۳.

**فنزع الوسادة من تحته و وضع التوراة عليها . وفي رواية ووضع الوسادة تعضيماً لكتاب الله وقال آمنت بك و بمن انزلك. ص ۲۵۵.**

**حق تلاوته:** يعنې څنګه چې د دې د تلاوت حق دی د قرآن د تلاوت حق دا دی چې د دې د حروفو تصحيح وکړی شي، په دمه دمه ولوستل شي، الفاظو سره سره دې په معاني او تفسير باندې هم ځان پوهه کړی. (المرقات : ۷۰۸/۴).

**وافشوه:** يعنې د درس او تدريس په ذريعې دا عام کړی. د دينه معلومه شوه چې د قرآن کريم عام کول د علماؤ او د مدرسو کار دی. "**وافشوه**" د افشا نه د عام کولو په معنی کې دی. شارحينو ليکلي دي چې د درس او تدريس او تعليم او تعلم به ذريعې سره د قرآن عام کول مراد دي.
ظاهره ده چې دا کار د قرآن عظيم مکاتبو يا مدرسو يا د جيد علماؤ په وعظونو او مجلسونو کې کيدلی شي. لهذا مسلمانانو باندې لازم دي چې هغه د قرآن کريم مکاتب او د هغې درسونه عام کړي. د ناظري، ترجمي او حفظ او تجويد انتظام وکړي.
تبليغ والو باندې فرض دي چې په دې باندې د پوهيدلو او پوهه کولو، او اوريدلو او اورولو اهتمام وکړي او د قرآن اشاعت او د درسونو لارو کې څه مشکل جوړ نه شي ګيني تباه به شي. (المرقات ۷۰۹/۴).



# باب اختلاف القراءات وجمع القرآن

**وقال الله تعالىٰ: ﴿فَاقْرَؤُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾.** (سورة مزمل آيت:۲۰).

مشکوة د عامو نسخو په شان دلته هم فقط باب ليکل شوی دی. چې دې طرف ته اشاره ده چې دا باب هم د ابواب القرآن د متعلقاتو نه دی. خو ځينو نسخو کې او عامو شرحو کې پاس ذکر شوی عنوان ايخودل شوی دی. د همدې متعلق به دې باب کې حديثونه راځي چې قرآن عظيم يو ځای څنګه را جمع شو او څوک د دې سبب جوړ شو نو د دې ټولې قصې پس منظر باره کې دی چې دا ټول کار د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په کوششونو باندې شوی دی. عهد خلافت د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ؤ و. بيا دور عثمان رضي الله عنه کې د قرأت د اختلافاتو جګړې پيدا شوې نو ځکه د حضرت حذيفه [illegible] کوششونو سره حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه يوه کميټي جوړه کړه او قرآن عظيم يې فقط په لغت قريش باندې را جمع کړو ځکه قرآن ابتداء کې همدې لغت باندې را نازل شوی ؤ نو دا د قرآن په الفاظو کې تغير او تبدل نه دی بلکې ابتداء کې چې د کوم وسعت لغات رخصت او اجازت ؤ هغه رخصت يې ختم کړو او امت يې په اصل لغت باندې راغونډ کړو او دا ډيره لويه کارنامه وه. (المرقات ۴/۷۳۱).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## قرآن کريم په اوو لغاتو باندې نازل شوی دی

﴿۱﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ

عمر بن الخطاب رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ کله) ما د هشام بن حکيم بن حزام رضي الله عنه نه واوريدل چې دا

يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَؤُهَا. وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سورت فرقان د هغه طريقې خلاف وايي په کومه طريقه چې ما ويلو او په کومه طريقه چې ما د نبي عليه السلام

أَقْرَأَنِيهَا فَكِدْتُ أَنْ أَعْجَلَ عَلَيْهِ ثُمَّ

نه لوستلی ؤ چې زه په ده ور چټه شم (يعنې د قرآن ختمولو نه مخکې زه د هغې سره جنګ وکړم) خو بيا

أَمْهَلْتُهُ حَتَّى انْصَرَفَ ثُمَّ لَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ

ما هغه ته مهلت ورکړو چې دلوستلو نه فارغ شي او بيا د هغې نه وروسته مې د هغه په مرۍ کې څادر واچولو

فَجِئْتُ بِهِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ

او په راښکلو مې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې [illegible]

| |
|---|
| إِنِّي سَمِعْتُ هٰذَا يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَأْتَنِيهَا. |
| واوریدل چې دا قرآن د هغه طریقې خلاف لولي په کومه طریقه چې تاسې ما ته لوستلی دی نو وفرمایل |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَرْسِلْهُ اِقْرَأْ " |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام: عمره! دا پرېږده. بيا يې هشام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې ته يې لوله نو هشام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هم‍غه |
| فَقَرَأَتِ الْقِرَاءَةَ الَّتِي سَمِعْتُهُ يَقْرَأُ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| طریقه ولوستلو په کومه طریقه چې ما دده نه اوریدلی ؤ. نبي عَلَيْهِ السَّلَام دده (قرأت اورید وسره) وفرمایل |
| هٰكَذَا أُنْزِلَتْ . ثُمَّ قَالَ لِيْ : اِقْرَأْ . فَقَرَأْتُ . |
| چې دا سورت همدغه شان رانازل شوی دی. بيا يې ما ته وفرمایل چې او س يې ته ولوله، نو ما ولوستلو |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : هٰكَذَا أُنْزِلَتْ |
| نو (نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما قرأت اورید وسره هم) وفرمایل چې دا سورت همدغه شان رانازل شوی دی |
| إِنَّ الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ .[1] |
| یادساتئ دا قرآن په اوه طریقو سره رانازل شوی دی لهذا دې کې چې په کومه طریقه کېدی شي وي لولئ. |

**توضیح** : عهد نبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت هشام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د نورو صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُم په مینځ کې د قرأت اختلاف او د لغاتو د اختلاف په وجه یو زبردسته جهګړه پیدا شو. دې حدیث کې همدغه قصه ده. (المرقات ۴/۷۰۹).

**ان اعجل علیه:** یعني ماله ډېره غصه راغله چې نزدې وه چې مونځ مې پریخی وی او په هغې مې حمله کړې وی خو ما د صبر نه کار واخستلو. لببته: یعني د مونځ نه چې فارغ شوم نو د هغې په څټ کې مې څادر واچولو او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مې په راښکلو راوستلو.

**ارسله:** یعني دا چې په څادر راښکلی راوستلو دا پرېږده. (المرقات ۴/۷۱۰).

**علی سبعة احرف:** د حدیث دې برخه باندې پوهېدل ډېر ګران دي. حتی چې ځینو علماؤ دا په متشابهاتو کې شمارلی دی. د عام علماؤ دې جملې پوهېدو باندې ۴۰ اقوال دي. (المرقات ۴/۷۱۰).

د ټولو نه آسانه توجیه د حضرت شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ ده. هغه وایي چې احرف د حرف جمعه ده او د حرف

---

(۱) أخرجه البخاري ۱۲۲/۳، رقم الحديث ۲۴۱۹.

اطلاق په لغت باندې کېږي. د حدیث مطلب دا شو چې قرآن په اوو لغاتو باندې را نازل شوی دی. قرآن نزول د قریش په لغت باندې شوی ؤو. خو د قریش نه بغیر شپږ مشهور ژبې دي. د ټولو لغات او قبائلو نومونه دا دي :۱: لغت قریش ۲: لغت بنو طی ۳: لغت بنو تمیم ۴: لغت هوازن ۵: لغت اهل یمن ۶: لغت ثقیف ۷: لغت هذیل. دې اوو لغاتو باندې قرآن لوستل جائز کېلی شوي ؤو. د دې مطلب دا نه دی چې هر لغات کې اووه لغات جاري ؤو. بلکې په ټولو قبائلو کې چې اختلافي لغات ؤ. هغه په مجموعي اعتبار سره تر اووه پورې رسیدلي ؤو. دغه شان دا د حلال او حرام اختلاف نه ؤو. د دې حدیث ټول تفصیل په توضیحات جلد اول ۲۴۰ باندې دی هلته یې وګورئ.

﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَجُلًا قَرَأَ وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ما یو کس نه د قرآن لوستل واورېدل او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مې واورېد

يَقْرَأُ خِلَافَهَا فَجِئْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ

چې دده قرأت د هغه کس نه مختلف ؤ نو ما هغه کس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راوستو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته مې قصه بیا

فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ

کړه بیا ما محسوسه کړه چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په مخ مبارک باندې د ناخوښی آثار ښکاري بهر حال نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَقَالَ : كِلَا كُمَا مُحْسِنٌ فَلَا تَخْتَلِفُوا

وفرمایل تاسو دواړه یې ښه او صحیح لولئ (ګورئ) خپلو کې اختلاف مه کوئ هغه خلک چې ستاسو

فَإِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ اخْتَلَفُوا فَهَلَكُوا. (۱)

مخکې تیر شوي دي، خپل مینځ کې د اختلاف په وجه هلاک شول (یعنې هغوی به خپل مینځ کې یو بل ته د دروغو نسبت کولو).

﴿۳﴾ وَ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ : كُنْتُ فِي الْمَسْجِدِ فَدَخَلَ رَجُلٌ يُصَلِّ

ابي ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې (یوه ورځ) زه جومات کې ؤم چې یو سړی هلته راغلو او مونځ یې شروع

فَقَرَأَ قِرَاءَةً

کړو هغې په مونځ کې یا د مونځ نه وروسته داسې قرأت ولوستو (یعنې داسې لهجه کې یې قرآن ولوستو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۷۰/۵، رقم الحديث: ۲۴۳۰، وأحمد في المسند ۱۲۰۱/۱.

أَنْكَرْتُهَا عَلَيْهِ ثُمَّ دَخَلَ آخَرُ فَقَرَأَ قِرَاءَةً سِوَى قِرَاءَةِ صَاحِبِهِ

چې ما هغه صحيح و نه ګڼلو بيا يو بل کس راننوتو او هغه د اولني سړي نه په بدله طريقه باندې قرآن ولوستو

فَلَمَّا قَضَيْنَا الصَّلَاةَ دَخَلْنَا جَمِيعًا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

مونږ چې کله د مونځ نه فارغه شو نو مونږ حاضر شو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته (جو مات کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ ځای يا

فَقُلْتُ إِنَّ هٰذَا قَرَأَ قِرَاءَةً أَنْكَرْتُهَا عَلَيْهِ

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په حجره مبارک کې) ما ووئيل چې حضرت دې سړي داسې قرأت وکړو چې ما صحيح و نه ګڼلو

وَ دَخَلَ آخر فَقَرَأَ سِوَى قِرَاءَة صَاحِبِه

د هغې نه وروسته يو بل سړی راغلو. هغې د اولني سړي نه خلاف طريقه باندې قرأت وکړو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَأَمَرَهُمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَرَآ

دې اوريدو سره دواړه د خپلې مخې ته د قرآن لوستلو حکم وکړو هغې دواړو ولوستلو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د

فَحَسَّنَ شَأْنَهُمَا فَسَقَطَ فِي نَفْسِي مِنَ التَّكْذِيبِ

دواړو د قرأت صفت او تائيد وکړو دې ليدو سره زما په زړه کې د تکذيب وسوسه پيدا شوه داسې وسوسه

وَلَا إِذْ كُنْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَلَمَّا رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَا قَدْ غَشِيَنِي

او شک چې د جاهليت په ورځ کې هم نه وه پيدا شوي. کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زما دا کيفيت وليدو چې په

ضَرَبَ فِي صَدْرِي.

ما راغلی ؤ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل لاس مبارک زما په سينه باندې ووهلو (چې د هغې په برکت سره هغه

فَفِضْتُ عَرَقًا وَ كَأَنَّمَا أَنْظُرُ إِلَى اللهِ عَزَّ وَ جَلَّ فَرَقًا

وسوسه ختمه شي) نو زه خوله خوله شوم او د ويرې په وجه زما داسې حالت شو چې ګويا زه خدای وينم. د

فَقَالَ لِي : يَا أُبَيُّ

هغې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته وفرمايل چې ابي! کله چې قرآن نازل شو نو د جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ په

أُرْسِلَ إِلَيَّ أَنِ اقْرَأِ الْقُرْآنَ عَلَى حَرْفٍ

ذريعه ماته دا حکم راولېږلی شو چې زه په يوه طريقه (يعنې يو قرأت يا په يو لغت باندې) قرآن ولولم.

| |
|---|
| فَرَدَدْتُ إِلَيْهِ أَنْ هَوِّنْ عَلَى أُمَّتِي |
| ما الله ته درخواست وکړو چې زما امت باندې آساني کړي (دي وخت کې په يو قرأت باندې قرآن لوستل |
| فَرَدَّ إِلَيَّ الثَّانِيَةَ |
| مشکل دي. ځکه په ډيرو طريقو باندې د قرآن لوستلو اجازت راکړه چې اساني وي) نو په دويم ځل ماته |
| اقْرَأْهُ عَلَى حَرْفَيْنِ فَرَدَدْتُ إِلَيْهِ أَنْ هَوِّنْ عَلَى أُمَّتِي |
| حکم راکړی شو چې زه په قرأتو باندې قرآن ولولم. ما بيا خواست وکړو چې زما امت ته نوره هم اساني |
| فَرَدَّ إِلَيَّ الثَّالِثَةِ اقْرَأْهُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ |
| کړي. نو په دريم ځل ماته حکم راکړی شو چې زه قرآن په اووه طريقو باندې لولم او دا يې راته وفرمايل |
| وَ لَكَ بِكُلِّ رَدَّةٍ رَدَدْتُكَهَا مَسْأَلَةٌ تَسْأَلُنِيهَا |
| چې څو ځل مونږ تاته حکم کړی دی. هغو مره ځل ته زمونږ نه دعا وغواړه مونږ به هغه قبوله کړو. نو ما د |
| فَقُلْتُ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأُمَّتِي اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأُمَّتِي |
| الله په درکې دوه ځل دعا وکړه "ای الله! زما د امت کبيره ګناه کونکي وبخښي، ای الله! زما امت کې |
| وَ أَخَّرْتُ الثَّالِثَةَ لِيَوْمٍ يَرْغَبُ إِلَيَّ الْخَلْقُ |
| واړه ګناه کونکي وبخښي. او دريمه دعا ما ځکه پريخودله چې په کومه ورځ مخلوق زما نه د سفارش او |
| كُلُّهُمْ حَتَّى إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ. (۱) |
| شفاعت خواهش کوي تردې حضرت ابراهيم عليه السلام به هم زما نه د شفاعت خواهش کې. |

**توضيح : فسقط**: زما زړه کې د تکذيب داسي وسوسه پيدا شوه چې دور جاهليت کې هم زما زړه کې نه وه پيدا شوي. چې آيا دا دين ريښتيا دی يا نه.

**قد غشيني**: يعنې کوم حالت چې زما ؤو.

**ففضت عرقا**: يعنې زه خوله خوله شوم دا د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د طرف نه د توجه په وجه اثر ؤو. (المرقات ۴/۷۱۶).

**بكل ردة:** يعني څو ځله چې سوال راغلى دى او مونږ جواب دركړى دى. هري مراجعي باندې به يو سوال قبلېږي. نبي كريم ﷺ دوه سوالا خو د امت د مغفرت لپاره وغوښتل. او دريم يې د قيامت ورځي لپاره پريخودلو. چرته چې به نبي كريم ﷺ د ټولو انسانانو د حساب او كتاب د شروع كولو شفاعت كوي. چې شفاعت كبرىٰ ورته وايي. (المرقات ۴/۷۱۷).

## د اوو لغاتو د اجازت تعلق د حلال او حرام سره نه دى

﴿٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: أَقْرَأَنِي

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل قران ولوستو ماته جبرائيل عليه السلام په يو

جِبْرِيْلُ عَلٰى حَرْفٍ فَرَاجَعْتُهُ فَلَمْ أَزَلْ أَسْتَزِيْدُهُ

قرأت باندې بيا ما د خپل امت د اسانۍ لپاره خداى ته رجوع وكړه او اسانۍ مې مسلسل ډيره طلب كوله

وَ يَزِيْدُنِيْ حَتّٰى انْتَهٰى إِلٰى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ

چې د هغې په نتيجه كې زه ماته ډيره اسانۍ راكړى شوه تردې چې د اوه قراتونو پوري خبره ورسيده او دا

قَالَ ابْنُ شِهَابٍ :

آخري فيصله راكړى شوه چې قرآن په اوه لغاتو كې لوستل كيدى شي ابن شهاب رحمه الله (تابعي) وايي

بَلَغَنِيْ أَنَّ تِلْكَ السَّبْعَةَ الْأَحْرُفَ إِنَّمَا هِيَ فِي الْأَمْرِ

چې ماته دا خبره د تحقيق په توګه را رسيدلې چې د قرأت دا اوه طريقي ديني احكامو او امورو كې متفق او

تَكُوْنُ وَاحِدًا لَا تَخْتَلِفُ فِيْ حَلَالٍ وَلَا حَرَامٍ .[1]

متحد دي. حلال او حرام كې د هيڅ يو اختلاف واقع نه دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

﴿٥﴾ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : لَقِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيلَ

ابي ابن كعب رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ جبرائيل عليه السلام سره ملاقات وكړو او هغه ته يې

فَقَالَ: "يَا جِبْرِيلُ إِنِّي بُعِثْتُ إِلَى أُمَّةٍ أُمِّيِّينَ مِنْهُمُ الْعَجُوزُ وَالشَّيْخُ الْكَبِيرُ وَالْغُلَامُ وَالْجَارِيَةُ

وويل چې يوناخوانده قوم ته لیږل شوی یم زما قوم کې بوډۍ ښځې او بوډا اګان سړي دي، هلکان او جینکۍ

وَ الرَّجُلُ الَّذِي لَمْ يَقْرَأْ كِتَابًا قَطُّ قَالَ :

دي او دې قوم کې داسې کس هم شته چې هغې هیڅ یو کتاب نه دی لوستلی جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وويل

يَا مُحَمَّدُ إِنَّ الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ ".

چې ای محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! قرآن کریم په اوه طریقورانازل شوی دی لهذا چاته چې کومه طریقه آسانه وي

وَ فِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ وَ أَبِي دَاوُدَ :

د هغې مطابق دې قرآن ولولي. او د احمد او ابو داؤد په روایت کې دي چې " جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ (د (لفظ

قَالَ : لَيْسَ مِنْهَا إِلَّا شَافٍ

احرف په آخر کې) دا هم وویل چې "دې اوؤ (۷) کې هره یو قرأت شافي دی. (یعنې د کفر و شرک او د

كَافٍ.

ظلم او جهل اثر به ختم کړي) او کافي ده (یعنې د نبي صداقت، د دين اسلام حفاظت او د منکرین دین د

وَ فِي رِوَايَةٍ لِلنَّسَائِيِّ قَالَ : " إِنَّ جِبْرِيلَ وَ مِيكَائِيلَ

ردلپاره کافي دی) دنسائي روایت کې دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ او میکائیل

أَتَيَانِي فَقَعَدَ جِبْرِيلُ عَنْ يَمِينِي وَ مِيكَائِيلُ عَنْ يَسَارِي

عَلَيْهِ السَّلَامُ زما خواته راغلل جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ زما ښی طرف ته او میکائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ زما چپ طرف ته کیناستل.

فَقَالَ جِبْرِيلُ : اقْرَأِ الْقُرْآنَ عَلَى حَرْفٍ قَالَ مِيكَائِيلُ :

ددې نه وروسته جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ وویل چې دیو قرأت مطابق قرآن ولوله دې او رید وسره وویل میکائیل

اسْتَزِدْهُ

عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته چې دیو قرأت نه یې دیر وغواړه (یعنې الله ته خواست وکړه چې دنورو قرأتونو مطابق هم د

قرآن لوستلو حکم وکړي یا جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وواېه چې د دې باره کې الله ته عرض وکړي او آساني

حَتَّى بَلَغَ سَبْعَةَ أَحْرُفٍ

راولي. نو ما دیره وله او د دیرو قرأتونو اجازت راکړی شو) تر دې چې اووه قرأتونو ته خبره ورسیدله.

| فَكُلٌّ حَرْفٍ شَافٍ كَافٍ ".(۱) |
| --- |
| لهذا دې هر يو قرأت شافي او کافي دی. |

## قرآن عظيم د خيرات غوښتلو ذريعه مه جوړوی

| ﴿۶﴾ وَ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ مَرَّ عَلَى قَاصٍّ |
| --- |
| د عمران بن حصين رضي الله عنه باره کې روايت شوی دی چې هغه يو ځلي د قصه ويونکي په خوا تير شو |
| يَقْرَأُ ثُمَّ يَسْأَلُ . |
| چې قرآن يې لوستوا و د خلکو نه يې خير غوښتلو . عمران رضي الله عنه دې اوريدو سره ډير په تکليف باندې |
| فَاسْتَرْجَعَ ثُمَّ قَالَ : سَمِعْتُ |
| وويل انا لله وانا اليه راجعون (ځکه دا بدعت او د قيامت د علاماتو نه دی) او بيايې وويل چې ما اوريدلي |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فَلْيَسْأَلِ اللهَ بِهِ |
| د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه چې څوک قرآن ولولي نو هغه ته په کار ده چې د هغه په ذريعه د الله نه وغواړي |
| فَإِنَّهُ سَيَجِيءُ أَقْوَامٌ يَقْرَؤُوْنَ الْقُرْآنَ يَسْأَلُونَ بِهِ النَّاسَ.(۲) |
| او هغه وخت راتلونکی دی چې خلک به قرآن لولي او د هغې په ذريعي به د نورو نه سوال کوي. |

**توضيح : فليسئل الله:** يعني قرآن عظيم د الله عظيم الشان کتاب دی. د دې لوستلو او د برکتونو حاصولو نه وروسته د دې د عظمت تقاضا دا ده چې د الله نه وغوښتلی شي ځکه د تلاوت نه وروسته سوال قبليږي. (المرقات ۴/۷۲۱).

**يسألون به الناس:** يعني دومره لوی کتاب او دومره عظيم کلام د سپکي او ذليلي دنيا د حصول ذريعه مه جوړوی . که دنيا غواړې هم نو د الله نه وغواړه . دا خپل د انساني عظمت او د شرافت خلاف ده چې يو انسان د خپل ځان په شان محتاج انسان مخي ته سوال وکړي. هغه خپله محتاجه دی نو تا ته به څه درکړي. (المرقات ۴/۷۲۱).

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۱۶۰، رقم الحديث : ۱۴۷۷ ، والترمذي في السنن ۵/۱۷۸ رقم الحديث : ۲۹۴۴ ، والنسائي ۲/۱۵۴ رقم الحديث : ۹۴۱.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۶۴ رقم الحديث : ۲۹۱۷.

دتلاوت په وخت كې د الله نه د غوښتلو بهترينه طريقه دا ده چې كله سړى د رحمت آيت ته راورسيږي نو د جنت سوال دې وكړي او كله چې د عذاب آيت ته راورسيږي نو د دوزخ نه د بچ كيدو سوال دې وكړي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ |
| بريده رضي الله عنه راوي دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې كوم كس چې قرآن د دې لپاره لولي چې |
| يَتَأَكَّلُ بِهِ النَّاسَ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| د هغې په ذريعې يې د خلكو نه وګټي (يعني قرآن كريم د دنيوي فايدې لپاره وسيله كړي) نو هغه به د |
| وَ وَجْهُهُ عَظْمٌ لَيْسَ عَلَيْهِ لَحْمٌ.(۱) |
| قيامت په ورځ داسې حال كې راپاسيږي چې په مخ به يې صرف هډوكي وي او غوښه به پرې نه وي. |

## بسم الله د قرآن يو آيت دى چې د فصل لپاره راغلى دى

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَعْرِفُ فَصْلَ السُّورَةِ حَتَّى |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به د يو سورت نه بل سورت كې فرق نه شو كولې تر دې |
| يَنْزِلَ عَلَيْهِ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيْمِ.(۲) |
| چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم باندې بسم الله الرحمن الرحيم را نازله شوه. |

## د قرآن تكذيب شرابي خلك كوي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ: كُنَّا بِحِمْصَ فَقَرَأَ ابْنُ مَسْعُودٍ |
| علقمه رضي الله عنه وايي چې مونږ حمص كې (چې د يو ښار نوم دى) مقيم ؤ هلته يو ځل قرأت وكړو ابن مسعود |
| سُورَةَ يُوسُفَ فَقَالَ رَجُلٌ: مَا هٰكَذَا أُنْزِلَتْ. |
| رضي الله عنه د سورت يوسف. نو يو كس دده قرأت په اوريدو سره وويل چې دا سورت داسې نه دى نازل شوى |

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/ ۵۳۲ رقم الحديث: ۲۶۲۵.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱/ ۴۹۹، رقم الحديث: ۷۸۸.

| |
|---|
| فَقَالَ عَبْدُ اللهِ: وَاللهِ لَقَرَأْتُهَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې په الله قسم! دا سورت ما همدغه شان د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې ويلې دی |
| فَقَالَ: أَحْسَنْتَ فَبَيْنَا هُوَ يُكَلِّمُهُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې تا ډير ښه ولوستلو. هغه کس چې د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره خبري کولې نو |
| إِذْ وَجَدَ مِنْهُ رِيحَ الْخَمْرِ فَقَالَ: |
| ناڅاپه ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې خلې نه د شرابو بوې محسوس کړو. ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل |
| أَتَشْرَبُ الْخَمْرَ وَتُكَذِّبُ بِالْكِتَابِ؟ فَضَرَبَهُ الْحَدَّ.[1] |
| آيا ته شراب څکې؟ او دغه شان ته د قرآن تکذيب هم کوې. بيا ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرې حد جاري کړو |
| (يعنې د شراب څکلو د سزا په طوريې هغه په کوړه ووهلو). |

**توضيح: سوال:** د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قرأت به د دوه حالتونو نه وې خالي. يا به دا قرأت مشهور وي نو دې باندې دا اعتراض دی چې کله هغه کس د قرآن په مشهور قرأت باندې اعتراض وکړو نو هغې سره هغه کافر شو هغه واجب القتل ؤو. ځکه د ارتداد سزا قتل ده او که د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قرأت شاذه ؤو. نو دې انکار باندې د هغه کس طرف ته د کتاب الله د تکذيب نسبت کول په کار نه دی. حال دا چې د هغه طرف ته همدغه نسبت شوی دی؟(المرقات ۴/۷۲۳، الکاشف ۴/۳۵۷).

**جواب:** ددې سوال جواب دا دی چې هغه سړي د قرأت مشهوره انکار نه ؤ کړی بلکې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کيدلی شي چې د يو شاذ قرأت تلاوت يې کړی ؤ د هغه په لهجه او د کلماتو ادا کولو باندې دغه کس اعتراض کړی ؤ. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تغليظا او تشديداً د هغه نسبت تکذيب د کتاب الله ته وکړو. همدغه جواب علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ کړی دی او همدغه ډير راجح دی. که دا وويلی شي چې هغه کس اګر که قرأت مشهوره باندې اعتراض کړی ؤ و خو د خپل جهالت او لاعلمی په وجه يې کړی ؤ يا يې د څه اشتباه په بنياد باندې کړی ؤ چې د هغې په وجه د تعزيز په توګه يې باندې د درې وهلو سزه مقرره شوه او د ارتداد سزا ورنه کړی شوه. دا جواب د ظاهري حديث سره ډير موافق دی اګر که هيڅ يوه شرح کې نه دی کتلی. بهرحال دې حديث سره د نن سبا د منافق حکمرانانو نقشه مخې ته راځي چې شراب وڅکې او د اسلام په حکم باندې اعتراض کوي. (المرقات ۴/۷۲۲، الکاشف ۴/۳۵۷).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۴۷، رقم الحديث: ۵۰۰۱، ومسلم في صحيحه ۱/۵۵۱ رقم الحديث ۲۴۹-۸۰۱.

خدا کو کیا منہ دکھاؤ گے ظالم ❁ شرم تم کو مگر آتی نہیں

د دې حديث نه دا خبره هم معلومه شوه چې د خلې نه د شرابو بدبوې د حد خمر سبب دی. د علماؤ يوه ډله دې طرف ته تلې ده. ائمه احنافو او د شوافعو په نزد فقط د خلې د بوې ثبوت لپاره کافي نه دی. ځکه ځينې شيان داسې هم دي چې شراب نه دي خو د هغې خوړلو نه وروسته د خلې نه د شرابو بد بوې راځي لکه کيلا او داسې نور شيان. د دې حديث جواب د دې حضراتو د طرف نه دا کيدی شي چې امکان لري چې هغه کس د جرم اعتراف کړې وي. دا هم امکان لري چې د خلې د بوېې نه بغير نور علامات هم موجود ؤو. چې موجب حد خمر ؤو. (المرقات ۴/۷۲۴).

## د قرآن د جمعه کولو ابتداء څنګه وشوه

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: أَرْسَلَ إِلَيَّ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَقْتَلَ أَهْلِ الْيَمَامَةِ.

زيدبن حارث رضي الله عنه وايي را وليږلو ماپسې يو کس ابوبکر صديق رضي الله عنه د قتل يمامه په ورځو کې چې

فَإِذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عِنْدَهُ.

زه هغې ته حاضر شوم هلته رسيد وسره څه وينم چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه سره عمر فاروق رضي الله عنه ناست

قَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّ عُمَرَ أَتَانِي فَقَالَ إِنَّ الْقَتْلَ

دی. ابوبکر صديق رضي الله عنه ماته وويل چې عمر رضي الله عنه ماته راغلی او وايي چې د قرآن د قاريانو د شهادت

قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِقُرَّاءِ الْقُرْآنِ وَ إِنِّي أَخْشَى

حادثه د يمامې په ورځ توده شوه (يعنې د يمامې په جنګ کې ډير قاريان شهيدان شوي) ماسره ويره ده

أَنِ اسْتَحَرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ بِالْمَوَاطِنِ فَيَذْهَبُ كَثِيرٌ مِنَ الْقُرْآنِ

چې که په دغه کثرت سره په مختلفو جنګونو کې قاريان شهيدن کېږي. نو د قرآن لويه برخه روانه وي.

وَ إِنِّي أَرَى أَنْ تَأْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْآنِ

لهذا ماته بهتره او مصلحت ښکاري چې ته د قرآن د را جمعه کولو حکم وکړې (ابوبکر صديق رضي الله عنه

قُلْتُ لِعُمَرَ كَيْفَ تَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ

وويل چې) ما دې اوريد وسره وويل عمر رضي الله عنه ته وويل چې ته به هغه کار څنګه کوې چې کوم نه دی کړې

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ؟ فَقَالَ عُمَرُ هَذَا وَاللهِ خَيْرٌ

رسول الله صلی الله علیه وسلم. عمر رضي الله عنه وويل چې په خدای قسم! دې کار کې خير او بهتري ده. عمر رضي الله عنه

فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِيْ فِيْهِ حَتّٰى شَرَحَ اللهُ

دې مسئله کې مسلسل ماسره خبري وکړي تردې چې هغه دې کار (قرآن راجمع کولو) لپاره پرانیسته الله

صَدْرِيْ لِذٰلِكَ وَ رَأَيْتُ الَّذِيْ رَأَى عُمَرُ قَالَ زَيْدٌ

زما سینه او ماته هم هغه مصلحت ښکاره شو کوم چې عمر رضي الله عنه لیدلې دی. زید رضي الله عنه وایي چې ددې

قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ إِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ

ددې نه وروسته ابوبکرصدیق رضي الله عنه ماته وویل چې ته یو پوهه ځوان یې (یعنې ستا د نیک بختۍ په

لَا نَتَّهِمُكَ

وجه د قرآن د راجمع کولو او د نقل کولو په سلسله کې د دروغ یا بل څه) تا باندې هیڅ تهمت نه شي لګولی

وَ قَدْ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَتَتَبَّعِ الْقُرْآنَ

ځکه تا به د نبي کریم صلی الله علیه وسلم وحي لیکله. لهذا ته قرآن وګوره او دا په (مصحف) کې راجمعه کړه

فَاجْمَعْهُ فَوَاللهِ لَوْ كَلَّفُوْنِيْ نَقْلَ جَبَلٍ

(د زید رضي الله عنه بیان دی چې) په الله قسم! که چیرته ماته راسپارل شوې وې په غرونو کې د یو غرا وچتول

مِنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ أَثْقَلَ عَلَيَّ مِمَّا

او بل ځای ته انتقالول نو دا خدمت به ماته د دې خدمت نه سخت او درون نه وی کوم چې ابوبکر رضي الله عنه

أَمَرَنِيْ بِهٖ مِنْ جَمْعِ الْقُرْآنِ قَالَ :

ماته د قرآن د راجمع کولو سپارلی ؤ زید رضي الله عنه وایي چې بهرحال دې حکم او رید وسره ما ابوبکر رضي الله عنه

قُلْتُ كَيْفَ تَفْعَلُوْنَ شَيْئًا لَمْ يَفْعَله رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . قَالَ هُوَ

ته وویل چې ته به دا کار څنګه کوي کوم چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دی کړی؟ ابوبکر رضي الله عنه وویل

وَ اللهِ خَيْرٌ فَلَمْ أَزَلْ أَبُوْبَكْر يُرَاجِعُنِيْ

په خدای قسم! دې کار کې خیر او بهتري ده؟ حضرت ابوبکر رضي الله عنه دې مسئله باره کې خبري کولې

حَتّٰى شَرَحَ اللهُ صَدْرِيْ لِلَّذِيْ شَرَحَ لَهٗ صَدْرَ أَبِيْ بَكْر

تردې چې الله زما سینه هم د دې لپاره پرانیستله. لکه څنګه یې چې پرانیستې وه سینه د ابوبکر رضي الله عنه

| |
|---|
| وَ عُمَرُ . فَقُمْت فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْآنَ أَجْمَعَهُ |
| او د عمر رضي الله عنه. بس ما د قرآن تالاش شروع کړو. د اسي چې ما به را جمعه کولو. کهجوري د ښاښونو نه |
| مِنَ الْعُسُبِ وَ اللِّخَافِ وَ صُدُورِ الرِّجَالِ حَتَّى وَجَدْتُ آخِرَ سُورَةِ التَّوْبَةِ |
| او د سپينو کاڼو نه او د خلکو نه (يعني د حافظانو د سينو نه) تر دې چې ما د سورت توبې آخري برخه |
| مَعَ أَبِي خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ لَمْ أَجِدْهَا مَعَ أَحَدٍ غَيْرِهِ |
| دابو خزيمه انصاري رضي الله عنه سره وموندله او دا برخه ما د هغه نه بغير بل هيچا سره ونه موندله او هغه برخه |
| ﴿ لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ ﴾ حَتَّى خَاتِمَةِ بَرَاءَةَ. |
| داده **لقد جاء کم رسول من انفسکم** آخر تر سورة برأت پورې (هغه صحيفې چې ما را جمع او نقل کړې) |
| فَكَانَتِ الصُّحُفُ عِنْدَ أَبِي بَكْرٍ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللهُ ثُمَّ عِنْدَ عُمَرَ |
| ابو بکر رضي الله عنه د هغې تر مرګ پورې ور سره وې. بيا د هغې نه وروسته د عمر رضي الله عنه د ده د ژوند پورې وې |
| حَيَاتَهُ ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ. (۱) |
| او بيا د هغې نه وروسته د حضرت عمر رضي الله عنه د لور حضرت حفصه رضي الله عنها سره وې. |

**توضيح : مقتل اهل اليمامة:** د حجاز په ښار د يو ځاې نوم يمامه دی. دلته مسليمه کذاب د دروغو د نبوت دعوی کړې وه او شلويښت زره (۴۰۰۰۰) جنګيالي يې راغونډ کړل چې د هغې تعلق د بنو حنيفه سره ؤو. د حضرت ابو بکر رضي الله عنه زمانه کې دې فتنې خطرناک صورت اختيار کړو. نو ځکه حضرت ابو بکر رضي الله عنه د حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه په قومندانۍ کې يو لښکر د يمامه اړخ ته وليږلو. يمامه کې د حق او د باطل په مينځ کې سخت جنګونه وشول، خصوصاً د حديقة الموت جنګ يو تباه کونکی جنګ ؤو. د مظبوطې کلا دننه د مسليمه او د هغې عسکر پټ شوي ؤو او په مسلمانانو باندې يې حملې کولې. آخر دا چې مسلمانان دې کلا ته دننه شول او دننه جنګ شروع شو. شل زره (۲۰۰۰۰) انسانان دې کلا کې مړه شول. چې نوم يې حديقة الموت مشهور شو. د يمامه په دې معرکه کې د صحابه کرام رضي الله عنهم خاص خاص اووه سوه (۷۰۰) يا دولس سوه (۱۲۰۰) قاريان شهيدان شول. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته په دې وجه ويره پيدا شوه که د اسلام په مختلف دغه شان جنګونو کې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۹، رقم الحديث: ۴۹۸۶.

حافظان شهیدان شول نو د هغې په تللو سره د هغوی په سینو کې قرآن لاړ نه شي او قرآن نه ته نقصان ونه رسیږي. د دې خطر له نظره حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوبکر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته دا خبره وړاندې کړه چې اوس دا قرآن عظیم را جمع کول غواړي. حضرت ابوبکر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په دې باندې ډیر بحث وکړو. چې د ذکر د بحث لاندې حدیث کې دی. کله چې د حضرت ابوبکر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ سینه الله دې ته خلاصه کړه نو حضرت ابوبکر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د قابل اعتماد او قابل استعداد صحابي حضرت زید بن ثابت رَضِیَ اللهُ عَنْهُ را وغوښتلو او د حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ او د خپله مکالمه یې هغې ته وړاندې کړه. هغې هم ډیره زیاته مکالمه وکړه. خو الله د هغې سینه هم د دې لپاره خلاصه کړه. د غه شان هغې د مختلف ځایونو نه لیکلی شوی قرآن را غونډ کړو چې په کاڼو، لرګو او د کهجورو په پوستکو او هډوکو باندې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې لیکلی شوی ؤو او د حافظانو په سینه کې محفوظ ؤو. حضرت زید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فقط داسې ونه کړل چې چا وویل چې دا قرآن دی هغه یې را جمعه کړو بلکې هغه پوره تحقیق وکړو. ټولو صحابؤ رَضِیَ اللهُ عَنْهُمْ هم پرې تحقیق وکړو. بیا یې هم هر آیت باندې د ګواه وړاندې کولو نه وروسته قبول کړو. ۲۳ کالو پورې صحابؤ رَضِیَ اللهُ عَنْهُمْ ته د قرآن او غیر قرآن پوره تجربه شوې وه. او د حافظانو په سینو کې چې کوم قرآن محفوظ ؤو. د هغې سره موازنه کړو نو هله یې ولیکلو. چې بیا پرې د صحابؤ اجماع قائمه شوه. چې د قطعیت اعلی مقام ورته حاصل شو. دلته د قرآن باره کې هیڅ شک ځکه نه شي کیدی چې الله د دې کتاب د حفاظت ذمه واري خپله اخستې ده. انسانانو خو تر د انساني حد پورې کوشش کړی دی. د حفاظت اصل اعلان خو د الله د طرف نه مخکې شوی دی. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دور مبارک کې څلورو صحابؤ رَضِیَ اللهُ عَنْهُمْ پوره قرآن یاد کړی ؤو. ۱: زید بن ثابت انصاري رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ۲: ابي بن کعب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ۳: معاذ بن جبل رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ۴: ابودرداء رَضِیَ اللهُ عَنْهُ. (المرقات ۴/۷۲۶).

زیر بحث حدیث کې دي چې د حضرت خزیمه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ سره د سورت توبه آخر برخه وموندلی شوه. دې باندې دا اعتراض کیدلی شي چې دلته خو د یو سړي په ګواهۍ سره آیت قبول شو. د دې جواب دا دی چې د حضرت خزیمه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ځان له ګواهي نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوه کسانو برابره کړې وه. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ کله د رجم د آیت راوړو چې دا اولیکلی شي نو حضرت زید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د بل ګواه نه موندلو په وجه د دې د انکار نه انکار وکړو. د غه شان د قرآن عظیم یو څو متفرقه نسخې تیارې شوې. د حضرت ابوبکر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ نه وروسته د حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ سره وې. بیا حضرت عثمان رَضِیَ اللهُ عَنْهُ دا راوغوښتلې او په یو لغت کې یې ولیکلې او یو څو نسخې یې تیارې کړې او بېلا بېلو هیوادونو ته یې ولیږلې لکه مخکې حدیث کې راوړان دي. (المرقات ۴/۷۲۷).

**لُعُسُب**: دا د عسیب جمعه ده د کهجورو خانښونو ته وایي. (المرقات ۴/۷۲۷).

روايتونو کې د رقاع جمع رقعة هم راغلي ده چې برخو په معنی کې دی. دا چې په هغه زمانه کې کاغذ نهٔ وو نو ځکه په دې شيانو باندې قرآن ليکل شوی وُو. (المرقات ۴/۷۲۷).

## د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې قرآن څنګه جمع شو؟

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ : أَنَّ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ قَدِمَ عَلٰى عُثْمَانَ |
| انس بن مالک رضي الله عنه وايي چې حذيفه بن يمان رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو |
| وَ كَانَ يُغَازِي أَهْلَ الشَّامِ فِي فَتْحِ أَرْمِينِيَّةَ وَ أَذْرَبِيجَانَ مَعَ أَهْلِ الْعِرَاقِ |
| هغه وخت عثمان رضي الله عنه د شام او عراق ارمينيه او د اذر بائيجان د جنګونو لپاره د جهاد سامان تيارولو |
| فَأَفْزَعَ حُذَيْفَةَ اخْتِلَافُهُمْ فِي الْقِرَاءَةِ |
| حذيفه بن يمان رضي الله عنه د قرأت باره کې د خلکو اختلاف په اضطراب کې اخته کړو (ځکه هغه ليدل چې |
| فَقَالَ حُذَيْفَةُ لِعُثْمَانَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ |
| خلک بې ځايه خپلو کې د يو بل د قرأت نه انکار کوي) نو ده عثمان رضي الله عنه ته وويل چې امير المؤمنين |
| أَدْرِكْ هٰذِهِ الْأُمَّةَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَلِفُوا فِي الْكِتَابِ |
| ددې امت د تدارک باره کې څه حل راوباسه مخکې ددې نه چې دوي اختلاف شروع کړي په کلام الله کې |
| اخْتِلَافَ الْيَهُودِ وَ النَّصَارٰى فَأَرْسَلَ عُثْمَانُ إِلٰى حَفْصَةَ |
| ديهودو او دنصاراؤ په شان عثمان رضي الله عنه دې خبري اوريدو سره حفصه رضي الله عنها ته پيغام واستولو چې |
| أَنْ أَرْسِلِي إِلَيْنَا بِالصُّحُفِ نَنْسَخُهَا فِي الْمَصَاحِفِ ثُمَّ |
| ته هغه صحيفي (چې ابوبکر رضي الله عنه جمع کړي وي) مونږ ته راولېږه. مونږ به ددې نه نقل واخلو او دا |
| نَرُدُّهَا إِلَيْكِ فَأَرْسَلَتْ بِهَا حَفْصَةُ إِلٰى عُثْمَانَ |
| مصاحف به تاته درولېږو. حفصه رضي الله عنها هغه ټولې صحيفي عثمان رضي الله عنه ته راولېږلي. عثمان رضي الله عنه |
| فَأَمَرَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَ عَبْدَ اللهِ بْنَ الزبير وَ سَعِيد بن الْعَاصِ |
| په انصارو کې حکم وکړو زيد بن ثابت رضي الله عنه او د قريشو نه عبد الله ابن زبير رضي الله عنه سعيد بن العاص |
| وَ عَبْد الله بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ فَنَسَخُوهَا |
| رضي الله عنه او عبد الله بن حارث بن هشام رضي الله عنه ته ددې صحيفو په نقل کولو باندې. نو دوي نقل کړي دا |

فِي الْمَصَاحِفِ وَ قَالَ عُثْمَانُ لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّينَ الثَّلَاثِ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ

صحيفي په مصاحفو کې. عمثان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قريش درې واړو کسانو ته وويل که چيرته اختلاف واقع شو د

فِي شَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ فَاكْتُبُوهُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ

قرآن په لغاتو کې يو ځاې ستاسو او د زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مينځ کې نو هلته د قريشو د لغت مطابق وليکی

فَإِنَّمَا نَزَلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوا حَتَّى إِذَا نَسَخُوا

ځکه کلام الله د قريشو په لغت کې رانازل شوی. نو هغوی په دې باندې عمل وکړو. او کله چې نقل شوي

الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ رَدَّ عُثْمَانُ الصُّحُفَ إِلَى حَفْصَةَ

دا صحيفې په مصاحفو کې نو عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه صحيفي حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ولېږلي. د هغې سره يې

وَأَرْسَلَ إِلَى كُلِّ أُفُقٍ بِمُصْحَفٍ مِمَّا نَسَخُوا وَأَمَرَ بِمَا سِوَاهُ مِنَ الْقُرْآنِ فِي كُلِّ صَحِيفَةٍ أَوْ مُصْحَفٍ أَنْ يُحْرَقَ

دا حکم وکړو چې د دې مصاحفو نه غير نورې صحيفي يا مصحف وسوځوه چې کوم کې قرآن ليکل شوی

قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَ أَخْبَرَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ

(د حديث يو راوي) ابن شهاب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوي خارجه رَحِمَهُ اللهُ ماته وويل

سَمِعَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ

چې ما د خپل پلار نه دا اوريدلي چې کوم وخت مونږ (يعني زه او دواړه قريش صحابه سعيد بن العاص

فَقَدْتُ آيَةً مِنَ

او عبد الله بن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) قرآن کريم (مصحف عثماني کې) نقل کولو نو نه ملاويده ماته يو آيت د

الْأَحْزَابِ حِينَ نَسَخْنَا الْمُصْحَفَ قَدْ كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَا فَالْتَمَسْنَاهَا

سورة احزاب حال دا چې ما به دا آيت د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه اوريدو. نو د تلاش نه وروسته دا آيت د

فَوَجَدْنَاهَا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ ﴿ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا

خزيمه انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ليکلی شوی ملاو شو. او هغه آيت دا دی ﴿ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا

| مَا عَاهَدُوا اللهَ عَلَيْهِ ﴾ فَأَلْحَقْنَاهَا فِي سُورَتِهَا فِي الْمُصْحَفِ.[1] |
|---|
| مَا عَاهَدُوا اللهَ عَلَيْهِ ﴾ بيا ما دا آيت مصحف كې د دې سورت (يعني سورة احزاب) سره ملاو كړو. |

**توضيح** : **ان حذيفه**: حضرت حذيفه بن اليمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د عراق ګورنر ؤو او د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دور خلافت زمانه وه. اكثر فارس خو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه كې فتح شوى ؤو. خو څه برخي د آرمينه او آذر بائيجان او داسي نور هيوادونه لا تر اوسه پاتې ؤو. همدغي باندې د كاروائى لپاره حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مامور كړى ؤو. (المرقات ۴/۷۳۰).

**وكان يغازي**: دې جملي باندې پوهيدل ډير ګران دي. ځكه د **"كان"** او **"يغازي"** ضمير فاعل كې دا احتمال هم دى چې د حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف ته راجع وي او دا احتمال هم دى چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف ته راجع وي. د بخاري شارح او علامه كرماني رَحِمَهُ اللهُ دواړو ځايونو كې ضمير فاعل د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف ته ګرځولى دى. وايي: **"وكان عثمان يجهز اهل الشام واهل العراق لغزوة هاتين الناحيتين وفتحهما"** يعنې هغه وخت حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شامي او عراقي لښكري د آرمينيه او د آذر بائيجان د فتح كولو لپاره تيارول. مظاهر حق كې هم د دې عبارت په رڼا كې د حديث ترجمه كړي ده. اګر كه د عبارت يې پوره ترجمه اونكړى شوه. د حديث دې تشريح او توضيح باندې هيڅ اشكال نه راځي او واقعه هم داسي ده ځكه د آرمينيه او د آذر بائيجان د جهاد لپاره د شام او د عراق لپاره لښكر لېږل باندې خو پوهه راځي. ځكه چې هغه وخت شام او عراق فتح شوي ؤو فقط دومره كول غواړي چې يغازى بمعني به د **يُغْزِيْ** اخستل كېږي يعنې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لښكري جنګولي.

شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ او ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د **كان** او **يغازى** دواړو ضمير حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ګرځولى دى. شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ اشعة اللمعات كې ليكلي دي: **"روايت است از انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كه حذيفه قدوم آورد بر عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وبود حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كه غزامى كرد اهل شام را در فتح ارمينشه وغزامى كر آزر بائيجان را باهل عراق"** اه.

كيدى شي چې شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ د ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ تشريح ليدلي وي او دا تشريح يې كړي وي. خو دې كې مشكل دا دى چې د ظاهري عبارت نه داسې محسوسېږي چې د حضرت حذيفه

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ...

رضي الله عنه د شام والو خلاف جهاد وکړو. اګر که د مونږ یغازی د جنګولو په معنی کې واخلو. بیا به هم عبارت صحیح نه وي ځکه دې حضراتو چې کومه ترجمه کړې ده دې کې انتشار ضمائر هم دی او انتشار معنی هم دی. ملاعلی قاري رحمه الله "کان" کې ضمیر شان هم تسلیم کړی دی او د **یغازی فاعل** یې اهل الشام ګرځولی دی. او ویلی یې دي چې همدغه صحیح ده. د دې مطلب به دا شي چې حذیفه رضي الله عنه حضرت عثمان رضي الله عنه ته راغلو او شان داؤ چې د شام والا د عراق والو سره یو ځاې شي او د آرمینیه او د آزر بائیجان خلاف جهاد وکړي. دغه شان په اوږد سفر سره به د عبارت مفهوم صحیح شي. خو بهتره هم هغه ده چې علامه کرماني رحمه الله مختصره اختیار کړې ده. زما هم همیشه په دې عبارت کې شک وي.

نن الحمد لله د دې سطور لیکلو وخت کې په پوره حقیقت باندې پوهه شوم او د لوستونکو مخې ته مې وړاندې کړو. مولائی کریم دې زما قلم د قصداً او غیر قصداً غلطیانو نه وساتي.

**آرمینیه:** د یوې خاصې علاقې نوم دی. ازر بائیجان عام دی. نو بیا د آزر بائیجان ذکر تعمیم بعد تخصیص دی. بهرحال د پاس عبارت نه مقصود دا بیانول دي چې فتح آرمینیه کې شامي او عراقي اسلامي لښکرې یو ځاې شوي. نو قرآن په قرأتونو کې اختلاف پیدا شو. (المرقات ۴/۷۳۰).

**فافزع حذیفة:** دې عبارت کې د حذیفه لفظ مفعول به واقع دی. او د اختلافهم افزع فاعل دی. یعنې کله چې حذیفه رضي الله عنه د خلکو د قرآن په قرأت کې اختلاف ولیدلو نو هغه ډیر ویریدلو چرته دا اختلاف حقیقي او معنوي اختلاف باندې منتج نه شي. (المرقات ۴/۷۳۰).

**ادرك هذا الامة:** یعنې دا امت د دینه مخکې بچ کړه. چرته قرآن کریم د یهودو او د نصاراؤ د کتابونو تورات او انجیل پشان بدلون په کې رانه شي. ځکه حضرت عثمان رضي الله عنه د حضرت حفصه رضي الله عنها نه د مصحف صحیفي راوغوښتلې او څلور صحابه کرام رضي الله عنهم یې هغې باندې مامورین کړل چې هغوی قرآن د قریشو په لغت کې ولیکي. د دې څلور صحابؤ رضي الله عنهم نومونه دا دي. (المرقات ۴/۷۳۰).

۱: حضرت زید بن ثابت انصاري رضي الله عنه ۲: حضرت عبد الله بن زبیر رضي الله عنه ۳: حضرت سعدی بن العاص رضي الله عنه ۴: حضرت عبد الله بن حارث بن هشام رضي الله عنه. دې څلورو صحابؤ کې حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه غیر قریشي دی. نور درې واړه قریشي دي. (المرقات ۴/۷۳۰).

**للرهط القریشین:** نه مراد همدغه درې دي. دې حضراتو ته حکم شوی ؤ چې که چرې د حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه سره په کوم لغت کې اختلاف راشي نو د قریشو لغت دې اختیار کړی شي ځکه قرآن په دې لغت باندې رانازل شوی ؤ. نو دې حضراتو قرآن کریم په یو لغت قریش باندې ولیکلو او په نورو

مصاحف ولیکل او د اسلام هغه لوي ښارونو ته یې ولېږل. ۱: مکه مکرمه ۲: شام ۳: یمن ۴: بحرین ۵: بصره ۶: کوفه ۷: یوه نسخه مدینه کې کیخودلی شوه. د دې اووه مصاحفو نه بغیر نور ټول مخکښي نقلونه وسوځول شو. د ضعیفو ورقو سوځول جائز دي. خو د عامه خلکو مخکښې سوځول جائز نه دي. فتنه به جوړه شي. بهتره همدغه ده چې خخ کړی شي یا اوبو کې وینځل شي یا سمندر کې ګوزار کړی شي. (المرقات ۴/۷۳۲).

بهرحال د قرآن کریم د جمعه کولو چې کوم ترتیب دی هغه داسي دی چې د ټولو نه اولنۍ وحي نه وروسته د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په حکم باندې قرآن په کاڼو، څرمنو او لرګو باندې راجمعه کړی شو. بیا د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د ډیري توجو په وجه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په دور کې هغه کاڼي، لرګي، څرمني او د حافظانو د سینو نه په کاغذونو باندې راجمعه کړی شو. ډیر صحیفي جوړي شوي. بیا حضرت عثمان رضی الله عنه د هغه صحیفو نه تر پاتې نورو ټولو لغاتو پورې ختمي کړي او د قریشو په یو لغت باندې راجمعه کړو. تریتب نزولي په جدا طریقه باندې ؤو. صحفی خپله صحابؤ رضی الله عنهم قائم کړه یعنې د سورتونو ترتیب یې خپله جوړو کړو او د آیتونو ترتیبب د نبي کریم صلی الله علیه وسلم له اړخ نه ؤو. چې توقیفی ده. خو د څېنو علماؤ خیال دی چې د سورتو او د آیتونو ترتیب د نبي کریم صلی الله علیه وسلم له اړخ نه ؤو. جو توقیفی ده. بیا حجاج بن یوسف د علماؤ او قاریانو په ذریعې سره قرآن کې د سپارو، رکوع ګانو د آیتونو نښاني قائمي کړي. چې تر ننه پورې همغه حالت باندې دي.

## د سورة توبې په ابتداء کې بسم الله ولې نشته دی؟

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قُلْتُ لِعُثْمَانَ مَا حَمَلَكُمْ أَنْ عَمَدْتُمْ |
| ابن عباس رضی الله عنه وایي چې ما عثمان رضی الله عنه ته وویل چې د دې څه وجه ده چې تا نزدې نزدې ایښي دي |
| إِلَى الْأَنْفَالِ وَ هِيَ مِنَ الْمَثَانِي وَ إِلَى بَرَاءَةٍ وَ هِيَ مِنَ الْمِئِينِ فَقَرَنْتُمْ بَيْنَهُمَا |
| سورة انفال چې د "مثانی" نه دی او سورت برأة چې د "مئین" نه دی. او د دواړو سورتونو مینځ کې دې |
| وَ لَمْ تَكْتُبُوا بَيْنَهُمَا سَطْرَ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَ وَضَعْتُمُوهَا فِي السَّبْعِ الطُّوَلِ |
| بسم الله الرحمن الرحیم لیکلو سره امتیاز نه دی کړی بیا داچې تا سورة انفال د اووه اوږدو سورتونو |
| مَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذٰلِكَ فَقَالَ عُثْمَانُ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| مینځ کې ایښی دی آخر سبب یې څه شی دی؟ عثمان رضی الله عنه وویل چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه |
| مِمَّا يَأْتِي عَلَيْهِ الزَّمَانُ وَ هُوَ تَنْزِلُ عَلَيْهِ السُّوَر |

ذَوَاتِ الْعَدَدِ وَ كَانَ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ شَيْءٌ

ضرورت مطابق رانازلېدل) نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ معمول دا ؤ چې کله به د قرآن یو آیت یا د هغې څه برخه نبي

دَعَا بَعْضَ مَنْ كَانَ يَكْتُبُ فَيَقُولُ :

عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې رانازله شوه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کاتبان (د وحي) کې یو را وغوښتلو او وبه یې فرمایل چې

ضَعُوا هَؤُلَاءِ الْآيَاتِ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَ كَذَا

دا آیت دې سورت کې شامل کړه. چې کوم داسې او داسې ذکر دې (یعنې په یوه خاصه موضوع مثلاً حج
او طلاق او داسې د نورو نوم به یې اخستلو او فرمایل به یې چې کوم سورت کې د دې باره کې ذکر دی

فَإِذَا نَزَلَتْ عَلَيْهِ الْآيَةُ فَيَقُولُ :

دا آیت هغې کې شامل کړه) د هغې نه وروسته به چې کوم آیت نازل شو نو د هغې باره کې به یې وفرمایل

ضَعُوا هَذِهِ الْآيَةَ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَكَذَا وَكَانَتِ الْأَنْفَالُ مِنْ

چې دا په دې سورت کې شامل کړه چې کوم کې داسې داسې ذکر دې او سورة انفال د هغه سورتونو نه دی

أَوَائِلِ مَا نَزَلَتْ بِالْمَدِينَةِ وَ كَانَتْ بَرَاءَةُ مِنْ آخِرِ الْقُرْآنِ

چې مدینه کې په ابتداء کې نازل شوی ؤو. او سورت برأت د قرآن هغه برخه ده چې آخر کې نازل شوې ده.

وَ كَانَتْ قِصَّتُهَا شَبِيهَةً بِقِصَّتِهَا

خو سورت انفال کې ذکر شوې خبرې د سورت برأت د خبرو سره مشابه دې (یعنې دواړه سورتونو کې د

فَظَنَنْتُ أَنَّهَا مِنْهَا فَقُبِضَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

کافرو سره د جنګ کولو او د عهد ختمولو بیان دی) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې دنیا نه لاړو خو مونږ ته

وَ لَمْ يُبَيِّنْ لَنَا أَنَّهَا مِنْهَا فَمِنْ أَجْلِ ذَلِكَ

یې دا ونه ویل چې سورت برأت د سورت انفال برخه ده یا نا؟ لهذا د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه ویلو په سبب او د

قَرَنْتُ بَيْنَهُمَا

دواړو سورتونو د مفهوم او معنی په مماثلت او مشابهت کېدو په سبب مونږ دا دواړه نزدې نزدې کېښودل

وَ لَمْ أَكْتُبْ بَيْنَهُمَا سَطْرَ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ وَ

| وَضَعْتَهَا | فِي | السَّبْعِ | الطُّوَلِ .[1] |
|---|---|---|---|
| سورتونه داوه اوږده سورتونو په مينځ کې کيخودل | | (خود دې دواړو په مينځ کې مې مسافت کيخوده يعني | |
| دادواړه مې جدا جدا کيخودل ځکه د دواړو په دوه کيدو کې شک ؤ دغه شان په يو کيدلو کې هم شک ؤ) | | | |

**توضيح** : **من المثاني**: د قرآن مجيد د سورتونو داسي تقسيم شوی دی چې د سورة بقره نه تر سورة يونس پوري ورته "**طوال**" وايي. طوال د اوږده په معنی کې دی. دا سورتونه هم د قرآن اوږده سورتونه دې او دا اووه دي. ځکه دې ته "**السبع الطوال**" وايي. سورة يونس نه تر سورة شعراء پورې سورتونو ته "**مئين**" وايي. د **مئين** د **مأة** جمعه ده سلو (۱۰۰) ته وايي. دا سورتونه هم په سلو سلو يا کم او زيات باندې **مشتمل** دي. د سورة **شعراء** نه تر سورة **حجرات** پورې سورتونو ته "**مثاني**" وايي. وجه دا ده چې د سورتونه د مضمون به اعتبار سره مکرر دي. يو قِسمه قصې بيا بيا تکرار شوي دي. او دا سورتونه د سل سل آيتونو نه کم دي. ځکه ورته مثاني ويل کيږي. سورة **حجرات** نه آخر تر قرآن پورې سورتونو ته "**مفصلات**" وايي. بيا دا مفصلات په درې قِسمه دي. د سورة **حجرات** نه سورة **بروج** پورې **طوال مفصل** دې او د سورة **بروج** نه سورة **بينة** پورې **اوساط مفصل** دې او د سورة **بينة** نه تر آخر د قرآن پورې **قصار مفصل** دي.

د دې تمهيد نه وروسته راشې. او حديث باندې د پوه کيدو کوشش وکړی. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د سورة توبه او د سورة انفال يو ځاې کيخودو او د بسم الله نه ليکلو متعلق درې سوالات وکړل. او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې جواب ورکړو. همدغه د دې حديث خلاص ده. (المرقات ۴/۷۳۵).

**اول سوال**: دا چې سورت انفال د مثانی نه دی او سورت توبه د مئين نه دی. دې دواړو کې د يو ځاې کيخودل څه مناسبت دی؟ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې سوال دا جواب ورکړی دی چې د دواړه سورتونو مضمون يو شان دی "**قصتها شبيهة بقصتها**" لهذا دواړه يو ځاې کيخودلې شول. (المرقات ۴/۷۳۵).

**دوهم سوال**: دا وه چې د قرآن د هر سورة په مينځ کې بسم الله ليکلی شوي ده د سورة برأت په ابتداء کې بسم الله ولې نه ده ليکلی شوي؟ د دې جواب حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ورکړی دی چې نبي

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴۹۸/۱، رقم الحديث : ۷۸۶ ، والترمذي في السنن ۲۵۴/۵ رقم الحديث :۳۰۸۶.

کریم ﷺ د سورة انفال او د سورة توبه باره کې هیڅ هدایت نه دی کړی. نبي کریم ﷺ دا هم نه ؤو فرمایلي چې سورة توبه د سورة انفال سره کیدی. دا د دې جزء دی. نبي کریم ﷺ باندې بسم الله د سورة توبه سره نه نازله شوي چې د هغې نه دا معلومه شوي وی چې دا جدا سورت دی. لهذا په سورة کې احتمال هم ؤو چې دا د سورة انفال جزء دی او دا احتمال هم ؤ چې دا جدا سورت دی. نو ځکه د مصحف لیکلو وخت کې د دواړه احتمالاتو خیال وساتلو. د جزئیت د احتمال د نظره مو د دواړو مینځ کې بسم الله ونه لیکله او د مستقل احتمال د نظره مو د دواړو سورتونو مینځ خالي پریخودلو او هغې کې مو سورت توبه ولیکله. (المرقات ۴/۷۳۵).

**دریم سوال**: دا چې سورت انفال د مثانی نه دی او سورت توبه د مئین نه ده چې ډیره اوږده ده نو **السبع الطوال** کې سورة توبه ایخودل په کار ؤو. تاسو د **سورة انفال** نه مخکې کړه او په **السبع الطوال** کې مو ورته ځای ورکړو. داسې مو ولې وکړل؟

حضرت عثمان رضي الله عنه د دې جواب داسې ورکړو چې سورت انفال د مدني ژوند بالکل ابتداء کې رانازل شوی دی او سورت توبه د مدني ژوند بالک آخر کې رانازل شوی دی. ګویا کې د ترتیب نزولي په اعتبار سره انفال مقدم دی او سورت توبه مؤخر ده. اوس د نبي کریم ﷺ د هیڅ یو حکم نه بغیر ترتیب نزولي نه شي بدلیدی. نو ځکه مو ترتیب باندې پاتې کړلو. ګویا کې دواړه د **السبع الطوال** اووم ترتیب دی. (المرقات ۴/۷۳۵).

**نوټ**: د علماؤ کرامو په دې خبره باندې اجماع ده چې د سورتونو د آیتونو ترتیب سمعی او توقیفی دی. د چا اجتهاد دې کې دخل نشته دی. د قرآن کریم د سورتونو باره کې راجحه دا ده چې د دې ترتیب هم توقیفي دی مونږ دې کې رائی نه شو ورکولې د جمهورو همدغه رائی ده.



